الٓمّٓ

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا لَا تَقُوۡلُوۡا رَاعِنَا وَقُوۡلُوا انۡظُرۡنَا

اے ایمان والو! مۀ وایئ لفظ د رَاعِنَا او وایئ لفظ د اُنۡظُرۡنَا (مونږ ته اُوګوره)

وَاسۡمَعُوۡا ؕ وَلِلۡكٰفِرِيۡنَ عَذَابٌ اَلِيۡمٌ ﴿۱۰۴﴾

او واورئ (یعنی خبره قبوله کړئ) او د کافرانو دپاره عذاب دے دردناک۔

دلته یو څو مُهم بحثونه دی : اجمالی مضمون، ربط، شان نزول، د آیت عنوانات، د آیت فوائد، حکمتونه او احکام۔

**تفسیر** : د یهودیانو قبائح او بد صفات د مخکښ نه بیانیدل، پدے آیت کښ الله تعالیٰ د دوی بل بد صفت دا بیانوی چه دوی د رسول الله ﷺ بے ادبی هم کوی۔

نو د آیت عنوان دے : [اِسَاءَةُ الْاَدَبِ مَعَ رَسُوۡلِ اللهِ ﷺ]

(دا یهودیان د رسول الله ﷺ په مجلس کښ د هغه بے ادبی کوی) هغه ته بد رد او بد نسبتونه کوی، د کم عقلتیا نسبت ورته کوی نو الله تعالیٰ پدے آیت کښ ددے نه منع اُوکړه۔

**مضمون** : اجمالی مضمون داسے دے چه پدے آیت کښ د یو بے شبهے جواب ذکر کوی چه د هغے تفصیل روستو ذکر کیږی، بیا روستو آیت کښ الله تعالیٰ د اهل کتابو حسد ذکر کوی چه دوی ستاسو دپاره خیر نۀ غواړی ځکه د داسے آیتونو په نازلیدو خفګان کوی۔ بیا روستو ﴿مَا نَنۡسَخۡ﴾ آیت کښ د نسخ مسئله بیانوی چه دا هم د هغوی د شبهے جواب دے چه دا څنګه پیغمبر دے چه نن یوه خبره کوی او سبا له ترے منع کوی، لهذا دا د الله تعالیٰ رسول نشی کیدے ځکه چه په خپله خبره کښ متردد او شکی دے۔ دا خبره دوی ددے دپاره کوله چه ز مونږ دین منسوخ نۀ شی، نو الله تعالیٰ به د هغے جواب هم ورکړی او د نسخ فائدے به بیان کړی۔ نو جواب د سوال به هم اُوشی چه په نسخ کښ ډیرے فائدے دی ځکه چه الله تعالیٰ حکیم دے، هیڅ یو کار ئے د حکمت نه خالی نۀ دے۔ او د نسخ مسئله پدے مقام کښ پدے وجه هم بیانوی چه دا د روستو بلے مسئلے دپاره مقدمه ده چه هغه تحویل قبله (د قبلے بدلول) وو۔ دا ډیره مشکله مسئله وه، پدے وجه الله تعالیٰ مخکښ نه د هغے دپاره مقدمات بیانوی۔ یوه مقدمه دا چه نسخ په ادیانو کښ شته۔ دویم دا چه په رسول به اعتراض نۀ کوئ او په ﴿فَاَيۡنَمَا تُوَلُّوۡا فَثَمَّ

وَجۡهُ اللّٰهِ﴾ کښې هم بیانیږي چه ټول طرفونه د الله تعالیٰ دي، کوم طرف ته چه هغه حکم کوي، مؤمنان به هغه طرف ته مخونه اړوي. بیا روستو د ابراهیم ؑ واقعات راوړي، پدې کښې اشاره ده چه بیت الله د ابراهیم ؑ قبله وه نو که الله تعالیٰ خپل نبي دې غوره قبلې ته راواړوي، نو پدې کښې هیڅ اشکال نشته، بلکه د خپل پلار نیکۀ غوره قبلې ته راواوړیدو، نو دا خو د اعتراض خبره نۀ ده. دا مقدمات د تحویل القبله دپاره هم دي او د نورو مقاصدو دپاره هم دي چه روستو ئې تفصیل راځي ان شاء الله تعالیٰ.

ددې **رکوع حاصل** دا دې چه اول کښې د رَاعِنَا لفظ وئیلو نه منع ده، چه دا د یوې شبهې جواب هم دې. چه پدې کښې د رسول الله ﷺ سره د دوی بې ادبي ذکر ده. بیا د نسخ مسئله، بیا د نسخ حکمت بیانوي په اَلَمۡ تَعۡلَمۡ سره، بیا یو څو زجرونه او رټنې ذکر کوي. اول (اَمۡ تُرِیۡدُوۡنَ) په رسول الله ﷺ باندې په اعتراض کولو زجر دې. بیا یهودیانو ته په حسد کولو زجر بیانوي، او ایمان والو دپاره د هغوی په مقابله کښې په (فَاعۡفُوۡا وَاصۡفَحُوۡا) او په (اَقِیۡمُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتُوا الزَّکٰوةَ) (بَلٰی مَنۡ اَسۡلَمَ) سره. چه جنت په دعوه نۀ دې، بلکه په ایمان او عمل ملاویږي. یعنی په دوه صفتونو ملاویږي (اَلۡاِسۡلَامُ وَالۡاِحۡسَانُ).

## ربط او مناسبت

۱- مخکښې آیت کښې د یهودیانو جادو او سحر ذکر شو چه دوی د الله د کتاب په ځائې جادو اخلي، اُوس وائي چه دوی په رسول الله ﷺ پورې استهزاء هم کوي.

۲- دارنګه مخکښې شبهه او اعتراض وو په باره د جادو کښې، اُوس شبهه ده په باره د لفظ د رَاعِنَا کښې. چه تاسو مونږ ولې د رَاعِنَا لفظ نه منع کوئ او خپله ئې استعمالوئ.

۳- اصل ربط : د یهودیانو خباثت او د هغوی د اسلام او مسلمانانو سره دشمني بیانیږي.

**شان نزول** : رسول الله ﷺ به چه کله په یو مجلس کښې بیان کولو، او د دین تعلیم به ئې ورکولو او مخ به ئې بعض ملګرو ته واړولو، نو بعض ملګري به د هغه په خبره پوره پوهه نشو، نو د دوباره تپوس کولو دپاره به ئې هغه ته د (رَاعِنَا) لفظ استعمالولو چه ددې معنیٰ ده (لږ زمونږ خیال هم اُوساتئ او دوباره دا خبره اُوکړئ)، پدې مجلسونو کښې به یهودیان هم ناست وو. نو کله چه دوی دا لفظ واوریدو، د دوی باطني خباثت په حرکت کښې راغلو او د موقعې نه ئې فائده واخسته، نو دوی به پدې لفظ سره خپله ژبه کږه کړه او ددې لفظ نه به ئې (رَاعِیۡنَا) جوړ کړو یعني اې زمونږ شپونکیه!. لکه بل آیت کښې دي :

﴿وَرَاعِنَا لَیًّۢا بِاَلۡسِنَتِهِمۡ﴾ [النساء:٤٦] (دوی رَاعِنَا وائي چه ژبې پرې کږوي).

(رَاعِیٌ) په عربی ژبه کښې شپونکی ته وئیلے شی، مقصد ئے دا وو چه ستا کار د گډو بیزو د تربیت سره دے، نهٔ د انسانانو سره۔ دارنگه شپونکی کښې غالباً کم عقلتیا وی۔ او خپله په عبرانی ژبه کښې (رَاعِیٌ) به ئے اَحْمَق (کم عقل) یا غټ جاهل ته وئیلو۔ نو پدے سره به دوی د رسول الله ﷺ پورے مسخرے کولے، یو بل سره به ئے خندل۔

او په روایت د ابن عباس رضی الله عنه کښې دی: چه دوی به وئیل: اُوسه پورے مونږ دے نبی ته په پټه کنځل کول، اُوس به ئے ورته په ښکاره کوو۔ (قرطبیؒ) او صحابه کرامؓ او نبی کریم ﷺ خو عَالِم الغیب نهٔ وو۔ پدے کښې یو صحابی (سعد بن معاذ رضی الله عنه) چه هغه د دوی په ژبه پوهیدلو په دے خبره پوهه شو چه دا خلق خو ورانے کوی، دا لفظ د ورانئ په نیت باندے وائی۔ دوی ته ئے اُووئیل :که آینده کښې ما ستاسو نه دا کلمه واوریدهٔ څټونه به درله اُووهم۔ دوی ورته اُووئیل : تاسو ئے چه وایئ؟۔ نو الله تعالیٰ دا آیتونه نازل کړل او مؤمنان ئے منع کړل چه تاسو دا لفظ مهٔ استعمالوئ بلکه د (رَاعِنَا) په ځائے (اُنْظُرْنَا) لفظ استعمال کړئ چه د دواړو معنیٰ یو ده، دے دپاره چه یهودیانو ته د رسول الله ﷺ د بے ادبئ موقعه ملاؤ نشی او یهود ترے غلطه فائده وانخلی او نهٔ د یهودیانو سره مشابهت راشی۔ نو پدے کښې د رسول الله ﷺ ډیر احترام ذکر شو۔

او د یهودیانو همیشه دپاره د نبی ﷺ بے ادبی او د ایمان والو سره بد نیتی د دوی عادت راروان دے۔

په حدیث کښې راغلی دی چه کله به دوی د مسلمانانو سره ملاویدل نو د (اَلسَّلَامُ عَلَیْکُمْ) په ځائے به ئے (اَلسَّامُ عَلَیْکُمْ) وئیلو یعنی په تاسو دے مرگ وی۔ (بخاری ومسلم)۔

## د راعنا مطلبونه

(رَاعِنَا) ۱- یا د رِعَایَة نه دے په معنیٰ د لحاظ ساتلو سره۔ یعنی زمونږ لحاظ هم اُوساته۔ او دا د صحابه کرامؓ مقصد وو۔ او د یهودو مقصد په کښې دا وو چه تهٔ زمونږ لحاظ اُوساته او زمونږ د مصیبتونو او تکالیفو نه نگهبان او ساتنه کونکے شه، او دا صفت د الله تعالیٰ پورے خاص دے او نبی ﷺ له ئے ثابتول شرك دے، نو دوی د شرك دا کلمه په صحابه کرامؓ کښې خوروِل غوختل، دے دپاره چه په دوی کښې په پټه سره شرك راشی۔

۲- یا رَاعِنَا د رُعُونَة نه دے په معنیٰ د حُمْق او کم عقلتیا سره، نو رَاعِنٌ به ئے کم عقل ته وئیلو، او الف به ئے پکښې د آواز پورته کولو دپاره زیاتولو۔ یعنی اے کم عقله !۔ یا د هغوی په ژبه کښې هم بعینه دا لفظ د کم عقل دپاره استعمالیدو۔

۳- یا د دوی په لغت کښې د رَاعِنَا معنیٰ دا وه : (اِسْمَعْ لَا سَمِعْتَ) ته غوږ کیده ته دے خبره وانهٔ ورے) نو دا نبی کریم ﷺ ته ښیرے وے۔ پدے وجه منع شو۔ (اللباب)۔

٤ ـ يا رَاعِنَا د رِعَايَة او مُرَاعَاة نه دے، او دا باب مفاعله ده چه د دواړو طرفينو نه صدور غواړی، او مقصد دا وو چه مونږ ستا رعايت او لحاظ ساتو، نو ته زمونږ رعايت او لحاظ ساته۔ نو پدے لفظ سره دوی په نبی ﷺ باندے خپل احسانات زيادول او د هغه سره ئے خپل ځانونه برابرول او دا لويه بے ادبی وه۔ (اللباب لابن عادل)۔

## د آيت عنوانات

دا آيت په يوه جزئی واقعه کښې نازل دے ليکن د الفاظو د عموم د وجه نه پدے کښې يو څو عنوانات دی :

(١) اَلنَّهْيُ عَنْ لَفْظِ رَاعِنَا۔ پدے آيت کښې د راعنا لفظ د وينا نه منع بيان شويده۔

(٢) اَلنَّهْيُ عَنْ إِسَاءَةِ الْاَدَبِ مَعَ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ۔ (د رسول الله ﷺ د بے ادبی کولو نه پکښې منع بيان شويده)۔ (٣) اَلنَّهْيُ عَنِ الْاَلْفَاظِ الْمُوْهِمَةِ وَالْمُشْتَبِهَةِ.

(د موهم او مشتبه الفاظو نه منع ذکر ده يعنی د هر هغه لفظ نه منع ذکر ده چه هغه اشتباه پيدا کوی او د غلطے معنے وهم او ګمان پکښې وی۔

(٤) اَلنَّهْيُ عَنِ التَّشَبُّهِ بِالْكُفَّارِ فِيْ اَقْوَالِهِمْ وَاَفْعَالِهِمْ) ۔ د کافرانو سره په اقوالو او افعالو کښې د مشابهت کولو نه منع ذکر ده لکه دا خبره ابن کثيرؒ ذکر کړيده۔

حافظ ابن کثيرؒ فرمائی :

[وَالْغَرَضُ اَنَّ اللهَ تَعَالٰی نَهَی الْمُؤْمِنِيْنَ عَنْ مُشَابَهَةِ الْكَافِرِيْنَ قَوْلاً وَفِعْلاً] ...... [ابن کثير ١/٢٧٣]

(مقصد د آيت دا دے چه الله تعالیٰ ايمان والا په خبرو او کارونو کښې د کافرانو د مشابهت نه منع کوی) چه مسلمان به ديته وائی چه د هغهٔ خبرے او د هغهٔ اعمال د کافرانو سره مشابه نهٔ وی، عمل به ئے هم په کنټرول وی او خبرے به ئے هم د شريعت په حدودو کښې دننه وی۔ (د تشبه بالکفار مثالونه او اضرار او قواعد به په سورة آلعمران (٩٨) آيت کښې راشی ان شاء الله)۔

دارنګه په آيت کښې غرض دا دے چه هر هغه کلمه او خبره چه په هغے سره د يو شر دروازه کولاويږی او د کافرانو سره پکښې مشابهت راځی او خلق ترے غلطه فائده اخلی اګرکه د هغه لفظ صحيح معنیٰ هم وی نو د هغے استعمال به منع وی۔ او دے ته د شريعت په اصطلاح کښې د الفاظو اصلاح وائی۔

او هر هغه لفظ چه په هغے کښې د الله تعالیٰ او د هغه د رسول، يا د هغه د کتاب بے احترامی راځی هغه به پريږدی نو بيا په دے آيت کښې الله تعالیٰ يو قانون بيان کړيدے چه هر هغه لفظ چه هغه ښهٔ او بده معنیٰ دواړه لری، نو هغه لفظ به پريږدی او داسے لفظ به استعمالوی چه هغه

سو چه پاك وي، او د غلطي معنى احتمال پكښې د سَرهٔ نهٔ وي، دا په هره ژبه كښې كيږي، په پښتو، فارسئ، اردو كښې. يعنې غلط الفاظ مهٔ استعمالوئ او صحيح الفاظ استعمال كړئ او شريعت لكه څنګه چه د عقيدے اصلاح كوي، نو دغه شان د اخلاقو، اعمالو، اقوالو اوالفاظو د تولو څيزونو اصلاح كوي، قرآن كريم او احاديثو كښې ډير داسے الفاظ شته چه په هغې كښې اصلاح شوے ده چه دا لفظ مهٔ استعمالوئ پدے كښې نقصان دے.

○ لكه قرآن كريم كښې دي : ﴿ وَلَا تَقُولُوا لِمَا تَصِفُ أَلْسِنَتُكُمُ الْكَذِبَ هَٰذَا حَلَالٌ وَهَٰذَا حَرَامٌ ﴾ [نحل] يعني د ځان نه داسے مهٔ وايئ چه دا حلال دي او دا حرام دي. ځكه چه پدے كښې د الله تعالىٰ بے ادبي ده او په هغه دروغ تړل دي.

○ دغه شان حديث كښې دي : داسے مهٔ وايئ [يَا خَيْبَةَ الدَّهْرِ] يعني زمانے ته به كنځل نهٔ كوئ ځكه چه دا په اصل كښې الله تعالىٰ ته كنځل كول دي. ○ ځان ته به داسے نهٔ وائې : [خَبُثَتْ نَفْسِيْ] (زما نفس خبيث شو) ځكه چه خبيث خو مشرك وي. بلكه (لَقِسَتْ نَفْسِيْ) به وائې. (يعني نفس مے بے سوره اوككړ شو). ○ حديث كښې دي : انګورو ته (كَرْم) مهٔ وايئ ځكه چه كرامت والا خو مؤمن وي. ○ او دغه شان (عَبْدِيْ) (زما بنده او غلام) به نهٔ وائې بلكه (فَتَايَ) به وائې. (يعني زما هلك او خادم).○ دغه شان حديث كښې دي [مَا شَاءَ اللهُ وَشَاءَ فُلَانٌ] مهٔ وايئ (يعني چه الله او فلانے اُوغواړي) ○ [هٰذَا مِنْ بَرَكَةِ اللهِ وَبَرَكَةِ فُلَانٍ] دا د الله بركت دے او د فلاني بركت دے) ددے نه منع راغلے ده. ○ او ددے په حكم كښې دا الفاظ هم دي [أَنَا فِيْ حِفْظِ اللهِ وَحِفْظِ فُلَانٍ] (زهٔ د الله او د فلاني په حفاظت كښې يم).

○ أَنَا مُتَوَكِّلٌ عَلَى اللهِ وَعَلٰى فُلَانٍ. (زما په الله او په فلاني توكل دے).

○ دارنګه داسے وئيل : خپله زمكه خپل اختيار.

○ په درود تاج كښې د نبي ﷺ په صفت كښې داسے وائي : [دَافِعُ الْبَلَاءِ وَالْقَحْطِ وَالْاَلَمِ] (مصيبتونه او قحطونه او دردونه دفع كونكے) دے. ○ عبد الرسول او عبد النبي او داتاء او ګنج بخش او پير بخش او حسين بخش او رامداد نومونه كيخودل.

دے ټولو الفاظو نه د شرك بوئي پيدا كيږي پدے وجه ددے وئيل ددے آيت او د احاديثو په رڼړا كښې جائز نهٔ دي.

لهذا داسے به نهٔ شي وئيلے چه [أَسْئَلُكَ بِحَقِّ فُلَانٍ] (اے الله ! زهٔ تا نه سوال كوم په حق د فلان) دارنګه په وسيله د فلان او جاه د فلان او طفيل د فلان او حرمت د فلان. دا مشتبه الفاظ دي.

○ دغه شان لفظ د حضرت او حضور د رسول الله ﷺ دپاره غائبانه استعمالول هم پدے كښې

داخل دی۔ ځکه چه ددے دا مطلب هم جوړیږی چه د رسول الله ﷺ حاضریدل۔ نو دے نه غلطو عقیدو والا دا مطلب اخلی چه نبی ﷺ هر ځائے حاضر ناظر دے۔ او صحیح معنیٰ ئے هم شته، هغه دا چه دا په بعض ژبو کښ د ادب لفظ دے۔ دغه شان (یارسول الله) لفظ غائبانه استعمالول هم پکښ داخل دی۔ وجه دا ده چه ددے یوه معنیٰ دا جوړیږی چه (اے د الله رسوله زهٔ ستا نه مدد غواړم) نو دا خو ښکاره شرك دے او که دا معنیٰ نهٔ اخلی نو هسے ے مطلبه چغه ده او د رسول الله ﷺ بے ادبی ده چه هسے ورته آوازونه کوی۔ او دغسے مشتبه الفاظ چه دوه مطلبونه ترے اخستے کیږی په هره ژبه او هر لغت کښ استعمالیږی نو مسلمان له پکار دی چه هغے ته فکر کوی او د هغے په ځائے صفا لفظ استعمالوی۔

حدیث د مسند احمد کښ راغلی دی : [مَنْ تَشَبَّهَ بِقَوْمٍ فَهُوَ مِنْهُمْ]

(چا چه د هر قوم سره مشابهت اُوکړو نو دا به د هغوی نه حساب وی)۔

﴿وَقُوْلُوا انْظُرْنَا﴾ یعنی د رَاعِنَا په ځائے (اُنْظُرْنَا) لفظ استعمال کړئ چه ددے نه کافران غلط مطلب نشی اخستے۔ بیا دا ضروری نهٔ ده چه بنده به د متوجه کولو په صورت کښ صرف (اُنْظُرْنَا) استعمالوی بلکه بل صحیح لفظ هم استعمالولے شی خو (اُنْظُرْنَا) ئے په طریقه د مثال راوړو۔

(وَقُوْلُوْا) یعنی کله چه مو ضرورت راشی نو بیا اُنْظُرْنَا لفظ استعمالوئ۔

(اُنْظُرْنَا) نظر یا په معنیٰ د تاخیر او مهلت سره دے یعنی مونږ ته په خبرو کښ دمه او انتظار اُوکړه چه په خبره پوهه شو۔ یا نظر په معنیٰ د فکر او توجه سره دے۔ یعنی مونږ له هم لږه توجه راکړه۔ [ای اَقْبِلْ عَلَیْنَا وَانْظُرْ اِلَیْنَا] (مونږ ته مخ راواړوه او مونږ طرف ته اُوګوره)

(النکت والعیون د ماوردیؒ)۔

﴿وَاسْمَعُوْا﴾ : دا ئے د (اُنْظُرْنَا) نه روستو راوړو پدے کښ مقصد ادب ورکول دی چه تاسو اول نه خبرے ته ښهٔ غوږ کیدئ او غوږونه د نورو مشغلونه اُوزګار کړئ نو (اُنْظُرْنَا) لفظ استعمالولو ته او تپوس ته به مو ضرورت نهٔ راځی۔ (نیشاپوریؒ)۔

○ یا د سمع نه مراد قبولیت او اطاعت دے یعنی خبره باندے عمل اُوکړئ یعنی صرف اُنْظُرْنَا وئیل مقصد نهٔ دے بلکه ددے پسے په خبره باندے عمل کول ضروری دی، په خلاف د یهودیانو چه هغوی به صرف رَاعِنَا وئیلو او بیا به ئے د خبرو اطاعت نهٔ کولو۔ او دا مطلب هم جوړیږی چه ((هغه خبره کوئ کوم باندے چه زهٔ درته امر کوم او زما تول اوامرو باندے عمل کوئ او د یهودیانو په شان مهٔ کیږئ چه هغوی وئیلی وو (سَمِعْنَا وَعَصَیْنَا) هسے په خولے ئے د آوریدو او

قبلیدو دعوه کړے وه لیکن عمل ئے د هغے خلاف وو)۔ (قاسمیؒ)۔

○ یا مطلب دا دے چه دا خطاب ما تاسو ته اُوکړو نو دا قبول کړئ او دغه شان آینده کښې د الله تعالیٰ د احکامو قبولیت کوئ۔

﴿وَلِلْكَافِرِينَ عَذَابٌ أَلِيمٌ﴾ : پدے کښې په یهودیانو رد دے چه دا خلق د رَاعِنَا لفظ په استعمالولو سره کافران دی، د الله تعالیٰ نبی له پدے باندے درد ورکوی او د هغه بے ادبی کوی۔ او پدے کښې یو قسم یره پرته ده چه هر هغه څوک چه د الله تعالیٰ د نبی ﷺ او د هر داعی بے ادبی کوی الله تعالیٰ به ورله دردناك عذاب ورکوی۔

عذابِ الیم د منافقانو دپاره دے، دلته ئے دکافرو دپاره ذکر کړو ځکه چه دوی هم د منافقانو کار کولو، ظاهر کښې ئے لفظ صحیح استعمالولو او دننه پکښې غلط مطلب وو۔

علامه بقاعیؒ لیکی : دے آیت کښې داسے تقدیر دے : [إِسْمَعُوْا فَإِنَّ السَّمَاعَ إِيْمَانٌ وَلِلسَّامِعِيْنَ نَعِيْمٌ كَرِيْمٌ وَالْإِعْرَاضُ كُفْرٌ وَلِلْكَافِرِيْنَ عَذَابٌ أَلِيْمٌ] [نظم الدرر للبقاعی ۱/۱۰۵]

(خبره واورئ ځکه چه خبره آوریدل او قبلول ایمان دے او د خبره منونکو دپاره عزتمند نعمتونه دی او اعراض او مخ اړول کفر دے او د کافرانو دپاره دردناك عذاب دے)۔

**فوائد الآیة** : ۱- يَا أَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْا) دا اولنے خطاب دے او په قرآن کښې (۸۹) کرته راغلے دے او دیته نِدَاءُ الرَّحْمٰنِ لِأَهْلِ الْإِيْمَانِ ویلے شی (یعنی د رحمان آوازونه چه ایمان والو ته ئے کریدی)۔ او ددے نه روستو مقتضیات الایمان ذکر کیږی یعنی یا به روستو امر وی یا به د کوم کار نه نهی او منع وی او هغه د ایمان تقاضاګانے دی۔ لکه عبد الله بن مسعود ﷛ فرمائی :

[إِذَا سَمِعْتَ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ يَقُوْلُ : يَا أَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْا فَارْعَهُ سَمْعَكَ فَإِنَّهُ إِمَّا خَيْرٌ تُؤْمَرُ بِهِ وَإِمَّا شَرٌّ تُنْهٰى عَنْهُ]

[تفسیر ابن عثیمین، وشذرات الذهب]

(کله چه ته د الله تعالیٰ نه په قرآن کښې يَا أَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْا واورے نو غوږ ورته متوجه کړه ځکه چه دا به یا خیر وی چه تا ته به پرے حکم کیدے شی یا به شر وی چه ته به ترے منع کیدے شے)۔

۲- په آیت کښې د رسول الله ﷺ دیر احترام ذکر شو، او دا اُوخودلے شو چه د رسول الله ﷺ احترام او ادب کول فرض دی۔

۳- د یهودیانو لویه بدی او بے ادبی ذکر شوه او باطنی خباثت ئے راښکاره کړے شو۔

٤- د مؤمنانو د کلماتو اصلاح اُوشوه۔

٥- د آیت نه ثابته شوه چه اسلام کله د سد الذرائع د وجه نه منع کوی یعنی یو شے کله خپله منع نهٔ وی، په هغے کښې څه فساد نهٔ وی لیکن هغه سبب او ذریعه د فساد ګرځی نو شریعت ئے

هغې نه هم منع کوی۔ لکه رَاعِنَا لفظ کښې د صحابه کرامو په نیز هیڅ فساد نهٔ وو لیکن یهودیانو ترې غلط مطلب اخستې شو، پدې وجه هغوی پرې فساد کولو نو مسلمانان ترې منع شو۔ دغه شان د مهیانو ښکار د خالی په ورځ په یهودیانو بند وو لیکن دوی ورته بندونه واچول او د اتوار په ورځ به ئې رانیول نو پدې کار سره د دوی نه خنزیران او شادوګان جوړ شو ځکه چه ذریعه د فساد هم فساد وی۔ دا داسې شو لکه د خالی په ورځ مهیان رانیول۔ دغه شان (وَلَا تَقْرَبَا هٰذِهِ الشَّجَرَةَ) کښې ئې ونې ته د نزدیکت نه منع اُوکړه ځکه چه دا د ونې د خوراك ذریعه وه۔

او ددې خبرې ډیر تفصیل په تفسیر قرطبی کښې سره د مثالونو نه اُوګوره۔ او بعض مثالونه د احادیثو نه دا دی (۱) لکه د رسول الله ﷺ په مرض الوفات کښې ام حبیبهؓ او ام سلمهؓ دوارو د حبشو د ګیرجو صفت اُوکړو او دا ئې هم اُووئیل چه په هغې کښې تصاویر وو نو نبی ﷺ سر راپورته کړو او وې فرمایل : دا خلق (یهود او نصاریٰ) د الله په نیز ډیر شریان خلق دی ځکه چه په دوی کښې به چه کله نیك سړې مړ شو نو د هغه په قبر به ئې مسجد جوړ کړو او په هغې کښې به ئې د هغوی تصاویر اُولګول۔ د نبی ﷺ مقصد خپل امت منع کول وو چه دوی ما سره داسې کار چرته اُونکړی۔ (بخاری ومسلم)

(۲) په حدیث کښې دی [مَنْ وَقَعَ فِی الشُّبُهَاتِ وَقَعَ فِی الْحَرَامِ] (صحیح مسلم)

(څوك چه په مشتبه څیزونو کښې واقع شو نو هغه په حرامو کښې واقع شو)

یعنی د ګناهونو خوا ته مهٔ نزدې کیږئ هسې نه چه په کښې واقع نشئ لکه یو شپونکې چه خپل څاروی د چراګاه په خوا کښې څروی، نو ډیره نزدې ده چه د هغه څاروی به پردئ چراګاه ته ننوزی۔

(۳) حدیث کښې دی : د بل مور او پلار ته کنځل کول داسې دی لکه خپل مور او پلار ته کنځل کول۔ (مسلم) نو د بل د مور او پلار د کنځلو نه ئې منع پدې وجه اُوکړه چه دا ذریعه ګرځی ددې چه ددهٔ مور او پلار ته به کنځل کولې شی۔

(٤) عمر بن الخطاب ﷺ فرمائی : دَعُوا الرِّبَا وَالرِّيْبَةَ۔ سود او شکی کارونه پریدئ۔

(جامع العلوم والحکم ص (۱۱۰) لابن رجبؒ۔

(۵) احادیثو کښې د بیع العِینة نه منع شوې ده۔ ځکه دا ذریعه د سود ده۔

٦- حسن بصریؒ پدې کښې (رَاعِنًا) په تنوین سره لوستلې دې۔ نو بیا به دا صیغه د اسم فاعل وی او صفت به وی د موصوف محذوف دپاره یعنی [قَوْلًا ذَا رُعُوْنَةٍ] (یعنی داسې وینا مهٔ کوئ چه د کم عقلتیا والا وی)۔ دا به د تامر او لابن په شان وی۔ اَیْ ذُوْ تَمْرٍ او ذُوْ لَبَنٍ۔

(اللباب، قاسمیؒ، قرطبیؒ)

۷- وَانْظُرْنَا : د مفتی کمال دا وی چه کله د یو شی نه منع اُوکړی نو د هغے صحیح عوض او متبادل شے بیانوی چه خلق په هغے عمل اُوکړی۔

الله تعالیٰ اُوس د دوی حسد بیانوی :

| مَا يَوَدُّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ وَلَا الْمُشْرِكِيْنَ اَنْ يُّنَزَّلَ عَلَيْكُمْ مِّنْ خَيْرٍ |
|---|
| نهٔ خوښوی کافران د کتاب والونه او نهٔ د مشرکانو نه دا خبره چه نازل کړے شی په تاسو، څهٔ خیر |
| مِّنْ رَّبِّكُمْ ؕ وَاللّٰهُ يَخْتَصُّ بِرَحْمَتِهٖ مَنْ يَّشَآءُ ؕ وَاللّٰهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيْمِ ﴿۱۰۵﴾ |
| د طرفه د رب ستاسو نه، او الله خاص کوی په خپل رحمت سره چا له چه اُوغواړی او الله خاوند د لوئی مهربانئ دے۔ |

**تفسیر**: پدے آیت کښې الله رب العالمین مسلمانانو سره د یهودیانو سخت حسد او سخته دشمنی بیان کړیده، چه هغوی دا نهٔ غواړی چه په تاسو باندے خیر او قرآن او وحی نازله شی۔ او دا ددے دپاره بیانوی چه مسلمانان د کافرو سره تعلق قطع کړی او د الله تعالیٰ شکر ادا کړی چه دوی ته ئے د نبی کریم ﷺ په ذریعه د اسلام په شان عظیم نعمت ورکړو چه هغه د کافرانو او مشرکانو په زړونو کښې ازغے ګرځیدلے دے۔

**ربط ۱** -: دا آیت اصل کښې د مخکښې حکم دپاره دوه علتونه ذکر کوی چه تاسو د کافرانو تقلید مهٔ کوئ او د هغوی سره مشابهت مهٔ کوئ ځکه ۱- یو خو دوی تاسو سره سخت بغض او حسد کوی۔ ۲- دویم : الله تعالیٰ په تاسو باندے خاص انعامات کړیدی ددے شکر ادا کړئ او د کافرانو مشابهت مهٔ کوئ۔ ستاسو د هغوی د مشابهت سره څهٔ کار ؟!۔

**ربط۲** : مخکښې بیان شو چه دوی پیغمبر ته بد رد وائی او ضرر ورکوی ددے سبب څهٔ دے؟ نو هغهٔ حسد دے چه پدے آیت کښې ذکر دے۔

﴿وَلَا الْمُشْرِكِيْنَ﴾ عام مشرکان د عربو او د عجمو ستاسو په وحی او کتاب خوشحاله نهٔ دی۔

المشرکین ئے عطف کړو په اهل کتاب باندے او (لا) د نفی د تاکید دپاره دے او مطلب دا دے چه کافران دوه قسمه دی، یو د اهل کتابو نه دی او بل د مشرکانو نه۔ یعنی عام مشرکان، د بتانو عبادت کونکی۔ یا دا چه دا عطف د صفت دے په صفت باندے یعنی کوم اهل کتاب چه کافران او مشرکان دی۔ ځکه چه نبی ﷺ داسے فرمائیلی دی : [اَخْرِجُوا الْمُشْرِكِيْنَ مِنْ جَزِيْرَةِ الْعَرَبِ] [متفق علیه]۔ (مشرکان یعنی یهودیان د جزیرة العرب نه اُوباسئ)

نو یهودیانو ته ئے مشرکان اُووئیل۔ اوله وجه ظاهره ده ځکه چه یهود او مشرکان دواړه حسد

کونکی وو۔ او ددے آیت مطلب دا نهٔ دے لکه بعض وائی چه یهود اهل کتاب مشرکان نهٔ دی بلکه د اهل کتابو د شرك سره خاص نوم هم شته او د عربو مشرکانو بل خاص نوم نهٔ وو نو ځکه ئے په مشهورو نومونو سره ذکر کړل۔

**شان نزول** : بعض مسلمانانو به خپلو حلفاؤ یهودیانو ته د ایمان دعوت ورکولو چه په محمد (ﷺ) باندے ایمان راوړئ، نو دوی به وئیل : تاسو چه مونږ ته د کوم شی دعوت راکوئ دا غوره نهٔ دے د هغه دین نه کوم باندے چه مونږ روان یو، او آرمان چه دا غوره وے (نو مونږ به ئے تابعداری کړے وے) او دا خبره به دوی د بغض او د حسد د وجه نه کوله چه ایمان والو باندے ئے دا وحی او ددے نبی (ﷺ) نبوت نهٔ پیرزو کیدو نو الله تعالیٰ د دوی د دروغجن کولو دپاره دا آیت نازل کړو۔ (تفسیر خازن، وبحر العلوم)۔

او ایمان والو ته ئے اُوفرمایل چه دے یهودیانو او مشرکانو ته بیدار شئ دوی تاسو سره حسد کوی۔

﴿ مِنۡ خَيۡرٍ مِّنۡ رَّبِّكُمۡ ﴾ په تاسو باندے چه کوم خیر نازلیږی که دنیوی وی او که اُخروی وی، وحی وی او که د دین کومه مسئله وی، نو دوی پرے خفه کیږی نو ځکه دا اعتراضونه کوی. کله به وائی، دین ئے خراب دے او کله به د رسول الله ﷺ او کله به د سلیمان ﷺ بے عزتی کوی۔

## د خیر مصداق

د خیر نه مراد د نبی ﷺ نبوت او وحی او قرآن دے۔ او تولو دنیاوی او اُخروی فائدو ته شامل دے۔ ځکه چه د مؤمنانو په هر حالت باندے کافرانو له حسد ورځی لکه سورة آل عمران (۱۲۰) آیت کښ راغلی دی۔ ﴿ وَدُّوۡا مَا عَنِتُّمۡ ﴾ دوی خوښوی چه تاسو په مشقت کښ واقع شئ۔

سورة النساء (۸۹) آیت کښ دی : ﴿ وَدُّوۡا لَوۡ تَكۡفُرُوۡنَ كَمَا كَفَرُوۡا فَتَكُوۡنُوۡنَ سَوَآءً ﴾

دوی خپله کافران دی نو دا خوښوی چه تاسو د دوی په شان کافران شئ۔

﴿ يَخۡتَصُّ بِرَحۡمَتِهٖ مَنۡ يَّشَآءُ ﴾ کښ جبرئیل ﷺ، میکائیل ﷺ، محمد رسول الله ﷺ، سلیمان ﷺ او دارنګه دا امت داخل شو چه دوی لـه الله تعالیٰ رحمتونه ورکړی دی او دا یهود پرے اعتراض لری۔

او دا د مخکښ حکم دپاره علت دے، او مطلب دا دے چه هر کله الله تعالیٰ تاسو په رحمت سره خاص کړی یئ نو بیا د کافرانو سره مشابهت ولے کوئ ؟!۔

دارنګه دا جواب د یو وهم دے چه هر کله کافران د ایمان والو سره حسد کوی نو آیا پدے حسد سره به د ایمان والو نه خیر او رحمت زائله کړی ؟ نو دا ګمان ئے دفع کړو چه الله تعالیٰ چه په چا رحم کوی نو څوك منع کونکے او زائله کونکے ئے نشته، دا کافران دے دا طمع نهٔ لری چه ګنې

مونږ به په خپل حسد او دشمنئ سره دا خير او رحمت د ايمان والو نه زائله کړو۔ (قاسمیؒ)۔
دارنګه پدے جمله کښې د هغوی په حسد باندے رد دے چه الله تعالیٰ دوی ته رحمت ورکړو نوابے کافرانو ! تاسو ولے حسد کوئ ؟!۔

## د رحمت مصداقات

۱- د رحمت نه مراد د رسول الله ﷺ نبوت دے۔ (علی رضی الله عنه)۔
۲- بعض وائی : د رحمت نه مراد اسلام او هدايت دے۔ (ابن عباس رضی الله عنهما)۔
۳- ځینی وائی : د آيت معنیٰ دا ده چه الله تعالیٰ به انبياء د اسحاق علیه السلام په اولادو کښې رالیږل، نو هرکله ئے چه نبی ﷺ د اسماعيل علیه السلام په اولادو کښې راوليږلو، يهوديانو ته دا خبره خوښه نښکاره نشوه نو ضد ئے شروع کړو، نو الله تعالیٰ دا آيت نازل کړو۔ او مشرکانو ته پدے وجه خوښ نښکاره نشوه چه رسول الله ﷺ هغوی ته د ګمراهئ نسبتونه اُوکړل او د هغوی د آلهو عيبونه ئے بيان کړل چه دا هيڅ نشی کولے۔ (معالم التنزيل د بغویؒ)
٤- او رحمت کښې دنياوی فوائد، غنيمتونه او فتح او نصرت او د ملګرو ديريدل هم داخل دی۔
مَنْ يَّشَاءُ: پدے کښې اشاره ده چه په الله تعالیٰ باندے هيڅ شے واجب نهٔ دے او په هغه باندے د هيچا حق نشته بلکه هغه چه په چا کوم رحمت کوی نو هغه خالص د هغه احسان وی او په حکمت بناء وی۔
﴿وَاللّٰهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيْمِ﴾ يعنی د الله تعالیٰ مهربانی لويه ده او علم هم ورسره زيات دے، ځوك ئے چه مستحق وی هغه له ئے ورکوی۔ او دا هم ضروری نهٔ ده چه په چائے مخکښې احسان اُوکړو نو د هغهٔ نه علاوه به په بل چا احسان نهٔ کوی۔
**نکته** : قرآن کريم د رحمت ذکر کولو نه روستو په داسے مقام کښې دا لفظ (وَاللّٰهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيْمِ) غالباً ذکر کوی، دا دفع د يو وَهم وی او هغه دا چه الله تعالیٰ چه چا له خپل رحمت ورکوی او چا پورے ئے خاص کوی نو ددے وجه به دا وی چه د الله تعالیٰ رحمت به کم وی؟ نو الله رب العالمين فرمائی: چه زما رحمت زيات دے ليکن مستحقينو له ئے ورکوم، او الله تعالیٰ د خپل رحمت دپاره ځائے ګوری او خپل رحمت بے محله نهٔ نازلوی۔
دارنګه دا جمله د مخکښې دپاره تذييل دے۔ او پدے کښې اشاره ده چه ځوك د خير او د رحمت اراده لری، نو هغه له پکار دی چه د الله تعالیٰ فضل ته ځان پيش کړی او هغه سره مينه اُوکړی، دے دپاره چه هغهٔ ورته فضل او رحمت ورکړی نو پدے سره به د ګناهونو او خباثتونو نه صفا شی او په فضائلو او طاعاتو به ښائسته شی نو الله تعالیٰ به ورسره مينه شروع کړی۔ (ابن عاشورؒ)۔

**فائده** : يَخْتَصُّ بِرَحْمَتِهٖ کښې دوه تفسيرونه دی (۱) اول دا چه باء په مقصور داخله ده يعنی الله تعالیٰ خاص کوی د خپل رحمت پورے چا له چه اُوغواړی۔ نو يختص به فعل متعدی وی۔

(۲) دويمه دا هم جائز ده چه باء په مقصور عليه داخله وی (او يختص فعل لازم شی) او فاعل ئے روستو (مَنْ) شی۔ او معنیٰ به دا شی چه د الله تعالیٰ د رحمت پورے خاص کیږی هغه څوك چه الله تعالیٰ ئے اُوغواړی۔ (مَنْ يَّشَاءُ) کښې به ضمير د مفعول حذف وی۔ (روح المعانی، اللباب لابن عادل)۔

اول تفسير غوره دے ځکه بلا تکلفه دے او لفظ د يختص متعدی دے۔

| مَا نَنْسَخْ مِنْ اٰيَةٍ اَوْ نُنْسِهَا نَاْتِ بِخَيْرٍ مِّنْهَآ اَوْ مِثْلِهَا |
|---|
| کچرته موږ منسوخ کړو يو آيت يا هير کړو هغے لره (ستا نه) (نو) راوړو موږ غوره د هغے نه يا په شان د هغے۔ |
| اَلَمْ تَعْلَمْ اَنَّ اللّٰهَ عَلٰی كُلِّ شَیْءٍ قَدِيْرٌ ﴿۱۰۶﴾ |
| آيا ته نۀ پوهيږے چه يقيناً الله تعالیٰ په هر څه قادر دے۔ |

**ربط** : ۱- يهودو ته چه کله اُوويل شو چه په دے قرآن او پدے نبی محمد ﷺ باندے ايمان راوړئ، نو هغوی خپل عذر دا پيش کړو چه زموږ شريعت نۀ منسوخ کيږی، او وے وئيل چه محمد (ﷺ) خپله دا بيانوی چه تورات حق کتاب دے او دا کتاب (قرآن) د هغے تصديق کونکے دے نو څنګه به ددۀ شريعت تورات لره باطل اُوګرزوی ؟۔ نو الله تعالیٰ دلته د نسخ او د هغے د حکمتونو په ذکر کولو سره جواب ورکوی۔

۲- : د يهوديانو د خباثتونو نه يو دا هم دے چه دوی په شريعتونو کښې د نسخ نه انکار کوی۔

بيا دلته خصوصاً د نسخ ذکر د قبلے د تحويل دپاره د مقدمے په طور اُوشو۔ كما تقدم۔

دا رنګه ايمان والو ته رحمتونه ورکړے شو، نو يهودو په خپل دين باندے فخر اُوکړو نو په هغوی باندے د رد کولو دپاره د نسخ مسئله ذکر شوه چه د هغوی دين منسوخ دے۔

۳- ربط : لفظ رَاعِنَا په بل لفظ (اُنْظُرْنَا) سره منسوخ شو۔

**تفسير**: په دے آيت کښې د نسخ مسئله بيانوی چه دے کښې هم د يهودو ورانے ذکر دے، دوی دا اعتراض کولو چه شريعت نۀ منسوخ کيږی، او نسخ د الله تعالیٰ په دينونو کښې نۀ راځی، نو مقصد ئے دا وو چه تورات نۀ منسوخ کيږی، زموږ دين همغه شان روغ جوړ دے۔

او پدے اُمت کښې ديرو معتزلو د نسخ د واقع کيدو نه انکار کړيدے۔

نو الله رب العزت دا آيت راوليږلو۔ د اعتراض حاصل ئے دا وو چه الله تعالیٰ ولے يوه خبره

راولیږی او بیرته ئې لرې کړی، دا خو په ناپوهئ باندې دلیل وی چه مخکښې ئې یوه خبره کړې او نن بله خبره کوی، او الله رب العزت خو پوهه ذات دې، په هغه باندې جهالت راتلل نا ممکن دی؟۔ نو الله تعالیٰ دلته د نسخ فائدې بیان کړې۔

دارنګه یهودیانو او مشرکانو په نبی ﷺ دا اعتراض کولو چه کله یوه خبره اُوکړی بیرته ئې ماته کړی، بیا بله اُوکړی هغه هم ماته کړی لکه د هغۀ په ژوند کښې قبله، شراب، جواری، د عاشورې روژه ډیر احکام منسوخ شول، نو دوی اُووئیل که ته چرته دا د الله نبی وې نو یوه خبره به ئې کولې، لهذا دا په خپل دین کښې شکی او ګډوډ دې ؟ او دا د الله تعالیٰ کلام نۀ دې۔ نو مونږ دا نشو منلې؟۔

ددې **جواب** دا دې چه نسخ د الله تعالیٰ په دینونو کښې واقع ده، او دارنګه قرآن کریم او حدیث دواړو کښې واقع ده۔ او دا د الله تعالیٰ په حکمت باندې دلیل دې، دا په بې علمئ باندې دلیل نۀ دې۔ بلکه دا عین حکمت دې لکه یو ډاکټر چا له یو دوائی ورکړی بیائې ورته بدله کړی ځکه چه هغه موقع او محل ته ګوری، کله یو مریض له یو شان دوائی ورکوی او بل مریض ته بل شان، ځکه چه د هر یو طبیعت او مزاج جدا جدا وی، نو په ډاکټر او طبیب باندې عقلمند انسان دا اعتراض نۀ کوی چه دا دوائی ولې مختلفه ورکړې شوه؟ نو دغه شان الله تعالیٰ د خپل مخلوق په مزاجونو او طبیعتونو او حالاتو باندې خبردار دې، د هرې زمانې د امت دپاره جدا جدا احکام نازلوی، او د حالاتو په بدلیدو سره ورته احکامو کښې تغییر او بدلون راولی او پدې کښې د هغوی خیرخواهی او هغوی ته فائده رسول مقصد وی۔

نو الله رب العالمین خو احکم الحاکمین دې، په یو وخت کښې خلقو ته یو حکم سخت وی، د خلقو حالت یو شان وی، نو الله تعالیٰ ورته بل آسان حکم راولیږی ځکه چه د خلقو حالت جدا شوې وی۔ لکه مخکښې خلقو ته دا حکم وو چه یو مجاهد به د لسو کافرو مقابله کوی، بیا الله تعالیٰ دا حکم آسان کړو چه څه یو به د دوو مقابله کوی۔ ځکه چه اُوس تاسو کمزوری یئ هغه وخت کښې مسلمانان قوی وو۔ دارنګه مخکښې (رَاعِنَا) لفظ وئیل جائز وو لیکن د یو مصلحت په بناء ئې منسوخ کړو۔

## په پخوانو کتابونو کښې د نسخ ثبوت

نسخ د الله تعالیٰ په دین کښې واقع کیږی، انجیل کښې هم نسخ شته او تورات کښې هم۔ خو دا جاهلان هسې اعتراض کوی۔ اُوسنی انجیلونو کښې هم نسخ واقع ده، ډیر مسائل پکښې منسوخ شویدی۔

(۱) لکه د موسیٰ علیه السلام په دین کښې طلاق وو، او عیسیٰ علیه السلام به د زنانه د جرم نه بغیر طلاق

ورکول بد گنړل لکه انجیل متی (۵۲/۱) کښې اُوگوره۔ نو نسخ پکښې راغله۔

(۲) سفر تکوین یعنی کتاب پیدائش باب (۲۹) آیت ۲۳ نه تر (۳۰) پورے صریح طور سره ثابتیږی چه د لابن دوه لونړه لیا او راحیل چه دواړه خپلے خویندے وے په یو وخت کښې د یعقوب علیه السلام په نکاح کښې وے۔

(کتاب مقدس طبع بائیبل سوسائټی انار کلی لاهور (۱۹۸۷) ص : ۳۰)

لیکن احبار باب (۱۸) آیت نمبر (۱۸) کښې وئیل شویدی چه «تهٔ خپلے بنیئے سره د وادهٔ کولو په وجه هغه د خپلے بی بی بنه مه جوړوه الخ» معلومه شوه چه د یعقوب علیه السلام په شریعت کښې جمع بین الاختین یعنی دوه خویندے په یو وخت کښې په نکاح کښې ساتل جائز وو، لیکن د موسیٰ علیه السلام په شریعت کښې ئے جواز منسوخ شو، او دا کار حرام شو لکه په شریعت محمدی کښې چه څنګه حرام دے۔

(۲) کتاب پیدائش باب (۹) آیت (۳) نه ثابتیږی چه د نوح علیه السلام په شریعت کښې هر ژندہ سر حیوان حلال وو۔ لیکن په احبار باب (۱۱) آیت (٤) نه تر (۸) پورے تصریح موجوده ده چه د موسیٰ علیه السلام په شریعت کښې اُوښ، خرگوش او خنزیر ناپاك وو او د هغے خوړل او د هغے بدن له گوتے وروړل منع وو۔ (کتاب مقدس)

(۳) کتاب الاستثناء باب (۲٤) : آیت (۲۰۱) نه ثابتیږی چه د موسیٰ علیه السلام په شریعت کښې د طلاق ورکولو اجازت وو لیکن د انجیل متی باب (۱۹) : آیت (۶) نه تر (۹) پورے ثابتیږی چه د حرام کاریٔ او د زناکاریٔ د صورت نه علاوه طلاق ورکول ممنوع دی۔ (انجیل مقدس ص : ۲۳)

(٤) کتاب پیدائش باب (۲۱) آیت (٤) او کتاب یشوع باب (۵) آیت : (۲) نه تر (۹) پورے ثابتیږی چه د موسیٰ علیه السلام په شریعت کښې د ختنے کولو حکم شویدے او ختنه کول ضروری وو۔ لیکن نصاریٰ ختنه نهٔ کوی، معلومه شوه چه د هغوی په نزد د ختنے حکم منسوخ شویدے۔

(۵) په تورات کښې راغلی دی چه الله تعالیٰ آدم علیه السلام ته حکم اُوکړو چه خپلے لونړهٔ خپلو ځامنو ته په نکاح کړی ردو بدل، یعنی یوه خیټه کښې به هلك او جینیٔ پیدا کیدل نو چه په بله خیټه کښې به کوم هلك پیدا شو هغه به د اولے خیټے جینیٔ په نکاح اخسته او د دویمے خیټے جینیٔ به اول هلك په نکاح اخسته۔ بیا دا حکم د ټولو انسانانو په نیز منسوخ شو که مسلمانان دی او که یهود او نصاریٰ دی۔

(۶) الله تعالیٰ ابراهیم علیه السلام ته حکم اُوکړو چه خپل ځوی (اسماعیل) ذبح کړی بیا ورته الله تعالیٰ اُوفرمایل : مهٔ ئے ذبح کوه نو اول حکم ئے منسوخ کړو او دا خو د نسخ منکرین هم منی۔

(۷) د خالی په ورځ د دنیا کار مباح وو تردے چه ښکار هم جائز وو لیکن بیا الله تعالیٰ په یهودیانو باندے حرام کړو۔

(۸) الله تعالیٰ بنی اسرائیلو ته حکم کړے وو چه چا د سخی عبادت کړے وی نو هغه به قتلوئ بیا ئے ورته حکم اُوکړو چه باقی معاف شو۔

[مناهل العرفان فی علوم القرآن (۲/ ۴۷۱) للعلامة الزرقانی۔

زمونږ کتاب ((اصول التفسیر وعلوم القرآن)) ته رجوع اُوکړئ۔

(۹) حافظ ابن کثیرؒ لیکی: د یهودیانو د نسخ نه انکار صرف د کفر او د عناد په وجه وو، ورنه په عقلی طور باندے نسخ ممنوع نهٔ ده ځکه چه الله تعالیٰ څهٔ غواړی، کوی او په مخکنو آسمانی کتابونو کښې نسخ واقع شویده لکه د آدم ؑ دپاره د خپل لور او ځوی یو بل سره وادهٔ کول حلال وو بیا روستو حرام کړے شو۔ نوح ؑ چه کله کشتئ نه بهر راغلو نو د ټولو حیواناتو خوراك ورله جائز وو ددے نه روستو د بعض حیواناتو حلال والے منسوخ شو۔ د یعقوب ؑ او د هغهٔ ځامنو دپاره په یو وخت کښې د دوه خویندو سره نکاح جائز وه ددے نه روستو په تورات کښې هغهٔ حرام کړے شو۔ (ابن کثیر۱/ ۳۷۹)

یهودیانو د قرآن کریم په ذریعه د تورات د احکاماتو د منسوخ کیدو نه انکار اُوکړو او د عیسیٰ ؑ او د رسول الله ﷺ د نبوت نه ئے انکار اُوکړو پدے وجه چه دے دواړو رسولانو د تورات بعض احکام د وحی الهی په ذریعه منسوخ اُوګرځول۔ او قرآن کریم د تورات بعض احکام منسوخ اُوګرځول او بعض ئے باقی پریخودل، او داسے هم شویدی چه په قرآن کریم کښې الله تعالیٰ یو حکم نازل کړو او څه ورځے پس ئے منسوخ کړو، یا د هغه په بدل کښې ئے بل حکم نازل کړو، نو یهودیانو دغه اعتراض اُوکړو چه نن یو حکم کوی او سبا له بل حکم، پدے وجه دا د الله نبی نشی کیدے، او دا قرآن د الله تعالیٰ کلام نشی کیدے؟۔ نو په دے آیت کښې ددے یهودیانو د خبرے تردید اُوشو چه الله تعالیٰ که یو آیت منسوخ کوی نو د هغه په ځائے د هغے نه بهتر یا د هغے په شان راوړی او دا پدے وجه نهٔ چه الله تعالیٰ په ابتداء کښې د حکم راوړو نه عاجز وو بلکه د بندګانو مصلحت او فائده په همدے کښې وه او ځوك چه د الله په قدرت څه علم لری نو هغهٔ داسے خبره هیڅکله نهٔ کوی۔ ........... (تیسیر الرحمن للشیخ لقمان)

## د نسخ بیان

**نسخ** په عربی ژبه کښې د (نَسَخَ الْكِتَابَ) نه ماخوذ دے چه ددے معنیٰ ده د یو کتاب نه بله نسخه تیارول او لیکل۔ ۲۔ نسخ په معنیٰ د ابطال او ازاله (زائل کولو) هم استعمالیږی۔

امام راغبؒ وائي : [اِزَالَةُ الشَّيْءِ بِشَيْءٍ آخَرَ] (يو شے په بل شي سره زائله كولو) ته وئيلے شي۔
او د قرآن كريم په اصطلاح كښې ((نسخ)) د يو حكم په بدله كښې بل حكم راوړل يا هغه لرے كولو ته وئيلے شي۔
او په شريعتِ اسلاميه كښې نسخ صرف په تحريم او تحليل او منع او اباحت كښې شويده، په قِصَص او اخباراتو وغيره كښې نسخ نۀ ده شوے۔ [ابن كثير ۱/۳۳۵]
د جمهور علماءِ اسلام رايه دا ده چه په قرآن او احاديثو كښې نسخ واقع شويده لكه د الله تعالیٰ دا قول ﴿ اَلشَّيْخُ وَالشَّيْخَةُ اِذَا زَنَيَا فَارْجُمُوْهُمَا اَلْبَتَّةَ ﴾ (كـۀ بوډا او بوډئ زنا اُوكړى نو دواړه ضرور په كاڼرو ويشتو سره مړۀ كړئ) يا لكه دا قول ﴿ لَوْ كَانَ لِابْنِ آدَمَ وَادِيَانِ مِنْ ذَهَبٍ لَابْتَغٰى لَهُمَا ثَالِثًا ﴾
(كه د بنيادم سره د سرو زرو دوه كندے شي نو ددے سره د دريمے كندے خواهش به لري)
د ابو مسلم اصفهاني معتزلي په شان بعض باطله عقيده لرونكو د نسخ نه انكار كړيدے چه هغے له په اسلام كښې هيڅ اعتبار نشته۔
**نسخ** بيا په درے قسمه ده يو دا چه تلاوت او حكم دواړه منسوخ وى، دويم دا چه صرف تلاوت منسوخ وى او حكم باقي وى لكه مخكښې (الشيخ والشيخة) والا آيت۔ او دريم دا چه صرف حكم منسوخ وى او تلاوت باقي وى۔ د نسخ د تفصيل او حكمتونو او صورتونو د دليلونو دپاره زمونږ كتاب ((اصول التفسير وعلومه)) ته رجوع اُوكړه۔
﴿ مَا نَنْسَخْ ﴾ (مَا) شرطيه ده، ځكه پرے (نَنْسَخْ) لفظ مجزوم شويدے۔ په اصل كښې موصوله ده، خو معنیٰ د شرط سره يو ځائے شويده۔ يعني پدے شرط كه مونږ يو آيت منسوخ كړو نو ددے نه غوره راوړو۔ الخ۔ يا داسے اووايه : كه چرته مونږ منسوخ كړو۔
(اَوْ نُنْسِهَا) يعني مونږه ئے ستا نه اے نبي او اے مؤمنانو ! هير كړو۔
پدے كښې دوه قراءته دى (۱) يو نَنْسَأْهَا دے۔ د نَسْأ نه دے په معنیٰ د تاخير او روستو والي سره۔
(۲) يا نُنْسِهَا دے د د اِنْسَاء نه جوړ دے، او هغه د نِسْيَان نه ماخوذ دے هيرولو ته وئيلے شي۔ دغه شان كله په معنیٰ د ترك او پريخودلو سره هم استعماليږي۔ نو پدے كښې هره معنیٰ د خپل خپل احتمال سره لګوه نو ډير صورتونه به جوړيږى لكه روستو راځي۔
﴿ نَأْتِ ﴾ : دا مجزوم دے جواب د شرط دے۔ اصل كښې نَأْتِيْ دے۔
﴿ بِخَيْرٍ مِنْهَا ﴾ : د خير نه مراد اَنْفَع دے۔ يعني چه ډير فائده مند وى د مخكني حكم نه۔
﴿ اَوْ مِثْلِهَا ﴾ : **سوال** دا دے چه هركله دويم حكم د اول حكم په مثل وى، نو بيا د دويم حكم په راوړو كښې او د اول په منسوخ كولو كښې فائده څه شوه ؟

**جواب** دا دے چه دا مثلیت په ثواب کښې مراد دے یعنی دویم حکم د اول حکم په شان وی په ثواب کښې او دویم حکم کښې به آسانی وی او د وخت به مناسب وی او په اول حکم کښې به ګرانی وی او ددے وخت مناسب به نهٔ وی۔ نو ځکه منسوخ کړے شی۔

## د نسخ او نسیان یا انساء فرق

دلته دوه لفظونه ذکر شو یو نسخ او بل انساء یا نسیان د دواړو فرقونه دا دی :

(۱) نسخ په لفظ او قراءت کښې وی او نِسْیَان د زړهٔ سره تعلق لری چه د زړهٔ نه ئے بالکل اُوباسی، هیرئے کړی۔ یعنی که مونږ د یو آیت الفاظ منسوخ کړو (لرے کړو)۔ یا هغه د زړونو نه بالکلیه اُوباسو۔ ددے معنیٰ دا ده چه کله د یو آیت منسوخ کیدل پدے صورت کښې وی چه دغه آیت د رسول الله ﷺ او د صحابه کرامؓ د ذهنونو او زړونو نه بیخی هیر کړے شی لکه ددے په باره کښې مفسرینو د صحابه کرامؓ ګڼړ واقعات نقل کړیدی چه د هغوی نه به آیت هیر شوے وو او رسول الله ﷺ نه به ئے د هغے تپوس اُوکړو نو نبی ﷺ به ورته اُوفرمایل چه دا آیت الله تعالیٰ د زړونو نه هیر کړیدے۔ دغه شان ابو موسیٰ اشعری ﷺ وائی : مونږ به د سورة براءة په مقدار اُوږدو او سخت سورت لوستلو خو هغه ما نه هیر شو سوئ ددے آیت نه چه دا ما ته یاد دے (لَوْ كَانَ لِابْنِ آدَمَ وَادِيَانِ...... الخ)۔ (صحیح مسلم)۔

دارنګه فرمائی : او مونږ به د مُسَبِّحاتو په شان یو سورت لوستلو خو هغه ما نه هیر شو صرف دا آیت مے پکښې یاد دے : ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْا لِمَ تَقُوْلُوْنَ مَا لَا تَفْعَلُوْنَ فَتُكْتَبُ شَهَادَةً فِيْ أَعْنَاقِكُمْ فَتُسْأَلُوْنَ عَنْهَا يَوْمَ الْقِيَامَةِ﴾ (مسلم: ۲٤٦٦) (روح المعانی)

او ددے هیرولو مقصد به دا وی چه په آینده کښې به پدے باندے د چا عمل کول مطلوب نهٔ وی۔

(۲)– یا مَا نَنْسَخْ : هغه حکم چه مونږه ئے زائل کړو برابره ده قراءت ئے باقی وی یا نهٔ وی۔

اَوْ نُنْسِهَا : یا هغه آیت چه مونږ لرے کړو (یعنی تلاوت ئے منسوخ کړو) برابره ده چه حکم ئے پاتے وی او که نهٔ وی۔ (روح المعانی)۔

(۳)– یا د نسخ نه مراد نسخ د حکم ده نهٔ د تلاوت یعنی مونږ د یو آیت حکم زائل کړو نهٔ تلاوت، بلکه په قرآن کښې هغه لوستلے کیږی اَوْ نُنْسِهَا کښې نسخ د حکم او تلاوت دواړو ده۔ (دا قول د حسنؒ، اصمؒ او اکثرو مفسرینو دے – تفسیر کبیر)۔

د اول صورت ډیر مثالونه دی چه حکم منسوخ وی او تلاوت باقی وی لکه : ﴿وَالَّذِيْنَ يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ وَيَذَرُوْنَ أَزْوَاجًا وَّصِيَّةً لِّأَزْوَاجِهِمْ مَّتَاعًا إِلَى الْحَوْلِ﴾ دا منسوخ شویدے۔ او الفاظ ئے باقی دی۔ یا د نبی ﷺ سره د مشورے کولو نه مخکښې دصدقے ورکولو حکم منسوخ دے او الفاظ

ئے په سورة المجادله کښې باقی دی۔
﴿ أَأَشْفَقْتُمْ أَنْ تُقَدِّمُوا بَيْنَ يَدَيْ نَجْوَاكُمْ صَدَقَاتٍ...... ﴾۔
او دغسے نور مثالونه په کتاب ((اصول التفسیر وعلوم القرآن)) کښې اُوګوره۔
او د دویم صورت مثالونه هم ډیر دی۔
دے ته اشاره شوېده پدے آیت کښې : ﴿ سَنُقْرِئُكَ فَلَا تَنْسَىٰ إِلَّا مَا شَاءَ اللَّهُ ﴾
(زر دے چه مونږ به ئے تا ته لولو نو ته به ئے نۀ هیروے مګر هغه چه الله ئے غواړی)۔
د الا ما شاء الله استثناء نه معلومه شوه چه د کومو آیتونو منسوخ کیدل الله تعالیٰ غواړی نو هغه د حافظے نه اُوباسی۔ د هغے الفاظ هم باقی پاتے نشی او حکم هم باقی پاتے نشی۔ لکه ابی بن کعب ﷺ د خپل ملګری ابوذر ﷺ نه تپوس اُوکړو چه تاسو د سورة الاحزاب څو مره آیتونه شمار کوئ؟ هغه اُووئیل : ددے د آیتونو شمار (۷۳) دے نو ابی بن کعبؓ اُووئیل چه دا سورة د سورة البقرے برابر وو۔ (السنن الکبری للبیهقی ۲۷۱/٤]
(٤)- **نسخ ما الی بدل**: یعنی حکم لرې کړی او د هغے بدل راوړی۔ او إِنْسَاء لَا إِلَىٰ بَدَلٍ دے۔ یعنی چه حکم منسوخ شی او د هغے بدل رانۀ وړی۔
(٥)- پنځم فرق دا دے : [اَیْ نَرْفَعُهَا بَعْدَ اِنْزَالِهَا] یو آیت مونږ پورته کړو روستو د نازلولو د هغے نه أَوْ نَنْسَأْهَا (لکه په یو قراءت کښې په همزه سره دے)
[اَیْ نُؤَخِّرُ اِنْزَالَهَا مِنَ اللَّوْحِ الْمَحْفُوْظِ اَوْ یَكُوْنُ الْمُرَادُ نُؤَخِّرُ نَسْخَهَا فِی الْحَالِ فَاِنَّا نُنَزِّلُ بَدَلَهَا مَا یَقُوْمُ مَقَامَهَا فِی الْمَصْلَحَةِ ] (کبیر)
(یا مونږ روستو کړو نازلول د هغے د لوح محفوظ نه۔ یا مراد دا دے چه فی الحال منسوخ کول ئے روستو کړو۔ نو د هغے په بدل کښې مونږ هغه راوړو چه په فائده کښې د هغے قائم مقام وی)۔
(٦) د نسخ نه مراد نسخ د حکم او د تلاوت دواړو ده۔ او نسیان په معنیٰ د پریخودو سره ددے نه مراد حکم منسوخ کیدل دی نۀ تلاوت۔ یعنی که مونږ د یو آیت حکم او تلاوت دواړه منسوخ کړو یا د هغے الفاظ پریدو او حکم ئے منسوخ کړو۔ نو د هغے نه غوره راوړو یا د هغے په شان وی په عمل او ثواب کښې۔
(۷) علامه بِقاعیؒ معنیٰ کوی : که یو آیت مونږ منسوخ کړو پدے طریقه چه د هغے حکم زائل کړو یا د هغے لفظ فی الحال زائل کړو لکه په رَاعِنَا کښې چه مونږ اُوکړل [أَوْ نَنْسَأْهَا] یا مونږ د هغے منسوخ کول روستو کړو یا ئے څه زمانه پریدو بیا ئے منسوخ کړو لکه مسئله د قبلے شوه۔ نو مونږ د هغے د منسوخ کولو په وخت د هغے نه غوره یا د هغے په مثل راوړو۔

[نظم الدرر للبقاعي ١/١٥٨]

(٨) علامه قاسميؒ پدے کښې بله معنىٰ دا هم ذکر کړیده چه که مونږ یو آیت د بل آیت په بدله کښې راوړو لکه د تورات د آیتونو په بدل کښې مو د قرآن آیتونه راوړل (اَوْ نُنْسِهَا) یا ئے د زړونو نه ختم کړو لکه الله خبر ورکړیدے : ﴿ وَنَسُوْا حَظًّا مِمَّا ذُكِّرُوْا بِهٖ ﴾ [مائدة: ١٣]

(دے یهودیانو ډیره هغه حصه هیره کړه چه دوی ته په هغې نصیحت ورکیدے شو)

او که (نَنْسَأْهَا) شي نو معنىٰ دا ده چه مونږه ئے روستو کوو او بغیر د منسوخ کولو نه ئے پریدو لکه د تورات ډیر احکام ئے په قرآن کښې پریخي دي۔ نهٔ ئے دي منسوخ کړي۔

نو روستو (نَاْتِ) بـه لف نشر مرتب وي یعني که کوم آیتونه د تورات منسوخ کړو او د هغے په بدل کښې نور آیتونه په قرآن کښې راوړو نو هغه به غوره وي د هغه آیتونو نه چه منسوخ شویدی لکه دا کار په هغه آیتونو کښې شویدے چه د پخوانو امتونو ګران حکمونه (آصار او اغلال) لرے کړے شو او پدے دین کښې د هغے په بدل کښې آساني اُوکړے شوه۔ او حرج او تکلیف پکښې ختم شو۔ (اَوْمِثْلِهَا) یا راوړو په شان د هغه آیتونو چه هغه نهٔ دي منسوخ شوي۔ یعني په قرآن کښې ډیر داسے آیتونه شته چه هغه د تورات او انجیل سره موافق دي او د هغے په باقي پریخودلو کښې د الله حکمة دے۔ [قاسمی ١/٣٤٢]

پدے کښې نور احتمالات هم شته۔ تفصیل دپاره تفاسیرو ته رجوع اُوکړه۔

نَاْتِ بِخَيْرٍ مِنْهَا : لکه په رَاعِنَا کښې ئے غوره لفظ راوړو چه اُنْظُرْنَا دے۔

خَيْرٍ مِنْهَا: دا غوره والے کله په دے طریقه وي چه روستو حکم باندے د مخکني حکم په نسبت عمل کول آسان وي، او د مصلحت سره بهٔ برابر وي، او په ثواب کښې د مخکني نه زیات وي۔

(اَوْ مِثْلِهَا) یعني د مخکني حکم په شان وي په ثواب کښې یا په عمل کښې لیکن په دویم حکم کښې ورسره زیاتي فائده هم وي لکه قبله د بیت المقدس ئے بدله کړه کعبے ته، دواړه په عمل کښې یو شان دي لیکن کعبے ته اَوړیدو کښې فائده زیاته وه چه هغه مخالفت د یهودو وغیره وو او بل په بیت المقدس باندے د کعبے فضیلت وو۔

په دے کښې **آسان** او غوره تفسیر دا دے : کـه چرته منسوخ کړو مونږ یو آیت، لفظ د هغے یا حکم د هغے۔ او یا ئے هیر کړو د بندګانو نه نو راوړو غوره او فائده مند د هغے نه۔

﴿ اَلَمْ تَعْلَمْ ﴾ پدے سره د نسخ حکمت ذکر کوي۔

پدے (اَلَمْ تَعْلَمْ) او (اَلَمْ تَرَ) سره اول مخاطب نبي ﷺ وو او بیا هر مخاطب مراد دے او مقصد پدے لفظ کښې په بنکاره خبره باندے تنبیه (خبردارے ورکول) وي۔ یعني اے مخاطبه! ته نهٔ

پوهیږې یعنې ځان پوهه کړه. او دلته مطلب دا دې چه دا د الله تعالیٰ د علم سره مناسبه ده چه هغه نسخ راولي. او څوك چه د الله تعالیٰ په قدرت باندې څهٔ علم لري نو هغه هیڅ کله داسې خبره نهٔ کوي، نو په ځائې د اعتراض، د الله تعالیٰ علم ته تسلیمیدل پکار دي.

**فائده** : په دې آیت کښې الله تعالیٰ خپل قدرت ذکر کړو او روستو آیت کښې ملك ذکر دې او د الله تعالیٰ د تصرف او نصرت بیان دې، دا ټول د نسخ حکمة او د نسخ واقع کیدو ته اشارات دي. کوم ذات چه کامل قدرت لري او بادشاه وي او په عالَم کښې متصرف وي نو په دین کښې نسخ راوستل د هغه د قدرت او د بادشاهت او د تصرف تقاضیٰ ده او لکه څنګه چه په الله تعالیٰ باندې په تقریر الکائنات (یعني د کائناتو په موجودولو) کښې اعتراض نشي کیدې نو دغه شان په نسخ کښې هم نشي کیدې څکه یو حکم قدري دې او بل حکم شرعي دې.

بله دا ده چه اختیار د هغه دې، نظام د هغه دې، کائنات د هغه دي، نو د هغه اختیار او تصرف او د هغه قانون به پکښې چلیږي، که هغهٔ غواړي چه قانون بدلوي بدلولې ئې شي. پدې باندې هیچا له د اعتراض هیڅ حق نشته.

| |
|---|
| اَلَمۡ تَعۡلَمۡ اَنَّ اللّٰهَ لَهٗ مُلۡكُ السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضِؕ |
| آیا تهٔ نهٔ پوهیږې چه یقیناً الله تعالیٰ د هغه دپاره بادشاهي د آسمانونو او د زمکې ده |
| وَمَا لَكُمۡ مِّنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ مِنۡ وَّلِیٍّ وَّلَا نَصِیۡرٍ ﴿۱۰۷﴾ |
| او نشته تاسو له سویٰ د الله تعالیٰ نه څوك دوست او نهٔ مددګار. |

**تفسیر** : پدې آیت کښې هم د نسخ حکمة ذکر دې او زیات تاکید دې، او په دې کښې تنبیه ده چه د الله تعالیٰ دپاره عامه بادشاهي ده په زمکه او آسمانونو کښې، هغه پدې کښې تصرف کوي او ټول مخلوق د هغه د اطاعت لاندې دي، د هغه امر به نافذ وي او هغوی له د الله اوامر او نواهي په ځائې راوړل پکار دي، او الله تعالیٰ د خپلو بندګانو په مصلحتونو ښهٔ خبردار دې، الله چه دوي ته څه حکم کول غواړي د هغې حکم به ورته کوي او د څه کار نه چه غواړي منع کوی به ئې، او کوم حکم چه غواړي منسوخ کوی به ئې او کوم چه غواړي نو هغه به باقي پریږدي. نو د نسخ سره ئې مناسبت دا دې چه د کائناتو د نظام اختیار د هغهٔ په لاس کښې دې، نو د قانون اختیار به هم د هغه په لاس کښې وي. که هغه انسانانو ته هر قسم حکم نازلوي او کوم منسوخ کوي د هیچا پدې کښې واك نشته. بلکه انسانانو له ئې منل پکار دي. او د نسخ نه انکار کول په اصل

کښې د الله تعالىٰ د بادشاهت او د هغه د حکمت او د قدرت نه انکار دے۔

﴿وَمَا لَكُم مِّن دُونِ اللَّهِ مِن وَلِيٍّ وَلَا نَصِيرٍ﴾ د الله نه بغیر نهٔ څوك مدد كولے شي او نهٔ څوك دوست وي، لهذا پدے نبي باندے اعتراضونه مهٔ کوئ او د الله تعالىٰ سره د هغه د احکامو په منلو سره تعلق جوړ کړئ چه هغه مو مدد اُوکړي او د هغه د دوستانے مستحق شئ۔

او داعي ته تسلي ده چه تهٔ د هیڅا پرواه مهٔ لره، الله تعالىٰ ستا مددګار او دوست دے۔

دارنګه پدے کښې د الله تعالىٰ د اطاعت او د الله د حکم انقیاد او منلو ته ترغیب دے چه په منسوخ او غیر منسوخ احکامو کښې د الله خبره اُومنئ او هغے ته تسلیم شئ، ورنه د الله به څهٔ نقصان اُوکړئ، ټول نقصان د خپل ځان دے۔

دارنګه ربط ئے د مخکښې سره دا دے چه هرکله بنده پدے پوهه شي چه الله تعالىٰ زمونږ دوست او مددګار دے او د هغه نه سِوئ هیڅوك دوست او مددګار نشته نو هغه به ضرور پدے پوهیږي چه الله تعالىٰ په ما څه کوي هغه به خیر وي، نو ټول کارونه به هغه ته سپاري او په زړهٔ کښې به ئے د نسخ او غیر نسخ په باره کښې هیڅ قسم شك او بدګماني نهٔ تیریږي۔

(روح المعاني، الوسیط، الحقي)

## د ولي او نصیر فرق

(۱) [اَلْوَلِيُّ : اَلَّذِيْ يَدْفَعُ الْعَذَابَ وَالْمَشَقَّةَ قَبْلَ نُزُوْلِهِمَا وَالنَّصِيْرُ : مَنْ يَّدْفَعُ الْعَذَابَ وَالْمَشَقَّةَ بَعْدَ نُزُوْلِهِمَا] (ولي) دیته وائي چه د ابتداء نه یعني د مصیبت او د عذاب د راتلو نه مخکښې د بنده نه مصیبت لرې کړي او (نصیر) دیته وائي چه مصیبت راشي او بیا ئے لرې کړي) نو د الله تعالىٰ نه سِوئ هیڅوك نشته چه ستاسو مدد اُوکړي اے خلقو! الله ته متوجه شئ هغه خپل رب او مالك اُوګنړئ۔

(۲) دارنګه (ولي) انتظام چلونکي، مالك د نفع او د ضرر ته وائي او نصیر هغه دے چه د نقصانونو او فسادونو نه انسان لره بچ کونکے وي۔ او دواړه ئے راجمع کړل ځکه چه دوست کله مددګار وي او کله د مدد نه عاجز وي، او مددګار کله دوست وي او کله نهٔ۔

ولي په اصل کښې د «وَلِيْتُ اَمْرَ فُلَانٍ» نه دے په معنیٰ د قَيِّم او تدبیر کونکي او پروګرام او انتظام چلونکي سره۔

(۳) ولي هغه دے چه جلب المنفعة کوي یعني مالك د نفع وي، ټول کارونه په ښائسته طریقه چلوي۔ او نصیر هغه دے چه مالك د دفع المضرة وي یعني بندګان د تکلیفونو، مفاسدو او

نقصانونو نه بچ ساتي او مدد ورسره کوي. او پدے کښې اشاره ده چه بنده له پکار دي چه هغه سره دا احساس هر وخت پیدا شي چه مونږ په هر وخت کښې الله تعالیٰ ته په فائدو حاصلولو او ضررونو دفع کولو کښې حاجت او ضرورت لرو، او پدے کښې رد د شرك ته هم اشاره ده.

**فائده** : د الله تعالیٰ په شرع او امر باندے هغه انسان اعتراض کوي چه خپل ځان د الله تعالیٰ نه مستغني گنړي او خپل رب ته خپل حاجت او فقر نهٔ محسوس کوي، کله چه د انسان دا شعور او احساس پیدا شي چه زهٔ خپل رب ته په جلب المنافع (فائدو حاصلولو) او دفع المضار (د تکليفونو په دفع کولو) کښې سو فیصد محتاج یم، نو په هغه انسان کښې د الله تعالیٰ اوامر او د هغه شرع ته خود بخود تسلیمیدل او غاړه کیخودل پیدا کیږي نو ځکه دلته حواله د ولي او نصیر ورکړے شوه.

| أَمْ تُرِيدُونَ أَن تَسْـَٔلُوا رَسُولَكُمْ كَمَا سُئِلَ مُوسَىٰ مِن قَبْلُ ۗ |
|---|
| آیا تاسو اراده لرئ چه تپوسونه اُوکړئ (په طريقه د اعتراض) د رسول ستاسونه لکه ځنګه چه تپوسونه شوي وو |
| وَمَن يَتَبَدَّلِ الْكُفْرَ بِالْإِيمَانِ فَقَدْ ضَلَّ سَوَاءَ السَّبِيلِ ﴿١٠٨﴾ |
| د موسىٰ (ﷺ) نه مخکښې ددے نه اوخوك چه کفر واخلي په بدل د ایمان کښې نو یقیناً دا گمراه شو د نیغې لارے نه |

**تفسير** : الله د يهوديانو د شبهاتو جوابونه اُوکړل، ددے ځائے نه روستو الله تعالیٰ يهوديانو او اهل کتابو ته په ناکاره اعمالو او ناکاره خبرو باندے زجرونه او رټنے ورکوي چه گوره دا کار مو وران دے او دا خبره مو غلطه ده. اوله رټنه او زورنه پدے خبره ورکوي چه تاسو پدے آخري رسول اعتراضونه ولے شروع کړي دي، آيا د خپلو مشرانو په شان انبياء عليهم السلام ته تکليفونه ورکوئ. نو پدے کښې [اَلزَّجْرُ لِلْمُعْتَرِضِيْنَ عَلَى الرَّسُوْلِ]

(په رسول الله ﷺ باندے اعتراض کونکو ته رټنه) ده.

﴿اَمْ تُرِيْدُوْنَ﴾ (اَمْ) دلته منقطعه دے په معنیٰ د بَلْ سره دے. یا په معنیٰ د همزه د استفهام انکاري سره. یعني آیا تاسو تپوسونه کوئ، تاسوله تپوسونه نهٔ دي پکار.

پدے خطاب کښې اختلاف دے:

۱- یو قول دا دے چه دا خطاب صحابه کرامو ته دے او د سوال نه مراد د هغه څیزونو په باره کښې تپوس کول دي چه فائده پکښې نهٔ وي او لا واقع شوي نهٔ وي چه د هغې بیان په سورة المائده (۱۰۱) آیته کښې هم شویدے چه ډیر تپوسونه به نهٔ کوئ. نو هغه آیت به ددے آیت

تفسیر وی۔ لکه ابن کثیرؒ دلته ډیر احادیث راجمع کړی چه په هغې کښې د صحابه کرامؓ د ډیرو تپوسونو منع ذکر ده۔ او دا منع پدې وجه اُوشوه چه په بے ځایه تپوسونو سره د الله نبی (ﷺ) تنګیږی او هغه ته تکلیف رسیږی۔ دارنګه کیدے شی چه بعض ملګری داسے تپوس اُوکړی چه هغه به لائق نهٔ وی۔ یا به د یو حلال کار په باره کښې تپوس اُوکړی نو ددهٔ د تپوس په وجه به حرام شی۔ لکه حدیث کښې دی : [اِنَّ اَعْظَمَ الْمُسْلِمِيْنَ جُرْمًا فِي الْمُسْلِمِيْنَ مَنْ سَأَلَ عَنْ شَيْءٍ لَمْ يُحَرَّمْ فَحُرِّمَ مِنْ اَجْلِ مَسْئَلَتِهٖ] ...... [بخاری: ۶۸۵۹ و مسلم :۲۳۵۸]

(په مسلمانانو کښې لوئی جرم والا هغه انسان دے چه د داسے شی په باره کښې تپوس اُوکړی چه هغه حلال وی او ددهٔ د تپوس د وجه نه حرام شی)۔

اونبی ﷺ فرمائی : [ذَرُوْنِيْ مَا تَرَكْتُكُمْ] (صحیح مسلم)

(ما چه تر څو پورے تاسو ته بیان نهٔ وی کړے نو ما په خپل حال پریدئ) او تپوسونه مهٔ کوئ۔ ددے وجه نه صحابه کرامؓ پدے حکم عمل کړے وو۔

عبد الله بن عباس رضی الله عنهما فرمائی : ((صحابه کرامؓ ډیر غوره خلق وو، صرف دولس تپوسونه ئے کړی وو او هغه ټول په قرآن کریم کښې ذکر دی)) (مسند البزار، ابن کثیرؒ)۔

براء بن عازب ﷺ به فرمایل : مونږ باندے به کله یو کال راغلو او مونږ به اراده لرله چه د یو شی په باره کښې د رسول الله ﷺ نه تپوس اُوکړو لیکن مونږ به یره کوله د هغه نه او مونږ به دا خوښول چه بانډچیان راشی او تپوسونه اُوکړی۔

(ابی یعلی، ابن کثیر، جامع العلوم والحکم ص (۹۱)

انس ﷺ به فرمائیل : مونږ په قرآن کریم کښې ددے نه منع شوی یو چه د رسول الله ﷺ نه د یو شی په باره کښې تپوس اُوکړو (او په یو روایت کښې دی چه مونږ به یریدو چه د رسول الله ﷺ نه تپوس اُوکړو) او مونږ به دا خوښول چه یو عقلمند سړے د بانډے نه راشی او تپوس اُوکړی او مونږه ئے واورو۔

[صحیح مسلم (۱۲) مسند احمد ۱۲۴۷۹ ومسند ابی یعلی ۳۳۳۳ وصحیح ابن حبان]

لهذا پدے کښې مسلمانانو ته دا تعلیم او تربیت ورکول دی چه رسول ﷺ به داسے نهٔ تنګوئ لکه څنګه چه یهودیانو موسیٰ ﷺ په ډیرو تپوسونو تنګ کړے وو۔ کله به ئے ورته وئیل چه الله مونږ ته ښکاره راوښایه۔ او صحابه کرامؓ نبی ﷺ نهٔ وو تنګ کړے بلکه کیدے شی چه د بعضو په زړونو کښې صرف اراده د تپوس راغلی وی یا یهودو د بعض مسلمانانو په زړونو کښې د نسخ په باره کښې شبهات اچولی وی ځکه ئے تعبیر په (تُرِيْدُوْنَ) سره اُوکړو۔ یعنی صیغه د

مستقبل ئے استعمال کړه۔ (ابن عاشور)۔
لیکن دا قول مرجوح دے چه دا خطاب د صحابه کرامو ته وی ځکه چه د سیاق او د الفاظو د سختوالی نه معلومیږی چه دلته دا قسم تپوسونه نهٔ دی مراد۔
**۲- دویم قول** : دا خطاب یهودیانو ته دے۔ او همدا خبره غوره ښکاره کیږی ځکه چه مخکښې روستو بحث د هغوی په باره کښې شروع دے۔ او دا قول اکثرو مفسرینو غوره کړیدے نو دلته به د سوال نه تعنتی او ضدی اعتراضونه او غلطے مطالبے مراد وی لکه څنګه چه د موسیٰ ﷺ نه شوی وے چه هغه په سورة النساء (۱۵۳) آیت کښې ذکر دی۔
**فائده** : دلته محققینو علماؤ لیکلی دی: سوال دوه قسمه دے (۱) یو د ځان د پوهه کولو او علم حاصلولو دپاره وی، دا ښهٔ کار دے۔ او پدے باندے امر راغلے دے ﴿ فَاسْئَلُوْا اَهْلَ الذِّكْرِ اِنْ كُنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ ﴾ (کله چه خپله نهٔ پو هیږئ نو د عِلم والو نه تپوس اُوکړئ) (الانبیاء/۷) والنحل (/۴۳)
۲- دویم : سوال په معنیٰ د اعتراض یعنی مقصد په تپوس کښې صرف اعتراض کول او په هغے کښې سختی پیدا کول او مسلمان غلے کول وی۔ چه دا کار ولے داسے دے؟ نو دا ناروا دے او دا د عنادګرو او غلطو خلقو کار دے۔
په صحیحینو کښې د مغیره بن شعبه ﷺ روایت دے چه رسول الله ﷺ د قِیلَ اوقَال (یعنی د بے تحقیقه خبرو)، د مال ضائع کولو او د ډیرو تپوسونو نه منع فرمائیلے ده۔ په صحیح مسلم کښې دی :[ذَرُوْنِيْ مَا تَرَكْتُكُمْ] تاسو ما پریدئ ترڅو چه ما تاسو پریخی یئ، ستاسو نه مخکنی خلق د ډیرو تپوسونو او د انبیاؤ د مخالفت په وجه هلاك شویدی)۔
**۳- دریم قول** : بعض علماء وائی : دا آیت د عربو مشرکانو ته خطاب دے چه هغوی د ضد او عناد په وجه د رسول الله ﷺ نه معجزات طلب کول لکه هغه په سورة الاسراء (۹۰-۹۳) آیتونو کښې ذکر دی چه ملائك مخامخ راوله، په مکه کښې غرونه هموار کړه، نهرونه جاری کړه، زمونږ د مرضۍ مطابق کتاب نازل کړه، آسمان راګوزار کړه، الله او ملائك مخامخ راوله او دغسے نور تعنتی تپوسونه ئے کول۔ لیکن دا قول هم ظاهر نهٔ دے، اګرکه دا آیت په هغوی هم اشارةً رد کیدے شی۔
﴿ اَنْ تَسْئَلُوْا رَسُوْلَكُمْ ﴾ رسول ئے ذکر کړو او نسبت ئے مخاطبینو ته اُوکړو، پدے کښې اشاره ده چه الله تعالیٰ تاسو ته څومره ښائسته رسول رالیږلے دے او تاسو په هغه اعتراضونه کوئ او هغهٔ په تپوسونو تنګوئ، رسول خو ددے دپاره وی چه د هغه نه هدایت واخستے شی، نهٔ دا چه په هغه اعتراض اُوکړے شی۔ او اشاره ده چه دا خپل رسول اُوګڼرئ، ددهٔ په باره کښې به تاسو نه تپوس کیږی۔

﴿ كَمَا سُئِلَ مُوسٰى ﴾ لکه اعتراضونه شوی وو په موسیٰ علیه السلام او غلط تپوسونه ترے شوی وو۔
﴿ مِنْ قَبْلُ ﴾ (مخکښې ددے رسول نه) اشاره دے ته کوی چه ستاسو نیکونو کښې هم دا مرضونه وو۔ چه هغوی به په پیغمبرانو اعتراضونه کول۔ چه دا ولے ؟ او دا ولے ؟۔ نو اُوس الله رب العالمین فرمائی: چه څوك داسے اعتراضونه کوی دا کافر وی۔
﴿ وَمَنْ يَّتَبَدَّلِ الْكُفْرَ ﴾ پدے کښې اشاره ده چه دغه شان د ضد او عناد تپوسونه او غلطے مطالبے کول کله انسان کفر ته رسوی نو یره اُوکړئ۔ [تفسیر السعدی ۱/۶۱]
او که خطاب مؤمنانو ته شی نو معنیٰ به داوی چه د یهودو په شان مهٔ جوړیږئ چه هغوی به خپل رسول په ډیرو اوبے ځایه تپوسونو تنګولو۔ کیدے شی چه پدے سره د ایمان نه محروم شئ لکه څنګه چه یهودیانو به د موسیٰ علیه السلام نه مطالبے کولے او بیا به ئے پرے عمل نهٔ کولو۔
نو د آیت تفسیر دا شو : چا چه واخستو کفر لره په بدل د ایمان کښې۔ یعنی ایمان نهٔ راوړی او کفر اختیاروی۔
﴿ فَقَدْ ضَلَّ سَوَاءَ السَّبِيْلِ ﴾ نو دهٔ سمه لاره خطاء کړه څکه نیغه او سمه لار خو د ایمان ده چه بنده الله تعالیٰ او رسول ﷺ اُومنی، او هغوی پسے روان شی او تابعدار ئے شی۔ او چه کفر ئے اُوکړو، نو صحیح لاره ئے پریخوده او تباه شو۔ سَوَاءَ السَّبِيْلِ نه مراد د الله د طاعت لاره ده۔ (سَوَاء) یا په معنیٰ د وسط (مینځ) سره دے یا په معنیٰ (مُسْتَوِيْ) برابرے او نیغے سره دے۔ او دلته همدا ظاهر دے۔
او پدے کښې اشاره ده چه د نبی د معجزاتو نه مخ اړول او په هغه باندے اعتراضونه او طعنونه کول کفر دے۔ (احسن الکلام)۔
بیا دلته **سوال** دے چه که دا خطاب یهودو ته شی نو هغوی سره خو ایمان نهٔ وو چه په هغے سره کفر بدل کړی؟ ۱- ددے **جواب** دا دے چه دوی قادر وو په ایمان راوړلو ددے وجه نه ئے د رسول اضافت هم هغوی ته اُوکړو چه دوی امت الدعوة دی۔ یعنیٰ تاسو ته د ایمان اسباب حاصل دی لیکن که بیا هم تاسو په اعتراضونو او اعراضونو سره دغه خرابوئ او کفر غوره کوئ نو نیغے لارے ته به واوړئ۔ ۲- یا دا چه دوی سره فطری ایمان خو شته لیکن که دوی اعتراضونه کوی نو دغه فطری ایمان به ترے زائله شی۔
۳- دریم دا چه د رسول الله ﷺ د راتګ نه مخکښې دوی ایمان والا حسابیدل لکه د سورة آل عمران (۸۶) آیت کښې دی : ﴿ كَيْفَ يَهْدِي اللّٰهُ قَوْمًا كَفَرُوْا بَعْدَ اِيْمَانِهِمْ وَشَهِدُوْا اَنَّ الرَّسُوْلَ حَقٌّ ﴾ دا د یهودو په باره کښې نازل وو۔ چه دوی دا آخری رسول حق ګنړلو لیکن ایمان ئے پرے نهٔ راوړو او کفر ئے پرے اُوکړو۔

| وَدَّ كَثِيرٌ مِّنْ أَهْلِ الْكِتٰبِ لَوْ يَرُدُّونَكُم مِّنْ بَعْدِ إِيمَانِكُمْ كُفَّارًا |
|---|
| خوښوي ډیر د اهل کتابونه (دا خبره) ارمان دے چه تاسو واپس کړي روستو د ایمان ستاسو نه کفر کونکي |
| حَسَدًا مِّنْ عِندِ أَنفُسِهِم مِّنْ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمُ الْحَقُّ |
| د وجه د کینے نه چه د دوي د نفسونو نه (راوتلے) ده پس د هغے نه چه ښکاره شویدے دوي ته حق |
| فَاعْفُوا وَاصْفَحُوا حَتّٰى يَأْتِيَ اللّٰهُ بِأَمْرِهِ ۗ إِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴿١٠٩﴾ |
| نو معافي کوئ او مخ اړوئ (د دوي د سزا نه) تردے چه الله به راولي خپل حکم، یقیناً الله په هر شي باندے قادر دے۔ |

**تفسیر** : اُوس رتنه په حسد ورکوي چه دے خلقو کښې حسد دے۔ دا لنډ عنوان دے۔
ورنه دا آیت متضمن دے ډیرو خبرو لره : ۱- بیان د حسد د اهل کتابو چه دوي ستاسو ایمان نهٔ خوښوي۔ ۲- دویم : تنبیه مؤمنانو ته په دشمنانو چه دا ستاسو دشمنان دي، وے پیژنئ او د دوي د طریقے نه ځان اُوساتئ او خبره ورله مهٔ منئ۔
۳- دریم : بیان د اخلاقو ایمان والو ته چه ددے دشمنانو مقابله پدے اخلاقو اُوکړئ کوم چه په (فَاعْفُوا وَاصْفَحُوا) سره ذکر دي۔
٤- مَعَ التَّهْدِيدِ لِلْكَافِرِينَ. کافرانو ته زورنه ورکوي چه الله به درسره ګوري، ایمان والو ته به ستاسو په خلاف څهٔ حکم راولي یعنې جهاد به درسره شروع شي۔
اول زجر په حسد د یهودیانو چه دوي ارمان لري چه تاسو د ایمان نه مرتد کړي، د هغوي همیشه دا کوشش دے چه مسلمان به په څهٔ طریقه د محمد ﷺ نه واړوي پس د هغے نه چه ئے اُوپیژندلو چه محمد ﷺ د الله تعالیٰ رسول دے، نو الله تعالیٰ مؤمنان منع کوي ددے نه چه د یهودیانو لاره خپله کړي او دا خبرئے ورکړو چه اهل کتاب تاسو سره زبردسته دشمني لري، د هغوي داسے کینه ده چه دا غواړي چه مسلمان د خپل دین اسلام نه مرتد شي، نو تاسو د هغوي په دهوکه کښې مهٔ راځئ، د هغوي نه بدله مهٔ اخلئ ځکه په دے سره د دعوت لاره بندیږي، لهذا معافي او درګذر به کوئ او د خپل رب په احکامو به پابندي کوئ، دے دپاره چه تاسو سره د الله تعالیٰ مدد شاملِ حال شي۔ ځکه دا قانون دے چه د الله تعالیٰ دشمن به د الله تعالیٰ په تعلق وهے په ظاهري اسبابو خپل دشمن وهل مشکل دي، کله چه انسان کښې پخپله دین پوره طریقے سره راشي او خپله نیك عملونه ډیر کوي نو د هغه سره الله تعالیٰ د هغه د دشمن په خلاف نقد مدد رالیږي۔ او چه تهٔ هم ورسره خراب شوے، بد اخلاقه شوے، نو هغه هم د الله دشمن دے او ته ئے هم

شوے نو بیا که د الله تعالیٰ مدد رانشی نو خفګان نهٔ دے پکار۔
نو حسد د یهودو بیماری وه، چه بیا دے اُمت ته رانقل شوے ده او مُلیانو کښې ډیره وی۔ مګر تول نهٔ! په بعضو بعضو کښې وی۔ رسول الله ﷺ فرمائی:
[دَبَّ إِلَيْكُمْ دَاءُ الْأُمَمِ الْحَسَدُ وَالْبَغْضَاءُ] ............ [سنن الترمذی : ۲۵۱۰ بسند حسن (البانی والبزار]
(تاسو کښې د پخوانو امتونو بیماری په پټه سره راغله چه هغهٔ حسد او دشمنی ده)
حسد ګر په اصل کښې په الله سبحانه اعتراض کوی، چه الله دا نعمت دے فلانکی له ولے ورکولو۔ ما ته ئے ولے نهٔ راکولو۔ ددے معنیٰ دا ده چه اے الله! دا نعمت دے سړی نه واخله او ماله ئے راکړه۔ دے ته حسد وائی یعنی (تَمَنِّي زَوَالِ النِّعْمَةِ عَنِ الْغَيْرِ) (د بل چا د نعمت د زائله کیدو ارمان کول) دا ډیر عظیم جرم دے۔ یوه غبطه ده، هغه جائز ده۔ او هغه دیته وائی (تَمَنِّيْ حُصُوْلِ مِثْلِ نِعْمَةِ الْغَيْرِ) چه الله! دے سړی له ډے دا نعمت ورکړے دے ما له ئے هم راکړه۔ د هغه د نعمت په شان نعمت غواړی، دا جائز ده، او په دینی کارونو کښې دا غبطه کول بهتر عمل دے لکه حدیث کښې راغلی دی، علم والا ته او مالدار ته پسخیدل چه زهٔ هم دغه شان کارونه اُوکړم، دا قسم غبطه پکار ده او اَولیٰ ده۔
ابن عثیمین رحمه الله د شیخ الاسلام ابن تیمیهٔ نه نقل کړی چه حسد دیته هم وائی: (كَرَاهَةُ الْإِنْسَانِ نِعْمَةَ اللهِ عَلَى الْغَيْرِ). دا بد ګنړل چه الله تعالیٰ په فلانی شخص باندے دا نعمت ولے اُوکړو)۔ نو په بل چا باندے نعمت نهٔ پیرزو کیدل او د هغه په نعمت نهٔ خوشحالیدو ته حسد اُووئیل شو۔ برابره ده چه د هغے د زائله کیدو تمنی لری یا د هغه سره باقی پاتے وی لیکن دا ئے بد ګنړی، بناء پدے تفسیر سره د حسد نه ډیر کم نفسونه پاك دی۔ (تفسیر ابن عثیمین۳/۲۶۸ و کتاب العلم له)
امام رازیؒ د امام غزالیؒ نه د حسد اُووه (۷) اسباب نقل کړیدی:
(۱) د یو نعمت والا مسلمان سره دشمنی او بغض کول۔ ځکه د بغض او عداوت سره حسد لازم دے۔ (۲) خپل ځان عزتمند ګنړل ځکه کله چه په دهٔ باندے یو انسان په یوه مرتبه کښې اُوچتیږی چه دا ورته نشی رسیدلے، نو بیا اراده لری چه دا منصب د هغه نه زائل شی۔
(۳) د یو انسان په طبیعت کښې دا وی چه د چا نه خدمت اخلی نو اراده لری چه دغه نعمت د هغه نه واخستے شی چه دا قادر نهٔ شی د هغه نه په خدمت اخستلو۔
(٤) عُجب (خود پسندی) او تکبر کول۔ چه ځان ورته ښهٔ ښکاری نو د بل خبرے منلو ته تیار نهٔ وی لکه مشرکانو خپلو رسولانو ته وئیلی وو (اِنْ اَنْتُمْ اِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُنَا)۔
(۵) د مقصد د فوت کیدو نه یره، لکه په یو مقصد کښې ډیر خلق مُزاحِم واقع شی، نو هر یو

حسد کوی چه دغه مقصد ما ته حاصل شی لکه د بنو (ضراتو) د یو بل سره حسد وی۔ یا د ورونو د یو بل سره مور او پلار ته په نزدے کیدو کښې حسد وی، دے دپاره چه د هغوی نه مال او عزت حاصل کړی۔

(٦) د مشرئ سره مینه کول او مرتبه خانله یواځې کول، لکه یو تن غواړی چه زۀ په هر فن کښې ماهر شم لکه شجاعت، علم، مالداری، تقوی وغیره نو کله چه د عالَم په آخر سر کښې د یو تن په باره کښې خبر شی چه هغه ددۀ مثل دے نو دا خفه شی او د هغه مرګ خوښوی۔

(٧) د الله تعالیٰ په بندګانو باندے د خیر نه شح او بخل کول لکه یو تن خپله مشر هم نۀ وی او مال هم نۀ طلب کوی خو کله چه د هغه په مجلس کښې د یو بنده د ښائسته حالت تذکره اُوشی نو دۀ باندے ګرانه تمامه شی ګویا کښې هغه ددۀ ملکیت او ددۀ خزانه لوټ کړیده۔ او کله چه د هغه په مجلس کښې د خلقو دکارونو ګډوډی او خکته والے او تنګی ذکر شی، نو دا خوشحاله شی۔ نو د الله په نعمت باندے هسے خفه وی، نو غټ بخیل هغه څوك دے چه په پردی مال باندے بخل کوی، حال دا چه ددۀ او د مذکوره خلقو ترمینځ به هیڅ رابطه او دشمنی نۀ وی۔ نو دا ددۀ د نفس خباثت او رذالت دے او دا تفسونه تن صبا ډیر زیات دی (اعاذنا الله منها) (تفسیر کبیر ۲/۲۷۹)

حسد کله اضطراری غیر اختیاری زړۀ ته رازی۔ پدے به ګناهګار نۀ وی خو شرط ورله دا دے چه د حسد نه روستو به د هغه د ضرر پسے نۀ لګیا کیږی نۀ په قول سره او نۀ په عمل سره۔

## د حسد کولو ضررونه

(١) څوك چه حسد کوی هغه د الله تعالیٰ تقدیر بد ګڼړی او د هغه د تقدیر او فیصلے انکار کوی۔ (٢) حسد نیکیانے داسے خوری لکه څنګه چه اُور لرګی خوری۔ ځکه چه اکثر اوقاتو کښې حسد کونکے د حسد کړے شوی عیبونه بیانوی چه خلق ترے نفرت اُوکړی، او د هغه مرتبه راخکته کوی او دا هغه کبیره ګناهونه دی چه نیکیانے بربادوی۔

(٣) حسد د حسد کونکی په زړۀ کښې افسوس او لمبے او اُور راپیدا کوی ځکه کله چه د الله تعالیٰ نعمت په دغه بنده باندے ګوری، نو غمجن شی او سینه ئے تنګه شی، او ددغه شخص پسے جاسوسی کوی کله چه په هغه د الله نعمت وینی، نو خفه کیږی۔ او دنیا پرے تنګیږی۔

(٤) حسد د یهودیانو بیماری ده او څوك چه د کافرانو خوئی په ځان کښې راولی نو هغه به د کافرانو سره په دغه صفت کښې مشابه وی ځکه چه حدیث کښې دی: «څوك چه د کومو خلقو مشابهت کوی هغه به د هغوی نه حساب وی» ............ (احمد، ابوداود بسند صحیح)۔

(٥) حسد ګر که هر څومره زیات حسد کوی او حسد ئے په زړۀ کښې قوی کیږی نو د الله تعالیٰ

نعمت د دغه بنده نه نشي پورته کولے، نو هرکله چه دهٔ له د الله د نعمت زائل کول ممکن نهٔ دی نو بیا حسد ولے کوی۔

(۶) حسد د کامل ایمان منافی او ضد دے۔ ځکه حدیث کښ دی : «یو تن په تاسو کښ مؤمن کیدے نشی ترڅو چه د خپل ورور مسلمان دپاره هغه شے خوښ نکړی کوم چه ځان له خوښوی» (بخاری ومسلم)۔

نو هرکله چه تهٔ د خپل ځان نعمت زائل کول نهٔ غواړے نو د بل نه ئے زائل کول د ایمان منافی دی۔

(۷) حسد انسان لره د الله تعالیٰ نه د سوال کولو نه اړوی، ځکه چه حسد گر همیشه په هغه نعمت غمجن وی چه الله تعالیٰ په بنده کړے وی او د الله تعالیٰ نه د هغه فضل نهٔ غواړی۔ او الله فرمائی ﴿وَلَا تَتَمَنَّوْا مَا فَضَّلَ اللّٰهُ بِهٖ بَعْضَكُمْ عَلٰى بَعْضٍ﴾ النساء (۳۲)۔

(۸) حسد بنده ته د الله تعالیٰ هغه نعمتونه چه په دهٔ باندے ئے کړیدی سپك ښکاره کوی یعنی حاسد دا گمان کوی چه زهٔ د الله تعالیٰ په نعمت کښ نهٔ یم، او دا شخص زما نه په لوئی نعمت کښ دے، نو ایسته د الله تعالیٰ نعمت په خپل ځان وروکے اُوګنړی، نو د هغے شکر نهٔ کوی۔

(۹) حسد ډیر بد خوئی دے ځکه چه حاسد په معاشره کښ په خلقو باندے د الله تعالیٰ نعمتونه تالاش کوی، او د خلقو ددے شخص په مینځ کښ څومره چه ممکن وی، مانع واقع کوی، د هغه عیبونه ذکر کوی او ډیر کرت د هغه خیر ته هم سپك اُوګوری۔

(۱۰) حسد گر چه کله حسد کوی، نو غالباً په هغه باندے زیاتے او ظلم کوی، نو ددے په نتیجه کښ به دا هغه ته خپلے نیکیانے ورکړی او که نورے نیکیانے ئے نهٔ وی، نو د هغه گناهونه به په دهٔ بار شی او بیا به اُور ته گوزار شی۔

د حسد په لسو طریقو سره علاج کیږی چه د هغے بیان به ان شاء الله تعالیٰ د سور الفلق په تفسیر کښ راشی۔

﴿وَدَّ كَثِيْرٌ مِّنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ﴾ یعنی ډیر پکښ داسے وران کاری دی۔ دا د الله تعالیٰ د عدل الفاظ دی چه ډیر ذکر کوی او داسے نهٔ وائی (وَدَّ اَهْلُ الْكِتٰبِ) چه ټول اهل کتاب حسد کردی۔ په دے کښ به بعض ښهٔ خلق هم وی۔ لکه عبد الله بن سلام، اسد بن عبید، زید بن سعید او ثعلبه بن سعید شو چه دوی ایمان راوړے وو۔ (رضی الله عنهم)

**شان نزول** : د ابن عباس رضی الله عنه نه نقل دی چه حُيَيّ بن اَخْطَب او د هغه ورور ابو یاسر بن اخطب د عربو سره سخته دشمنی پدے وجه شروع کړے وه چه الله تعالیٰ خپل آخری نبی (ﷺ) په عربو کښ ولے راولیږلو، نو دے دواړو یهودیانو به خلق د اسلام قبلولو نه په ډیره سختئ سره منع

کول۔ نو دا آیت د هغوی په باره کښې نازل شوے وو۔ [ابن کثیر ۱/۳۸۲]
حُیَی بن اخطب خپل ورور ابو یاسر ته وئیلی وو چه ښۀ راته معلومه ده چه دا د الله تعالیٰ حق رسول دے لیکن تول عمر به ئے دشمنی کوم، حسد او ضد همدے ته وائی!!۔
﴿لَوْ يَرُدُّونَكُمْ﴾ لَوْ تمنائیه دے چه جزاء نۀ غواړی۔ په معنیٰ د ارمان سره۔
﴿مِنْ بَعْدِ إِيمَانِكُمْ كُفَّارًا﴾ یعنی کافران پدے خوشحاله دی چه دا مؤمنان ښۀ شوی دی چه بیرته خراب شی۔ یو سړے به په کفر او شرك کښې وی د دوی دا خوښه ده، خو که یو سړے ایمان او توحید او حق ته راځی نو په دے باندے خفه کیږی۔
دا د ډیرو مُلیانو مرض هم دے چه عوام الله تعالیٰ په حق پوهه کوی نو دوی پرے خفه وی۔ او چه په جهالت کښې پراته وی نو دوی پرے خوشحاله وی۔ مونځ نۀ کوی نو څه ورته نۀ وائی خو چه مونځ ئے شروع کړو او په مانځه کښې ئے رفع الیدین شروع کړل۔ بس وائی : دا شری دے۔ بے نمازه ته شری نۀ وائی۔ شیطان ورته دا خبره ښائسته کړے چه اهل حق دا دینی عمل د ریاء او د شر دپاره کوی۔
﴿مِنْ عِنْدِ أَنْفُسِهِمْ﴾ دا صفت د حَسَداً دے، مطلب دا دے چه دا حسد د دوی د دینداریٔ او د دلیل د وجه نه نۀ دے پیدا شوے بلکه دا د نفسانی خواهش په وجه دے، نفس کښې ئے خباثت دے څکه حسد کوی۔ بیا سوال پیدا شو چه کینه به څکه کوی چه کار به ورته غلط ښکاری نو وائی :
﴿مِنْ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمُ الْحَقُّ﴾ یعنی ښۀ ورته پته ده چه دا کار حق دے، محمد رسول الله ﷺ باندے چه څوك ایمان راوړی او د هغه تابعدار شی، دا صحیح لاره ده لیکن بیا هم بغیر د څه بهانے نه حسد کوی۔
(الْحَقُّ) د حق نه مراد محمد رسول الله ﷺ او دین اسلام او قرآن دے۔
نو مؤمنان به د داسے خلقو په مقابله کښې څۀ کوی ؟ هغۀ بیانوی :
﴿فَاعْفُوا وَاصْفَحُوا﴾ یعنی اعراض ترے اُوکړئ۔
﴿حَتَّى يَأْتِيَ اللَّهُ بِأَمْرِهِ﴾ تردے چه الله تعالیٰ به خپل حکم راولی (۱) چه دوی به هلاك کړی۔
(۲) ...... یا به تاسو ته په جهاد امر اُوکړی چه دوی سره جنګ اُوکړئ۔ یا ئے جلاوطن کړئ یا پرے جزیه کیدئ۔ (۳) ...... یا دا چه الله تعالیٰ به د اسلام توفیق ورکړی۔
نو همدغه شان اُوشو چه ډیر یهودیان قتل شو او ډیر غلامان کړے شو او ډیر جلاوطن کړے شو۔ او ډیرو باندے ټکسونه او جزیئے مقرر شوے۔
(فَاعْفُوا) : ددے نه روستو دا خبره ذکر کوی چه د حاسدانو د حسد د پیدا کیدو په وخت کښې به

کوم کارونه کولے شی نو هغه پنځه اخلاق ذکر کوی : (۱) اول عفو کول او ددے مطلب دا وی چه په گناه ئے مئ رانیسی؛ اگر که کنځل بد رد کوی، په رَاعِنَا وئیلو سره ژبه کړوی. (۲) دویم صفح کول. او صفح دیته وائی چه عملاً ورته د معافئ اظهار اُوکړه او په زړهٔ کښې د هغے اثر باقی مهٔ ساته. (قرطبیؒ).

○ یا عفو دا معنیٰ چه د هغوی د سوالاتو او د شبهاتو کولو نه تجاوز اُوکړه او صفح دا معنیٰ چه د هغوی د جواب کولو نه اعراض اُوکړه څکه چه دا جگړے راپورته کوی. (اللباب).

○ یا د عفو معنیٰ ده : د خپلو زړونو نه د هغوی محبت محوه او لرے کړئ، او صفح معنیٰ دا چه د هغوی د دوستانے او تعلقاتو نه مخ واړوئ. اول مطلب دیر ظاهر دے.

**فائده** : د ابن عباس رضی الله عنهما قول دے چه د عفو او درگذر کولو حکم د قتال په آیتونو سره منسوخ شویدے چه د هغے نه یو دا آیت دے ﴿قَاتِلُوا الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِاللهِ وَلَا بِالْيَوْمِ الْآخِرِ......﴾ (مسلمانانو ! د هغه خلقو سره قتال اُوکړئ چه په الله او په ورځ د آخرت ایمان نهٔ لری) (التوبه/۲۹)

او دا خبره دیرو مفسرینو لیکلی ده چه دا آیت په آیة السیف سره منسوخ دے.

لیکن محققین مفسرین لیکی چه دا قسم آیتونه د اخلاقیاتو د باب نه دی او دا قسم آیتونه په قرآن کښې (۱۱٤) دی، او قانون دا دے چه د اخلاقو آیتونه نهٔ منسوخ کیږی.

۲- دویم پدے کښې غایه ذکر ده په (حَتّٰى يَأْتِيَ اللّٰهُ بِاَمْرِهٖ) سره او په اصطلاحی منسوخ کښې غایه نهٔ وی ذکر بلکه مطلق حکم وی. لهذا پدے آیتونو اُوس هم عمل باقی دے.

## نو دا عفو او صفح به چا سره کولے شی ؟

۱- نو عفو او صفح به د هغه کافرانو سره وی چه جهاد ورسره فرض نهٔ وی لکه مثلاً ذمی کافر به نشی وژلے، که د هغهٔ د طرف نه څهٔ تکلیف اُورسی، نو عفو او صفح به کولے شی.

۲- د هغه کافرانو سره به کولے شی چه صلح ورسره شوی وی، یا جزیه ورکوی. لکه په مدینه کښې د یهودیانو سره صلح شوے وه اگر که د نورو کافرانو سره جهاد شروع وو. لیکن که دوی مسلمانانو له داسے ضررونه ورکړی چه هغه مُوجب د قتال نهٔ وی نو په هغے کښې به دوی ته معافی کولے شی.

۴- دارنگه د عفو او صفح حکم د هغه فاسقانو مسلمانانو په باره کښې هم دے چه هغوی بدعتیان وی یا فاسقان وی او د دین داعیانو ته ضرر ورکوی، حق بندوی، او لاؤډ سپیکر دربانده بندوی، ستا مسجد، مدرسه بندوی، حسد درسره کوی، نو دا خلق به وژلے نهٔ شی او جهاد (قتال) ورسره جائز نهٔ دے. مثلاً په یو ځائے کښې داسے خلق دی چه خرابه عقیده لری، نو هغوی سره به

جهاد نشي کولے او دعوت به ورته ورکولے شي، هغوي به ضررونه ورکوي، بد اخلاقیانے به کوي، لیکن داعي به د معافۍ او صفح نه کار اخلي، الله رب العالمین علیم او حکیم دے، هغهٔ ته خپل دین ښهٔ معلوم دے. ځکه چه که داعي هم د خلقو سره جګړے شروع کړي مثلًا یو مُخالف قتل کړي نو ددهٔ د دعوت ټوله دروازه به بنده شي، نو د کومو مفسرینو ذهن چه دے ته نهٔ دے رسیدلے نو هغوي وئیلي دي چه دا منسوخ شوي دي، حال دا چه دا منسوخ نهٔ دي بلکه پدے باندے اُوس هم عمل کیږي لهذا نسخ ته ضرورت نشته۔

﴿اِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَیْءٍ قَدِیْرٌ﴾ دا ځکه وائي چه سوال پیدا کیدو چه دا یهود به څنګه ختمیږي، دا خو په سختو قلعه ګانو کښ دي، او ډیر طاقت ورسره دے او مونږ کمزوري یو، نو. الله تعالیٰ فرمائي : الله پدے کامل قدرت لري چه دوي ختم کړي او اسلام غالب کړي او لږه زمانه روستو هم دغسے اُوشوه۔

| |
|---|
| وَاَقِیْمُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ ؕ وَمَا تُقَدِّمُوْا لِاَنْفُسِكُمْ |
| او پابندي د مانځه کوئ او زکوٰة ورکوئ، او هغه څهٔ چه تاسو ئے مخکښ لیږئ د خپل ځانونو (د فائدے) دپاره |
| مِّنْ خَیْرٍ تَجِدُوْهُ عِنْدَ اللّٰهِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِیْرٌ ﴿۱۱۰﴾ |
| د نیک عمل نه، موندهٔ به کړئ هغه لره د الله سره، یقیناً الله په هغهٔ عملونو چه تاسو ئے کوئ ډیر لیدونکے دے۔ |

**تفسیر** : اُوس الله تعالیٰ نور درے آداب بیانوي، د مانځه پابندي کول او زکوٰة ورکول او هر نیك عمل د ځان نه مخکښ (آخرت ته) لیږل. چه پدے کارونو سره مصیبتونه آسانیږي او د الله تعالیٰ مدد حاصلیږي۔

پدے اعمالو سره ۱- صبر پیدا کیږي. ۲- د الله سره تعلق پیدا کیږي. ۳- په بنده کښ استقامت پیدا کیږي. ٤- جنت پرے حاصلیږي. ځکه مؤمن چه دشمن ته شکست ورکوي نو په اعمالو سره. وجه دا ده چه دشمن چه د مؤمن سره دشمني کوي، نو د اعمالو د وجه نه نو کله چه مؤمن په اعمالو ټینګ شي، نو د دشمن مقابله به د الله سره راشي، او د الله تعالیٰ مقابلے ته څوك ټینګیدے شي؟! او کله چه مؤمن صحیح اخلاق او اعمال اختیار نکړي او دا هم د هغه په شان بد ردوائي او د اعمالو پابند نهٔ وي، نو دواړه د الله تعالیٰ مخلوق دے او د دوو مخلوقو مقابله شوه نو باطل خو زیات دے، واقعي خبره ده چه هغه به غالبه کیږي، الله تعالیٰ د مینځ نه مدد راکاږي. همیشه دپاره دشمن په عمل وهلے شویدے. ددے وجه نه اُوس هم کافران دا کوشش

کوی چه د مؤمن د الله تعالیٰ سره تعلق ختم کړی، فحاشی، بد گمانی پکښې پیدا کړی چه د الله تعالیٰ مدد ترې کټ شی۔ نو اعمال صالحه صرف د دشمن د وهلو دپاره نهٔ دی، بلکه دا یوه فائده د عمل صالح ده۔ او د عمل نور بیشماره فوائد دی۔

﴿وَمَا تُقَدِّمُوا﴾ : یعنی دا مهٔ گنړئ چه د جهاد حکم راتلو پورې به صرف مونځ روژې ادا کولو سره ثواب ملاویږی بلکه هر یو نیک کار چه د خپلې ښیگړې دپاره مخکښې لیږئ نود هغې اجر به درته ملاویږی۔

پدې کښې په یهودیانو تعریض دے چه دوی خو ستاسو د عفو او صفح قدر نهٔ کوی لیکن د الله تعالیٰ په نیز دا ضائع نهٔ دی۔ (ابن عاشورؒ)۔

(خَيۡرٍ) هر نیک عمل ته وائی چه د نبی کریم ﷺ په تابعدارئ کښې اُوشی او اخلاص پکښې وی۔ که صدقه وی او که د علم څهٔ کاروی او که نیک بچے وی۔ مِنۡ زائده دے او د تاکید دپاره استعمالیږی۔

﴿لِاَنۡفُسِكُمۡ﴾ دے نه بعض علماؤ معلومه کړیده چه نیک عمل که بل ته اُوبخلے شی نو دا جائز ده ځکه د لِاَنۡفُسِكُمۡ قید نه معلومیږی چه بل ته هم عمل بخښل جائز دی، لیکن دا مطلب اخستل واضح نهٔ دی۔ صحیح دا ده چه عمل به ځان دپاره کولے شی او بل ته عمل بخښل صحیح نهٔ دی سِوئ د صدقې نه چه د هغې تفصیل به ان شاء الله سورة النجم کښې راځی۔

ظاهر دا ده چه دا قید ددے دپاره لګوی چه نیکی سره الله تعالیٰ ته څهٔ فائده نهٔ ملاویږی بلکه دا گمان اُوکړئ چه دا زمونږ فائده ده، لیکن الله تعالیٰ پرے رضا کیږی۔ او پدے کښې ترغیب دے چه د ځان د نجات او فائدے دپاره عمل او کار خو هر انسان خوښوی نو بس به نیک عمل کښې جلتی کوه۔

﴿تَجِدُوۡهُ عِنۡدَ اللّٰهِ﴾ ۱ - یعنی د هغې اجر به مونده کوئ۔

۲ - یا بعینه دغه عمل به د الله تعالیٰ سره مونده کوئ۔ الله تعالیٰ به تاسو ته د قیامت په ورځ ستاسو عمل درښائی چه دا ستاسو عمل وو۔ نو پدے کښې په یو عمل باندے د اجر حاصلیدو دپاره ئے دوه شرطونه اُوخودل: ۱ - یو دا چه (لِاَنۡفُسِكُمۡ) نیت به ئے د خپل ځان دپاره کړے وی، بل چا ته به ئے ثواب نهٔ وی بخښلے او د بل چا د نیابت په نیت به نهٔ وی۔

۲ - دویم دا چه (مِنۡ خَيۡرٍ) نیک عمل به وی، یعنی هر هغه عمل چه د قرآن او سنت سره برابر وی، په باطل عمل او د سنت مخالف عمل باندے اجر نشته۔

**فائده** : (وَمَا تُقَدِّمُوا) ځکه وائی چه مخکښې به عمل لیږے، پس د مرګه انسان عمل نهٔ شی کولے ځکه وائی چه مخکښې نه ئے راولیږه، پس د مرګه کله صدقه جاریه کیږی، لیکن هغه به

هم ژوند کښې کوے خو اجر به ئے پس د مرګ نه هم در رسیږي۔ ژوند کښې به ئے وقف کړي، نو د مرګ نه روستو به ورته ثوابونه رسي۔

﴿إِنَّ اللَّهَ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ﴾ ټول الله ته معلوم دي، د هیڅ عمل ترېے نۀ ورك کیږي، هر چا ته به د هغه د عمل مطابق جزا او سزا ورکوي۔ نو پدے کښې وعده هم ده او دهمکي هم۔ ایمان والو ته وائي: ستاسو عملونه زۀ وینم نیکه بدله به درکوم، کافرانو ته وائي چه ستاسو بد اعمال ما ته معلوم دي سزا به درکوم، سم شئ۔

| وَقَالُوا لَنْ يَدْخُلَ الْجَنَّةَ إِلَّا مَنْ كَانَ هُودًا أَوْ نَصَارَى ۗ تِلْكَ |
|---|
| او وائي دوي چه هیڅوک به داخل نۀ شي جنت ته مګر هغه څوك چه یهودیان وي، یا نصاریٰ، دا |
| أَمَانِيُّهُمْ ۗ قُلْ هَاتُوا بُرْهَانَكُمْ إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ ﴿۱۱۱﴾ |
| د دوي آرزوګانے (بے دلیله خبرے) دي۔ اُووایه راوړئ دلیل ستاسو، که چرته یئ تاسو رشتیني۔ |

**تفسیر :** اُوس یهود او نصاراؤ ته الله تعالیٰ یوه بله رټنه ورکوي او د هغوي غرور او تکبر ذکر کوي چه په دوي کښې هره ډله دا دعوه کوي چه جنت ته به هغه څوك داخلیږي چه د دوي په دین روان وي، نو جنت ځان پورے خاص کوي، چه الله تعالیٰ به جنت صرف او صرف مونږ له راکوي۔ او مخکښې ئے وئیلي وو چه مونږ د الله تعالیٰ غوره ډله یو۔ بیا ئے رسول الله ﷺ باندے اعتراضونه اُوکړل بیا ئے اُووئیل لنډه دا ده چه جنت ته مونږه هسے هم ځو، ددے خبرے څه حاجت دے چه تاسو مونږ ته دعوت راکوئ چه په رسول الله ﷺ باندے ایمان راوړئ۔ نو الله تعالیٰ په دوي باندے رد کوي چه یهود او نصاریٰ جنت ته نۀ شي تلے، بلکه دا د دوي دروغجنے آرزوګانے دي چه ددے په رشتینوالي باندے هیڅ قسم یقیني دلیل د دوي سره نشته، که دلیل ورسره وي نو پیش دِئے کړي۔

**مضمون او خلاصه** تر (۱۲۲) آیت پورے دا ده: دلته دوي ته بله زورنه او رټنه بیانوي چه اعمال ئے خراب دي او دعویٰ د جنت لري او دلیل ورسره نشته۔ بیا الله تعالیٰ فرمائي چه الله تعالیٰ جنت په اعمالو او عقیده ورکوي چه هغه دوه څیزونه دي، یو اسلام او بل احسان دے۔ که دا په هر چا کښې راغلل کامیاب دے۔ بیا د یهودیانو او نصاراؤ نور عیبونه نقل کوي، چه هغه زجر بِتَكْذِيبِ الْحَقِّ فِيمَا بَيْنَهُمْ ۔ یعني دواړو سره حق دے خو د یو بل تکذیب کوي، دومره ضدیان دي۔ او دویم د عربو د مشرکانو سره ځان مشابه کوي، نو دوي ځان ته څنګه په حقه وائي۔ (دے آیتونو کښې ددے دریو ډلو اشتراك به هم بیانوي)۔ مشرکانو هم دغه شان حق نۀ منلو او دوي

هم یو بل ته بد گوری حال دا چه تورات او انجیل حق وو۔ مینځ کښې دهمکی ذکر ده چه د قیامت په ورځ به الله تعالیٰ د دوی تر مینځ فیصله کوی۔

بیا په (۱۱٤) کښې یهودو، نصاراؤ او مشرکانو تولو ته زجر دے چه دوی خلق د الله تعالیٰ د مساجدو نه منع کوی نو (زَجْر بِمَنْعِ التَّوْحِیْد یا زَجْر بِمَنْعِهِمْ ذِکْرَ اللهِ عَنْ مَسَاجِدِ اللهِ) چه دوی په مساجدو کښې د الله ذکر او توحید بندوی۔ او د هغې په جواب کښې وَلِلّٰهِ الْمَشْرِقُ وَالْمَغْرِبُ وائی یعنی که چا د مسجد نه منع کړے نو بل ځائے ته لاړ شه او د الله عبادت کوه۔ بیا په وَقَالُوا اتَّخَذَ اللهُ وَلَدًا کښې د الوهیت په باره کښې د یهودیانو د غلطې عقیدے بیان دے چه دوی تول الله تعالیٰ له ولد ثابتوی، د دوی خبرے هم غلطې او عقیده ئے هم د الله په باره کښې غلطه ده۔نو تصورئے هم خطاء او عمل ئے هم خطاء دے۔او حال دا چه ځان جنتیان گنړی۔ دا ډیره عجیبه ده ؟!!۔ بیا ددے لنډ لنډ پنځه جوابونه۔ بیا په وَقَالَ الَّذِیْنَ لَا یَعْلَمُوْنَ کښې د مشرکانو تشبیه ورکوی د دوی سره۔ چه دا تول یو شان بے علمه دی او دوی هم د هغوی په شان اعتراضونه کوی۔ نو الله تعالیٰ فرمائی چه د دوی زړونه د یو بل مشابه دی۔ بیا د هغې نه روستو د رسول الله ﷺ رشتین والے بیانوی او هغه ته کار ور په غاړه کوی چه بشارت او انذار کوه۔ او د خلقو پرواه مهٔ ساته۔ بیا د اتباع د یهود او نصاراؤ نه منع کوی چه دوی پسے مهٔ روانیږئ، دوی بنده کفر ته راکاږی۔ او د دوی رضا مهٔ لټوئ بیا په (۱۲۱) کښې ئے د نیکانو اهل کتابو صفت راوړے چه دوی په پخوانو کتابونو او پدے قرآن ایمان لری۔ بیا په آخره کښې ئے دریم ځل بنی اسرائیلو ته خطاب کړیدے زِیَادَةً فِی النَّصِیْحَةِ (دے دپاره چه زیاته خیر خواهی ئے اُوشی) چه دا فسادونه پریدئ او د الله تعالیٰ نعمتونه رایاد کړئ او پدے آخری رسول (ﷺ) ایمان راوړئ۔ او د آخرت یره ئے ورته بیان کړیده۔ او پدے به د بنی اسرائیلو سره اکثرے خبرے ختمیږی۔ او اشاره وه چه دوی نه الله تعالیٰ خلافت ځکه واخستو چه په دوی کښې دغه بد صفات وو۔

**ربط** : دوی به د خلقو د مرتد کولو دپاره دا دعویٰ کوله چه جنت یهودیانو پورے خاص دے، نو راشئ زمونږ دین کښې داخل شئ او د محمد رسول الله ﷺ تابعداری پریدئ۔

(اَوْ نَصٰرٰی) دا په هُوْدًا باندے عطف دے نو (قَالُوْا) ددے سره هم مراد دے۔ یعنی نصاریٰ د جنت جدا دعویٰ کوی او یهودیان جدا۔

لیکن دا د دروغو دعویٰ وه۔ الله رب العالمین پرے ځکه رد کوی :

﴿تِلْكَ اَمَانِیُّهُمْ﴾ (تِلْكَ) دغه مقالے (وینا) ته اشاره ده۔

امانی جمع د اُمْنِیَّةٌ ده په معنیٰ د تمنا او آرزو سره۔ (آرزو) دے ته وائی چه د بنده عمل نهٔ وی او

لګیا وی تمنا لری، دا د کافرو صفت دے۔ بنده کار نهٔ کوی او د جنت امید لری، علم نهٔ کوی او ارمان کوی چه عِلم به راته حاصل شی۔ د مؤمن صفت رجاء دے او رجاء دیته وائی چه کار به کوی او امید به لری۔ کیدے شی چه دا کار مے الله تعالیٰ اُوکړی۔ او اُمْنِیَّة په اصل کښ هر هغه شی ته وئیلے شی چه نفس د هغے خواهش کوی او دلیل شرعی ئے نهٔ وی یعنی بے دلیله خبرے۔
لغوی فرق د امنیة او رجاء دا دے چه اول د ممکناتو او ممتنعاتو دواړو سره تعلق لری په خلاف د رجاء نه، چه هغه صرف د ممکناتو سره تعلق لری۔ داسے نشی وئیلے : لَعَلَّ الشَّبَابَ يَعُوْدُ، او لَيْتَ الشَّبَابَ يَعُوْدُ وئیل صحیح دی۔
نو دا ئے آرزوګانے دی، هسے دعویٰ ده، او دعویٰ بانده بے دلیل پکار دے۔نو ځکه ترے د دلیل مطالبه کوی۔
او دا خبره الله تعالیٰ ددے امت مؤمنانو ته په سورة النساء (۱۲۳) آیت کښ کړیده : ﴿ لَيْسَ بِأَمَانِيِّكُمْ وَلَا أَمَانِيِّ أَهْلِ الْكِتَابِ ﴾ (ستاسو او د اهل کتابو ارمانونه پکار نهٔ راځی) نو دلته هم د یهودو او نصاراؤ سره د جنت د داخلیدو شرط نهٔ وو خو صرف دعویٰ او ارمان ئے کولو۔
برهانکم : [اَلْبُرْهَانُ : اَوْكَدُ الْاَدِلَّةِ الَّذِیْ يَقْتَضِي الصِّدْقَ اَبَدًا] (مفردات راغب) (برهان : هغه مضبوط دلیل ته وئیلے شی چه همیشه د رشتینوالی تقاضا کوی یعنی یقینی دلیل)۔
﴿ إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِيْنَ ﴾ دا دلیل دے چه رشتینی دیته وائی چه دلیل ورسره وی، که دلیل نهٔ وی نو بیا دروغ دی، یا خطاء ده۔ نو فرمائی چه په دے څهٔ دلیل دے، الله تاسو کښ چا ته وئیلی دی؟ چه جنت تاسو پورے خاص دے۔
**فائده** : امام رازیؒ وائی : [دَلَّتِ الْآيَةُ عَلٰى اَنَّ الْمُدَّعِيَ سَوَاءٌ اِدَّعٰى نَفْيًا اَوْ اِثْبَاتًا، فَلَا بُدَّ لَهُ مِنَ الدَّلِيْلِ وَالْبُرْهَانِ وَذٰلِكَ مِنْ اَصْدَقِ الدَّلَائِلِ عَلٰى بُطْلَانِ الْقَوْلِ بِالتَّقْلِيْدِ قَالَ الشَّاعِرُ : مَنِ ادَّعٰى شَيْئًا بِلَا شَاهِدٍ — لَابُدَّ اَنْ تُبْطَلَ دَعْوَاهُ وَقَالَ الزَّمَخْشَرِيُّ : وَهٰذَا اَهْدَمُ شَيْءٍ لِمَذْهَبِ الْمُقَلِّدِيْنَ وَاَنَّ كُلَّ قَوْلٍ لَا دَلِيْلَ عَلَيْهِ فَهُوَ بَاطِلٌ غَيْرُ ثَابِتٍ انتهىٰ) [القاسمی ۱/۳٤۷]۔
(دا آیت دلیل دے چه یو مُدعی که د یو شی د نفی یا د اثبات دعویٰ کوی نو هغه دپاره به دلیل او برهان راوړل ضروری وی، او دا د تقلید په باطل والی بانده ډیر رشتینی دلیل دے، یو شاعر هم وئیلی دی چه څوك د یو شی دعویٰ کوی او دلیل او ګواه پرے نهٔ راوړی، نو ددهٔ دعویٰ به ضرور باطله وی۔ او زمخشری وئیلی دی : د آیت دا حصه د مقلدینو مذهب د بیخ نه ختموی او دلالت کوی چه هر هغه وینا چه په هغے دلیل نهٔ وی، هغه به باطله او بے ثبوته وی)۔ نو بے دلیله خبره پسے چه څوك روان وی هغه به دروغجن وی۔

بَلٰی ۚ مَنْ اَسْلَمَ وَجْهَهٗ لِلّٰهِ وَهُوَ مُحْسِنٌ فَلَهٗ اَجْرُهٗ عِنْدَ رَبِّهٖ۪

بلکه هر هغه چا چه تابع کړو مخ خپل الله ته، او وی دا نیک عمله نو وی به دهٔ دپاره اجر دهٔ په نزد د رب دهٔ،

وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ ﴿۱۱۲﴾

او نهٔ به وی هیڅ یره په دوی او نهٔ به دوی غمجن شی۔

**تفسیر**: پدے آیت کښې په یهودو بل رد کوی چه جنت په تشو دعوو نهٔ حاصلیږی بلکه جنت ته به هر هغه څوك داخلیږی چه دوه ښائسته صفتونه پکښې راغلل، ځکه جنت په صفاتو حاصلیږی، په دعوو او نومونو سره نهٔ حاصلیږی۔

یو دا چه موحد وی او بل په خپل عمل کښې مُخلص وی او د سنت مُتَّبِع وی۔ او یهود او نصاراؤ کښې دا دواړه صفات نشته، نهٔ موحدین دی ځکه دوی د الله تعالیٰ سره شریکان جوړ کړیدی او نهٔ په خپل عمل کښې اخلاص کونکی دی او نهٔ د سنت متبع دی۔

## فائده -- د عمل د قبلیدو شرطونه:

حافظ ابن کثیرؒ لیکی: د الله تعالیٰ په نیز د عمل د قبلیدو دپاره دوه شرطونه دی۔ اول دا چه هغه خالص د الله تعالیٰ دپاره وی۔ دویم دا چه د رسول الله ﷺ د سنت او د شریعت اسلامی مطابق وی، که نیت کښې اخلاص وی، لیکن د سنت مطابق نهٔ وی، نو هغه عمل به مردود وی لکه رسول الله ﷺ فرمایلی دی: «چا چه یو داسے عمل اُوکړو چه په هغے باندے زمونږ حکم نهٔ وی نو هغهٔ به رد کولے شی» (صحیح مسلم)۔

پدے وجه د راهبانو (پیرانو)، د ساداتو او صوفیاؤ عمل د الله تعالیٰ په نیز قابلِ قبول نهٔ دے ځکه چه د هغوی په عمل کښې د رسول الله ﷺ اتباع نشته، دغه شان که عمل د شریعت د ظاهر مطابق وی لیکن د الله تعالیٰ د رضا نیت نهٔ وی، نو داسے عمل هم مردود دے او دا حال د ریاکارو منافقانو دے، لکه چه الله تعالیٰ فرمایلی دی: ﴿اِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ يُخٰدِعُوْنَ اللّٰهَ وَهُوَ خَادِعُهُمْ﴾ چه بے شك منافقان الله تعالیٰ ته دهوکه ورکول غواړی او الله تعالیٰ دوی ته دهوکه ورکوی۔ (النساء/۱۴۲) ﴿فَمَنْ كَانَ يَرْجُوْا لِقَاءَ رَبِّهٖ فَلْيَعْمَلْ عَمَلًا صَالِحًا﴾ (الکهف/۱۱۰)

﴿فَوَيْلٌ لِّلْمُصَلِّيْنَ الَّذِيْنَ هُمْ عَنْ صَلَاتِهِمْ سَاهُوْنَ الَّذِيْنَ هُمْ يُرَاۗءُوْنَ﴾ [ابن کثیر ۱/۳۸۵]

بَلٰی: د یهودو او نصاراؤ د دعوے د تردید او تکذیب دپاره راوړے شویدے۔ معنیٰ ئے ده: (آؤ۔ یا: داسے نهٔ ده)۔ که مخکښې اثبات وی نو پدے سره به نفی کیږی او که مخکښې نفی وی نو پدے

سره په اثبات کیږي.

﴿مَنْ اَسْلَمَ﴾ اسلام په لغت کښې انقیاد (یعني تابعداری) او استسلام (یعني غاړه کیخودو) ته وائي. دویم : اخلاص ته وائي.

﴿وَجْهَهٗ﴾ ذکر د مخ مراد ترې ټول بدن دے. یعني الله تعالیٰ ته ئې بس خپل مخ (ټول بدن) منقاد او تابع کړو چه د الله څه امر راځي نو زهٔ به ئې منم. انکار به نهٔ کوم. او عاجزي او تواضع پکښې پیدا شوه. د الله سره ئې شریکان جوړ نکړل. (روح المعاني)

دا دلیل دے پدے چه په یهودو او نصاراو کښې دا صفت نشته. هغوی مسلمین نهٔ دی، منقاد نهٔ دی، هغوی خو د الله تعالیٰ حکمونه ماتوی او انکار ترے کوی. تکبر پکښې دے. او اخلاص پکښې نشته، مشرکان دی.

۲- حافظ ابن کثیرؒ د سعید بن جبیرؒ نه نقل کوی فرمائي : وَجْهَهٗ په معني د دین سره دے [اَیْ اَخْلَصَ دِیْنَهٗ وَعِبَادَتَهٗ] یعني خپل دین او عبادت ئې د الله دپاره خالص کړو. چه هر عمل کښې ئې اخلاص وی شرك پکښې نهٔ وی.

۳- قرطبیؒ او آلوسيؒ او قاسميؒ وئیلی دی چه وجه په معني د قصد (مقصد) سره دے [مَنْ اَخْلَصَ تَوَجُّهَهٗ وَقَصْدَهٗ بِحَیْثُ لَا یَلْوِیْ عَزِیْمَتَهٗ اِلٰی شَیْءٍ غَیْرِهٖ] یعني خپله توجه او قصد ئې د الله دپاره خالص کړو پداسے طریقه چه خپل عزم او اراده د الله نه سیوا بل طرف ته نهٔ اړوی. نو مراد ددے ټولو دا دے چه عقیدةً او عملاً ئې توحید قبول کړو.

﴿وَهُوَ مُحْسِنٌ﴾ یعني پدے عمل کښې الله تعالیٰ ته متوجه وی. (قاسميؒ)

**ظاهر تفسیر** پدے آیت کښې دا دے چه ځان منقاد کړی الله ته، او بیا په دے حکم کښې الله ته متوجه وی. نو دوه کاره په هر مسلمان لازم دی اَلْاِنْقِیَادُ لِلّٰهِ تَعَالٰی فِیْ کُلِّ شَیْءٍ. (الله تعالیٰ ته به هر کار کښې تابع او تسلیمیدل). دویم : اَدَاءُ الْعَمَلِ بِالتَّوَجُّهِ وَالْاِحْسَانِ. (عمل په توجه او په طریقه د احسان سره کول). نو بیا به دا انسان کامیاب وی. غالباً دا دوه صفتونه یو ځائے نهٔ ملاویږی.

(مُحْسِن) هغه چا ته وائي چه د الله تعالیٰ عبادت کوی په داسے طریقه لکه چه الله ته ګوری، یا دا چه عمل کوی، او دا ګمان کوی چه ما ته الله تعالیٰ ګوری. یعني ډیر په توجه سره عمل کوی. نو یو بنده دے چه عمل د الله تعالیٰ دپاره کوی خو الله تعالیٰ ته ئې پکښې بالکل توجه نشته، نو دا عمل نهٔ قبلیږی. دارنګه یو بنده الله تعالیٰ ته ښهٔ متوجه دے خو د الله تعالیٰ حکم ته برابر نهٔ دے. د نبی ﷺ په طریقه نهٔ دے. نو دا هم نهٔ قبلیږی ځکه د هر عمل دپاره دا ضروری ده چه د نبی ﷺ په طریقه به وی، اخلاص او توجه به پکښې وی.

**فائده** : د آیت نه معلومه شوه چه د اسلام د اهمو خصوصیاتو او نخو نه دا خبره ده چه د انسان شعور او د هغه عقیده او عمل، د هغه د قلبی ایمان او د هغه د عملی طریقے ترمینځ به مکمل یو والے وی، د هغه ظاهر او باطن دواړه به یو برابر وی، عقیده به ئے هم صحیح وی او عملاً به هم مطیع او فرمانبردار وی نو ځوك چه دا درجه حاصله کړی، دغه انسان خپل شخصیت او کمال حاصل کړو۔ (فی ظلال القرآن)۔

﴿وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ﴾ دا لفظ دریم کرت دے چه په دے سورت کښ راغلی۔

خوف به په آخرت کښ پرے نۀ وی او حزن (غم) به په وخت د مرګ کښ نۀ وی، او د دنیا پسے به غمونه نۀ کوی، او پدے به هم غمجن نۀ وی چه دوی نه به ګنے د الله تعالیٰ نعمتونه منع شی۔

**فائده** : مخکښ ئے فَلَهٗۤ اَجْرُهٗ عِنْدَ رَبِّهٖ کښ ضمیر مفرد راوړو او لَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ کښ ئے د جمع ضمیر راوړو ځکه چه (مَنْ اَسْلَمَ) کښ مَنْ لفظاً مفرد دے او معنیً جمع ده نو اول ځائے کښ لحاظ د لفظ او دویم ځائے کښ لحاظ د معنیٰ شویدے۔

| |
|---|
| وَقَالَتِ الْيَهُوْدُ لَيْسَتِ النَّصٰرٰى عَلٰى شَيْءٍ ۪ وَّقَالَتِ النَّصٰرٰى لَيْسَتِ الْيَهُوْدُ عَلٰى شَيْءٍ ۙ وَّهُمْ |
| او وائی یهودیان چه نۀ دی نصاریٰ په هیڅ دین او وائی نصاریٰ چه نۀ دی یهودیان په هیڅ دین، حال دا چه دوی |
| يَتْلُوْنَ الْكِتٰبَ ؕ كَذٰلِكَ قَالَ الَّذِيْنَ لَا يَعْلَمُوْنَ مِثْلَ قَوْلِهِمْ ۚ فَاللّٰهُ يَحْكُمُ |
| لولی کتاب، دغسے وئیل به هغه کسانو چه نۀ پوهیدل په شان د وینا د دوی، نو الله به فیصله اُوکړی |
| بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ فِيْمَا كَانُوْا فِيْهِ يَخْتَلِفُوْنَ ﴿۱۱۳﴾ |
| په مینځ د دوی کښ په ورځ د قیامت په هغه څۀ کښ چه دوی په هغے کښ اختلاف کولو۔ |

**تفسیر** : په دے ځائے کښ اُوس یهود او نصاراؤ ته ځلورم زجر او زورنه ورکوی چه دوی هسے وائی چه مونږ جنتیان یو او مینځ کښ د یو بل سره سخت وران دی، خپل مینځ کښ ئے داسے اختلاف دے چه یو بل ته کافر او بے دینه وائی او هر یو سره چه کوم حق دے د هغے تکذیب کوی، قطع نظر د آخری نبی د نبوت نه، دومره ضدیان او عنادګر دی چه د نصاراؤ سره کوم حق دے، یهود وائی مونږ هغه نۀ منو او نصاریٰ وائی چه یهودو سره کوم حق دے مونږ هغه نۀ منو۔او حال دا چه په تورات کښ ئے لیکلی دی چه عیسیٰ علیه السلام به حق نبی وی، او یهود د هغے انکار کوی او په انجیل کښ ئے لیکلی دی چه موسیٰ علیه السلام د الله تعالیٰ حق نبی وو، نو نصاریٰ د هغے انکار کوی نو هغه ځوك به جنت ته څنګه لاړ شی چه د حق نه انکار کوی!!۔

نو عنوان د آیت دے [اَلزَّجْرُ بِتَکْذِیْبِ الْحَقِّ فِیْمَا بَیْنَهُمْ] یعنی الله تعالیٰ زجر ورکوی په تکذیب د حق په خپل مینځ کښې چه الله تعالیٰ ورته دا حق نصیب کړے دے او بیائے هم نهٔ منی، پکار خو دا ده چه ټول اُومنیٔ نو پدے کښې نبی ﷺ ته یو قسم تسلی ده چه دا دومره ضدیان دی چه خپل مینځ کښې حق نهٔ منی نو که تا نه انکار اُوکړی، خفګان مهٔ کوه ځکه چه دوی خپل بنی اسرائیلی انبیاء علیهم السلام نهٔ دی منلی۔

او زمونږ د اُمت د جامدو مقلدینو طریقه هم دا ده چه دوی هم د حق ډیرے خبرے نهٔ منی، د مذهب خلاف چه کوم حدیث راشی هغه نهٔ منی، د امام شافعیؒ حدیث نهٔ منی، او نهٔ د امام مالكؒ، او نهٔ د امام احمدؒ او د هغے نه شپاړس جوابونه کوی، لکه روستنی متأخرین دا کار کوی۔ نو داسے نهٔ ده پکار، بلکه پکار دا ده چه هر چا سره حق وی، هغه ډے اُومنلے شی، او د یهودو سره مشابهت ډے اُونکړے شی۔ او ددے خبرے پته په مسائلو کښې لګی۔

شیخ الاسلام ابن تیمیةؒ په «اِقْتِضَاءُ الصِّرَاطِ الْمُسْتَقِیْم» کښې لیکی چه ددے مثال په دے اُمت کښې هغه مسلمانان دی چه په اصول او عقائدو کښې متفق دی لیکن د فروعو د اختلاف د وجهٔ نه د یو بل تکفیر کوی او سبب ئے تعصب او ضد او عناد وی، نو دا مرض د یهودو او نصاراؤ دے چه دے اُمت ته رانقل شویدے۔

او دغه شان خبره فخر الدین الرازیؒ هم کړیده چه خلاصه ئے دا ده چه د نبی کریم ﷺ امت هم پدے بیماریٔ کښې مبتلاشو چه هره ډله بلے ډلے ته د کفر نسبت کوی حال دا چه ټول قرآن لولی یعنی ټولو دا دعویٰ کړیده چه مونږ د قرآن او سنت اتباع کوو لیکن عملاً ئے د قرآن اتباع پریخوده او د سنت نه ئے اعراض اُوکړو، او د قسماقسم باطلو تاویلاتو په ذریعه ئے سنت لره د خپلے عملی زندګیٔ نه بهر کړو او د رسول الله ﷺ د لارے نه واوړیدل او مختلفے ډلے پیدا شولے۔

حال دا چه الله تعالیٰ د قرآن او د سنت د لارے په باره کښې داسے فرمائی : ﴿وَاَنَّ هٰذَا صِرَاطِیْ مُسْتَقِیْمًا فَاتَّبِعُوْهُ وَلَا تَتَّبِعُوا السُّبُلَ فَتَفَرَّقَ بِکُمْ عَنْ سَبِیْلِهٖ﴾ (او دا زما نیغه لاره ده، ددے تابعداری اُوکړیٔ او د نورو لارو تابعداری مهٔ کویٔ ورنه د الله تعالیٰ د لارے نه به مو واړوی) (الانعام /۱۵۳)

او نبی کریم ﷺ فرمائی : ((ما تاسو کښې دوه څیزونه پریخودل، که تاسو هغه مضبوط اُونیول نو ما نه روستو به هیچرے ګمراه نهٔ شیٔ، د الله کتاب او زما سنت))۔

(صحیح الجامع الصغیر: ۲۹۳۷)۔

نن صبا چه په مسلمانانو کښې څومره ګمراهیانے، څومره اختلافات او څومره جماعتونه دی، د هغے ټولو سبب صرف د نبی کریم ﷺ د سنت نه وړاندے والے دے، د کوم وخت نه چه نبی کریم

ﷺ دنیا ته نبی رالیږلے شویدے، نو د قیامته پورے به صرف یو جماعت په صحیح اسلام مضبوط ولاړ وی او دا هغه جماعت دے چه په دواړو لاسونو کښې ئے د قرآن او سنتؑ مشعل نیولے وی او دنیا والو ته دعوت ورکوی چه د صحیح اسلام لاره همدا ده، راشئ پدے باندے روان شئ، دا د یو تنظیم او پارټئ نوم نهٔ دے۔

﴿عَلٰی شَیْءٍ﴾ [اَیْ عَلٰی شَیْءٍ مِنَ الدِّیْنِ الْحَقِّ] یعنی په صحیح او حق دین باندے نهٔ دی روان۔ ورنه په غلط دین خو روان دی۔ نو یو بل ته کافر وائی۔

﴿وَهُمْ یَتْلُوْنَ الْكِتٰبَ﴾ یعنی دا دواړه په حق دی، په خپله زمانه کښې دواړه په حق وو، لیکن د یو بل د حق نه ئے انکار کولو۔ دوی د تورات او هغوی د انجیل لوستل کول او حال دا چه د الله په کتاب کښې خو منع راغلے ده ددے خبرے نه چه د یو بل تکذیب اُوکړی۔

او پدے کښې د دوی زیات قباحت او بدئ ته اشاره ده چه دوی ته حق ښهٔ واضحه شوے وو خو بیا ئے هم د هغے نه انکار کولو۔ علم والا وو، کتابونه به ئے لوستل۔

**تنبیه** : د مسلمانانو خپل مینځ کښې په راجح او مرجوح (غوره او نا غوره) مسائلو کښې اختلاف کول او بیا یو بل ته د کفر نسبتونه کول او ددے په وجه یو بل سره بُغض او حسد کول پدے آیت کښې داخل دی چه دا ممنوع کار دے، او که داسے مسائل وی چه یو طرف ته حق وی او بل طرف ته باطل وی، هیڅ دلیل نهٔ وی او د حدیث خلاف مسئله وی، یو طرف ته حدیث وی او بل طرفته د یو عالِم رائے وی نو هغے کښې به سختی کولے شی، او هغه اختلاف کول پدے آیت کښې داخل نهٔ دی۔ کوم کسان چه حق بیانوی هغه د حق تکذیب نهٔ کوی بلکه حق ته خلق رابلی۔

نو اُوس الله تعالیٰ ددے علمه خلقو سره د دوی مشابهت ورکوی چه هغوی سره څهٔ کتاب نهٔ وو او حق به ئے نهٔ منلو۔ ﴿كَذٰلِكَ قَالَ الَّذِیْنَ لَا یَعْلَمُوْنَ﴾

د لَا یَعْلَمُوْنَ مصداق دا دے چه د مکے مشرکانو به وئیل چه همدا مونږ په حق یو او رسول الله ﷺ ته به ئے وئیل چه دا په حق نهٔ دے، بلکه صابی یعنی بے دینه شویدے۔ نو الله تعالیٰ فرمائی چه دوی ځان مشابه کړو د هغه امیانو جاهلانو مشرکانو سره، دارنګه هغه پخوانو کافرو سره چه د پیغمبرانو د خبرو نه به ئے انکار کولو۔ نو الله تعالیٰ دوی ته زورنه ورکوی چه ستاسو تر مینځ به زهٔ په حق سره فیصله کوم او په حق نهٔ منلو به درسره حساب کوم۔ او دیته عملی فیصله وائی۔ چه په دوی کښې به نیکان جنت ته داخل کړی او منکرین به جهنم ته. نو الله تعالیٰ د دوی دا عیب بیان کړو چه دا داسے خلق دی چه د حق منکر دی او وائی چه مونږ جنتیان یو۔

| |
|---|
| وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنْ مَّنَعَ مَسٰجِدَ اللّٰهِ اَنْ يُّذْكَرَ فِيْهَا اسْمُهٗ |
| او څوك دے لوئی ظالم د هغهٔ چا نه چه منع کړی جماتونه د الله ددے نه چه یاد کړے شی په دیکښې نوم د الله، |
| وَسَعٰى فِيْ خَرَابِهَا ؕ اُولٰٓئِكَ مَا كَانَ لَهُمْ اَنْ يَّدْخُلُوْهَآ اِلَّا خَآئِفِيْنَ ؕ |
| او کوشش کوی د هغے په خرابوالی کښې۔ دغه کسان نهٔ دی مناسب دوی له چه داخل شی هغے ته مګر ویریدونکی۔ |
| لَهُمْ فِى الدُّنْيَا خِزْىٌ وَّلَهُمْ فِى الْاٰخِرَةِ عَذَابٌ عَظِيْمٌ ﴿۱۱٤﴾ |
| د دوی دپاره په دنیا کښې شرمندګی ده او دوی لره په آخرت کښې عذاب لوئی دے۔ |

**تفسیر** : یهودو کښې بل مرض دا دے چه د الله تعالیٰ د عبادت خانونه هم خلق منع کوی لکه بیت المقدس نه دوی خلق منع کړی وو۔ لکه عیسایانو د بخت نصر بابِلی مجوسی بادشاه په ملګرتیا کښې هغهٔ وران کړے وو او یهودیانو ئے ترینه بند کړی وو۔ (ابن جریرؒ)۔
دارنګه د مکے مشرکانو د مسجد حرام نه صحابه کرام رضی الله عنهم منع کړی وو۔ او د صلح حُدَیْبِیه په موقع دوی همدغه خبره ذکر کړه چه مونږ د خپل پلار نیکه قاتلان د مکے داخلیدو ته نهٔ پریدو۔ او یهودیان ورسره په دے کار کښې ملګری وو۔ او الله تعالیٰ ته معلومه ده چه نورو خایونو کښې هم دوی کښې دا مرض دے نو ځکه عام لفظ راوړی۔ نو پدے آیت کښې هغه کسانو ته الله تعالیٰ رټنه ورکوی چه څوك اهل حق د الله د جماتونو نه منع کوی چه حق پکښې بیان کړی او د الله ذکر پکښې اُوکړی او عمره او حج ته لاړ شی۔دوی ئے منع کوی، مونځونو ته ئے نهٔ پریدی۔ دا پنځم زجر شو۔

**عنوان الآیة** : [اَلزَّجْرُ وَالتَّخْوِيْفُ لِمَنْ يَمْنَعُ التَّوْحِيْدَ وَذِكْرَهٗ سُبْحَانَهٗ عَنِ الْمَسَاجِدِ]
(رټنه او یره ورکول هغه چا ته چه د مساجدو نه توحید او د الله بندګی او د هغه یادول منع کوی)۔

**ربط** : دغه اهل کتابو لکه څنګه چه د الله تعالیٰ د کتاب بے عزتی او د حق نه انکار اُوکړو نو دغسے دوی د الله د مکانانو (مساجدو) بے عزتی هم کوی، او دغه دواړه د هدایت لارے دی۔ کتاب الله او مساجد۔ او ددے تعلق د تحویل القبله مسئلے سره هم دے لکه د روستو وَلِلّٰهِ الْمَشْرِقُ نه هم معلومیږی، دا ټول د تحویل القبله دپاره مقدمات دی۔ چه قبله به بدلیږی او دا خلق به په مسلمانانو اعتراضونه کوی نو دوی ظالمان دی۔ بیا اعتبار عام الفاظو لره وی نهٔ خاص سبب لره۔

## شان نزول

١- يو قول دا دے چه دا په باره د نصاراو كښې نازل شوے چه بيت المقدس كښې به ئے گندونه اچول او د بختنصر په مدد سره ئے هغه وران كړے وو، دا قول ابن جرير طبريؒ غوره كړے.
٢- دويم قول : دا د مكے مشركانو په باره كښې دے چه نبي ﷺ او د هغه ملگري ئے د مسجد حرام نه منع كړي وو چه عمره اُوكړي، دارنگه نبي ﷺ به ئے په مسجد حرام كښې د مانځه كولو نه منع كولو. دا قول حافظ ابن كثيرؒ غوره كړے او وئيلے ئے دي چه قريشو اگركه ظاهري د كعبے عزت كولو ليكن ددے نه لويه تخريب كاري بله كومه ده چه دوي رسول الله ﷺ او د هغه ملگري ددے نه ويستلي وو، او بتان ئے پكښې ايخودي وو او شرك او عبادت د غير الله به ئے پكښې كولو. او ابن كثيرؒ ددے په تائيد كښې آيتونه ذكر كړيدي: ﴿مَا كَانَ لِلْمُشْرِكِيْنَ اَنْ يَّعْمُرُوْا مَسَاجِدَ اللهِ شَاهِدِيْنَ عَلٰى اَنْفُسِهِمْ بِالْكُفْرِ﴾ [التوبة:١٧]. ﴿هُمُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَصَدُّوْكُمْ عَنِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ﴾ [الفتح:٢٥] نو د مسجد آبادول دا نهٔ دي چه هغهٔ ښائسته كړے شي او ظاهري شكل ئے برابر كړے شي، بلكه د مسجد آبادول د الله په ذكر، او په هغے كښې د الله په شريعت قائمولو سره دے او د شرك او د خيرو د شرك نه هغه پاك ساتل دي. (ابن كثيرؒ) ليكن د ابوبكر صديق ﷺ د كور مخے ته ځائے وو چه هلته به ئے مونځ او تلاوت كولو او قريشو هغه وران كړے وو. ظاهر دا ده چه آيت كښې عموم دے، تولو ته شامل دے. ددے وجه نه ئے "مساجد الله" جمع راوړے ده.
﴿مَسَاجِدَ اللهِ﴾ : مسجد د تولو مسلمانانو مشترك ځائے وي، هر سړے ورته داخليدے شي، د عبادت دپاره جوړ وي، د مسجد تاله كول مناسب نهٔ وي مگر د ضرورت د وجه نه جائز دي. امام بخاريؒ باب ايخودے (بَابُ الْاَبْوَابِ وَالْغَلَقِ لِلْكَعْبَةِ وَالْمَسَاجِدِ) او احاديث ئے راوړي چه د ضرورت په وجه د مساجدو او د كعبے دروازه بندول جائز دي، د سلفو په دور كښې په مساجدو كښې دنيا نهٔ وه، نو مساجد به هر وخت كولاؤ وو، خلقو به د سفر نه په واپس راتلو كښې په هغے كښې مونځونه كول او اُوس مساجدو ته دنيا راغلے ده، د غلا خطره وي نو ځكه د مونځونو نه بيوئ اوقاتو كښې بند وي. مسجد نه خلق منع كول ځكه لوئې ظلم حساب شو چه مسجد د ايمان كارخانه وي، دلته په عبادت، ذكر، تلاوت، ترجمه او تفسير سره د انسان ايمان جوړيږي.
﴿اَنْ يُّذْكَرَ فِيْهَا اسْمُهٗ﴾ يعني د دوي د الله د توحيد او د الله د كتاب سره دشمني ده چه د الله نوم په توحيد يادولے شي يا د الله د كتاب درس كولے شي نو دوي خفه وي.
اَنْ يُّذْكَرَ : ١- دا يا مفعول ثاني د مَنَعَ دے. يعني خلق د ذكر نه منع كوي.
٢- يا مفعول لهٔ دے. يعني خلق پدے وجه منع كوي چه په مساجدو كښې چرته د الله ذكر اُونكړے شي نو د الله د ذكر دشمنان دي. (روح المعاني).

# د أَنْ يُذْكَرَ مصداق

۱- چه د الله نوم په کښې په یو والی سره یاد شی- یعنی د توحید دشمنان دی۔

۲- [أَنْ يُتْلَى فِيهَا كِتَابُهُ] (د الله کتاب پکښې اُولوستلے شی)- (تفسیر خازن)۔

۳- دارنګه د ذکر نه مراد مونځ دے چه خلق د مانځه نه منع کوی، لکه ډیرو خلقو په مسجد لیکلی وی چه دلته به صحیح عقیدے والا بند وی۔

٤- خاص مصداق ئے حج او عمرے نه خلق منع کول هم دی۔ دے کښې دا هم داخلیږی چه د حرم په خوا کښې خلق نیول او حج او عمرے ته نهٔ پریخودل پدے بهانه چه دا بے قانونه راغلی دی او جواز (پاسپورټ) ورسره نشته۔

۵- ظاهر دا ده چه دا د الله تعالیٰ هر عبادت او قربت ته شامل دے ځکه چه هیڅ عبادت نشته مګر په هغے کښې د الله ذکر موجود دے۔ [الوسیط للسید طنطاوی ۱/ ۱۹۰]

﴿ وَسَعٰى فِىْ خَرَابِهَا ﴾ د جمات یو خراب والے دا دے چه د الله تعالیٰ عبادت پکښې نهٔ کیږی، او څوک چه د الله تعالیٰ صحیح عبادت کوی، په هغے کښې د الله تعالیٰ کتاب بیانوی، تقریر کوی نو هغه ترے منع کوی۔ او دارنګه خرابوالے دا هم دے چه بدعت او ګمراهی پکښې راښکاره شی۔

۲- دویم ظاهری خرابوالے چه ونړوی یا په هغے کښې ګندونه ګوزار کړی۔

د جمات ظاهری او باطنی دواړه قسمه خرابوالے ناروا دے۔

﴿ أُولٰٓئِكَ مَا كَانَ لَهُمْ اَنْ يَّدْخُلُوْهَآ اِلَّا خَآئِفِيْنَ ﴾ دا جمله خبریه ده په معنیٰ د انشاء ده په معنیٰ کښې ئے طلب دے۔ ۱- مطلب دا دے چه اے مسلمانانو! تاسو باندے فرض دی چه دوی سره جهاد اُوکړئ او دوی ویروئ او دا علاقے ترے اُونیسئ چه په یره یره دلته راځی۔ لکه همدغسے اُوشو چه نبی کریم ﷺ او صحابه کرامؓ مسجد حرام اُونیولو او کافران او د هغوی بتان ئے ترے ختم کړل۔ او اعلان ئے اُوکړو چه آینده کال به مشرک حج له نهٔ راځی۔

۲- یا په دے کښې الله دا خبر او پیشین ګوئی ورکړے ده چه داسے وخت به راشی چه الله تعالیٰ به مؤمنانو ته غلبه او قدرت ورکړی او دغه مسجد به قبضه کړی او توحید او سنت به پکښې په ښکاره طریقے بیانوی او په مشرکانو او منافقانو به ردونه کوی نو که هغوی مسجد ته راځی په یره به وی، څهٔ به وئیلے نهٔ شی، هسے به زړهٔ خوری۔

لکه داسے کار الله تعالیٰ منافقانو سره اُوکړو په هغه زمانه کښې او مشرکانو سره ئے هم اُوکړو په مسجد حرام کښې لکه چه کله مکه فتح کیدله نو د رسول الله ﷺ آواز کونکی آواز اُوکړو چه څوک مسجد حرام کښې پناه واخلی نو هغهٔ ته پناه ملاویږی۔ نو د قریشو تولو سرکشانو په

مسجد حرام کښې پناه واخستـه حال دا چه دا هغهٔ خلق وو چه یو وخت کښې به ئې په همدې مسجد حرام کښې رسول الله ﷺ او د هغه ملګری د عبادت کولو نه منع کول او د نورو جماتونو نه چه خلق منع کوی نو په دوی باندې هم الله تعالیٰ دغه شان یره راولی او په دنیا کښې به ئې هم شرموی- (تفسیر فی ظلال القرآن)-

او مفسرینو د ابن عباسؓ نه نقل کړیدې چه د بیت المقدس د آبادیدو نه روستو هر رومی او نصرانی نهٔ دې داخل شوې مګر په حالت د یره کښې- (بغوی، خازن، ابن کثیر)

د عمر فاروق ﷜ په زمانه کښې چه بیت المقدس فتح شو نو دغه نصاریٰ به په یره راتلل-

۳- چا وئیلی دی چه دلته معنیٰ دا ده : دې خلقو له مناسب او حق دا نهٔ وه چه مسجد ته بغیر د یرې نه راشی بلکه د دوی سره خو یره مناسب وه که ظلم د کافرانو نهٔ وې، خو دا اُوس چه زړهٔ ور راځی او مسلمانان د مساجدو نه منع کوی نو دا پدې وجه چه د کافرانو غلبه ده او ظلم ئې دې- (ابن کثیر) نو دا یوه شکوئ ده او تیزی ده ایمان والو ته چه د کافرانو ظلم ختم کړئ چه د دوی دغسې حال جوړ شی-

٤- بعض مفسرینو دا معنیٰ هم ذکر کړیده چه داسې خلقو له پکار وو چه د مسجد د آدابو لحاظ اُوکړی او مساجدو ته په یره یره او خضوع او خشوع سره داخل شی ځکه د الله د مساجدو احترام د الله ذو الجلال د هیبت او دبدبې تقاضا ده چه د هغه د کورونو احترام اُوکړې شی- د خائفین نه مراد خائفین مِنَ الله دی- (یعنی د الله نه یریدونکی)- دا تفسیر هم اګرچه احتمال لری لیکن ددې مقام د تحویل قبله سره مناسب نهٔ دې- (فی ظلال)-

**فوائد** : (۱) علماء کرامو ددې آیت نه دلیل نیولې دې چه کافرانو ته به مساجدو ته د داخلیدو اجازت نهٔ ورکړې کیږی- لیکن صحیح دا ده چه دا حکم د مسجد حرام پورې خاص دې-

(۲) او دا آیت دلیل دې چه هرکله د مساجدو تخریب کاری لوئی فسق دې نو د مساجدو تعمیر او هغه په ظاهری او معنوی طور سره آبادول د ایمان لویه کارنامه او درجه ده لکه الله تعالیٰ بل ځائې فرمائی : ﴿إِنَّمَا يَعْمُرُ مَسَاجِدَ اللَّهِ مَنْ آمَنَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ﴾ [التوبة :۱۸]-

(د الله تعالیٰ مساجد صرف ایمان والا آبادوی) (رازی)-

۳- ماشومان به هم د مساجدو نه نشی منع کولې، دې دپاره چه په مانځه اموخته شی اګرکه څه نا څه ورانې هم کوی- د رسول الله ﷺ په زمانه کښې به ماشومان هم مسجد ته راوستې شو- نبی ﷺ فرمائی : زهٔ د اُوږد مونځ اراده کوم لیکن چه د ماشوم ژړا واورم نو مختصر ئې کړم پدې یره چه مور به ئې په فتنه کښې واقع شی (توجه به ئې خرابه شی)- (بخاری ومسلم)-

او کوم روایت کښې چه منع راغلې ده چه ((خپل ماشومان او لیونی د مساجدو نه اُوساتئ......))
نو هغه نهٔ دے ثابت. ضعیف جداً روایت دے. په روایت د ابن ماجه (۲۵۳/۱) کښې حارث بن نبهان
متفق علیه ضعیف دے. او په روایت د طبرانی کښې علاء بن کثیر اللیثی منکر الحدیث
ضعیف دے. اُوګوره: الثمر المستطاب للشیخ الالبانی ص(٥٨٥)

(٤) جزاء من جنس العمل وی، دے خلقو مؤمنان یره ولی دی نو دوی به ویره ولے شی.

(٥) مسئله: امر بالمعروف په مسجد کښې بلا اجازته کولے شی لیکن وعظ او نصیحت به د امام په اجازت سره کولے شی لکه په بعض احادیثو کښې دی: [لَا يَقُصُّ اِلَّا اَمِيْرٌ اَوْ مَاْمُوْرٌ اَوْ مُخْتَالٌ] (ابوداود). یعنی بیان به صرف امیر کوی یا هغه څوک چه امیر ورته اجازه کړی وی او ددے نه بغیر که څوک بیان کوی هغه به متکبر وی.

﴿لَهُمْ فِي الدُّنْيَا خِزْيٌ﴾: دنیاوی شرمندګی ئے مخکښې ذکر شوه چه دوی مغلوبه او ذلیله شو او مسجد حرام ترے اُونیولے شو. او دغسے خلق به الله تعالیٰ هر وخت شرموی.

﴿عَذَابٌ عَظِيْمٌ﴾ الله تعالیٰ به غټ عذاب ورکوی هغه چاته چه څوک د الله تعالیٰ د عبادت خانو نه خلق منع کوی. او مشرکانو د خانه کعبے احترام پائیمال کړے وو، په هغے کښې ئے بتان نصب کړی وو، غیر الله ته به ئے آوازونه کول او په برښده به ئے طوافونه کول. نو د غټ عذاب مستحق دی.

**سوال:** اَظْلَم اسم تفضیل دے او ددے مصداق یو فرد وی او په قرآن کښې خو د اَظْلَم شپږ افراد ذکر دی، لکه شهادت پټونکے، د آیتونو تکذیب کونکے، د آیتونو نه اعراض کونکے، په الله افتراء کونکے وغیره نو کوم یو اَظْلَم (ډیر ظالم) شو؟

**جواب:** په هره نوع کښې جدا جدا اَظْلَم مراد دے نو په مانعینو کښې لوئی ظالم د مسجد نه منع کونکے دے. (احسن الکلام).

| وَلِلّٰهِ الْمَشْرِقُ وَالْمَغْرِبُ فَاَيْنَمَا تُوَلُّوْا فَثَمَّ |
| --- |
| او خاص الله تعالی لره مشرق او مغرب دے نو کوم طرف ته چه (مخونه) اړوئ نو هم هغلته |
| وَجْهُ اللّٰهِ اِنَّ اللّٰهَ وَاسِعٌ عَلِيْمٌ ﴿١١٥﴾ |
| مخ د الله دے، یقیناً الله فراخه فضل والا، په هر څه پوهه دے. |

**تفسیر:** دا د مخکښې آیت سره تعلق لری، او پدے کښې تسلی ده چه که چا ددے جمات نه منع

کړې نو د الله زمکه فراخه ده، عبادت او دعوت به نهٔ پريدې، بل ځائے ته لاړ شه هلته د الله عبادت او دعوت جاري ساته۔ نو پدې کښې تسلي شوه هغه شخص ته چه د مسجد نه منع کړې شوې وي۔
مخکښے آيت او دا آيت دا ټول د راتلونکي تحويل القبله (د قبلے بدليدو) دپاره مقدمے دي چه روستــه الله تعالیٰ قبله بدلوي نو دا ئے ورله مخکښې نه مقدمے کيخودے چه اے خلقو! الله په دين کښې نسخ هم راولي او جهاتونو نه خلق نهٔ دي منع کول پکار، ټول جهاتونه د الله دي نو کوم طرفته چه الله حکم کوي هغه طرف ته متوجه کيدل پکار دي۔ او دا د قرآن کريم کمال دے چه مخکښې او روسته وراندے اشارے کوي ددے وجه نه قرآن کريم کښې چه څوك دير مهارت نهٔ لري نو هغه وائي چه دا مُفَكّكٌ (يو بل نه جدا) دے، يو آيت ئے د بل سره تعلق نهٔ لري، او حال دا دے چه دا ديرے ژورے اشارے دي۔
**شان نزول** :...... دا آيت د قبلے د بدليدو په باره کښې نازل شوے وو چه کله رسول الله ﷺ مدينے ته هجرت اُوکړو او شپاړس يا اُولس (١٧) مياشتے ئے بيت المقدس ته مونځ اُوکړو او بيا ئے کعبے ته مخ واړولو نو يهودو اعتراض اُوکړو چه مخکښې مونځونه ستاسو باطل شو۔ نو دا جمله نازله شوه او دوي ته جواب ورکړے شو چه دا ټول طرفونه د الله تعالیٰ دي، د هغهٔ خوښه ده چه خپل بندګان کوم طرفته متوجه کوي د چا پکښې د اعتراض حق نشته۔

(احسن الكلام، احسن البيان، في ظلال القرآن)۔

○ بعض وائي: کله چه رسول الله ﷺ شپاړس مياشتے د کعبے د ليدلو نه محروم شو، نو د هغه دا خواهش وو چه کاش مسجد حرام د مسلمانانو قبله جوړه شي، نو الله رب العالمين د خپل رسول او د صحابه کرامو د تسلي دپاره دا آيت نازل کړو چه د مشرق او مغرب او د ټولو جهاتونو مالك صرف الله دے، نو تهٔ چه کوم طرف ته مخ کولو سره مونځ کوے نو هغه طرف ته به الله موندهٔ کوې۔ ددے نه روستو بيا دا حکم منسوخ شو او کعبے ته د مخ کولو حکم راغلو۔ ليکن ددے آيت عام حکم باقي پاتے شو چه کله د قبلے جهت معلوم نهٔ وي يا نفل مونځ وي، يا د خوف (يرے) او د سفر په حالت کښې هر طرف ته مونځ اُوکړے شي نو مونځ به صحيح وي۔

(تيسير الرحمن)۔

○ بعض وائي چه په سفر کښې مسلمانانو په تيارهٔ کښې مونځ کړے وو چا يو خوا چا بل خوا کړے وو۔ بيا نبي ﷺ ته اُوښيل شو چه مونږ خو يو خوا بل خوا مونځ اُوکړو نو الله تعالیٰ دا آيت راوليږلو چه خير دے کله چه تاسو په دے لراده بانديے کړے وي چه دے خوا قبله ده او خطاء شوے نو مونځ جائز دے۔ دا روايت ترمذيؒ راوړيدے او ابن کثيرؒ وئيلي دي چه پدے رواياتو کښې

ضعف دے لیکن د یو بل تائید کوي۔

○ دارنګه دا آیت په سورلۍ باندے مونځ کولو په باره کښ نازل شوے دے چه که د سورلۍ دپاسه مونځ کوے، تهجد عام نوافل یا سنت یا وتر او یا د ضرورت په وخت فرض کوے (هغه هم کیږي) لکه چقړے یا باران وي نو په هغه وخت کښ که هر خوا مخ شو، مونځ کیږي۔ په دے باره کښ هم دا آیت نازل دے۔

لیکن غوره دا ده چه دا د مخکښ آیت سره لګي چه پدے کښ تسلي ده هغه چاته چه د مسجد نه منع کړے شوے وي۔ اګر که دغه اقوالو ته هم شامليږي او د یو آیت دپاره ډیر اسباب د نزول هم کیدے شي۔

په تدبر القرآن کښ دي: «پدے آیت کښ د اختلاف او نزاع سبب ته اشاره ده چه د یهود او نصاراؤ خپل مینځ کښ د یو بل د عبادت خانو او د مساجدو د سپکاوي او خرابوالي سبب جوړ شوے وو۔ د یهودو او نصاراؤ دواړو قبله بیت المقدس وه لیکن نصارئ په خاص طور سره د هغے مشرقي سمت خپله قبله منتخب کړه ځکه دغه مشرقي طرف ته مریم اعتکاف کړے وو۔ د دوي په ضد یهودیانو د هغے مغربي سمت اختیار کړو بیا د بیت المقدس دا اندروني تقسیم ددے نه بهر اُووتلو او مستقلاً د مشرق او مغرب تقسیم جوړ شو۔ یعني نصاراؤ مشرقي سمت خپله قبله جوړه کړه او یهودو مغربي سمت۔ بیا د مشرق او مغرب دے اختلاف دوي لره ښه اُوجنګول۔ په بیت المقدس کښ دننه هم او د هغے نه بهر هم۔ او ددے په نتیجه کښ دواړو ډلو د یو بل د عبادت خانو په پوره بے دردئ سره بے حرمتي اُوکړه۔ قرآن مجید دلته د اختلاف او نزاع سبب ته اشاره کولو سره ددے لغویت ته هم اشاره اُوکړه چه مشرق وي او که مغرب دواړه سمتونه صرف د الله تعالیٰ دي، پدے کښ که هر طرف ته انسان مخ واړوي نو که هغه الله ته متوجه وي نو د هغه مخ به الله طرف ته وي۔ مطلب دا دے چه که دا شے یهود او نصارئ د عبادت خانو او مساجدو د نړولو سبب جوړ کړے دے نو دا د دوي جهالت او کم عقلي ده۔ د سمتونو او جهتونو نه د هیڅ یو سمت او جهت هم د الله پورے اختصاص او خصوصیت نشته ۔ دوي که بیت المقدس قبله جوړه کړي او د هغے هر طرف ته مخ اړوي نو دوي الله ته مخ اړوي۔ د الله قدرت او د هغه د علم فراخي هر شي لره راګیرونکے دے»۔ آه۔ تدبر قرآن ۱/۳۰۲)

﴿وَلِلَّهِ الْمَشْرِقُ وَالْمَغْرِبُ﴾ یعني هغه ئے مالك دے د هغه په لاس کښ دي۔ [أَیْ خَلْقًا وَمِلْكًا وَعَبِیْدًا] (یعني الله ئے خالق او مالك دے او دا ئے غلامان او تابع دي)۔

مشرق او مغرب ئے خاص کړل مراد ترے توله دنیا او ټول طرفونه دي۔ ځکه دا اصلي جهات

(طرفونه) دي او شمال او جنوب عارضي جهات دي۔ هغه ددې دواړو نه پیدا کیږي۔ دارنګه نیمه دنیا مشرق ده او نیمه مغرب ده۔

## د وجه الله معنی

د (وجه الله) دوه معنې دي : ۱- **یوه معنیٰ** دا چه دا د متشابهاتو نه نهٔ دې ○ او مراد (قِبْلَةُ اللهِ) ده یعني دلته د الله تعالیٰ قبله او مخه ده، یعنی که ته دغه طرفته الله ته متوجه شوې نو هم ستا مونځ اُوشو۔ دا تفسیر امام مجاهدؒ، حسنؒ، قتادهؒ او مقاتل بن حیانؒ کړیدے۔ وَجْه په معنی د قبلې سره۔○کلبیؒ معنیٰ کوي : [فَثَمَّ اللهُ يَعْلَمُ وَيَرٰى ] هلته الله دے چه پو هیږي او وینی) (بغویؒ) نو وجه په معنیٰ د توجه شوه۔ ○ بعض معنیٰ کوي : [فَثَمَّ رِضَا اللهِ] هلته د الله رضا ده۔ نو وجه په معنیٰ د رضا ده۔ (بغویؒ)۔

او پدې باره کښې شیخ الاسلام ابن تیمیه رحمه الله په فتاوی (۱۹۳/۳) کښې وئیلي دي :

[وَلَيْسَتْ هٰذِهِ الْآيَةُ مِنْ آيَاتِ الصِّفَاتِ وَمَنْ عَدَّهَا فِي الصِّفَاتِ فَقَدْ غَلَطَ كَمَا فَعَلَ طَائِفَةٌ لِأَنَّ السِّيَاقَ يَدُلُّ عَلٰى اَنَّ الْمُرَادَ الْجِهَةُ فَاِنَّ الْوَجْهَ هُوَالْجِهَةُ يُقَالُ اَيَّ وَجْهٍ تُرِيْدُهُ ...... الخ]

(او دا آیت د صفاتو د آیتونو نه نهٔ دې، چا چه په صفاتو کښې شمارلے دے نو هغه خطاء شویدے، لکه بعض کسانو دا کار کړیدے ځکه چه د آیت مخکښې روستو دلالت کوي چه دلته مراد د وَجْه نه جهت (طرف) دے ځکه په عربي ژبه کښې وَجْه په معنیٰ د جهت سره استعمالیږي، وئیلے شي اَيَّ وَجْهٍ تُرِيْدُهُ یعنی ستا کوم طرفته اراده ده ؟)۔

بیا ئې خپله مناظره ذکر کړیده چه ددهٔ د جهمیه او د الله د صفاتو نه منکرینو سره مناظره وه چه دهٔ چیلنج ورکړو چه په قرآن او حدیث کښې د الله په صفاتو کښې هیڅ قسم تاویل د سلفو نه نهٔ دے ثابت، او درې میاشتې مهلت ئې ورکړو، درې میاشتې پس یو مجلس دائر شو چه په هغوی کښې یو تن اُووئیل: ما دلیل پیدا کړے۔ نو دهٔ ورته اُووئیل تا به دا آیت پیدا کړے وي (فَثَمَّ وَجْهُ اللهِ) چه مجاهدؒ ددې تفسیر په قبلة الله سره کړیدے او دا تاویل بیهقیؒ په کتاب الاسماء والصفات کښې د مجاهدؒ نه نقل کړیدے۔ هغه اُووئیل آؤ، بیا ئې ورته اُووئیل چه دلته (وَجْه) د متشابهاتو نه نهٔ دے۔ بلکه د وَجْه په عربي لغت کښې دوه معاني دي، کله مخ ته وائي او کله جهت ته۔ او دلته د سیاق نه معلومیږي چه جهت وغیره مراد دے آه۔

(د وجه معنیٰ په قبله سره کول هم جائز دي خو پدې شرط چه د الله مخ مني)۔

۲- **دویمه معنیٰ**: که دا د متشابهاتو نه شي هم څه نقصان نشته ځکه مطلب به دا وي : په دغه طرف مخ د الله دے۔ نهٔ چه کوم خوا مخ کړے الله تا ته مخامخ دے۔ دا مهٔ وایه چه الله تعالیٰ

تـه بـه ستا شا شي څکه هغه نور دے۔ مثال ئے په دنيا کښې ظاهراً داسے وي لکه ډيوه، رڼړا که هر طرفته لاړه شي نو تا ته ئے مخ وي۔

د آيت نه معلومه شوه چه الله مخ لري۔ څنګه چه د هغه د شان سره لائق وي، ددے په حقيقت باندے هغه خپله بـه پـو هيږي۔ خو قرآن او حديث کښې دا راغلي دي چه د الله بنائسته مخ شته، خپے ئے شتـه، لاسونه ئے شتـه، اصابع (ګوتې) ئے شته، څنګه چه د هغه شان سره لائق وي او دير عظيم او ښکلے ذات دے۔

د الله تـعـالیٰ د اسماء او صفاتو پيژندل ډير ضروري توحيد او مُهم علم دے ليکن ډير ادب او احترام بـه سـاتـلے شي۔ لکه صحابه کرامو چه بـه د الله تعالیٰ کوم صفت واوريدلو نو د الله په باره کښې بـه ئے غلط تصورات او اعتراضات نهٔ پيدا کول۔ هغوي به واوريدل چه الله تعالیٰ آسمان د دنيا ته راکوزيږي نو دا اشکال به ئے نهٔ کولو چه په عرش باقي پاتے کيږي او که نهٔ۔ دارنګه يَدُ اللهِ (د الله لاس) څـنـګـه دے؟۔ دا خبرے په هغوي کښې نهٔ وے۔او پدے کښې تاويل کول د هغے نه انکار دے او د الله تـعـالیٰ د صـفـاتو نه به په خپل ګمان سره انکار نشي کيدے لکه جهميه او معطله ؤ چه د الله د اسماء او صفاتو نه انکار کړيدے، سلفو صالحينو نورو مبتدعينو ته کافران نهٔ دي وئيلي او جهميه ؤ ته ئے وئيلي دي څکه چه د دوي عقيده د الله د صفاتو په باره کښې ډيره خرابه وه۔ امام بخاريؒ او ابو داودؒ په خپلو کتابونو کښې، دغه شان پنځه سوه علماؤ په هغه دور کښې د جهميه ؤ په کفر فتوے ورکړے۔

دے نـه هم معلوميږي چه د اسماء او صفاتو عقيده پيژندل ډير ضروري دي۔ د اسماء او صفاتو نـه د انکار عقيده جَهُم بن صفوان راپيدا کړے وه چه دهٔ دا عقيده د جعد بن درهم نه اخستے وه چه دا يو بدعتي وو، د الله د صفاتو منکر وو، خالد بن عبد الله القسري ګورنر دا د لوئي اختر په ورځ ددے غلطے عقيدے په وجه ذبح کړے وو چه پدے سره د اهل سنتو زړونه يخ او ډير خوشحاله شو۔ جعد بن درهم دا عقيده د ابن السمعان نه او هغه د ابن طالوت نه اخستے وه او ابن طالوت د لبيد بن الاعصم يهودي نه اخستے وه چه دا د هغه خورئے وو۔ او لبيد هغه ناولے انسان وو چه په نبي ﷺ ئے جادو کړے وو۔ څوک چه د الله په اسماء او صفاتو کښې تاويلات کوي نو هغوي کښې ډيرے غلطے عقيدے پيدا شويدي چا کښې د وحدة الوجود عقيده راغله لکه ابن عربي، ابن السبعين، تلمساني، بايزيد بسطامي او حسين بن منصور الحلاج او بعض مشرانو د ديوبنديانو او د بعض نورو ډلو مشران چه الله تعالیٰ او مخلوق به ئے يو ګنړل۔ او ددے دپاره ئے دا طريقے خودلي دي چه (العياذ بالله) الله تعالیٰ به يو درياب فرض کړے او ځان به يو څاڅکے د

دریاب اُوګنړے۔

دارنګه ددے تاویلاتو په وجه د الله د وجود نه انکار راځي۔ بعض متکلمین وائي: الله نۀ بره دے او نۀ خکته او نۀ ښی او نۀ ګس طرفته دے۔بلکه د معدوم تصور ئے کړیدے۔جهمیه وائي: (العیاذ بالله) د الله نۀ علم شته او نۀ حیاة او نۀ قدرت۔ او نۀ ئے کلام شته او نۀ الله په آخرت کښ لیدلے شي۔

جامع الرسائل لابن تیمیه ص (۲۱۷) واجتماع الجیوش الاسلامیة ۱/۶۳) لابن القیمؒ۔

﴿إِنَّ اللَّهَ وَاسِعٌ عَلِيمٌ﴾ واسع: ۱- ددے یو معنیٰ د فعل متعدی ده، په معنیٰ د مُوَسِّع سره یعني په دیني احکامو او نورو څیزونو کښ په بندګانو فراخي راوستونکے۔

۲- فراخه علم والا دے۔ نو دا صفت په اعتبار د علم سره دے۔

۳- فراخه رحمت او ورکړے والا دے۔ ٤- فراخه فضل والا دے۔

٥- واسع المغفرة (فراخه بخنے والا) دے۔ (قرطبيؒ)۔

**فائده**: د واسع او علیم حواله ئے ورکړه، دے ته اشاره ده چه انسان هر ځائے وی او مونځ او عبادت کوی نو الله تعالیٰ ورسره په علم او قدرت دے ځکه چه هغه واسع دے او علیم دے۔

| وَقَالُوا اتَّخَذَ اللَّهُ وَلَدًا ۗ سُبْحَانَهُ ۖ بَل |
| --- |
| او وائي دوی چه نیولے دے الله بچے (نازولے)، پاك دے الله تعالیٰ (د بچي نیولو نه) بلکه |
| لَّهُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ۖ كُلٌّ لَّهُ قَانِتُونَ ﴿۱۱۶﴾ |
| د هغۀ په اختیار کښ دی هغه څۀ چه په آسمانونو او زمکه کښ دی، ټول د هغۀ تابعدار دی۔ |

**تفسیر**: اُوس الله د دوی بله بدی بیانوی چه دا یهود او نصاریٰ ځان جنتیان هم ګنړی او مینځ کښ الله له اولاد وائي، یهود وائي عزیر ؑ د الله ځوی دے، او نصاریٰ وائي عیسیٰ ؑ د الله ځوی دے او مشرکانو کښ هم دا مرض دے۔ هغوی وائي (اَلْمَلَائِكَةُ بَنَاتُ اللهِ) ملائك د الله لونړۀ دی۔ نو د دوی نه هم د اِلٰه په تصور کښ فتور او نقصان راغلے دے او دوی د دین د اساس یعني د عقیدۀ توحید نه اَوړیدلی دی کوم چه د ټولو رسالتونو او نبوتونو بنیادی او صحیح تصور وو، هغه دوی خراب کړو او د الله تعالیٰ د ذات او صفاتو په باره کښ د نورو جاهلي تصوراتو سره ملاؤ شو۔ نو الله تعالیٰ د دوی دا تصور غلط ثابتوی او د دوی تکذیب کوی چه دوی دروغ وائي، الله تعالیٰ د دوی د باطلو دعوو نه پاك دے۔ د آسمان او زمکے ترمینځ چه څۀ دی، هغه ټول د الله تعالیٰ مملوك او بندګان دی او الله تعالیٰ ته عاجزي او انکساري کوی، نو د بندګانو نه یو څوك د الله بچے څنګه کیدے شي؟!، اولاد خو د دوو

مشناسب ذاتو د ارتباط نه پیدا کیږي او د الله هیڅوك شریك او نظیر (مشابه) او مثل نشته، او نۀ د هغه بي بي شته نو څنګه د الله ځوی پیدا کیدے شي ؟!.

د صحیحینو په روایت کښ دي چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل : «د الله نه زیات څوك صبر کونکے نشته چه د اذیت (ضرر) خبرے آوري، خلق وائي، الله ځوی نیولے دے بیا هم الله هغوی ته رزق ورکوي او عافیت سره ئے ساتي».

په صحیح بخاري کښ د ابن عباسؓ په حدیث کښ دي، الله تعالیٰ فرمائي : «بنده زما تکذیب کوي او دۀ لـه دا نـۀ دي پـکار اوما ته کنځل کوي او دۀ له دا نۀ دي پکار، هر چه دده تکذیب دے ما لره نو دا عقیده لري چه زۀ قادر نۀ یم پدے چه دے دوباره راژوندے کړم لکه څنګه چه مخکښ پیدا شوے وو. او هرچه کنځل دده دي ما ته نو دده دا وینا ده چه ما اولاد نیولی دی، حال دا چه زۀ پاك یم ددے نه چه زۀ ښځه او اولاد ځان له اُونیسم».

**زموږ** بعض مشائخ وائي : پدے آیت کښ هم یهود او نصاریٰ او مشرکینو ته په عقیده د اتخاذ الولد باندے زجر دے چه دوی د الله تعالیٰ دپاره د اولادو قائل دي. او د شپږمے شبهے جواب دے چه هرکله قرآن کریم کښ ځائے په ځائے د عامو انبیاء علیهم السلام او خصوصاً د عیسیٰ ﷺ او د ملائکو عبدیت او عجز بیان شونو دوی اعتراض اُوکړو چه تاسو د الله د انبیاؤ او ملائکو بے ادبي کوئ، تاسو ورته بندګان وایئ او حال دا چه دا خو د الله تعالیٰ اولاد (یعني نازولي) دي. نو جواب اُوشو چه ستاسو دا خبره غلطه ده او الله تعالیٰ ددے نه پاك دے او دا په اصل کښ الله تعالیٰ ته کنځل کول دي. لکه حدیث قدسي کښ دي. الله تعالیٰ فرمائي: «بنیادم ما ته کنځل کوي دا وائي چه ما ولد نیولے دے او حال دا چه زۀ صمد (بے حاجته) ذات یم، زما اولاد او پلار، او مثل هیڅوك نشته (صحیح بخاري)

او الله ددے بدو نسبتونو نه پاك دے.

**ربط** : دوی ځان ته جنتیان وائي او حال دا چه عقیده ئے غلطه ده، الله تعالیٰ ته د اولادو نسبت کوي.

﴿ اتَّخَذَ اللَّهُ وَلَدًا ﴾ ولد په دوه قسمه دے (۱) یو ولد حقیقي چه د هغه نه پیدا وي، نو یهود او نصاریٰ او مشرکانو د الله په باره کښ داسے نۀ وئیل، د ډیرو کمو جاهلانو به دا عقیده وه.

(۲) دویم ولد حکمي دے چه د الله تعالیٰ دپاره بعض بندګان د بچو په شان اُوګڼړي او دا د عامو مشرکانو عقیده وه څکه عامو مشرکانو او یهود او نصاراؤ الله تعالیٰ لره حقیقي اولاد نۀ ګنړل بلکه حکمي اولاد ئے ګنړل چه دیته وَلَدٌ حُنُوٍ وَشَفَقَةٍ وائي، یعني د مینے او شفقت بچے ئے نیولے دے. چه دیته نازولے وائي یعني لکه څنګه چه یو بچے نازولے وي، پلار ته ډیر ګران وي، پلار د

هغه خبره نۀ غورزوی نو هغه په پلار باندې مجبوراً بعض کارونه کوی نو د دوی هم دا عقیده وه چه عیسیٰ او عزیر او ملائك علیهم السلام او زمونږ معبودان (باباګان) د الله نازولی دی، او دوی به زمونږ دپاره سفارش کوی او په الله تعالیٰ به مونږ په زوره بخښی۔ زمونږ ددې زمانې مسلمانان مشرکان وائی دا اولیاء د الله تعالیٰ نازولی دی نو دا هم په اِتَّخَذَ اللّٰهُ وَلَدًا کښې داخلیږی۔

علامه آلوسیؒ وغیره لیکی: [وَالْاِتِّخَاذُ صَرِيْحٌ فِي التَّبَنِّيْ] د اتخاذ لفظ پدې باندې صراحةً دلالت کوی چه مراد د ولد نه د بچی په شان نیول دی یعنی نازولے مراد دے او حقیقی بچے نۀ دے مراد۔

دارنګه په بچی کښې خصوصیت دا وی چه د پلار نه په بعض کارونو کښې نائب وی، بعض اختیارات ئے هغه ته سپارلی وی، نو دغه شان الله تعالیٰ دے کسانو ته څه اختیارات سپارلی دی۔

دغه شان په بچی کښې د پلار بعض آثار او صفات ښکاره کیږی نو په عزیر ؑ او عیسیٰ ؑ او ملائکو کښې هم (د دوی په نیز) د اُلوهیت څه صفات ښکاره شوی دی۔

نیشاپوریؒ لیکلی دی: چه یهودیانو عزیر ؑ د الله د عِلمونو مَظهَر (ځائے د ښکاره کیدو) ګنړلو چه الله تعالیٰ دۀ ته خپل ټول عِلمونه خودلی دی، ددې وجه نه ئے ورته ابن الله (د الله ځوی) وئیلو او نصاراؤ عیسیٰ ؑ د اُلوهیت د تصرفاتو مَظهر ګنړلو چه الله تعالیٰ دۀ کښې د اُلوهیت او قدرت او تصرف صفات راښکاره کړیدی نو ځکه ئے ورته ابن الله وئیلو۔ [النيسابوری ١٣٤/٤]

بعض مفسرینو لیکلی دی چه دوی دا عقیده د کوم ځائے نه پیدا کړے وه چه د الله تعالیٰ دپاره اولاد وائی؟ نو ددې منشأ دا وه چه په پخوانو کتابونو کښې لکه انجیل وغیره کښې به د الله دپاره لفظ د اب (پلار) استعمالیدو، عیسیٰ ؑ اُووئیل: [اَنَا ذَاهِبٌ اِلٰى اَبِيْ] زۀ پلار خوا ته تلونکے یم)۔ نو روستو جاهلان راغلل او د هغوی غلط تصور جوړ شو او ددې نه ئے حقیقی او طبیعی ولادت مراد کړو، نو پدې وجه زمونږ په شریعت کښې د داسې الفاظو د استعمالولو نه منع اُوشوه کما قال الراغبؒ۔

[تفسير القاسمی ٣٥٢/١] والنيسابوری، والماوردی فی النكت]

نو الله تعالیٰ په دوی باندې په درې طریقو سره رد کوی یو دا چه (سُبْحَانَهٗ) الله تعالیٰ د هر قسم نقصان او عیب نه پاك دے، او الله تعالیٰ دپاره حقیقی ولد کیدل یا نازولے نیول د هغه د الوهیت نقصان او عیب دے۔ او ددې وجه دا ده چه ولدیت تقاضا د جنسیت کوی او جنسیت مستلزم دے حدوث لره او حدوث د الوهیت سره منافی دے۔ دویم دا چه ولدیت مستلزم دے احتیاج لره او الله تعالیٰ د احتیاج نه پاك دے۔

د علی ؓ نه نقل دی چه دۀ بعض نصاراؤ ته اُووئیل: [لَوْلَا تَمَرُّدُ عِيْسٰى عَنْ عِبَادَةِ اللّٰهِ عَزَّ وَجَلَّ

لَصِرْتُ عَلٰی دِيْنِهٖ] كه عيسیٰ عليه السلام د الله د عبادت نه انكار نهٔ كولے نو زهٔ به د هغه په دين شوے وے، نو نصراني اُووئيل : عيسیٰ ته ددے نسبت څنګه صحيح كيدے شي حال دا چه هغه خو به د الله په طاعت كښې ډير كوشش كولو ؟۔ نو عليؓ ورته اُوفرمايل : [فَاِنْ كَانَ عِيْسٰى اِلٰهًا فَكَيْفَ يَعْبُدُ غَيْرَهٗ] هركله چه عيسیٰ اِلٰه شو نو بيا د بل چا عبادت څنګه كوي؟)، عبادت خو صرف د بنده سره لائق وی او تاسو خو ورته اله وايئ نو نصراني غلے پاتے شو۔ (نيشاپوری)

○ دارنګه ولديت تجزی (جزء جوړيدل) غواړی او دا د الو هيت منافي دی۔

○ دارنګه ولديت په بعض صفاتو كښې تشبه غواړی څكه ولد په بعض صفاتو كښې ضرور د والد سره مشابه وی او الله تعالیٰ د تشبيه نه پاك دے۔ ۵- دارنګه پلار والے او څوی والے زوال او فنا غواړی څكه چه څوك بچی نيسي نو د هغهٔ مقصد دا وی چه زهٔ به نهٔ يم دا به زما په ځائے كار وركوی او الله تعالیٰ د زوال نه پاك دے۔ (روح المعاني، احسن الكلام)

عمر فاروق رضی الله عنه به فرمائيل : [اِسْتَذِلُّوْهُمْ وَلَا تَظْلِمُوْهُمْ فَاِنَّهُمْ سَبُّوا اللّٰهَ سُبَّةً مَا سَبَّهٗ اَحَدٌ مِثْلَهُمْ]۔ (تاسو نصاریٰ ذليله كړئ او ظلم پرے مه كوئ څكه دوی زمونږ الله ته ډيرے بدے كنځلے كړی دی چه هيچا دومره نهٔ دی كړی)، الله ته ئے د اولادو نسبت كړے دے۔

(اغاثة اللهفان ۲/۲۸۳ وبدائع التفسير)۔

﴿ بَلْ لَهٗ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ﴾ دا دويم رد دے يعنی آسمانونو او زمكه كښې ټول مخلوق د هغه په تصرف او بادشاهئ كښې داخل دی، او د هغه مخلوق او غلامان دی، او دا صفات د ولديت سره منافي دی څكه چه ولد ته مملوك او رعيت او مرئيے نشي وئيلے۔ او ما في السموات والارض كښې عيسیٰ، عزير او ملائك عليهم السلام ټول داخل دی۔

﴿ كُلٌّ لَّهٗ قٰنِتُوْنَ ﴾ دا دريم رد دے يعني دا ټول د الله تعالیٰ د حكم تابع او منقاد دی، او قيامت كښې به د هغه مخے ته اُودريږی۔ بچے خو خلق دے له غواړی چه څهٔ توره پرے اُوكړی، دشمن پرے اُووهی۔ او الله ته ټول مخلوق عاجز دے نو د هغه بچی ته څهٔ ضرورت ؟!۔

د قنوت معنیٰ تابعداری او اطاعت ده، د ملائك، انبياء او نيكانو خلقو قنوت شرعي دے چه الله ته سجده كوی او د هغه عبادات كوی۔ او د عامو څيزونو قنوت (تابعداری) تكويني ده۔ د الله د امر تابع دی، الله چه پرے څهٔ كوی نو كولے شي۔

قرطبیؒ او ابن كثيرؒ وغيره د قنوت ډيرے معاني ذكر كړيدی : طاعت، په عبادت كښې اُودريدل۔ سكوت (غلے كيدل)، خضوع، انقياد، اخلاص، استكانة (عاجزی) صلاة (مونځ) او د بندګئ اقرار كول۔ كله اُوږد قيام، كله قراءة او كله دعاء او كله هغه دعاء ته هم وائی چه د وترو پورے خاص ده۔

دلته ئې معانی دا دی : (۱) حسنؒ وائی : كُلٌّ لَّهٗ قَائِمٌ بِالشَّهَادَةِ عَلٰی اَنَّهٗ عَبْدٌ لَّهٗ). دا ټول الله تعالیٰ ته پدې ګواهئ ولاړ دی چه دوی د الله بندګان دی۔
(۲) كُلٌّ لَّهٗ قَائِمٌ يَّوْمَ الْقِيَامَةِ)۔ (ربیع بن انسؒ)۔
دا ټول به الله تعالیٰ ته د قیامت په ورځ اُودریدونکی وی۔ لکه الله فرمائی : ﴿ يَوْمَ يَقُوْمُ النَّاسُ لِرَبِّ الْعَالَمِيْنَ ﴾ (المطففین) ټول خلق به رب العالمین ته د حساب دپاره اُودریږی۔
(۳) كُلٌّ لَّهٗ مُقِرُّوْنَ بِالْعُبُوْدِيَّةِ اِمَّا قَالَةً وَاِمَّا دَلَالَةً) (عکرمة والسدیؒ)۔
دا ټول الله دپاره د خپلې بندګئ اقرار کوی یا په ویٖنا سره یا د هغوی په حالت سره)۔
(٤) بعض وائی: مُذَلَّلُوْنَ مُسَخَّرُوْنَ لِمَا خُلِقُوْا لَهٗ. (کوم مقصد له چه پیدا دی نو هغې ته تابعدار دی)۔ (قرطبی۱٤/۱٦ والبغوی۱/۱٤۱)
**فائده** : په اول کښې ئې (مَا) کلمه راوړه چه اکثر د غیر ذوی العقولو دپاره استعمال ده پدې کښې مقام د اُلوهیت ته اشاره ده او پدې کښې عقلاء په منزله د جماداتو دی۔ او په دویم کښې ئې (قَانِتُوْنَ) د ذوی العقولو جمع راوړه پدې کښې مقام د عبودیت ته اشاره ده او پدې کښې جمادات په منزله د عقلاؤ دی۔ (روح المعانی)

بَدِيْعُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَاِذَا قَضٰٓى اَمْرًا فَاِنَّمَا يَقُوْلُ لَهٗ كُنْ فَيَكُوْنُ ﴿۱۱۷﴾

ناشنا پیدا کونکے د آسمانونو او د زمکے دے، او کله چه فیصله کوی د یو کار نو وائی هغې ته چه شه نو هغه اوشی۔

**تفسیر** : دا څلورمه طریقه د رد ده چه الله تعالیٰ د بغیر د مثال نه د آسمانونو او زمکو موجودونکے دے نو د هغه اولاد و ته څه ضرورت دے!!۔ عیسیٰ او عزیر او ملائك علیهم السلام ټول هم ددے ګواهی کوی چه آسمانونه او زمکه الله تعالیٰ پیدا کړیدی۔
ابن جریرؒ او ابن کثیرؒ وائی چه پدے کښې یو قسم اشاره ده چه کوم ذات آسمانونه او زمکے بغیر د مثال نه نوی پیدا کړیدی همدغه ذات عیسیٰ علیه السلام لره بغیر د والد نه په خپل قدرت پیدا کړیدے۔ نو هغه د الله مخلوق دے، والد نهٔ لری۔ نو هغه څنګه د الله ځوی کیدے شی ؟!۔
آلوسیؒ وائی : الله فاعل دے علی الاطلاق، په څیزونو کښې اثر کوی، هغه منفعل نهٔ وی یعنی اثر نهٔ قبلوی او والد خو منفعل وی څکه چه د هغه نه ماده ولد ته نقل شوی وی، نو د الله څنګه ولد راشی ؟!۔
(بَدِيْعُ) الله ته بدیع څکه وائی چه مخکښې د آسمانونو او زمکو مثال نهٔ وو او بے مثاله ئې پیدا کړل۔ [اَیْ خَالِقُهُمَا مِنْ غَيْرِ مِثَالٍ سَبَقَ] (مجاهد والسدی) (ابن کثیر)

(آسمان او زمکے لره بغير د مخکني نمونے او مثال او نقشے نه ابتداءً پيدا کونکے دے)۔
علامه آلوسيؒ د امام راغبؒ نه نقل کوي: [مُوْجِدُهُمَا بِغَيْرِ آلَةٍ وَّلَا مَادَّةٍ وَّلَا زَمَانٍ وَّلَا مَكَانٍ] (يعني آسمان او زمکه ئے بغير د آلے، مادے، زمانے او مکان نه پيدا کړيدي)۔

## د بدعت پيژندنه

بديع لفظ په قرآن کريم کښ دوه کرته استعمال دے. يو ځل دلته او بل سورة انعام (۱۰۱) آيت کښ. بديع د بدعت نه ماخوذ دے، په لغت د عربو کښ بِدْعَةً، اِبْدَاعً، بَدْعٌ يو شے بغير د نمونے او مثال نه ابتداءً (نوي) پيدا کولو ته وائي، او مبدع او بديع هغه چا ته وائي [اَلْمُنْشِئُ وَالْمُحْدِثُ مَا لَمْ يَسْبِقْهُ اِلَى اِنْشَاءِ مِثْلِهٖ وَاِحْدَاثِهٖ اَحَدٌ] (ابن كثير) (هغه شے راپيدا کونکے چه د هغے په شان مخکښ چا پيدائش نهٔ وي کړے)۔ او دیته فاطر هم وائي۔
او بدعت په دين کښ يو نوے شے پيدا کول چه د هغے تائيد په قرآن او سنت کښ نهٔ وي او انسان ئے ثواب او دين ګڼړي لکه په حديث د سُنَنو کښ دي (كُلُّ بِدْعَةٍ ضَلَالَةٌ) (په دين کښ هر نوے کار پيدا کول ګمراهي ده) او حديث کښ دي: «چا چه زمونږ په دين کښ يو نوے کار پيدا کړو چه د دين نه ئے اصل (دليل) نهٔ وي نو هغه مردود دے»۔ (صحيح مسلم)۔
بدعت په دوه قسمه دے: لغوي او شرعي۔ لغوي بدعت مخکښ تير شو چه يو نوے شے پيدا کولو ته وائي۔ پدے کښ حسنه او سيئه (ښه او بد) دواړه شته، مثلاً که ناروا کارونه پيدا کړي، د ګمراهي سامان جوړ کړي نو دا سيئه شو او که ښه شے ايجاد کړي لکه لاوډ سپيکر، جهاز موټر وغيره۔ او دين ئے نهٔ ګڼړي نو دا حسنه شو۔ يا د دين د ترقئ ذرائع لکه تصنيف او تاليف او مدارس جوړول نو دا که بعينه دين نهٔ ګڼړي صرف د دين د ترقي ذريعه ئے ګڼړي نو دا بدعت حسنه شو۔ او دیته بدعتِ لغوي او بدعت للدين وائي۔ لکه سيدنا عمر فاروق رضی الله عنه چه کله ملګري په تراويحو کښ په جماعة سره راجمع کړل او بيا ئے اُووئيل: (نِعْمَتِ الْبِدْعَةُ هٰذِهٖ) (ډيره ښه او ناشنا کارنامه مے اُوکړه)۔ نو دا بدعت لغوي دے ځکه چه تراويح او په هغے کښ جماعت کول د نبي ﷺ نه ثابت وو ليکن په يو امام راجمع کول ناشنا کارنامه وه ځکه چه د نبي ﷺ د زمانے نه روستو به خلقو تراويح يواځے يواځے کولے خو عمر رضی الله عنه راجمع کړل۔ نو دا يوه نوے کارنامه وه۔ او ددے دپاره په دين کښ اصل شته۔
(۱) دويم بدعت شرعي دے [اِحْدَاثُ فِعْلٍ اَوْمَقَالٍ عَلٰى غَيْرِ مِثَالٍ سَابِقٍ فِى الدِّيْنِ] په دين کښ يو نوے کار يا خبره راپيدا کول چه د هغے مثال مخکښ په دين کښ نهٔ وي) يا [مَا لَا اَصْلَ لَهٗ فِى الشَّرْعِ] (هغه شے راپيدا کول چه د هغے په دين کښ هيڅ اصل او دليل نهٔ وي موجود)

علامه شاطبیؒ ئې داسې تعریف کوی: [اَلْبِدْعَةُ: طَرِيقَةٌ فِي الدِّينِ مُخْتَرَعَةٌ تُضَاهِي الشَّرْعِيَّةَ يُقْصَدُ بِالسُّلُوكِ عَلَيْهَا الْمُبَالَغَةُ فِي التَّعَبُّدِ لِلّٰهِ سُبْحَانَهُ]. بدعت په دین کښې یوه نوې طریقه پیدا کولو ته وائی چه هغه د شریعت سره مشابه وی او په هغه طریقه باندې عمل کولو کښې مقصد دا وی چه د الله تعالیٰ په بندګئ کښې مبالغه او زیادت اُوکړې شی).

او دیته بدعت حقیقی هم وائی. لکه د خوارجو بدعت شو چه په دین کښې ئې غلطې عقیدې پیدا کړېدی، مسلمانانو ته کافر وائی. او جهمیه شو چه د الله تعالیٰ د اسماء او صفاتو منکرین دی، او شیعه ګان شو چه علی رضی الله عنه ته اِله وائی.

دارنګه د قبرونو نه طوافونه کول، جنډې، او غلافونه پرې اچول، ګنبدونه پرې جوړول او هغې کښې عرسونه او میلادونه کول او هلته چهلې ویستل، دا ټول د شریعت خلاف دی. او پدې قسم بدعت کښې حسنه او سیئه نهٔ وی بلکه دا ټوله ګمراهی ده. او په (كُلُّ بِدْعَةٍ ضَلَالَةٌ) کښې داخل دی. دا به کله مُکَفِّره بدعت وی (چه انسان به کفر ته رسوی) او کله به غیر مُکفره وی چه انسان به کفر ته نهٔ رسوی لیکن ګناهِ کبیره به وی.

بعض خلق دا قسم بدعت حسنه او سیئه ته تقسیموی او دا چالاکی کوی وائی چه (كُلُّ بِدْعَةٍ ضَلَالَةٌ) موجبه کلیه ده چه عکس ئې (بَعْضُ الْبِدْعَةِ لَيْسَ بِضَلَالَةٍ) راځی. لیکن مونږ وایو چه دا تقسیم هم بدعت دې، علماؤ دا په بدعاتو کښې شمارلې دې. اُوګوره السنن والمبتدعات.

او پاتې شوه دغه عکس راتلل نو مونږ وایو چه د تحقق د عکس او نقیض دپاره خو شرط دا دې چه یوه قضیه به صادقه وی او بله به کاذبه وی، دواړه صادقې کیدې هم نشی او دواړه کاذبې کیدې هم نهٔ شی، نو آیا د رسول الله ﷺ (كُلُّ بِدْعَةٍ ضَلَالَةٌ) صادقه اُوګنړو او که د ځان نه جوړه شوې (بَعْضُ الْبِدْعَةِ لَيْسَ بِضَلَالَةٍ) صادقه اُوګنړو ؟! ښکاره خبره ده چه كُلُّ بِدْعَةٍ ضَلَالَةٌ صادقه ده نو بل طرف کاذب شو. لهٰذا پدې کښې بعینه رد دې پدې خبره چه په بدعت کښې تقسیم نشته.

(۲) یو بل قسم د بدعت، بدعت اضافی دې چه د یو عبادت او د عمل اصل په دین کښې ثابت وی لیکن د هغې مقدار یا هیئت یا د وخت تخصیص د ځان نه بې دلیله مقرر کړی او بیا دیته ثواب وائی. لکه احتیاطی مونځونه کول، قضاء عمری کول، خاص د جُمعې په شپه صدقات کول، سنت او فرضو او جنازو نه روستو په اجتماعی شکل سره دعاګانې کول او بیا پدې باندې التزام او دوام کول او د فدیئې دپاره حیله اسقاط کول، ذکرونه په چغو سره کول او د اذان نه مخکښې په جهر سره درودونه وئیل دا ټول هلاکونکی بدعات دی. دارنګه د سنت طریقو شکلونه بدلول. بدعت د شرك یو جال دې چه اکثر انسان شرك ته راکاږی ددې وجه نه اکثر

مبتدعین مشرکان وی۔ او ابلیس ته بدعت په تولو ګناهونو کښې ډیر خوښ وی ځکه چه خلق ترې توبه نهٔ اُوباسی هغه ثواب ګنړی۔

﴿ وَاِذَا قَضٰٓى اَمْرًا ﴾ دا پښځم رد دے چه هرکله الله تعالیٰ په خپلو ارادو پوره کولو کښې اسبابو ته حاجت نهٔ لری او هیڅ مراد د هغه د ارادے نه نشی روستو کیدے او نهٔ مخالف کیدے شی نو د هغه ولد حقیقی یا نازولی ته هیڅ حاجت نشته۔ د هغهٔ چه کله یو کار ته اراده اُوشی نو سمدست شوے وی۔ او پدے کښې رد دے چه عیسیٰ ؑ هم بغیر د پلار نه په کلمه د کُنْ پیدا دے۔ او دغه ملائک په کلمه د کُنْ پیدا دی، او عزیر ؑ هم د الله مخلوق او پیدا شوے بنده دے نو هغه کله د الله تعالیٰ نازولے کیدے شی؟!۔

قَضٰی : کله په معنیٰ د (۱) د دوه کسانو ترمینځ فیصله کولو سره وی۔

(۲) کله په معنیٰ د حکم سره وی [وَقَضَيْنَآ اِلٰى بَنِىٓ اِسْرَآءِيْلَ ﴾ (الاسراء: ۴)۔

(۳) کله په معنیٰ د ارادے سره وی لکه دلته ئے دا معنیٰ ده۔

(٤) کله په معنیٰ د بیان سره وی۔ لکه قرطبیؒ ددے اته معانی ذکر کړیدی۔ او بیائے وئیلی دی چه ددے تولو رجوع دے ته کیږی چه یو شے سرته اُورسیږی او منقطع شی۔ دا اصل معنیٰ د قَضٰی ده۔

اَمْرًا : امر کله چه معنیٰ د دین سره وی لکه : [مَنْ اَحْدَثَ فِىْ اَمْرِنَا] (مسلم) ﴿ وَاِسْرَافَنَا فِىْٓ اَمْرِنَا ﴾ (آلعمران ۱٤۷) (۲) کله په معنیٰ د حکم سره وی۔ (۳) کله په معنیٰ د شان سره وی۔ قرطبیؒ ددے څوارلس معانی ذکر کړیدی۔ دلته د امر نه مراد هر کار او فعل دے۔

﴿ فَاِنَّمَا يَقُوْلُ لَهٗ كُنْ فَيَكُوْنُ ﴾ بعض متکلمین وائی : د الله قول او وینا او خبرے نشته نو د یو شی د موجودولو په وخت هغې ته څنګه کُنْ اُووائی؟۔ نو ددے وجه نه هغوی پدے کښې دا تاویل کوی چه کُنْ لفظ د ارادے متوجه کولو نه کنایه ده یعنی اراده ورته متوجه کړی۔ دا تاویل غلط دے، وجه دا ده چه اراده متوجه کول د الله تعالیٰ جدا صفت دے۔ او کُنْ لفظ استعمالول جدا صفت دے الله تعالیٰ د (کُنْ) کلمه استعمالوی۔

**سوال:** یو شے به یا موجود وی یا به معدوم (نشت) وی که موجود وی او خطاب ورته کوی چه کُن (شه) دا خو تحصیل د حاصل دے چه بے فائدے کار دے۔ او که شے معدوم (نشت) وی نو نشت ته څنګه خطاب اُوشی چه شهٔ۔؟

**جواب** دا دے چه معدوم دوه قسمه دے (۱) یو معدوم حقیقی دے چه الله ئے بالکل نهٔ موجودَوی او د هغه د وجود اراده ئے نهٔ وی کړی نو دے ته کُنْ لفظ نهٔ استعمالوی۔ او دویم معدوم په درجه د امکان کښې وی چه الله تعالیٰ ئے اراده کړے وی چه موجود شی نو هغې ته خطاب

کیږی، دا مَاحَضَرَ فِیْ عِلْمِ اللهِ ته خطاب دے۔ یعنی کوم شے چه د الله تعالیٰ په علم کښې وی او د هغے د موجودولو اراده ئے کړی وی چه زۀ ئے موجودوم نو هغے ته خطاب اُوکړی چه اے شیه! موجود شه نو هغه سمدست موجود شی، او د الله د ارادے نه د هغے تخلف نۀ کیږی۔ او دا معدوم محض نۀ دے۔ بلکه معلوم ته خطاب شو۔ او ددے مثال داسے وی لکه یو مصنف چه کله کتاب لیکی نو په خطبه کښې اُووائی (فَهٰذَا کِتَابٌ) (دا کتاب دے) او حال دا چه کتاب ئے لا نۀ وی لیکلے مخکښې وائی دا یو کتاب دے یعنی دا زما ذهن کښې چه کوم علوم او معارف موجود دی دا یو کتاب دے۔

ددے نه داسے تعبیر هم کیدے چه شے په دوه قسمه دے یو موجود خارجی وی او بل موجود علمی او ذهنی وی، دلته هغه شے اګرکه موجود خارجی نۀ دے بلکه موجود عِلمی دے نو خطاب ورته صحیح دے۔

**دویم جواب:** قرطبیؒ او ماوردیؒ وغیره وائی چه ددے مقصد دا وی چه هر شے د الله په امر سره موجودیږی او د هغه امر نه نۀ مخکښې موجودیدے شی او نۀ روستو کیدے شی۔

فَیَکُوْنُ: نو کوم شے چه د الله تعالیٰ په علم کښې حاضر دے هغه خارج ته رابهر شی او موجود شی۔ (فَیَکُوْنُ) دا خبر د مبتداء دے ای فَهُوَ یَکُوْنُ۔(یعنی هغه شے موجود شی) او دا جواب د امر نۀ دے۔

| وَقَالَ الَّذِیْنَ لَایَعْلَمُوْنَ لَوْلَا یُکَلِّمُنَا اللهُ اَوْ تَاْتِیْنَآ اٰیَةٌ |
|---|
| او وائی هغه کسان چه نۀ پوهیږی، ولے خبرے نۀ کوی مونږ سره الله تعالیٰ، یا ولے نۀ راځی مونږ ته یوه معجزه |
| کَذٰلِكَ قَالَ الَّذِیْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ مِّثْلَ قَوْلِهِمْ تَشَابَهَتْ |
| (نبیه په رسالت ددۀ) دغسے وئیلی دی هغه کسانو چه ددوی نه مخکښې وو، ددوی د خبرو په شان۔ مشابه شویدی |
| قُلُوْبُهُمْ قَدْ بَیَّنَّا الْاٰیٰتِ لِقَوْمٍ یُّوْقِنُوْنَ ﴿۱۱۸﴾ |
| زړونه د دوی (د یو بل سره)، یقیناً مونږ بیان کړی دی (دیر) آیتونه (نبیه) د هغه خلقو دپاره چه یقین لری۔ |

**تفسیر:** عنوان د آیت دے : (اَلزَّجْرُ لِمَنْ یَّطْلُبُ خَوَارِقَ الْعَادَاتِ مِنَ النَّبِیِّ ﷺ)۔

(پدے آیت کښې زجر دے هغه چا ته چه د نبی ﷺ نه د ناشنا څیزونو راوړلو مطالبه کوی)

**ربط :** هرکله چه الله د یهودو او د نصاراوٗ او ورسره د مشرکانو د باطلو عقیدو تصحیح اُوکړه، نو اُوس (بیا په یو قول) د مشرکانو اقوال راخلی کوم چه د مقام د اُلوهیت خلاف دی او د اهل کتابو د عقائدو او اقوالو سره مشابه دی۔

هرکله چه د یهودیانو او مشرکانو نورے خبرے ختمے شوے، الله تعالیٰ بنهٔ راګیر کړل نو په آخره کښې ئے دا اُوئیل چه ستا نبوت به مونږه هله منو چه ستا رب مونږ سره مخامخ خبرے اُوکړی، یا داسے معجزه راوړه چه مونږه ئے غواړو نو مونږ به هله اُومنو۔ نو الله تعالیٰ ورله پدے خبره رد کوی او زجر ورکوی چه یهود او نصاراؤ هم داسے مطالبه کړے وه نو دا مشرکین د قریشو په غلطو مطالبو کښې د یهودو او نصاراؤ سره مشابه دی۔ ایمان نهٔ راوړی، معجزات او نخے صرف د تعنت او ضد په طریقه غواړی، ولے که دوی ایمان راوړے نو د ایمان د راوړو او د رسول الله ﷺ او د قرآن په صدق او رشتین والی مونږ ډیر واضحه دلائل او معجزات بیان کړیدی هغه د دوی د ایمان دپاره کافی دی۔

نو الله دا یهود او مشرکان ټول خان ته مخاطب کړی دی۔ او دا ټول ئے راګیر کړی دی خو اول مقصود پکښې یهود دی او نصاریٰ پکښې ضمناً داخل دی او بیا پکښې مشرکان هم داخل دی۔ ځکه دا ټول یو شان دشمنان دی۔

**د مفسرینو** درے اقوال دی چه د دوی نه څوک مراد دی؟

۱- د ابو العالیة، ربیع بن انس، قتادهؒ او سدیؒ وغیره علماؤ رائے دا ده چه دا آیت د عربو مشرکانو په باره کښې نازل دے چه دوی د رسول الله ﷺ نه دا سوال کړے وو چه که ته د الله رسول ئے نو الله مونږ سره ولے خبرے نهٔ کوی او ولے مونږ ته دا نهٔ وائی چه دا زما رسول دے، ددهٔ خبره اُومنئ۔ او دا آیت به د سورة الفرقان د آیت (۲۰) په شان وی چه هغے کښې فرمائی:

﴿ وَقَالَ الَّذِيْنَ لَا يَرْجُوْنَ لِقَاءَ نَا لَوْلَا اُنْزِلَ عَلَيْنَا الْمَلٰٓئِكَةُ اَوْ نَرٰى رَبَّنَا ﴾

(وائی هغه کسان چه زمونږ د ملاقات امید نهٔ لری چه ولے مونږ باندے ملائک نهٔ نازلیږی یا ولے مونږ رب نهٔ وینو)۔

ددے رائے مطابق د (اَلَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ) نه مراد به یهود او نصاریٰ وی۔

(۲) د امام مجاهدؒ رایه دا ده چه دا آیت د نصاراؤ په باره کښې نازل دے۔ او د (اَلَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ) نه مراد به یهودیان وی۔ او دا قول ابن جریرؒ غوره کړیدے لیکن پدے کښې نظر شته، دا د سیاق سره ډیر موافق نهٔ دے۔

(۳) او د ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دے چه رافع بن حُریمله یهودی اعتراض کړے وو۔ نو دا آیت نازل شو۔ حافظ ابن کثیرؒ او شوکانیؒ اول قول ته ترجیح ورکړیده۔ او مطلب به دا وی چه الله پدے آیت کښې مشرکین عرب مشابه کړل د یهودیانو او نصاراؤ سره په طلب د هغه څیزونو کښې چه د هغے طلب صحیح نهٔ دے۔

لیکن غوره دا ده چه آیت عام دے هر چا ته شامل دے، یهودی وی که نصرانی او که مشرك وی او غلطے مطالبے کوی نو الله تعالیٰ د هغے جواب ورکوی۔ او د (ٱلَّذِينَ مِن قَبۡلِهِم) نه مراد مخکنی کفار دی چه د انبیاؤ نه به ئے د خپلے مرضیٔ مطابق معجزات غوختل، یعنی دا روستنی کفار د مخکنو کافرانو په شان دی، زړونه ئے په کفر کښې او په غلطو مطالباتو کښې یو شان شویدی۔ مخکنو کافرانو چه کوم اعتراضونه او ضدونه کړیدی نو دا روستنی ئے هم هغسے کوی۔

﴿لَا يَعۡلَمُونَ﴾ دا اولنے رد دے او مطلب ئے دا دے چه څوك داسے مطالبات کوی نو هغه جاهل دے۔ یعنی بے علمه دے، مخکښې ئے هم ورته جاهلان اُووئیل۔ وجه دا ده چه الله تعالیٰ درسره خبرے اُوکړی او تا ته داسے اُووائی چه دا زما رسول دے، یا درته اُووائی چه داسے داسے اُوکړه نو بیا خو تهٔ د هغه پیغمبر شوے، تهٔ خو بیا ډیر لوئی سړے شوے، او دارنګه تهٔ خو بیا مکلف نهٔ شوے، تا خو د پیغمبر په وینا د هغه رسالت او نبوت اُونهٔ منلو بلکه خپله مشاهده سره ډے اُومنلو۔ نو دا ایمان بالغیب نهٔ شو۔ او الله خو دا نظام ددے دپاره پیدا کړے دے چه په بندګانو امتحان اُوکړی۔ بله دا چه الله تعالیٰ ډیر لوئی ذات دے، عام بندګانو کښې دا طاقت نشته چه الله تعالیٰ ورسره په دنیا کښې خبرے اُوکړی، دا خو د الله د لوئی والی او عظمت نخه ده چه بندګان ئے دنیا کښې نشی لیدلے۔

﴿أَوۡ تَأۡتِينَآ ءَايَةٌ﴾ د «آيَةٌ» نه مراد هغه معجزه او نخه ده چه د مشرکانو د مرضیٔ مطابق وی، معجزے خو ډیرے راغلے وے، د قرآن هر آیت معجزه ده نو دوی وائی مونږه مطلوبه معجزه غواړو۔ لکه د مکے مشرکانو به همیشه دا مطالبے کولے، وئیل به ئے :« مونږ الله لیدل غواړو۔ که تهٔ د الله رسول ئے نو یو ملائك تاسره ولے نهٔ راځی چه خلقو ته دعوت ورکړی چه دا د الله رسول دے۔ که تهٔ د الله رسول ئے نو تا سره خزانه ولے نشته، یا دا چه پکار ده چه تاسره د کجورو او انګورو باغونه وے» ۔ د دوی مقصد د هدایت طلب کول نهٔ وو بلکه شرارت او فتنه راپورته کول وو، ورنه الله تعالیٰ خو د خپلو انبیاء او رسولانو سره د انسانانو د هدایت دپاره همیشه نخے او معجزات رالیږلی دی۔ آیا دا قرآن ګنے معجزه نهٔ ده ؟ او رسول الله ﷺ دوی ته څهٔ کم معجزات خودلی وو ؟! خو دا خلق ضدیان دی۔

نو دویم رد پرے کوی : ﴿كَذَٰلِكَ قَالَ ٱلَّذِينَ مِن قَبۡلِهِم﴾ یعنی دغه شان مطالبے ستاسو نه مخکنو مشرکانو او کافرانو هم کړے وے۔ یهودیانو موسیٰ ﷺ ته وئیلی وو چه مونږ ته الله ښکاره راوخایه۔ ﴿مِّثۡلَ قَوۡلِهِمۡ﴾ او دوی د مطالبے په طریقه کښې هم د پخوانو کافرانو په شان دی چه په ضد او تعنت سره به ئے معجزات طلب کول۔ او بیا به ئے نهٔ منل۔ لکه ثمودیانو د صالح ﷺ نه طلب کړے وو ﴿فَأۡتِ بِـَٔايَةٍ إِن كُنتَ مِنَ ٱلصَّٰدِقِينَ﴾ (الشعراء:۱۵۴) د شعیب ﷺ قوم د هغه نه مطالبه کړے

وه۔ ﴿فَاَسْقِطْ عَلَيْنَا كِسَفًا مِّنَ السَّمَاءِ اِنْ كُنْتَ مِنَ الصَّادِقِيْنَ﴾ [الشعراء:۱۸۷]

او د مکې مشرکانو مطالبه کړې وه لکه د سورة الاسراء په آيتونو (۹۰،۹۱،۹۲،۹۳) کښې دي چه د مکې نه دې غرونه لرې شي، وغيره وغيره لکه مخکښې تير شو۔ دارنګه د څيزونو د ګراتيدو او ارزانيدو وخت راته ښايه؟ چه موږ ه ئې په موقعه اخلو۔

﴿تَشَابَهَتْ قُلُوْبُهُمْ﴾ يو بل سره ئې زړونه مشابه (يو شان) شويدي۔ په څهٔ کښې؟ په کفر، شرك، حسد، عناد، جهل او سرکشئ کښې۔ دوی د يو فکر او يو مزاج مالکان دي او په يو شان ګجروی کښې مبتلا دي۔ لکه آيت کښې دي: ﴿كَذٰلِكَ مَا اَتَى الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ مِّنْ رَّسُوْلٍ اِلَّا قَالُوْا سَاحِرٌ اَوْ مَجْنُوْنٌ ۝﴾ ...... [الذاريات:۵۲،۵۳]

(يعنی د رسولانو په باره کښې د ټولو امتونو دا اعتراض وو چه دا جادوګر يا ليونې دے)۔

۲- قرطبیؒ وائي: [تَشَابَهَتْ قُلُوْبُهُمْ فِي التَّعَنُّتِ وَالْاِقْتِرَاحِ وَتَرْكِ الْاِيْمَانِ]

(زړونه ئې د يو بل مشابه دي په ضد کولو کښې او په غلطو مطالبو کښې او په ايمان نهٔ راوړلو کښې) او دارنګه په قسوت او سختئ کښې۔

۳- او (اِلٰى طَلَبِ مَا لَا يَصِحُّ طَلَبُهٗ) يا د هغه شي مطالبې کوي چه د هغې طلب صحيح نهٔ وي)۔

نو د اُوسنو کافرانو بعينه هغه اعتراضونه دي کوم چه پخوانو کافرانو په انبياء عليهم السلام کړي وو۔

﴿قَدْ بَيَّنَّا﴾ دا دريم رد دے چه که دوی اراده د يقين لري، نو په قرآن کښې چه د آفاق او اطرافو نه، د نفس نه، د آسمان نه، د زمکې نه، د تاريخ نه او د آثارو نه کومې نخې بيان شويدي نو هغه ورله د هدايت او د ايمان دپاره کافي دي۔ او هغه دومره ښکاره نخې دي چه ددې نه روستو د کومې نخې يا معجزې ضرورت پاتې نهٔ دے، ليکن دوی ضديان دي۔

﴿لِقَوْمٍ يُّوْقِنُوْنَ﴾ ۱- [يُرِيْدُوْنَ الْيَقِيْنَ] (اراده د يقين لري) يعنی چه د يقين اراده ئې وي بس دغه نخې او آيتونه او معجزات کوم چه نازل شويدي هغه ورله کافي دي او څوك چه د يقين اراده نهٔ لري نو که دا آسمان ورله راخکته کړې او مخامخ ورله راشي نو هم خبره نهٔ مني۔ لکه الله فرمائي:

﴿اِنَّ الَّذِيْنَ حَقَّتْ عَلَيْهِمْ كَلِمَتُ رَبِّكَ لَا يُؤْمِنُوْنَ وَلَوْ جَاءَتْهُمْ كُلُّ اٰيَةٍ حَتّٰى يَرَوُا الْعَذَابَ الْاَلِيْمَ ۝﴾ [يونس:۹۶،۹۷] (کومو خلقو باندې چه ستا د رب وعده او فيصله ثابته شوه اګرکه دوی ته هر قسم دليل او معجزه راشي نو دوی ايمان نهٔ راوړي تردې چه دردناك عذاب اُووينی)۔

۲- صاحب د تفسير فتح البيان وائي: د يوقنون معنیٰ ده: [يَعْتَرِفُوْنَ بِالْحَقِّ وَيُنْصِفُوْنَ فِي الْقَوْلِ]۔ يعنی هغه خلق چه د حق اقرار کوي او په خبرو کښې انصاف کوي نو دا ورله کافي ده۔ دا حاصل معنیٰ ده۔

إِنَّا أَرْسَلْنَاكَ بِالْحَقِّ بَشِيرًا وَنَذِيرًا ۖ وَلَا تُسْأَلُ عَنْ أَصْحَابِ الْجَحِيمِ ﴿۱۱۹﴾

یقیناً تهٔ مونږ رالیږلے ئے په حق، زیرے ورکونکے او یره ورکونکے، او تپوس به اُونکړے شی ستا نه په باره د جهنمیانو کښې.

**تفسیر** : ذ مشرکانو، د یهودو او نصاراؤ د اقوالو او د هغوی د باطلو فکرونو د تردید او د هغوی د گمراه کُن پروپیگنډو ښکاره کولو نه پس الله تعالیٰ اُوس خبره نبی کریم ﷺ طرف ته راتاووی، د هغهٔ فرائض او ذمه واریانے بیانوی او هغه دپاره مقاصد متعین کوی او هغه ته دا خبره بیانوی چه د یهودو او نصاراؤ او ستا ترمینځ چه کومه معرکه روانه ده ددے نوعیت څهٔ دے؟ او ددے خلقو ترمینځ څومره زور اختلاف دے؟.

نو پدے اول آیت کښې الله رب العزت اُوس خپل نبی ته تسلی ورکوی چه تهٔ دومره ځان مهٔ په عذابوه، بلکه حق بیانوه که چا درسره منلو، نو ښهٔ ده او که نهٔ ئے منلو نو خپل کار به کوی، تهٔ خو الله تعالیٰ صرف بشیر او نذیر رالیږلے ئے، داسے نهٔ چه تهٔ به خلق د جهنم نه په زوره باندے رامنع کوے. او تا نه به دا تپوس نهٔ کیږی چه دا یهود او نصاریٰ او مشرکان ولے جهنم ته لاړل، تهٔ حق بیانوه، مسلمانانو ته د جنت زیرے ورکوه او کفارو او مجرمینو ته د جهنم او عذابونو یره ورکوه. ځکه که د داعی نه دا تپوس اُوکړے شی نو بیا دا تکلیف بِمَا لا یُطَاق راځی (یعنی په هغه شی زور ورکول راځی چه د هغے وس؟ نهٔ وی). بعض خلق ځان د هدایت ټیکدار گرځوی، دا ټیکداری صحیح نهٔ ده، بلکه الله تعالیٰ د هدایت ذمه وار دے، تهٔ به صرف حق بیانوے او د خلقو دپاره به په اخلاص سره خیر خواهی کوے. رسول الله ﷺ به ډیر ځان کړولو، د یهودو رضا به ئے لټوله چه دا په څه رضا کړو چه حق ته مائله شی، د هغوی فائده ئے غرض وه. ځکه هغه ته جنت، جهنم معلوم وو، او دا خلق اُور ته روان دی، د دوی غم تاوان کیږی. نو هغه ئے خیر خواه وو.

نو پدے آیت کښې درے خبرے ذکر کوی : ۱- د رسول الله ﷺ حقانیت چه تهٔ په حق او رشتیا سره رسول ئے. ۲- دویم د هغه دعوت او کار بیانوی. یعنی مقصد د رسالت.

۳- د ایمان نهٔ راوړونکو په باره کښې د هغه عدم مسئولیة. چه پیغمبر نه به د هغوی متعلق تپوس نهٔ کیږی.

**ربط** : پدے آیت کښې اشاره ده چه تهٔ خو د الله رسول ئے، د وحی تابع ئے او په دے مکلف نهٔ ئے چه د اهل کتابو او د مشرکانو د غلطو مطالبو جوابونه به ورکوے. ستا کار د دوی د مرضیٔ مطابق معجزات راوړل نهٔ دی بلکه د دین دعوت دے. نو دا آیت د دوی د مخکنو اعتراضونو او غلطو مطالبو تفصیلی جواب دے. چه زهٔ په رسالت مکلف یم او ستاسو د مرضیٔ مطابق

معجزات راوړو باندې مکلف نهٔ یم۔
﴿بِالْحَقِّ﴾: ۱- د حق نه مراد دین اسلام دې چه د قرآن او سنت نوم دې۔
۲- یا مطلب دا دې چه تهٔ ئې د حق بیانولو او ښکاره کولو دپاره رالیږلې ئې۔ لهذا داعی به حق راښکاره کوی۔ ۳- یا د حق نه مراد صدق او رشتیا دې۔ یعنی ته رشتینی نبی ئې۔ نو باء د ملابسة ده۔ ٤- یا د حق نه مراد هغه معجزات دی چه نبی ﷺ پرې رالیږلې شویدې۔ یعنی تا له مونږ ډیر معجزات درکړیدی۔ نو باء د مصاحبت ده۔ نو دا به د مخکښې دپاره جواب شی چه ددې نبی خو ډیر معجزات دی، په هغې ډې دا خلق ایمان راوړی او نورې مطالبې ډې پریدی۔
او حق په اصل کښې ثابت شوی خبرې او څیز ته وائی۔ او حق په خبرو کښې رشتیا ته وئیلې شی او په احکامو کښې عدل ته وئیلې شی۔ [تفسیر العثیمین٤/١٨]
**فائده**: په سورة احزاب (٤٥/٤٦) کښې ئې د نبی ﷺ تفصیلی صفات بیان کړیدی۔ په سورة سبا آیت (۲۸) کښې ئې فرمایلی دی چه دا نبی (ﷺ) د ټول جهان دپاره رالیږلې شویدې۔ په سورة الاعراف آیت (۱۵۸) کښې فرمائی چه اې نبی! ته خلقو ته اعلان اُوکړه چه زهٔ تاسو ټول جهان ته رالیږلې شوې یم۔ په سورة الانبیاء آیت (۱۰۷) کښې دی چه دا نبی د ټول عالَم دپاره رحمت رالیږلې شویدې۔
﴿بَشِيرًا وَنَذِيرًا﴾ دا د نبوت او رسالت مقصد دې۔ د نبی ﷺ د دعوت طریقې دغه دوه وې چه ایمان والو ته په جنت سره بشارت (زیرې) ورکول او کافرنو ته په اُور سره انذار یعنی یره ورکول دی۔ دارنګه په شریعت باندې امر کونکې او د هر قبیح او بد عمل نه منع کونکې مراد دې۔ دا دوه صفتونه ئې خاص کړل پدې کښې حکمة دا دې چه کله په انسان باندې اوامر عملی کول آسان وی لیکن د منهیاتو نه ځان ساتل ورته مشکل وی، او کله برعکس وی نو که صرف بشارت وې یا صرف انذار وې نو بیا په بنده باندې امتحان نهٔ راتللو نو ددې وجه نه امتحان په امر او نهی دواړو سره انتهائی د حکمة تقاضا ده۔
﴿وَلَا تُسْأَلُ﴾ یعنی کله چه تا رسالت اُورسولو نو تا خپله ذمه واری ادا کړه لهذا اُوس ددې بیان نه روستو که څوك ایمان نهٔ راوړی نو دا د هغه خپل کار دې، په تا ئې څه ذمه واری نشته۔ ستا مسئولیت صرف تبلیغ او د حق دعوت دې لکه په سورة بقره آیت (۲۷۲) او انعام آیت (۵۲) او فاطر آیت (۸) کښې همدا مطلب بیان شویدې۔
دا آیت دلیل دې چه کله یو نبی یا د حق داعی دعوت اُوکړی نو د هغه ذمه واری فارغه شوه، که ددې نه روستو څوك ګناه او جرم کوی، داعی ته به هیڅ نقصان نهٔ وی۔ او هغه به پرې نشی بدنامولې۔
ولا تسئل: پدې کښې د مشرکانو دپاره سخت وعید دې او دا چه د دوی نه د ایمان توقع نشی

کیدے، د اخلق د الله په عِلم کښې جهنمیان دی۔ (لَا تُسْئَلُ) کښې دوه قراء تونه دی:

۱- یو دا چه صیغه د مجهول ده لکه دا مشهور قراءت دے۔

۲- دویم لَا تَسْئَلُ د معلوم صیغه ده یعنی ته د جهنمیانو په باره کښې تپوس مهٔ کوه یعنی چه د دوی به څومره سخت عذاب وی، دا تپوس مهٔ کوه، الله تعالیٰ به ډیره غټه سزا ورکوی۔

﴿ اَصْحَابِ الْجَحِيْمِ ﴾ جحیم بل کړے شوی او لمبه شوی اُور ته وائی او اصحاب هغه چا ته وائی چه د هغے سره لازم وی۔ د دوی دپاره ئے اصحاب الجحیم صفت راوړو، پدے کښې یو قسم تنبیه ده چه ددے خلقو په زړونو مهر وهلے شویدے، د دوی نه دا طمع نشی کیدے چه د کفر نه به راواپس شی۔

**فائده :** اصحاب الجحیم کوم خلق دی؟ نو قرآن کریم کښې دهغوی د صفاتو بیان په مختلفو آیتونو کښې راغلے دے یعنی هغه کسان چه کفر کوی، د الله د آیتونو تکذیب کوی، طغیان او غوایت (گمراهئ) والا او د دنیا غوره کونکی او فجور او بدکاری کونکی او مکذبین او ضالین دی۔ لکه دا په سورة المائده (۱۰) سورة الحج (۵۱) سورة الشعراء (۹۱) سورة الواقعه (۹٤) سورة النازعات (۳۹) سورة الانفطار (١٤) کښې ذکر دی۔

| وَلَنْ تَرْضٰى عَنْكَ الْيَهُوْدُ وَلَا النَّصٰرٰى حَتّٰى تَتَّبِعَ مِلَّتَهُمْ قُلْ اِنَّ هُدَى |
|---|
| او هیچرے نهٔ رضا کیږی تا نه یهودیان او نهٔ نصاریٰ تردے پورے چه ته روان شے د دوی د دین پسے، اُووایه چه هدایت |
| اللّٰهِ هُوَ الْهُدٰى وَلَئِنِ اتَّبَعْتَ اَهْوَآءَهُمْ بَعْدَ الَّذِىْ جَآءَكَ مِنَ الْعِلْمِ |
| د الله دغه اصل هدایت دے، او که چرته ته روان شے د دوی د خواهشاتو پسے پس د هغے نه چه راغله تا ته پوهه، |
| مَا لَكَ مِنَ اللّٰهِ مِنْ وَّلِيٍّ وَّلَا نَصِيْرٍ ﴿۱۲۰﴾ |
| نو نه به وی ستا دپاره د الله د طرف نه څوك بچ کونکے او نهٔ مددگار۔ |

**تفسیر :** په دے آیت کښې د یهودو او نصاراو د ایمان راوړو نه انتهائی درجه د نا اُمیدئ خبر ورکړے شویدے او د هغوی د تابعداری کولو نه منع شوے ده۔ او وائی چه ستا او د دوی ترمینځ د جنګ یوه عظیمه نظریاتی معرکه روانه ده، دوی هیچرے ستا نه نهٔ خوشحالیږی اګرکه ته د هغوی د رضا کولو دپاره ځان سترے کړے مګر صرف دا چه ته د هغوی دین خپل کړے۔ لهذا د دوی د مرضئ حاصلولو کوشش بنه خبره نهٔ ده بلکه ته صرف د الله رضا طلب کړه او تا سره چه کوم هدایت دے بس هم دا حق دین دے، ددے دین دعوت کوه او د دوی د دین چه هغه په حقیقت

کښې خواهشات دي، تابعداري اُونکړے۔ ورنه الله به درله سخته سزا درکړي۔ دا په ظاهر کښې نبي کریم ﷺ ته خطاب دے لیکن مراد ترینه اُمت دے او پدے کښې د یهودیانو ضد او عناد ته اشاره ده چه دوی داسے ضدیان دي چه د خپل دین نه علاوه بل هیڅ دین نهٔ مني۔ او خپله هم په خواهشاتو پسے روان دي، نو اهل حقو له د دوی تابعداري کول ناروا دي۔

رسول الله ﷺ به د اهل کتابو (د یهودو او نصاراؤ) د ایمان طمع لرله پدے أساس چه دوی مسلمانانو ته نزدے دي ځکه چه د دوی په دین کښې هم په اصل کښې شرک نشته بلکه په توحید بناء دے۔ او دارنګه دوی سره هم آسماني کتاب دے نو کیدے شي چه ایمان راوړي نو الله تعالیٰ پدے آیت کښې د دوی دا طمع قطع کړله۔ چه د دوی نه د ایمان طمع مهٔ کوه ځکه چه دوی خپل دین په خواهشاتو بدل کړے او په خپل کتاب کښې ئے تحریف کړے، په تا باندے ایمان راوړو ته تیار نهٔ دي۔ او کوشش دا کوي چه تا خپل دین ته راواړوي۔

﴿ حَتّٰى تَتَّبِعَ مِلَّتَهُمْ ﴾ ددے نه معلومه شوه چه هر کله چه دا کتابیان د رسول الله ﷺ نه نهٔ رضا کیدل چه هغه لا اوچتو اخلاقو والا وو۔ نو زمونږ او باقي مسلمانانو نه خو په طریقه اولیٰ نهٔ رضا کیږي۔

**نکته** : دا آیت دلیل دے چه کوم حُکام، کوم بادشاهان چه یهود او نصاریٰ ترے رضا شو، او دکوم سیاسي لیډرانو نه چه امریکي (کفار) حکومتونه رضا شو نو د هغوی په ایمان باندے لویه خطره ده۔ وجه دا ده چه دلته الله وئیلي دي چه یهود او نصاریٰ د مسلمان نه تر هغه وخت پورے نهٔ رضا کیږي ترڅو چه د هغوی په دین روان نشي۔ نو چه هغوی چا ته بنهٔ سړے اُووئیلو، پو هه شه چه ددهٔ ایمان پاتے نهٔ دے۔ یهود او نصاریٰ چه د چا نه خوشحاله شو دا به مسلمان نهٔ وي، او د چا نه چه ډیر نارضا وي نو دا به اُوچت مسلمان وي۔

﴿ مِلَّتَهُمْ ﴾ : ملت ئے مفرد راوړو او اضافت ئے یهود او نصاراؤ ته اُوکړو، دے نه معلومه شوه چه کفر ټول یو ملت دے، او دا باطل ملت دے، او ددے نه مفسرینو احکام مستنبط کړیدي چه هر کله کفر یو ملت دے نو کافران اګر که دینونه ئے جدا جدا وي (مثلًا یهودیت، نصرانیت او بدهـ مت) لیکن د یو بل نه میراث وړے شي ځکه چه ټول په کفر کښې شریك دي۔ خو مسلمان او کافر د یو بل نه میراث نشي وړے۔ او دا مذهب د امام شافعيؒ، ابو حنیفةؒ او یو روایت د امام احمدؒ دے۔

○ او د امام مالكؒ مذهب او یو قول د احمدؒ دا دے چه دوه ملتونو والا د یو بل نه میراث نشي وړے لکه څنګه چه په حدیث کښې راغلي دي (ابوداود ۲/۵۹)۔ (ابن کثیرؒ)۔ او سند ئے حسن صحیح دے۔ شیخ البانيؒ ورته صحیح وئیلي دے۔

ملت : [اِسْمٌ لِمَا شَرَعَهُ اللّٰهُ لِعِبَادِهٖ فِیْ کُتُبِهٖ وَعَلٰی اَلْسِنَةِ رُسُلِهٖ] (ملت نوم دے د هغه شریعت چه الله تعالیٰ په خپلو کتابونو کښې او د خپلو رسولانو په ژبه باندے مقرر کړے وی) نو دین او شریعت یو شے دے، او فرق د ملت او شریعت او د دین دا دے چه شریعت او ملت هغه دے چه الله تعالیٰ په هغے باندے عمل کولو ته دعوت ورکړے وی او دین هغه دے چه بندګان په حکم او امر د الله سره په هغے عمل کوی۔ (القرطبیؒ)

نور تفصیل روستو (ملة ابراهیم) کښې راځی۔

﴿ قُلْ اِنَّ هُدَی اللّٰهِ هُوَ الْهُدٰی ﴾ اُوس الله تعالیٰ خپل رسول ته یو دین ورکوی دے دپاره چه په یهود او نصاراؤ رد اُوشی چه راشئ ددے دین اسلام تابعداری اُوکړئ، همدا د الله تعالیٰ هدایت دے۔ او پدے کښې جواب د هغوی د دعوت دے چه هغوی رسول الله ﷺ ته وئیلی وو چه ته د زمونږ سره متحد شه او زمونږ ملت قبول کړه۔ (ابن جریرؒ، بیضاویؒ)۔

د ((هُدَی اللّٰهِ)) نه مراد د الله تعالیٰ دین دے او هغه قرآن او حدیث دے۔

(هُوَالْهُدٰی) یعنی هُوَ الْحَقُّ ۔ (همدا حق دے) پدے کښې معنیٰ د حصر پرته ده یعنی کتاب او سنت صرف همدغه حق دین دے۔او هدایت او حق صرف په دین اسلام کښې منحصر (راګیر او بند) دے۔ او هر چه یهودیت او نصرانیت دی، تورات او انجیل دی نو هغے کښې زیات تحریفات شویدی، د قرآن او سنت د راتلو نه روستو په هغے باندے عمل پاتے نهٔ دے۔

دا دلیل دے چه د اسلام راتلو نه روستو هیڅ دین، یهودیت، نصرانیت، مجوسیت، بدهمت حق نشی کیدے۔نو د وحدة الادیان کوشش ناممکن دے۔ او لوئی جرم دے چه څوک دا کار کوی، دا د حق او د باطل یو ځائے کول دی۔

او دا صریح دلیل دے چه د مشرکانو سره اتحاد جائز نهٔ دے۔

اُوس سوال پیدا کیږی که یو سړے د هغوی ملت او دین طرف ته روان شی نو څهٔ به اُوشی؟ نو الله تعالیٰ ددے رد ذکر کوی :

﴿ وَلَئِنِ اتَّبَعْتَ اَهْوَآءَهُمْ ﴾ دا دلیل دے چه یهود او نصاراؤ سره حق دین نشته بیوئ د نفس د خواهشاتو نه، هغوی خلق دے طرف ته رادعوت کوی۔ او پدے کښې اُمتِ اسلامیه ته سخت وعید دے چه د قرآن او سنت علم راتلو نه روستو که څوک د یهودو او نصاراؤ لاره اختیاره کړی نو د الله د عذاب نه ئے هیڅوک نشی بچ کولے۔ په ظاهر کښې خطاب نبی ﷺ ته دے او په حقیقت کښې د اهل کتابو د تابعدارئ نه امت یرول دی۔ دے ته تعریض وئیلے شی۔

**فائده** : ددے آیت په ضمن کښې هغه خلق هم داخلیږی چه محض د مداهنت په بنیاد یو بے

رائے لره په قرآن او سنت باندے ترجيح ورکوی، يا سنت پدے وجه شا ته ارتوی چه د يو إمام يا يو عالِم قول د هغے خلاف دے او په قرآن او سنت کښ تاويل کوی، د هغے معانی او مفاهيم بدلوی، دے دپاره چه کوم منافق حاکمِ وقت ناراضه نهٔ شی۔ گويا کښ هرڅوك چه د يو انسان د مرضی يا رائے مقدم کولو دپاره قرآن او سنت شا ته کړی هغه په دے آيت کښ داخليږی او دا تهديد او وعيد به هغه ته شامليږی۔ (تفسير فتح البيان، وتيسير الرحمن)

﴿ اَهْوَآءَهُمْ ﴾ : اهواء جمع د هَوٰی ده خواهش ته وئيلے شی جمع ئے راوړه اشاره ده چه دوی په خپل دين کښ وخت په وخت د ځان نه ايجادات کړيدی او د خپلو ډيرو خواهشاتو پسے روان شويدی۔

امام رازیؒ فرمائی : [فِی الآيَةِ دَلَالَةٌ عَلٰی اَنَّ اِتِّبَاعَ الْهَوٰی لَايَكُوْنُ اِلَّا بَاطِلًا فَمِنْ هٰذَا الْوَجْهِ تَدُلُّ عَلٰی بُطْلَانِ التَّقْلِيْدِ] ...... [تفسير كبير للرازي ۲/۳۱۹، والقاسمی ۱/۳۵٦]

(دا آيت دليل دے چه د خواهش پسے روانيدل باطل دی نو ددے وجه نه دا آيت دلالت کوی چه تقليد باطل شے دے) ځکه چه په تقليد کښ هم په ړندو سترگو ديو شخص د رائے پسے روانيدل وی۔

﴿ مِنَ الْعِلْمِ ﴾ د عِلم نه مراد قرآن او وحی ده۔ يعنی الله پوهه کړے چه يهود او نصاریٰ په غلطه دی او بيا هم وريسے ورغلے۔

د امام احمد رحمه الله نه تپوس اُوشو چه څوك قرآن ته مخلوق وائی ددهٔ څه حکم دے ؟ هغه اُوفرمايل : کافر دے، او ددے آيت نه ئے دليل اُونيولو چه (مِنَ الْعِلْمِ) ځکه چه قرآن د الله تعالیٰ عِلم دے۔ نو څوك چه دے ته مخلوق وائی، دا کافر دے۔ (القرطبیؒ)

﴿ مَا لَكَ مِنَ اللهِ مِنْ وَّلِيٍّ وَّلَا نَصِيْرٍ ﴾ يعنی کهٔ تا د يهودو او نصاراو تابعداری اُوکړه او د هغوی دوستانه او حمايت او حفاظت دپاره اختيار کړو هغوی له دِے ځائے ورکړو نو په دنيا او په آخرت کښ د الله د عذاب نه ستا بچکونکے نشته، د هغوی سره دوستانه کول او د هغوی مدد او تعاون کول خو هلاکت ته دعوت دے۔ د ولی او نصير فرق په مخکښ آيت (۱۰۸) کښ تير شو۔

## د نيکانو اهل کتابو صفت

الله تعالیٰ اُوس د نيکانو اهل کتابو صفت بيانوی۔ قرآن انصافی کتاب دے، د دشمنانو بحث هم کوی ليکن نيکی ئے هم ذکر کوی چه په دوی کښ ښهٔ خلق هم شته۔ او دا د ټولو اهل حقو طريقه ده۔ او په دے کښ دے نورو اهل کتابو ته دعوت دے چه ستاسو بعض علماء دا کتاب منی نو تاسو ولے ايمان نهٔ راوړئ ؟! :

﴿ اَلَّذِيْنَ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ يَتْلُوْنَهٗ حَقَّ تِلَاوَتِهٖ ﴾

هغه کسان چه مونږ ورکړے هغوی ته کتاب، لولی هغهٔ په لائق لوستو د هغے سره،

اُولٰٓئِكَ يُؤْمِنُوْنَ بِهٖ وَمَنْ يَّكْفُرْ بِهٖ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ ﴿۱۲۱﴾

دغه کسان ایمان لری په دے باندے، او چا چه کفر اُوکړو په دے نو دغه کسان خاص دوی تاوانیان دی۔

**تفسیر:** پدے آیت کښ ددے رسولﷺ او د قرآن د تصدیق دپاره د اهل کتابو د علماؤ نه دلیل راوړے شویدے۔

**شان نزول :** عامو مفسرینو لیکلی دی چه دا آیت د اهل کتابو د هغه مؤمنانو په باره کښ نازل شویدے چه د حبشو نه ئے د جعفر بن ابی طالب رضی الله عنه سره هجرت کړے وو او دا ټول (۴۰) کسان وو۔ دوه دیرش د حبشو نه وو او اته (۸) د شام د راهبانو نه وو، یو په کښ بَحِیرًا وو۔ (بغویؒ) او دیته به ئے اصحاب السفینه (کشتئ والا) وئیل۔

﴿آتَيْنَاهُمُ الْكِتَابَ﴾: یعنی مونږ کتاب (تورات) ورکړے او هغوی قبول کړے دے۔

۱ - د کتاب نه مراد تورات او انجیل دی او دا غوره او د مقام مناسب تفسیر دے چه پدے صورت کښ به دا صفت وی د مؤمنانو اهل کتابو کوم چه په قرآن کریم ایمان راوړی لکه په سورة القصص آیت (۵۲) کښ فرمائی :﴿اَلَّذِيْنَ آتَيْنَاهُمُ الْكِتَابَ مِنْ قَبْلِهٖ هُمْ بِهٖ يُؤْمِنُوْنَ﴾

(هغه کسان چه مونږ هغوی ته ددے قرآن نه مخکښ کتاب ورکړے هغوی په قرآن ایمان لری)۔

۲ - قتادهؒ وائی : د ((اَلْكِتَابَ)) نه مراد قرآن دے۔ نو پدے صورت کښ به دا ددے امت صفت وی چه په قرآن ایمان راوړی۔ امام خازنؒ او قرطبیؒ وئیلی دی چه آیت عام دے۔نو پدے صورت کښ به دا صفت د مؤمنانو اهل کتابو او اهل اسلام وی۔ (ازهر البیان فارسی)

﴿حَقَّ تِلَاوَتِهٖ﴾ د تلاوة دوه معنے دی (۱) ظاهری لوستل۔ یعنی ظاهر کښ د الله کتاب ښائسته طریقے سره لولی، الفاظ ئے غلط نهٔ وائی۔

(۲) کله تلاوت په معنیٰ د تابعداری سره وی یعنی [يَتَّبِعُوْنَهٗ حَقَّ اتِّبَاعِهٖ] تابعداری کوی د الله تعالیٰ د کتاب په لائقه تابعدارئ سره۔(ابن عباسؓ وابن مسعودؓ)

تورات ښائسته لولی او تابعداری ئے هم کوی، عمل پرے کوی۔

۳- ابن مسعود رضی الله عنه (د حق تلاوت په باره کښ) فرمائی: [وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ، اِنَّ حَقَّ تِلَاوَتِهٖ : اَنْ يُّحِلَّ حَلَالَهٗ وَيُحَرِّمَ حَرَامَهٗ وَيَقْرَأَهٗ كَمَا اَنْزَلَهُ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ وَلَا يُحَرِّفَ الْكَلِمَ عَنْ مَوَاضِعِهٖ وَلَا يَتَأَوَّلَ مِنْهُ شَيْئًا عَلٰى غَيْرِ تَاوِيْلِهٖ] [رواه عبد الرزاق] چه حلال ئے حلال او حرام ئے حرام ګڼړی او څنګه چه الله نازل کړیدے همغه شان ئے لولی، کلمات ئے د خپل ځائے نه نهٔ بدلوی او ددے نه په یو شی کښ غلط

تاویل نهٔ کوی).

٤- او حسن بصریؒ فرمائی : [یَعْمَلُوْنَ بِمُحْکَمِهٖ وَیُؤْمِنُوْنَ بِمُتَشَابِهِهٖ، وَیَکِلُوْنَ مَا اَشْکَلَ عَلَیْهِمْ اِلٰی عَالِمِهٖ] چه په محکماتو ئے عمل کوی او په متشابهاتو ئے ایمان لری او کوم چه ورته مشکل شی نو د هغے عِلم خپل عالِم (الله) ته اوسپاری. (یعنی د خان نه پکښې تاویلات نهٔ کوی).

٥- د عمر ؓ نه روایت دے [هُمُ الَّذِیْنَ اِذَا مَرُّوْا بِذِکْرِ الْجَنَّةِ سَئَلُوا اللهَ الْجَنَّةَ وَاِذَا مَرُّوْا بِذِکْرِ النَّارِ اِسْتَعَاذُوْا مِنْهَا] چه لائق لوستونکی هغه خلق دی چه کله د جنت تذکره راشی نو جنت غواړی او چه د جهنم تذکره راشی نو په الله سره د هغے نه پناهی غواړی. (ابن کثیر ۱/۴۰۳ وابن جریر)

٦- قاسمیؒ لیکی چه د حق تلاوتهٔ تفسیر په دوه نورو آیتونو کښې راغلے دے یو دا چه :

﴿ اَلَّذِیْنَ آتَیْنَاهُمُ الْکِتَابَ مِنْ قَبْلِهٖ هُمْ بِهٖ یُؤْمِنُوْنَ وَاِذَا یُتْلٰی عَلَیْهِمْ قَالُوْا آمَنَّا بِهٖ اِنَّهُ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّنَا اِنَّا کُنَّا مِنْ قَبْلِهٖ مُسْلِمِیْنَ، اُولٰئِکَ یُؤْتَوْنَ اَجْرَهُمْ مَرَّتَیْنِ بِمَا صَبَرُوْا وَیَدْرَءُوْنَ بِالْحَسَنَةِ السَّیِّئَةَ وَمِمَّا رَزَقْنَاهُمْ یُنْفِقُوْنَ ﴾ [القصص: ۵۲/۵۴] او ﴿ قُلْ آمِنُوْا بِهٖ اَوْلَا تُؤْمِنُوْا اِنَّ الَّذِیْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ مِنْ قَبْلِهٖ اِذَا یُتْلٰی عَلَیْهِمْ یَخِرُّوْنَ لِلْاَذْقَانِ سُجَّدًا ﴾ [الاسراء: ۱۰۷]

نو حق تلاوة دا شو چه ایمان راوړی پدے چه دا د دوی د رب د طرف نه حق کتاب دے، صبر کوی، او بدی په نیکئ سره دفع کوی، او انفاق کوی او الله ته سجدے لکوی).

که تلاوة په معنیٰ د قراءة شی نو پدے کښې پنځه مقاصد بیان شویدی :

○ دوی د الله په کتاب کښې تدبر او سوچ کوی نو په احکامو د حلالو او حرامو عمل کوی. ○ د تلاوت په وخت کښې عاجزی او خضوع کوی. په مانځه کښې وی او که په خلوت کښې وی. ○ په محکم ئے عمل کوی او په متشابه ئے ایمان لری او په کوم چه نهٔ پوهیږی د هغے علم الله ته سپاری. ○ داسے ئے لولی لکه څنګه چه الله نازل کړے او تحریفات پکښې نهٔ کوی او غلط مقاصد پکښې نهٔ بیانوی. ○ پنځم دا چه آیت مشتمل دے پدے تولو مختلفو معانیو څکه چه پدے کښې مقصد د قرآن تعظیم او هغه ته لفظاً او معنیٌ انقیاد کول او تابع کیدل دی.

[تفسیر روح المعانی د آلوسی واللباب د ابن عادل]

٧- علامه قرطبیؒ وائی : حق تلاوتهٔ دا دے :[اَلتَّرْتِیْلُ ظَاهِرًا وَفَهْمُ مَعَانِیْهِ بَاطِنًا]

(ظاهری الفاظ ئے هم صحیح ادا کوی او ددے په معانیو باندے هم ځان پو هه کوی).

﴿ اُولٰئِکَ یُؤْمِنُوْنَ بِهٖ ﴾ دا خبر دے د ((اَلَّذِیْنَ آتَیْنَا)) دپاره، او معنیٰ دا ده چه څوك د اهل کتابو نه خپل کتاب صحیح لولی او عمل پرے کوی نو همدغه کسان پدے قرآن هم ایمان راوړی. مطلب دا چه چا تورات صحیح لوستو، هغوی له الله پدے رسول او قرآن باندے هم د ایمان توفیق ورکړو، او په

تورات چه چا عمل نهٔ کولونو الله تعالیٰ ورله د ایمان توفیق هم ورنکړو ځکه یو نیکي انسان بلې ته راکاړي. د ځوانئ نیکي په بو داوالي کښې انسان له فائده ورکوي. دوی به په جاهلیت کښې په دین عمل کولونو الله ورله د اسلام توفیق ورکړو.

**فائده : ۱** - د حق التلاوة جامعه معنیٰ دا ده چه په تلاوت سره ژبه، عقل، زړهٔ او اندامونه د تلاوت کونکي برخه واخلي. د ژبې برخه دا ده چه حروف د خپلو صحیح مخارجونه ادا کړي. د عقل برخه دا ده چه ددې په معانیو کښې تدبر اُوکړي او تفسیر د قرآن اُوکړي. او د زړهٔ برخه عبرت اخستل او قبلول دي، او د باقي اندامونو برخه عمل دې. ژبه تلاوت اُوکړي، عقل ترجمه او تفسیر اُوکړي، او زړهٔ عبرت حاصل کړي او باقي اندامونه په احکامو ددې عمل اُوکړي.

**فائده ۲:** د قرآن او د الله د آیتونو په باره کښې انسانان په یو څو ډلو تقسیم دي:

اوله ډله : صرف د الفاظو تصحیح، او حروف د خپلو مخارجو نه ادا کوي، او همیشه په وقف او وصل او الحان او ترنم (خوش آوازي) کښې فکر کوي او د قرآن کریم په معانیو او ددې په حکمتونو او باریکاتو کښې تأمل او سوچ او ددې مطابق عمل کولو ته هیڅ قسم التفات او توجه نهٔ کوي.

۲- دویمه ډله : د قرآن کریم د معانیو په تدقیقاتو او نکاتو کښې فکر کوي او ددې د علومونه خان خبروي لیکن د عمل په باب کښې سُست اوبې همته وي.

۳- دریمه ډله : هغه صحیح مؤمنان دي چه قرآن ئې په یو خل په عِلمي او عملي طور سره او د ژوند د قانونِ په صفت سره قبول کړو، د الفاظو لوستل او ددې کتاب په معانیو کښې فکر کول د عمل دپاره مقدمه گنړي، لهذا دوی چه هر وخت قرآن وائي نو په روح کښې ئې تازګي او په زړهٔ کښې ئې تصمیم او نوې اراده او په عقل کښې ئې د پوهې تازهٔ رڼرا پیدا شي چه دا د (حق تلاوته) ثمره ده. (از هر البیان)

دې آیت کښې عام مفسرین، خصوصاً قاسمیؒ لیکي : ځوك چه اهل کتاب وي یعني ځوك چه ځان اهل ددې کتاب گنړي هغه له پکار دي چه د الله قرآن اولولي درساً، تدریساً، تلاوةً، تعلیماً او تعلماً.

﴿ وَمَنۡ يَكۡفُرۡ بِهِۦ ﴾ پدې کښې د قرآن مخالفینو ته زورنه ورکوي.

(بِه) ضمیر قرآن ته راجع دې او کتاب ته هم راجع کیدې شي، حاصل ئې یو دې.

چا چه کفر اُوکړو د اهل کتابو نه په خپل کتاب (تورات یا انجیل) باندې او بیا په قرآن باندې، نو دوی غټ تاوان والا شو ځکه د ایمان نه محروم شو او په تمامو کائناتو کښې د ایمان نه لوئي نعمت بل کوم یو شې کیدې شي؟!.

**فائده ۲** : په آيت کښې د قرآن د تلاوت فائده او فضيلت ذکر دے۔ او اشاره ده چه څوك اهلِ قرآن وي نو دوي به د قرآن لوستونکي هم وي۔ (قاسمیؒ)

**فائده** : په قرآن کريم کښې آتَيْنَا، اُوتُوا نَصِيبًا مِنَ الْكِتَابِ، اُوتُوا الْكِتَابَ، اُوتُوا الْعِلْمَ کلمات راځي۔ فرق دا دے چه اول د نيکانو اهل کتابو دپاره استعمال دے او دويم او دريم د بدانو اهل کتابو دپاره دے۔ او څلورم لفظ دَدے امت علماء صالحين او دارنګه د پخوانو نيکانو علماؤ دپاره دے۔

يٰبَنِيٓ اِسْرَآءِيْلَ اذْكُرُوْا نِعْمَتِيَ الَّتِيٓ اَنْعَمْتُ عَلَيْكُمْ

اے اولاد د يعقوب (عليه السلام) راياد کړئ نعمتونه زما هغه چه ما په تاسو کړی دی،

وَاَنِّيْ فَضَّلْتُكُمْ عَلَى الْعٰلَمِيْنَ ﴿۱۲۲﴾

او يقيناً ما تاسو غوره کړی وئ په مخلوقاتو۔ (په خپله زمانه کښې)

**تفسير** : د اُوږد تقرير نه روستو بني اسرائيلو ته خطاب راواپس کوی ګويا کښې دَدے اُوږدے مقابلے او مجادلے نه روستو او د الله تعالیٰ او د هغه د انبياؤ سره د دوی د طرزِ عمل اُوږد تاريخ بيانولو نه روستو آخري ځل دوی متوجه کولے شي، او آخري ځل بيا دعوت ورکولے شي پداسے حال کښې چه دوی د امانت الٰهي يعنې د اسلامي نظرية حيات د شرافت د حفاظت نه بے حد درجه غافل او بے پرواه شويدی حال دا چه دوی ته دا شرافت او ذمه واری د پخوا زمانے نه حاصل راروانه وه نو په آخره کښې هم ورته دعوت ورکوی لکه څنګه چه ورته په اوله کښې دعوت ورکړے شوے وو۔ (فی ظلال)

نو پدے آخرنی خطاب کښې بني اسرائيلو ته دعوت ورکوی چه انعامات د الله ياد کړئ او په نبي کريم ﷺ باندے د ايمان راوړلو ترغيب ورکوی چه د حسد په وجه دَدے نبي نه انکار مهٔ کوئ او په تورات کښې چه دَدے نبي کوم صفات ذکر شويدی هغه پټ نهٔ کړئ او د قيامت د عذابونو نه اُويريږئ، په جلتئ سره ايمان راوړئ۔ او دوی ته ئے په هغه نوم سره آواز اُوکړو چه دوی ته زيات محبوب وو۔ پدے کښې دَدوی خيرخواهي کول مقصد دے۔

دارنګه دا ئے پدے وجه راوړو چه دَدے د روستو سره مناسبت دے پدے طريقه چه روستو ملت ابراهيمي ذکر کوی نو د هغے دپاره بني اسرائيلو ته دعوت ورکوی څکه چه بني اسرائيلو د ملتِ ابراهيمي نه اعراض کړے وو، خصوصاً د کعبے د عظمت نه ئے انکار کړے وو، يعنې د قبلے د منلو اَو د هغے نه د حج کولو نه منکر وو، او د غه شان د آخري رسول او د توحيد نه ئے انکار کړے وو، نو دَدے وجه نه هغوی ته ترغيب ورکوی چه راشئ ملتِ ابراهيمي قبول کړئ او د هغے د مخالفت

کولو نه يره ورکوی۔او پدے خطاب باندے د دوی عام واقعات تقريباً ختميږی۔

## د آیت د تکرار حکمت :

داسے آیت مخکښ هم دوه ځل تير شويدے ولے ئے مکرر کړو :

۱- : [لَاَنَّهٗ فَذْلَکَةُ الْقِصَّةِ وَزِيَادَةٌ فِي النَّصِيْحَةِ] [روح المعانی ۱/۴۹۱] پدے کښ د دوی زياتے خيرخواهئ ته اشاره ده چه ابتداء کښ ورته د ايمان بالله او آخری رسول باندے د ايمان دعوت ورکړے شوے وو هغه ئے ورته په آخر کښ هم ورکړو، او پدے کښ ئے خلاصه او مقصد راښکاره کړو چه د دوی د بدو صفات ذکر کولو او د دوی د اعتراضاتو جواباتو کولو مقصد دا دے چه دوی ايمان راوړی او خپل ځان ته متوجه شی۔ او مقصدی خبره خلق په اول او آخر کښ ذکر کوی۔

۲- دويم دا چه مخکښ آيت کښ مقصد دا وو چه دوی ته حکم شوے وو ددے دپاره چه د مخکنو نعمتونو حقوق ادا کړی او دلته مقصد دا دے چه دوی هغه نعمت رایاد کړی چه د هغے په سبب دوی د خپلے زمانے په خلقو غوره شوی وو هغه دا چه دوی په خپل نبی (موسیٰ ﷺ) باندے ايمان راوړے وو، نو اُوس هم د الله د حکم تابع شی او په آخری رسول ايمان راوړی دے دپاره چه غوره خلقو کښ شمار شی او د آخرت د يرو نه بچ شی (روح المعانی)۔

(اذکروا) مقصد د ((ذکر)) نه د دغه نعمت شکر دے او شکر ددے نعمت په هغه وخت کښ ادا کيږی چه په تولو تقاضو د هغے ايمان راوړی چه يو د هغے نه د نبی ﷺ صفات دی چه په تورات کښ ذکر شويدی او ددۀ زيرے ورکړے شويدے۔

| وَاتَّقُوْا يَوْمًا لَّا تَجْزِیْ نَفْسٌ عَنْ نَّفْسٍ شَيْئًا وَّلَا يُقْبَلُ مِنْهَا |
|---|
| او اُويريږئ د هغۀ ورځے نه چه پکار به رانشی يو نفس د بل نفس نه هيڅ شے، او نۀ به قبليدے شی ددے (مجرم) نفس |
| عَدْلٌ وَّلَا تَنْفَعُهَا شَفَاعَةٌ وَّلَا هُمْ يُنْصَرُوْنَ ﴿۱۲۳﴾ |
| نه فديه (جرمانه) او فائده به نۀ ورکوی دے (مجرم نفس) ته سفارش د چا، او نۀ به د دوی سره مدد اُوکړے شی۔ |

**تفسير** : پدے کښ ورته د آخرت يره بيانوی دے دپاره چه په آخری نبی او په دين اسلام ايمان راوړی۔ داسے آيت مخکښ هم تير شويدے او ددے او د هغے فرق دا دے چه دلته د (لَا يُقْبَلُ مِنْهَا عَدْلٌ او لَا تَنْفَعُهَا شَفَاعَةٌ) ضميرونه دويم نفس ته راجع دی چه هغه مجرم نفس دے ځکه چه مجرم د خپل نجات دپاره اول فديه ورکولو سره کوشش کوی، بيا شفاعت گوری۔او غواړی چه زما فديه دے قبوله شی او شفاعت د زما دپاره فائده مند شی۔ دا وجه ده چه دلته ئے عدل د شفاعت

نه مخکښې راوړې او د عدل سره قبولیت او د شفاعت سره ئې نفع ذکر کړه۔ او په آیت (٤٨) کښې ضمیرونه اول نفس ته راجع وو چه هغه غیر مجرم دے۔

﴿ وَلَا تَنفَعُهَا شَفَاعَةٌ ﴾ فائده به څکه نهٔ ورکوی چه کافر او مشرك دے۔ یا بغیر د اجازے د الله نه به سفارش فائده نهٔ ورکوی او الله تعالیٰ کافر ته د شفاعت اجازه نهٔ ورکوی۔

﴿وَلَا هُمْ يُنصَرُونَ ﴾ او د مدد توله لارے بندے دی۔

﴿ وَإِذِ ابْتَلَىٰ إِبْرَاهِيمَ ﴾

**مضمون** : تردے ځائے پورے د بنی اسرائیلو سره مکالمات وو چه د هغوی قبائح ئې ذکر کړل عقیدةً وقولاً وعملاً، اصل کښې خبره د یهودیانو سره وه او ضمناً او تبعاً پکښې نصاریٰ ذکر کیدل او مشرکان به ئې پکښې هم راتاوول چه دوی کښې هم دغه مرضونه موجود دی۔ اُوس ددے ځائے نه تر راتلونکے رکوع پورے د ابراهیم او اسماعیل علیهما السلام مختصره واقعه راوړی، د کعبے د جوړولو واقعه ذکر کوی، په بل طرز باندے دا واقعه راغلے ده۔ اُوسه پورے الله تعالیٰ تردے تاریخ بیانولو د بنی اسرائیلو، نو اُوس د هغوی د وړاندے نیکونو تاریخ بیانوی چه ابرهیم ﷺ دے۔ او پدے کښې اول مشرکان بیا یهودیان مخاطب دی۔

نو پدے آیتونو کښې اول د ابرهیم ﷺ عظمتِ شان بیانوی دپاره د ترغیب بنی اسرائیلو ته چه راشی او ملتِ ابراهیمی قبول کړی، خصوصاً دکعبه او د آخری رسول په باره کښې او د هغه چا کم عقلتیا بیانوی چه د ابراهیم ﷺ د دین خلاف کوی او پدے کښې به درے غټے خبرے بیان کړی چه یو کعبه جوړول د توحید دپاره، او بل د آخری رسول دپاره دعا غوښتل، دریم د ابراهیم ﷺ په توحید باندے وصیت۔

د ابراهیم ﷺ ددے واقعے په ذکر کولو کښې ډیر رازونه دی:

## د ابراهیم علیه الصلاة والسلام د واقعے بیانولو مقاصد :

۱- یو د هغے نه دا دے چه د ابراهیم ﷺ دوه قسمه اولاد وو یو بنی اسرائیل۔ دویم بنی اسماعیل۔ بنی اسرائیلو به د اسحاق ﷺ په واسطه خپل نسبت ابراهیم ﷺ ته کولو او پدے نسبت او د الله د طرف نه د ابراهیم ﷺ او د هغه د اولادو سره د ترقی او برکت وعده پوره کولو باندے به ئې فخر کولو پدے وجه هغوی به دا دعوه کوله چه په صحیح دین باندے همدا موږ روان یو او ځان ئې د جنت ټیکیداران ګڼړل اګرکه عمل ئې هرڅنګه وو۔

دغه شان قریشو د اسماعیل ﷺ په واسطه د ابراهیم ﷺ اولاد وو او په خپل نسبت به ئې فخر کولو او د بیت الله نګرانی او د مسجد حرام د آباد ساتلو منصب به ئې د ابراهیم ﷺ پاتے شوے

میراث گنړلو، او په ټولو عربو به ئے دینی سرداری کوله، نو الله تعالیٰ پدے آیتونو کښې دا خبره بیانوی چه دے ټولو انبیاؤ اسلام او توحید ته دعوت ورکړیدے او په دے باندے ئے وصیت کړیدے نو څوك چه د توحید عقیده خپله کړی، هغه د ابراهیم ﷺ حقیقی وارث شو او څوك چه د توحید عقیدے ته خیرباد اُووائی نو هغه د ابراهیمی وراثت نه محروم شو نو د یهودو غلطے دعوے- چه مونږ جنتیان او غوره مخلوق یو- صحیح نشوے. دغه شان د قریشو دا دعوه- چه مونږ د بیت الله د نګرانئ او پروګرام او تعمیر حقدار یو- غلطه ثابته شوه ځکه چه دوی ددے مقدس مقام د اول بانی د روحانی میراث نه ډډهٔ اُوکړه او د هغے نه واوړیدل. دغه شان د یهودیانو دا دعوه هم ختمیږی چه دوی د بیت المقدس اصحاب دی او مسلمانانو له هم پکار دی چه بیت المقدس خپله قبله جوړه کړی - دا ځکه غلطه ده چه د ابراهیم ﷺ او د هغه د اولادو اصل قبله خانه کعبه وه نو دا دعوه هم خطاء شوه. نو دا درے واړه ډلے ابراهیم ﷺ ته په نسبت کولو کښې دروغجن دی. سوئ د مسلمانانو نه.

۲- دویمه مسئله پدے کښې د قبلے د تحویل ده چه ابراهیم ﷺ کعبه جوړه کړے ده او دا ډیر بهترین ګور دے ځکه چه روسته الله تعالیٰ قبله بدلوی نو دا ورله مقدمه ده.

۳- بله دا ده چه ابراهیم ﷺ د محمد رسول الله ﷺ دپاره دعا کړے ده او تاسو ددهٔ نه انکار کوئ او وایئ چه مونږه د ابراهیم ﷺ په دین روان یو او هغه زمونږ مشر دے. که ابراهیم ﷺ خپل مشر ګنړئ نو هغه خو د محمد رسول الله ﷺ دپاره دعا کړے ده په (وَابۡعَثۡ فِيۡهِمۡ رَسُوۡلًا) سره نو هغه ورله دعا کوی او تاسو ئے انکار کوئ، اعتراضونه پرے کوئ، هغه ئے منی او تاسو ئے نهٔ منئ، څنګه د هغه تابعدار شوئ ؟!، نو دا په بله طریقه باندے د یهودو او نصاراؤ او مشرکانو راګیرول دی.

٤- ابراهیم ﷺ ته الله تعالیٰ بعض احکام اُوسپارل او هغه پرے وفاداری اُوکړه نو پدے وجه ورته په دین کښې امامت او مشری ملاؤ شوه نو پدے کښې یهود، نصاریٰ او مشرکانو ته خبردارے ورکول دی چه په دنیا او آخرت کښې چه انسان ته خیر حاصلیږی نو دا په سرکشی او عناد پریخودلو سره او د الله تعالیٰ احکامو ته په غاړهٔ کیخودو سره.

٥- ابراهیم ﷺ د اولادو دپاره امامت طلب کړے وو لیکن الله ورته اُوفرمایل: ظالمانو ته ئے نهٔ ورکوم نو دا دلیل دے چه کله یهود او نصاریٰ او مشرکین غواړی چه اُوچت منصب ته اُورسیږی نو په دوی لازم دی چه د باطل دپاره به تعصب او عناد پریدی او حق ته به تسلیمیږی. او اے عربو! تاسو خو د ځان نسبت ابراهیم ﷺ ته کوئ او ځان د هغه د حرم اهل او محافظین

کتری، حال دا چه هغه خوضد نهٔ کولو۔

٦- مفسرینو د کلمات ډیر مصداقات ذکر کړیدی چه په هغه ټولو کښې په یهود او نصارئ او مشرکانو رد دے چه دوی دغه کارونه نکوی او دعوئ د ملت ابراهیمی کوی۔ کوم چه روستو راځی۔

۷- کـه تاسو د ابراهیم ﷺ تعظیم او اکرام کوئ نو هغه خو اسلام او توحید ته دعوت ورکړیدے نو هغه قبول کړئ، تاسو به د ابراهیم ﷺ صحیح تابعدار شئ۔

**تبصره** : په مدینه طیبه کښې د اسلامی جماعت او د یهودیانو ترمینځ چه کوم مختلف قسم اختلافات موندے شو په هغے باندے د روښنائی اچولو دپاره دا قصه بے حده اهمه وه نو ځکه ئے الله بیانوی۔ بیا پدے راتلونکو آیتونو کښې عنوانات دی :

| وَاِذِ ابۡتَلٰۤى اِبۡرٰهٖمَ رَبُّهٗ بِكَلِمٰتٍ فَاَتَمَّهُنَّ ، |
|---|
| او کله چه امتحان اُوکړو په ابراهیم (ﷺ) باندے رب د هغهٔ په یو څو خبرو (کارونو) سره نو هغه دا پوره پوره ادا کړل، |
| قَالَ اِنِّىۡ جَاعِلُكَ لِلنَّاسِ اِمَامًا ، قَالَ |
| الله ورته اُوفرمایل : یقیناً زهٔ کرځونکے یم تا لره د خلقو دپاره پیشوا، هغهٔ اُووئیل : |
| وَمِنۡ ذُرِّيَّتِىۡ قَالَ لَا يَنَالُ عَهۡدِى الظّٰلِمِيۡنَ ﴿۱۲۴﴾ |
| او څما د اولادو نه هم (امامان جوړ کړه)۔ الله اُوفرمایل : نهٔ رسیږی وعده زما (د امامت ورکولو) ظالمانو ته۔ |

**تفسیر** : (عنوان) په دے آیت کښې د ابراهیم ﷺ لوئی شان ذکر کوی په دریے صفاتو سره (۱) اول پوره کول د امتحان۔ (د الله د وعدو وفاداری کول)۔ (۲) دویم هغه ته ددین مشری ورکول۔ (۳) دریم د هغه د اولادو په باره کښې د امامت دعا قبلیدل۔ سوئ د ظالمانو نه۔

## ارتباطونه او مناسبتونه

(۱) مخکښې (حَقَّ تِلَاوَتِهٖ) سره هغه خلق ذکر شو چه د الله تعالیٰ کتاب په صحیح طریقے سره لولی او د هغے تابعداری کوی، نو اُوس وائی چه ابراهیم ﷺ له هم کلمات ورکړے شوی وو، نو هغه پوره ادا کړل نو اے مشرکانو او بنی اسرائیلو! تاسو له هم د دوی اقتداء پکار ده۔ (قاسمیؒ)۔

۲- اُذۡكُرُوۡا نِعۡمَتِىَ الَّتِىۡٓ سره ئے تعلق دے چه بنی اسرائیلو ته امر شوے وو چه شکر اُوکړئ او ابراهیم ﷺ ته حکم شوے وو چه تهٔ هم شکر اُوکړه نو هغه پوره کړو او پدے حکم ئے عمل اُوکړو، نو تاسو له د ابراهیم ﷺ اقتداء پکار ده۔ او د هغه شکر دا وو چه توحید ئے قبول کړے وو او تاسو د توحید نه مخ اړوئ۔

۳- مضمونی مناسبت دا دے چه یهود او نصاریٰ او مشرکین د ابراهیم ﷺ د تابعداریٔ دعوه کوی او حقیقت کښې تابعدار نهٔ دی ځکه چه دوی شرك كوی؛ ابراهیم ﷺ بیت الله جوړ کړے، یهود او نصاریٰ ئے نهٔ منی، ددے نبی محمد رسول الله ﷺ دپاره ابراهیم ﷺ دعاء کړے او دا دریواړه ډلے ئے نهٔ منی نو دوی د ابراهیم ﷺ د ملت د اتباع په دعوه کښې دروغجن دی۔

٤- مخکښې ئے اُوونیل چه په قیامت کښې نجات په دغه مخکنو ځلورو طریقو سره نهٔ حاصلیږی نو اُوس د نجات طریقه ذکر کوی چه هغه د ابراهیم ﷺ ملت قبلول دی۔

## د ابتلاء معنیٰ او فوائد

(إِبْتَلَى) : ابتلاء د بَلَاء نه اخستے شویدے په معنیٰ د امتحان او ازمیښت او حقیقت راښکاره کولو دے۔ لکه ﴿هُنَالِكَ تَبْلُوْا﴾ (یونس/ ۳۰)

او په امتحان سره هم د شی حقیقت معلوم شی۔دا معنیٰ په سورة یونس (۳۰) آیت او سورة کهف (۷) آیت او سورة ملك (۲) آیت کښې ذکر ده۔

دا امتحان کله په نعمتونو ورکولو سره وی دے دپاره چه شکر اُوکړی لکه په سورة انفال (۱۷) آیت او سورة فجر (۱۵) آیت کښې ده۔ ○ او کله په مصیبتونو سره وی چه صبر معلوم شی دا په سورة بقره (۱۵۵) آیت کښې ده۔ ○ او کله په معنیٰ د مطلق امتحان سره وی که خیر وی او که شر لکه په سورة اعراف (۱۶۸) آیت او سورة قلم (۱۷) آیت کښې۔

○ او کله امتحان په احکامِ شرعیه ؤ سره وی لکه په سورة مائده (٤۸) آیت او دے (۱۲٤) آیت کښې همدا معنیٰ ده۔

بیا امتحان په دوه قسمه دے : ۱- د مخلوق امتحان [عِلْمُ مَا لَمْ يَعْلَمْ] ته وائی۔

یعنی د هغه شی علم حاصلول چه مخکښې پرے پوهه نهٔ وی او د امتحان په ذریعه معلومات کوی) ...... ۲- او د الله امتحان [اِظْهَارُ مَا قَدْ عَلِمَ لِلنَّاسِ وَلِلْعَبْدِ] ته وائی۔ (یعنی د الله د امتحان مقصد دا وی چه خلقو ته ددے بنده مرتبه راښکاره کړی او دا رنګه خپله دے بنده ته دا ښائی چه ستا مرتبه دا ده، هسے غټے دعوے اُونکړے)۔

نو د الله تعالیٰ د امتحان مقصد دا نهٔ وی چه هغه ته اُوسه پورے د یو انسان حقیقت نهٔ دے معلوم او په امتحان سره ئے معلوموی، بلکه دلته مقصد دا دے چه خلقو ته ددهٔ مرتبه راښکاره کوی۔ نورے فائدے روستو اُوګوره۔

## د ابتلاء او امتحان مقصد اوفوائد څه دی؟

ابتلاء او امتحان په دنيا کښې په کافر هم راځي او په مؤمن هم. د کافر د ابتلاء مقصد دا دے: [اَلرُّجُوْعُ اِلَى الْحَقِّ اَوِ الْعُقُوْبَةِ] (دے دپاره چه کافر حق ته راواپس شي او که په امتحان کښې پاس شي نو د عذاب نه بچ شي). او که پاس نشي نو دا يو قسم سزا شوه.

او د مؤمن د ابتلاء مقصد: (۱) تَصْفِيَةُ الْعِبَادِ (يعني د بندګانو صفا کول مقصد وي) ځکه چه بنده کله په خپلو خواهشاتو او عاداتو کښې ډوب وي، نو دا ډير بدرنګ وي نو الله پرے ابتلاء ات راولي، ددۀ عادتونه ګډوډ شي نو ددۀ توجه الله ته پيدا شي، ګناهونه ترے اُوزيږي، نو کمال پکښې پيدا شي. لکه څنګه چه سرۀ زر په خاورو او ګندونو کښې پراته وي نو زرګر هغه په اُور کښې واچوي دے دپاره چه ددے نه ګندونه زائل شي او صفا سرۀ پاتے شي چه کالي او ګانړۀ ترے جوړه شي.

دے نه بل تعبير کيږي په [تَكْفِيْرُ السَّيِّئَاتِ] سره (يعني د بنده ګناهونه رژول).

۲- [اَلرُّجُوْعُ اِلَى اللهِ بِالتَّوْبَةِ] دے دپاره چه بنده الله ته رجوع اُوکړي په توبه ويستلو سره او اينده کښې د ګناهونو نه په ځان ساتلو سره). ۳- [رَفْعُ الدَّرَجَاتِ] (که ګناهونه ئے نۀ وي يا کم وي نو امتحان سره ئے په دنيا او آخرت کښې درجات پورته کيږي) کله الله تعالىٰ يو بنده له اُوچته درجه ليکلي وي ليکن هغه ئے په اعمالو نشي حاصلولے ځکه چه اعمال ئے کمزوري وي نو الله تعالىٰ پرے امتحانات راولي چه خپلو اُوچتو مرتبو ته ئے اُورسوي.

٤- کله امتحاناتو کښې مقصد د داعي او نبي زړۀ قوي کول وي او هغه د اُوچتو کارونو دپاره تيارول وي.

٥- کله پدے کښې عمومي فائده وي چه الله تعالىٰ خپل ربوبيت ښکاره کوي، چه هغه په خپلو بندګانو کښې څنګه غوارې تصرف کولے شي. نورے فائدے به (ولنبلونکم) آيت (۱۵۵) کښې راځي ان شاء الله تعالىٰ.

## د ابتلاء اتو او امتحاناتو اقسام

امتحانات الله تعالىٰ په انبياء عليهم السلام هم راولي او په عامو انسانانو هم. د انبياؤ ابتلاء ډيره سخته وي لکه حديث کښې دي: [اَشَدُّ النَّاسِ بَلَاءً الْاَنْبِيَاءُ ثُمَّ الْاَمْثَلُ فَالْاَمْثَلُ يُبْتَلَى الرَّجُلُ عَلٰى حَسَبِ دِيْنِهٖ فَاِنْ كَانَ فِيْ دِيْنِهٖ صُلْبًا اِشْتَدَّ بَلَاؤُهٗ وَاِنْ كَانَ فِيْ دِيْنِهٖ رِقَّةٌ اُبْتُلِيَ عَلٰى قَدْرِ دِيْنِهٖ فَمَا يَبْرَحُ الْبَلَاءُ بِالْعَبْدِ حَتّٰى يَتْرُكَهٗ يَمْشِيْ عَلَى الْاَرْضِ وَمَا عَلَيْهِ خَطِيْئَةٌ] [الطيالسي: ۲۹ رقم ۲۱۵، واحمد (۱٤۸۱)، والترمذي رقم: (۲۳۹۸) بسند صحيح] (د ټولو نه سخت امتحان والا انبياء دي، بيا هغه څوک چه د هغوي نه روستو غوره وي بيا هغه څوک چه د هغوي نه روستو غوره وي. هر سړي باندے د هغه د دين مطابق امتحان راځي، که په دين کښې سخت وي نو امتحان ئے هم سخت وي، او که دين کښې نرم

وی نو امتحان ئې هم د هغې مطابق وی، په بنده باندې امتحان همیشه وی تردې چه دا په زمکه روان وی او هیڅ گناه پرې نهٔ وی)۔

په انبیاء علیهم السلام کښې که چا باندې دینی ابتلاء ات زیات وی نو دنیاوی او بدنی امتحانات پرې کم وی لکه ابراهیم ﷺ وغیره۔ او که په چا باندې دینی امتحان کم وی نو دنیاوی ابتلاء ات پرې زیات راغلی دی لکه ایوب ﷺ باندې اتلس کاله بیماری وه۔ او اهل، اولاد او مالونه ترې اخستې شوی وو۔ او په یعقوب ﷺ باندې د خوی (یوسف ﷺ) د ورك کیدو امتحان وو۔ بعض انبیاؤ باندې د مال ابتلاء راغلې وه چه د لوږې نه مړهٔ شویدی۔ لکه دا په صحیح حدیث کښې ثابت دی۔ وَمِنْهُمْ مَنْ قَتَلَهُ الْجُوْعُ (الصحیحة)۔

بیا دینی امتحانات کله داسې وی چه انسان ته به حرام او ممنوع څیزونه او خواهشات زیات او فراخه شی لکه یوسف ﷺ باندې د زلیخا امتحان راپیښ شو، کله دکاندار باندې د مانځه په وخت گاهك رازیات شی او مونځ او جماعت ترې قضاء کړی دا هم امتحان دې۔

کله دینی امتحانات داسې وی چه داعی ته کله لارې نیولې کیږی، وژلې کیږی، کورنه ویستلې کیږی، شړلې کیږی، بحثونه او مناظرې ورسره کیږی، پرې او رعبونه پرې اچولې کیږی، جیلونو ته لیږلې شی۔ او پدې دواړو حالتونو کښې د بنده حقیقت راښکاره کیږی۔

## فائده : -- د ابراهیم علیه السلام تعارف :

(ابراهیم) : خازنؒ وغیره لیکی : ابراهیم عجمی نوم دې معنیٰ ئې ده (اَبٌ رَحِيْمٌ) (مهربانه پلار) ددهٔ د نسب سلسله داسې ده : ابراهیم بن تارخ چه دهٔ ته آزر هم وائی۔ ابن ناخور بن شاروع بن ارغو بن فالغ بن عابر بن شالخ بن ارفخشد بن سام بن نوح علیه السلام، ابراهیم ﷺ د أهواز علاقې په سوس کلی کښې پیدا شوې وو۔ بعض وائی په بابل کښې۔ بعض وائی په کوثی علاقه کښې پیدا شوې وو چه دا د کوفې د باندونه یو کلې دې، بعض وائی په حران کښې پیدا وو بیا پلار منتقل کړو بابل (عراق) ته چه دا د نمرود جبار زمکه وه۔

ابراهیم ﷺ هغه منلې شوې پیغمبر دې چه هره طائفه خپل ځان هغه ته منسوب کوی، پدې وجه الله تعالیٰ دلته د ابراهیم ﷺ واقعه ذکر کړه، او داسې کارونه ئې د هغه نه نقل کړل چه مشرکان او یهود او نصاریٰ ئې د رسول الله ﷺ د خبرې قبلولو ته او د هغه د شریعت تابعداریٔ ته او د هغه په دین باندې اقرار کولو ته مجبوره کړل ځکه کوم کارونه چه الله تعالیٰ په ابراهیم ﷺ لازم کړیدی بعینه دا د محمد ﷺ د دین خصوصیات دی نو دا په مشرکان او یهود او نصاراؤ باندې پوره حجت او دلیل دې چه دوی به ضرور په محمد ﷺ ایمان راوړی او د هغه د شریعت

تابعداری به کوی. (تفسیر خازن ۱/ ۹۰)

﴿ رَبُّهُ ﴾ دا فاعل دے او روستو شو، او ابراهیم مفعول مقدم شو ځکه چه د مفعول په مقدم کولو کښی کله مقصد اهتمام وی، او ابتلاء کونکے فاعل خو معلوم وو چه الله دے. دویم: ددے دپاره چه د (رَبُّهُ) ضمیر هغه ته راجع شی ځکه چه بیا اضمار قبل الذکر لازمیدلو. دریم: پدے جمله کښی په نسبت د (وَاِذِ ابْتَلٰى اللّٰهُ اِبْرَاهِیْمَ رَبُّهُ) اختصار هم دے.

**فائده**: رَبُّهُ: د ابتلاء نسبت ئے رب ته اُوکړو، او فاعل ئے رب راوړو پدے کښی اشاره ده چه پدے ابتلاء کښی حکمت ددهٔ تربیت کول وو، او ددهٔ عزم مضبوطول وو، دے دپاره چه د درنو او غټو کارونو د پورته کولو دپاره تیار شی. (الوسیط) او اُوچتو مقاماتو او درجاتو ته اُورسولے شی ځکه چه رب هغه ذات ته وائی چه یو شے په آرام آرام د کمال درجے ته رسوی. او دا مقصد د امتحان وو. نهٔ دا چه الله خپله ددهٔ معلومات حاصلول وو.

﴿ بِكَلِمَاتٍ ﴾ دا کلمات څهٔ شے وو؟. دا امتحان د مدرسو او د یونیورسټو اونورو تعلیمی ادارو د امتحان په شان نهٔ وو چه فنی مسائل او د هغے تحقیقات معلوم کړے شی بلکه پدے سره د ابراهیم ؑ اخلاقی درجات او عملی صبر ازمائیل وو.

## د کلماتو مصداق

ددے کلماتو په مصداق کښی علماؤ ډیر اقوال ذکر کړیدی، ماوردیؒ، ابن الجوزیؒ وغیره پدے کښی اته او اُوه اقوال ذکر کړیدی، بعض قوی او بعض ضعیف دی.

۱- څوك وائی: دا شعب الایمان (د ایمان څانګے) او کارونه وو، هغه ئے وراُوخودل چه دا دا به کوے. ۲- او بعض وائی: د کلماتو نه مراد هغه لس کارونه دی چه هغے ته سنن الفطرة وائی چه پنځه په سر کښی دی او پنځه په بدن کښی دی لکه مضمضه، استنشاق کول، (یعنی پوزے ته اُوبه اچول) مسواك وهل، بریت وهل، د سر د ویښتو په مینځ کښی لاره جوړول. پنځه په بدن کښی دا دی: نوکونه پریکول، د نامه نه لاندے ویښته خرئیل، ختنه (سنت) کول، د ترخونو ویښته ویستل، په اوبو سره استنجاء کول. دا څیزونه هم الله تعالیٰ ابراهیم ؑ ته ورکړی وو لیکن دلته د کلماتو دا تفسیر کول بعید دی.

وجه دا ده چه ابتلاء په هغه شی سره کیږی چه د مزاج خلاف وی او دا خو د فطرت او مزاج موافق څیزونه دی.

۳- دارنګه بعض مفسرین لیکی: ددے نه مراد د شریعت احکام او د حج احکام دی.

٤- بعض وائی: ددے نه هغه دیرش احکام (اوامر او نواهی) دی چه هغه د مؤمنانو صفات

دی۔ ابن عباسؓ فرمائی: لس په سورة التوبة (۱۱۲) آیت کښې دی:

﴿ اَلتَّائِبُوْنَ الْعَابِدُوْنَ الْحَامِدُوْنَ السَّائِحُوْنَ الرَّاكِعُوْنَ السَّاجِدُوْنَ الْآمِرُوْنَ بِالْمَعْرُوْفِ وَالنَّاهُوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ وَالْحَافِظُوْنَ لِحُدُوْدِ اللهِ وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴾

او لس په سورة المؤمنون (۱۱/۱) آیت کښې دی: ﴿ قَدْ اَفْلَحَ الْمُؤْمِنُوْنَ ○ الَّذِيْنَ هُمْ فِيْ صَلَاتِهِمْ خَاشِعُوْنَ ○ وَالَّذِيْنَ هُمْ عَنِ اللَّغْوِ مُعْرِضُوْنَ ○ وَالَّذِيْنَ هُمْ لِلزَّكَاةِ فَاعِلُوْنَ ○ وَالَّذِيْنَ هُمْ لِفُرُوْجِهِمْ حَافِظُوْنَ ○ اِلَّا عَلٰى اَزْوَاجِهِمْ اَوْ مَا مَلَكَتْ اَيْمَانُهُمْ فَاِنَّهُمْ غَيْرُ مَلُوْمِيْنَ ○ فَمَنِ ابْتَغٰى وَرَاءَ ذٰلِكَ فَاُولٰئِكَ هُمُ الْعَادُوْنَ ○ وَالَّذِيْنَ هُمْ لِاَمَانَاتِهِمْ وَعَهْدِهِمْ رَاعُوْنَ ○ وَالَّذِيْنَ هُمْ عَلٰى صَلَوَاتِهِمْ يُحَافِظُوْنَ ○ اُولٰئِكَ هُمُ الْوَارِثُوْنَ الَّذِيْنَ يَرِثُوْنَ الْفِرْدَوْسَ هُمْ فِيْهَا خَالِدُوْنَ ○ ﴾

او لس په سورة الاحزاب (۳۵) آیت کښې دی: ﴿ اِنَّ الْمُسْلِمِيْنَ وَالْمُسْلِمَاتِ وَالْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنَاتِ وَالْقَانِتِيْنَ وَالْقَانِتَاتِ وَالصَّادِقِيْنَ وَالصَّادِقَاتِ وَالصَّابِرِيْنَ وَالصَّابِرَاتِ وَالْخَاشِعِيْنَ وَالْخَاشِعَاتِ وَالْمُتَصَدِّقِيْنَ وَالْمُتَصَدِّقَاتِ وَالصَّائِمِيْنَ وَالصَّائِمَاتِ وَالْحَافِظِيْنَ فُرُوْجَهُمْ وَالْحَافِظَاتِ وَالذَّاكِرِيْنَ اللّٰهَ كَثِيْرًا وَالذَّاكِرَاتِ اَعَدَّ اللّٰهُ لَهُمْ مَغْفِرَةً وَّاَجْرًا عَظِيْمًا ○ ﴾۔ (ابن کثیرؒ، قرطبیؒ)

د قرآن د ترجمان مفسر ابن عباسؓ ددے وینا نه معلومه شوه چه د یو مسلمان دپاره تول ضروری هغه صفات چه عملی، علمی او اخلاقی دی، ددے درے وارو سورتونو په یوشو آیتونو کښې راجمع کړے شویدی او دا هغه صفات دی چه د ابراهیم ﷺ از میښت پرے شوے وو او په ((وَاِذِ ابْتَلٰى اِبْرَاهِيْمَ رَبُّهٗ بِكَلِمَاتٍ)) کښې هم دغه صفاتو ته اشاره ده۔

نو څوك چه دا دیرش اخلاقی او عملی صفات په کامل مکمله طریقه سره خپل کړی او پدے باندے عمل اُوکړی نو الله تعالیٰ به ده ته دغه شان په دین کښې امامت ورکړی۔ او ددے دیرشو صفاتو خلاصه الله تعالیٰ په بل آیت کښې په دوه لفظونو کښې ذکر کړیده چه هغه صبر او یقین دے۔ فرمائی: ﴿ وَجَعَلْنَا مِنْهُمْ اَئِمَّةً يَّهْدُوْنَ بِاَمْرِنَا لَمَّا صَبَرُوْا وَكَانُوْا بِاٰيٰتِنَا يُوْقِنُوْنَ ﴾ [الم السجدة/۲۴]

(مونږ د هغوی نه پیشوایان او امامان جوړ کړل چه زمونږ په امر سره به ئے خلقو ته هدایت کولو، هرکله چه دوی خپل نفس د خلاف شریعت خبرو نه ایسار کړو او زمونږ په آیتونو ئے یقین اُوکړو)۔ مطلب دا چه یقین علمی او اعتقادی کمال دے او صبر اخلاقی او عملی کمال دے۔ دا دواړه د امامت فی الدین شرط او معیار دے۔ لیکن اول قول او دا قول تقریباً یو شے شو۔ شعب الایمان دا هم دی۔

۵۔ سعید بن جبیرؒ فرمائی: دا هغه کلمات دی چه کله ابراهیم او اسماعیل علیهما السلام بیت الله پورته کولو نو الله تعالیٰ ورته خودلی وو چه دا کلمات وایئ: [سُبْحَانَ اللهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلَا اِلٰهَ

إِلَّا اللهُ وَاللهُ أَكْبَرُ] نو دوی به دا ویلیل - (بغوی فی معالم التنزیل).

۹- ظاهره دا ده چه د کلمات نه مراد امتحانات دی. چه هغه څهٔ دنیوی قدری وو او څه شرعی امتحانات وو.

۱- یو دا چه هغه په اسلام مکلف شو نو اسلام ئے قبول کړو او الله تعالیٰ ته تابعدار شو لکه روستو (۱۳۱) آیت کښې راځی.

۲- په هجرت باندې پرے امتحان اُوشو نو وطن ئے پریخودو او شام ته لاړو لکه په سورة صافات (۹۹) او عنکبوت (۲۶) آیت کښې دی.

۳- مُحَاجه (مناظره) ئے د پلار سره اُوکړه لکه په سورة مریم (٤٦) آیت کښې دی.

٤- د قوم مقابله ئے اُوکړه لکه په سورة انعام (۸۰) آیت کښې دی.

۵- د نمرود سره ئے مقابله راغله او هغه ئے پر کړو لکه په سورة بقره (۲۵۸) آیت کښې دی.

۶- د بچی (اسماعیل ﷺ) په ذبح کولو ورته حکم اُوشو نو هغے ته تیار شو. لکه سورة صافات (۱۰۶) آیت کښې دی.

۷- ښځه (هاجره) ئے د مکے په صحراء کښې پریخودله سره د بچی (اسماعیل ﷺ) نه چه دا ډیر ګران کار وو. لکه په سورة ابراهیم (۳۷) آیت کښې دی.

۸- د الله تعالیٰ د دین د خاطره اُور ته ګوزار شو، په هغے ئے صبر اُوکړو. لکه په سورة الانبیاء (۶۸) آیت کښې دی.

۹- د کعبے په جوړولو ورته حکم اُوشو هغه ئے پوره کړو. دارنګه روستو چه کوم حکمونه راغلی دی چه هغه تطهیر البیت (د بیت الله پاك ساتل) وغیره وغیره.

۱۰- ابن الجوزیؒ په تفسیر زاد المسیر کښې لیکی: د ابراهیم ﷺ هر سوال او هره دعاء چه په قرآن کریم کښې ذکر ده هغه په کلماتو کښې داخل ده.

راجح دا ده چه دے ټولو ته کلمات لفظ شامل دے.

شیخ ابن عثیمینؒ په خپل تفسیر کښې فرمائی: [وَأَصَحُّ الْأَقْوَالِ فِيهَا أَنَّ كُلَّ مَا أَمَرَهُ بِهِ شَرْعًا أَوْ قَضَاهُ عَلَيْهِ قَدَرًا فَهِيَ كَلِمَاتٌ، فَمِنْ ذٰلِكَ أَنَّهُ ابْتُلِيَ بِالْأَمْرِ بِذَبْحِ ابْنِهِ الخ]

(پدے ټولو اقوالو کښې ډیر صحیح قول دا دے چه هر هغه شے چه الله تعالیٰ پرے ابراهیم ﷺ ته شرعاً حکم کړیدے یا ئے په هغه باندے په تقدیر کښې لیکلے (یعنی مصیبت وغیره) نو دا ټول کلمات دی لکه د بچی په ذبح کولو ورته امر اُوشو دا هم شرعی امتحان دے) او داسے نور ئے ذکر کړی کوم چه مخکښې مونږ ذکر کړل.

نو غټ غټ امتحانات پرې الله راوستل چه په هغې کښې ابراهیم ؑ کامیاب شو او د هغې په بدله کښې د امامت په منصب باندې کامیاب کړې شو۔

## د ابراهیم ؑ - صفات

سعید بن المسیبؒ وائی : ابراهیم ؑ اول ځان سنت (ختنه) کړیدې، اول ئې میلمستیا ورکړیده، اول ئې زیرناف وېښته خرئیلي دي، اول ئې نوکونه پرې کړیدي، اول ئې بریت واړهٔ کړیدي، او اول سپین ګیرې شویدې، کله ئې چه د وېښتو سپینوالے اُولیدو وې فرمایل : اے الله ! دا څهٔ دي ؟ الله اُوفرمایل : دا وقار (عزت) دے، دهٔ اووئیل اے الله ! زما وقار زیات کړه۔ (الموطا لمالك)

ابوبکر بن ابی شیبةؒ د سعید بن ابراهیمؒ نه هغه د خپل پلار نه نقل کوی :[اَوَّلُ مَنْ خَطَبَ عَلَى الْمَنَابِرِ اِبْرَاهِيْمُ خَلِيْلُ اللهِ] (په منبر باندې اول تقریر ابراهیم خلیل الله ؑ کړیدے)۔

خینو وئیلی دی : [اَوَّلُ مَنْ ثَرَدَ الثَّرِيْدَ، وَاَوَّلُ مَنْ ضَرَبَ بِالسَّيْفِ وَاَوَّلُ مَنِ اسْتَاكَ وَاَوَّلُ مَنِ اسْتَنْجٰى بِالْمَاءِ وَاَوَّلُ مَنْ لَبِسَ السَّرَاوِيْلَ]

(اول ئې په کاسه کښې روټئ ماته کړیده، اول ئې په توره وهل کړیدي، اول ئې مسواک وهلے دے، اول ئې په اُوبو استنجاء کړیده، اول ئې پرتوګ اغوستے دے) — [ذکرها القرطبي:۲/۹۸وغیره]

په حدیث د بخاري وغیره کښې دي : ابراهیم ؑ اول ځان سنت کړیدے او دا د اتیا کالو په عمر وو او په تیشه او تخزه ئې ځان سنت کړو۔

نو پدے ټولو فطري کارونو کښې ابراهیم ؑ د سابقینو نه دے۔

﴿ فَاَتَمَّهُنَّ ﴾ یعنی (اَدَّاهُنَّ تَامَّاتٍ) [النیسابوری۱/٤٦٥] (دا امتحانات ئې پوره پوره ادا کړل) او الله چه ورسره کومې وعدې کړې وې او کوم اوامر او نواهي ئې کړی وو، هغې باندې ئې مکمل طریقې سره عمل اُوکړو، څکه ورله الله تعالیٰ په سورة النجم (٤٨) آیت کښې دا سے صفت کړیدے

﴿ وَاِبْرَاهِيْمَ الَّذِيْ وَفّٰى ﴾ ...... (ابراهیم هغه شخص دے چه د الله په وعدو ئې وفاداری کړیده)۔

سُبْحَانَ الله ! بحیثیت انسان یو ضعیف او فقیر مخلوق، او د هغه په حق کښې د آسمانونو او زمکې خالق داسے ګواهي ورکوی چه دا زما وفادار بنده دے، دا هغه بلند مقام دے چه دیته صرف د ابراهیم ؑ په شان شخصیت رسیدے شي، د عظیم سعادت او لوئې اعتماد مستحق شو۔

(دا وو د امتحان نه سند فراغت)۔

فَاَتَمَّهُنَّ کښې ئې نسا راوړه اشاره ده چه دا ئې سندست پوره کړی وو۔ نو پدے کښې رد دے په بنی اسرائیلو چه دوی ته د الله تعالیٰ حکمونه شوی وو او کیږی، او دوی هغې ته سبقت نهٔ کوی لکه د غوا په باره کښې ئې څو مره چون وچرا کړې وه، د تورے ویستلو او ځان قتلولو په باره کښې، د کتاب

(تورات) د قبلولو په باره کښې ئې څو مره چیر چاړ کړے وو۔ دارنګه موجوده یهودیان ددے نبی ﷺ په باره کښې څو مره افتراء ات او دروغ بیانوی او ددهٔ د نبوت نه د انکار دپاره څو مره بهانے تلاش کوی، نو دوی د ابراهیم ﷺ متبعین نشی کیدے۔

**فائده** : آیا دا امتحان د هغه د نبوت نه مخکښې وو او که روستو ؟ : ۱- بعض وائی دا قبل النبوة وو ځکه چه انسان اول امتحان کښې پاس شی بیا ورته انعام ورکولے شی، نو دلته هم ابراهیم ﷺ ته د امتحان د کامیابئ نه روستو امامت او نبوت ملاؤ شو، دلیل پرے روستو ﴿قَالَ اِنِّیْ جَاعِلُكَ لِلنَّاسِ اِمَامًا﴾ دے، ځکه سبب په مسبب باندے مقدم وی۔

۲- بعض وائی دا امتحان د نبوت نه روستو وو ځکه چه د الله تعالیٰ د وحی نه روستو نبی وغیره مکلف کولے شی او تکلیف په وحی سره معلومیږی۔ مفسر خازن د دوارو قولونو تطبیق داسے کوی : چه حقه دا ده چه بعض امتحانات د نبوت نه مخکښې وو لکه مثلاً د قوم سره د نمر، سپوږمئ او د ستورو د اُلوهیت او ربوبیت په باره کښې مناظره کول د نبوت نه مخکښې وو۔ او که د دغه امتحاناتو نه مراد دینی او شرعی احکام واخلو نو بیا به دا امتحان د نبوت نه روستو وی۔ (تفسیر خازن ۱/۹۲)

هر کله چه ابراهیم ﷺ په امتحاناتو کښې کامیاب شو نو الله تعالیٰ ورته اُوس یوه تمغه او جائزه او انعام ورکوی۔ چه هغه د ټولو انعاماتو نه په دنیا کښې لوئی انعام دے چه هغه په دین کښې امامت او مشری ده۔

﴿قَالَ اِنِّیْ جَاعِلُكَ لِلنَّاسِ اِمَامًا﴾ یعنی زهٔ دے د خلقو دپاره پیشوا ګرځوم داسے پیشوا چه د خلقو دپاره قبله او کعبه وی هغوی لره الله تعالیٰ ته رسونکے وی، او په نیک کارونو کښې د ټولو نه مخکښې کیدونکے وی او خلق د هغه پسے وی او د خلقو محبوب قائد وی۔ (فی ظلال)

امام قرطبیؒ معنیٰ کوی : [یَاْتَمُّوْنَ بِكَ فِیْ هٰذِهِ الْخِصَالِ وَیَقْتَدِیْ بِكَ الصَّالِحُوْنَ] (د دین پدے خصلتونو او کارونو کښې به خلق ستا پسے روان وی او نیکان خلق به ستا اقتداء کوی)۔

خازنؒ وائی : [یُقْتَدٰی بِكَ فِی الْخَیْرِ وَیَاْتَمُّوْنَ بِسُنَّتِكَ وَهَدْیِكَ، وَالْاِمَامُ هُوَ الَّذِیْ یُؤْتَمُّ بِهٖ]

(یعنی په خیر او نیکو کارونو کښې به ستا اقتداء کولے شی او خلق به ستا د سنت او طریقو تابعداری کوی، ځکه امام هغه چا ته وائی چه د هغه اقتداء کولے شی)۔

یعنی د دین مشری درله درکوم۔ الله رب العزت هغه له د دین مشری ورکړے وه، دا مطلب نهٔ دے چه دا اُوسه پورے امام نهٔ وو، اُوس امام شو، نهٔ د مخکښې نه امام وو، ځکه پیغمبر وو خو مطلب دا دے چه د عامو خلقو مشری درله درکوم، د ټولو پیغمبرانو مُقتدیٰ به جوړ شے او

همدغه شان اُوشوه چه ټول پیغمبران د هغه په اولاد کښې راغلي دي. ﴿وَجَعَلْنَا فِي ذُرِّيَّتِهِ النُّبُوَّةَ وَالْكِتَابَ﴾ (العنکبوت/۲۷) مونږ د هغه په اولادو کښې نبوت او کتاب راولیږلو) ځکه چه ډیرے اُوچتے کارنامے ئے اُوکړے او کړاؤنه ئے تیر کړل.

او الله فرمایلي دي : ﴿مِلَّةَ أَبِيكُمْ إِبْرَاهِيمَ﴾ ...... [الحج: ۷۸]

(دا دین اسلام ستاسو د پلار ابراهیم ملت دے، ددے تابعداری اُوکړئ)

او ټول خلق د دین په اصولو او مکارم الاخلاق (ښائسته اخلاقو او صفاتو) کښې د ابراهیم علیه السلام اقتداء کوي.

دا دلیل دے په دے چه سړے په دین کښې هله مشر کیږي چه مشقتونه او تکلیفونه برداشت کړي. امتحاناتو کښې به واوړي راواوړي نو روسته به ورته بیا مشري ملاویږي.

**حکمة** : ((اِمَامًا)) ئے اُوویئیل، (رَسُوْلًا) ئے اُونهٔ وئیل؟ پدے کښې حکمة دا دے چه امام لفظ کښې کمال زیات دے ځکه چه دا دلالت کوي چه د ابراهیم علیه السلام د رسالت نه به په طریقه د تبلیغ هغه څوك هم فائده اخلي چه دا چا ته لیږلے شویدے او نورو امتونو ته به فائده رسیږي په طریقه د اقتداء ځکه چه ابراهیم علیه السلام ډیرو ملکونو ته سفر کړے وو لکه د کلدان د علاقو نه عراق ته تلے وو دارنګه شام، حجاز او مصر ته او پدے ټولو علاقو کښې دا د خلقو ښائسته مُقتدئ وو.

(الوسیط)

**فائده** : د امامت درجه د نبوت نه اُوچته نهٔ ده لکه څنګه چه شیعه ګان وائي بلکه دلته مراد د دین مشري ده او د نورو انبیاؤ او د حق د داعیانو دپاره په دین کښې مُقتدئ او پیشوا جوړیدل دي.

## د امامة فی الدین معنیٰ او مطلب :

په دین کښې د امامت نه مراد دا دے چه الله تعالیٰ انسان لره په دیني کار کښې اُولګوي، د دین خدمت او مشري اُوکړي، چا کښې اهلیت زیات وي نو هغه نه الله تعالیٰ ډیر کار اخلي لکه ځینو علماؤ باندے ټوله دنیا آباده وي لکه انبیاء او رسولان او صحابه کرام شو. او بعضو باندے یو ملك او په چا یوه علاقه او په چا یو مسجد آباد وي او په چا څهٔ کسان آباد وي هغوی ته دین بیانوي. دا ټول د امامت فی الدین درجات دي.

د امامتئ نه مراد د دین مشري ده که د جمات امام شوے، که مدرس شوے، د دین بیانونکے شوے، قاضي شوے. دارنګه د دین غټ غټ کارونه دِے اُوکړل نو دا هم د دین امامتي ده او دا الله تعالیٰ بعض بندګانو ته ورنصیب کوي او دا ډیر لوئي منقبت او شرافت دے، یو سړے بادشاه شي او بل سړے د جمات خطیب او امام شي نو د جمات امامت ډیر غوره دے ددغه بادشاهئ نه چه د

گمراهئ او کفر سره وي. او که يو انسان د الله تعالیٰ قانون او دين نافذ کوي نو بيا هغه غوره او هغه اصلي امام دے۔

## د امامت فی الدين صورتونه :

۱- د يو امت نبي جوړيدل۔ ۲- د مسلمانانو خليفه جوړيدل۔ ۳- د دين په دعوت کښې مشر کيدل او د خلقو مَرجع او مُقتدیٰ گرځيدل۔ ٤- درس او تدريس کښې مشغوله کيدل او د طالب علمانو علمي، عقيدوي، عملي او اخلاقي تربيت کول۔ ٥- په مانځه کښې امامت۔ که يو تن مانځه ته مخکښې کړے شي، دا هم يو قسم امامت دے۔ ابوبکر صديق ﷺ چه کله د رسول الله ﷺ نه مانځه ته مخکښې شوے وو او هغه ته د نبي ﷺ د طرف نه اشاره اُوشوه چه مهٔ رازد ستو کيږه نو هغه په مانځه کښې لاس پورته کړو او الحمد لله ئې اُووئيله۔ (صحيح بخاري ٦٨٤) څکه چه هغه ته د امامت فی الصلاة مرتبه حاصله شوه۔ چه نبي د هغه نه روستو ولاړ دے!!۔

## د امامت فی الدين د حاصلولو اسباب :

۱- الايمان الصحيح۔ (صحيح ايمان) لرل۔ ۲- العمل الصالح۔ (نيک عمل) ۳- الصبر۔

٤- واليقين۔ (يعني د الله په وعدو باندے مضبوط يقين کول) لکه مخکښې تير شو چه په صبر کښې عملي او اخلاقي کمال دے او په يقين کښې علمي او عقيدوي کمال دے۔

ددے وجه نه علماؤ دا قانون خودلے دے چه [بِالصَّبْرِ وَالْيَقِيْنِ تُنَالُ الْإِمَامَةُ فِي الدِّيْنِ]

(يعني په صبر او يقين سره د دين امامت حاصليدے شي)

په بني اسرائيلو کښې دا دوه صفات پيدا شوي وو نو الله تعالیٰ ترے د دين امامان جوړ کړل۔

﴿ وَجَعَلْنَا مِنْهُمْ اَئِمَّةً يَّهْدُوْنَ بِاَمْرِنَا لَمَّا صَبَرُوْا وَكَانُوْا بِاٰيٰتِنَا يُوْقِنُوْنَ ﴾ (السجدة/ ٢٤)

٥- اَلتَّقْوٰى بَيْنَكَ وَبَيْنَ اللهِ ۔ ستا او د الله ترمينځ تقویٰ پيدا کيدل۔ انسان کښې چه څومره تقویٰ وي الله تعالیٰ ئې په هغه اندازه کښې په دين کښې استعمالوي۔

٦- اَلتَّوَاضُعُ بَيْنَكَ وَبَيْنَ النَّاسِ ۔ ستا او د خلقو ترمينځ به تواضع او عاجزي وي) په خلقو باندے تکبر کول او ځان په هغوي لوئي گنړلو سره انسان صحيح ديني امام نهٔ جوړيږي۔

٧- اَلزُّهْدُ بَيْنَكَ وَبَيْنَ الدُّنْيَا ۔ (د دنيا نه بے رغبته کيدل) او د فاني دنيا د څيزونو سره مينه نهٔ کول چه د هغے د وجه نه انسان ديني کارونه پريدي۔

٨- [مُجَاهَدَةٌ فِيْمَا بَيْنَكَ وَبَيْنَ النَّفْسِ] (د نفس سره مجاهده کول) او په نفس باندے په نيک اعمالو کولو کښې زور کول او نفس کړول۔ هر قسم قرباني ته ئې تيارول۔

۹- الدعوة. (یعنی د الله د دین دعوت او تبلیغ کول) که یو انسان سره علم وی او د هغې دعوت په مختلفو طریقو سره نهٔ کوی او د مسلمانانو د اصلاح کوشش نهٔ کوی نو هغه نه امام فی الدین نهٔ جوړیږی.

۱۰- حقوق الله او حقوق العباد اداء کول. کوم انسان چه د الله او د بندګانو په حقوقو کښې سُستی کوی نو هغه نه د دین امام نشی جوړیدے. لکه پردی مالونه غلا کوی یا قرضونه اخلی او بیا تریے انکار کوی وغیره نور صورتونه شو یا د مونځونو او عباداتو پابند نهٔ وی.

۱۱- [تَرْكُ الظُّلْمِ بِجَمِيْعِ اَنْوَاعِهٖ] - (ظلم سره د ټولو اقسامو نه پریخودل) د شرك نه واخله تر وړے ګناه پورے دا ټول به پریدی. ظلم پدے مقام کښې شرك، کفر، کبیره او صغیره ګناهونو او خلاف اولیٰ ټولو ته شامل دے.

بس دا یاد ساتل پکار دی چه انسان کښې څومره درجه ظلم وی هغومره به ددهٔ د دین مشری وی که ظلم ئے زیات وو نو ډیر به محروم وی او که ظلم ئے کم وی نو هغومره به ئے د دین مشری هم کمه وی نو کوم طالبان د دین چه د طالب العلمیٔ په دوران کښې په علم کښې بے باکه وی او د الله د حدودو خیال نهٔ ساتی نو هغه که هرڅومره ذهین او قابل وی، هغه ته به د دین مشری نهٔ ملاویږی او چه په دوران د طالبیٔ کښې ډیر بے باکه او ظالم وی نو هغه به الله تعالیٰ د خپل دین په خلاف کښې استعمالوی او که ادنیٰ درجه ظلم وی نو نهٔ به د دین په ضرر کښې استعمالیږی او نهٔ به د دین د فائدے دپاره. بلکه یو عام انسان به وی.

او که یو انسان امام فی الدین وی او ګناهونه او ظلمونه شروع کړی نو هغه نه به الله تعالیٰ بیرته امامت فی الدین اخلی. ابوجهل، ولید، عتبه، شیبه، ابی بن سلول ته الله تعالیٰ د دین مشری ورنکړه بلکه د کفر امامان ئے اُوګرزول ځکه چه دوی کښې اعلیٰ درجه ظلمونه وو او نبی ﷺ او صحابه کرامو ته ئے د دین مشری ورکړه ځکه چه هغوی کښې ظلمونه نهٔ وو. او کوم انسان چه د الله په طاعاتو کښې وخت تیروی نو هغه ته الله تعالیٰ مقبولیت او ښائسته شهرت ورکوی او د دین مشر ئے جوړوی.

نو ابراهیم علیه السلام رحم ډل انسان وو. د خپل اولادو دپاره ئے هم دغه مشری اُوغوختله چه هغوی هم د دین کار کوی.

﴿قَالَ وَمِنْ ذُرِّيَّتِيْ﴾ یعنی [اِجْعَلْ مِنْ ذُرِّيَّتِيْ اَئِمَّةً] (زما په اولادو (اونسل) کښې هم د دین امامان جوړ کړه) یا استفهام دے یعنی [اَتَجْعَلُ مِنْ ذُرِّيَّتِيْ اَئِمَّةً] آیا ته ګرځوے زما په اولادو کښې امامان) نو الله تعالیٰ دا دعا قبوله کړه او د هغه په اولادو کښې ئے نبوت او کتاب راولیږلو.

دا جمله جواب د سوال ده چه هر کله الله تعالیٰ ددهٔ نه امام جوړ کړو او لوئی زیرے ئے ورکړو نو دهٔ څه اُووئیل ؟ نو جواب اُوشو چه ابراهیم ﷺ دغه امامت د خپل بعض اولادو دپاره طلب کړو۔

هر کله چه ابراهیم ﷺ ته د امامة فی الدین (دینی مشرئ) اهمیت معلوم وو، نو ددے وجه نه ئے د خپلو اولادو دپاره طلب کړو، او دا ددهٔ خیر خواهی او په دین صحیح پوهه وه چه د خپل اولادو دپاره ئے دین خوښ کړو۔ بیانے دلته (مِنْ) کلمه راوړه پدے کښې د ابراهیم ﷺ کمال ته اشاره ده چه د ټولو اولادو دپاره ئے دغه امامت ذکر نکړو ځکه چه ابراهیم ﷺ ته معلومه وه چه ددے عالَم د پیدا کولو نه د الله تعالیٰ حکمت دا نهٔ دے چه ټول انسانان به صحیح خلق وی او په دین کښې به امامان او مُقتدئ وی بلکه څهٔ به ظالمان وی او څهٔ به نیک عمله وی۔ لکه بل ځائے الله فرمایلی دی: ﴿ وَمِنْ ذُرِّيَّتِهِمَا مُحْسِنٌ وَظَالِمٌ لِنَفْسِهِ مُبِينٌ ﴾ [الصافات:۱۱۳] (د اسحاق او یعقوب په اولادو کښې به نیک عمله او ظالمان دواړه قسمه موجود وی) نو ابراهیم ﷺ د دعا د آدابو لحاظ اُوساتلو ځکه چه داسے څه ئے اُونهٔ غوختل چه هغه نهٔ کیدونکی دی۔ (الوسیط)۔

﴿ ذُرِّيَّتِي ﴾ مفسر ابوالسعودؒ لیکی: ذُرِیة د سړی نسل ته وئیلے شی دا د ذَرْوٌ یا ذَرْیٌ نه اخستے شویدے په وزن د فُعُّولَةٌ دے په اصل کښې ذُرُّوْوَةٌ یا ذُرِّوْیَةٌ دے واو او یاء راجمع شوه اول ساکن وو اول په دویم بدل شو او بیا پکښې ادغام اُوشو۔ نو ذُرِیَّةٌ ترے جوړ شو۔ یا د ذَرَءَ نه ماخوذ دے په معنیٰ د پیدائش سره او په اصل کښې ذُرِیْئَةٌ دے د خَطِیْئَةٌ په شان اعلال پکښې شویدے، همزه په یاء سره بدله شوه بیا په کښې ادغام اُوشو۔ یا د ذَرّ نه دے په معنیٰ د خورولو او جدا جدا کولو سره۔ (او انسانی نسل هم الله تعالیٰ د آدم د شا نه د سرو میږانو په شکل راویستلی وو او د هغه مخکښې ئے خواره کړی وو) (زاد المسیر) او اصل ئے ذُرِّيْرَة یا ذرورة دے دویمه راء په یاء سره بدله شوه لکه د تَسَرِّیْ او تَظَنِّیْ او تَقَضِّیْ په شان۔ او بیا په دوه یائینو کښې ادغام اُوشو۔ او پدے کښې یو لغت د ذال کسرے سره لوستل دی او ابو جعفر المدنی په کښې د ذال فتحه لوستلے ده او دا هم یو لغت دے۔ انتهیٰ قول ابی السعودؒ۔

﴿ قَالَ لَا يَنَالُ عَهْدِي الظَّالِمِينَ ﴾ یعنی زما د نبوت او امامة فی الدین وعده او لوظ ظالمانو (او هر قسم ګناهګارو) او مشرکانو ته نهٔ رسی۔ عبد الله بن عباس رضی الله عنهما فرمائی: پدے آیت کښې الله تعالیٰ ابراهیم ﷺ ته خبر ورکړیدے چه د هغه په نسل کښې به ظالمان ګناهګاران خلق هم وی (لکه یهود او نصاریٰ او مشرکان شو)۔

یعنی دوه قسمه اولاد به وی لکه الله فرمائی: ﴿ وَبَارَكْنَا عَلَيْهِ وَعَلَىٰ إِسْحَاقَ وَمِنْ ذُرِّيَّتِهِمَا مُحْسِنٌ وَظَالِمٌ لِنَفْسِهِ مُبِينٌ ﴾ [الصافات:۱۱۳] څهٔ اولاد به محسنین وی، او څه به ظالمان وی۔ لهذا ظالمان

ددے اُوچت منصب لائق نۀ دی، ځکه چه دا منصب د ظلم سره منافات لري، ځکه چه دا منصب په صبر او يقين سره حاصليږي چه هغه د کامل ايمان او نيک عمل او ښائسته اخلاقو او کامل محبت او خشيت او انابت سره تعلق لري. او د ابراهيم ﷺ دعا د محسن افرادو په باره کښې قبوله شويده لکه په سورة عنکبوت (۲۷) آيت کښې ذکر شويده : ﴿ وَجَعَلْنَا فِيْ ذُرِّيَّتِهِ النُّبُوَّةَ وَالْكِتَابَ ﴾ (ما ددهٔ په اولادو کښې نبوت او کتاب مقرر کړو) (الزهر البيان فارسی).

او پدے کښې اشاره ده چه اے ابراهيم! دا امامت د نسب په استحقاق سره نۀ دے، او نۀ د يو سبب په راخکلو سره دے بلکه دا به خواصو بندګانو ته ملاويږي چه هغوی د ظلم نه پاک وی، او الله غوره کړی وی لکه مفسر قُشيريؒ داسے معنیٰ کوی :

[لٰكِنَّ عَهْدِيْ لَايَنَالُهُ اِلَّا مَنِ اخْتَرْتُهُ مِنْ خَوَاصِّ عِبَادِيْ] ...... [تفسير القشيری۱/ ۱۲۰]

(زما عُهده د امامت به صرف هغه خلق حاصلوی چه زۀ ئے د خپلو خواصو بندګانو نه غوره کړم).

او آيت نه دا معلومه شوه چه ظالمان خلق د خلقو د امامت حقدار نشی کيدے او دوی قابل د امامت نۀ دی. (تفسير ابی السعود) ځکه د امام دپاره دا شرط دے چه د عدل او انصاف والا به وی او په شريعت به عمل کونکے وی.

ځکه چه امامت او پيشوائی په يو حيثيت سره د الله تعالیٰ خلافت دے، داسے ګس ته ئے ورکول نشی کيدے چه د الله تعالیٰ نه باغی او نافرمانه وی. (معارف القرآن)

او دارنګه ددے نه دا حکم هم راووتو چه د شريعت د کارونو ذمه واری به ظالم ته نشی ورکولے (يعنی نۀ اهل د امامتِ رسالت دی، نۀ د امامتِ خلافت او نۀ د امامتِ صلاة) ځکه مسلمانان د هغه پيروی او اقتداء کوی او که هغه ظالم يا فاسق وی نو خپل ماتحت مقتديان به ګمراه کړی او د صراط مستقيم نه به ئے واړوی. (زبدة التفسير، وتيسير الرحمن)

○ جصاصؒ په احکام القرآن کښې ليکی : [اِنَّ الْفَاسِقَ لَايَكُوْنُ خَلِيْفَةً وَلَايَكُوْنُ حَاكِمًا كَمَا لَاتُقْبَلُ شَهَادَتُهٗ وَخَبَرُهٗ] (فاسق خليفه او حاکم نشی جوړيدے لکه څنګه چه د هغۀ ګواهی او خبر (حديث نقل کول) نۀ دی مقبول).

○ امام رازیؒ ليکی : [اِحْتَجَّ الْجُمْهُوْرُ عَلٰى اَنَّ الْفَاسِقَ لَايَنْعَقِدُ لَهُ الْاِمَامَةُ] (تفسير کبير)

(جمهورو علماؤ پدے آيت دليل نيولے دے چه فاسق ته به امامت نشی ورکولے).

○ ابن کثيرؒ او قرطبیؒ د ابن خويز منداد رحمه الله نه نقل کوی :

[وَكُلُّ مَنْ كَانَ ظَالِمًا لَمْ يَكُنْ نَبِيًّا وَلَا خَلِيْفَةً وَلَا حَاكِمًا وَلَا مُفْتِيًا وَلَا اِمَامًا لِلصَّلَاةِ وَلَايُقْبَلُ مَا يَرْوِيْهِ عَنْ صَاحِبِ الشَّرِيْعَةِ وَلَا تُقْبَلُ شَهَادَتُهٗ فِي الْاَحْكَامِ غَيْرَ اَنَّهٗ لَايُعْزَلُ بِفِسْقِهٖ حَتّٰى يَعْزِلَهٗ اَهْلُ الْحَلِّ وَالْعَقْدِ]

(يعنى هر هغه څوك چه ظالم وى هغه نبى، خليفه، حاكم، مفتى او د مانځه امام نشى جوړيدے او نۀ به د هغۀ د صاحب شريعت نه نقل كړے روايت قبلولے شى، صرف دومرۀ ده كه يو ځل خليفه شوے وو نو د اهل حل او عقد (اهل شورىٰ) نه علاوه بل څوك به ئے نۀ معزول كوى).

نو په امامت كښې عدالت شرط دے او معصوميت شرط نۀ دے لكه چه شيعه ګان وائى.

پـه ظالـمـانو باندے چه كوم امامت منع شويدے ددے نه عمومى امامت مراد دے چه د امامت ټولو اقسامو ته شامل دے، امامتِ رسالت، امامتِ خلافت، امامتِ صلاة، (د مانځه امامت) او ددے نه عـلاوه د امـامـت او قيادت ټول مناصب شامل دى، لهذا عدل او انصاف په خپلو فراخه معنو كښې د هر قسم امامت د استحقاق دپاره اولنے شرط دے او يو شخص كه هر قسم ظلم په سر واخلى، هغـه بـه خپـل ځان د امامت او قيادت د استحقاق نه محروم كوى، برابره ده چه هغه قيـادت هرڅنګه وى. نو ددے نه دا هم صفا معلومه شوه چه يهوديان به هميشه دپاره د قيادت د منـصـب نـه لـرے او محروم پاتے وى ځكه چه هغوى ظلم په سر پورته كړيدے، په فسق او فجور كښې اختـه شويدى او د الله تعالىٰ نافرمانى ئے كړيده او هغوى د خپل نيكۀ (ابراهيم عليه السلام) عقائد او نظريات پريخوستى دى. او دغه شان حكم د دعويدارو مسلمانانو په باره كښې هم دے.

(فى ظلال القرآن تفسير د سيد قطبؒ)

او د آيت نه دا هم په ښكاره توګه ثابته شوه چه د امامت منصب موروثى نۀ دے چه د پلار نه به ځوى ته نقل كيږى، دلته رشته او تعلق په وينه، نسل او قوميت باندے نۀ بنا كيږى بلكه دلته د دين او ايمان رشته د تعلق دارومدار دے. د ابراهيم عليه السلام دومره اُوچت شان او د الله په نيز د هغه د مرتبے باوجود كـه د هـغـه د اولادو نـه څوك ظالم او مشرك وى، نو د هغه شقاوت (بدبختى) او محرومـى لـرے كونكے هيڅوك نشته نو الله تعالىٰ دلته د پيغمبر نسلىٔ جرړے پريكړے، كه په انسان كښې ايمان او عـمـل صـالـح نـۀ وى نو پيرزادګى او صاحبزادګى د الله په بارګاه كښې هيڅ حيثيت نـۀ لرى. نبى ﷺ فرمائى : [مَن بَطَّأَ بِهِ عَمَلُهُ لَمْ يُسْرِعْ بِهِ نَسَبُهُ] ...... [صـحيح مسلم كتاب الـذكر والـدعاء، باب فضل الاجتماع على تلاوة القرآن] (چا لـره چه د هغۀ عمل روستو پريخودو نو د هغۀ نسب هغه لره مخكښې نشى بوتلے). (احسن البيان، وفى ظلال القرآن)

نو پدے كښې ضمناً رد دے چه اے يهودو، نصارىٰ او مشركانو ! د نسب په تشو دعوو باندے كار نۀ كيږى چه مونږ د پيغمبرانو اولاد يو. راشئ د صحيح ملت ابراهيمى تابع شئ.

نو پـه آيت كښې د الله تعالىٰ قاعده دا شوه چه زۀ به د دين مشرى هغه چا ته نۀ وركوم چه هغه ظالم وى. دے كښې اشاره ده چه يهود، نصارىٰ او په دے امت كښې چه څوك ظالمان وى هغه ته

الله تعالیٰ د دین مشری نهٔ ورکوی۔ په دے آخره زمانه کښې په مونږ کښې داسے یو غټ امام نشته لکه د امام شافعیؒ، احمدؒ، مالکؒ، ابوحنیفهؒ او د امام بخاریؒ وغیره په شان۔ دا ولے نشته؟ ځکه چه مونږ کښې د ظلم صفت ډیر دے۔ او هغوی کښې نهٔ وو۔ الله ځکه د هغوی نه غټ امامان جوړ کړل او مونږ نه ئے نهٔ جوړوی، نو قانون دا دے چه څومره چا کښې ظلم نهٔ وی هغومره الله د دین امامت ورکوی۔ او څومره چه چا کښې د ظلم صفت او نور بد صفات موجود وی، هغومره الله تعالیٰ د دین مشری نهٔ ورکوی۔ نو دا زمونږ او ستاسو او د طالبانو د دین دپاره قاعده شوه که څوك دا غواړی چه د هغه نه الله تعالیٰ د دین کارونه واخلی نو د ظلم د صفاتونه به ځان ساتی چه هغه ټول ګناهونه دی۔ دا خو د ابراهیم علیه السلام عظمتِ شان شو۔

| وَإِذْ جَعَلْنَا الْبَيْتَ مَثَابَةً لِّلنَّاسِ وَأَمْنًا |
|---|
| او کله چه مونږه اُوګرځولو بیت الله ځائے د جمع کیدلو دپاره د خلقو او ځائے د امن، |
| وَاتَّخِذُوا مِن مَّقَامِ إِبْرَاهِيمَ مُصَلًّى، وَعَهِدْنَا إِلَىٰ إِبْرَاهِيمَ وَإِسْمَاعِيلَ |
| (اُووئیل مونږ) اُونیسئ د مقام ابراهیم نه ځائے د مانځه، او مونږ مضبوط حکم اُوکړو ابراهیم (علیه السلام) او اسماعیل (علیه السلام) ته |
| أَن طَهِّرَا بَيْتِيَ لِلطَّائِفِينَ وَالْعَاكِفِينَ وَالرُّكَّعِ السُّجُودِ ﴿١٢٥﴾ |
| چه پاك ساتئ کور زما دپاره د طواف کونکو او اعتکاف کونکو او رکوع کونکو او سجده کونکو۔ |

**تفسیر:** اُوس د بیت الله عظمتِ شان بیانوی چه دا د ابراهیم علیه السلام د امامت نخه ده۔ هر کله چه ابراهیم علیه السلام لوئی سړے وو نو هغه داسے عظیم کور جوړ کړو نو دے ته متوجه کیدل پکار دی او پدے باندے اعتراضونه نهٔ دی پکار۔ او پدے کښې په مشرکانو رد دے چه ابراهیم علیه السلام د الله په حکم دا کور د توحید دپاره جوړ کړو او تاسو رالګیږئ دا رسول او ددهٔ ملګری مؤحدین ددے کور نه منع کوئ او یره ورکوئ تردے چه دا په هجرت مجبوره کوئ حال دا چه ددے کور په باره کښې د الله تعالیٰ دا فیصله وه چه دا به د عوامو دپاره مرکز وی او ټول خلق به د هر طرف نه دے ته رُخ کوی، دلته به هیڅوك یرونکے نهٔ وی، دلته به خلقو ته روحانی او جسمانی اطمینان حاصل وی ځکه دا د سلامتیا ځائے دے۔ او همدا به د مسلمانانو قبله وی کوم چه په صحیح ملت ابراهیمی باندے روان دی او د هغے وارثان دی۔ او ددے بیت (کور) داسے صفات دی چه هغه په بیت المقدس کښې نشته۔

**ربط:** مخکښې د بیت الله د بانی (جوړونکی) لوئی شان بیان شو یعنی ابراهیم علیه السلام، نو اُوس

لوئی شان د بیت الله بیانوی۔

﴿اَلْبَيْتَ﴾ کښې الف لام عهدی دی مراد ترې کعبه ده۔ خطیب شربینیؒ لیکی : مراد د البیت نه ټول حرم دے لکه په سورة المائده (۹۵) آیت کښې ذکر د کعبے او مراد ترے نه ټول حرم دے۔

ځکه چه د أمن صفت لکه څنګه چه د کعبے په خوا کښې دے نو دغه شان ټول حرم کښې هم شته او دا امن د انسانانو نه سیوئ بوتو او حیواناتو ته هم شامل دے چه شریعت هلته د حیواناتو ښکار کول او د حرم بوتی پریکول حرام ګرزولی دی۔

﴿مَثَابَةً﴾ د مثابة : (۱) یوه معنیٰ ده : ځائے د راجمع کیدو د خلقو۔یعنی مونږ خلقوته امر اُوکړو چه دے ځائے ته به راجمع کیږئ۔ (قتادة) ۲- او مثابة د ثواب ځائے ته هم وائی۔ ثوابونه پکښې ډیر دی۔...... ۳- یا ځائے د واپس کیدو د خلقو۔ (مجاهدؒ وابن عباسؓ)

د ثَابَ يَثُوْبُ نه اخستے شویدے په معنیٰ د رجوع سره او تاء پکښې د مبالغے دپاره ده۔ ځکه چه څوک یو ځل حج یا عمره اُوکړی نو هغه بار بار خواهش لری او زړه ئے نۀ مړیږی۔او بار بار تلو باندے حکم اُوشو، دا د بیت الله کمال دے۔

﴿وَاَمْنًا﴾ په معنیٰ د مَأمَنْ (ځائے د امن) سره۔ د جاهلیت په زمانه کښې به سړی د خپل پلار یا د ورور قاتل د خانه کعبے خوا کښې اُوموندلو نو هیڅ به ئے ورته نۀ وئیل، ټوله دنیا کښې به اغوا کاریانے، لوټ مار او ظلم کولے شو مګر حرم او اهل حرم به ددے نه محفوظ وو لکه دا احسان الله تعالیٰ په سورة العنکبوت (٦٧) او قصص (٥٧) آیت کښې ذکر کړیدے۔ الله تعالیٰ فرمائی :﴿ اَوَلَمْ يَرَوْا اَنَّا جَعَلْنَا حَرَمًا آمِنًا وَّيُتَخَطَّفُ النَّاسُ مِنْ حَوْلِهِمْ ﴾ [العنکبوت٦٧]

(آیا دوی نۀ ګوری چه مونږ حرم امن والا ګرځولے دے او د دوی نه ګیر چاپیره خلق تختولے شی)

سورة آل عمران (۹۷) آیت کښې الله تعالیٰ فرمائی :﴿ وَمَنْ دَخَلَهٗ كَانَ آمِنًا ﴾

(څوک چه حرم ته داخل شو هغه به په امن وی) .......... او دا تفسیر راجح دے۔

ابوبکر ابن العربیؒ وائی ځکه چه الله تعالیٰ پدے آیت کښې په خپلو بندګانو باندے د خپل احسان خبر ورکوی چه هغۀ د عربو په زړونو کښې ددے کور تعظیم اچولے دے او څوک چه دے کور ته پناه راوړی نو هغه په امن کښې کیږی ځکه چه الله تعالیٰ د ابراهیم علیه السلام دعا قبوله کړیده۔

په تفسیر د امن کښې درے تفاسیر نور هم دی چه هغه علامه وهبه زُحیلی په التفسیر المنیر (۲۰۸/۱) کښې ذکر کړیدی :

(۱) یو دا چه د الله د عذاب نه امن مراد دے۔ یعنی څوک چه بیت الله ته داخل شو او ددے تعظیم ئے په زړۀ کښې وی او د اجر نیت ئے وی نو هغه به د عذاب نه بچ کیږی لکه حدیث کښې دی : «چا

چه حج اُوکړو او بے حیاء خبرے او د ګناه کارونه ئے اُونکړل نود ګناهونو نه به داسے اُوځی لکه چه په کومه ورځ د مور نه پیدا شوے وی »۔(صحیح البخاری)

((۲) دویم دا امن دے د حدودو قائمولو نه نو کافر به پکښ نهٔ قتلیږی او قصاص به د قاتل نه پدے کښ نهٔ اخستے کیږی، او په مُحْصن (شادی شده) او غل باندے به حد نهٔ قائمیږی۔

(۳) دا امن دے د قتال کولو نه پدے کښ۔ ځکه صحیح حدیث کښ دی : «الله د مکے نه فیل (هاتیان) بند ساتلی دی، او په هغے باندے ئے خپل رسول او مؤمنان مسلط کړل او مکه ما نه مخکښ د هیچا دپاره حلال نهٔ ده او نهٔ به ما نه روستو د چا دپاره پدے کښ قتال حلال وی او ما دپاره د ورځے د لږ وخت دپاره حلاله شوے وه »۔(بخاری ومسلم)

داټول د ابراهیم ﷺ د دعا برکت دے۔او کله چه اسلام راغلو نو دا حکم ئے باقی پریخودو او زیاته فراخی ئے پکښ اُوکړه چه د حرم په حدودو کښ به قتل وقتال نشی کولے، ظلم اولوټ مار، ښکار او بوټی پریکول به حرام وی۔ څوك چه حرم ته داخل شی هغهٔ به په امن وی۔

اُوس د ابراهیم ﷺ لوئی شان او د هغه لوبه همیشه پاتے کیدونکی معجزه بیانوی۔

﴿ وَاتَّخِذُوا مِنْ مَقَامِ إِبْرَاهِيمَ مُصَلًّى ﴾ یعنی الله تعالیٰ ته د ابراهیم ﷺ د بیت الله د خدمت او په امتحاناتو کښ پاس کیدل دومره خوښ شو چه انسانانو ته ئے حکم اُوکړو چه هغه په کوم کاڼړی باندے ولاړ وو د هغے خوا کښ د الله بندګی او مونځونه اُوکړی او د هغه په شان طاعت والا بندګان جوړ شی او د خپل پلار په نقش قدم روان شی۔

بیا پدے کښ دوه تفسیره دی (۱) یو دا چه مقام ابراهیم هغه معلوم کاڼړے دے چه ابراهیم ﷺ د خانه کعبے په جوړولو کښ په هغے باندے خپه کیخوده او کعبه به ئے جوړوله او په هغه کاڼړی باندے الله تعالیٰ د هغه د قدم نخه د معجزے په طریقه جوړه کړه چه هغه تر اُوسه پورے باقی دے۔ نو ددے حکم الهی د وجه نه حاجیان د طواف کولو نه روستو دغه مقام ابراهیم کاڼړی خوا کښ چه اُوس په شیشه کښ بند دے دوه رکعاته کوی چه دا دوه رکعاته کول په نیز جمهور علماؤ سنت دی او په نیز د بعض علماؤ (مالکیه ؤ) واجب دی۔

بیا د احادیثو نه معلومیږی چه د مقام ابراهیم نه ټول مسجد حرام مراد دے۔ او دا دوه رکعاته په ټول مسجد حرام کښ کول جائز دی خاصکر کله چه د مقام ابراهیم په خوا کښ کولو سره طواف کونکو ته تکلیف رسی نو بل ځائے کول پکار دی۔ او که ګنړهٔ نهٔ وی نو بیا دلته مونځ کول غوره دی، دا وجه ده عام اماماں د مسجد حرام هم د مقام ابراهیم په خوا کښ امامت کوی۔

ددے په خوا کښ خلق ډیر بدعات کوی څوك ورله ګوتے وروړی او ښکلوی ئے او څوك په رش او

ګنړهٔ کښې هم دلته دوه رکعاته ضروري ګنړي او بعض خلق د دوه رکعاته کولو نه روستو دغه ځائے کښې ناست وي، تلاوتونه او ذکرونه او دعاګانے کوي او طواف کونکو ته دارنګه نورو راتلونکو خلقو ته تکليف ورکوي، دا صحيح کار نهٔ دے بلکه دوه رکعاته کول او بيا ددے ځائے نه بل ځائے ته نقل کيدل پکار دي۔

(۲) **دويم تفسير** دا دے چه مقام مفرد مضاف دے او مراد ترے عموم د مقاماتو د ابراهيم دے يعني د ابراهيم ﷺ د حج د کارونو ځايونه مراد دي لکه مطاف، مسعیٰ، عرفات، مزدلفه، او مِنیٰ۔ او پدے صورت کښې به د ((مُصَلّٰی)) نه مراد ځائے د عبادت وي چه په دے هر يو مقام کښې د کارونو د حج نه يو ضرور اداکيږي۔ او مطلب د آيت به دا وي چه په شعائرو (کارونو) د حج کښې د ابراهيم ﷺ اقتداء اُوکړئ او د هغه په نقش قدم روان شئ۔ دا توجيه د ابن عباسؓ نه حافظ ابن کثيرؒ نقل کړيده او دا غوره ده ځکه چه اوله معنیٰ هم پدے کښې داخليږي۔

[تيسير الکريم الرحمن لناصر السعدي:۱/۶۵]

﴿مَقَامُ اِبْرَاهِيْمَ﴾ مقام ابراهيم يو کاڼړے دے چه کله ابراهيم ﷺ کعبه جوړوله نو اسماعيل ﷺ ورته دغه کاڼړے راوړو، ابراهيم ﷺ به پدے اُودريدو او دا به خکته پورته کيدو (معجزه وه) نو الله رب العالمين پدے کاڼړي کښې د ابراهيم ﷺ د خپے نقش باقي پريخودو۔ په دے ګټه کښې د ګوتو او پوندو نخے وے ليکن د خلقو د ډيرو ګوتو وروړلو په وجه د هغے نه دغه نخے تقريباً زائل شوے، اُوس سعودي حکومت هغے ته د تانبے يو قالب د هغے د حفاظت دپاره وراغوستے دے۔

دا کاڼړے اوله کښې د کعبے د ديوال سره پيوسته وو، ځکه ابراهيم ﷺ چه کله د کعبے د آبادئ نه فارغه شو نو کاڼړے ئے د کعبے د ديوال سره جُخت کيخودو، د نبي ﷺ د دور پورے همدغسے پروت وو تردے چه د عمر فاروق په دور خلافت کښې د يو سخت سيلاب په وجه هغه د مکے په يوه کنده کښې پريوتو۔ نو امير المؤمنين عمر بن الخطاب ﷺ هلته نه راوړو او د کعبے نه جدا ځائے کښې ئے نال کړو او هيڅ صحابي پرے انکار اُونکړو ۔لکه دا په روايت د بيهقي کښې په صحيح سند ثابت دي۔ (ابن کثيرؒ) ..... اُوس دا کاڼړے په يوه شيشه کښې بند کړے شويدے، دے دپاره چه خلق ئے په آسانئ سره اُوګوري۔ او د الله د قدرت عظيمه نخه ده۔

ابن جريرؒ د قتادهؒ نه نقل کړيدي چه الله تعالیٰ امر کړيدے چه د هغے په خوا کښې مونځ کوئ، د هغے د مسح کولو امر ئے نهٔ دے کړے ليکن دے امت ځان له تکلف (او بدعت) جوړ کړيدے چه هغے له ګوتے وروړي۔ لکه اُوس ډير مبتدعين او مشرکان د طواف کولو په وخت کښې هغه شيشه باندے لاسونه راکاږي او هغه ښکلوي۔

نو ددے کور (بَیْتُ اللهِ) جوړونکی ته الله تعالیٰ داسے مقام ورکړو چه د خانه کعبے سره ئے د هغه یاد اُوتړلو او د کعبے هر زیارت کونکی ته ئے حکم اُوکړو چه ددے مقام سره دے مونځ اُوکړی۔ عمر فاروق رضی الله عنه فرمائی : زما رب ما سره په درے خبرو کښې موافقت کړیدے۔ ما اُوویل : اے د الله رسوله ! آرمان چه مقام ابراهیم ته د مانځه ځائے جوړ کړے ۔ نو دا آیت نازل شو۔

(بخاری عن انس رقم : ۳۹۲)

ددے نه دا هم معلومه شوه چه د مقام ابراهیم اول تفسیر هم صحیح دے۔ [التفسیر المنیر ۱/۳۰۹]

﴿ وَعَهِدْنَا إِلَىٰ إِبْرَاهِيمَ وَإِسْمَاعِيلَ ﴾ پدے کښې په هغه مشرکانو رد دے چه د الله په ځائے د بتانو عبادت کوی، د هغه کور په خوا کښې کوم چه ابراهیم علیه السلام صرف د الله رب العالمین د عبادت دپاره جوړ کړے وو او کوم چه ابراهیم او اسماعیل علیهما السلام د الله په حکم سره د بتانو نه پاك کړے وو۔ او مشرکانو په بیت الله کښې بتان ساتلی وو او د ابراهیم او اسماعیل علیهما السلام شکلونه ئے جوړ کړی وو او دوی له ئے په لاس کښې غشی ورکړی وو۔

د عهد په صله کښې چه کله اِلیٰ راشی په معنیٰ د وصیت وی یعنی مونږ وصیت او مضبوط حکم کړے وو۔ او په وصیت کښې اشاره ده چه د ابراهیم علیه السلام په اولادو او منسوبینو هم دا لازم دی چه د بیت الله صفائی به کوی، او دا به د شرکیاتو نه ساتی۔

﴿ أَنْ طَهِّرَا بَيْتِيَ ﴾ پاك ساتئ۔ د طهارت نه مراد ظاهری او باطنی دواړه قسمه پاکوالے دے۔

۱- یعنی ظاهر ئے د گندگو نه پاك ساتئ۔ حدیث کښې دی، عائشه رضی الله عنها فرمائی :

[أَمَرَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ بِبِنَاءِ الْمَسَاجِدِ فِي الدُّوْرِ وَأَنْ تُنَظَّفَ وَتُطَيَّبَ]

[احمد، ابو داود، ترمذی ابن ماجه (۱/۲۵۳) بسند صحیح]

(رسول الله ﷺ حکم کړیدے چه په محلو کښې دے مساجد جوړ کړے شی او هغه دے ظاهری او معنوی پاك کړے شی)۔

۲- او کفر او شرك او گناهونه پکښې مهٔ کوئ او خلق ددے نه منع کوئ۔ مجاهدؒ فرمائی : د بتانو، او د اَوثانو د عبادت او د الله سره د شرك کولو نه ئے پاك ساتئ۔ (ابن جریرؒ)۔

۳- علامه قاسمیؒ دا معنیٰ هم ذکر کړیده : [أَوِ اخْلِصَاهُ لِلطَّائِفِيْنَ وَمَا بَعْدَهُ، لِئَلَّا يَغْشَاهُ غَيْرُهُمْ] (یعنی دا کور صرف او صرف د طواف کونکو وغیره کسانو دپاره خالص کړئ او د دوی نه علاوه د مشرکانو او کافرانو دپاره دا مهٔ جوړوئ، هغوی دے دلته رانشی)۔ نو لام په للطائفین الخ کښې صله د ((طَهِّرَا)) شوه۔ او په مخکنو تفسیرونو لام د علت دے۔ نو د طواف کونکو ...... د وجه نه ئے پاك ساتئ۔

دا آیت دلیل دے چه طواف به په پاکئ سره کولے شی لهذا اودس د طواف دپاره شرط دے او د علماؤ په دوه قولونو کښ دا قول راجح دے۔دلیل دا دے چه رسول الله ﷺ فرمائی [اَلطَّوَافُ بِالْبَیْتِ صَلَاۃٌ] (ترمذی بسند صحیح ارواء الغلیل۲ ۱۱۰۲) د بیت الله نه طواف کول د مانځه په شان دی۔
او د مونځ دپاره څنګه طهارت شرط دے نو دغه شان د طواف دپاره هم۔

﴿ بَیْتِیَ ﴾ : الله د خپل کور نسبت ځان ته اُوکړو (۱) دے دپاره چه دا دواړه پیغمبران د هغے په پاکوالی کښ ښهٔ کوشش اُوکړی۔ (۲) دا نسبت دپاره د اظهار د شرافت او اکرام دے ځکه چه دا د ټول جهان د مسلمانانو قبله ده۔ (۳) پدے نسبت کښ د بندګانو د زړونو توجه راښکل غرض دے دے دپاره چه ددے په احترام او ادب کښ هیڅ قسمه کوتاهی اُونکړی۔ ...... (ازهر البیان)۔

﴿ وَالْعَاکِفِیْنَ وَالرُّکَّعِ السُّجُوْدِ ﴾ دا درے قسمه عبادتونه هلته کیږی۔ اول طواف دے، بیا اعتکاف دے او بیا رکوع او سجده ده۔ د قرآن کریم تلاوت او نور اذکار او دعاګانے هم پکښ کیږی۔ بلکه په حرم کښ هسے کیناستل هم ثواب دے چه انسان کعبے ته ګوری۔

طواف ئے مخکښ ذکر کړو ځکه چه طواف د بیت الله پورے خاص دے، د بیت الله نه علاوه د قبر، یا کوټے، یا ونے او ګټے وغیره نه طواف کول شرك دے او پدے وجه ئے دا مخکښ هم ذکر کړو۔

د طواف معنیٰ ده د عبادت په نیت د بیت الله نه ګیر چاپیره ګرزیدل۔ او پدے کښ د الله تعالیٰ تعظیم دے او دا د الله تعالیٰ امر دے۔ پدے به د مشرکانو د قبرونو نه طوافونه کول نهٔ قیاس کیږی ځکه چه هغه شرك دے، په هغے کښ د الله تعالیٰ تعظیم نشته، بلکه د مخلوق تعظیم دے او د الله په امر سره نهٔ دے او د بیت الله نه طواف کول عبادت دے او د الله تعالیٰ په امر سره دی۔ دا د بیت الله عبادت نهٔ دے بلکه د الله عبادت دے۔

اعتکاف : د الله د عبادت دپاره او د هغه د تعظیم دپاره په مسجد کښ څه وخت دپاره اُوسیدلو ته وئیلے شی۔ دلته یا شرعی اعتکاف مراد دے۔ یا نفس په مکه او حرم کښ پاتے کیدل او اُوسیدلو ته وائی۔

د قتادةؒ، ربیع بن انسؒ او عطاءؒ نه نقل دی : [اَلطَّائِفِیْنَ : مَنْ اَتَاهُ مِنْ غُرْبَةٍ وَالْعَاکِفِیْنَ الْمُقِیْمِیْنَ فِیْهِ] (طائفین هغه کسان دی چه مسافر وی، د بهر نه راغلی وی او عاکفین هغه خلق دی چه د حرم په خوا کښ اُوسیږی) .......... (ابن کثیرؒ)۔

**مسئله** : طواف غوره دے او که د بیت الله په خوا کښ مونځ کول ؟ امام مالكؒ فرمائی چه په حرم کښ طواف د بهر خلقو دپاره د مانځه نه غوره دے۔ پدے وجه ئے طواف مقدم کړے هم دے۔ او جمهور فقهاء وائی چه مونځ مطلقاً غوره دے ځکه چه یو مونځ په یو لاکهـ دے او دواړو طرف

ته دلائل موجود دي چه د احکامو په کتابونو کښې کتلې شي۔
﴿وَالرُّكَّعِ السُّجُوْدِ﴾ دا جمع د راکع او ساجد ده مراد ترے نه مونځ کونکی دی۔ دا دواړه د مانځه اهم اعمال دي پدے وجه ئے دا دواړه خاص کړل۔
پدے آیت کښې په یهود او نصاراو باندے هم تنقید دے چه دوی د ابراهیم علیه السلام د فضیلت او عظمت اقرار کوی او پدے پوهیږی چه هغوی بیت الله د حج، عمرے، طواف، اعتکاف او مونځونو دپاره جوړ کړے وو لیکن دا خلق داسے نه کوی نو بیا دوی د خلیل الله علیه السلام مُتّبع څنګه شو ؟! او د صحیح حدیث نه ثابت دی چه موسیٰ بن عمران علیه السلام او د هغه نه روستو انبیاء علیهم السلام حجونه کړی وو او یهود او نصاریٰ ئے نه کوی۔ اُوګوره الصحیحة (۱۰۹/۷) رقم (۲۹۵۸) وصحیح الترغیب (۱۱۳۰)۔

| وَاِذْقَالَ اِبْرٰهٖمُ رَبِّ اجْعَلْ هٰذَابَلَدًااٰمِنًا وَّارْزُقْ اَهْلَهٗ |
|---|
| او کله چه اوونیل ابراهیم (علیه السلام) اے ربه زما ! اُوګرځوه دا ځائے ښار، آمن والا، او رزق ورکړه اُوسیدونکو ددے ښار ته |
| مِنَ الثَّمَرٰتِ مَنْ اٰمَنَ مِنْهُمْ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ قَالَ وَمَنْ كَفَرَ |
| د هر قسم میوو نه هغه چا ته چه ایمان راوړی د دوی نه په الله او په ورځ روستنئ: الله اُوفرمایل : او چا چه کفر اُوکړو |
| فَاُمَتِّعُهٗ قَلِيْلًا ثُمَّ اَضْطَرُّهٗٓ اِلٰى عَذَابِ النَّارِ وَبِئْسَ الْمَصِيْرُ﴿۱۲۶﴾ |
| نو فائدے به ورکړم هغهٔ ته لږه موده، بیا به مجبوراً راکاږم دهٔ لره عذاب د اُور ته او بد ځائے د ورتګ دے دا اُور۔ |

**تفسیر** : په دے آیت کښې د حرم مکې د اُوسیدونکو دپاره د ابراهیم علیه السلام درے دعاګانے ذکر دی۔ او دا دعاګانے ابراهیم علیه السلام د کعبے د جوړولو نه مخکښې اُوکړے۔
اوله دعا دا ده چه اے زما ربه ! دا ځائے چه زهٔ به پکښې ستا کور جوړوم او ستا په حکم سره مے پکښې خپل اولاد اُووسول، دے نه بلد (ښار) جوړ کړه چه خلق دے سره اُنس او محبت محسوس کړی دا خو شاړ شنګر دے، دلته د خوراك انتظام نشته، کورونه آبادیانے نشته، خلق نشته، نو دا علاقه تهٔ ښار او آباد کړه دے دپاره چه خلق ستا د عبادت دپاره دلته راځی او د هغوی ضروریات پوره کیږی۔ دویمه دعا دا ده چه (آمِناً) امن ورله ورکړه۔ ولے که چرته یو ښهٔ ښار وی او امن پکښې نهٔ وی نو هم انسان په تکلیف کښې وی۔ او د امن مطلب دا دے چه هیڅ ظالم بادشاه په هغے باندے تر قیامته پورے قبضه نشي کولے او د خسف او زلزلو او نورو دنیوی عذابونو نه به بچ وی۔ دا رنګه د قحط او د خلقو د لوټ مار نه بچ وی۔

او امام قرطبیؒ لیکی چه کله سپي او ښکاريو ځانې شي نو سپي په هغه ښکار حمله نشي کولې ترڅو چه د حرم نه بهر وتلې نهٔ وي. دارنګه په حرم کښې ښکار کول او بوټي پريکول او پدې کښې لُقطه يعني پردې ورك شوې شې راپورته کول منع دي مګر هغه چا له جائز دي چه هميشه د هغې اعلانونه کوي.

دريمه دعا دا ده چه د رزق پروګرام اُوکړه ځکه چه يوه علاقه ښار وي او امن هم پکښې وي خو د دودئ او د رزق بندوبست نهٔ وي نو هلته اُوسيدل مشکل وي، بيا به بل ځائے ته ځي. نو د هغې دپاره هم سوال کوي : ﴿ وَارْزُقْ اَهْلَهٗ مِنَ الثَّمَرَاتِ ﴾

دا دعاګانې الله قبولې کړې لکه نورو سورتونو کښې د هغې بيان راغلې دے. سورة آل عمران (۹۷) آيت کښې دي : ﴿ وَمَنْ دَخَلَهٗ كَانَ آمِنًا ﴾ (څوك چه بيت الله ته داخل شي هغه به په امن وي)

او په سورة القصص (۵۷) او سورة العنکبوت (۶۷) آيت کښې ئې د امن سره نعمتونه او ميوه جات بيان کړيدي. ﴿ يُجْبٰٓى اِلَيْهِ ثَمَرَاتُ كُلِّ شَيْءٍ رِّزْقًا مِّنْ لَّدُنَّا ﴾ (القصص ۵۷)

(راځکلې شي دے ته ميوې د هر شي دپاره د خوراك، زمونږ د طرف نه)

پدې وجه په حرم کښې هر قسم ميوې، فروټ او سبزيانې او غوښې او هر قسم غلې پريمانه ملاويږي، سره ددې نه چه شاړه زمکه ده، دا ټول ورله الله د بهر دنيا نه راولي.

که ابراهيم عليه السلام نورې دعاګانې کړې وې هغه به هم الله قبولې کړې وې. کيدے شي چه هغې ته ئې فکر شوې نهٔ وي. ګرمئ ته به ئې فکر شوې نهٔ وو چه دا دعا ئې کړې وې چه يا الله دا ګرمي هم تړې لرې کړه، نو الله به دا هم لرې کړې وې خو هغه به کيدے شي داسې زمانه کښې راغلې وو چه ژمې به وو، ګرمي به نهٔ وه. يا به دغه دعا د نظام ربوبيت خلاف وه ځکه ئې نهٔ ده کړې.

﴿ رَبِّ ﴾ د عامو انبياؤ عليهم السلام په دعاګانو کښې (رَبِّ) لفظ ذکر کيږي ځکه چه دا د الله اسم اعظم دے. او پدې کښې خپلې عاجزئ ته اشاره وي چه اے الله ! تا زما تربيت کړے او زهٔ ستا تربيت ته محتاج يم او تهٔ د هر شي مالك ئې. او پدې کښې رد د شرك دے چه انبياء عليهم السلام د مخلوق نه او قبرونو نه سوالونه نهٔ کوي.

﴿ هٰذَا بَلَدًا ﴾ په سورة ابراهيم (۳۵) آيت کښې (اَلْبَلَدَ) معرفه راغلې ده.

۱ – پدې کښې بعض مفسرينو وئيلي دي چه ابراهيم عليه السلام دوه دعاګانې کړيدي، دا دعا د بيت الله د جوړولو نه مخکښې وه چه ددے نه لا ښار نهٔ وو جوړ شوے نو ځکه ئې (بلداً) نکره راوړه او هغه دعا د بيت الله د جوړولو نه روستو وه نو ځکه ئې (اَلْبَلَدَ) معرفه راوړه. دليل دا دے چه هلته ابراهيم عليه السلام په دعا کښې د اسماعيل او اسحاق په پيدائش حمدونه وئيلي دي او اسحاق عليه السلام د

اسماعيل ﷺ نـه ديارلس كاله كشر دے۔ نو دا روستنئ زمانه ده۔ او (عِنْدَ بَيْتِكَ الْمُحَرَّمِ) الفاظ راغلي دي۔ (دا فرق ابن كثيرؒ ذكر كړيدے)۔

۲- يا دا چه دا دعـا پـه هغه وخت كښ وه چه د ابراهيم ﷺ پـه ذهن كښ ددے د ښار كيدو څهٔ خاص تـصـور نـهٔ وو او الله ورله خبر هم نهٔ وو وركړے، نو ځكه ئے نكره استعمال كړه او كله ئے چه پـه كښ خپل اهل اُووسول او الله ورله خبر وركړو چه دلته به زهٔ ښار جوړوم نو بيا ئے دعاء اُوكړه او (الْبَلَدَ) ئے معرفه استعمال كړه ځكه چه تصور كښ ئے ښار راغلے وو۔

۳- عـلامـه قـاسـمـيؒ وائـي : زما په نيز دعا يو ځل شويده ليكن په دواړو ځايونو كښ د تعبير تفنن شويدے۔ گويا كښ اصل عبارت داسے دے : [اِجْعَلْ هٰذَا الْبَلَدَ بَلَدًا آمِنًا]

(دا ښار د امن ښار جوړ كړه)۔ او ديته په علم بلاغت كښ احتباكْ وائي۔

(بَلَدًا) دا دعـا الله قبـولـه كړه چه په هغه زمانه كښ بنوجُرْهُمْ راغلل او په مكه كښ د كعبے په خـوا كښ آباد شول او بيا د هغوى نه اسماعيـل ﷺ وادهٔ هم اُوكړو او د هغوى نه نسل راخور شو او د هغے په نتيجه كښ قريش پيدا شول۔ او مكه يو لوئي ښار اُوگرزيدو۔

﴿مَنْ آمَنَ مِنْهُمْ بِاللهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ﴾ دلتـه ابراهيم ﷺ تـخـصـيـص اُوكړو چه صرف ايمان والو تـه دا رزقـونـه او امـن وركـړه دا ددهٔ ادب دے۔ كله چه دهٔ اُووئيل اے الله ! زما تولو بچو كښ اماماں جوړ كـړه نـو الله ورتـه اُوفـرمايل : نهٔ ! هرڅوكْ امامان نهٔ جوړوم، ظالمانو له امامتي نهٔ وركوم۔ نو هغه ادب ددهٔ پـه ذهن كښ وو، نو اُوس چه دعا كوى نو هم صرف مؤمنان يادوى، دهٔ دا دعا د امامت په دعـا بانـدے قياس كـړه ځكه ئے د ايمان والو تخصيص اُوكړو وے وئيل : اے الله ! مؤمنانو له رزق وركـړه خـو دا دعا ئے قبولـه نهٔ شوه ځكه دا د الله د حكمت خلاف وه كه دا د عا قبوله شوے وے چه صرف مـؤمـنـان بـه پـه مـكـه كـښ رزقونه خورى بيا به مكه د ايمان معلومولو دپاره ترماميټر (thermO metre) وے، څـوكْ چـه ورتللے هغه به مؤمن وے او څوكْ ئے چه نهٔ پريخودلے هغه به كـافـر وے۔ نـو دنيـا كښ به د بنده د ايمان او كفر پته لگيدے۔ ليكن بيا خو امتحان نهٔ راتلو پدے وجـه الله دا دعـا قبـولـه نـهٔ كـړه۔ نـو پـدے كـښ الله تـعـالـىٰ پـدے مشركانو هم رد كوى چه گورئ تاسو آخرت نهٔ منئ او ابراهيم ﷺ خو د آخرت په منكرينو خوراكونه هم حرام كړى وو۔

﴿قَالَ وَمَنْ كَفَرَ فَأُمَتِّعُهُ قَلِيلًا﴾ يـعـنـي الله اُوفـرمايل : ستا ددے دعا نه به په دے دنيا كښ كافر هم فـائـده اخـلـي چـه هـغـوى تـه بـه هم امن ملاوېږى او ضروريات به ئے پوره كيږى ليكن په آخرت كښ به د هغه ټهكانه جهنم وى۔ لكه الله فرمائي : ﴿كُلًّا نُمِدُّ هٰؤُلَاءِ وَهٰؤُلَاءِ مِنْ عَطَاءِ رَبِّكَ﴾ (الاسراء : ۲۰) (هر يو ته ددے كافرانو او مؤمنانو نه مونږ ستا د رب تحفے وركوو)۔

﴿فَأُمَتِّعُهُ قَلِيلًا﴾ د دنيا فائدو ته ئې لږې اُووئيلې ځکه چه دا د قبر او حشر د ژوند په اعتبار سره ډيرې کمې دي، که دنيا کښې هر څو مره مالونه او فائدې بندګانو ته ملاؤ شي ليکن وخت ئې کم دے، نو دا د آخرت په نسبت په لکهونو درجو کم دے۔

﴿ثُمَّ أَضْطَرُّهُ إِلَىٰ عَذَابِ النَّارِ﴾ يعنې زۀ به ئې مجبوره او محتاج کړم عذاب د اُور ته يعنې بيا به ئې هيڅ چاره نۀ وي۔ او دا مجبورول به په طريقه د ديکو ورکولو او شړلو او راښکلو سره وي لکه په سورة طور (۱۳) آيت او سورة زمر (۷۱) آيت او سورة قمر (۴۸) آيت کښې ددې تفصيل راغلے دے۔

**فائده:** حرم مکي ته دا احترام الله تعالىٰ د آسمانونو او د زمکو د پيدائش د ورځې نه ورکړے دے لکه په حديث د صحيحينو کښې راغلي دي: [إِنَّ هٰذَا الْبَلَدَ حَرَّمَهُ اللهُ تَعَالَىٰ يَوْمَ خَلَقَ السَّمٰوَاتِ وَالْأَرْضَ آه] (دے ښار ته الله تعالىٰ احترام او حرمت ورکړے د هغه ورځې نه چه الله تعالىٰ آسمانونه او زمکه پيدا کړل) ........... او ابراهيم عليه السلام هم دے ته اَلْبَيْتُ الْمُحَرَّمُ وئيلے دے ﴿عِنْدَ بَيْتِكَ الْمُحَرَّمِ﴾۔ ليکن دا حرمت او احترام الله تعالىٰ د هيڅ نبي په ژبه نۀ وو بيان کړے ليکن الله تعالىٰ به جبابره او ظالمان د مکې د حملې او ظلمونو نه اړول تردې چه ددې حرمت په خلقو کښې مشهور شو بيا ابراهيم عليه السلام د الله تعالىٰ نه دعا اُوکړه چه د هغه په ژبه ددې احترام راښکاره کړي نو الله ورله دعا قبوله کړه لهذا د ابراهيم عليه السلام په دعا سره د هغې تجديد او تازګي او فرضيت ثابت شو۔ او دې رائې ته ابن جرير صحيح وئيلے دے۔ (ابن جرير، خازن، قرطبي)۔

او لکه څنګه چه ابراهيم عليه السلام د حرم مکي دپاره دعا کړيده نو ددې نه دوچنده دعا محمد رسول الله ﷺ د حرم مدني دپاره کړيده۔ لکه په حديث د مسلم کښې راغلي دي: رسول الله ﷺ اُوفرمايل: «اے الله! ابراهيم عليه السلام مکه حرم ګرځولے وو او زۀ مدينه د دواړو خوړونو ترمينځ حرم جوړوم»۔

اُوس ددے نه روستو د ابراهيم عليه السلام د بيت الله جوړول بيانوي۔ او دعا ئې اُوکړه د عبادت د قبوليت دپاره او دوي داسې خلق وو چه عبادت ئې هم کولو او د الله نه ئې دعاګانې هم غوختلې۔ الله ته داسې عاجز او محتاج خلق وو۔ او داسې نۀ وو لکه د يهودو په شان چه دعوې کوي چه مونږه جنتيان يو او ښۀ خلق مونږه يو۔ کارئې نۀ دې کړې او دعوې غټې کوي۔

وَإِذْ يَرْفَعُ إِبْرٰهِيمُ الْقَوَاعِدَ مِنَ الْبَيْتِ وَإِسْمٰعِيلُ رَبَّنَا

او (ياد کړه هغه وخت) کله چه اُوچتول ابراهيم عليه السلام بنيادونه د بيت الله او اسماعيل۔ (دواړو وئيل) اے ربه زمونږ!

تَقَبَّلْ مِنَّا إِنَّكَ أَنْتَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ ﴿۱۲۷﴾

قبول کړه زمونږ نه (دا عبادت)۔ يقيناً خاص تۀ هر څه آورې (قبلونکے ئې) او په هر څه پوهه ئې۔

**تفسیر**: په دے آیت کښې د بیت الله د آبادولو ذکر دے او د هغے د قبولیت دعا ده۔ او پدے کښې الله تعالیٰ نبی کریم ﷺ ته حکم کوی چه خپل قوم ته اُووائی چه ابراهیم علیه السلام او د هغه ځوی اسماعیل علیه السلام په مکه کښې د الله تعالیٰ د کور د جوړولو په وخت د الله نه داسے دعا غوختنه چه اے الله! زمونږ دا عمل قبول کړه۔

امام بخاریؒ د ابن عباس رضی الله عنهما نه نقل کړیدی چه کله ابراهیم علیه السلام د اسماعیل علیه السلام او د هغه د مور (هاجرے) د خیریت معلومولو دپاره مکے مکرمے ته تشریف راوړو نو اسماعیل علیه السلام غټ شوے وو، ابرهیم علیه السلام اُوفرمایل: اے اسماعیل! ما ته الله تعالیٰ دیو کار حکم کړیدے۔ اسماعیل علیه السلام اُووئیل: تا ته چه خپل رب کوم حکم کړے هغه اُوکړه۔ ابراهیم علیه السلام ورته اُوفرمایل: ته به زما مدد اُوکړے؟ هغهٔ اووئیل: (آو) زهٔ به ستا مدد کوم۔ ورته ئے اُوفرمایل: ما ته الله حکم کړے چه زهٔ یو کور جوړ کړم۔ نو کله چه دواړو په یو ځائے د الله د کور بنیادونه پورته کړل، اسماعیل به ورته کانړی راوړل او ابراهیم علیه السلام به لګول، کله چه دیوالونه پورته شو نو هغه کانړے (مقام ابراهیم) ئے راوړو چه په هغے به ابراهیم علیه السلام اُودریدلو او کانړی به ئے لګول او اسماعیل به ورله کانړی (همغه شان) راوړل، او دواړه به د بیت الله نه ګیر چاپیره ګرځیدل او وئیل به ئے، اے ربه! زمونږ د طرفنه دا عمل قبول کړه الخ۔

﴿ الْقَوَاعِدَ ﴾: جمع د قَاعِدَةٌ ده بنیاد ته وائی او دا بنیادونه ورته الله تعالیٰ خودلی وو چه ددے ځائے نه ئے اُوچت کړه۔

## اول بانی د بیت الله څوک دے؟

حافظ ابن کثیرؒ پدے کښې ډیر اقوال ذکر کړیدی او بیا ئے د هغے تحقیق کړیدے۔

(۱) امام ابوجعفر الباقرؒ وائی: کعبه اول کښې ملائکو جوړه کړیده۔

(۲) عطاءؒ او سعید بن المسیبؒ وائی: آدم علیه السلام جوړه کړیده۔

(۳) وهب بن منبهٔ وائی: شیث علیه السلام جوړه کړیده۔ لیکن حافظ ابن کثیرؒ فرمائی: دا اقوال ټول د اهل کتابو نه نقل دی چه د هغوی نهٔ تکذیب کیدے شی او نهٔ تصدیق او بغیر د دلیل نه په هغے باندے پوره اعتماد هم نشی کیدے۔

نو د قرآن د ظاهر نه دا معلومیږی چه اول جوړونکے د بیت الله ابراهیم علیه السلام دے۔ الله فرمائی:
...... ﴿ وَإِذْ بَوَّأْنَا لِإِبْرَاهِيمَ مَكَانَ الْبَيْتِ ﴾ (الحج) (مونږ ابراهیم ته د بیت الله ځائے ور اُوخودلو)

دارنګه په حدیث د ابوذر رضی الله عنه کښې راغلی دی، وائی چه ما اُووئیل: یارسول الله! کوم مسجد اول (په مخ د زمکه) جوړ شویدے؟ وے فرمایل: «المسجد الحرام» ما اُووئیل: بیا کوم؟ وے فرمایل

(په مخ د زمکه) جوړ شویدے ؟ وے فرمایل : ((المسجد الحرام)) ما اُووئیل: بیا کوم ؟ وے فرمایل : ((بیت المقدس))۔ ما اُووئیل : د دواړو ترمینځ څومره موده (فرق) وو؟۔ وے فرمایل : ((څلویښت کاله))۔ (متفق علیه)۔ ...... نو بیت الله ابراهیم علیه السلام جوړ کړو او بیت المقدس یعقوب علیه السلام جوړ کړو او د دواړو ترمینځ څلویښت کاله فاصله وه۔

اګر که ددے ځائے حرمت او عزت د پخوا نه دے کوم وخت نه چه آسمانونه او زمکه پیدا شویدی، لیکن کعبه پکښې لا جوړه نهٔ وه او الله ته پته ده چه د ابراهیم علیه السلام نه مخکښې به خلقو کوم طرف ته مونځونه کول۔ بیا د رسول الله ﷺ د نبوت نه پنځه کاله مخکښې قریشو جوړه کړه، بیا د رسول الله ﷺ د وفات نه روستو عبد الله بن زبیر رضی الله عنه جوړه کړه په هغه طریقه چه رسول الله ﷺ ئے ارمان کړے وو چه عائشے رضی الله عنها ته ئے فرمایلی وو که ستا قوم نوی اسلام راوړنکی نهٔ وے نو ما به دا کعبه ورانه کړے وے او د ابراهیم علیه السلام په بنیادونو به مے جوړه کړے وے او دوه دروازے به مے ورله جوړے کړے وے، نو عبد الله بن زبیر رضی الله عنه دا ارمان پوره کړو، لیکن حجاج بن یوسف د هغه په خلاف بیرته ورانه کړه او د قریشو په طریقه ئے جوړه کړه کومه چه نن صبا موجوده ده۔ روستو منصور بادشاه پکښې د تغییر راوستو اراده اُوکړه لیکن امام مالک ترے منع اُوکړه چه د کعبے نه به لوبے جوړے شی، یو به ئے ورانوی او بل به ئے جوړوی۔ وبالله التوفیق۔

﴿ وَإِسْمَاعِيلُ ﴾ دواړه ته ئے ابتداءً نسبت د پورته کولو اُونکړو بلکه اسماعیل ئے ورسره روستو ذکر کړو وجه دا ده چه اصل جوړونکے ابراهیم علیه السلام وو او اسماعیل علیه السلام ورسره مدد کولو۔

﴿ رَبَّنَا تَقَبَّلْ مِنَّا ﴾ انبیاء کرام علیهم السلام د الله تعالیٰ شان پیژنی ځکه په عمل باندے فخر نهٔ کوی بلکه د قبولیت سوال کوی۔ او دا د ایمان والو صفت دے چه عمل صالح کولو سره سره یره کوی چه دا به قبول نهٔ شی لکه سورة المؤمنون (۶۰) آیت کښې ذکر دے۔

ابن ابی حاتم د وُهیب بن الورد په باره کښې لیکلی دی چه هغه به دا آیت لوستلو او ژړل به ئے او وئیل به ئے چه خلیل الرحمن د الله کور جوړولو او یریدو چه چرته د هغه عمل رد نهٔ کړے شی، معلومه شوه چه مُخلص مؤمن عمل کوی او یریږی چه چرته د هغه عمل د هغه په مخ باندے راګوزار نشی۔ (وُهیب د عبد الله بن مبارک، فضیل بن عیاض او د عبد الرزاق وغیرهم شیخ او لوئی عابد او زاهد انسان وو)۔

نو مؤمن له پکار دی چه هغه د خوف او رجاء (یرے او امید) په مینځ کښې اُوسیږی۔
او د عمل سره دعا ځکه کوی چه دعا د عمل د قبولیت ذریعه وی۔ لکه آیت کښې دی :
﴿ إِلَيْهِ يَصْعَدُ الْكَلِمُ الطَّيِّبُ وَالْعَمَلُ الصَّالِحُ ﴾ (فاطر: ۱۰)

پدے کښې يو تفسير دا دے چه د ذکر او د دعا په ذريعه عمل صالح الله ته پورته کيږي۔
او دا جمله حال دے او يَقُوْلَانِ پکښې پټ دے يعنې دا بنيادونه ئے پداسے حال کښې پورته کول چه دا دعا ئے کوله۔ نو ددے سره د باطل پرستو مبتدعينو دا دليل نيول غلط شو چه وائي د مانځه نه روستو په اجتماعي طور سره دعا ثابته شوه۔ بلکه دا دعا په مينځ د عمل کښې ده۔
او داسے غير صريح دليل نه استدلال کول او صحيح احاديث پريخودل د اهل زيغو طريقه ده۔
دعا خو عبادت دے ليکن د نبي ﷺ نه به د هغے طريقه او وخت زده کولے شي، نبي ﷺ هيڅ کله هميشه دپاره د فرائضو او د سنتو نه روستو په جمع سره دعا نه ده کړے۔
نو ددے ځائے نه د ابراهيم ؑ دويمه دعا د عمل د قبليدو اُوشوه او د هغے علت ئے په ﴿إِنَّكَ أَنتَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ﴾ سره ذکر کړو۔
او پدے کښې د دعا ادب ذکر دے چه د الله تعالیٰ په نومونو او صفتونو ئے وسيله نيولے ده۔

| رَبَّنَا وَاجْعَلْنَا مُسْلِمَيْنِ لَكَ وَمِن ذُرِّيَّتِنَا أُمَّةً مُّسْلِمَةً لَّكَ |
|---|
| اے ربه زمونږ! اُوګرځوه مونږه (هميشه) تابعدار ستا، او زمونږ د اَولادو نه يوه ډله تابعداره ستا |
| وَأَرِنَا مَنَاسِكَنَا وَتُبْ عَلَيْنَا إِنَّكَ أَنتَ التَّوَّابُ الرَّحِيمُ ﴿١٢٨﴾ |
| او را اُوښايه مونږ ته طريقے د عبادت زمونږه، او مهرباني اُوکړه په مونږ يقيناً خاص ته توبه قبلونکے، رحم کونکے ئے۔ |

**تفسير:** په دے آيت کښې د ابراهيم ؑ دريمه دعا ده، په دين باندے د کلک والي دپاره او په خپلو اولادو کښې د دين د جاري ساتلو دپاره۔ او پدے کښې په يهودو او مشرکانو رد دے چه که تاسو ځان ته د هغه تابعدار وايئ؛ نو هغه خو ځانله د اسلام دعا غواړي چه مونږ په اسلام مضبوط کړه او په خپلو اولادو کښې هم اسلام غواړي او تاسو ددے اسلام خلاف کوئ۔
او د آيت نه معلومه شوه چه د مؤمن د زړهٔ اول ارمان به کوم وي؟، نو عقيده او نظريه د يو مؤمن اول محبوب وي او دا ئے مشغله وي، هغه اول ديته ترجيح ورکوي، ابراهيم او اسماعيل عليهما السلام ته ددے دولت کوم چه دوي ته ورکړے شوے وو، اهميت ښکاره وو چه هغه صحيح عقيده او صحيح ايمان دے، دا اهميت او خواهش دوي مجبور کوي چه دوي د آينده نسلونو دپاره هم ددے دولت په باره کښې الله تعالیٰ ته عاجزي اُوکړي نو ځکه د خپل اولادو دپاره هم دعا کوي چه ددے دولت نه ئے محروم نهٔ کړي۔ مخکښې ئے اُووئيل: چه اولادو دپاره د رزق وسائل فراخه کړے شي او دلته وائي چه د ايمان د دولت نه هم محروم نهٔ شي۔ (في ظلال)۔

اسلام د محکنین نه وو خو دلته د هغے دوام او همیش والے غواړی او اسلام انقیاد ته هم وائی یعنی مونږه همیشه ستا د حکم منقاد او تابعدار کړه او زمونږ په اولادو کښې هم امتِ مسلمه پیدا کړه۔ د امتِ مسلمه اطلاق په عربو او په دے اُمت باندے کیږی۔ لکه سورة الحج (۷۸) آیت کښې ورته اشاره ده۔

﴿ أُمَّةً مُّسْلِمَةً ﴾ پدے کښې اشاره ده چه خلافت به د یهودو او نصاراؤ نه نقل کیږی او دے امتِ محمدیه ته به ورکولے شی۔

﴿ وَأَرِنَا مَنَاسِكَنَا ﴾ دا بیت الله خو مونږ جوړ کړو، دا خو یوه کوټه شوه، نو اُوس د عبادت طریقه پیژندل پکار دی چه دے کښې به څه کوو؟۔ د هغے سوال کوی چه مونږ ته د عبادت او د حج طریقے راوښایه۔

مَنَاسِك جمع د مَنسِك ده هر هغه ځائے ته وئیلے شی چه په هغے کښې الله تعالیٰ ته په نیک عمل سره تقرب (نزدیکت) کیدے شی، که ذبح کول وی، که مونځ یا طواف او سعی وغیره وی او دا ئے شرعی معنیٰ ده۔

او منسك ځائے د عبادت ته هم وائی ځکه د (نَسكَ) لغوی معنیٰ (تَعَبَّدَ) دے، یعنی عبادت کول۔ دلته ترے کارونه د عبادت او طریقے او ځایونه د حج (طواف، سعی، عرفات مزدلفه، منیٰ وغیره) مراد دی۔ دے دپاره چه حج په صحیح طریقه ادا شی۔

یعنی چه د عباداتو او د حج په صحیح طریقه ادا کولو په وجه تا ته نزدے شم۔

معلومه شوه چه په عبادت باندے به الله تعالیٰ ته نزدیکت هله حاصلیږی چه هغه په صحیح شرعی طریقه سره ادا کړے شی۔

﴿ وَتُبْ عَلَيْنَا ﴾ یعنی که په بندګئ او عبادت کښې کوم تقصیر او کوتاهی کیږی نو هغه راته معاف کړه او زمونږه توبه قبوله کړه۔

یا مونږ باندے رحم اُوکړه چه تا ته په زړهٔ سره رجوع اُوکړو ۔ دا ټول کارونه د الله په فضل سره کیږی۔ د توبے طلب ولے کوی؟ وجه دا ده چه د توبے طلب په طریقه د عبادت او عاجزئ سره دے، او اشاره ده چه د هر عبادت سره توبه او استغفار مناسب دے۔

توبه یوا ځے د ګناه نه نهٔ وی بلکه دا د الله تعالیٰ حق دے، انبیاء علیهم السلام پاك مخلوق دے لا عبادت کوی او ددے سره توبے اُویاسی۔

پدے کښې هم په یهود او نصاراؤ رد دے چه ابراهیم ﷺ ځان د الله تعالیٰ په حق کښې قاصر او کوتاه ګنړی او دوی ځان له د جنت دعوے کوی نو آیا دوی د هغه تابعدار کیدے شی ؟!۔

دارنګه توبه کله د نیکو کارونو توفیق ورکولو ته وئیلے شی لکه آیت کښې دی: ﴿لَقَدْ تَابَ اللهُ عَلَى النَّبِيِّ وَالْمُهَاجِرِيْنَ وَالْاَنْصَارِ﴾ (التوبة) (یعنی الله احسان اُوکړو او دوی ته ئے د تبوك د غزا توفیق ورکړو)۔ نو دلته معنیٰ شوه: مونږ استعمال کړه په خپل طاعت کښې۔ ددے لفظ زیات تحقیق به په سورة النساء (۱٦) آیت او په سورة الفرقان (٦٧) آیت کښې راځی ان شاء الله۔

بله دا ده چه مونږ خو به دا کار اُوکړو لیکن صبا له زمونږ مرګ دے نو ددے ځائے دپاره یو مُعلم او استاذ پکار دے، داسے اُستاذ چه د هغه استاذی تر قیامته پورے باقی وی، مدرسه ورله ستا په حکم مونږه جوړه کړه۔ اے الله! مدرس ورله ته مقرر کړه۔ او هغه مدرس محمد رسول الله ﷺ دے نو هغه دپاره دعا کوی:

| رَبَّنَا وَابْعَثْ فِيْهِمْ رَسُوْلًا مِّنْهُمْ يَتْلُوْا عَلَيْهِمْ اٰيٰتِكَ وَيُعَلِّمُهُمُ |
|---|
| اے ربه زمونږ! راولیږه په دوی کښې رسول د دوی نه چه لولی به په دوی آیتونه ستا او خودنه به کوی دوی ته |
| الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ وَيُزَكِّيْهِمْ اِنَّكَ اَنْتَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ﴿۱۲۹﴾ |
| ستا د کتاب (قرآن) او د سنت خبرے، او پاکوی به دوی لره، یقیناً خاص ته غالبه، حکمتونو والا ئے۔ |

**تفسیر**: په دے آیت کښې د ابراهیم علیه السلام دعا ذکر ده دپاره د رالیږلو د خاتم الانبیاء محمد رسول الله ﷺ چه دا تقریباً دوه زره کاله روستو قبوله شوه۔ دعا ئے داسے اُوکړه چه اے الله! د اسماعیل علیه السلام په اولادو (یعنی عربو) کښې یو نبی پیدا کړه چه خلقو ته ستا آیتونه اُولولی او هغوی ته د قرآن او سنت تعلیم ورکړی او هغوی د شرك او د تمامو ګناهونو نه پاك کړی نو دا دعا قبوله شوه او رسول الله ﷺ فرمائی: زهٔ د خپل پلار ابراهیم علیه السلام دعا او د عیسیٰ علیه السلام بشارت او د خپلے مور لیدل یم۔ چه هغے د نبی ﷺ د ولادت په وخت کښې یوه رڼړا اُولیدهٔ چه د هغے نه اُوتله او د شام مانړئ (قلعه ګانے) ئے روښانه کړے۔

(مسند احمد ٥/٢٦٢) رقم (٢٢٣١٥) الطیالسی (١١٤٠) واسناده حسن وله شواهد تقویه (هیثمی) وصححه الالبانی فی صحیح السیرة النبویة ص(٥٤)۔

په دے کښې هم په یهود او نصاراؤ رد دے چه ستاسو پلار نیکه ددے نبی د رالیږلو دعا کوی او تاسو ترے انکار کوئ۔ دارنګه مشرکینو باندے هم رد دے۔

**فوائد الآیة:**

په دے آیت کښې د نبی ﷺ درے صفات او درے کارونه ذکر دی او ددے هر صفت نه انکار کول کفر دے۔

**اول صفت** : فِيهِمْ : ضمير مخکښې (ذرية) ته راجع دے يعنې په اولادو د ابراهيم او اسماعيل عليهما السلام کښې چه عرب دی نبی راوليږهٔ چه هغوی ته اُميين هم وئيلے شي۔ الله تعالىٰ دا دعا قبوله کړه فرمائي : ﴿هُوَ الَّذِیْ بَعَثَ فِی الْاُمِّیّٖنَ رَسُوْلًا﴾ [الجمعة : ۲]

يا ددے ښار (مکے والا) مراد دی او هغه هم عرب دی۔ نو راغلے په عربو کښې خو نبوت ئے عجمو او ټولو انسانانو ته عام دے۔ لکه چه الله فرمائي :

﴿قُلْ يٰاَيُّهَا النَّاسُ اِنِّیْ رَسُوْلُ اللّٰهِ اِلَيْكُمْ جَمِيْعًا﴾ [الاعراف: ۱۵۸]

(اے خلقو زهٔ تاسو ټولو ته د الله رسول (پيغام رسونکے) راليږلے شوے يم)۔

په عربو کښې ځکه راوليږلے شو چه عربو کښې الله تعالىٰ هوښيارتيا، عقلمندي، ذهانت، زيرکتيا، بهادري، ميلمه دوستي، سخا او ښه صفات اچولي دي، په خپله خبره دليل ښهٔ قائمولے شي۔ دا وجه ده چه د الله دين ئے هم ټولے دنيا ته په خپلو ويناو او مالونوسره اُورسولو، که نور قومونو کښې راغلے وے نو کيدے شي چه هغوی د خپل نبی دغسے خدمت نهٔ وے کړے۔نو الله خپل آخري غوره رسول هم په هغوی کښې خاص کړو چه دهٔ کښې هم بے شانه کمالات دي۔

**دويم صفت** : (رسولًا): نبی ﷺ به د الله رسول ګڼړلے شي۔ د هغه تابعداري او طاعت به واجب ګڼړلے شي او د هغه په شان به د هغه نه روستو بل هيڅوك رسول نهٔ ګڼړلے شي چه د هغه تابعداري هم لازمه شي۔

**دريم صفت** : (مِنْهُمْ) يعني د دوی د جنس نه به وی يعني بشر (انسان) به وی۔ دا دليل دے چه نبی ﷺ په انسانيت کښې د عامو انسانانو په شان وو، ليکن الله تعالىٰ ورله د نبوت مرتبه ورکړے وه۔د الله د توحيد او د خپل نبوت رڼړا ورسره وه، نو هغه خلق دروغ وائي چه وائي نبی ﷺ بشر متشکل وو۔ کله وائي سورے ئے نهٔ لرلو۔کله وائي زمونږ په شان انسان نهٔ وو۔

او پدے درے وارو صفاتو کښې شك يا انکار کول کفر دے۔

**فائده** : علامه آلوسیؒ د شيخ ولي الدين العراقیؒ نه نقل کوی هغه فرمائي :

[فَلَوْ قَالَ شَخْصٌ : اُؤْمِنُ بِرِسَالَةِ مُحَمَّدٍ ﷺ اِلٰی جَمِیْعِ الْخَلْقِ لٰكِنْ لَا اَدْرِیْ هَلْ هُوَ مِنَ الْبَشَرِ اَوْ مِنَ الْمَلَائِكَةِ اَوْ مِنَ الْجِنِّ اَوْ لَا اَدْرِیْ هَلْ هُوَ مِنَ الْعَرَبِ اَوِ الْعَجَمِ؟ فَلَا شَكَّ فِیْ كُفْرِهٖ لِتَكْذِيْبِهِ الْقُرْآنَ وَجَحْدِهٖ مَا تَلَقَّتْهُ قُرُوْنُ الْاِسْلَامِ خَلَفًا عَنْ سَلَفٍ وَصَارَ مَعْلُوْمًا بِالضَّرُوْرَةِ عِنْدَ الْخَاصِّ وَالْعَامِّ وَلَا اَعْلَمُ فِیْ ذٰلِكَ خِلَافًا فَلَوْ كَانَ غَبِيًّا لَا يَعْرِفُ ذٰلِكَ وَجَبَ تَعْلِيْمُهٗ اِيَّاهُ فَاِنْ جَحَدَهٗ بَعْدَ ذٰلِكَ حَكَمْنَا بِكُفْرِهٖ، اِنْتَهٰی]۔

[روح المعانی ۳/ ۳۰۰]۔

که يو شخص دا اُووائي چه زهٔ پدے ايمان لرم چه محمد ﷺ ټولو خلقو ته رسول راليږلے شوے

دے لیکن نهٔ پو هیږم چه هغه د انسانانو نه دے او که د ملائکو یا پیریانو نه دے؟، یا نهٔ پو هیږم چه د عربو نه دے او که د عجمو نه؟، نو ددۀ په کفر کښې هیڅ شك نشته خکه چه دۀ د قرآن تکذیب اُوکړو او د هغه څۀ نه ئے انکار اوکړو چه مسلمانانو په تولو زمانو کښې روستنو د مخکښنو نه اخستے دے او په دین کښې د خاص او عام په نیز ښکاره معلوم دے. او پدے باره کښې ما ته هیڅ مخالف نهٔ دے معلوم. نو که دا شخص غبي وي، پدے مسئله نهٔ پو هیږي، نو دۀ ته ددے تعلیم ورکول لازم دي. که د پو هے نه روستو هم انکار کوي نو کافر به وي. آه.

اُوس وائي: ددے رسول کارونه به څۀ وي؟ : دے ته نصاب تبلیغ وائي، که د چا په دعوت کښې دا درے واړه کارونه نهٔ وي نو هغه له په خپل دعوت باندے سوچ او فکر پکار دے چه آیا زما دا دعوت به په پیغمبري وي؟! لیکن امت کښې بعض خلقو دا کارونه تقسیم کړل چا یو راواخستو او چا بل، حال دا چه دا تول کارونه خپلول پکار دي.

﴿ يَتْلُوا عَلَيْهِمْ آيَاتِكَ ﴾ دا اوله ذمه واري د نبي ﷺ ده چه تلاوة الآیات به کوي او ددے نه مراد قرآن کریم ته دعوت او تبلیغ کول دي خکه دلته ئے (عَلَيْهِمْ) لفظ وئیلے دے یعني په بل باندے د قرآن کریم آیتونه لوستل او هغوی ته دعوت ورکول. نو دا دلیل دے چه تبلیغي نصاب به قرآن کریم وي، که د چا په تبلیغي نصاب کښې قرآن کریم نهٔ وي شامل هغهٔ نبوي تبلیغ نهٔ دے.

## د تلاوت الآیات مصداق

د تلاوة الآیات دوه مصداقه دي : (۱) د قرآن کریم آیتونه او الفاظ لوستل. ددے فائده به دا شي چه د قرآن لفظ مقصود دے لکه څنګه چه معنیٰ ئے مقصود ده. په خلاف د نورو کتابونو چه هغے کښې معنیٰ مقصود وي فقط نو د قرآن د لفظ او معنیٰ دواړو خدمت، نبوي طریقه ده.

(۲) دویم مصداق د تلاوة الآیات دا چه هغه کوني دلائل بیانول چه هغه د الله تعالیٰ په عظمت او توحید او د هغه په کمال دلالت کوي. ددے فائده دا ده چه په زړهٔ کښې اولاً د الله تعالیٰ تعظیم پیدا کول بیا په دین عمل کول، که داسے نهٔ وي نو په زړهٔ کښې هسے د الله تعالیٰ تعظیم راوستل او عمل نهٔ کول فائده نهٔ ورکوي.

﴿ وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ ﴾

دا دویمه ذمه واري ده چه کوم خلق د قرآن کریم په دعوت سره ایمان راوړي، د هغوی د مضبوطوالي او تفصیلي ایمان زدهٔ کولو دپاره به هغوی ته د قرآن او سنت تعلیم ورکوي.

حکمة : د حُکم نه مشتق دے په معنیٰ د منع سره او حکمة (پو هه او عِلم) هم انسان د ګمراهئ نه او په غلطئ کښې د واقع کیدو نه بچ کوي. کومه کړئ چه د آس په واګو کښې بیا د هغه به

خوله کښې اچولے شي نو هغے ته حَکَمَة وائي۔ (ابن عاشورؒ)

د (اَلْحِكْمَة) نه مراد سنت دے چه هغه د قرآن کریم د احکامو تفسیر او تشریح ده۔ لکه چه دا خبره امام شافعیؒ په ((رساله)) کښې ذکر کړیده۔ او د قتادةؒ نه نقل ده۔ ځکه د رسول الله ﷺ هره خبره د حکمت نه ډکه ده۔

رسول الله ﷺ به کله بعض خلقو ته د حدیثونو د یادولو حکم کولو۔

اصل کښې حکمت :[كُلُّ كَلِمَةٍ وَعَظَتْكَ اَوْ زَجَرَتْكَ اَوْ دَعَتْكَ اِلٰى مَكْرُمَةٍ اَوْ نَهَتْكَ عَنْ قَبِيْحٍ]

[جمهرة اللغة لابن درید]. (هر هغه کلمه ده چه تا د بد کار نه منع کړي یا و په عزتمند او شریف کار باندے راپورته کړي)۔ په لغت کښې مضبوطوالی ته وئیلے شي۔

۲- امام مالکؒ وائي : [هِيَ مَعْرِفَةُ الدِّيْنِ وَالْفِقْهُ فِيْهِ وَالْاِتِّبَاعُ لَهٗ] (قاسمی)

(حکمة د دین پیژندلو او په هغے کښې پوهه حاصلولو او د هغے تابعداری کولو ته وئیلے شي)۔ قرآن کښې ئے په معنیٰ د الفهم بالقرآن سره تفسیر شویدے (یعنی د قرآن پوهه) لکه آیت کښې دي : ﴿يُؤْتِي الْحِكْمَةَ مَنْ يَّشَآءُ ......﴾ (البقرہ:۲۶۹) (یعنی ورکوی پوهه د قرآن)۔

او دا تفسیر امام مجاهدؒ کړیدے۔ (بغوی)

۳- بعض علماء وائي : حکمة د قرآن کریم د احکامو تفسیر ته وئیلے شي۔ چه ددے رجوع هم سنت ته کیږي۔ ٤- مقاتل بن سلیمان -مشهور مفسر- وائي : حکمة علم او عمل ته وئیلے شي۔ دارنګه ابن قتیبةؒ وائي : [لَا يَكُوْنُ الرَّجُلُ حَكِيْمًا حَتّٰى يَكُوْنَ عَالِمًا بِعِلْمِهٖ] (بغوی)

(انسان نه حکیم هله جوړیږي چه په خپل عِلم عمل اُوکړي)۔

مقاتل دا هم وائي : ............ [مَوَاعِظُ الْقُرْآنِ وَمَا فِيْهِ مِنَ الْاَحْكَامِ]

(د قرآن وعظونه او په هغے کښې چه کوم احکام دي)۔

۵- [يُعَلِّمُهُمُ الْحِكْمَةَ فِيْ كُلِّ اُمُوْرِهِمْ وَالْاِصَابَةَ وَالسَّدَادَ فِيْ كُلِّ شُؤُوْنِهِمْ، يُفَقِّهُهُمْ اَسْرَارَ الشَّرْعِ وَحِكْمَةً فِيْ اَحْكَامِهٖ] (ایسر التفاسیر للجزائری) (یعنی دوي ته به په ټولو کارونو کښې مضبوطوالے وربښائي او په ټولو حالاتو کښې حق ته رسیدل او سیده والے وربښائي او دوي ته به د شریعت په رازونو او د هغه په احکامو کښې د حکمتونو پوهه ورکوي)۔

٦- یا حکمة : وَضْعُ الْاَشْيَاءِ فِيْ مَوَاضِعِهَا ته وئیلے شي یعنی هر شے په خپل خپل مناسب ځائے کښې کیخودل او هر عمل په خپله موقعه کښې ادا کول۔

۷- سید قطبؒ فرمائي : کتاب به ورته ښائي نو اهل کتاب به اُوګرزي او حکمة به ورته ښائي نو د کارونو حقیقت به پیژني او ښائسته اندازه به لګوي او دوي ته به د دوي روحونه د سیده

حکم او د صحیح عمل خودنه کوی او دا ډیر خیر دے۔ [فی ظلال]

۸- آلوسیؒ وائی : [اَلْحِکْمَةُ اِتْقَانُ الْعِلْمِ وَالْعَمَلِ اَوِ الْاَسْرَارُ الْمُوْدَعَةُ فِی الْکِتَابِ]

(د علم او عمل مضبوطوالی ته حکمت وائی یا هغه رازونو معلومولو ته کوم چه په کتاب کښې وی)۔

۹- [اَلْقَضَاءُ وَالْاَحْکَامُ] (بغوی،خازن) (د احکامو او د فیصلو علم)

او ددے تفاسیر ترمینځ هیڅ منافات نشته، ټول صحیح دی۔ لیکن بعض د مطلق حکمة تفسیر دے او بعض ددے آیت سره لګیږی ډیر تفصیل د الحکمة په الفوائد (۳ زیر طبع) کښې اوګوره۔ روستو دے سورة آیت (۲۶۹) یؤتی الحکمة کښې بیا راځی، دلته د حکمة تفسیر په سنت سره راجح او غوره دے او دا قول د ابن دریدؒ دے۔

﴿ وَيُزَكِّيهِمْ ﴾ دریمه ذمه واری تزکیه ده۔ هرکله چه تزکیه عمل دے او عَمل د عِلم نه روستو وی نو دا ئے روستو ذکر کړو۔ تزکیه دیته وائی چه د شرك او کفر او د بدو اعمالو (ګناهونو) او ناکاره اخلاقو نه پاکول۔ چاته به ئے مخامخ اُووئیل چه دا کار مهٔ کوه۔ عبد الله بن عمرؓ ته ئے اُووئیل :

[اِنْ کُنْتَ عَبْدَ اللهِ فَارْفَعْ اِزَارَكَ] (مسند احمد والطبرانی)

(که ته د الله بنده ئے نو خپل لنګ د ګیټو نه پورته کړه)۔

دارنګه د خُرَیمؓ په باره کښې ئے فرمایلی وو : [نِعْمَ الرَّجُلُ خُرَيْمٌ الْاَسَدِیُّ لَوْلَا طُوْلُ جُمَّتِهٖ وَاِسْبَالُ اِزَارِهٖ] (احمد، ابوداود والبخاری فی التاریخ) (خُریم ښهٔ سړے دے خو که د هغه ویښته ډیر اُوګده نهٔ وے او لنګ ئے د ګیټو پورے اُوږد نهٔ وے) ځکه چه کیدے شی په هغه کښې ددے په وجه تکبر راشی۔ نو خریم چه خبر شو، ځان ئے سَم کړو۔

هر عمل چه د تزکیه نه بغیر اُوشی او د زړهٔ کیفیت جوړ نهٔ وی او زړهٔ کښې ګندونه (حسدونه وی، د الله په محبت باندے بناء نهٔ وی نو اګر که هغه ډیر عبادت او عمل وی لیکن دومره اثر ئے نهٔ وی۔ پدے وجه تزکیه ډیر ضروری عمل دے ﴿ قَدْ اَفْلَحَ مَنْ زَكّٰهَا ﴾۔

هر قسم دینی کوشش د نفسونو د تزکیه او صفائی دپاره دے۔ نو کله چه انسان قرآن وائی او د هغه په نفس کښې تزکیه او پاکی رانشی، هغه له قرآن فائده ورنکړه۔

۲ ...... دارنګه په قرآن او په الهی احکامو باندے د عمل کولو عملی طریقے خودلو ته هم تزکیه وائی لکه نبی ﷺ مونځ، اَودس، حج او نور احکام په عملی طریقه خودلی دی۔

۳ ...... دارنګه د باطنی رذائلو (بدو خویونو لکه د دنیا محبت، غفلت، بغض، حسد او تعصب نه) منع کول هم د نفس تزکیه ده، کله به ئے د صحابه کرامؓ نه په اعمال او اخلاقو بیعت

اخستلو، نو زمونږ نبی ﷺ کامل مُرشد هم دے۔
٤...... په آخرت کښې به د امتِ مسلمه تزکیه کوی چه دوی په نورونو امتونو گواهی ورکړه نو دا صحیح ده۔ (بغوی)
علامه ناصر السعدیؒ فرمائی :[ فَقَدْ جَمَعَ لَهُمْ بَيْنَ تَعْلِيمِ الْأَحْكَامِ، وَمَا بِهِ تُنَفَّذُ الْأَحْكَامُ وَمَا بِهِ تُدْرَكُ فَوَائِدُهَا وَثَمَرَاتُهَا فَفَاقُوا بِهَذِهِ الْأُمُورِ الْعَظِيمَةِ جَمِيعَ الْمَخْلُوقِينَ وَكَانُوا مِنَ الْعُلَمَاءِ الرَّبَّانِيِّينَ]
(تیسیر الکریم للسعدی:١٦٤)
(یعنی : الله دوی دپاره تعلیم د احکامو او هغه شے چه په هغے سره احکام نافذ کولے شی او هغه شے چه په هغے سره د احکامو فائدے او میوے حاصلولے شی دا ټول راجمع کړل نو ددے لویو کارونو په سبب دوی د ټول مخلوق نه پورته شو او ربانیین (الله والا) علماء جوړ شو)۔
**فائده** : تزکیه د تخلیه او تحلیه نه مرکب ده۔ تخلیه (یعنی صفا کول) به د کفر او شرک نه تر صغیره گناهونو پورے وی او تحلیه (ښائسته کول) به په ایمان سره وی تر مستحبات عملونو پورے۔
**فائده** : داسے آیت په قرآن کریم کښې (٤) کرته راغلے دے۔ دلته او بقره (١٥٣) او آل عمران (١٦٤) ﴿ لَقَدْ مَنَّ اللَّهُ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ إِذْ بَعَثَ فِيهِمْ رَسُولًا ﴾
او سورة الجمعه (٣) آیت ﴿ هُوَ الَّذِي بَعَثَ فِي الْأُمِّيِّينَ رَسُولًا ﴾ .
فرق دا دے چه دلته تزکیه د ټولو روستو ذکر ده او باقی درے آیتونو کښې تزکیه د تعلیم د کتاب او حکمة نه مخکښې ذکر ده۔ ددے حکمت دا دے چه دلته ترتیب اصلی ذکر دے او نورو آیتونو کښې ترتیب مقصودی دے۔ تزکیه مَرتبه د عمل ده او په عمل باندے تعلیم د کتاب او سنت مقدم وی۔ اول به وعظ او نصیحت واورے بیا به عمل اُوکړے نو ځکه ئے دلته تزکیه روستو کړه او چونکه د کتاب او سنت د تعلیم مقصد تزکیه او عمل او تربیت دے پدے وجه ئے په باقی ځایونو کښې هغه مخکښې ذکر کړه او وسیله ئے روستو ذکر کړیده چه ترغیب راشی او خلق مقصود ته اولاً متوجه شی۔
**فائده** : آیت دلیل دے چه د سنت نبوی نه بغیر د نفس تزکیه نشی کیدے، په سنت طریقو سره به تزکیه راځی، نهٔ په بدعات او خرافاتو او د ځان نه په ایجاد شوی طریقو او خرافاتو سره۔ او د سنت پریخودل د نفس خباثت دے۔
**فائده** : تعلیم د کتاب په یو څو طریقو دے (١) یو تعلیم د الفاظو د قرآن دے۔ (٢) دویم تعلیم د معنیٰ دے۔ (٣) دریم تعلیم د احکامو دے۔ چه د قرآن احکام معلوم شی۔ (٤) تعلیم الاسرار۔ یعنی د قرآن د احکامو او الفاظو رازونه معلومول۔ (٥) تعلیم التطبیق۔ یعنی د هغه

احکامو او رازونو د معلومولو نه روستو هغه په ځان باندے تطبیق کول او په خپل ځان کښې راوستل او ځان د هغے مطابق جوړول۔ د قرآن کریم په لوستلو او تعلیم کښې ددے تولو مقاصدو نیت کول ضروری دی۔

﴿ اِنَّكَ اَنْتَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ﴾ دا د الله تعالیٰ په نومونو سره توسل او وسیله نیول دی او پدے سره دعا زر قبلیږی۔ بله اشاره ده چه ته قادر ئے په دے کار او په تاخیر کښې ستا حکمة دے۔

اَلْعَزِيْزُ (١) اَلَّذِیْ لَایُعْجِزُهٗ شَیْءٌ. (هغه ذات دے چه د هیڅ نه عاجز نهٔ دے او په هر شی غالب دے) لکه آیت کښې دی :﴿ وَعَزَّنِیْ فِی الْخِطَابِ﴾ (ص:٢٣)۔

(یعنی په ما باندے په خبرو کښې غالب دے)۔

(٢) [ اَلَّذِیْ لَایُوْجَدُ مِثْلُهٗ] (ابن عباس) ۔(هغه ذات چه د هغه مثل موجود نهٔ وی یعنی بے مثله ذات)۔ای عَزِیْزُ الْوُجُوْدِ۔ آلوسیؒ وائی دا معنیٰ دلته مراد کول بعید دی۔ (روح)

(٣)...... عزتمند ذات۔ (٤) ...... عزة کله په معنیٰ د قوت سره راځی یعنی قوی ذات لکه ﴿ فَعَزَّزْنَا بِثَالِثٍ ﴾ (یس:١٤)۔ (یعنی مونږ په دریم نبی سره مضبوط کړل)۔

(٥) [وَقِيْلَ : اَلْمَنِيْعُ الَّذِیْ لَا تَنَالُهُ الْاَیْدِیْ وَلَایَصِلُ اِلَيْهِ شَیْءٌ] (مُفَضَّل بن سَلِمة)۔

(هغه محفوظ ذات چه هغه ته د انسانانو لاسونه او هیڅ شے نشی رسیدلے) یعنی انسانان ورله گوتے نشی وروړے او جهازونو وغیره آلاتو سره هغه ته رسیدلے نشی)۔ (تفسیر البغوی والماوردی والبحر المحیط) د غالب معنیٰ ئے زیاته ظاهر ده۔ یعنی زورور دے۔

﴿ اَلْحَكِيْمُ ﴾ (١) ...... [اَلْحَكِيْمُ فِیْ صُنْعِهٖ]. یعنی د هغه هر کار مضبوط او مُحکم دے۔

(٢) ...... [اَلْحَكِيْمُ فِیْ شَرْعِهٖ]. (په شریعت او احکامو کښې د هغه حکمتونه دی او شریعت ئے مُحکم او مضبوط دے)۔ (٣) ...... [اَلْحَكِيْمُ فِیْ صُدُوْرِ الذُّنُوْبِ عَنْ عِبَادِهٖ].

(د بندگانو نه په گناهونو صادرولو کښې ئے حکمتونه وی)۔

(٤) ...... [اَلَّذِیْ لَایَفْعَلُ اِلَّا مَا فِيْهِ حِكْمَةٌ بَالِغَةٌ] (آلوسی)۔

(هغه ذات چه صرف هغه کار کوی چه په هغے کښې کامل حکمت وی)۔

(٥) ...... [هُوَ الْعَلِيْمُ الَّذِیْ لَایَجْهَلُ شَيْئًا] ۔ (حکیم هغه پوهه ذات دے چه د هیڅ شی نه ناخبره نهٔ وی)۔ (اللباب لابن عادل)۔ (٦) ...... [وَالْحَكِيْمُ هُوَ الْعَالِمُ بِوَضْعِ الْاَشْيَاءِ فِیْ مَوَاضِعِهَا] (اللباب)

(حکیم هغه ذات دے چه د هر شی په خپل خپل ځائے کیخودو باندے پوهه وی)۔

په قرآن کښې دا دواړه صفتونه د الله دپاره ډیر راځی، ددے حکمة دا دے چه په عزیز کښې کامل قدرت ته او په حکیم کښې کامل علم ته اشاره ده۔ او دواړه جمال او کمال دے، په بل چا کښې نشی کیدے۔ او

کله چه دواړه جمع شی نو ډیر کمال وی او چه یو وی او بل نهٔ وی نو ناقص کمال دے۔ فتدبر۔
**فائده** : د الله تعالیٰ د مجاورت (او تعلق) طریقه دا ده چه اول به د الله تعالیٰ آیتونو ته غوږ کیدے بیا به علم حاصل کړے بیا به په حکمة کښې تدرج اُوکړے، بیا به تزکیة النفس وی نو پدے سره به تا ته د الله تعالیٰ مجاورة او نزدیکت حاصل شی لکه چه راغبٌ وئیلی دی۔

وَمَنْ يَّرْغَبُ عَنْ مِّلَّةِ اِبْرٰهٖمَ اِلَّا مَنْ سَفِهَ نَفْسَهٗ وَلَقَدِ اصْطَفَيْنٰهُ فِي الدُّنْيَا

او اعراض نهٔ کوی د دین د ابراهیم (ﷺ) نه مگر هغه خوك چه کم عقل کړی خپل ځان

وَاِنَّهٗ فِي الْاٰخِرَةِ لَمِنَ الصّٰلِحِيْنَ ﴿۱۳۰﴾

او یقیناً هغهٔ مونږه غوره کړے وو په دنیا کښې او یقیناً هغه به په آخرت کښې د نیکانو (د ډلے) نه وی۔

**تفسیر** : اُوس په دے آیت کریمه الله تعالیٰ هغه چا ته رټنه ورکوی چه د ابراهیم ﷺ دین پریدی۔ د ابراهیم ﷺ دین خو د توحید دین وو، او دا یهود او نصاریٰ او مشرکان درے واړه په توحید روان نهٔ دی۔ بلکه د خپل نفسانی خواهشاتو اتباع کوی حال دا چه ابراهیم ﷺ د الله تعالیٰ د وحدانیت ښکاره اعلان کړے وو، د هغهٔ سره ئے یو سیکنډ هم شریك نهٔ وو جوړ کړے، او د ټول قوم مخالفت ئے په سر اخستے وو تردے چه د خپل پلار نه ئے هم د براءت اعلان اُوکړو، او ددے عقیدے د خاطره اُور ته گوزار کړے شو، دا هغهٔ ملتِ ابراهیمی دے چه ددے وصیت ابراهیم ﷺ خپلو بچو ته کړے وو او ددے ملتِ ابراهیمی د دعوت او تبلیغ دپاره رسول الله ﷺ رالیږلے شویدے۔ نو تاسو ددهٔ نه څنګه انکار کوئ او دعویٰ د ابراهیم ﷺ د دین کوئ !!۔

**ربط** : مخکښې د ابراهیم ﷺ فضائل، د هغه دعاگانے ئے ذکر کړے نو اُوس د هغه ملت ذکر کوی او پدے کښې د ملتِ ابراهیمی په مخالفینو چه اهل کتاب او مشرکان دی تعریض کوی۔ (از هر البیان)۔

**مضمون** : پدے آیت کریمه کښې الله تعالیٰ رټنه ورکوی هغه چاته چه د ابراهیم ﷺ د دین نه اَوړی او پدے کښې په دغه درے طائفو باندے رد دے۔ د ابراهیم ﷺ ملت او دین ئے روستو آیت (۱۳۱) کښې ذکر کړے چه هغه (الاخلاص لله) دے۔ الله دپاره خپل ټول اعمال خالص کول۔ بیا ئے دا خبره بیان کړے چه ابراهیم او یعقوب علیهما السلام د مرگ په وخت وصیت صرف په دین توحید او اسلام باندے کړیدے او دا چه د ځان نه دینونه مهٔ جوړوئ، نهٔ ئے په یهودیت، نهٔ په نصرانیت او نهٔ ئے په شرك وصیت کړے، نو تاسو څنګه ځان د هغه تابعدار گڼرئ۔ بیا صراحةً

ردونه او اُوه زجرونه ئې وركړيدي چه دوي وئيلي وو چه يعقوب عليه السلام وصيت په يهوديت او نصرانيت كړئې وو نو رد پرې اُوشو چه هغوي خو وصيت په توحيد كړې وو. بيا (تِلْكَ اُمَّةٌ) سره په فخر بالاباء رد دې چه زمونږ پلاران انبياء تير شويدي. نو جواب اُوشو چه د هر سړي خپل خپل عمل دې، د بل چا عمل د چا پكار نۀ راځي. بيا په (وَقَالُوْا كُوْنُوْا) كښې زجر او رټنه ده هغه كسانو ته چه د حق ښكاره كيدو سره سره او د يهوديت او نصرانيت د باطل ښكاره كيدو سره بيا هم يهوديت او نصرانيت طرف ته دعوت وركوي، نو ددې په جواب كښې اُووئيل شو چه مونږ به صرف تابعداري د ابراهيم عليه السلام كوو. بيا (قُوْلُوْا آمَنَّا) كښې د د يهودو او نصاراؤ د دعوت په مقابله د خپل ايمان ښكاره كول دي. يعني زمونږ عقيده خو دغه ده او مونږ پوره دين منو، نو پدې كښې څه نقصان دې تاسو مونږ ته د نقصاني دين دعوت راكوئ چه بعض رسولان منئ او بعض نۀ منئ. نيمګړي مذهب كښې داخليدل جائز نۀ دي. بيا يهوديان او نصاراؤ ته د ايمان دعوت وركړې شويدې (فَاِنْ آمَنُوْا) سره. چه د صحابه كرامؓ په شان ايمان راوړئ هله به هدايت والا جوړيږئ. بيا د هغوي يو رواج وو چه خپل بچي به ئې په يو خاص رنګ رنګول او دا به ئې د خپل دين نخه ګنړله نو الله تعالىٰ امر كوي په خپل رنګ باندې چه هغه د الله دين دې. چه دا قبول كړئ، ظاهري رنګونوله اعتبار نشته. بلكه باطني رنګ حاصل كړئ. بيا مسئله د برائت ده. بيا (اَمْ تَقُوْلُوْنَ) كښې دوباره په يهود او نصاراؤ رد دې چه دوي به پخواني انبياء عليهم السلام د خپل ځان تابع كول نو الله پرې رد كوي چه دا نيكان د خپل ځان مۀ تابع كوئ، غلطه دروغجنه ګواهي مۀ وركوئ. يهوديت او نصرانيت خو روستو پيدا شويدي. او دا د باطل پرستو طريقه وي چه نيكان د خپل ځان تابع كوي. بيا (تِلْكَ) كښې په انبياؤ باندې په فخر كولو دوباره رد دې چه د هر چا خپل خپل عمل دې.

اُوس (وَمَنْ يَّرْغَبُ) آيت كښې مطلب دا دې چه الله تعالىٰ اهل كتاب او كافرانو ټولو ته دا خبره بيانوي چه ددې نه به لوئي ظالم بل څوك وي چه دا ملتِ ابراهيمي نۀ قبلوي او ددې مخالفت كوي، هغه ابراهيم چه الله تعالىٰ د وروكوالي نه د خپل توحيد د دعوت دپاره چانړ كړې وو تردې چه خپل خليل ئې ترې جوړ كړو، او په آخرت كښې به هغه ته د نيكانو نه اُوچت مقام وركولې شي.

﴿ وَمَنْ يَّرْغَبُ ﴾ د (رَغِبَ) په صله كښې چه كله (عَنْ) كلمه راشي، په معنىٰ د اعراض او پريخوستلو او مخ اړولو سره وي. او چه صله كښې ئې (فِيْ) راشي نو په معنىٰ د مينې سره وي.

(مَنْ) كله په معنىٰ د نفي سره وي، دلته ئې همدا معنىٰ ده. او استفهامي معنىٰ ئې هم صحيح ده يعني (د ملتِ ابراهيمي نه سوئ د هغه چا نه چه ځان كم عقل كړي بل څوك اعراض كولې شي).

(مِلَّةٌ) : [مَا شَرَعَهُ اللهُ عَلٰى لِسَانِ الْاَنْبِيَاءِ لِعِبَادِهٖ لِيَتَوَصَّلُوْا بِهٖ اِلٰى جِوَارِ اللهِ] (ملت هغه دين ته وائي چه الله تعالىٰ د خپلو بندګانو دپاره د انبياء كرامو په ژبه مقرر كړے وي دے دپاره چه دوى د الله تعالىٰ جوار او رحمت (جنت) ته اُورسي) ......

او ملة الله تعالىٰ ته نهٔ مضاف كيږي داسے به نهٔ وئيلے كيږي. مِلَّةُ اللهِ. او د انبياء عليهم السلام نه غير بل چا ته هم نشي مضاف كيدے لكه مِلَّةُ زَيْدٍ وغيره به نهٔ وئيلے كيږي او مِلَّةُ اِبْرَاهِيْمَ وَمِلَّةُ آدَمَ وئيل صحيح دي.په خلاف د دين. مفردات للراغبؒ.

﴿مَنْ سَفِهَ نَفْسَهٗ﴾ يعني كم عقل توب ئے په نفس كښې دننه پروت دے. دا منصوب بنزع الخافض دے، اصل تقدير ئے داسے دے: [سَفِهَ فِيْ نَفْسِهٖ] . مبردؒ او ثعلبؒ وئيلي دي چه سَفِهَ (په كسره د فاء) خپله متعدي كيږي. او سَفُهَ فعل لازم دے. (ماوردي في النكت والعيون)

ددے يوه معنىٰ زجاجؒ كړيده : [جَهِلَ اَمْرَ نَفْسِهٖ] دے (يعني د خپل كار (كاميابئ) نه جاهل او نا خبره دے) ځكه چه د كاميابئ دين خو صرف هم‌دا دے.نو سَفِهَ په معنىٰ د جَهِلَ سره دے او مضاف پكښې محذوف دے.

ابوعبيدؒ وائي : ...... [اَهْلَكَ نَفْسَهٗ] (ځان ئے هلاك او تباه كړو).

روح المعاني ليكي: [جَهِلَ نَفْسَهٗ، جَعَلَهَا مُهَانَةً ذَلِيْلَةً] خپل ځان ئے جاهل او ذليله اوبے عزته كړو) دا ئے حاصل معنىٰ ده.

ابن عباس ﷺ وائي : [خَسِرَ نَفْسَهٗ] (يعني ځان ئے تاواني كړو) (بغويؒ).

قتادةؒ وائي : ددے نه مراد يهود او نصارىٰ دي چه دين ابراهيمي ئے پريښودو او يهوديت او نصرانيت ئے بدعت جوړ كړو. (قرطبيؒ)

نو مطلب دا راووتو چه د ابراهيم عليه السلام د دين نه چه څوك اعراض كوي نو هغه غټ كم عقل دے ځكه ملتِ ابراهيمي څه شے دے؟ هغه خو توحيد، خالص او واضح اسلام او فرمانبرداري ده.

﴿وَلَقَدِ اصْطَفَيْنَاهُ فِي الدُّنْيَا﴾ پدے سره د هغه چا چه د ملتِ ابراهيمي نه اعراض كوي د كم عقلتيا دپاره علت او سبب بيانوي. وجه دا ده چه ابراهيم عليه السلام الله تعالىٰ د هدايت او امامت في الدين او توحيد او قبوليتِ عامه او د بيت الله جوړولو او پاك ساتلو او د حج د كارونو د تعليم دپاره غوره كړے وو، نو څوك چه د هغه د لارے نه مخ اُوګرزوي او د ګمراهئ او سركشئ لاره اختيار كړي نو ددے نه بل غټ سفاهت (كم عقلتيا) او بل غټ ظلم شته څهٔ ؟!. د (اصطفاء) نه مراد د اُوچتو كارونو دپاره غوره كول او چاڼ كول دي.

﴿وَاِنَّهٗ فِي الْاٰخِرَةِ لَمِنَ الصّٰلِحِيْنَ﴾ صالحين دا معنىٰ نهٔ ده چه هلته به نيك عمل كوي بلكه

مطلب دا چه د نیکانو په صف او د هغوی په جماعت کښ به شامل وی، او څوك وائی (صالحین) په معنیٰ د (فَائِزِیْن) (کامیابو خلقو) سره دے۔ (مسائل الرازی)

لیکن دا غوره نهٔ ده بلکه دائے حاصل معنیٰ ده۔ او د نیك عمله خلقو سره کیناستل دا کامیابی ده۔

| اِذْ قَالَ لَهٗ رَبُّهٗٓ اَسْلِمْ قَالَ اَسْلَمْتُ لِرَبِّ الْعٰلَمِیْنَ ﴿۱۳۱﴾ |
|---|
| کله چه اُووئیل هغهٔ ته رب د هغهٔ، تابع شه (زما د حکمونو) هغهٔ (سمدست) اووئیل زهٔ تابع یم دپاره د رب د مخلوقاتو۔ |

**تفسیر** : پدے کښ دا بیانوی چه الله تعالیٰ ابراهیم ﷺ څکه د دین د مشریٔ او توحید دپاره غوره کړے وو چه هغه د الله تعالیٰ کامل فرمانبردار وو، الله تعالیٰ هغوی ته د اخلاص، دکمالِ عبودیت او توحید او اسلام باندے د ثابت پاتے کیدو حکم کړے وو، نو هغوی الله رب العالمین ته ځان پوره تسلیم کړو۔ او بغیر د انحراف او تردد نه فوراً د الله حکم ته ئے غاړه کیخوده۔

نو پدے کښ په یهود او نصاریٰ او مشرکانو رد دے چه ابراهیم ﷺ ته چه مشری ملاؤ شوے وه د هغے وجه خو دا وه چه هغه د الله تعالیٰ پوره تابعدار وو او د الله تعالیٰ هر حکم منلو ته ئے سمدست منده وهلے وه او تاسو کښ توحید او اخلاص او ددے رسول تابعداری نشته او اسلام درکښ نشته، نو ستاسو د ملتِ ابراهیمی دعوه غلطه ده۔

اُوس هم یهود او نصاریٰ ځان ته مسلمانان نهٔ وائی۔ او پدے کښ ملتِ ابراهیمی ذکر دے چه هغه اسلام منل او د الله تولو حکمونو ته غاړه کیخودل دی۔

﴿اَسْلِمْ﴾ یعنی تابع شه زما د حکمونو۔ د زړهٔ د یقین او د ایمان نه پس۔

۲- یا [اَخْلِصْ دِیْنَكَ لِلّٰهِ] (ابن کیسان والکلبی- قرطبی)۔ اخلاص اُوکړه ما ته په تولو عباداتو کښ۔

۳- یا [اِسْتَقِمْ عَلَی الْاِسْلَامِ]۔ کلك شه په دین اسلام باندے همیشه دپاره۔

٤- یا معنیٰ ده [اَسْلِمْ نَفْسَكَ اِلَی اللّٰهِ وَفَوِّضْ اَمْرَكَ اِلَیْهِ] (عطاء- تفسیر خازن)

(ځان او تول کارونه الله ته اُوسپاره) څکه اسلام کښ معنیٰ د توکل او الله ته د کارونو سپارلو پرته ده۔ یعنی ما ته ځان حواله کړه۔

﴿اَسْلَمْتُ﴾ ماضی صیغه ئے راوړه یعنی زهٔ د پخوا نه د الله تعالیٰ تابعدار یم۔ الله ته مے ځان حواله کړو۔

﴿لِرَبِّ الْعَالَمِیْنَ﴾ یعنی زهٔ به ځان ولے الله تعالیٰ ته نهٔ تابع کوم حال دا چه هغه خو د تمام عالَم تربیت کونکے دے۔ نو دا صفت گویا کښ الله تعالیٰ ته د ځان تابع کولو دپاره علت دے۔

| وَوَصّٰى بِهَآ اِبْرٰهٖمُ بَنِيْهِ وَيَعْقُوْبُ يٰبَنِيَّ |
| --- |
| او وصیت کړے وو په دے (کلمه د توحید) ابراهیم علیه السلام خپلو ځامنو ته او یعقوب علیه السلام هم چه اے ځامنو! |
| اِنَّ اللّٰهَ اصْطَفٰى لَكُمُ الدِّيْنَ فَلَا تَمُوْتُنَّ |
| یقیناً الله غوره کړیدے ستاسو دپاره دین (توحید او اسلام) نو مهٔ مرئ |
| اِلَّا وَاَنْتُمْ مُّسْلِمُوْنَ ﴿۱۳۲﴾ |
| مګر په داسے حال کښې چه تاسو مسلمانان (تابعدار، مؤحدین) یئ۔ |

**تفسیر**: یعنی دا دینِ اسلام چه د توحید دین دے دا ابراهیم علیه السلام صرف خپل ځان پورے نهٔ وو محدود کړے بلکه هغه سره د خپلو اولادو فکر هم وو نو خپلو اولاد ته او دغه شان یعقوب علیه السلام خپلو بچو ته په دین اسلام باندے د کلك پاتے کیدو وصیت کړے وو چه ددے اسلام نه علاوه د الله په نیز هیڅ دین قابل قبول نهٔ دے۔ نو حاصل د آیت دا دے چه:

[اَلْاِسْلَامُ هُوَ دِيْنُ الْاَنْبِيَاءِ وَهُوَ الدِّيْنُ الْمُرْضٰى بِهٖ لَا الْيَهُوْدِيَّةُ وَالنَّصْرَانِيَّةُ].

(یعنی صرف اسلام د انبیاؤ دین وو او دا هغه دین دے چه په همدے باندے تولو انبیاؤ وصیت کړیدے، نهٔ په یهودیت او نصرانیت)۔

او پدے کښې هم په یهود او نصاراؤ رد دے چه هغوی وئیلی وو اسلام که د ابراهیم علیه السلام دین وو نو د هغهٔ پورے صرف خاص وو او زمونږ دپاره اسلام دین نهٔ دے۔ نو دوی ځان ته مسلمانان نهٔ وائی۔ نو الله تعالیٰ اُوفرمایل: چه په دین اسلام باندے ابراهیم علیه السلام او یعقوب علیه السلام چه اسرائیل دے او دوی هغهٔ ته خپل ځانونه منسوب کوی، دے دواړو خپلو اولادو ته په اسلام وصیت کړے وو چه الله دا ستاسو دپاره پسند او خوښ کړے دے۔ نو دا د بنی اسرائیلو او بنی اسماعیلو تولو دین دے، لیکن دا ظالمان رالګی او د خپل نیکهٔ وصیت نهٔ منی او د خپل نیکهٔ مخالفین دی۔ لکه ځنګه چه د هر باطل پرست طریقه دا ده چه د کومو مشرانو د تابعدارئ دعوه کوی نو د هغوی په صحیح طریقو نهٔ وی روان۔ بلکه خپل خواهش پسے روان وی او دعوه غتیه کوی۔

(فی ظلال، احسن الکلام)

﴿وَوَصّٰى بِهَا﴾ (بِهَا) ضمیر دغه ملتِ اسلامیه ته راجع دے چه دا تعبیر وو د لا اله الا الله نه۔ یا د اخلاص کلمے ته راجع دے چه هغه (لا اله الا الله) ده۔

په دین باندے وصیت لازم دے او په دنیاوی څیزونو کښې وصیت هله وی چه کله انسان سره څهٔ

مال او حقوق وی۔

﴿ بَنِيهِ ﴾ د ابراهیم علیه السلام اته ځامن وو لکه قرطبیؒ او علاء الدین خازنؒ لیکلی دی، اسماعیل او ددهٔ مور هاجره قبطیه وه او اسحاق او ددهٔ مور ساره وه او مدین، مداین، یقشان، زمران، شیق او شوخ او د دوی مور قطورا یا قنطورا بنت یقطن الکنعانیة وه، دا ئې د سارې د وفات نه روستو په نکاح کړې وه۔ او سیوطیؒ دولس لیکلی دی۔ او لونړه ئې نهٔ وې۔

**حکمة** : ځامن ئې په وصیت سره خاص کړل (۱) [لِاَنَّهُمْ اَقْرَبُ اِلٰى قَبُوْلِ وَصِيَّتِهٖ]۔

(ځکه ځامن د وصیت قبلولو ته زیات نزدې دی)۔

(۲) [لِاَنَّهُمْ كَانُوْا اَئِمَّةً يُقْتَدٰى بِهِمْ فَكَانَ صَلَاحُهُمْ صَلَاحًا لِغَيْرِهِمْ] (خازن)۔

(ځکه دا ځامن د نورو خلقو مقتدئ او پیشوایان وو نو دوی چه برابر شی نور خلق به هم د دوی په وجه برابریږی)۔

(۳) [شَفَقَةً بِهِمْ]۔ (ځکه چه بچو باندې شفقت زیات وی)۔

(٤) دعوت کښې اصول دا دی چه د اَلْاَقْرَبُ فَالْاَقْرَب (یعنی ډیر نزدې) نه به شروع کولې شی، داسې نهٔ چه ځامن ئې پو دریان او بد عمله وی او د بل د اصلاح کوشش کوی۔ الله فرمائی :

﴿ وَاَنْذِرْ عَشِيْرَتَكَ الْاَقْرَبِيْنَ ﴾ [الشعراء]۔ (خپل نزدې خپلوان اُویره وه)۔

**فائده** : (وَصّٰى) ئې اُووئیلو او (اَمَرَهُمْ) یعنی حکم ئې ورته اُوکړو) داسې ئې اُونهٔ وئیل ځکه چه وصیت وئیلې شی [اَلْحُكْمُ الْمُؤَكَّدُ الَّذِىْ لَا يَتَغَيَّرُ] (هغه حکم ته چه هیڅ تغیر پکښې نهٔ راځی) او غالباً دا په وخت د مرګ کښې وی، او په داسې وخت کښې د انسان احتیاط د خپلو بچو دپاره زیات وی، نو پدې کښې اهتمام ته اشاره ده چه آخری حکم د ابراهیم او د یعقوب علیهما السلام په بل شی نهٔ وو صرف په اسلام او توحید باندې وو، نو هغوی سره د توحید څومره اهتمام وو او یهود او نصاریٰ او مشرکین ئې هیڅ پرواه نهٔ ساتی!!۔

﴿ وَيَعْقُوْبُ ﴾ د یعقوب علیه السلام نوم پکښې ځکه راوړی چه دلته په بنی اسرائیلو باندې رد مقصود دے چه دا د دوی نیکهٔ دے۔

﴿ اِصْطَفٰى لَكُمُ الدِّيْنَ ﴾ یعنی دین د توحید او دین اسلام ئې ستاسو دپاره غوره کړے۔ اګرکه یهود او نصارا او هغه دین ځان له غوره نکړو او د ځان نه بل ایجاد کړی دین پسې روان شو۔

او دے دواړو اُووئیل : ﴿ فَلَا تَمُوْتُنَّ اِلَّا وَاَنْتُمْ مُّسْلِمُوْنَ ﴾ مطلب دا چه د الله تعالیٰ د حکم تابعدار شئ، توحید باندې روان شئ، او ژوندون په تابعدارئ روان شئ ترمرګه پورې، نو پدې حال کښې به په تاسو مرګ راشی، نو په اسلام کښې به مړهٔ شئ۔ فَلَا تَمُوْتُنَّ : معنیٰ دا ده چه ترمرګه پورې په

اسلام عمل کوئ او دا اسلام ځان سره تر مرګه پورې باقي اُوساتئ. ځکه دا لویه سرمایه ده. نو پدې معنیٰ کولو سره دا اعتراض نهٔ راځي چه مرګ خو د انسان په اختیار کښې نهٔ دې. بلکه معنیٰ دا شوه چه [دُوْمُوْا عَلَى الْإِسْلَامِ حَتّٰى الْمَوْتِ]. (قرطبی،خازن)

(تر مرګه پورې په اسلام همیشه اُوسیږئ او په هیڅ حالت کښې اسلام د ځان نه مهٔ جدا کوئ او یهودیت او نصرانیت طرف ته مهٔ مائل کیږئ).

فضیل بن عیاضؒ وائي : مسلمون نه مراد په الله ښائسته ګمان کول دي. یعنې تاسو له دې مرګ په داسې حال کښې راشي چه تاسو په الله تعالیٰ ښهٔ ګمان کوئ. لیکن دا معنیٰ بعیده ده. او جزءٔ د اسلام دې، او دې ته تفسیر باللازم وائي.

| اَمْ كُنْتُمْ شُهَدَآءَ اِذْ حَضَرَ يَعْقُوْبَ الْمَوْتُ اِذْ قَالَ لِبَنِيْهِ |
|---|
| آیا تاسو حاضر وئ کله چه حاضر شو یعقوب (ﷺ) ته مرګ، کله چه هغه اُووئیل خپلو ځامنو ته |
| مَا تَعْبُدُوْنَ مِنْ بَعْدِيْ قَالُوْا نَعْبُدُ اِلٰهَكَ وَاِلٰهَ اٰبَآئِكَ |
| د چا بندګي به کوئ ځما نه روستو؟ هغوی اُووئیل : مونږ به عبادت کوو د معبود ستا او د معبود د پلارانو ستا |
| اِبْرٰهٖمَ وَاِسْمٰعِيْلَ وَاِسْحٰقَ اِلٰهًا وَّاحِدًا وَّنَحْنُ لَهٗ مُسْلِمُوْنَ ﴿۱۳۳﴾ |
| چه ابراهیم، اسماعیل او اسحاق علیهم السلام دي چه هغه یو معبود دې. او مونږ هغهٔ ته همیشه تابعدار یو. |

**تفسیر** : اُوس بیرته الله رب العزت یهود او نصاراؤ ته خطاب متوجه کوي ځکه دوي بیا اعتراضونه شروع کړل. نو ددې ځائې نه یهود او نصاراؤ ته اُوه (۷) زجرونه او ردونه بیانیږي.

اول زجر په دې آیت کښې دې چه دوي دروغ وائي او جواب د اعتراض دې چه دوي وئیلي وو چه یعقوب ﷺ د مرګ په وخت کښې زمونږ په یهودیت او نصرانیت باندې وصیت کړې وو، نو ځکه مونږ ایمان نهٔ راوړو.

ددې جواب ورکوي چه تاسو دروغ وایئ او د یعقوب ﷺ وصیت په دوي باندې د حجت د تمامولو دپاره ذکر کوي چه یعقوب ﷺ په سکرات الموت (د مرګ په سختیانو) او سخت حالت کښې هم په دین اسلام او توحید باندې بچو ته وصیت کړې وو ځکه هغوی ته دین اسلام د هر څه نه ډیر اهمیت والا وو.

﴿اَمْ كُنْتُمْ شُهَدَآءَ﴾ (۱) دا یا استفهام انکاري دې یعنې آیا تاسو د یعقوب ﷺ د وفات په وخت حاضر وئ یعنې نهٔ وئ حاضر نو بیا ولې د ځان نه په هغه دروغ جوړوئ؟!

(۲) یا استفهام تقریری دے او (أَمْ) په معنیٰ د (بَلْ) دے او خطاب یهودو ته متوجه دے مراد ترے د هغوی مشران دی۔ یعنی بلکه ستاسو مشران یعقوب ﷺ ته د هغه د وفات په وخت حاضر وو چه هغه په دین اسلام باندے وصیت کولو نو تاسو ولے د هغه د وصیت نه اعراض کوئ او خپل مشر نهٔ منئ۔

(شُهَدَاءَ) جمع د شهید ده په معنیٰ د حاضر سره۔

﴿إِذْ حَضَرَ﴾ (۱) د حضور نه مراد قرب او نزدیکت دے ځکه چه مرگ حاضر شی، نو بیا انسان وصیت نشی کولے۔ یعنی مرگ ورته قریب شو۔ (خازن)

(۲) یا د مرگ نه مراد اسباب او دواعی د مرگ دی یعنی د مرگ نخے او اسباب ئے اُولیدل۔ (قرطبی)

**مسئله : ټول انبیاء او زمونږ نبی ﷺ وفات شویدے:**

په نبی اکرم ﷺ او په ټولو انبیاء کرامو باندے وفات راغلے دے اوځوك چه دا وائی چه هغوی ﷺ وصال کړیدے، یا ئے پرده فرمائیلے ده او حقیقةً وفات نهٔ دی، نو دا عقیده غلطه ده، اودا عقیده دمتکلمینو دیرے وسوسے نه پیدا شویده چه هغوی وائی: رسالت او نبوت عرض دی، اوعرض تابع دذات وی نو کله چه دنبی ذات وفات شو نو نبوت به هم ختمیږی، نو اُوس چه یو شخص ایمان راوړی نو په رسالت اونبوت د نبی باندے ایمان نشی راوړے ځکه هغه خو د نبی په موت سره ختم شویدی، لهذا هغوی اُووئیل چه نبی نه دے وفات بلکه وصال ئے کړیدے، هسے ملاقات له تلے دے، حقیقی وفات نهٔ دے، ولے که وفات ئے اُومنو نو مذکوره نقصان راځی، په دے وجه د ډیرو نصوصو نه ئے انکار اوکړو۔ اود خپلے غلطے عقیدے د اثبات دپاره ئے په دین کښے یو بدعت پیدا کړو او دین ئے پرے وران کړو، حال دا چه مذکوره عقیده خطاء ده ځکه چه عرض په دوه قسمه دے :

۱ – یو هغه عرض دے چه دانسان وصف وی لکه مثلاً عالِم شو، نو علم دانسان یو داسے وصف دے چه دا په مرگ ددهٔ سره نهٔ ختمیږی، بلکه پس دمرگ نه ورته هم عالِم وئیلے شی، لکه څنگه چه دخوب په حالت کښے دا وصف نهٔ ختمیږی۔

۲ – دویم قسم هغه عرض دے چه هغه د انسان وصف عارضی دے لکه د انسان بیان او تقریر شو چه دا په وفات ددهٔ سره ختمیږی۔ لهذا بیان د رسالت اونبوت په وفات د نبی ﷺ سره ختم شو، ولے نفس وصف د رسالة نهٔ دے ختم شوے۔

تفصیل دپاره القصیدة النونیة، او الماتریدیه (۱/٤٤٥) د شیخ شمس الدینؒ اُوګوره۔

اودحیاة النبی صلی الله علیه وسلم دا مذکوره عقیده د اشاعره ؤ، ماتریدیه ؤ، کوثریانو او اکثرو

دیوبندیانو ده۔او دا عقیده دصریح قرآن اود صحابه کرامو ؓ د اجماع خلاف ده۔

ابو بکر صدیق ؓ د نبی اکرم ﷺ د وفات په وخت اُوفرمائیل : [بِأَبِيْ أَنْتَ وَأُمِّيْ يَا نَبِيَّ اللهِ! لَا يَجْمَعُ اللهُ عَلَيْكَ مَوْتَتَيْنِ، وَفِيْ رِوَايَةٍ : طِبْتَ حَيًّا وَمَيِّتًا، وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ لَايُذِيْقُكَ اللهُ الْمَوْتَتَيْنِ أَبَدًا]

(یعنی الله تعالیٰ په تا باندے دوه مرګه نهٔ راجمع کوی او ته په ژوند او مرګ کښې مزیدار یٔ)

او په خطبه کښې ئے اُوفرمائیل : [مَنْ كَانَ يَعْبُدُ مُحَمَّدًا فَإِنَّ مُحَمَّدًا قَدْ مَاتَ].

(څوك چه د محمد (ﷺ) عبادت کوی نو یقیناً چه محمد (ﷺ) مړ شو)

او دلیل کښې ئے دا آیتِ کریمه پیش کړو ﴿ إِنَّكَ مَيِّتٌ وَإِنَّهُمْ مَيِّتُوْنَ ﴾ (الزمر : ۳۰)

﴿ وَمَا مُحَمَّدٌ إِلَّا رَسُوْلٌ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِ الرُّسُلُ أَفَإِنْ مَاتَ أَوْ قُتِلَ انْقَلَبْتُمْ عَلٰى أَعْقَابِكُمْ ﴾

[آلعمران آیت: ۱۴۴].رواه البخاری فی صحیحه کتاب الجنائز، وباب الدخول علی المیت (۱/ ۴۱۹)

بیا مولوی اشرف علی تهانوی صاحب ددے عقیدے د اثبات دپاره چه نبی ﷺ په قبر کښې داسے ژوندے دے څنګه چه په دنیا کښې ژوندے وو، دا دلیل ذکر کړیدے چه : د نبی ﷺ میراث نشی وړلے، او د هغه بیبیانے نشی په نکاح کولے، نو دینه معلومیږی چه هغه په قبر کښې د دنیا د ژوندون پشان ژوندے دے۔

**جواب** دا دے : چه دمیراث نهٔ وړل په دے وجه نهٔ دی چه نبی اکرم ﷺ په قبر کښې ددنیا د ژوند پشان ژوندے دے بلکه په دے وجه چه د نبی اکرم ﷺ وینا ده [لَا نُوْرَثُ مَاتَرَكْنَاهُ صَدَقَةٌ]

(میراث مونږ نه نهٔ نشی وړلے بلکه مونږ چه څه پریخی وی هغه به صدقه وی)۔ (بخاری)

اوددے وجوهات په خپل ځائے کښې بیان شویدی، یو دهغے نه دا ده چه که پیغمبرانو نه میراث وړل کیدلے، نو کیدے شی چه میراث خوارهٔ دهغوی په وفات باندے د خوشحالئ احساس اُوکړی، نو دا ددغه میراث خورو دپاره د تباهئ سبب جوړیدو۔اوهرچه د نبی اکرم ﷺ د بیبیانو سره د نکاح حراموالے دے، نودا د نبی اکرم ﷺ د اکرام او عزت په وجه دے۔ بله دا چه هغه د امت اُمهات (میندے) دی۔اود مور سره نکاح حرامه وی۔

په حدیث د بخاری او مسلم کښې دی : کله چه یو نبی وفات کیږی نو الله تعالیٰ هغه ته اختیار ورکوی (او خبر ورکوی) چه دنیا غوره کوی او که آخرت......)

نو یعقوب ؑ ته چه کله د مرګ اطلاع اُوشوه نو هغه خپل اولاد راجمع کړل او د توحید وصیت ئے ورته اُوکړو۔

﴿ إِذْ قَالَ لِبَنِيْهِ مَا تَعْبُدُوْنَ مِنْ بَعْدِيْ ﴾ نو دا اقرار ئے ترے واخستو چه ما نه روستو به د چا بندګی کوئ ؟ ستاسو معبود به څوك وی؟ او پدے اقرار اخستو کښې مقصد په توحید باندے د هغوی

مضبوطول وو۔ ځکه ئے ورته صرف حکم اُونکړو چه د يو الله عبادت کوئ بلکه هغوی نه ئے تپوس اُوکړو چه ښهٔ متوجه شی۔

بيا هر يو سره ئے (الٰـه) راوړو اشاره ده چه توحيد او د الله يواځے بندگی د ټولو انبياء عليهم السلام دين دے لکه حديث د ابو هريره رضی الله عنه کښ دی : رسول الله ﷺ فرمايلی دی : [اَلْاَنْبِيَاءُ اِخْوَةٌ لِعَلَّاتٍ، اُمَّهَاتُهُمْ شَتّٰى وَدِيْنُهُمْ وَاحِدٌ] ټول انبياء کرام خپل مينځ کښ علاتی (په پلار کښ شريك) ورونه دی۔ او د هغوی ميندے مختلفے دی او دين ئے يو دے۔

(صحيح بخاری کتاب الانبياء)۔

﴿ آبَاءَكَ ﴾ : نيکه او ترونوته هم (آبَاء) يعنی پلاران وئيلے شی۔

﴿ اِلٰهًا وَّاحِدًا ﴾ دا ئے ورسره دفع د وهم اُوکړه چه دلته عطف تقاضا د مغايرت نهٔ کوی يعنی د يعقوب عليه السلام او د هغه د پلارانو بيل بيل اِلٰه نهٔ وو بلکه د ټولو اِلٰه يو وو۔

﴿ وَنَحْنُ لَهٗ مُسْلِمُوْنَ ﴾ کوم حکم چه د هغه راتلو موږ به ئے منو۔ او عبادت به يواځے هغه لره کوو۔ نو يعقوب عليه السلام خو په دين توحيد باندے امر کړے وو، په يهوديت، نصرانيت او شرك باندے ئے امر نهٔ دے کړے۔ لهذا ثابته شوه چه قرآن مجيد دا گواهی ورکوی چه د بنی اسرائيلو د خپل جد امجد سره هيڅ قسم نظرياتی يا روحانی تعلق نشته۔

**فوائد** : (۱) اِلٰهًا وَّاحِدًا نه معلومه شوه چه په هر امت کښ د الله دين يو وی چه هغه په دوه خبرو بناء دے (۱) يو : د الله خالص توحيد منل او شرك او وثنية سرهٔ د مختلفو اقسامو نه کوزارل۔ (۲) دويم : الله ته منقاد او تابعدار کيدل او هغهٔ ته په ټولو اعمالو کښ عاجزی کول۔ که چا کښ دا دواړه خبرے په يوځل رانغلے، هغه مسلمان نشی کيدے او نهٔ هغه په صحيح دين روانيدے شی۔ [التفسير المنير ۱/۲۲۵]۔

۲- فائده : اسلام ئے خاص کړو، په يهود، نصارىٰ او مشرکانو باندے رد غرض دے۔

دوی بيا فخر کولو چه زمونږه نيکونه پيغمبران تير شوی دی، نيکان صالحين دی، د هغوی په وجه به مونږه خلاص شو۔ د دوی تصور غلط شو نو الله د دوی د تصور اصلاح کوی نو جواب :

تِلْكَ اُمَّةٌ قَدْ خَلَتْ لَهَا مَا كَسَبَتْ وَلَكُمْ

هغهٔ (انبياء) يوه ډله ده چه تيره شوه۔ هغوی دپاره بدله د هغه عملونو ده چه هغوی څهٔ کړی او ستاسو دپاره

مَّا كَسَبْتُمْ وَلَا تُسْـَٔلُوْنَ عَمَّا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۱۳۴﴾

بدله د هغهٔ عمل ده چه تاسو کړيدے او تپوس به نهٔ شی کيدے ستاسو نه د هغه عملونو چه هغوی کول۔

**تفسیر** : نو پدے کښې دویم زجر دے او جواب د هغه اعتراض دے چه دوی وئیلی وو مونږ به مشران خلاصوی۔ الله تعالیٰ جواب ورکوی چه د ابراهیم او اسحاق او یعقوب علیهم السلام اعتقادات، اعمال او بنائسته اخلاق به صرف د هغوی په کار راځی، او اے یهود او نصاراؤ ! ستاسو بد عملیانے به ستاسو د عمل په میزان (تله) کښې وی۔ د هغوی نیك اعمال په دے وجه ذکر شویدی چه تاسو هم د هغوی په شان جوړ شئ او که انکار کوئ نو د هغوی اعمال ستاسو په کار نهٔ راځی۔ په هغے باندے د فخر کولو هیڅ قسم تصور نهٔ دے پکار۔ او معلومه شوه چه انبیاء کرام یو جدا جماعت وو، د هغوی عقیده او عمل جدا وو او دا یهود او نصاریٰ جدا جماعت دے، د دوی اعمال او کردار د هغوی د اعمالو او کردار نه بالکل جدا دے نو ددے نالائقه خلقو د انبیاؤ سره هیڅ قسم تعلق نشته۔ او د دوی ترمینځ د روحانی وراثت قانون ختم شویدے۔

﴿ اُمَّةٌ ﴾ : امت جماعت او ډلے ته هم وئیلے شی او کله په معنیٰ د مودے سره وی لکه ﴿ اِلٰى اُمَّةٍ مَّعْدُوْدَةٍ ﴾ (هود:۸) ۔ دلته جماعة او ډله مراد ده۔

﴿ لَهَا مَا كَسَبَتْ وَلَكُمْ مَا كَسَبْتُمْ ﴾ پدے کښې اشاره ده چه د خیر عمل هم د کونکی نه سویٔ د بل چا نهٔ پکاریږی۔ ﴿وَلَا تُسْئَلُوْنَ عَمَّا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴾ او پدے کښې اشاره ده چه د فاسقانو او کافرانو د بدو عملونو په باره کښې به هم د نیکانو نه تپوس نهٔ کیږی۔ کله چه هغوی د دعوت او نصیحت خپله ذمه واری ادا کړی وی۔ بل جانب ئے ذکر نکړو چه «هغوی نه به ستاسو د عملونو په باره کښې تپوس نهٔ کیږی» ځکه کله نا کله د مشرانو نه د کشرانو په باره کښې تپوس کیږی، کله چه هغوی خپلو کشرانو ته دعوت نهٔ وی کړے او هغوی ئے د بدو اعمالو نه نهٔ وی منع کړی۔

نو آیت دلیل دے چه د اسلافو په نیك عملونو باندے اعتماد کول غلط دی، اصل شے ایمان او عمل صالح دے چه د مخکنو صالحینو سرمایه هم وه او د قیامته پورے د راتلونکو انسانانو د نجات واحده ذریعه هم ده۔

---

وَقَالُوْا كُوْنُوْا هُوْدًا اَوْ نَصٰرٰى تَهْتَدُوْا قُلْ بَلْ مِلَّةَ

او دوی وائی : شئ یهودیان یا نصرانیان هدایت به مونده کړئ، تهٔ اُووایه ! بلکه مونږ تابعداریو د ملت

اِبْرٰهٖمَ حَنِيْفًا وَّمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ﴿۱۳۵﴾

د ابراهیم علیه السلام چه متوجه وو الله ته (یا کلك موحد وو) او نهٔ وو د مشرکانو د ډلے نه۔

---

**تفسیر** : اُوس دریم زجر (رټنه) ورکوی [بِالدَّعْوَةِ اِلَى الْيَهُوْدِيَّةِ] (چه دوی بیا هم یهودیت او

نصرانیت (باطل او تحریف شوی دین) ته دعوت ورکوی۔
نو په دوه آیتونو کښ الله تعالیٰ د دوی رد کوی:
او ددے ځائے نه اُوس قرآن کریم د معاصرو اهل کتابو باطلو دعوو ته متوجه کیږی او د هغوی د غلطو خیالاتو او تصوراتو، دے بنیاده دلائلو او د غیر معقول بحثونو رد کوی۔
﴿وَقَالُوا كُونُوا هُودًا اَوْ نَصَارٰى تَهْتَدُوا﴾ یعنی هره ډله خپل ځان کښ هدایت بند ګنړی او خپل دین طرف ته دعوت ورکوی۔ نو دوی د دروغو دعویٰ کوله، هرڅوك چه دغه شان دعوت کوی، نو داسے جواب به ورته کولے شی:
﴿قُلْ بَلْ مِلَّةَ اِبْرَاهِيْمَ﴾ محمد بن اسحاقؒ د عبد الله بن عباس رضی الله عنه نه روایت کوی چه عبد الله بن صوریا یهودی (چه شیرا وو) رسول الله ﷺ ته اُوویل چه مونږ په صحیح دین باندے روان یو، پدے وجه اے محمد (ﷺ) تاسو زمونږ اتباع اُوکړئ۔ او د نجران نصاراؤ هم دغه شان خبره کړے وه، نو الله تعالیٰ دا آیت نازل کړو۔ او نبی کریم ﷺ ته حکم اُوشو چه تاسو دوی ته اُووایئ چه مونږ خو د ابراهیم علیه السلام د دین اتباع کوو چه هغه د ټولو باطلو دینونو نه بیزاری کړے وه او په دین حنیف (دین اسلام) باندے د ټلو اعلان ئے کړے وو۔
﴿بَلْ﴾ ددے نه روستو (نَتَّبِعُ) فعل پټ دے۔ یعنی مونږ او تاسو له خو تابعداری صرف د ملتِ ابراهیمی پکار ده۔
بَلْ د اضراب دپاره دے یعنی [لَانَتَّبِعُ الْيَهُوْدِيَّةَ وَالنَّصْرَانِيَّةَ بَلْ نَتَّبِعُ مِلَّةَ اِبْرَاهِيْمَ] ـ (یعنی مونږ د یهودیت او نصرانیت تابعداری نهٔ کوو بلکه صرف د ملتِ ابراهیمی تابعدار یو)۔
﴿حَنِيْفًا﴾ (۱) یعنی کلك ولاړ وو په توحید او اعراض کونکے وو د ټولو باطلو دینونو نه)۔
(بحر العلوم للسمرقندیؒ)
(۲) یا حنیف دیته وائی: [اَلْمُقْبِلُ عَلَى اللهِ وَالْمُعْرِضُ عَمَّا سِوَاهُ] (یعنی په ټولو عملونو کښ ئے الله ته توجه وه۔ او مخلوق ته به ئے هیڅ توجه نهٔ وه)۔ (جلاء الافهام د ابن قیمؒ)۔
دا معنیٰ لغوی معنیٰ ته ډیره نزدے ده۔
(۳) مجاهدؒ وائی په معنیٰ د مُخلص دے۔
(٤) ...... د ربیعؒ نه نقل دی چه په معنیٰ د مُتبع (تابعدار) دے۔
(٥) ابو العالیهؒ وائی: حنیف هغه دے چه په مانځه کښ کعبے ته مخ اړوی او حج د بیت الله منی۔
(٦) ...... ابو قلابهؒ وائی: حنیف هغه دے چه په ټولو رسولانو باندے د اول نه تر آخره پورے ایمان لری۔ (ابن کثیرؒ)۔

(٦) ...... حنيف په معنیٰ د اَلْمُسْتَقِيْمُ عَلَى الحَقِّ سره دے يعنى په نيغه لاره روان - يا په حق باندے مضبوط ولاړ۔

حَنَف : حق ته مائل كيدو ته وائى او جَنَفُ ظلم او گناه ته مائل كيدو ته وائى۔

په دے کښې اشاره ده اے يهوديانو! تاسو کښې خو دا صفت نشته، تاسو خو حنفاء نهٔ يئ۔

﴿وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ﴾ هغه د مشركانو د ډلے نه نهٔ وو او تاسو اے يهود او نصارىٰ او مشركانو !، مشركان يئ، د الله سره برخه داران جوړوئ۔ نو د هغه دين پسے ولے نهٔ ورځو چه هغه ئے شرك نه دے۔

مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ کښې اشاره ده چه د ابراهيم عليه السلام شرك كول خو دركنار، هغه د مشركانو ډله کښې هم ځان نهٔ شاملولو، د هغوى ډله ايز په نهٔ وو، او د هغوى ډله به ئے نهٔ ډيرولهٔ۔ د مشركانو دشمن او د هغوى نه بالكل بيزاره وو، هغوى ته ئے هيڅ قسم ميلان هم نهٔ وو۔

| قُوْلُوْٓا اٰمَنَّا بِاللّٰهِ وَمَآ اُنْزِلَ اِلَيْنَا وَمَآ اُنْزِلَ |
|---|
| اووايئ! مونږه ايمان راوړے په الله او په هغهٔ څهٔ چه نازل شويدے مونږ ته او په هغه څهٔ چه نازل شويدى |
| اِلٰٓى اِبْرٰهٖمَ وَاِسْمٰعِيْلَ وَاِسْحٰقَ وَيَعْقُوْبَ وَالْاَسْبَاطِ وَمَآ اُوْتِيَ |
| ابراهيم او اسمٰاعيل او اسحاق او يعقوب (عليهم السلام) او د هغوى اولادو ته، او په هغه څه چه وركړے شويدے |
| مُوْسٰى وَعِيْسٰى وَمَآ اُوْتِيَ النَّبِيُّوْنَ مِنْ رَّبِّهِمْ |
| موسیٰ او عيسىٰ (عليهما السلام) ته، او په هغه څهٔ چه وركړے شوى دى نورو نبيانو ته د طرف د رب د هغوى نه |
| لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ اَحَدٍ مِّنْهُمْ وَنَحْنُ لَهٗ مُسْلِمُوْنَ ﴿۱۳۶﴾ |
| مونږ جدا والے نهٔ راولو په مينځ د يو تن کښې د دوى نه (په ايمان راوړلو کښې) او مونږ خاص ددے الله تابعدار يو۔ |

**تفسير** : پدے آيت کښې اُوس د خپل ايمان اظهار كوى د يهود او نصاراؤ په مقابل کښې چه هر كله هغوى تاسو ته دعوت دركوى نو تاسو د هغوى په جواب کښې خپل ايمان داسے ښكاره كړئ (درے خبرے ئے ورته ذكر كړيدى) چه زمونږه ايمان دا دے (۱) چه په الله باندے صحيح ايمان لرو، (۲) او بغير د تفريق نه ټول كتابونه او ټول رسولان منو۔ (۳) او د الله ټول حكمونه منو او ستاسو د يهودو او نصاراؤ دين دا دے چه بعض رسولان منئ او د بعضو نه انكار كوئ۔ كوم آيت چه ستاسو د خواهش مطابق وى هغه منئ او كوم چه نهٔ وى هغه نه منئ نو آيا مونږ د

خواهش والا دغه دین پسے لاړ شو؟ !۔او په دے دین کښې څۀ نقصان دے چه تاسو راباندے دا پریدئ او یهودیت او نصرانیت راباندے منئ۔
لکه دا مقلدین هم مونږ ته وائی چه تاسو به مقلدین کیږئ۔ مونږه ورته وایو چه آیا مونږه هم داسے اُوکړو چه بعض احادیث د رسول الله ﷺ اُومنو او بعض پریدو۔ او بعض آیتونه او بعض احکام شرعیه او نیمګړی دین پسے روان شو او که نۀ دا تول اُومنو۔ او دا علماء تول خپل امامان اُوګڼړو، دا ښۀ ده او که نۀ دا تول امامان خپل دشمنان کړو او دا یو صرف اُومنو دا بعینه هغه شان صورت دے۔
او تبصیر الرحمان کښې مُهَائمیؒ لیکلی دی چه دا آیت د هغوی د اعتراض جواب دے چه وئیلی ئے وو تاسو موسیٰ او عیسٰی علیهما السلام نۀ منئ؛ ځکه چه تاسو د هغوی د دین تردید کوئ، نو جواب اُوشو چه مونږ تول رسولان منو او تاسو تول نۀ منئ، په بعضو ایمان لرئ او په بعضو ایمان نۀ لرئ، او بعض د الله سره شریکان جوړوئ، د هغه اولاد ئے ګڼړئ۔
او امام بخاریؒ د ابو هریره ﷛ نه روایت کړے چه اهل کتابو به تورات په عبرانئ ژبه کښې لوستلو او په عربئ ژبه کښې به ئے مسلمانانو ته د هغے ترجمه کوله (دے دپاره چه دوی هغوی لره خپل دین ته راواړوی او دعوت ورکړی) نو نبی ﷺ اُوفرمایل : د دوی تصدیق هم (مطلقاً) مۀ کوئ او تکذیب ئے هم (مطلقاً) مۀ کوئ، بلکه وایئ چه مونږ ایمان لرو په الله او په هغه کتابونو چه مونږ ته نازل شویدی (باقی ایمانیات داسے دی لکه پدے آیت کښې چه راغلی دی)۔نو ګویا کښې دا آیت په جواب د دعوت د اهل کتابو کښې دے۔
او نبی ﷺ به دا آیت د سحر د سنتو په اول رکعت کښې او ﴿ قُلْ يَا أَهْلَ الْكِتَابِ تَعَالَوْا ﴾ په دویم رکعت کښې لوستلو دپاره د دعوت، او د اظهار د ایمان، او په ایمان باندے د تثبت او مضبوطوالی دپاره۔ (مسلم، وابن خزیمه والحاکم)
﴿ قُولُوا ﴾ یعنی دوی ته ئے هم اُووایئ او ځان سره ئے هم د ایمان د مضبوطوالی دپاره وایئ۔
۱- پدے کښې اشاره ده چه مسلمان به د خپلے عقیدے اعلان کوی، او نورو ته به دعوت ورکوی۔ ۲- دارنګه پدے کښې اشاره ده چه مؤمن به د خپلے عقیدے په ژبه هم اقرار کوی او په زړۀ به ئے تصدیق کوی۔ ځکه کله چه په خوله باندے یو عمل وی، او د زړۀ د اعتقاد تائید ورسره نۀ وی، نو هغه بے اثره او بے فائدے وی۔
﴿ آمَنَّا ﴾ ایمان چه کله ذکر شی نو د اسلام تول ارکان او اعمال صالحه پکښې داخل وی، دغه شان چه کله اسلام ذکر شی، نو په هغے کښې ایمان داخلیږی او کله چه دواړه ذکر شی نو ایمان به

د زړهٔ د تصدیق او د اقرار نوم وی او اسلام به د ظاهری اعمالو۔
﴿ بِاللّٰهِ ﴾ یعنی د الله په ذات او صفاتو او وجود باندے یقین لری، په خلاف د یهودو او نصارا چه هغوی پرے مشرکان دی۔
﴿ آمَنَّا ﴾ ئے جمع صیغه راوړه، دے ته اشاره ده چه د امتِ اسلامیه د تولو افرادو دا ذمه واری ده چه د الله رسئ په مضبوطتیا سره اُونیسی او افتراق او اختلاف قبول نهٔ کړی۔ او اُمتِ مُسلِمه به په همدے عقیده راجمع کیږی، دا د اسلامی تصور بنیاد دے۔ او دا هغه فکر دے چه امتِ مُسلمه یو ملت جوړوی۔
﴿ وَمَا أُنْزِلَ إِلَيْنَا ﴾ : دا قرآن او سنت دواړو ته شامل دے۔ لکه الله فرمائی : ﴿ وَمَا أَنْزَلَ عَلَيْكُمْ مِنَ الْكِتَابِ وَالْحِكْمَةِ ﴾ (بقره : ۲۳۱) (او هغه چه الله په تاسو نازل کړے یعنی قرآن او حدیث)
نو دواړه نازل شویدی۔ په قرآن او سنت باندے د ایمان راوړو مطلب دا دے چه مسلمانان په دے دواړو کښ د الله تعالیٰ په تولو صفاتو، د انبیاء کرامو او رسولانو په صفاتو، او د آخرت په ورځ او په غیبی امورو او شرعی احکامو باندے ایمان لری۔
﴿ وَمَا أُنْزِلَ إِلَى إِبْرَاهِيمَ ...... ﴾ دا په تولو آسمانی کتابونو او تمامو انبیاؤ باندے د ایمان د وجوب دلیل دے یعنی په تولو باندے ایمان راوړل ضروری دی، او دا عقیده ساتل چه دا انبیاء علیهم السلام په خپل خپل دورونو کښ د الله تعالیٰ حق انبیاء وو، چا چه د دوی خبره منلے ده، هغه کامیاب شویدے او چا چه ددے انبیاؤ مخالفت کړیدے، هغه هلاك شویدے۔ لیکن زمونږ د رسول محمد رسول الله ﷺ د راتلو نه روستو د هغوی شریعتونه منسوخ شویدی۔ اگرکه توحید د تولو انبیاؤ شریك دین دے خو بعض بعض احکام به جدا وو۔
﴿ وَالْأَسْبَاطِ ﴾: جمع د سِبطٔ ده، په لغت کښ پرله پسے راتلو ته وائی نو معنیٰ ئے ده جماعت او خاندان څکه چه د هغے افراد هم د یو بل پسے وی۔ او دارنگه په لغت کښ هغه ونے ته وائی چه یو بیخ او ډیرے څانگے لری، نو د یعقوب ﷺ هم دولس څامن وو چه دا ئے څانگے وے او یعقوب ﷺ ئے اصل وو۔ چه د هغوی نه ډیر خاندانونه خوارهٔ شول۔
امام بخاریؒ لیکی: اسباط د بنی اسرائیلو قبیلو ته وئیلے شی او دلته مراد هغه انبیاء دی چه په بنی اسرائیلو کښ راپیدا شوی وو۔ (احسن الکلام)۔
نو د اسباط نه خاندانونه او اولاد مراد دی۔
﴿ وَمَا أُوتِيَ مُوسَى وَعِيسَى ﴾ ددے دواړو تخصیص ئے پدے وجه اُوکړو چه هغوی د تورات او د انجیل د ایمان په باره کښ اعتراض کړے وو چه تاسو دا ولے نهٔ منئ۔ او دارنگه یهودو انجیل نهٔ

منلو او عيسايانو تورات نهٔ منلو۔ او مؤمنان دواړه مني۔

﴿ النَّبِيُّوْنَ مِنْ رَّبِّهِمْ ﴾ ددے نه مراد هغه انبياء کرام عليهم السلام دي چه د آدم ﷺ نه تر ابراهيم ﷺ پورے راليږلے شوي وو۔

﴿ لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ اَحَدٍ مِّنْهُمْ ﴾ دلته هم (قُوْلُوْا) (اُووايئ) پټ دے۔ د تفريق نه مراد تفريق فی الايمان دے۔ يعني داسے نهٔ کوو چه په بعضو باندے ايمان اُولرو او د بعضو نه انکار اُوکړو، لکه يهود او نصارئ او مشرکان دا کار کوي۔ او دلته د تفريق نه تفاضل (يو بل باندے غوره والے) نهٔ دے مراد ځکه چه انبياؤ کښې تفاضل شته۔ لکه ددے سورت په آيت (۲۵۳) کښې راځي۔ يا دا چه مونږ به د ځان نه د هغوي ترمينځ جدا والے نهٔ راولو چه يو له يوه مرتبه بيان کړو او بل نه ئے نفي کړو۔ او الله چه کومو مرتبو کښې فرق کړے وي نو هغه د بندګانو د طرف نه نهٔ دے۔

﴿ وَنَحْنُ لَهٗ مُسْلِمُوْنَ ﴾ او مونږ الله دپاره اخلاص کونکي يو او تابعدار يو۔ د هغه سره شريکان نهٔ جوړو، او د هغه ټول حکمونه او رسولان منو، او تاسو کښې اسلام او تابعداري نشته۔ نو پدے آيت کښې ټول ايمانيات ذکر دي۔

هر کله چه د يهوديت او نصرانيت بطلان او غلط والے ثابت شو، نو اُوس الله تعالىٰ هغوي ته ترغيب او دعوت ورکوي چه راشئ: ايمان راوړئ داسے صحيح اصلي ايمان کوم چه دے صحابه کرامو ؓ راوړے دے، همدا مقبول ايمان دے:

| فَاِنْ اٰمَنُوْا بِمِثْلِ مَآ اٰمَنْتُمْ بِهٖ فَقَدِ اهْتَدَوْا |
|---|
| پس که دوي ايمان راوړو په شان د هغه چه تاسو ايمان راوړے په هغے، نو يقيناً دوي په هدايت شو |
| وَاِنْ تَوَلَّوْا فَاِنَّمَا هُمْ فِيْ شِقَاقٍ فَسَيَكْفِيْكَهُمُ اللّٰهُ |
| او که دوي اُوګرزيدل نو يقيناً دوي په سخت اختلاف کښې دي، زر دے چه کافي به شي ستا الله له طرفه د دوي نه |
| وَهُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ﴿۱۳۷﴾ |
| او الله اوريدونکے، په هرڅه پوهه دے۔ |

**تفسير:** پدے آيت کښې ټولو کافرانو او د عالَم اقوامو ته او بالخصوص يهود او نصاراؤ ته د صحيح ايمان راوړلو دعوت دے چه هغه د صحابه کرامو ؓ په شان ايمان دے۔

﴿ فَاِنْ اٰمَنُوْا بِمِثْلِ مَا اٰمَنْتُمْ بِهٖ ﴾ يعني که دا يهود، نصارئ، مشرکان او منافقان ټول ستاسو د ايمان په شان ايمان راوړي چه ټول انبياء اُومني، او د الله تعالىٰ ټول صفتونه او ټول حکمونه اُومني۔ او

په اخلاص سره توحید قبول کړي- نو هله به په هدایت وي-
د مثل نه مراد دا دے چه ستاسو د ایمان په شان ایمان راوړي په تولو خبرو منلو کښې- پدے آیت کښې الله تعالیٰ د صحابه کرامؓ ډیر اعزاز کړیدے چه د هغوی ایمان ئے د تول عالَم دپاره معیار او کسوټي ګرزولے دے چه الله تعالیٰ ته به د دوی ایمان هله مقبول وي چه کله د صحابه کرامؓ په شان ایمان راوړي چه هغه د اخلاص او توحید نه ډك ایمان وو-
خطیب شربینيؒ او خازنؒ وئیلي دي چه دا په طریقه د تعجیز سره دے او مطلب دا دے چه که دوی ستاسو د دین په شان بل دین حاصل کړي نو دوی به په هدایت شي لیکن ستاسو د دین اسلام په شان بل دین خو محال (ناممکن) دے نو دغه شان د دوی هدایت موندل هم محال دی-
(فَإِنْ آمَنُوا بِمِثْلِ) **سوال** دا دے چه مونږ خو په الله تعالیٰ او د هغه په رسولانو او کتابونو ایمان راوړیدے او د دوی مثل خو نشته ؟- **جواب** ۱-: ابن عباسؓ فرمائی: مثل لفظ زائد دے (طبري)- او د زینت دپاره په عربئ کښې استعمالیږي- او اصل کښې داسے دے: [فَإِنْ آمَنُوا بِمَا آمَنْتُمْ بِهِ] (یعنی که دوی په هغه څۀ ایمان راوړي په کومو چه تاسو ایمان راوړے) چه هغه الله، ملائك، آسماني کتابونه، د خیر او د شر تقدیر او بعث بعد الموت) دی- نو (مَا آمَنْتُمْ بِهِ) نه مراد مُؤْمَنٌ بِهٖ ده یعنی په کومو څیزونو چه ایمان راوړے شي)-
۲-**جواب**: دلته لفظ د مثل صفت دے دپاره د پټ مصدر یعنی [فَإِنْ آمَنُوا إِيمَانًا مِثْلَ إِيمَانِكُمْ] او باء زائده ده یعنی که دوی ایمان راوړي داسے ایمان چه ستاسو د ایمان په شان وي)- نو دا مثلیت د ایمان دے، نۀ د مُؤْمَنٌ بِهٖ- او د ایمان مثل راتلل جائز دی-
۳- **جواب**: امام راغبؒ لیکي: مثل کله په معنیٰ د عین (ذات) سره وي، او کله په معنیٰ د صفت سره- او دلته په معنیٰ د عین سره دے یعنی په عین الله تعالیٰ باندے ئے ایمان راوړو- الخ-
٤- **جواب**: ابن کثیرؒ لیکي: دلته مثلیة نه مراد ایمان بجمیع الانبیاء والکتب دے- یعنی د مثل نه مراد مُؤْمَنٌ بِهٖ- یعنی که دوی ایمان راوړي په مثل د هغه چا چه تاسو پرے ایمان راوړے چه هغه تول انبیاء او تول کتابونه دی- نو مثلیت راجع دے تولے مؤمن به ته-
٥- بدائع التفسیر کښې ابن قیمؒ لیکي: دے مثل ذکر کولو کښې مبالغه غرض وي او مطلب دا وي چه تاسو خو په الله ایمان راوړیدے نو دوی دے هم څانله یو الله پیدا کړي ستاسو د الله په شان- او د محمد رسول الله ﷺ او د قرآن په شان رسول او کتاب دے پیدا کړي نو بیا به دوی هم په هدایت وي، لیکن هرکله چه ددے راوړل ممکن نۀ دي نو پکار دا ده چه دا اُومني-
**فائده**: د صحابه کرامؓ په شان ایمان د تولو مؤمنانو دے لیکن د چا پوره طریقے سره دے او چا

ورسره گناهونه يو ځائے كړى وى ليكن په اصل مُؤمَنٌ بِهٖ كښې او د ټولو رسولانو او كتابونو او د ټول دين اسلام په منلو كښې د صحابه كرامؓ سره شريك دى۔ او يهود، نصارىٰ او مشركان داسے نهٔ دى۔ نو پدے وجه الله رحمٰن رحيم دے د هر مؤمن ايمان په هره درجه كښې قبلوى، اعلىٰ وى كه متوسط او كه ادنىٰ۔ خو پدے شرط چه شرك، كفر او نفاق ورسره ملګرے نهٔ وى۔ فَلَكَ الْحَمْدُ يَا رَحْمٰنُ، يَا اَرْحَمَ الرَّاحِمِيْنَ۔

﴿وَاِنْ تَوَلَّوْا﴾ يعنى كه دوى ستاسو په شان ايمان رانۀ وړو، او ستاسو د دشمنئ په وجه ئے حق قبول نكړو او د حق نه باطل ته واوړيدل پس ددے نه چه دوى باندے حجت قائم شو۔ نو دوى د اختلاف والا دى۔ نو الله خپل رسول سره وعده كوى چه د دوى د شر نه به تا لره جدا اُوساتم۔

﴿فَاِنَّمَا هُمْ فِيْ شِقَاقٍ﴾ شقاق په معنىٰ د دشمنئ او جګړے او ضد سره دے۔ ددے نه معلومه شوه چه څوك د حق مخالفت كوى او د هغے سره دشمنى كوى، نو اصل جګړه مار او اختلاف كونكے او شرى همدغه دے او حق بيانونكے مُصلح دے۔ او دا هم معلومه شوه چه د صحابه كرامؓ د ايمان په شان د ايمان نه اَوړيدل څۀ مستحب كار پريخوستل نۀ دى، بلكه دا په اصل كښې د حق سره اختلاف كول دى چه دا هلاكت او بربادى ده۔

او شقاق د شِق نه دے په معنىٰ د طرف سره يعنى دوى د ايمان په مقابله كښې په بل طرف د كفر، ګمراهئ او هلاكت باندے ولاړ دى۔ او شقاق په اصل كښې بُعد او وراندے والى ته وئيلے شى۔ يعنى دوى د حق نه ډير وراندے دى۔

﴿فَسَيَكْفِيْكَهُمُ اللّٰهُ﴾ [اَىْ سَيَقِيْكَ شَرَّهُمْ وَيَنْصُرُكَ عَلَيْهِمْ] (يعنى الله تعالىٰ به تا د دوى د شر نه بچ اُوساتى او تا سره به د دوى په مقابله كښې مدد اُوكړى)۔ [الوسيط، والبحر المديد ۱/۱۰۸]۔

يعنى هركله چه دوى حق نۀ منى، نو خپل دعوت جارى ساته او پريږه ترے مۀ، الله به ستا كافى شى او دوى به ذليله او رسوا كړى، تۀ په خپل حق باندے عمل كوه اے زما نبى !۔ نو د دوى جګړے به ختمے شى۔ او همدغه شان اُوشو چه څۀ كسان په كښې قتل كړے شول، څه قيديان شول، او څۀ جلاوطن شول او هر طرف ته تس نس شو، او دا قرآن كريم د الله تعالىٰ د طرف نه معجزه ده چه څنګه ئے خبر وركړے وو همغه شان اُوشوه۔

په صحيح بخارى كښې د ابوسعيد خدرى ﷺ نه روايت دے چه بنو قريظو كله سعد بن معاذ (كوم چه د دوى حليف وو) حَكم (فيصله كونكے) تسليم كړو نو رسول الله ﷺ هغه راوغوختو، هغه په يو خر باندے راغلو۔ كله چه مسجد ته رانزدے شو، رسول الله ﷺ انصارو ته اُووئيل: تاسو د خپل سردار د خدمت دپاره راپاڅيږئ، بيا ئے هغه ته اُووئيل: بنو قريظه ۇ تۀ فيصله

کونکے منلے ئے، نو هغه اُوفرمایل: د دوی جنګ کونکی قتل کړئ او د دوی اولاد قیدیان کړئ۔ نبی ﷺ اُوفرمایل: ((تا د الله تعالیٰ د فیصلے مطابق فیصله اُوکړه))۔

د صحیح بخاری یو بل روایت د ابن عمر رضی الله عنهما دے چه بنو نضیر او بنو قریظه ؤ د مسلمانانو سره جنګ اُوکړو نو بنو نضیر د وطن نه اُوشړلے شو، او بنو قریظه ؤ سره احسان اُوکړے شو، پریخودے شو۔ لیکن بنو قریظه ؤ بیا د مسلمانانو سره جنګ اُوکړو، نو د هغوی سړی قتل کړے شو او ښځے او ماشومان او جائیدادونه ئے د مسلمانانو په مینځ کښې تقسیم کړے شو، سوئ د هغه بعض خلقونه چه هغوی مخکښې نه رسول الله ﷺ سره ملاؤ شو، نو نبی ﷺ هغوی ته اَمن ورکړو او هغه خلق مسلمانان شو، ددے نه روستو د مدینے ټول یهودیان رسول الله ﷺ د وطن نه اُوشړل، او مدینه د هغوی د وجود نه پاکه شوه۔ او د الله وعده رشتینی ثابته شوه۔

ابن کثیرؒ د ابن ابی حاتمؒ نه نقل کوی، لیکی: کله چه سیدنا عثمان ﷺ ظالمانو باغیانو قتل کولو، نو د هغه په غیږ کښې قرآن کریم وو نو پدے آیت باندے د هغه د وینے څاڅکے پریوتو، نو ګویا کښې پدے کښې اشاره وه چه الله تعالیٰ به د عثمان کافی شی او ددے ظالمانو نه به ورله بدله واخلی۔ دا د هغه کرامت وو۔

د هغوی یو بل مرض او یو بل جواب ذکر کوی:

| صِبْغَةَ اللّٰهِ ۚ وَمَنْ اَحْسَنُ مِنَ اللّٰهِ صِبْغَةً |
|---|
| (تاسو ځان رنګ کړئ) په رنګ (دین) د الله۔ او څوک دیر ښائسته دے د الله نه په رنګ ورکولو کښې |
| وَّنَحْنُ لَهٗ عٰبِدُوْنَ ﴿۱۳۸﴾ |
| او مونږه خاص هغه دپاره بندګی کونکی یو۔ |

**تفسیر:** په دے مخکښو آیتونو کښې الله رب العالمین د اهل کتابو د اعتراضاتو او شبهو جوابونه کول، او هغوی چه د ځان د غوره والی دعوے کولے هغه ئے رد کړے چه تاسو څنګه غوره کیدے شئ، او صفات درکښې نشته، نو آخر دا چه هغوی په خپل یو رواج باندے فخر شروع کړو، خاصکر نصاراؤ چه مونږه معمودی رنګ لرو، معمودی یو زیړ رنګ وو، او دوی د خپل ذهن مطابق دا عیسیٰ علیه السلام ته منسوب کوی چه هغه به خپلو تابعدارو ته داسے رنګ ورکولو، او اُوسنو انجیلونو کښې ئے هم لیکلے ده، دیته (بَپْتِسْمَهٗ) وائی او طریقه ئے دا ده چه اُوبو کښې څۀ زیړ شان رنګ واچوی، او بیا پکښې یو ماشوم د اُووه ورځو نه پس یا که څوک نوے

نصرانی شی، هغه پکښې داخل کړی او اُوبه پرې دپاسه واړوی نو بیا وائی [الآنَ صَارَ نَصْرَانِيًّا حَقًّا] اُوس صحیح نصرانی شو۔ نو بیا به ئې پدې ظاهری رنګ فخر کولو، او په واقع کښې عیڅ صحیح دین ورسره نۀ وو۔

او ددې اصل سبب دا وو چه عیسٰی علیه السلام یو ځل د یحیٰی علیه السلام ملاقات له لاړو نو هغه ته ئې اُوئیل چه زۀ تا له راغلے یم چه ستا نه رنګ حاصل کړم یعنی دین۔ نو نصاراؤ ددې نه صرف ظاهری رنګ مراد کړو، او بیا په هره ژبه او محاوره کښې دینداری په رنګ سره تعبیر کیږی۔

نو الله تعالیٰ په دوی باندې رد کوی چه دا څۀ خبره ده چه یو سړی باندې ظاهری رنګ واچوی، بس هغۀ ښائسته شو، پدې خو نۀ خائسته کیږی۔ الله رب العزت چه کوم رنګ رالیږلے دے چه هغه معنوی او باطنی رنګ دے چه هغه دین اسلام دے، دا ډیر غوره دے پدې فخر کول پکار دی، چه څوک پدې کښې داخل شو دا انتهائی ښائسته شی۔ عقیده ئې برابره شی، الله باندې ئې عقیده جوړه شی، دارنګه بد صفات ئې په ښائسته صفاتو بدل شی لکه قوت غضبی پکښې پروت وی، د غصې طاقت ورله په کنټرول کړی، دا قوت بې ځایه نۀ استعمالوی، قوت شهوانی پکښې وی، شهوتونه بې ځایه د خرو او غوایانو په شان نۀ استعمالوی، بلکه دا په صحیح ځایونو کښې استعمالوی، اخلاق ورله برابر کړی چه خلقو سره به څنګه خبرې کوی، څنګه به کینې پاځیږی، او بیا د الله تعالیٰ بندګی ورته خودلے شی چه الله ته به سجدې او رکوع ګانې کوی او د شپې او د ورځې عبادتونه به کوی نو په هغه انسان کښې یو معنوی قسم ښائست پیدا کیږی، چه دا ډول په ډیرو جامو، په اعلیٰ قسم عطرونو او په رنګونو او لباسونو سره نۀ حاصلیږی۔

ظاهری رنګ به د سړی تور وی، جامې به ئې خړې پړې او کمزورې وی لیکن دننه به پکښې ایمان او تقوىٰ وی، په هغې به ډیر ښائسته ښکاره کیږی، او یو سړے به داسې وی چه کوټ پتلون به ئې اچولے وی، ګیره به ئې خرئیلی وی او ځان به ئې په ظاهره ښائسته کړے وی، لیکن دومره سپك او ذلیله به وی چه سړی ته به د شادو او خنزیر نه هم بد ښکاره کیږی، نو الله فرمائی: چه اصلی رنګ خو زما دے کوم چه ما خلقو له ورکړے دے چه هغه دین دے، او دا حاصلیږی د الله په عبادت، د الله د عبادت د وجه نه انسان کښې یو خاص قسم خائست پیدا کیږی، هغه معنویات او صفات انسان کښې پیدا کیږی چه هغه تواضع، خشوع، عاجزی ده، په مخ کښې رنړا ده، اخلاق دی، احسان دے۔ نو الله تعالیٰ فرمائی زما رنګ غوره دے ددې نصاراؤ د رنګ نه چه دوی کوم ظاهری رنګ ورکوی ځکه چه ظاهری زیړ رنګ د پرې راواړولو نو څۀ به اُوشی، هغه خو څۀ ښائسته کیږی نۀ۔ او نۀ د هغه اخلاق په هغې باندې بدلیږی او نۀ ئې عقیده بدله شوه، تول

ناولتـوب پـکښې دننه پروت دے۔نو که ظاهري رنګ دې پرے راخکلو، ددے مثال داسے جوړیږي چه خـوشیانو له ورته د سرو اوبه ورکړے، په دے څهٔ؟۔ لکه اُوس هم د نصاراؤ دین صرف نومونه او صلیبونه او رواجونه دی، هیڅ کمالي صفت او عبادت پکښې نشته۔

دا ډیر عجیب آیت دے چه بنده پرے پو هه شي۔

نو پدے آیت کښې بني اسرائیلو ته ترغیب او دعوت دے چه په صحیح دین کښې داخل شئ او غلط رواجونه پریدئ۔

**فائده** : پدے آیت کښې دوه جملے دي، یوه جمله د الله د طرف نه ده، او دویمه جمله په طریقه د کـلام د مؤمنانو ده او دواړه د الله کلام دے نو پدے کښې د مؤمنانو عظیم عزت او اعزاز دے چه الله د دوی کـلام د خپل کلام نه جزء اُوګرزولو، ددے نه معلومه شوه چه د الله او د مؤمنانو ترمینځ یو ژور تعلق دے۔

﴿ صِبۡغَةَ اللّٰهِ ﴾ یعنی [صَبِغُوْا صِبۡغَةَ اللّٰهِ] (اے خلقو! ځان رنګ کړئ د الله په رنګ)۔او دا په خپل تـول ژونـد کـښې جاري او ساري کړئ۔ یا فعل اِلۡزَمُوۡا (لازم اُونیسئ) اِقۡبَلُوۡا۔ (قبول کړئ) یا اِتَّبِعُوۡا (تابعداري اُوکړئ) پټ دے۔ یا صِبۡغَةَ منصوب دے متعلق دے مخکښې سره چه [بَلۡ نَتَّبِعُ مِلَّةَ اِبۡرَاهِيۡمَ وَنَتَّبِعُ صِبۡغَةَ اللّٰهِ] ۔ (یعنی مونږ د الله د رنګ تابعداري کوو)۔

د رنګ نه مراد ددین رنګ دے۔ یعنی لکه څنګه چه رنګ د کپړے هر جزء سره پیوسته کیږي نو دغه شان اسلام د خپل منونکي حالت په یو ځل بدلوي۔

۲- یا د رنګ نـه مـراد تـطهیـر (پاکوالے) د مؤمـن دے په ایمان سره۔ یعني الله چه چا له دین ورکړي او پاک ئے کړي هغه ډیر ښائسته وي۔ ظاهري او باطني صفات پکښې پیدا شي۔

په اسلام کښې دا پاکوالے په عقیقه او ختنه کولو سره دے۔

﴿ وَمَنۡ اَحۡسَنُ مِنَ اللّٰهِ صِبۡغَةً ﴾ (یـعنی دِیۡنًا وَّتَطۡهِيۡرًا) الله چه چا له رنګ ورکړي، دین او صحیح فطرت ورکړي دا ډیر ښائسته وي، صفات پکښې پیدا شي۔ اګرکه غریب او مسکین وي۔

اُوس دا ښائست په څهٔ پیدا کیږي : ﴿وَنَحۡنُ لَهٗ عٰبِدُوۡنَ ﴾ یـعنی د الله پـه بندګئ باندے د هغه خاص رنګ او ښائست حاصلیږي، انسان کښې خشوع، په مخ کښې نُور پیدا شي۔

﴿ سِيۡمَاهُمۡ فِيۡ وُجُوۡهِهِمۡ مِنۡ اَثَرِ السُّجُوۡدِ﴾ او عبادت د انسان زړهٔ نرموي او اخلاق ښائسته کوي او د خشوع آثار راښکاره کوي۔

**فائده**: ایمان او دین ته ئے رنګ اُوونیلو، دے کښې دے خبرے ته اشاره ده چه لکه څنګه رنګ په سترګو لیدلے شي نو د مؤمن د ایمان نخے نښانے د هغه په مخ او ظاهري بدن او تولو حرکاتو او

سکناتو، کړو وړو، معاملاتو او عاداتو کښې ښکاره کیدل پکار دي۔

قُلْ اَتُحَآجُّوْنَنَا فِي اللّٰهِ وَهُوَ رَبُّنَا وَرَبُّكُمْ وَلَنَآ

اووایه آیا تاسو مونږ سره جګړې کوئ په باره د الله کښې حال دا چه هغه زمونږ رب هم دے او ستاسو رب هم دے او زمونږ دپاره

اَعْمَالُنَا وَلَكُمْ اَعْمَالُكُمْ وَنَحْنُ لَهٗ مُخْلِصُوْنَ ﴿۱۳۹﴾

زمونږ عملونه دي او ستاسو دپاره ستاسو عملونه دي، او مونږ هغه دپاره اخلاص کونکي یو۔ (یا مونږ خالص د هغه یو)

**تفسیر** : پدے آیت کریمه کښې په دوی باندے بیا رد دے، هرکله چه رسول الله ﷺ او صحابه کرامو د دین خبرے شروع کړے او یهودیان ئے راګیر کړل، نو دوی هم دعوه شروع کړه، وے وئیل چه [نَحْنُ اَوْلٰى بِاللّٰهِ مِنْكُمْ] مونږه الله ته ستاسو نه ډیر قریب یو ځکه چه انبیاء زمونږ په دین وو او په مونږ کښې کتابونه ستاسو نه مخکښې نازل دي۔ (طبري، بغوي) ...... لکه مبتدعین او هر باطل پرست چه کله ته راګیر کړے نو هغوی به هم وائي مونږ هم قرآن او سنت والا یو او ستاسو نه ښۀ مسلمانان یو۔

نو په دے آیت کښې پرے رد اوشو چه تاسو څنګه الله ته ځان قریب حسابوئ او څنګه د الله دوستان او قریب یئ، حال دا چه الله زمونږه یو شان رب دے۔ تاسو ئے هم پیدا کړي یئ او مونږه ئے هم پیدا کړي یو، زمونږ خالق هم دے او ستاسو هم دے۔ بله دا چه عملونه به اوګورو زمونږه هم عمل شته او ستاسو هم شته او ستاسو عمل غلط دے او زمونږ صحیح دے، ځکه مونږ کښې اخلاص شته، تاسو کښې اخلاص نشته۔ مونږ بندګي صرف د الله کوو او تاسو ورسره شریکان جوړوئ نو څۀ وجه ده چه تاسو الله ته قریب شوئ او مونږه وړاندے؟۔ په مخکوالي د کتاب باندے خو څه اثر نۀ پریوزي بلکه اعتبار اخلاص او توحید له دے۔

ددے آیت یو تفسیر دا دے : ﴿قُلْ اَتُحَآجُّوْنَنَا فِي اللّٰهِ﴾ [اَيْ فِي الْقُرْبِ مِنَ اللّٰهِ] یعني آیا تاسو مونږ سره جګړے کوئ الله ته په نزدے کیدو کښې چه تاسو وایئ مونږ الله ته نزدې یو۔

﴿وَهُوَ رَبُّنَا﴾ یعني حال دا دے چه الله زمونږ او ستاسو یو شان رب دے۔

﴿وَلَنَآ اَعْمَالُنَا﴾ زمونږ دپاره زمونږ عملونه دي یعني د هغے جزا به الله مونږ له راکوي۔

﴿وَلَكُمْ اَعْمَالُكُمْ﴾ یعني عملونو ته به هم اوګورو، الله تاسو له په دے عملونو څومره بدے سزاګانے درکړي دي، او مونږ له ښائسته جزاګانے راکوي، دلیل دے په دے چه مونږه الله ته قریب یو۔ او زمونږ صفت دا دے : ﴿وَنَحْنُ لَهٗ مُخْلِصُوْنَ﴾ مونږ په عبادتونو کښې اخلاص کونکي یو۔ اشاره ده چه تاسو

کښې اخلاص نشته دے۔ نو تاسو ځان ته څنګه غوره وایئ؟!۔

(۲) دویم تفسیر دا دے چه د (فِی اللّٰهِ) نه د الله تعالیٰ په توحیدِ اُلوهیت او اطاعت او د اوامرو په اتباع کښې جګړے کول مراد دی یعنی الله خپل نبی ته دا تعلیم ورکوی چه دوی ته اُووایهٔ چه تاسو ما سره د الله په توحید او اخلاص او د هغه په اوامرو او نواهیو باندے عمل کولو کښې جګړے کویٔ نو دا جګړے ستاسو خطاء دی څکه چه (وَهُوَ رَبُّنَا) یعنی زمونږ او ستاسو رب یو دے، نو هرکله چه تاسو الله تعالیٰ خپل رب ګنړئ او مونږه ئے هم رب ګنړو نو دواړه په توحید ربوبیت کښې شریك شو او هرکله چه تاسو توحید ربوبیت منئ نو پکار ده چه توحیدِ اُلوهیت هم اُومنئ څکه چه توحید ربوبیت مستلزم دے توحید د اُلوهیت لره۔ یعنی الله رب ګنړئ نو بندګی هم خالص د هغه کویٔ، اوامر او نواهی د هغه منئ، په هغے کښې ولے مخالفت کویٔ!

لیکن هرکله چه دوی نهٔ منی نو بیا نبی ﷺ ته تعلیم ورکوی چه دوی ته اعلان د براءت اُوکړه او اُووایه چه که تاسو په شرك باندے مضبوط ولاړ یئ نو مونږ د یو بل نه بیزاره یو۔ چه زمونږ خپل اعمال دی او ستاسو خپل اعمال دی، هریو له به الله تعالیٰ د هغے مطابق بدله ورکوی، او زمونږ او ستاسو ترمینځ فرق دا دے چه (وَنَحْنُ لَهٗ مُخْلِصُوْنَ) مونږ کښې د عقیدے او د اعمالو اخلاص دے او تاسو کښې نشته۔ (تفسیر ابن کثیرؒ) یعنی مونږ په خپل عبادت او تعلق بالله (د الله په تعلق) کښې مخلص یو۔ نو دا څهٔ لرے خبره نهٔ ده چه الله تعالیٰ خپل مخلصینو بندګانو ته زیات کرامت او عزت ورکړی او غوره رسول پکښې راولیږی۔

## اخلاص څه ته وائی ؟

۱ – حَقِیْقَةُ الْاِخْلَاصِ التَّبَرِّیْ عَنْ کُلِّ مَادُوْنَ اللّٰهِ] (د اخلاص حقیقت دا دے چه د الله تعالیٰ نه ما سوا د ټولو څیزونو نه انسان براءت اُوکړی)۔ (مفردات د راغبؒ)

۲ – [تَصْفِیَةُ الْعَمَلِ مِنْ کُلِّ شَوْبٍ] (عمل د هر قسم ګډون نه صفا کول دی)

او د هغے څو ارکان دی : (۱) ...... اِخْرَاجُ رُؤْیَةِ الْعَمَلِ عَنِ الْعَمَلِ]۔

یعنی عمل ته به اُوچت نهٔ ګوری بلکه د الله دپاره به ئے معمولی ګنړی۔

(۲) ......عَدَمُ اَخْذِ الْعِوَضِ عَلَی الْعَمَلِ۔ (مخلوق نه به پرے بدله نهٔ اخلی)۔

(۳) ...... عَدَمُ الرِّضَا عَلَی الْعَمَلِ ۔ (یعنی د الله دپاره به پدے عمل نهٔ راضی کیږی، د هغه د شان موافق به ئے نهٔ ګنړی)۔ (٤) ......اَلْخَجْلُ عَنِ الْعَمَلِ مَعَ بَذْلِ الْجُهْدِ۔

(ځان به پکښې شرمنده ګنړی او کوشش به هم جاری ساتی) ۔

(۵) ...... رُؤْیَةُ الْعَمَلِ فِیْ نُوْرِ التَّوْفِیْقِ ۔ (عمل ته به ګوری چه ددے توفیق ما له الله تعالیٰ راکړو زما

څهٔ کمال نهٔ دے)۔ کله چه انسان کښې دا کارونه نهٔ وی نو دا اخلاص کونکے نهٔ دے۔

او اخلاص انسان کښې هله پیدا کیږی چه د الله لوئی والے، د هغه د حق لوئی والے او په آخرت باندے ایمان د انسان په زړهٔ کښې راشی۔ او کله چه انسان کښې د الله معرفت او د هغه د حقوقو پیژندګلی نهٔ وی نو د هغه نه ریاء واقع کیږی۔

او ټول انبیاء علیهم السلام الله تعالیٰ په اخلاص باندے مامور رالیږلی دی۔

﴿وَمَا أُمِرُوا إِلَّا لِيَعْبُدُوا اللَّهَ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ﴾ [البینة:۵]۔

۳- سعید بن جبیرؒ فرمائی: [اَلْإِخْلَاصُ: أَنْ يُّخْلِصَ الْعَبْدُ دِيْنَهٗ وَعَمَلَهٗ فَلَا يُشْرِكُ بِهٖ فِيْ دِيْنِهٖ وَلَا يُرَائِيْ بِعَمَلِهٖ] ۔ (اخلاص دیته وائی چه بنده خپل دین او عمل د الله تعالیٰ دپاره خالص کړی، د هغه سره د هغه په دین کښې شریکان جوړ نکړی او په خپل عمل کښې ریاء (ښودنه) اُونکړی)۔ او د مخلوق د تعریف او شاباسی طمع نهٔ لری۔

٤- فضیل بن عیاضؒ فرمائی: [تَرْكُ الْعَمَلِ لِأَجْلِ النَّاسِ رِيَاءٌ وَالْعَمَلُ مِنْ أَجْلِ النَّاسِ شِرْكٌ، وَالْإِخْلَاصُ أَنْ يُّعَافِيَكَ اللّٰهُ مِنْهُمَا] (معالم التنزیل للبغوی ۱/۱۵۷)۔

(د چا د وجه نه عمل پریخودل ریاء ده او د چا د وجه نه عمل شروع کول شرك دے، او اخلاص دا دے چه الله تعالیٰ تا د دواړو نه اُوساتی)۔

ځینو علماؤ وئیلی دی چه اخلاص یو داسے عمل دے چه نهٔ خو ئے ملائك پیژندے شی، نهٔ شیطان او دا صرف د بنده او د الله ترمینځه یو راز دے۔ (معارف)۔ د اخلاص زیات تحقیق او تفصیل او اقوال د سلفو په الفوائد فی تزکیة النفوس (۲/۳۲٤) کښې اُوګوره۔

| |
|---|
| اَمْ تَقُوْلُوْنَ اِنَّ اِبْرٰهٖمَ وَاِسْمٰعِيْلَ وَاِسْحٰقَ وَيَعْقُوْبَ وَالْاَسْبَاطَ كَانُوْا هُوْدًا |
| آیا تاسو وایئ چه یقیناً ابراهیم، اسماعیل، اسحاق، او یعقوب (علیهم السلام) او د هغوی اولاد یهودیان |
| اَوْ نَصٰرٰى قُلْ ءَاَنْتُمْ اَعْلَمُ اَمِ اللّٰهُ وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنْ |
| یا نصاریٰ وو، نهٔ ورته اُووایه! آیا تاسو ښهٔ پوهیږئ (د هغوی په مذهب) که الله، او څوك ډیر لوئی ظالم دے د هغه چا نه |
| كَتَمَ شَهَادَةً عِنْدَهٗ مِنَ اللّٰهِ وَمَا اللّٰهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُوْنَ ﴿۱٤۰﴾ |
| چه پټوی ګواهی (د حق) چه ددهٔ سره ده د الله د طرف نه۔ او نهٔ دے الله ناخبره د هغه عملونو نه چه تاسو ئے کوئ۔ |

**تفسیر**: بیا دوی اُووئیل: زمونږه مشران پیغمبران دی، هغه یهود او نصاریٰ تیر شوی دی او زیات پیغمبران زمونږ په قوم کښې او زمونږ په دین باندے راغلی دی۔ نو زمونږ دین (یهودیت او

نصرانیت) پخوانے دین دے۔ حال دا چه په تورات او انجیل کښې دوی خپله لوستلی وو چه ابراهیم علیه السلام (عَلَى الْحَنِيفِيَّةِ) په حنیفیت دین وو۔ او آخری نبی چه راځی هغه به هم په حنیفیة دین باندے وی۔ نو دا گواهی دوی سره پرته وه او دوی پټه کړے وه۔ دارنگه دا انبیاء علیهم السلام خو د موسیٰ علیه السلام نه هم مخکښې تیر شویدی، او یهودیت او نصرانیت نه هم مخکښې تیر شویدی۔ د باطل والو دا طریقه ده چه په یو مذهب باندے روان وی، نو وائی: زمونږ په دے مذهب باندے مشران تیر شویدی لکه بدعتیان اُوس دے وخت کښې دا دعوه کوی چه تول راویان او محدثین مقلدین وو۔ پدے باندے خلق گمراه کوی۔ حال دا چه دا تول راویان او محدثین یو هم مقلد نهٔ وو بلکه دا تول د قرآن او د حدیث تابعدار وو۔ نو دوی مشران د خپل ځان تابع کوی۔ نو یهودو او نصاراؤ غلط تاریخ بیانولو۔ نو الله تعالیٰ په درے طریقو سره ددے رد کوی:

﴿ أَمْ تَقُولُونَ ﴾ آیا تاسو دا خبره کوئ یعنی دا خبره مهٔ کوئ، پدے کښې پدے خبره کولو باندے رټنه ده۔ نو الله تعالیٰ دا یهود او نصاریٰ د ځان نه هم بالکل جدا کړی دی او د خپلو پیغمبرانو نه ئے هم جدا کړی دی، د شیطان او د ابلیس ملگری کړی ئے دی۔

﴿ قُلْ ءَأَنتُمْ أَعْلَمُ أَمِ اللَّهُ ﴾ نو دا خو معلومه خبره ده چه الله بنهٔ پو هیږی او الله خبر ورکړے دے چه ابراهیم، اسماعیل، اسحاق او یعقوب علیهم السلام یهودیان او نصاریٰ نهٔ وو۔ لکه روستو سورة العمران (٦٧) آیت کښې الله تعالیٰ صراحةً فرمائیلی دی۔ ﴿ مَا كَانَ إِبْرَاهِيمُ يَهُودِيًّا وَلَا نَصْرَانِيًّا وَلَٰكِن كَانَ حَنِيفًا مُّسْلِمًا وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِينَ ﴾ او دا اول رد شو۔ چه دوی دروغ وائی۔

﴿ وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّن كَتَمَ شَهَادَةً ﴾ دا دویمه طریقه د رد: شهادت نه مراد د حقے خبرے عِلم دے۔ یعنی د حقے خبرے عِلم ورسره دے چه دا انبیاء علیهم السلام یهودیان او نصاریٰ نهٔ وو۔ او دوی پرے گواهان دی او پټوی ئے، خلقو ته ئے نهٔ بیانوی۔

﴿ عِندَهُ مِنَ اللَّهِ ﴾ : دا دواړه د (شَهَادَةً) دپاره صفتونه دی۔ یعنی دوی سره د حقے خبرے عِلم موجود دے او هغه د الله د طرف نه دے، یقینی عِلم دے او بیا ئے هم پټوی۔

دریمه طریقه د رد: ﴿ وَمَا اللَّهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُونَ ﴾ یعنی الله به د حق پدے پټولو باندے سزا درکوی۔ نو پدے کښې هر هغه چا ته زجر او رټنه ده چه د حقے خبرے علم ورسره وی او بیا ئے هم د عوامو نه د دنیا پرستئ او د مداهنت په وجه پټوی۔

تِلْكَ أُمَّةٌ قَدْ خَلَتْ لَهَا مَا كَسَبَتْ وَلَكُم

هغهٔ (انبیاء) یوه ډله ده چه مخکښې تیره شوه۔ هغوی دپاره بدله د هغه عملونو ده چه هغوی ځهٔ کړیدی او ستاسو دپاره

مَّا كَسَبْتُمْ وَلَا تُسْـَٔلُونَ عَمَّا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿١٤١﴾

بدله د هغهٔ عمل ده چه تاسو کړیدے او تپوس به نهٔ شي کیدے ستاسو نه د هغه عملونو چه هغوی کول۔

**تفسیر**: دوی بیا اُووئیل : کـه دا انبیاء یهود او نصاریٰ نهٔ وو نو زمونږ پلاران نیکونه خو دی، دوی به مونږ د الله تعالیٰ د عذابونو نه خلاصوی۔ دا آیت مخکښې هم تیر شو فرق دا دے چه

(۱) هـلتـه مقصد دا وو چه دوی د مشرانو په عمل د نجات دعوه کوله، او دلته د انبیاء کرامو په نسب باندے فخر کول دی چه دا زمونږ پلاران نیکونه تیر شویدی۔

(۲) دویم فرق دا دے چه مخکښې په عامو نیکانو مشرانو باندے فخر وو، او دلته په انبیاء علیهم السلام باندے فخر کول دی۔

(۳) یا دوی بار بار فـخر کولو نو رد به هم پرے بار بار کیدو چه نجات د هر انسان په خپل عمل دے او نسب د عمل په مقابله کښې هیڅ فائده نهٔ ورکوی۔

﴿تِلْكَ أُمَّةٌ قَدْ خَلَتْ لَهَا مَا كَسَبَتْ وَلَكُمْ مَّا كَسَبْتُمْ﴾ یـعـنـی هغوی ته به د خپل عمل بدله ورکولے شي او تاسو ته به د خپل عمل نو فخر ته ضرورت نشته۔

﴿وَلَا تُسْـَٔلُونَ عَمَّا كَانُوا يَعْمَلُونَ﴾ یـعـنـی دهغوی د عمل تپوس به ستاسو نه نهٔ کیږی۔ دارنګه دهغوی نه زمونږ په باره کښې هم نهٔ کیږی او دائے اُونهٔ وئیل چه دهغوی نه به الله تعالیٰ ستاسو د عملونو په باره کښې تپوس نهٔ کوی، وجه ئے مخکښې ذکر شوه۔

او اُوسنـو نه د پخوانو په باره کښې تپوس نهٔ کیږی ځکه چه هغوی خو مخکښې تیر شوی دی۔ ددے روستـنـو مسئـولـیـت د پخوانو په باره کښې نشته۔ او پدے کښې یو قسم وعظ او نصیحت پروت وی چه د ځان غم اُوکړئ، تاسو د مشرانو نه خلاص یئ۔

○○○○○○○○○○○

سَيَقُولُ السُّفَهَآءُ مِنَ النَّاسِ مَا وَلّٰهُمْ عَنْ قِبْلَتِهِمُ الَّتِیْ كَانُوْا

زر دے چه وائی به کم عقلان د خلقو نه چه څهٔ شی واړول دوی لره د قبلے د دوی نه هغه چه وو دوی

عَلَيْهَا قُلْ لِّلّٰهِ الْمَشْرِقُ وَالْمَغْرِبُ يَهْدِیْ مَنْ يَّشَآءُ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ﴿۱۴۲﴾

په هغے باندے۔ ته اُووایه د الله دپاره مشرق او مغرب دے۔ هدایت کوی چا ته چه اُوغواړی لارے نیغے ته۔

**مضمون** : ددے ځائے نه تر آخر د سورت پورے د سورت دریمه حصه ده، او په دے کښ [تَرْبِيَةُ هٰذِهِ الْاُمَّةِ] ددے اُمت تربیت دے۔ ددے دوه سورتونو (البقره او العمران) تقریباً یو طرز دے۔ په اوله حصه کښ ئے یهود او نصاریٰ او مشرکان راګیر کړی دی، او په دریمه حصه کښ ئے ددے اُمت تربیت کړے دے۔ د اُمت مسلمه (د مسلمانانو) تربیت کوی په ذکر د قوانینو او آدابو شرعیه ؤ سره، هغه قوانین څهٔ د جهاد متعلق دی او څهٔ د انفاق او څهٔ د تدبیر منزل او دارنګه څهٔ د بادشاهی او نظامی قوانین دی۔ خو اوله مسئله ئے د قبلے شروع کړے ده چه ددے اُمت قبله به جدا وی۔ غوره اُمت دے نو الله تعالیٰ ورله غوره قبله ورکوی چه هغه کعبه ده او د هغے نه روستو ورته د جهاد حکم کوی او دارنګه د نظام د جوړولو حکم، د کور د جوړ ولو حکم، د مالونو د لګولو حکم ورته کوی۔ او دے ته ئے تیاروی چه د الله تعالیٰ په حکمونو باندے به عمل کوئ او د هغه نظام به نافذ کوئ او د مخالفینو سره به جهادونه کوئ پدے کښ به په تاسو امتحانات راځی۔ بیا ئے هغه عملونه خودلی دی۔

دے آیتونو کښ تر دوه رکوع پورے د قبلے مسئله ده۔ خلاصه دا ده چه ددے ځائے نه تر (۱۶۲) آیت پورے بل قسم مضمون دے، په دے کښ د دوه شبهاتو جوابونه دی چه اوله شبهه په باره د قبلے بدلیدو کښ وه، او دا شبهه په اول آیت کښ ذکر ده، بیا په پنځو علتونو او طریقو سره ئے ددے جواب ورکړیدے۔ اول جواب او علت : (قُلْ لِّلّٰهِ الْمَشْرِقُ وَالْمَغْرِبُ) ۔ دویم تفصیلی علت په (۱۴۳) کښ (وَمَا جَعَلْنَا الْقِبْلَةَ الَّتِیْ) او دا حکمت دے د قبلے د بدلیدو چه هغه مخلصین د غیر مخلصینو نه راجدا کول دی۔ او مینځ کښ جواب د سوال (وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُضِيْعَ اِيْمَانَكُمْ) کښ۔ بیا (۱۴۳) قَدْ نَرٰى آیت) هم د قبلے متعلق دے چه د رسول الله ﷺ خوښه وه چه کعبے ته راواوړی نو ځکه الله تعالیٰ د هغه دخوښے مطابق کار اُوکړو او امر ئے ورته اُوکړو چه کعبے ته واوړه او دا امر ئے پنځه ځله اُوکړو۔ څهٔ امت ته او څهٔ نبی ﷺ ته۔ او دریم اجمالی علت په (۱۴۴) آیت (وَاِنَّ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ لَيَعْلَمُوْنَ اَنَّهُ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّهِمْ) کښ دے۔ چه د کعبے قبلے جوړیدل دشمنان ئے هم منی چه

دا حق دی او تاسو ئې نۀ منئ۔ (وَلَئِنْ اَتَيْتَ) کښې ئې د اهل کتابو ضد بيان کړې چه د هرې شبهې جواب دوی ته مۀ ورکوئ، دوی ضديان دی، نۀ ئې مني۔ او ضد ئې دې حد ته رسيدلې دې چه خپل مينځ کښې هم ديو بل د قبلې تابع نۀ دی۔ او نبی ﷺ او امت ئې د هغوی د تابعدارئ نه منع کړيدې۔ بيا ئې د اهل کتابو نه نقلي دليل راوړيدې چه دا نبی ﷺ حق رسول دې دا چه څۀ وائي او څۀ کوی نو دا حق دی۔ نيکان اهل کتاب هم دا مني۔ او بار بار تاکيدات ذکر کوی چه حق ستا د رب د طرف نه دې شك پکښې مۀ کوئ۔ (تعريف د حق ئې ذکر کړې) او دا تاکيدات ځکه کوی چه مسئله د قبلې ډيره سخته وه۔

بيا په (۱۴۸) وَلِكُلٍّ وِجْهَةٌ الخ) کښې د قبلې تحويل (أوړيدو) ته ترغيب دې چه هر قوم يو طرف ته اَوړی نو تاسو نيکئ ته منډه کړئ او نيکي دا ده چه الله مو کوم طرف ته متوجه کوی هغه طرف ته متوجه شئ۔ بيا قبلې طرف ته په مخ اړولو باندې ئې درې امرونه کړيدی۔

او څلورم تفصيلي علت په (۱۵۰) (لِئَلَّا يَكُوْنَ لِلنَّاسِ عَلَيْكُمْ حُجَّةٌ) آيت کښې ذکر ګړې۔ چه د يهودو او نصاراو دليل په تاسو رانشي ځکه مې قبله بدله کړه۔ او خاص انعام ذکر کول دی دپاره د مضبوطولو په امر د قبله باندې چه کعبه ئې درله ځکه قبله مقرر کړه چه الله تعالیٰ درباندې خاص انعام پوره کوی۔ ځکه چه دا امت غوره دې نو غوره قبله ئې ورکړه۔ بيا ئې امر کړې په ذکر او شکر چه دا د ټول دين خلاصه ده۔ چه ددې احساناتو په بدله کښې به تاسو د الله عز وجل ذکر او د هغه شکر کوئ۔

په ابتداء د اسلام کښې د قبلې مسئله سخته وه پدې وجه الله تعالیٰ ډير تاکيدات کړی دی۔ ځکه دا اولنې رواج وو، او اولنې رد کول وو، ګران کار وو چه مسلمانان د کعبې نه واوړيدل بيت المقدس ته، اولس (۱۷) مياشتې ئې بيت المقدس ته مونځونه اُوکړل بيا بيرته کعبې طرف ته واپړيدل۔ اول چه راواوړيدل نو مشرکانو اعتراضات کول، يهود خوشحاله وو چه زمونږ قبلې ته ئې مخ کړو او بيا چه کله بيرته کعبې ته واوړيدل، نو يهوديان او منافقان غصه شو، مشرکانو هم خبرې شروع کړې چه ګوره بيرته راواوړيدل، زمونږ مذهب ئې بيرته غوره کړو۔ درې وارو خبرې شروع کړې او دا ډيره ګرانه خبره ده، هسې په خوله باندې وئيل ئې خو آسان دی، ليکن دغه وخت کښې ټينګيدل ډير ګران وی، نو الله تعالیٰ د هغه مؤمنانو صفت کوی چه څوك د قبلې په مسئله کښې کلك پاتې شوی وو او د هغه چابدی بيانوی چه هغوی شيطاني او ورانې کولو او خبره ئې نۀ منله۔ نو د اول نه الله تعالیٰ پيشينګوئي ورکوی چه زۀ به قبله بدلوم خو ګم عقل خلق به اعتراضات کوی۔ اول نه ځکه خبر ورکوی چه د مخکښې نه انسان د دشمن په دسيسه باندې خبر وی بيا پرې هغه

دومره اثر نهٔ کوی۔

**ربط** : ۱- ددیے آیت د مخکښې (وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنْ كَتَمَ شَهَادَةً) سره تعلق دیے یعنی یهود او نصارئ خپله حق پټوی، لوئی ظالمان دی، نو اُوس وائی چه دوی کښې دا مرض هم دیے چه څوك حق ښکاره کوی، هغوی باندیے دوی اعتراضونه کوی۔

۲- او دغه شان مخکښې آیتونه د قبلے د بدلیدو دپاره مقدمه وه۔ چه ابراهیم ؑ کعبه جوړه کړیده نو اصلی مرکز کعبه ده، ددیے نه اوړیدل او بیرته راوړیدل هیڅ اشکال نهٔ لری۔

۳- او دارنګه مسئله د نسخ ئے بیان کړه چه دین کښې نسخ د حکمت دپاره راتلل جائز وی، او د یهودو بدیانے ئے بیان کړیے چه د دوی دین غلط دیے او که اعتراضونه دریاندیے کوی نو هیڅ پرواه ئے مهٔ لرئ۔

**تفسیر** : ﴿سَيَقُولُ السُّفَهَاءُ مِنَ النَّاسِ﴾

۱- دا آیت یا د قبلے د اوړیدو نه مخکښې نازل شوے وو او پدیے کښې پیشینګوئی وه چه دا خلق به په تاسو باندیے د قبلے په اوړیدو کښې اعتراض کوی او دا پیشینګوئی صادقه شوه نو دا د رسول الله ﷺ او د قرآن کریم د صدق او رشتینوالی دپاره دلیل شو۔ ۲- یا قبله بدله شوه نو پدیے وخت کښې خلقو اعتراضونه شروع کړل نو الله تعالیٰ دا آیت نازل کړو چه دا خلق لګیا دی د ضد د وجه نه اعتراضونه کوی اُوس ئے هم کوی او آینده کښې هم۔

اَلسُّفَهَاءُ : د کم عقلانو نه مراد دلته [اَلْمُعْتَرِضِيْنَ عَلٰى عَمَلِ الرَّسُوْلِ] دی یعنی هغه خلق دی چه د رسول الله ﷺ په عمل باندیے اعتراض کوی)۔ نو معلومه شوه چه څوك د پیغمبر او د صحابه کرامو ؓ په عمل باندیے اعتراض کوی، دا لوئی بے وقوف دیے۔ ولے که دوی کښې عقل وے نو دوی به وئیلی وے چه دا خو د الله رسول دیے او د الله د رسول کار په وحی سره وی، او په هغے کښې ډیر حکمتونه وی، چه هغه به انسانانو ته نهٔ وی معلوم، نو ددیے منل پکار دی۔ او دا وینا د کم عقلانو ځکه ده چه دوی ته د تورات او انجیل نه معلومه وه چه دا نبی (ﷺ) به اُولس میاشتے بیت المقدس ته مونځ کوی او بیرته به کعبے ته اوړی او ددیے عِلم سره سره دوی اعتراض کوی۔

مُؤَرِّج بن عمرو السدوسی متوفی (۱۹۵ هـ) وائی : سفیه : [اَلْبَهَّاتُ الْكَذَّابُ الْمُتَعَمِّدُ خِلَافَ مَا يَعْلَمُ] ۔ (قرطبیؒ) (سفیه : ډیر بهتان جوړونکے، غټ دروغجن ته وائی چه د خپل علم په خلاف قصداً دروغ وائی)۔ او دا اعتراض کونکی هم دغه شان وو۔

﴿مِنَ النَّاسِ﴾ یعنی دا ذلیله خلق دی ځکه چه د ضد او د عناد په وجه د حق خلاف کوی او ددیے مصداق یهودیان، مشرکان دی او منافقان هم پکښې داخل دی، آیت ټولو ته شامل دیے۔ (ابن کثیرؒ)۔

﴿مَا وَلّٰهُمْ عَنْ قِبْلَتِهِمُ الَّتِیْ كَانُوْا عَلَيْهَا﴾

پدے کښې دوه تفسیره دی : (۱) ابن عباسؓ فرمائی : په مکه کښې به صحابه کرامؓ او نبی ﷺ د بیت المقدس صخرے (کانړی) ته مخ کولو په داسے طریقه چه بیت الله به ئے هم مخے ته راغلو او بیت المقدس هم یعنی د رکن یمانی او د حجر اسود ترمینځ به اُودریدل۔ نو ځکه هلته چا اعتراض نهٔ کولو۔ (او پدے کار باندے مشرکان نهٔ پوهیدل نو ځکه ئے اعتراض هم نهٔ کولو) کله چه مدینے ته هجرت اُوشو نو هغوی بیت المقدس ته مخ اړولو کښې راښکاره شو ځکه چه مدینه کښې خو دغه شان حالت نهٔ جوړیدو (ځکه چه په مدینه کښې کعبه جنوبی طرف ته ده او بیت المقدس شمالی طرف ته دے) نو مشرکانو اعتراض اُوکړو چه زمونږ د قبلے نه بل طرف ته واوړیدل نو اُولس، میاشتے روستو الله تعالیٰ خپل نبی ته وحی اُوکړه چه بیت الله ته مخ واړوه۔

ابن عباسؓ دا خبره ځکه غوره کړے ده چه که نهٔ وی نو بیا دوه ځل نسخ راځی او حال دا چه نسخ د قبلے خو یو کرت راغلے ده۔ یعنی د ابتداء نه بیت المقدس قبله وه خو په مکه کښې پټه وه، او په مدینه کښې اُولس میاشتے ښکاره وه بیا الله تعالیٰ قبله کعبه مقرر کړه۔ لیکن دا تفسیر غوره نهٔ دے۔

۲- **ظاهر** تفسیر دا دے چه نبی ﷺ او صحابه کرامؓ به په مکه کښې بیت الله ته مخ کولو، کله چه مدینے ته راغلل نو الله تعالیٰ ورته وحی اُوکړه (په ذریعه د حدیث) چه بیت المقدس ته مخ واړوه نو اُولس یا شپاړس میاشتے (په صحیح بخاری کښې د دوه مختلفو روایتونو په بناء) بیت المقدس ته مونځ اُوشو، نبی ﷺ دا خوښوله چه ما ته امر اُوشی چه کعبه زما قبله شی، نو الله عز وجل ورته امر اُوکړو چه کعبه ستا قبله شوه۔ نو گویا کښې دوه ځل نسخ راغلے ده۔ یو ځل نسخ په حدیث او بل ځل په آیت۔ په اول ځل مشرکانو اعتراض اُوکړو چه زمونږه قبله، کعبه ئے پریخوده، د پلار نیکهٔ دین ئے پریخودو۔ او یهودیانو اُووئیل : زمونږ دین غوره دے ځکه ئے زمونږ قبله غوره کړه، خو کله چه کعبے ته بیرته واوړیدو نو یهودیانو اُووئیل : [رَغِبَ فِیْ مِلَّةِ آبَائِهٖ] د پلار نیکه دین ئے غوره کړو او د انبیاؤ قبله ئے پریخوده۔ منافقانو اُووئیل : دا څنګه نبی دے کله مو اخوا اړوی او کله دیخوا۔ او مشرکانو اُووئیل : [رَجَعَ اِلٰی قِبْلَتِنَا وَلَعَلَّهٗ یَرْجِعُ اِلٰی دِیْنِنَا] زمونږ قبلے ته بیرته راواوړیدو او کیدے شی چه زمونږ دین ته به هم راواوړی)، هر سړی خپل دین اصل گڼړو او نبی ﷺ ئے فرع۔ او حال دا چه اصل خو نبی وو۔ نو هر طرف نه اعتراضات شویدی۔ او دا آیت دواړه احتماله لری۔

**فائده** : دا تفسیر دلیل دے چه نسخ د حدیث په آیت سره صحیح ده۔

﴿عَنْ قِبْلَتِهِمْ﴾ ۱- ددے نه په اول تفسیر باندے بیت المقدس مراد دے یعنی یهودیانو اعتراض

اُوکړو چه د بیت المقدس نه چا واړول۔ ۲- یا کعبه مراد ده نو مشرکانو اعتراض اُوکړو چه د کعبے نه بیت المقدس ته چا واړول۔ لیکن اوله معنیٰ ظاهره ده ځکه د بیت المقدس نه بیرته کعبے ته راواړېدو کښې اعتراضات ډیر شوی وو۔

نو اُوس جواب ورکوی : ﴿قُلْ لِّلّٰهِ الْمَشْرِقُ وَالْمَغْرِبُ﴾

یعنی د مشرق او مغرب دواړو واکدار یو الله دے۔ نو هغه چه چا ته کوم طرف ته امر کوی د هغه اختیار دے، هیڅ اعتراض پرے نشته۔ او قبله بدلول د پیغمبر په اختیار کښې نهٔ دی۔

دویم جواب :﴿يَهْدِيْ مَنْ يَّشَآءُ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ﴾

کوم بندګان ئے چه بیت المقدس ته واړول، دا هم د الله تعالیٰ هدایت دے او کوم بندګان ئے چه بیت الله ته واړول نو دا هم د هغه هدایت دے۔

وَكَذٰلِكَ جَعَلْنٰكُمْ اُمَّةً وَّسَطًا لِّتَكُوْنُوْا شُهَدَآءَ عَلَى النَّاسِ وَيَكُوْنَ الرَّسُوْلُ

او دغه شان مونږ تاسو ګرځولی یئ اُمت غوره، (یا درمیانه) دے دپاره چه تاسو شئ ګواهان په خلقو، او شی رسول

عَلَيْكُمْ شَهِيْدًا وَمَا جَعَلْنَا الْقِبْلَةَ الَّتِيْ كُنْتَ عَلَيْهَآ اِلَّا لِنَعْلَمَ

په تاسو ګواه او مونږ نهٔ ده ګرځولے قبله هغهٔ چه وے ته په هغے باندے مګر ددے دپاره چه راښکاره کړو مونږه

مَنْ يَّتَّبِعُ الرَّسُوْلَ مِمَّنْ يَّنْقَلِبُ عَلٰى عَقِبَيْهِ وَاِنْ كَانَتْ

هغه څوك چه تابعداری کوی د رسول د هغه چا نه چه اوړی په خپلو پوندو، او یقیناً دا خبره (بدلول د قبلے)

لَكَبِيْرَةً اِلَّا عَلَى الَّذِيْنَ هَدَى اللّٰهُ وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُضِيْعَ اِيْمَانَكُمْ

خامخا ګرانه وه مګر په هغه کسانو چه الله ورته هدایت کړے دے، او نهٔ دے الله چه برباد کړی ایمان ستاسو،

اِنَّ اللّٰهَ بِالنَّاسِ لَرَءُوْفٌ رَّحِيْمٌ ﴿۱۴۳﴾

یقیناً الله په خلقو ډیر شفقت کونکے او مهربان دے۔

**تفسیر** : اُوس الله تعالیٰ بل جواب کوی فرمائی : چه دا اُمت غوره اُمت دے، دا به په خلقو ګواه وی، او رسول الله ﷺ به په دے امت ګواه وی، دا امت به د زمکے قائدین وی پدے وجه الله تعالیٰ دوی ته نصیحتونه کوی چه پدے منصب کښې به مشکلات راځی هغے باندے به صبر کوئ، او مالی او جانی قربانی به ورکوئ۔ نو الله فرمائی : غوره قبله ورله ورکوم۔ نو ځکه مے د

بیت المقدس نه راواړول.

﴿وَكَذٰلِكَ﴾ (۱) یعنې لکه څنګه چه مې غوره قبله درکړې ده. دارنګه مې تاسو هم غوره کړی یئ. (ابو مسلم). یا د (یَهْدِیْ) سره متعلق دې او مُشَبَّه بِهٖ داسې ده:

[كَمَا اَنْعَمْنَا عَلَيْكُمْ بِالْهِدَايَةِ كَذٰلِكَ اَنْعَمْنَا عَلَيْكُمْ بِاَنْ جَعَلْنَاكُمْ اُمَّةً وَسَطًا] (تفسیر الرازی ۲/۲۸۸)

(لکه څنګه ما په تاسو د هدایت انعام کړې نو دغه شان ما په تاسو دا انعام هم کړې چه تاسو مې غوره امت ګرځولی یئ).

(۲) یا کاف د کمال دپاره دې یعنې غوره امت دارنګه وی لکه څنګه چه تاسو یئ. او دا په هره ژبه کښې استعمالیږی لکه پښتو کښې دی: «سړې دغه شان وی». یعنې کامل سړې همدا دې. د تشبیه معنیٰ پکښې نهٔ وی.

تفسیر روح المعانی کښې دی: (ذلك) اشاره ده هغه جعل ته چه په هغې باندې جَعَلْنٰكُمْ دلالت کوی او ذلك بعید راوړې شویدې دپاره د تفخیم او تعظیم. یا دا بُعد حمل دې په بعد رتبی باندې. او کاف پکښې مُقْحَم (زائد) دې، د مبالغې او تاکید دپاره راوړې شویدې. او محلًا منصوب دې صفت د مصدرِ محذوفه دې او اصل عبارت داسې دې: [جَعَلْنَاكُمْ اُمَّةً وَسَطًا جَعْلًا كَائِنًا مِثْلَ ذٰلِكَ الْجَعْلِ] (مونږ تاسو غوره امت ګرځولی یئ په دغه شان ګرځولو سره) یعنې پدې ښاښتنا او کامل ګرځولو سره مونږ صرف تاسو غوره امت اُوګرځولئ. نهٔ په بل قسم ګرځولو سره چه هغه ددې نه ځکته درجې والا وی. نو دلته كذلك په فعل (جَعَلْنَا) باندې مقدم شو، دې دپاره چه قصر او اختصاص پیدا کړی. او كذلك ډیر کرته د مابعد د تثبیت او تاکید دپاره استعمالیږی آه. (روح المعانی ۲/۳۸)

﴿اُمَّةً وَسَطًا﴾ دا امت هر لحاظ سره غوره دې، د دوی تصور، عقیده، عمل، اخلاق او تعلقات مزیدار دی. او ددې د غوره والی وجوهات به په سورة آل عمران آیت (۱۱۰) (كُنْتُمْ خَيْرَ اُمَّةٍ) کښې راشی ان شاء الله تعالیٰ.

(وَسَطًا) [اَیْ عُدُوْلًا خِیَارًا] (عادلان، غوره) . (۱) وسط: غوره ته هم وائی. لکه حدیث کښې دی:

[فَاسْأَلُوْهُ الْفِرْدَوْسَ، فَاِنَّهٗ اَوْسَطُ الْجَنَّةِ وَاَعْلَاهَا] (احمد، بخاری، ابن حبان).

(د اَوْسَط معنیٰ غوره او اعلیٰ) (۲) او درمیانه او عادل ته هم وائی. یعنې دا امت د یهودیانو د افراط او غلو او د نصاراو د تقصیر او تفریط په مینځ کښې درمیانه دې.

او قبله هم پداسې ځائې کښې ده چه د ټول عالَم مرکز دې، او په جغرافیائی لحاظ سره د مسلمانانو ملکونه د ټولې دنیا نه غوره دی، تیل او هر قسم آمدنی د دوی په ملکونو کښې دی.

(کما فی حاضر العالم الاسلامی)۔

(لیکن دے خلقو ځان اُونهٔ پیژندلو، کافرانو پرے قبضه اُوکړه او دوی د یهودو او نصاراؤ پسے منلے وهی)۔

دارنګه معتدل دی په اعتبار د اقتصاد او د زمکو د حاصلاتو سره چه مشهور معدنیات پدے کښې دی۔ معتدل دی په عقیده کښې چه نهٔ د یهودیانو په شان غلو او افراط والا دی او نهٔ د نصاراؤ په شان تفریط والا دی۔ دارنګه معتدل دی په دین او شریعت کښې چه د یهودیانو په شان تشدیدات او د نصاراؤ په شان تهاون (سپکاوے) ئے په دین کښې نشته۔

معتدل دی په اخلاقو او اعمالو کښې ځکه چه د نبی ﷺ او د قرآن کریم د تعلیماتو اقتدا ئے کړیده۔ دارنګه معتدل دی په عِلم، حِلم او تولو صفاتو کښې چه داسے په هیڅ امت کښې تردے حده پورے نهٔ دی لیدلے شوی۔ (ازهر البیان)۔

**فائده**: دا آیت د اجماع په حجت کیدو باندے دلیل دے ځکه د وسط معنیٰ ده عدل او ثقه، نو که تول امت په غلطیٔ باندے اتفاق اُوکړی نو بیا خو دا (امت وسط) نهٔ کیږی۔ (قاسمی ۳۸۲/۱)۔

او شیخ الاسلام ابن تیمیه رحمه الله فرمائی : چه الله تعالیٰ دا اُمت په ګمراهئ باندے د راجمع کیدو نه محفوظ ساتلے دے، او پدے کښې به یو داسے جماعت همیشه دپاره وی چه د هغوی په وجه به تر قیامته پورے حُجت پوره کیږی، پدے وجه ددے امت اجماع (دوی چه په یوه مسئله اتفاق کړے وی هغه) حجت دے لکه قرآن او سنت چه څنګه حجت دے۔ ځکه چه دغه مسئله هم قرآن او سنت ته منسوبه وی۔ او پدے وجه ددے امت اهل حق به د سنت او د مسلمانانو د جماعت مضبوط رانیولو په وجه د هغه باطل پرستو نه همیشه جدا وی چه هغوی په خپل دے باطل ګمان کښې اخته دی چه هغوی صرف د قرآن اتباع کوی او د رسول الله ﷺ د سنت او د اجماع نه اعراض کوی۔

اصحاب السنن او مسانید په مختلفو سندونو سره د رسول الله ﷺ نه روایت کړیدیٔ چه دا اُمت به درے اَویا (۷۳) فرقو ته تقسیمیږی۔ تول به جهنم ته ځی سویٰ د یوے فرقے نه او هغه د مسلمانانو د جماعت فرقه ده۔ او په یو روایت کښې دی چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل : دا خلق به په هغه څهٔ باندے قائم وی په کوم باندے چه نن زهٔ او زما صحابه دی۔ انتهیٰ۔ او دا فرقه ناجیه (نجات مونډونکے ډله) د اهل سنت والجماعت ده، او دا فرقه په تولو فِرقو کښې غوره ده لکه څنګه چه اسلام په تولو مذاهبو کښې غوره مذهب دے۔

بیا د اجماع معنیٰ دا نهٔ ده چه دا د قرآن او سنت نه جدا مستقل دلیل دے بلکه مطلب دا دے

چه یوه مسئله به په کتاب او سنت کښ ثابته وی او بیا به د امت په هغے اتفاق شوے وی نو دے ته اجماعی مسئله وئیلے شی۔ د یو آیت یا حدیث معنیٰ چه ټول امت یو شان کوی نو د هغے نه علاوه به بله د ځان ایجاد شوے معنیٰ صحیح نهٔ وی۔ دا د اجماع مطلب دے۔ او د اجماع فائده صرف تاکید او تائید دے، او د اجماع خلاف کول د قرآن او سنت نه غلط تعبیر دے۔ د اجماع تفصیلی بحث دپاره الحق الصریح (۴۸۸/۱) ته رجوع پکار ده۔

﴿لِتَكُونُوا شُهَدَآءَ عَلَى النَّاسِ﴾ د (لِتَكُونُوا) په لام کښ دوه احتماله دی (۱) که شهادت په معنیٰ د ګواهی سره شی نو بیا به وسط په معنیٰ د عادل سره وی۔ او په (لِتَكُونُوا) کښ به لام د عاقبت او صیرورت دپاره وی ځکه چه شرط په ګواه کښ دا دے چه عادل به وی، نو معنیٰ به دا شی: ما تاسو عادل (انصاف کونکی) اُمت ګرځولی یئ انجام دا دے چه تاسو په خلقو ګواه شئ په تبلیغ او دعوت د انبیاؤ، په کفر او شرك د خلقو، په تحریف او تبدیل، په الحاد او انحراف، په افراط او تفریط، په غلو او جفا د هغوی، چه تاسو ټولو دا حقائق د پیغمبر او د قرآن د تعلیماتو نه زدهٔ کړیدی۔ او پیغمبر ستاسو تزکیه اُوکړی۔

او دا شهادت او ګواهی په ډیرو طریقو سره ده:

(۱) یو دا چه دا اُمت په یو مړی باندے نیکه یا بده ګواهی اُوکړی نو هغه دپاره جنت یا جهنم واجبیږی لکه حدیث د بخاری وغیره کښ دی یوه جنازه تیره شوه، صحابه کرامو د هغه صفت اُوکړو، نبی ﷺ اُوفرمایل: وَجَبَتْ (واجب شو) بیا بله جنازه تیره شوه، صحابه کرامو هغه په بدو یاد کړو، نو نبی ﷺ اُوفرمایل: وَجَبَتْ (واجب شو)، تپوس اُوشو چه دواړو باره کښ تاسو ځنګه وَجَبَتْ اُووئیلو؟۔ نو نبی ﷺ اُوفرمایل: تاسو د یو صفت اُوکړو او د بل مو بدی بیان کړه، نو یو له جنت واجب شو او بل له جهنم واجب شو ځکه چه تاسو په زمکه کښ د الله ګواهان یئ۔

[صحیح البخاری رقم: ۱۳۰۱ مسلم: ۲۲۴۳]۔

ددے آیت او ددے حدیث اول مصداق صحابه کرام رضی الله عنهم دی۔

(۲) دویم: دا ګواهی په آخرت کښ د انبیاء علیهم السلام په دعوت او تبلیغ باندے ده لکه په حدیث د بخاری کښ دی: نوح ﷺ به راوستے شی هغه ته به الله اُوفرمائی: [هَلْ بَلَّغْتَ؟] آیا تا تبلیغ کړیدے؟۔ هغه به وائی: آو۔ امت ته به اُووائی: تاسو ته ئے دین بیان کړے وو؟۔ هغوی به وائی: نهٔ۔ [مَا جَآءَنَا مِنْ بَشِيرٍ وَّلَا نَذِيرٍ] مونږ ته بشیر او نذیر نهٔ وو راغلے۔ نو دهٔ ته به اُووئیلے شی: [مَنْ شُهُودُكَ؟] ستا ګواهان څوك دی؟۔ هغه به اُوفرمائی: [مُحَمَّدٌ وَأُمَّتُهُ] محمد ﷺ او د هغه امت۔ نو نبی ﷺ فرمائی: تاسو به راوستے شئ۔ او ګواهی به ورکوئ چه نوح ﷺ خپل قوم

تـه ديـن بيـان کړيدے۔ بيا رسول الله ﷺ دا آيت اُولوستلو : ﴿ وَكَذَٰلِكَ جَعَلْنَاكُمْ أُمَّةً وَسَطًا لِتَكُونُوا شُهَدَاءَ عَلَى النَّاسِ وَيَكُونَ الرَّسُولُ عَلَيْكُمْ شَهِيدًا ﴾ (بخاری:۶۹۱۷]

بيـا د حـديث د مفهوم نه معلوميږی چه دے امت ته به اُووئيلے شی چه تاسو خو په هغه وخت کښې نهٔ وئ؟ نو دوی به اُووائی مونږ ته قرآن کښې وئيلے شويدی۔

ددے وجه نه حديث کښې دی، ابو الدرداء رضی الله عنه د نبی ﷺ نه نقل کوی :

[إِنَّ اللَّعَّانِينَ لَا يَكُونُونَ شُهَدَاءَ وَلَا شُفَعَاءَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ] ........... [مسلم:۶۷۷۷]

(لعنت او ښيرے (کنځلے) کونکی به د قيامت په ورځ گواهان او سفارش کونکی نهٔ وی) ځکه دوی کښې وسطيت (غوره والے) ختم شو۔ او دا گواهی لوئی منقبت دے چه دے امت ته الله تعالیٰ ور کړيدے۔

(۲) يا (لِتَكُونُوا) کښې لام د تعليل دپاره دے يعنی (لَامِ كَيْ) دے۔ او وسط په معنیٰ د غوره سره دے، او د شهادت نه مراد به د حق تعليم او بيان وی۔ او معنیٰ به دا وی :

مـا تـاسو غوره امت گرځولی يئ ځکه چه تاسو به د حق معلمين يئ او حق به بيانوئ، او خلق بـه د دعـوت او ارشاد پـه ذريعـه د حقائقو نـه خبروئ او د جمود فکری نه به ئے جدا ساتئ او د گمراهئ او انحراف نه به ئے يروئ، څهٔ قسم درس چه تاسو د پيغمبر نه زدهٔ کړے وی هغه درس بـه تـاسو نـورو تـه زدهٔ کوئ دے دپاره چه ټول جهان انسانان د تعليم او تربيت په ذريعه رونق او ښائست والا شی۔ (محاسن التنزيل للقاسمی وازهر البيان)۔

نو شهادت په معنیٰ د تعليم، بيان او دعوت د حق او د دين سره، او د شهداء معنیٰ ده مُعلمين او د دين او د حق بيانونکی۔ لکه دا معنیٰ په سورة آل عمران (۱۱۰) آيت کښې راغلے ده۔ [كُنْتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ] نـو انسـان بـه هـلـه غـوره کيږی چـه خـلقو ته حق او صحيح دين او قرآن او سنت بيانوی، د کفارو د دَسِيسُو نـه بـه ئے خبروی۔ داسے نهٔ چه غلے به ناست وی۔ او گواهی به هله ورکوی چه انسان خو مخکښې دين بيان کړے وی۔

نو لازم دی چه دا امت خپل قدر او مرتبه اُوپيژنی او شرافت او حيثيت خپل محفوظ اُوساتی۔

﴿ وَيَكُونَ الرَّسُولُ عَلَيْكُمْ شَهِيدًا ﴾ (۱) د نبی ﷺ شهادت يو په معنیٰ د دين بيانولو سره دے چه هغه امت ته دين رسولے دے۔ او امت به ئے نورو ته رسوی۔ (۲) دويم : [شَهِيدًا بِالْبَلَاغِ]

(چه نبی به وائی :ما خلقو ته دين بيان کړے وو) ...... (جلالين)۔

۳- شهيد کلـه پـه مـعـنیٰ د تزکيه کونکی سره۔ کله چه قيامت کښې اُمت گواهی اُوکړی، نو نبی ﷺ به د هغوی تزکيه بيان کړی۔ لکه صحيح حديث کښې دی۔ نو عَلَيْكُمْ په معنیٰ د لَكُمْ سره دے۔

او د شهيد معنیٰ، دا نهٔ ده لکه بعض خلق وائي : حاضر ناظر به وي۔
دا د متشابهاتو تابعداري ده ځکه چه بيا خو به دا اُمت هم حاضر ناظر وي، دوی ته هم شهداء وئيل شويدي۔
﴿وَمَا جَعَلْنَا الْقِبْلَةَ الَّتِيْ كُنْتَ عَلَيْهَا﴾ (جعل په معنی د مقررولو سره دے) په دے جمله کښې د قبلے د بدلولو حکمت ذکر دے چه هغه امتحان د خلقو دے، چه مونږ ستا قبله بدله کړه دے دپاره چه خلقو ته معلومه او راښکاره شي چه څوك د رسول الله ﷺ اتباع کوي، او څوك د دين نه اوړي، او څوك په پيغمبر اعتراضونه کوي، ځکه اُوس د بيت المقدس په ځائے کعبے ته متوجه کيدل د صادقانو مؤمنانو نه ماسویٰ په کفارو او منافقانو باندے ډیره گرانه پريوزی۔لکه همدغه شان اُوشو چه پدے امتحان کښې ډير خلق ناکام شو۔
امام بغویؒ ليکي : د قبلے په بدليدو سره ډير مسلمانان مرتد شو او يهوديت طرف ته واوړيدل او دائے اُووئيل محمد (ﷺ) د خپل پلارانو دين ته واوړيدو۔ (بغویؒ)
او ډيرو منافقانو د پيغمبر بے ادبي شروع کړه چه مونږ اَړوی راړوی۔ او بعض مؤمنانو ته دا وسوسه راغله چه ډيرو خلقو خو بيت المقدس ته مونځونه کړيدی، او هغه اُوس وفات شويدی نو آيا د هغوی مونځونه به برباد وي۔ نو روستو جمله نازله شوه۔او داسے امتحانات کله نا کله الله راولی، مخلصين او غير مخلصين راښکاره کوي۔
(كُنْتَ عَلَيْهَا) دا په معنیٰ د [اَنْتَ الْآنَ عَلَيْهَا] سره دے يعني چه تهٔ پرے اُوس موجود ئے۔ او يا بيت المقدس مراد دے كُنْتَ عَلَيْهَا اَیْ بَيْتِ الْمَقْدِسِ۔
﴿إِلَّا لِنَعْلَمَ مَنْ يَّتَّبِعُ الرَّسُوْلَ مِمَّنْ يَّنْقَلِبُ عَلٰى عَقِبَيْهِ﴾ الله تعالیٰ ته خو معلومات شته ليکن خلقو ته ئے راښکاره کوي۔ د علم په صله کښې چه کله (مَنْ) کلمه راشي نو هلته په معنیٰ د راښکاره کولو او جدا کولو سره وي۔ يعنی [لِنُظْهِرَ وَلِنُمَيِّزَ] (دے دپاره چه مونږ راښکاره کړو يقين والا د شکيانو نه) (قرطبیؒ، ماوردیؒ)۔ يعني چه خلقو ته پته اُولگي چه دا سړے د الله تعالیٰ د رسول تابعدار دے او دا نهٔ دے، هسے د خواهشاتو پسے روان دے۔يا شکی دے۔ د پيغمبر تابعداری ديته وائي چه تهٔ به د هغه خبره منے، که ستا عقل ئے مني او که نهٔ ئے مني، که ستا د رواج او عادت برابره وي او که نهٔ وي، د هغه خبره به منے۔
ابن جريرؒ او قرطبیؒ (۱۵۶/۲) وائي : د عربو عادت دے چه د کشرانو د عمل نسبت مشرانو ته کوي نو دلته (لِنَعْلَمَ) معنیٰ ده [لِيَعْلَمَ رَسُوْلِيْ وَالْمُؤْمِنُوْنَ]
(چه زما رسول او مؤمنانو ته پته اُولگي)۔

لکه يو حديث قدسي کښې دي : [يَا ابْنَ آدَمَ اِمَرِضْتُ فَلَمْ تَعُدْنِيْ] (اے د آدم ځويه ! زهٔ مريض شوے وم تا زما عيادت ندے کړے)۔ (رواه مسلم) نو د بنده مرض ئے ځان ته منسوب کړو۔

(٣) (اِلَّا لِنَعْلَمَ) په معنیٰ د لِنَخْتَبِرَ سره دے۔ يعنی چه مونږ امتحان اُوکړو۔ او دا تاويلات ولے کيږی؟ ځکه چه د مسلمانانو اتفاق دے چه الله تعالیٰ په هر شي، په ماکان او مايکون تولو باندے علم لرى۔ دويم : د عربيت د محاورے مطابق لفظ دلته استعمال دے او هغه دغه معانی لرى۔

﴿يَنْقَلِبُ عَلٰى عَقِبَيْهِ﴾ په پوندو باندے اوړيدل، د خپل دين نه د مرتد کيدو نه کنايه ده۔ [اَىْ يَرْجِعُ عَنْ دِيْنِهٖ] (ابن جرير) يعنی څوك د دين نه اوړى)۔ ځکه چه څوك په پوندو اوړى نو هغه خپلے مخے ته منزل پريدى۔ هر کله چه دوى ايمان او دلائل پريخودل نو داسے شو لکه چه په شا باندے راغلى وى۔ يا د جنت لاره ئے پريخودهٔ او بيرته گمراهئ طرف ته راواپس شو۔

﴿وَاِنْ كَانَتْ لَكَبِيْرَةً﴾ پدے جمله کښې الله تعالیٰ د قبلے د بدلولو مسئلے عظمت بيانوى چه قبله بدلول گران کار دے ځکه چه رواج او عادت بدلول گران وى مگر چا ته چه الله تعالیٰ هدايت کړے وى او په دين ئے مضبوط کړے وى، نو هغه ته د نبى تابعدارى آسانه وى۔

(اِنْ) په معنیٰ د قَدْ سره دے۔ او كَبِيْرَةً په معنیٰ د (ثَقِيْلَةً) سره دے۔ (يعنی خامخا د قبلے مسئله ډيره گرانه وه)۔ او كَانَتْ کښې ضمير خبرے ته هم راجع کيږى يعنی دا خبره گرانه وه۔

﴿اِلَّا عَلَى الَّذِيْنَ هَدَى اللّٰهُ﴾ ١ – مگر په هغه کسانو آسانه ده چه الله تعالیٰ ورته هدايت کړے وى يعنی زړهٔ ئے ورله په تصديق د رسول باندے مضبوط کړے وى او شکيان نهٔ وى۔

٢ – يا [هَدَى اللّٰهُ اِلٰى سِرِّ الْاَحْكَامِ الشَّرْعِيَّةِ الْمَبْنِيَّةِ عَلَى الْحِكَمِ وَالْمَصَالِحِ اِجْمَالًا اَوْ تَفْصِيْلًا]

(يا هغه کسان چه الله تعالیٰ ورته د احکامِ شرعيه ؤ رازونه اجمالًا يا تفصيلًا خودلى وى چه الله پدے کښې ډير حکمتونه لرى۔ چه کله يو حکم کوى او کله بل حکم۔ (روح المعانى)۔

﴿وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُضِيْعَ اِيْمَانَكُمْ﴾

بعض خلقو اعتراض اُوکړو (او دا اعتراض کونکى يا يهوديان وو او منافقان ورسره ملگرى وو، يا د مسلمانانو شك پيدا شوے وو) حُيَىُّ بن اَخْطَبُ يهودى او د هغه ملگرو مسلمانانو ته اُووئيل : چه مونږ ته خبر راکړئ تاسو اُوسه پورے بيت المقدس ته مونځونه کړى، که دا هدايت وو نو تاسو خو ترے واوړيدئ، او که دا گمراهى وه نو تاسو خو د الله تعالیٰ عبادت په گمراهئ سره اُوکړو، او تاسو نه چه څوك مړهٔ شوى دى نو هغوى خو په گمراهئ مړهٔ شويدى۔ (بغوى)۔

دارنگه د مسلمانانو په زړونو کښې هم دا وسوسے پيدا شوئے چه دا اُولس (١٧) مياشتے مونږ بيت المقدس ته مونځ اُوکړو ، هغه به ضائع او برباد وى ؟۔ دارنگه کوم کسان چه پدے موده کښې

وفات شویدی د هغوی مونځونه به برباد وی ؟ (چه پدے موده کښې تقریباً لس کسان وفات شوی وو یو پکښې شهید شوے وو) لکه اُوس هم ډیر خلق داسے اعتراض کوی چه هرکله چه دا حق ما اُومنلو نو هغه پنځوس کاله مونځونه چه ما کړیدی هغه به برباد وی ؟ نو الله تعالیٰ ددے جواب کوی او مسلمانانو ته اطمینان ورکوی چه الله ستاسو مونځونه نهٔ بربادوی ځکه چه هغه مونځونه تاسو د الله تعالیٰ د حکم مطابق کړی وو او اُوس ئے هم د الله تعالیٰ د حکم مطابق کوئ. مخکښې هغه حق وو اُوس دا حق دے. نو هر یو په خپل خپل وخت کښې هدایت وو. دغه شان که یو انسان مخکښې نه په ناخبرئ سره یو عمل کوی او بیا په سنت طریقه پوهه شی، نو الله تعالیٰ د هغه زارهٔ اعمال نهٔ بربادوی ځکه چه دهٔ ته هغه دین ښکاره کیدو. دا مجتهد مُخطی وو. الله تعالیٰ په بندګانو شفقت کونکے رحم کونکے دے.

﴿لِيُضِيعَ اِيْمَانَكُمْ﴾ ۱- یعنی چه برباد کړی مونځونه ستاسو کوم چه تاسو بیت المقدس (اولے قبلے) ته کړیدی. د صلاة په ځائے ایمان ذکر کړو ځکه چه دغه مونځونه د ایمان په سبب شوی وو. ۲- یا الله تعالیٰ ستاسو ایمان نهٔ ضائع کوی.

**فائده** : د ایمان نه مراد دلته مونځ دے چه په حالت د ایمان کښې تاسو کړیدے. او دا دلیل دے چه مونځ د ایمان جزء دے، او په ایمان کښې داخل دے لکه دا د عامو محدثینو مذهب دے چه اعمال په ایمان کښې داخل دی. نو دلته ذکر د کل دے مراد ترے نه اَهم جزء دے. او اشاره ده چه دا مونځونه تاسو د ایمان په حالت کښې کړیدی نو ځکه به برباد نهٔ وی. ځکه چه مونځونه دوه قسمه دی یو هغه مونځ دے چه د نفاق سره وی نو هغه خو برباد دے، او دویم هغه دے چه د ایمان سره وی نو دا الله تعالیٰ نهٔ بربادوی.

﴿اِنَّ اللّٰهَ بِالنَّاسِ لَرَءُوْفٌ رَّحِيْمٌ﴾ اُوس دلیل بیانوی چه الله تعالیٰ ستاسو مونځونه ځکه نهٔ ضائع کوی چه الله تعالیٰ په خپلو بندګانو ډیر شفقت والا او رحم کونکے دے.

د الله د رحمت مثال حدیث کښې داسے راغلے دے چه رسول الله ﷺ یوه ښځه د قیدیانو نه اُولیده (غالباً دا په غزوهٔ حنین کښې نیولے شوے وه) چه د هغے او د هغے د بچی ترمینځ جدائی راوستلے شوے وه نو دا پسے دومره خفه وه چه کله به ئے یو ماشوم په قیدیانو کښې اُولیدو، هغه به ئے راواخستو او سینے سره به ئے یو ځائے کړو او خپل بچی پسے ګرځیدله خو کله ئے چه خپل بچے موندهٔ کړو نو ځان سره ئے یو ځائے کړو او خپله سینه ئے ورکړه نو رسول الله ﷺ اُوفرمایل :

[اَتُرَوْنَ هٰذِهٖ طَارِحَةً وَلَدَهَا فِي النَّارِ؟]

(ستاسو څه خیال دے چه دا به خپل بچے اُور ته ګوزار کړی ؟)

کله چه دا پدې قادره هم ده چه اور ته یې گوزار نکړي؟ صحابه کرامو عرض اُوکړو: نه، اې د الله رسوله! نو نبي ﷺ اُوفرمایل: [فَوَ اللهِ، لَلّٰهُ أَرْحَمُ بِعِبَادِهِ مِنْ هٰذِهِ بِوَلَدِهَا] (بخاري: ۵۹۹۹) مسلم (۲۷۵۴) (قسم په الله، الله تعالیٰ په خپلو بندګانو باندې ددې زنانه نه په بچي باندې ډېر مهربان دې).

## د رافت او رحمت فرقونه

۱- رافت د ضرر دفع کولو دپاره استعمالیږي، او رحمت د فائدې راخکلو دپاره.

۲- او رافت په خاص بندګانو رحم دې او رحمت په عامو بندګانو دې. پدې وجه ئې رافت مقدم کړو.

۳- بل: رحمة په هغه وخت کښې وي چه په بنده کښې یو حالت پیدا شي چه هغه حاجت او ضعف د هغه دې، او رافة په هغه وخت کښې استعمالیږي چه په فاعل (کونکی د رحمت) کښې یوه معنیٰ یعني په مرحوم (بنده) باندې شفقت پیدا شي. نو په رافت کښې بنده ته د احسان د رسولو پوره او کامله جذبه وي. او په رحمة کښې د بنده احسان او نعمت ته پوره حاجت وي. (یعني کله چه الله تعالیٰ بنده ته د خیر رسولو پوره او کامله اراده کړي وي نو دې ته رافت وائي. او کله چه بنده کښې د الله تعالیٰ نعمت ته پوره حاجت وي او په دهٔ باندې په دغه وخت کښې کوم نعمت اُوشي نو دې ته رحمت وائي نو رافت تعلق د احسان کونکي سره او د رحمة تعلق د بنده سره دې). او دیو کار په موجودولو کښې د فاعل د حال تاثیر ډېر قوي وي د حاجت د مفعول (یعني بنده) نه هغه کار ته نو پدې وجه رافت مقدم شو چه دا د رحمة نه ډېر قوي دې. [تفسیر ابن عرفة ۱/۱۸۳]

| |
|---|
| قَدْ نَرٰی تَقَلُّبَ وَجْهِكَ فِي السَّمَآءِ فَلَنُوَلِّيَنَّكَ قِبْلَةً |
| یقیناً مونږه وینو بیا بیا اوړیدل د مخ ستا آسمان طرف ته، نو خامخا مونږ اړوو تا داسې قبلې (کعبې) ته |
| تَرْضٰهَا فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ وَحَيْثُ مَا كُنْتُمْ فَوَلُّوْا وُجُوْهَكُمْ |
| چه ته خوښوې هغې لره. نو واړه وه مخ خپل په طرف د مسجد حرام او چرته چه یئ تاسو، نو واړوئ مخونه خپل |
| شَطْرَهٗ وَاِنَّ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ لَيَعْلَمُوْنَ اَنَّهُ |
| په طرف د هغې او یقیناً هغه کسان چه ورکړې شوې دې هغوی ته کتاب خامخا پوهیږي چه دا (قبله اړول) |
| الْحَقُّ مِنْ رَّبِّهِمْ وَمَا اللّٰهُ بِغَافِلٍ عَمَّا يَعْمَلُوْنَ ﴿۱۴۴﴾ |
| حق دي د طرف د رب د دوی نه او نهٔ دې الله بې خبره د هغه عملونو نه چه دوی ئې کوي. |

**تفسیر** : ۱ - دا آیتونه خو هغه وخت کښې نازل وو چه قبله بدله شوې وه۔ اُوس هغه حالت بیانوی چه قبله لا بدله شوې نهٔ وه۔ نو دا آیت اگرچه د تلاوت په اعتبار روستو دے لیکن د معنیٰ په اعتبار مخکښې دے۔ (قاسمیؒ) ځکه رسول الله ﷺ چه کله مدینې طیبې ته هجرت اُوکړو نو د الله تعالیٰ د حکم مطابق به ئې بیت المقدس طرف ته مونځونه کول او زړهٔ کښې به ئې دا غوختل چه دا قبله الله رب العزت بیت الله طرف ته راواړوی نو ښهٔ به وی ځکه چه دا بهترینه قبله ده۔ نو ادباً مع الله (یعنی د الله سره د ادب د وجه نه) به ئې بَره بَره کتل چه وحی به کله راځی او په خولې به ئې څه نهٔ وئیل۔ او جبرئیل ؑ ته ئې هم وئیلی وو چه زما قبله بدله شی ښهٔ به وی، هغه ورته اُووئیل : زما اختیار نشته، تهٔ دعا اُوغواړه خو نبی ﷺ د ادب د وجه نه دعا نهٔ غوختله، لیکن د وحی په انتظار کښې وو۔ نو الله تعالیٰ دا آیت راولیږلو۔او د هغه تَمَنّی او آرزوئې پوره کړه۔

۲- پدے کښې زمونږ بعض مشائخو وئیلی دی چه نبی ؑ په ظاهره کښې دا خوښوله چه زما قبله دې همیشه دپاره بیت المقدس وی، او بَره بَره ئې کتل چه وحی راشی او ددے په همیشوالی حکم اُوکړی، دے دپاره چه د یهودیانو سره اتفاق راشی او انتشار پیدا نهٔ شی اگرکه په زړهٔ کښې ئې کعبه خوښه وه۔ او دلیل دا وائی چه پدے آیت کښې تَقَلُّب لفظ راغلے دے یعنی په تکلف سره ئې بـره بـره کتل یعنی په زړهٔ کښې ئې بیت المقدس خوښ نهٔ وو۔ لیکن په تکلف سره جه ئې غوختل چه بیت المقدس همیشه شی۔ دویم دا چه تَرْضَاهَا فعل مستقبل دے یعنی فی الحال کعبې ته مخ واړوه او روستو به پرے رضا شے۔(قاله شیخ مشائخنا حسین علی فی بُلْغَةِ الْحَیْرَان)

لیکن دا تفسیر صحیح نهٔ دے ځکه چه د صحیح بخاری د حدیث خلاف دے چه نبی ؑ کعبې ته متوجه کیدل خوښول۔ [وَكَانَ يُحِبُّ أَنْ يُوَجَّهَ إِلَى الْكَعْبَةِ] دارنګه د نبی کریم ؑ د شان نه دا لرے ده چه هغه په زړهٔ کښې یو څیز خوښ کړی او په ظاهره کښې بل۔ او تَرْضَاهَا فعل مضارع ده خو د حال او استقبال دواړو دپاره راځی نو دلته په معنیٰ د حال ده او کله په معنیٰ د ماضی سره هم راځی۔ او تقلب کښې د تکرار او کثرت معنیٰ ده، نهٔ د تکلف۔ نو دا تفسیر د جمهورو مفسرینو د تفسیر او د صحیح حدیث خلاف دے لهٰذا دا تفسیر کول جائز نهٔ دی۔

بیا پدے آیت کښې یو څو جملے دی تولے د قبلې د تحویل متعلق دی۔ په اوله جمله کښې نبی ﷺ ته تسلی ده چه مونږ ستا حالت اُولیدو، خفه کیږه مهٔ۔

﴿قَدْ نَرٰى تَقَلُّبَ وَجْهِكَ فِي السَّمَآءِ﴾ (تَقَلُّبَ) باربار مخ اَوړیدو ته وائی، او دا دلیل دے چه الله تعالیٰ د ذات په اعتبار سره بَره دے۔ (قَدْ) د الله تعالیٰ په صفاتو کښې د تحقیق دپاره وی۔ او د انسانانو په صفاتو کښې د تقلیل دپاره هم راځی۔ (فِي السَّمَآءِ) نه مراد جهت د علو (یعنی بره طرف) دے۔

## فوائد الآية

۱- د الله تعالیٰ سره د رسول الله ﷺ ادب پکښې ذکر دے چه په خوله څه نهٔ وائی۔

۲- د الله تعالیٰ د عِلم عُموم معلوم شو چه د هرڅهٔ نه خبر دار دے۔

۳- د الله تعالیٰ د قدرت معلو مولو دپاره آسمان ته په ښائسته طریقه کتل بهتر عمل دے۔ او دا بے ادبی نهٔ ده لکه بعض صوفیاؤ وئیلی دی چه آسمان ته کتل بے ادبی ده، او د الله تعالیٰ نه د حیاء خلاف ده۔ د زکریا صاحب په فضائل اعمال او فضائل صدقات کښې ډیرے داسے قیصے شته چه په هغے کښې د آسمان ته نهٔ کتل ئے صفت شمارلے دے۔ وائی چه سری سقطی صاحب اته نوی کاله آسمان ته نهٔ وو کتلی مگر په هغه ورځ چه وفات کیدلو نو آسمان ته ئے اُوکتل۔ دا خبره یا مبالغه ده، اوکه هغوی داسے کړی وی، نو دا د هغوی خپل ذهنی دین دے، بلکه آسمان ته په کتلو کښې د الله تعالیٰ قدرت معلو مول او د هغهٔ سره محبت پیدا کول ښهٔ کار دے۔

او پدے باندے امر راغلے دے ﴿ اَفَلَمۡ يَنۡظُرُوۡۤا اِلَى السَّمَآءِ فَوۡقَهُمۡ كَيۡفَ بَنَيۡنٰهَا ﴾ (ق:٦)

(آیا دوی آسمان ته نهٔ گوری چه د دوی نه بره دے چه مونږ څنگه جوړ کړیدے)۔

٤- د الله دپاره جهت شته چه هغه بره طرف دے او پدے کښې هیڅ هغه نقصان نشته کوم چه فلاسفه او معتزله او متکلمین نفی کوی۔

﴿ فَلَنُوَلِّيَنَّكَ قِبۡلَةً تَرۡضٰٮهَا ﴾ پدے جمله کښې ورسره وعده او پیشینگوئی ده چه ستا قبله به بدله کړم۔

﴿ فَوَلِّ وَجۡهَكَ شَطۡرَ الۡمَسۡجِدِ الۡحَرَامِ ﴾ دا فاء د تعقیب (یعنی روستو والی) دپاره ده څکه چه دا حکم لږه زمانه روستو راغلے وو۔ مجاهدؒ فرمائی: دا حکم د بنی سلمهٔ په مسجد کښې نازل شوے وو چه رسول الله ﷺ د ماسپښین په مانځه ولاړ وو، وحی راغله (او انبیاؤ ته په مانځه کښې هم وحی کیږی) نو رسول الله ﷺ او مقتدیان په مانځه کښې کعبے طرف ته راواوړیدل پدے وجه دغه مسجد ته مسجد القبلتین وائی۔ چه یو مونځ دواړو قبلو ته شوے وو۔ او په مسجد نبوی کښې اول د مازیگر مونځ بیت الله طرف ته اُوشو، نو په یو لحاظ سره اول مونځ ماسپښین دے څکه نیم مونځ وو او په بل لحاظ سره د مازیگر مونځ دے څکه چه پوره مونځ کعبے طرف ته اُوشو۔ نو پدے سره د صحیحینو د روایت چه اول مونځ د مازیگر مونځ وو او د نسائی روایت چه اول مونځ د ماسپښین مونځ وو، تطبیق راغلو۔

او دا خبر مسجد قباء ته په سحر مانځه کښې اُورسیدو۔ ابن عمرؓ فرمائی: خلق په مسجد قباء کښې په سحر مانځه ولاړ وو چه یو تن راغلو او دا ئے اُووئیل: بیګاه شپه په رسول الله ﷺ قرآن

(یعنې وحي) نازله شویده او هغه ته امر شویدے چه کعبے ته مخ واړوي. او د هغوی مخونه شام طرف ته وو نو (په مانځه کښې) کعبے ته واوړیدل. (بخاري ومسلم).

او د قبلے دا بدلیدل د رجب په میاشت کښې د یوم الاثنین په ورځ د ماسپښین په وخت کښې د جنګ بدر نه دوه میاشتے مخکښې او د هجرت نه اُولس میاشتے روستو واقع شوي وو.

﴿ فَوَلِّ ﴾ دا امر نبي ﷺ ته دے او پدے امر سره د بیت المقدس قبله کیدل منسوخ شول.

(شطر) د شطر ډیرے معنے دي، دلته ئے د طرف معنیٰ ده.

امام قرطبيؒ لیکي : د اهل علمو پدے اتفاق دے چه په هر وطن او هر طرف کښې قبله صرف کعبه ده او څوك چه هلته حاضر وي او په سترګو ئےویني، نو په هغه باندے عین کعبے ته مخ کول فرض دي او څوك چه د هغے نه غائب وي نو هغوی به مسجد حرام ته متوجه کیږي او د بهر دنیا خلق به ټول حرم ته متوجه کیږي. او دا خبره په یو مرفوع حدیث د ابن عباسؓ کښې هم راغلے ده. او د مسجد حرام اطلاق کله په عین مسجد کیږي او کله په ټول حرم هم کیږي. چه منیٰ، مزدلفه او تر تنعیم پورے علاقے پکښې داخلے دي.

**فائده** : د (استقبال الی القبله) یعنې قبلے ته د مخ اړولو ډیر حکمتونه دي :

(۱) پدے سره د امت وحدت پیدا کیږي. (۲) تَوَجُّهُ الْقَلْبِ. د زړهٔ توجه برابریږي.

(۳) تَعْظِيْمُ الْبُقْعَةِ الْمُقَدَّسَةِ. د پاکے زمکے تعظیم او قدر کول.

(٤) جَمْعِيَّةُ الْقَلْبِ عَلَى اللهِ. په الله باندے زړهٔ راجمع کیدل.

(٥) اِمْتِثَالُ اَمْرِ اللهِ تَعَالٰى. د الله تعالیٰ په امر باندے عمل کول.

(٦) تَمْيِيْزُ الْمُسْلِمِيْنَ عَنْ غَيْرِهِمْ. پدے سره مسلمانان د غیر مسلمو نه جدا کیږي.

(۷) کعبه کښې هدایت دے.

(۸) زیادة الاجر دے.

(۹) اتمام نعمت. د نعمت پوره کول دي. دغسے نور ډیر فوائد شته.

﴿ وَحَيْثُ مَا كُنْتُمْ فَوَلُّوْا وُجُوْهَكُمْ شَطْرَهٗ ﴾

پدے کښې ټول امت ته په هر مکان کښې د قبلے د حکم تعمیم دے، کور وي که مسجد، دریاب وي که اُوچه، مشرق وي که مغرب، سفر وي او که حضر.

﴿ وَاِنَّ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ ﴾ پدے جمله کښې د قبلے د تحویل جواب ذکر کوي چه دے یهود او نصاراؤ ته د خپلو کتابونو نه معلومه ده چه دا آخري نبي به اول بیت المقدس او بیا کعبے ته مخ کرځوي. بیا هسے د ضد نه اعتراضونه کوي او حق پټوي.

﴿ أَنَّهُ الْحَقُّ ﴾ يعنى دا قبله بدليدل يا دا نبى او ددهٔ صدق او حقانيت د دوى په کتابونو کښې موجود وو۔ اول قول غوره دے۔

﴿ وَمَا اللَّهُ بِغَافِلٍ عَمَّا يَعْمَلُونَ ﴾ اُوس دوى ته يره بيانوى چه دوى کوم حق پټوى الله تعالیٰ ته پته ده، ددے سزا به ورکوى۔ د الله تعالیٰ نه خلاصيدے نهٔ شى۔

اوس الله رب العزت د دوى عناد بيانوى چه دا داسے عناد گر دى چه خپل مينځ کښې هم موافق نهٔ دى :

| وَلَئِنْ أَتَيْتَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ بِكُلِّ آيَةٍ مَّا تَبِعُوا قِبْلَتَكَ |
|---|
| او که چرته تهٔ راوړے هغه کسانو ته چه کتاب ورکړے شوے دے هره يوه نخه۔ تابعدارى نهٔ کوى ستا د قبلے |
| وَمَا أَنتَ بِتَابِعٍ قِبْلَتَهُمْ وَمَا بَعْضُهُم بِتَابِعٍ قِبْلَةَ بَعْضٍ |
| او نهٔ يے تهٔ تابعدارى کونکے د هغوى د قبلے۔ او نهٔ دى بعض د دوى تابعدارى کونکى د قبلے د بعضو، |
| وَلَئِنِ اتَّبَعْتَ أَهْوَاءَهُم مِّن بَعْدِ مَا جَاءَكَ |
| او که چرته تهٔ روان شوے د هغوى د خواهشاتو پسے پس د هغے نه چه راغے تا ته |
| مِنَ الْعِلْمِ إِنَّكَ إِذًا لَّمِنَ الظَّالِمِينَ ﴿۱٤٥﴾ |
| علم (پوهه د قرآن) يقيناً تهٔ به په دغه وخت کښې خامخا د ظالمانو نه شے۔ |

**تفسير** : پدے آيت کښې د يهوديانو د عناد او ضد بيان دے په دوه طريقو سره :

(۱) يو دا چه که تهٔ دوى ته په خپل حقانيت او د قبلے په حقانيت هر څومره معجزات راوړے، او د دوى د شبهاتو ازاله هم اُوشى، بيا هم عناد کوى او ستا خبره نهٔ منى۔

(۲) دويم دا چه خپل مينځ کښې يے هم اختلاف دے، د يو بل حق نهٔ منى۔ حال دا چه د دواړو تعلق د بنى اسرائيلو سره دے۔ او په خپله خپله رائے سخت کلک ولاړ دى۔ نو د دوى دين د خواهشاتو پسے روانيدل دى، نو پدے کښې الله تعالیٰ خپل نبى ته دا خبر ورکوى چه که تهٔ هر څومره کوشش اُوکړے خو دوى حق منلو ته تيار نهٔ دى، نو د دوى نه د خير توقع مهٔ کوه او د دوى د هدايت اميد مهٔ ساته۔ او تابعدارى ئے مهٔ کوه، ضديان دى خپل کار به کوى۔

﴿ بِكُلِّ آيَةٍ ﴾ يعنى هر قسم دليل او معجزه۔ په حقانيت ددے قبلے۔

﴿ مَا تَبِعُوا قِبْلَتَكَ ﴾ (لِعِنَادِهِمْ) دوى ستا د قبلے تابعدارى د عناد او د ضد په وجه نکوى)

بحث په قبله کښې وو ځکه ئې دا ذکر کړه، ورنه ټول دين اسلام مراد دے. تا پسے نهٔ راځي ځکه چه ضديان دي او چه سرے ضدي شي نو هغه به څهٔ دليل اُومني. او هرکله چه انسان ضدي شو، نو د هغه د شبهے او اعتراض هيڅ اهميت پاتے نشي.

﴿ وَمَا أَنتَ بِتَابِعٍ قِبْلَتَهُمْ ﴾ يعني تهٔ هم د هغوی د قبلے تابعدار نهٔ ئې.

۱- دا نفي په معنیٰ د نهي ده، يعني تابعداري ئې مهٔ کوه.او طمع ترے مهٔ ساته. او هرچه مونږه يو نو مونږه دا قبله د ضد د وجه نه نهٔ پريدو، بلکه د الله تعالیٰ د حکم د وجه نه ئې پريدو ځکه هغوی په غلطه روان دي. يو باطل پرست انسان حق نهٔ مني نو حق پرست به څنګهٔ د هغه سره باطل اُومني. پکار خو دا ده چه حق پرست د باطل پرست په نسبت په خپل حق دين ډير مضبوط شي.او جمله خبريه ئې ذکر کړه پدے کښې د نبي کريم ﷺ عظمتِ شان دے چه الله فرمائي، زما نبي داسے ضعيف الايمان شخص نهٔ دے چه تاسو به ئې په يوه شبهه دوه شبهو سره، او په دهمکيانو سره د خپل دين نه واړوئ. يعني د نبي (او مؤمن بنده) د شان سره دا مناسب نهٔ دي چه هغه د دوی د قبله پسے روان شي.

۲- يا دا خبر په خپله معنیٰ دے نو پدے کښې الله تعالیٰ يهودو او نصاراؤ ته خبر ورکوی چه زما نبي نه اميد مهٔ ساتئ چه دا به ستاسو قبله (او دين) قبول کړي، بلکه زما نبي په خپل دين او قبله مضبوط دے. (ابن کثيرؒ)

**فوائد** : (۱) ...... امام راغبؒ فرمائي : الله تعالیٰ څنګه خبر ورکړو چه اهل کتاب د نبي ﷺ د قبلے تابعداري نهٔ کوی حال دا چه د دوی نه خو څه کسانو ايمان هم راوړيدے ؟

**جواب** دا دے چه دا د ټولو په باره کښې دے، نهٔ د بعضو په باره کښې. يعني ټول او اکثر اهل کتاب ايمان نهٔ راوړی، په اکثرو کښې ضد او عناد دے او لږ د دوی نه بهر دي.

(۲) ......وَمَا أَنتَ بِتَابِعٍ قِبْلَتَهُمْ) کښې اشاره ده چه څوک الله تعالیٰ په لائق پيژندګلیٔ سره اُوپيژني نو دا محاله او ناممکن ده چه هغه مرتد شي او دين پريدی. پدے وجه دا مقوله مشهوره ده : [مَا رَجَعَ مَنْ رَجَعَ إِلَّا مِنَ الطَّرِيْقِ] (يعني څوک چه د دين او ايمان نه ګرزيدلے دے نو هغه د لارے نه ګرزيدلے دے او ايمان لا د هغه زړهٔ ته په صحيح طريقه نهٔ دے رسيدلے ځکه ګرزيدلے دے).او کوم خلق چه د دين نه مرتد کيږی نو هغوی په يقيني طريقے سره د ايمان او د دين خوند نهٔ وی څکلے، هسے د موافقت د وجه نه ملګرے شوے وی. مثال ئې داسے دے لکه يو سپرغیٔ چه لا بله شوی نهٔ وی او مړهٔ شي. (راغبؒ، قاسميؒ)

﴿ وَمَا بَعْضُهُم بِتَابِعٍ قِبْلَةَ بَعْضٍ ﴾ ځکه نصاریٰ بيت الشرق ته (چه د عيسیٰ ؑ د ولادت ځائے

دے) مونځ کوی، د یهودو خلاف دی، او یهود بیت اللحم او صخره د بیت المقدس ته مونځ کوی د نصاراؤ خلاف دی۔

ابن جریرؒ د ابوالعالیةؒ نه نقل کړیدی چه د موسیٰ علیه السلام قبله صخره نهٔ وه بلکه هغه به د صخرے په خوا کښې ولاړ وو او کعبے طرف ته به ئې مخ کولو۔

## آیا بیت المقدس د انبیاؤ قبله وه؟

پدے کښې د علماؤ اختلاف دے چه آیا بیت المقدس د انبیاؤ قبله وه که نهٔ وه؟ دوه رائے دی۔ عام مفسرین وائی : د ابراهیم علیه السلام د زمانے نه روستو د ټولو انبیاؤ علیهم السلام قبله کعبه وه او صرف زمونږ د نبی ﷺ دپاره ئې بیت المقدس شپاړس یا اُوولس میاشتے قبله ګرزولے وه۔ او بعض مفسرین وائی چه د بنی اسرائیلو د انبیاؤ قبله بیت المقدس وه۔ نو ددے نه معلو میږی چه د یهود او نصاراؤ قبلے (بیت اللحم او بیت الشرق) مبتدع (د ځان نه ایجاد شوے) وے۔

حافظ ابن القیمؒ په (بدائع الفوائد) کښې لیکی : د اهل کتابو قبله د الله تعالیٰ په وحی او توقیف سره نهٔ وه، بلکه دا د هغوی په مشوره او اجتهاد جوړه شوے وه۔ هر چه نصاریٰ دی نو دا خبره یقینی ثابته ده چه الله تعالیٰ دوی ته نهٔ په انجیل کښې او نهٔ په بل کوم کتاب کښې دا حکم کړے وو چه دوی مشرق طرف ته مخ اُوګرزوی، بلکه دوی خپله هم دا اقرار کوی چه د مسیح قبله بعینهٖ د عامو بنی اسرائیلو قبله وه چه هغه صخره ده۔ بلکه دوی له د دوی اشیاخو او مشرانو دا قبله جوړه کړے وه۔ دوی او یهودیان متفق دی چه الله تعالیٰ بیت المقدس طرف ته مخ ګرزول په یو رسول باندے هم هیڅکله نهٔ دی مشروع کړی۔ او مسلمانان هم پدے ګواه دی۔ او هر چه یهودیان دی نو په تورات کښې دا امر نشته چه خامخا به صخرے ته مخ ګرزوی بلکه دوی چه به بهر وتل نو تابوت به ئې اُودرولو او هغے طرف ته به ئې مونځونه کول او کله چه به خپل ځائے ته واپس راغلل نو دا به ئې په صخره باندے کیخودو او هغے طرف ته به ئې مونځ کولو نو کله چه تابوت د دوی نه پورته شو، بیا به ئې د تابوت د کیخودو ځائے ته مونځ کولو چه هغه صخره وه۔ انتهیٰ۔ [محاسن التاویل للقاسمی ۱/۳۹۹]

که څوك اُووائی چه خیر دے هسے د موافقت دپاره به ورسره ملګرے شوے وے، آمن و امان به راغلے وے او اختلاف به نهٔ وے پیدا شوے۔ معاشره به جوړه شوے وے۔ نو الله تعالیٰ فرمائی :

﴿وَلَئِنِ اتَّبَعْتَ﴾ کله چه تا ته دا علم راغلو چه دوی په باطله دی، او زهٔ په حقه یم او بیا هم د هغوی تابعداری اختیار کړے، نو ظالمانو کښې به حساب شے، او هغه ظلم بعینهٖ کفر دے۔ یعنی کافر به شے اے انسانه ! که چرته د هغوی قبلے ته ور واوړیدلے۔ دا خطاب نبی ته دے مراد ترے نه

امت دے څکه د الله تعالیٰ نبي هغوی ته ذره برابر هم نۀ مائل کیدو۔ پدے کښې امت ته تعریض دے۔ چه هر کله الله تعالیٰ خپل پاك نبي هغوی ته په میلان سره ظالم جوړوي، نو امتي خو به پدے عمل سره خامخا په ظالمانو کښې داخليږي۔ نو پدے کښې زياته يره ورکول دي د هغوی د تابعداریٔ نه، او ډیر سخت حال بيانول دي د هغه چا چه د دليل د ښکاره کيدو نه روستو هغه پريدي، او د خواهش پسے روانيږي چه دا به د ظالمانو په ډله کښې داخليږي۔ او پدے کښې په حق باندے د مضبوط پاتے کيدو زيات تاکيد دے۔ (زمخشري، قاسمي)۔

﴿اَهْوَآءَهُمْ﴾ د اهواء نه مراد د دوی قبلے دي، او د دوی قبلے ته ئے خواهشات څکه اُووئيل چه هر کله الله تعالیٰ نبي ته حکم اُوکړو چه کعبے ته متوجه شي، نو دوی باندے هم دا لازمه وه، ليکن هر کله چه دوی د کعبے نه سِویٰ په بله قبله پاتے کيږي، نو دا به د دوی خواهش وي (او د شرعي دليل خلاف به وي)۔ (زبدة التفسير ۲۲/۱)

﴿مِنَ الْعِلْمِ﴾ پدے کښې د علم لوئي شان ذکر دے څکه چه الله تعالیٰ معجزاتو او دلائلو او نبوي کارونو ته عِلم اُووئيلو، معلومه شوه چه عِلم په ټول مخلوق کښې د شرافت او مرتبے په لحاظ اُوچت شے دے۔ ۲- دا آيت دليل دے چه علماؤ ته د عوامو په نسبت وعيد زيات متوجه وي لکه دا د (مِنْ بَعْدِ مَا جَآءَكَ مِنَ الْعِلْمِ) نه معلوميږي۔ (رازي)

﴿لَمِنَ الظّٰلِمِيْنَ﴾ ددے نه لوئي ظلم به بل کوم وي چه انسان حق او باطل اُوپيژني او بيا باطل لره په حق باندے غوره کوي؟!۔

اَلَّذِيْنَ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ يَعْرِفُوْنَهٗ كَمَا يَعْرِفُوْنَ

هغه کسان چه مونږ ورکړے هغوی له کتاب، پيژني (حقانيت) ددے پيغمبر (يا د قبلے) لکه څنګه چه پيژني

اَبْنَآءَهُمْ وَاِنَّ فَرِيْقًا مِّنْهُمْ لَيَكْتُمُوْنَ الْحَقَّ وَهُمْ يَعْلَمُوْنَ ﴿۱۴۶﴾

خپل ځامن او يقيناً يوه ډله د دوی نه خامخا پټوي حق لره حال دا چه دوی پو هيږي۔

**تفسير:** اُوس د نيکانو اهل کتابو نه دليل راوړي چه ګوره دا خبره نيکان اهل کتاب هم پيژني، چه دا نبي (ﷺ) او مسئله د قبلے حقه ده، او پدے باندے اقرار هم کوي، ليکن دا ضديان ئے نۀ مني۔ يعني اهل کتاب د رسول الله ﷺ په رسول کيدو باندے داسے يقين لري لکه څنګه چه د خپلو اولادو په باره کښې يقين لري چه دا زمونږ اولاد دي۔ څکه چه په تورات او انجيل کښې د نبي ﷺ صفات موجود وو لکه الله تعالیٰ په سورة اعراف (۱۵۷) کښې فرمايلي دي: ﴿يَجِدُوْنَهٗ

مَكْتُوبًا عِنْدَهُمْ فِي التَّوْرَاةِ وَالْإِنْجِيلِ ﴾ (یعنی دوی دا رسول (او دده صفات) په تورات او انجیل کښې لیکلے شوی موندهٔ کوی)

لیکن دا اهل کتابو یوه ډله د حق پیژندلو سره سره هغه پټوی۔

نو د کور نه ورته دلیل بیانوی :

﴿ اَلَّذِيْنَ آتَيْنَاهُمُ الْكِتَابَ ﴾ مونږ ورته کتاب ورکړے او قبول کړے ئے هم دے، نیکان دی۔دا الفاظ د نیکانو اهل کتابو دپاره استعمالیږی۔

﴿ يَعْرِفُوْنَهُ ﴾ (هٔ) ضمیر نبی ته راجع دے۔ (شربینیؒ) یا قبلے ته۔ (قرطبیؒ)۔یا دین اسلام ته۔ (ابن کثیرؒ)۔ اول ظاهر دے۔

﴿ يَعْرِفُوْنَ اَبْنَاءَهُمْ ﴾ یعنی لکه څنګه چه په خپلو ځامنو کښې شك نهٔ کوی، نو دغه شان په رسول الله ﷺ کښې هم شك نهٔ کوی۔ عبد الله بن سلام ﷺ به وئیل : ځوی کښې به زما شك پیدا شی، لیکن نبی ﷺ کښې مے نهٔ پیدا کیږی ځکه کیدے شی چه مورئے څهٔ خیانت کړے وی، او دا ځوی د بل چا نه پیدا شوے وی او ما نه نهٔ وی، او رسول الله ﷺ کښې دا شك نه شته۔

﴿ وَاِنَّ فَرِيْقًا ﴾ دا دریمه ډله دا اهل کتابو ده چه هغه مداهنین او حق پټونکی دی۔

اُوس تا سره حقه خبره ده لیکن بل طرف ته ظالمان دی، که ته حق بیانوے نو کله مخالفین ډیر شی نو سرے دے وخت کښې شکی شی چه دا خلق ولے دومره مخالفت کوی؟ کیدے شی چه زهٔ به په غلطه یم، مسئله به ورانه بیانوم، نو تهٔ به شکی شے، نو دے وخت کښې به څه کوے؟ نو الله تعالیٰ اُوس طریقه ښائی چه په حق به کلك اُودریږے او شك به نهٔ کوے نو الله ددے تاکید بیانوی :

اَلْحَقُّ مِنْ رَّبِّكَ فَلَا تَكُوْنَنَّ مِنَ الْمُمْتَرِيْنَ ﴿۱۴۷﴾

حق ثابت دے د طرفه د رب ستا نه نو مهٔ کیږه د شك کونکو نه۔

**تفسیر** : ﴿ اَلْحَقُّ مِنْ رَّبِّكَ ﴾ ۱- اَیْ [اَلْحَقُّ مَا نَزَلَ مِنْ رَّبِّكَ] یعنی د رب د طرفنه چه کومه خبره راشی دغه حق وی۔ حق به هغے ته وائی چه ستا د رب د طرف نه راغلے وی او دا کومے خبرے چه تا ته راغلی دی، دا د الله تعالیٰ د طرفه دی او کوم شے چه ثابت نشی چه دا د الله د طرف نه دے لکه هغه دین چه په هغے باندے اهل کتاب روان دی، نو دا به باطل وی۔

نو پدے کښې نبی کریم ﷺ او مؤمنانو ته زیات یقین ورکول دی چه په رسول الله ﷺ باندے کوم قرآن نازل شویدے او هغه ته کوم دین ورکړے شویدے، همدا حق دے۔

نو ﴿ فَلَا تَكُوْنَنَّ مِنَ الْمُمْتَرِيْنَ ﴾ ددے خلقو د اعتراضاتو او شبهاتو په وجه په حق کښې شك مهٔ

کوه۔ یا دا هل کتابو د پتهولو په وجه۔ یعنی ستا امت له پکار دی چه پدے کښې شك اُونکړی څکه چه د نبی ﷺ نه د شك توقع نشوه کیدے۔

۲- دویمه معنیٰ : [اَلْحَقُّ فِیْ هٰذِهِ الْمَسْئَلَةِ] یعنی د قبلے د بدلیدو په مسئله کښې حق ستا د رب د طرف نه دے۔ او تا له ئے ذکر کړیدے، نو شك پکښې مهٔ کوه، کعبے ته اُوړیدل یقینی خبره ده۔ او دا خطاب نبی ته دے مراد ترے نه امت دے څکه چه نبی ﷺ هیڅ قسمه شك نهٔ کولو۔

په نبی ﷺ باندے هم د الله تعالیٰ په احکامو او په حق باندے ایمان لرل فرض وو۔

اُوس الله تعالیٰ د قبلے بدلیدو ته ترغیب ورکوی چه هر کله کعبه غوره قبله ده نو دے ته په مخ کولو کښې نیکی ده، او نیکئ پسے منډے وهل پکار دی۔ او د خلقو د اختلاف کولو د وجه نه حق پریخودل نهٔ دی پکار۔

| وَلِكُلٍّ وِّجْهَةٌ هُوَ مُوَلِّيْهَا فَاسْتَبِقُوا الْخَيْرٰتِ |
|---|
| او د هر چا دپاره یو طرف د توجه دے چه دا مخ اړونکے دے هغے ته، نو مخکښې والے اُوکړئ نیکو ته، |
| اَيْنَ مَا تَكُوْنُوْا يَاْتِ بِكُمُ اللّٰهُ جَمِيْعًا اِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿۱۴۸﴾ |
| هر ځائے چه یئ تاسو رابه ولی الله تاسو لره ټول۔ یقیناً الله په هر څه قدرت لرونکے دے۔ |

**تفسیر** : ﴿ وَلِكُلٍّ وِّجْهَةٌ هُوَ مُوَلِّيْهَا ﴾

(لِكُلٍّ) ددے مضاف الیه پټ دے یعنیٰ د هر شخص یا هر ملت او قوم دپاره۔

(وِجْهَةٌ) طرف د توجه ته وائی۔ وِجْهَةٌ د مُوَاجَهَةٌ نه دے په معنیٰ د جِهَتْ او وجه سره دے دلته ترے مراد قبله ده۔ (فتح القدیر للشوکانی) ۔

﴿ هُوَ مُوَلِّيْهَا ﴾ کښې دوه تفسیره دی : (۱) ...... ضمیر د مُوَلی راجع دے هغه (کُل) یعنی شخص ته او د مُوَلِّيْهَا دپاره مفعول ثانی محذوف دے چه هغه (وَجْهَهٗ) دے او مُوَلی نه مراد په مانځه کښې اړونکے دے ۔(اَیْ مُوَلِّيْهَا وَجْهَهٗ فِی الصَّلٰوةِ) ۔ یعنی هر شخص په مانځه کښې یو طرف ته خپل مخ متوجه کوی۔(۲) ...... دویم دا چه ضمیر الله تعالیٰ ته راجع دے۔ او مُوَلِّيْهَا کښې (مجرور ضمیر جهت ته راجع دے) یعنی الله دا قوم هغه جهت او سمت ته متوجه کړیدے نو ددے دوه ضمیرونو د اختلاف په وجه بیا ډیر تفسیرونه جوړیږی :

(۱) یو دا چه د هر قوم دپاره یو جهت او طرف د توجه دے چه الله تعالیٰ هغه طرف ته متوجه کړیدی شرعاً یعنی الله به په خپله زمانه کښې هر قوم ته حکم کولو چه په مانځه کښې دے طرف

ته متوجه شیٔ، چا ته کعبه او چا ته بیت المقدس وغیره۔ ملائکو ته بیت المعمور۔ نو تاسو هم نیکیو پسے منډه اُوکړیٔ۔ الله تعالیٰ چه تاسو ته کوم طرف متعین کوی، بس هغے پسے روان شیٔ۔ (۲) دویم هر قوم دپاره یو جهت د توجه دے چه الله تعالیٰ هغے طرف ته اړولی دی قسراً او کوناً۔ یعنی د الله په تقدیر کښ لیکلے شویدی چه دوی به هغه طرف غوره کوی، او الله ورته امر نهٔ دے کړے۔ نو تاسو د الله تعالیٰ د امر تابعدار شیٔ۔

(۳) دریم: هو ضمیر راجع دے هغه شخص ته نو معنیٰ دا ده چه د هر قوم او هر شخص دپاره طرف د توجه دے چه هغه شخص خپل مخ اړوی هغے ته په خپلو عبادتونو کښ نو دغه جهتونه به یا صحیح وی یا به غلط وی، خو تاسو نیکیو پسے روان شیٔ، د الله د حکم مطابق خپل جهت برابر کړیٔ۔

(٤) څلورمه توجیه دا ده چه د (لِكُلٍّ) نه مراد هر مسلمان دے، که د مشرق والا مسلمان وی او که د مغرب والا۔ چه د دوی دپاره یو طرف د قبلے دے چه هغه کعبه ده یعنی څوك ورته د یو طرف نه متوجه کیږی او څوك د بل طرف نه او د فَاسۡتَبِقُوا الۡخَيۡرَاتِ معنیٰ دا چه تولو مونځونو کښ به دے ته متوجه کیږیٔ۔ (فتح القدیر) نو اصل عبارت داسے جوړیږی: [اَلۡكَعۡبَةُ لِكُلِّ اَحَدٍ مِنَ الۡمُسۡلِمِيۡنَ قِبۡلَةٌ هُوَ مُوَلِّيۡهَا وَجۡهَهٗ] (کعبه د هر مسلمان دپاره قبله ده چه دا ورته خپل مخ اړوی)۔

(۵) پنځمه توجیه دا ده چه عموم اُوکړے شی یعنی د هر شخص او هر قوم او هر ملت دپاره یو مسلك او مخه وی چه هغے ته توجه کوی او هغے سره د زړهٔ تعلق ساتی، څوك د دین سره، څوك د دنیا سره، څوك د مسجد سره، څوك د مندر او کیرجے او درمسال سره او څوك د الله تعالیٰ سره او څوك د بت او قبر او بابا سره، څوك د قرآن او سنت د علم سره، څوك د نورو علمونو سره، څوك د سنت طریقو سره نو څوك د رسم او رواج او خرافات او بدعاتو سره، او څوك د کعبے سره، څوك د بیت المقدس او بیت الشرق سره بیا دا توجه به د چا حقه وی او د چا باطله نو د خلقو ددے اختلاف په وخت کښ به ستاسو کار دا وی چه (فَاسۡتَبِقُوا الۡخَيۡرَاتِ) تاسو به د هغه جهت سره تعلق ساتیٔ چه کوم د خیر والا وی، او الله او رسول ورته خیر وئیلے وی او هغے ته به سبقت کویٔ او د خلقو د مختلف جهتونو نه به نهٔ متأثره کیږیٔ او حق به نهٔ پریدیٔ۔ او صحیح دین پسے ورځیٔ۔ او ددے آیت مثال داسے دے لکه حدیث [كُلُّ النَّاسِ يَغۡدُوۡ فَبَائِعٌ نَفۡسَهٗ فَمُعۡتِقُهَا اَوۡ مُوۡبِقُهَا] (ټول انسانان صبا کوی او ځان خرخوی نو څوك ځان د اُور نه آزاد کړی او څوك ئے هلاك کړی)۔ دارنګه آیت کښ دی: ﴿لِكُلٍّ جَعَلۡنَا مِنۡكُمۡ شِرۡعَةً وَّمِنۡهَاجًا﴾ (مائده: ٤٨)

په تاسو کښ د هر چا دپاره لاره او طریقه مونږه مقرر کړیده۔ (ابن کثیر)۔

او پدې کښې اشاره ده چه قبله د دین د ارکانو نه داسې رکن نهٔ دې چه تغییر به نهٔ قبلوی، یا د تکوینی امورو په شان نهٔ ده چه د هغې نه به تخلف نهٔ راځی بلکه دا یوه فرعی مسئله ده چه د امت په اختلاف او د شرائعو په تغییر سره پدې کښې تبدیلی راتلې شی لکه دغه آیت د سورة المائده پرې دلیل دې۔ (ازهر البیان)۔

**فائده** : آیت کښې دا مقصد پروت دې چه د هر دین او ملت دپاره یو مخصوص جهت وی چه هغې ته په خپلو عبادتونو کښې متوجه کیږی لکه د مسلمانانو قبله کعبه ده۔ نو پدې کښې دې طرف ته اشاره ده چه په دنیا کښې مختلف مذاهب او ډیر دینونه موجود دی، پدې وجه عقلمند انسان له پکار دی چه پدې کښې چه کوم د ټولو نه غوره، اعلیٰ او اُوچت دین وی، هغه خپل کړی او د ټولو عقلمندو انسانانو پدې اتفاق دې چه دین اسلام هغه دین دې چه په دې کښې د انسان دپاره ټول قسم خیرونه او کمالات راجمع شویدی، پدې وجه ددې په قبلولو او پدې باندې د عمل کولو دپاره هر انسان له د یو بل نه سبقت او مخکښې کیدل پکار دی۔

(تیسیر الرحمن والقاسمیؒ)۔

﴿فَاسْتَبِقُوْا﴾ استباق دلته په معنیٰ د تَسَابُق سره دې یعنی د یو بل نه مخکښې والې کول۔ دا وجه ده چه دلته ئې (فَاسْتَبِقُوْا) (مخکښې شئ) اُونهٔ وئیلو، ځکه چه نفس مخکښې والې مطلوب نهٔ دې۔

دارنګه که فَاسْبِقُوْا ئې وئیلی وې، نو بیا به دا حکم صرف هغه چا ته شامل شوې وې چه هغه د ټولو نه مخکښې شوې وې او که ځوك لږ روستو شوې وې نو هغه به پدې حکم باندې عمل کونکې نهٔ وې او هر چه استباق دې نو هغه دواړو ته شامل دې۔ (تفسیر ابن عرفه)

او په استباق کښې معنیٰ د تکلف پرته وی، یعنی په ځانونو باندې تکلف او برداشت اُوکړئ او نیکیو ته ور مخکښې شئ۔

او پدې کښې اشاره ده چه هر کله چه ایمان والا خپل مینځ کښې د یو بل نه نیکیانو ته مخکښې والې کوی، نو د نورو خلقو نه به په طریق اولیٰ مخکښې والې کوی۔

او پدې کښې بله دا اشاره هم ده چه د ایمان والو نه سیوئ خلق د خیر په لاره نهٔ دی روان تردې چه ایمان والو ته حکم اُوکړی چه د هغوی نه مخکښې شی۔ (روح المعانی)

(الْخَیْرَاتِ) دلته (الیٰ) کلمه پټه ده ځکه چه فَاسْتَبِقُوْا په معنیٰ د تَسَابَقُوْا سره دې او هغه لازم دې، په الیٰ سره استعمالیږی۔ (اللباب)

الخیرات جمع د خَیْرَةٌ ده۔ خیرات (۱) : ټولو نیك عملونو او طاعاتو ته وائی چه د هغې په ذریعه د دنیا او د آخرت نیکبختی حاصلیږی، او د الله تعالیٰ د اوامرو منلو، او په هغې باندې

عمل كولو ته وائي، كه د قبلې په باره كښې وي او كه علاوه وي. نيك عملونو كښې يو بل نه مخكښې شئ، منډه وربسې اوكړئ. دا اول صف او تكبير اولىٰ ته هم شامليږي.

(۲) اَلْخَيْرَاتِ الدُّنْيَوِيَّةَ وَهِيَ الشَّرَفُ وَالْفَخْرُ بِقِبْلَةِ إِبْرَاهِيمَ وَالْأُخْرَوِيَّةَ وَهِيَ الثَّوَابُ الْجَزِيْلُ الْمُعَدُّ لِلْمُطِيْعِيْنَ) (نيسابوري) يعني په دنيا كښې خيرات دا دي چه د ابراهيم عليه السلام په قبله شرافت او فخر اوكړې شي، او په آخرت كښې خيرات هغه ثوابونه حاصلول دي كوم چه فرمانبردارو خلقو له الله تعالىٰ تيار كړيدي).

[اى: بَادِرُوْا إِلَى الْإِنْقِيَادِ إِلَى الطَّاعَاتِ وَاتِّبَاعِ الْحَقِّ وَالْخُضُوْعِ لِمَنْ جَاءَ بِهٖ] (البحر المديد ۲/۷۴)

(د يو بل نه جلتي اوكړئ د الله تعالىٰ طاعات او عباداتو ته غاړه كيدئ، او حق قبول كړئ او چا چه حق راوړے وي هغه ته تسليم شئ).

**فائده** : په استباق لفظ كښې اشاره ده چه هرے نيكئ بانديے په جلتئ سره عمل كول غوره دي، او تاخير او سستي پكښې نۀ ده پكار. حديث كښې دي : ((څه خلق به هميشه روستو روستو كيږي تردے چه الله تعالىٰ به ئے هم روستو پريدي)). (صحيح مسلم)

دارنګه خيرات شامل دي فرائض، واجبات، مستحبات او نوافلو ټولو ته.

او دا شامل دے هغه چا ته هم چه خپله يو نيك كار ته ورمخكښې شو او هغه چا ته هم چه بل ئے يو نيك كار ته مخكښې كړو. اګر كه دواړه يو شي ته د يو بل نه مخكښوالے نۀ وي كړے. (ابن عرفه).

استباق او مسابقت كښې درے اركان دي :

(۱) تَكْمِيْلُهَا (۲) وَالْمُبَادَرَةُ إِلَيْهَا (۳) وَإِيْقَاعُهَا عَلٰى أَكْمَلِ الْوُجُوْهِ)

عبادت پوره كول، او هغے ته جلتي كول او د يو بل سره پكښې سيالي كول، او بيا هغه عمل په كامله او ښائسته طريقے سره واقع كول.

پدے وجه علماء فرمائي : مسابقه د مسارعے نه زياته بليغه ده ځكه چه پدے كښې په نورو بانديے د سبقت او مخكښې والي معنىٰ موجوده وي. دارنګه مسابقه د نفس خيرات نه هم غوره ده.

نو فائده به څه اوشي ؟ هغه دا چه د قيامت ورځ ته به تاسو هر ځائے نه حاضر شئ او بيا به ددے اعمالو جزاء دركوي.

﴿ أَيْنَمَا تَكُوْنُوْا ﴾ نو پدے كښې اعمال صالحه ؤ ته يو قسم ترغيب دے ځكه چه انسان ته كله دا يقين اوشي چه الله به دۀ لره دوباره ژوندے كوي او دۀ ته به ددۀ د اعمالو بدله وركوي نو هغه د آخرت په تيارئ كښې تيزي كوي. او دارنګه پدې كښې يره هم پرته ده.

**فوائد الآية** : (۱) د امتونو منهجونه او طريقے د عمل اګر كه مختلفے دي، ليكن په يو اصل

بانـدے متفق دي، او هغه دا چه الله تعالىٰ ته په غير منسوخ شوي شريعتونو او احكامو باندے غاړة كيـخودونكي دي۔ (۲) انسان باندے لازم دي چه د حق تابعداري اُوكړي هر چرته چه وي او د مخالف ډير والي ته دے نۀ ګوري۔

(۳) آيت دليـل دے چـه مطلق امر د شارع د فوريـة دپاره دے يعني پدے به فوراً او په جلتئ سره عمل كولے شي۔ (٤) فَاسْتَبِقُوا الْخَيْرَاتِ كښ ډير كمال دے د (فَاسْتَبِقُوا اِلَى الْخَيْرَاتِ) نـه ځكه چه ددے مـعـنـىٰ دا ده چه نيـكيـانو ته منډه كړه او بيا په هغے كښ دننه هم د مخكښ والي كوشش كوه۔ او دا مـعـنـىٰ نۀ ده چه صرف د نيكيانو خوا له ورشه او بيا هلته اُودريږه، په هغے كښ ترقي مۀ پيدا كوه۔ (تفسير ابن عثيمين)

| |
|---|
| وَمِنْ حَيْثُ خَرَجْتَ فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ وَاِنَّهٗ لَلْحَقُّ |
| د كوم ځائے نه چه ته اُوځے نو واړه وه مخ خپل طرف د مسجد حرام ته او يقيناً دا خامخا حق دے |
| مِنْ رَّبِّكَ وَمَا اللهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُوْنَ ﴿۱٤۹﴾ |
| له طرفه د رب ستا نه او نۀ دے الله بے خبره ستاسو د عملونو نه۔ |

**تفسير:** دلتـه د حَيْثُ خَرَجْتَ نه مكه مراد ده يعني د كوم ځائے نه چه ته وتلے ئے او هجرت دے كړيدے نو هغے ته بيرته مخ راوګرزوه۔

## ددے حكمونو د مكررولو حكمتونه

بيا الله تعالىٰ د كعبے په توجه باندے درے امرونه كوي:

(۱) دپاره د تاكيد ځكه چه دا مسئله د يهوديانو، مشركانو او منافقانو دپاره لويه فتنه ګرځيدلے وه نو بار بار حكم كوي چه د هغوي هيڅ عذر پاتے نشي۔

(۲) يا په اول امر بـانـدے ئے بيت الـمـقـدس قبله كيدل منسوخ كړل، او هغه حكم په داخل د مسجد حرام او مـكه كښ وو او بيا ئے امت ته حكم اُوكړو چه ستاسو دپاره هم كعبه قبله شوه۔ اُوس حـكـم كوي بهر د مكے او مسجد حرام او مدينے نه۔ او روستو امر دے په باره د سفر كښ۔ او مؤمنانو ته حكم دے دپاره د تاكيد يا هغه هم په حالت د سفر كښ دے۔

(۳) امـام رازيؒ وائي: اول امر وو هغه چا ته چه مسجد حرام كښ دننه وي۔ او دويم امر دے هغه چا ته چه د مسجد حرام نه بهر مكه كښ وي او دريم امر دے د مكے نه بهر دنيا والو ته۔

(تفسير كبير و التنوير ۲/٤٥)۔

نو دلته د کلي او علاقې نه د وتلو په وخت کښې امر دے چه بهر به هم کعبې ته مخ کوے او دا حکم ئې ځکه اُوکړو چه غالباً د کلي نه په وتلو کښې احکام بدليږي نو وَهم (گمان) راتلو چه بهر به د کعبې اهتمام نهٔ وي نو تاکيداً ئې دا حکم بيا راوړو.

(٤) يا دا چه د علت د تعدد په وجه دا تکرار شويدے. ځکه چه الله تعالیٰ د قبلې د بدلولو دپاره درې علتونه بيان کړيدي يو علت: د نبي کريم ﷺ مينه او خواهش وو. هلته ئې دا بيان کړو. دويم علت: د هر ملت او دعوت والا دپاره د يو مستقل مرکز وجود وو، نو هلته ئې بيا بيان کړو. دريم علت: د مخالفينو د اعتراضاتو ازاله ده نو هلته ئې هم بيان کړو.

(فتح القدير للشوكاني ١/٢٤٣ واحسن البيان)

(٥) يا تکرار پدې وجه اُوشو چه د هر يو سره جدا جدا فائده ذکر ده. د اول سره شهادت او علم د اهل کتابو ذکر دے. او دويم سره د الله تعالیٰ شهادت په ﴿وَاِنَّهُ لَلْحَقُّ﴾ سره او په دريم کښې ﴿لِئَلَّا يَكُوْنَ لِلنَّاسِ﴾ کښې فائده د فع د حجت ذکر ده. (احسن الكلام).

(٦) بنه وجه دا ده چه پدے امرونو کښې الله تعالیٰ هغه درې عظيم حکمتونه او مصلحتونه بيانوي کوم چه ئې پدے احکامو کښې ددے امت دپاره ايخودي دي او هغه روستو آيت کښې راځي. چه د هغه حکمتونو نه معمولي بے خبري او بے پروائي دا امت پداسې غلطيانو کښې اخته کولے شي چه د هغې د اصلاح هيڅ صورت به باقي نهٔ پاتے شي. پدے وجه قرآن د هغه حکمتونو د بيانولو نه مخکښې د تمهيد په طور دے احکامو ته ذهنونه بيا متوجه کړل چه د دننه او بهر، سفر او حضر، هر ځائے او هر صورت کښې بيت الله ته د مخ اړولو کوم چکم کيږي دا څهٔ سرسري او سطحي حکم نهٔ دے. بلکه په دے کښې لوئي حکمتونه او مصلحتونه دي که تاسو پدے کښې معمولي شان سستي اُوکړه نوستاسو سفر به غلط سمت ته شروع شي، پدے وجه ددے پوره اهتمام کوئ،

هغه حکمتونه دا دي (١) (قطع حجة) د خلقو دليل او تهمت ختمول په ﴿لِئَلَّا يَكُوْنَ لِلنَّاسِ﴾ کښې. (که کعبې ته وانهٔ وړيدئ نو يهوديان به درباندے دليل نيسي) (٢) او د نعمت پوره والے په ﴿وَلِاُتِمَّ نِعْمَتِيْ﴾ کښې. يعني کعبې ته ځکه مخ واړوئ چه الله په تاسو نعمت پوره کول غواړي، دا قبول کړئ. (٣) او هدايت او لاره موندل په ﴿وَلَعَلَّكُمْ تَهْتَدُوْنَ﴾ کښې.(که تاسو کعبې ته وانهٔ وړئ نو هدايت نه به محروم شئ). چه د هغې بيان به روستو راشي. (تدبر قرآن)

﴿وَاِنَّهُ لَلْحَقُّ﴾ يعني دا قبله بدليدل ستا د رب د طرف نه حق دي.

﴿وَمَا اللّٰهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُوْنَ﴾ يعني تاسو پدے حکم باندے عمل کوئ او د چا پرواه مهٔ ساتئ که

خلق دریسے خبرے کوی الله به تاسو ته ښائسته بدله درکوی۔ او دے مجرمانو ته به سزا ورکوی۔ نو مؤمنانو له تسلی او کافرانو ته ئے دهمکی ورکړه۔

| |
|---|
| وَمِنْ حَيْثُ خَرَجْتَ فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ وَحَيْثُ مَا كُنْتُمْ |
| او دکوم ځائے نه چه ته اُووتلے نو واړه وه مخ خپل په طرف د مسجد حرام، او هر ځائے چه یئ تاسو |
| فَوَلُّوا وُجُوهَكُمْ شَطْرَهُ لِئَلَّا يَكُونَ لِلنَّاسِ عَلَيْكُمْ حُجَّةٌ إِلَّا الَّذِينَ |
| نو واړه وئ مخونه په طرف د هغے۔ دے دپاره چه نهٔ شی د خلقو په تاسو څهٔ دلیل مګر هغه کسان |
| ظَلَمُوا مِنْهُمْ فَلَا تَخْشَوْهُمْ وَاخْشَوْنِي وَلِأُتِمَّ نِعْمَتِي |
| چه ظالمان دی ددوی نه نو مهٔ یریږئ د هغوی نه او اُویریږئ زما نه او دے دپاره چه زهٔ پوره کړم نعمتونه خپل |
| عَلَيْكُمْ وَلَعَلَّكُمْ تَهْتَدُونَ ﴿۱۵۰﴾ |
| په تاسو باندے۔او دے دپاره چه تاسو سمه لارموندهٔ کړئ۔ |

**تفسیر**: بیا امر کوی او دا امر په باره د سفر کښں دے۔

﴿لِئَلَّا يَكُونَ لِلنَّاسِ عَلَيْكُمْ حُجَّةٌ﴾ دا څلورم جواب دے او د تحویل قبله دپاره تفصیلی علت ذکر کوی۔ (۱) حجت په معنیٰ د صحیح دلیل سره دے۔ یعنی الله فرمائی: دا امرونه درته ولے کوم؟ دے دپاره چه د خلقو (د یهودیانو او مشرکانو) په تاسو باندے حجت قائم نهٔ شی او څوك درسره جګړه اُونکړی ځکه چه په تورات کښں ئے دا لیکلی دی چه د آخری رسول او آخری امت نخه به دا وی چه کعبے ته به مخ کوی، او دا به د هغوی ابدی قبله وی، نو که چرے نبی ﷺ او مؤمنان کعبے ته مخ وانهٔړوی، نو یهودیان به په دوی باندے ضرور صحیح دلیل قائموی چه تاسو آخری اُمت نهٔ یئ ځکه چه تاسو کښں دا علامت موجود نهٔ دے کوم چه په تورات کښں راغلے دے او بیا د تورات خبره دروغجنه کیږی، او د اهل کتابو په زړونو کښں به ددے نبی په باره کښں شکونه پیدا کیږی، نو ددے وجه نه هرکله چه تاسو کعبے ته مخ اُوګرزوئ نو د دوی دلیل به ختم شی او ستاسو حقانیت او د تورات صدق به ستاسو په باره کښں باقی پاتے شی۔ دارنګه مشرکانو به وئیل دا څنګه نبی دے چه د ابراهیم ؑ د قبلے (کعبے) نه خلاف کوی، او دعویٰ د ابراهیم ؑ د ملت کوی نو هرکله چه تاسو کعبے ته واوړیدئ نو د هغوی دلیل هم ختم شو۔

(۲) - او حجت کلمه په معنیٰ د جګړے سره راځي نو اُوس د قبلې د تحویل نه روستو د هغوی اعتراضونه او جګړے ختمے شوے۔ اګرکه بعض شریان او ظالمان خلق به ددے حجت او دلیل د ختمیدو نه روستو هم جګړے کوی لیکن په دنیا کښې هیڅ احتیاط هم د هر قسم خلقو خوله نشي بندولے۔ د دوی علاج دا دے (فَلَا تَخْشَوْهُمْ) چه د دوی نه یره نهٔ ده پکار۔

﴿ إِلَّا الَّذِينَ ظَلَمُوا مِنْهُمْ ﴾ - دا (إِلَّا) استثناء منقطع ده۔ په معنیٰ د لٰكِنْ ده۔ او ظَلَمُوا نه مراد عنادیان اهل کتاب دی۔ او د بعضو په نیز مشرکان مراد دی۔

[اَیْ لٰكِنِ الَّذِينَ ظَلَمُوا يَحْتَجُّوْنَ بِالْحُجَجِ الْبَاطِلَةِ] لیکن ظالمان به اُوس هم تاسو ته باطل دلائل وائی او جګړے به درسره کوی، اعتراضونه به دربانديے کوی خو د هغوی نه یره مهٔ کوئ ځکه چه صحیح دلیل ورسره نشته، د هغوی جګړے فضول دی، د توجه قابل نهٔ دی نو: ﴿فَلَا تَخْشَوْهُمْ ﴾ ځکه ظالمان که چرته په حق بنهٔ پوهه هم شي بیا هم جګړے کوی، نو د هغوی د جګړو او د هغوی د لاثلو (اعتراضونو) نه مهٔ یریږئ۔

﴿وَاخْشَوْنِي ﴾ د الله نه یره دا ده چه د هغه د حکم تابعداری اُوشی، او د هغوی نه یره دا ده چه حق پریخودلے شی، او پټ کړے شی۔ ځکه داسے حالاتو کښې یره وی نو بعض خلق حق پټوی، د جګړو او اختلافاتو نه یریږی۔

﴿وَلِأُتِمَّ ﴾ دا د قبلې د بدلیدو دپاره بله فائده او علت دے۔ دا د (( اَمَرْتُكُمْ)) مقدر پورے متعلق دے۔ یعنی ما تاسو ته د قبلې طرف ته د متوجه کیدو حکم اُوکړو۔ نو وجه دا ده: ﴿ وَلِأُتِمَّ نِعْمَتِي عَلَيْكُمْ ﴾ چه زهٔ خپل نعمت په تاسو پوره کول غواړم۔ دا د الله تعالیٰ غټ نعمت دے ځکه چه په دے کښې د انسان د عبادت توجه معلومه وی، اجر پکښې زیات دے، د الله د محبت نخه ده۔ او په امتحان کښې کامیابیدل دی۔

زجاجؒ وئیلی دی: چه د نعمت پوره کول هدایت کول دی قبلې ته او داخلول دی جنت ته (قرطبیؒ)۔ او خازنؒ وئیلی دی: اتمام د نعمت دا دے چه په اسلام باندے مرګ راولی او بیائے جنت ته داخل کړی او د الله دیدار ورته نصیب کړی۔

سعید بن جبیرؒ وائی: د الله نعمت هله پوره کیږی چه بنده جنت ته داخل شی۔ (قرطبیؒ)

دلته د اتمام نعمت نه مراد اتمام روستو د نقصان نه نهٔ دے بلکه د اول وخت نه دیر پریمانه نعمتونه ورکول مراد دی۔ یا مطلب دا دے چه اصل نعمت د رسول د رالیږلو او د کتاب د نازلولو په سبب دین طرف ته هدایت کول دی، او کوم بیشماره نعمتونه چه ددے دوه لویو اصولو نه روستو ملاویږی هغه د متمماتو ددے نه دی۔ (ازهر)۔

صاحب د تدبر قرآن وائي : د اتمام نعمت نه مراد د دين د تکميل هغه نعمت دے چه د هغې پيشين گوئي موسیٰ او عيسیٰ عليهما السلام ددے امت په باره کښې فرمائيلے وه او چه د هغې وعده الله تعالیٰ د ابراهيم عليه السلام سره په هغه وخت کښې کړے وه کله چه هغه د اسماعيل د قربانۍ په امتحان کښې کامياب شوے وو، هغه سره الله تعالیٰ دا وعده کړے وه چه ددے خوئ د نسل نه به يو لوئ امت پيدا کيږي چه په هغې سره به د تمامے دنيا قومونه د دين برکت موندۀ کوي نو د هغه د نسل نه الله تعالیٰ آخري رسول محمد رسول الله ﷺ راوليږلو چه د هغه قبله ئے بيت الله مقرر کړه کوم چه د تمام عالَم دپاره د خير او برکت د دين د پوره کولو مرکز مقرر شوے وو۔ (تدبر قرآن)

﴿ وَلَعَلَّكُمْ تَهْتَدُونَ ﴾ دا بله فائده او علت دے چه الله فرمائي: تاسو ته ما غوره قبله درکړه چه نور خلق ترے گمراه شويدي۔ ځکه زۀ پدے سره تاسو هدايت ته رسول غوارم۔ چه د هغې نه يهود او نصاریٰ خطا شويدي۔ دا دليل دے چه د کعبے په وجه بنده ته هدايت کيږي۔ (هُدًى لِّلْعَالَمِينَ) ځائے دے۔

د هدايت نه مراد هغه صراط مستقيم موندل دي چه کومه الله تعالیٰ ته رسونکے نيغه او فطري لاره ده چه د هغې په باره کښې الله تعالیٰ فرمايلي دي :

﴿ قُلْ إِنَّنِي هَدَانِي رَبِّي إِلَى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ دِينًا قِيَمًا مِّلَّةَ إِبْرَاهِيمَ حَنِيفًا ﴾ [انعام:۱۶۱]۔

(اُووايه چه ما ته زما رب نيغه لاره خودلے ده چه هغه فطري دين –ملت د ابراهيم– دے چه هغه په توحيد ولاړ وو)۔ ...... او ددے ملتِ ابراهيمي طرف ته لاره خودونکے مناره هغه همدا قبله ده، پدے وجه ضروري ده چه دا نخه ددے امت د سترگو مخے مخے ته وي۔ پدے وجه الله تعالیٰ مخکښې کعبے ته د مخ اړولو بار بار حکمونه اُوکړل۔

**فائده** : د قبلے بدلولو ته ئے اتمام د نعمت او هدايت موندل اُووئيل ځکه چه په حکم الٰهي باندے عمل کول يقيناً انسان د انعام او اکرام مستحق.هم جوړوي او د هدايت توفيق هم هغه ته نصيب کيږي۔ (احسن البيان)۔

**فائده** : علامه حرالیؒ فرمائي : د آيت په ضمن کښې د مکے د فتح زيرے دے او دا چه دا نبي ﷺ به په جزيرة العرب غالبه کيږي، او ددے په وجه به په ټولو زمکو والو غلبه مومي، او اسلام به مشرق او مغرب ته رسيږي۔ (محاسن التاويل للقاسميؒ)

ددے نه روستو د اتمام نعمت يو مثال ذکر کوي۔

| كَمَآ أَرْسَلْنَا فِيكُمْ رَسُولًا مِّنكُمْ يَتْلُوا |
|---|
| (پوره کول د نعمت داسے دي) لکه څنګه چه ما راليږلے دے په تاسو کښې رسول ستاسو نه چه لولي |

| عَلَيْكُمْ اٰيٰتِنَا وَيُزَكِّيْكُمْ وَيُعَلِّمُكُمُ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ |
|---|
| په تاسو باندے آیتونه زما او پاکوی تاسو لره او ښائی تاسو ته قرآن او سنت (یا رازونه د دین) |
| وَيُعَلِّمُكُمْ مَّا لَمْ تَكُوْنُوْا تَعْلَمُوْنَ ﴿۱۵۱﴾ |
| او ښائی تاسو ته هغه څه چه تاسو پرے نه پو هیدئ۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کښې د قبلے نعمت پسے د آخری رسول د رسالت نعمت بیانوی او دا (كَمَا) د اُتِمَّ پورے متعلق دے یعنی [كَمَا اَتْمَمْتُ نِعْمَتِيْ بِاِرْسَالِ الرَّسُوْلِ فِيْكُمْ] یعنی په قبلے دركولو سره دربانـدے نعمت کوم لکه څنګه چه ما په تاسو کښې د رسول په رالیږلو سره نعمت پوره کړے دے)۔ یا تقدیر داسے دے : [وَلِاُتِمَّ نِعْمَتِيْ عَلَيْكُمْ اِتْمَامًا مِّثْلَ اِرْسَالِ الرَّسُوْلِ فِيْكُمْ] (قرطبی عَنِ الْفَرَّاءِ)
(دے دپاره چه زهٔ خپل نعمت په تاسو داسے پوره کړم چه سنت ابراهیمی درته بیان کړم لکه څنګه چه مے په تاسو کښې رسول رالیږلے)۔
نو رسول رالیږل هم نعمت، کعبه هم نعمت او قرآن هم نعمت دے، پدے امت الله تعالیٰ غټ غټ نعمتونه کړیدی۔ او دا آیت د ابراهیم علیه السلام د هغه دعا قبول والے دے کوم چه مخکښې (۱۲۹) آیت کښې ذکر شوے ده۔
۲- یا دا د تَهْتَدُوْنَ پورے متعلق دے یعنی [كَمَا هَدَيْتُكُمْ بِالرَّسُوْلِ كَذٰلِكَ هَدَيْتُكُمْ بِالْقِبْلَةِ]
(لکه څنګه چه ما تاسو ته ددے رسول په وجه هدایت اُوکړو نو په قبلے سره مے هم تاسو ته هدایت اُوکړو)۔ نو دواړه ذریعے د هدایت دی۔
بعض وائی : دا د روستو (فَاذْكُرُوْنِيْ) پورے متعلق دے (یعنی فَاذْكُرُوْنِيْ كَمَا ذَكَرْتُكُمْ بِاِرْسَالِ الرَّسُوْلِ) یعنی ما یاد کړئ لکه چه ما تاسو د رسول په رالیږلو یاد کړی یئ)۔ (قرطبی عن علیؓ واختاره الزجاجؒ) لیکن دا تعلق لرے دے۔ اول قول راجح دے (نقله القرطبیؒ عن ابن عطیةؒ)۔ او دویم هم صحیح دے۔
او ددے یو تعلق داسے هم صحیح دے چه مونږ د قبلے تحویل د اتمام نعمت او د ملت ابراهیم ته د رهنمائی دپاره کړیدے نو دغه شان د ابراهیم علیه السلام د دعـا مطابق ددے مقاصدو دپاره یو رسول په تاسو کښې رالیږلے دے۔ (تدبر قرآن)
پدے آیت کښې د رسول الله ﷺ څلور اُوچت صفات ذکر شویدی :
**اول صفت** : د علمی او عملی آیتونو تلاوت کول۔ دا پیغمبر اول د عوت او تعلیم شروع د تلاوت د الفاظو نه کوی ﴿يَتْلُوْا عَلَيْكُمْ آيَاتِنَا﴾ (په تاسو باندے زمونږ آیتونه لولی) چه دا آیتونه د

الله تعالیٰ لوئی نعمت دے ځکه چه دا آیتونه د ټولو عباداتو مأخذ دے، اصول وی او که فروع، د ټولو علومو، د آدابو او د ښائسته اخلاقو سرچشمه ده۔ د توحید، رسالت، آخرت، د اخلاقو او د فضائلو د اصولو آیتونه په تاسو تلاوت کوی۔ چه ددے په وسیله سره تاسو ته د حقے لارے خودنه کوی چه ددے په نتیجه کښ تاسو ته شرافت او افتخار حاصلیږی او د دنیا او د آخرت کامیابی په نصیب کیږی۔

**دویم صفت** : دویم عملی تربیت دے، ﴿ وَيُزَكِّيكُمْ ﴾ (تاسو د شرك او گناهونو او د رذیل اخلاقو او بدو عاداتو نه پاکوی) لکه عربو به خپلے لونړهٔ د شرم یا د فقر د ویرے نه ژوندئ خخولے، د یتیمانانو مالونه به ئے خوړل او میراث به ئے نهٔ ورکولو ددے نه به نبی ﷺ هغوی پاك کول او ددے مثالونه په آیت (۱۲۹) کښ تیر شو۔ او د نفس ددے تزکیے په وجه هغوی ته په ټول جهان باندے فتح ملاؤ شوه، او د مخلوق دپاره مُعَلِّمَان او پیشوایان اُوگرځیدل۔ او دنیا د دوی د فضیلت او د عدالت گواهی ورکړه، ټول امت مسلمه ئے د شرك او د ټولو بدو او گندگو نه پاك کړو۔

**دریم صفت** : یو بل قسم علمی تربیت بیانوی ﴿ وَيُعَلِّمُكُمُ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ ﴾ (تاسو ته د کتاب او حکمة تعلیم درکوی) د حکمة نه مراد د شریعت رازونه پیژندل او د دین فقاهت دے، یا د رسول الله ﷺ سنت مراد دے چه د قرآن او د حلال، حرام د احکامو بیان کونکے دے۔ دلته تزکیه په تعلیم د کتاب او سنت مخکښ ذکر شوه ځکه چه تزکیه اصلی هدف دے او تعلیم د هغے ذریعه ده۔ کما تقدم۔

څلورم **صفت** : د مختلفو څیزونو تعلیم ورکول۔ ﴿ وَيُعَلِّمُكُم مَّا لَمْ تَكُونُوا تَعْلَمُونَ ﴾ (تاسو ته هغه څیزونه ښائی چه تاسو پرے مخکښ نهٔ پوهیدلئ) چه هغه د دین احکام، د ژوند نظام، د کورنئ نظام، معاشرت او سیاست، جنگی طریقے، د انبیاؤ علیهم السلام سیرت او د ژوند طریقے، د غیبو خبرونه، د عالَم د امتونو حالات۔ او هر شے چه امت ته فائده ورکوی هغه ئے بیان کړے او هر شے چه امت ته ضرر ورکوی د هغے نه ئے امت منع کړیدے چه د مسلمانانو معاشرے ته ئے د هرے خوا نه یو رونق وربخښلے دے۔ او په عالَم کښ ئے یو داسے سیاسی او عِلمی انقلاب راوستے دے چه ددے نظیر او مثال چا لیدلے نهٔ دے۔

او ﴿وَيُعَلِّمُكُم مَّا لَمْ تَكُونُوا﴾ دا د تاکید دپاره وائی یعنی قرآن او حدیث کښ داسے خبرے دی چه تاسو ته مخکښ نهٔ وے معلومے ځکه کوم شے چه د مخکښ نه معلوم وی، بیا د هغے بیان دومره فائده نهٔ لری، او کله چه معلوم نهٔ وی د هغے بیان ډیره فائده لری، هغه قیصے، هغه واقعات، هغه رازونه، هغه حکمتونه او مثالونه درته بیانوی چه مخکښ درته معلوم نهٔ وو، د

دنیا او د آخرت او د قبر تذکرے دی او د الله د تعلق خبرے. د راتلونکی زمانے حالات چه هغه په فکر سره نهٔ حاصلیږی بلکه په وحی پورے خاص دی. او پدے کښې غرض په بنی اسماعیلو باندے د یو خاص فضل او کرم اظهار دے چه هرکله تاسو یے دینه قوم وئ، الله تعالیٰ ستاسو د هدایت او تعلیم دپاره دا رسول راولیږلو نو تاسو له ددهٔ ډیر زیات قدر پکار دے.

بعض خلق وائی ددے نه قیاسونه او د حکمونو علتونه مراد دی. دا بعید قول دے ځکه چه پیغمبر چا ته قیاسونه او علتونه ندی خودلی. دا خو د روستو علماؤ اجتهاد دے.

فَاذْكُرُونِيٓ أَذْكُرْكُمْ وَاشْكُرُوا لِي وَلَا تَكْفُرُونِ ﴿۱۵۲﴾

نو یادوئ ما لره زهٔ به یادوم تاسو لره او زما شکر کوئ او زما ناشکری مهٔ کوئ.

**تفسیر : ربط** : (۱) مخکښې د الله تعالیٰ عظیم دینی نعمتونه ذکر شو چه هغهٔ قرآن او پیغمبر راولیږلو او غوره قبله ئے درکړه، نو اُوس فرمائی چه ددے په مقابله کښې تاسو له درے کارونه کول پکار دی : ۱- ذکر. ۲- شکر. ۳- او عدم کفر. (ناشکری نهٔ کول) نو پدے درے خبرو امر کوی. او دا بهترین عبادات دی او دا تول ایمان دے. نو مخکښې نعمتونه ذکر شو اُوس د هغے شکر بیانوی. (۲) دارنګه پدے کښې ددے امت بل تربیت ذکر دے په ذکر او شکر سره.

(۳) اشاره ده چه قبله د ذکر او د شکر ځائے دے.

(٤) د قبلے د تحویل د حکم نه روستو دا امت یو بالکل د ممتاز امت په حیثیت سره مخے ته راغلو، یهودیان د امامت د منصب نه معزول شو او په خلقو باندے د ګواهئ ذمه واری تر قیامته پورے دے امت ته اُوسپارلے شوه، نو پدے اهمه موقعه کښې دا یاد دهانی شویده چه تاسو ما یاد کرئ زهٔ به تاسو یاد کرم، همیشه زما شکر کوئ، ناشکری مهٔ کوئ، دا یاد دهانی د الله تعالیٰ او ددے امت په مینځ کښې یوه لویه معاهده ده. او د الله تعالیٰ د یادولو نه مقصد هغه تولے ذمه واریانے او فرائض یادول او د هغے په ځائے راوړل دی کوم چه دے امت ته سپارلے کیږی. پدے ذمه واریانو او فرائضو باندے د عمل کولو په جواب کښې د الله تعالیٰ د طرف نه دا وعده ده چه زهٔ به تاسو یادوم یعنی په دنیا او آخرت دواړو کښې د کامیابئ، مدد، فتح مندئ او خوشحالئ کومے وعدے چه ما ددے امت سره کړیدی هغه به پوره کوم. او (زما شکر کوئ) ددے مطلب دا دے چه د هغه تمامو نعمتونو صحیح صحیح حق ادا کرئ کوم چه د الله تعالیٰ د طرف نه ملاو شویدی، یا ملاویدونکی دی، چه د هغه نعمتونو نه لوئی نعمت خپله هغه شریعت وو چه په خپل کامل شکل کښې دے امت ته منتقل کیدو. (تدبر قرآن). بناء پدے د فَاذْكُرُونِيٓ معنیٰ دا چه

عمل په احکامو کوئ او واشکروا لی معنیٰ دا چه په صحیح طریقه ئے حق ادا کړئ څکه چه ما درسره څومره لوئی احسان اُوکړو۔

## د الله تعالیٰ د ذکر طریقے او اقسام

د الله تعالیٰ یادول په زړهٔ هم وی، په ژبه او اندامونو هم وی، په امر او نهی منلو سره هم الله یادیږی، څوك چه د الله تعالیٰ د امر تابعداری کوی نو هغه ته الله یاد دے، او څوك چه د هغه د نهی (ممنوع کار) نه ځان ساتی، نو هغه ته الله یاد دے۔ او بیا د الله شکر کول یعنی د هغه احسانات منل او په هغے باندے د الله ثنا او صفت وئیل او د هغه په طاعت کښ ځان استعمالولو ته شکر وائی۔

﴿فَاذْكُرُونِيْ اَذْكُرْكُمْ﴾ ذکر د الله یادولو ته وائی او دا لوئی عبادت دے بلکه د ټولو عباداتونو خلاصه ده۔ او دا په درے طریقو کیږی : ۱- ذکر قلبی : په زړهٔ سره الله یادول، د هغهٔ محبت ساتل او د هغهٔ په قدرت او کائناتو کښ فکر کول۔ ۲- صرف په ژبه ذکر : دے کښ هم خیر شته خو کم دے، صرف انسان پرے د ګناهونو نه بچ وی۔لیکن د ذکر فوائد ورته نهٔ حاصلیږی څکه توجه ئے نشته۔
۳- په ژبه او زړهٔ دواړو سره وی او دا بهترین ذکر دے۔

بیا ذکر په دوه قسمه دے۔ ۱- د قرآن کریم په تلاوت، تعلیم او تعلم، ترجمه او تفسیر سره۔

۲- په اذکار شرعیه ؤ سره۔ ...... دا بیا دوه قسمه دے : ۱- اذکار مقیده چه د یو وخت او محل پورے خاص وی لکه د خوراك، څکاك، د خوب نه بیداریدو، مسجد ته داخلیدو او وتلو اذکار۔ ددے په پابندئ سره هم انسان په ذاکرینو کښ داخلیږی۔ پدے کښ قانون دا دے چه پدے مقاماتو کښ به لاسونه نهٔ اُوچتوی۔

۲- اذکار مطلقه : چه مکان او وخت او عدد ئے معلوم نهٔ وی، پدے کښ زیادت او کم والے مقررول جائز دی۔دا بدعت کښ نهٔ داخلیږی چه څوك سبحان الله وغیره زر کرته وائی۔

بیا د الله تعالیٰ ذکر په دوه قسمه دے : ۱- ذکر مشروع : کوم چه سنت کښ وارد دے۔

۲- اذکار مبتدعه : پدے سره الله تعالیٰ ناراضه کیږی۔ لکه هُوْ، هُوْ، صرف الله، الله، وئیل پدے الله تعالیٰ نهٔ رضا کیږی، اګرکه صوفیاء دے ته د خواصو ذکر وائی۔

ذکر په نورو طریقو هم کیږی لکه : ۳- ذکر : د الله امر منل او د هغه د نهی نه ځان ساتل۔

٤- د الله تعالیٰ په اسماء او صفاتو سره ذکر کولو ته هم ترغیب راغلے دے۔

او ذکر په اعتبار د حقیقت سره په درې قسمه دې : (۱) ذکر د ثنا او صفت : لکه [سُبْحَانَ اللهِ، اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ، وَلَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ وَاللهُ اَكْبَرُ] یا ددې په شان نور اذکار شرعیه شو۔

(۲) ذکر د دعا : لکه ﴿ رَبَّنَا ظَلَمْنَا اَنْفُسَنَا ﴾ او تولې منقولې دعاګانې شوې۔

(۳) ذکر د رعایت، دپاره د زړهٔ مضبوطولو او د الله د ادب ساتلو۔ لکه بنده وائی : الله ما سره دې، الله مې په سر ولاړ دې، الله ما ته ګوری، الله شاهد دې۔ (الزهر)

ذکر کښې د اثر پیدا کولو طریقه دا ده چه (۱) په پټه وی لکه قرآن دا طریقه خودلې ده۔

(۲) عاجزی ډیرې ورسره ملګرې وی۔ (۳) او یره ورسره وی۔ لکه ﴿ وَاذْكُرْ رَّبَّكَ فِيْ نَفْسِكَ تَضَرُّعًا وَّخِيْفَةً وَّدُوْنَ الْجَهْرِ ﴾ (الاعراف ۲۰۵) (٤) هغه ذکر چه په اتباع د سنت سره وی۔

د ذکر سل فوائد په «اَلْوَابِلُ الصَّيِّبُ» کښې ابن القیمؒ لیکلی دی۔ هغې ته رجوع اُوکړه !

۱ – غټه فائده ئې دا ده چه د الله د محبت نخه ده۔ ۲ – د شیطان او د وسوسو نه مضبوطه قلعه ده۔ ۳ – زړهٔ او بدن کښې قوت او طاقت پیدا کوی۔ نبی ﷺ فاطمیؓ ته د خادم په بدل کښې د شپې تسبیحات اُوخودل۔ ٤ – په ذکر سره د الله تعالیٰ مدد راځی او الله رضا کیږی۔

**فائده :** ذکر الٰهی صرف په تسبیح، تهلیل، تحمید او تکبیر کښې منحصر نهٔ دې بلکه هر هغه عمل چه د قرآن او د سنت مطابق وی او په هغې کښې د الله اطاعت وی، هغه ذکر الٰهی دې۔ حافظ ابن القیمؒ فرمائی : نبی کریم ﷺ د تولو خلقو نه زیات ذکر کونکې وو، د هغه خبرې اترې، د هغه امر او نهی، د الله اسماء او صفات، د احکامو او افعالو او وعد او وعید په باره کښې د هغه حدیثونه، د هغه د الله تعالیٰ حمد او ثنا بیانول، الله تعالیٰ نه سوال او دعا، جنت ته ترغیب ورکول، او د جهنم نه یرول، د هغهٔ خاموشی، دا تول ذکرِ الٰهی وو۔ هغهٔ هر وخت او هر حال کښې، تلو راتلو، کیناستو پاڅیدو، اُودهٔ کیدو بیداریدو، سفر او حضر کښې د الله تعالیٰ په یاد کښې مشغول وو۔ انتهیٰ۔

د ذکر الٰهی هغه طریقې او هغه حرکات او سکنات چه ګمراه صوفیاؤ ایجاد کړیدی چه د هغې ثبوت د صحابه کرام، تابعین عظام او ائمه کرامؒ نه نهٔ ملاویږی بدترین بدعت دې، دوی د سَمَاع (قوالی) په نوم په خپلو محفلونو کښې ګډا او موسیقی داخل کړیدی او مسلمانان ئې د قرآن او سنت وئیلو او آوریدو نه منع کړیدی۔ صحابه کرام رضی الله عنهم چه به کله جمع شو نو په هغوی کښې به یو تن قرآن لوستلو، او باقی کسانو به اُوریدو، عمر فاروق ﷺ یوه ورځ ابو موسیٰ اشعری ﷺ ته اُوفرمایل (او ددهٔ آواز ډیر مزیدار وو) : (ذَكِّرْنَا رَبَّنَا) مونږ ته خپل رب رایاد کړه)

[مقدمة ابن کثیر ۱/۶۳ وفضائل القرآن لابی عبید : ۷۹]

نو هغه به قرآن شروع کړو او عمرؓ به ورته غوږ ایخودے وو۔ قرآن کریم کښې د مؤمنانو او انبیاء کرامو دا صفت خودلے شویدے۔ ﴿اِذَا تُتْلٰی عَلَیْهِمْ آیَاتُ الرَّحْمٰنِ خَرُّوْا سُجَّدًا وَّبُکِیًّا﴾ کله چه په دوی باندے د رحمٰن ذات آیتونه لوستلے شی نو دوی پریوزی سجده کونکی او ژړیدونکی) (مریم: ۵۸)

معلومه شوه چه د قرآن او سنت په حدودو کښې د الله تعالیٰ بندګی کول، د رسول الله ﷺ د سیرتِ مبارکه په سانچه کښې خپله زندګی اچول، د قرآن کریم تلاوت او د قرآن کریم تعلیم او تعلم د ذکر الٰهی صحیح طریقے دی۔

هغه تسبیحات چه د هغے ثبوت په قرآن او سنت کښې نهٔ وی، لکه سترګے بندول او سر خوزول، یا په پوزه باندے ذکر کول او ضربونه لګول، او حلقے جوړول او هُوْ هُوْ نعرے وهل او په یو بل باندے پریوتل، دا ټول بدعات او ناروا کارونه دی، ددے د ذکر الٰهی سره هیڅ قسم تعلق نشته۔ او هسے ځان سترے کول دی۔ رسول الله ﷺ فرمایلی دی: ((هر هغه کار چه د هغے ثبوت زمونږ په شریعت کښې نهٔ وی هغه مردود دے))۔ (صحیح مسلم)

برابره ده که هغه عقیده وی، که نظریه وی، یا قول او عمل وی، او یا د ذکر خود ساخته طریقے وی، دا ټول مردود دی۔

## فَاذْکُرُوْنِیْ کښې د مفسرینو توجیهات

﴿فَاذْکُرُوْنِیْ﴾: مفسرینو ددے څو مصداقات بیان کړیدی: (۱) [فَاذْکُرُوْنِیْ بِالطَّاعَةِ اَذْکُرْکُمْ بِالْمَغْفِرَةِ] ما په طاعت سره یاد کړئ زهٔ به تاسو په رحمت او مغفرت سره یاد کړم۔

(۲) [فَاذْکُرُوْنِیْ فِی الْیُسْرِ اَذْکُرْکُمْ فِی الْعُسْرِ]۔ (ما یاد کړئ په آسانتیا کښې زهٔ به تاسو په تنګسیا کښې یاد کړم)۔(۳) [فَاذْکُرُوْنِیْ فِی الدُّنْیَا اَذْکُرْکُمْ فِی الْآخِرَةِ]۔ (ما دنیا کښې یاد کړئ زهٔ به تاسو په آخرت کښې یاد کړم)۔ (٤) [فَاذْکُرُوْنِیْ بالمجاهدة اذکرکم بالمشاهدة] ما یاد کړئ په مجاهده سره زهٔ به تاسو په مشاهده (په جنت کښې په خپل دیدار) سره یاد کړم۔(۵) [فَاذْکُرُوْنِیْ فی النعمة والرخاء اذکرکم فی الشدة والبلاء] (سعید بن جبیر) ما یاد کړئ په نعمتونو او مالدارئ او فراخئ کښې زهٔ به تاسو په سختئ او مصیبت کښې یاد کړم۔ (٦) ما یاد کړئ په یواځې والی کښې زهٔ به تاسو د خلقو په جماعت کښې یاد کړم۔ (یعنی خلقو ته به ستاسو مرتبه اُوچته کړم)۔

(۷) ما د خلقو په جماعت کښې یاد کړئ (په درس او تدریس سره) زهٔ به تاسو په جماعت د ملائکو کښې یاد کړم۔ (بحر العلوم للسمرقندی)

(۸) ما یاد کړئ په تنګسیا کښې زهٔ به تاسو په مخرج (لاره ویستو) کښې یاد کړم۔

(۹) ما یاد کړئ په دعا، زهٔ به تاسو په اجابت (قبول والی) سره یاد کړم۔
(۱۰) ما یاد کړئ په مجاهده، زهٔ به تاسو په هدایت یاد کړم۔
(۱۱) ما یاد کړئ په صدق او اخلاص، زهٔ به تاسو په خلاصوالی او زیات خصوصیت سره یاد کړم۔
(۱۲) [فَاذْكُرُونِي بالعبودية اذكركم بالربوبية] (ما یاد کړئ په عبودیت (عبادت سره) زهٔ به تاسو په ربوبیت (انعاماتو او تربیت) سره یاد کړم۔
(۱۳) ما یاد کړئ په شکر، زهٔ به تاسو په نعمت درکولو سره یاد کړم۔
(۱٤) ما یاد کړئ په قبول والی د احکامو زما، زهٔ به تاسو په جزاء او بدلے سره یاد کړم۔
(۱۵) [فَاذْكُرُونِي بقطع العلائق اذكركم بنعوت الحقائق] ما یاد کړئ په قطع د علائقو (یعنی تعلقات د مخلوق) سره۔ زهٔ به تاسو په نعوت الحقائق (په حقیقی صفاتو) سره یاد کړم۔
(تفسیر القشیری)
(۱٦) [فَاذْكُرُونِي بالموافقات اذكركم بالكرامات] ما یاد کړئ په موافقات (د احکامو په منلو) سره زهٔ به تاسو په کراماتو (کرامتونو) سره یاد کړم۔
(۱۷) ما یاد کړئ په زړهٔ کښې زهٔ به تاسو په شهود او عیان (ښکاره) سره یاد کړم۔
(۱۸) ما یاد کړئ په مخ د زمکه زهٔ به تاسو په خیټه د زمکه کښې یاد کړم۔
(۱۹) ما یاد کړئ په تسلیم او رضاء زهٔ به تاسو په ښائسته تدبیر او مزیداره فیصله سره یاد کړم۔(البحر المدید)
(۲۰) [فَاذْكُرُونِي فيما افترضت عليكم اذكركم فيما اوجبت لكم على نفسي] (ما یاد کړئ په هغه احکامو کښې چه ما درباندے فرض کړیدی زهٔ به تاسو یاد کړم په هغه څه چه ما تاسو لره په ځان باندے لازم کړیدی)۔ (حسن بصریؒ) [ابن کثیر ۱/٤٦۵، تفسیر ابن ابی حاتم (۱/۳۹۰)]۔
دغه شان اقوال تقریباً څلویښتو ته رسی۔ ددے وجه نه هر مؤمن له پکار دی چه ځان له د ذکر الهی څهٔ حد مقرر کړی او په هغے پابندی اُوکړی نو ډیر فوائد به وینی۔
په حدیث د بخاری کښې دی چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل: ((الله فرمائی: اے د آدم ځویه! که تهٔ ما په خپل نفس کښې یاد کړے، زهٔ به تا په خپل نفس کښې یاد کړم، او که ته ما د خلقو په مینځ کښې یاد کړے، زهٔ به تا د ملائکو په مینځ کښې یاد کړم (چه هغه غوره جُماعت دے) او که تهٔ ما ته یو لویشت رانزدے کیږے، نو زهٔ به تا ته یو گز نزدے شم، که تهٔ ما ته یو گز رانزدے شوے نو زهٔ به تا ته یو وازهٔ نزدے شم، که تهٔ ما ته پیاده راشے نو زهٔ به تا ته په منډه راشم))۔
(اَذْكُرْكُمْ کښې اشاره ده چه د الله تعالیٰ مدد هله راځی چه د الله سبحانه ذکر کیدے شی۔

﴿وَاشۡكُرُوۡا لِیۡ﴾ د الله احسان اُومنئ، او د هغه سره محبت اولرئ، او د هغه حکم ادا کرئ او شکر هم د ذکر يو حصه ده۔ نور تفصيل مخکښې په (لَعَلَّكُمۡ تَشۡكُرُوۡنَ) کښې تير شويدے۔

**فائده :** ذکر او شکر ئے جمع کړل ځکه چه دواړو کښې تلازم دے۔ دواړه د يو بل سره لازم ملزوم دی۔ او يو بغير د بل نه نۀ پوره کيږی۔ او په يو اثر کښې راغلی دی چه د الله تعالیٰ دائماً ذکر کول بعينه شکر دے۔

﴿وَلَا تَكۡفُرُوۡنِ﴾ لَا تَكۡفُرُوۡن ئے د دوام دپاره راوړے دے، چه په شکر باندے هميش والے اُوکړئ تر مرګه پورے۔ که وَلَا تَكۡفُرُوۡن ئے نۀ وے وئيلے نو بيا په يو ځل شکر هم دا امر اداء کيدو۔ او اشاره ده چه ذکر د الله شکر هم دے۔او پدے کښې تنبيه ده چه که تاسو ناشکری اُوکړه نو لکه څنګه چه يهوديان او نور کفار د ناشکرئ په وجه خپلو سزاګانو ته اُورسيدل نو د الله تعالیٰ ددے قانون نه به تاسو هم نشئ بچ کيدے۔

نو اُوس ددے امت نور تربيتونه کوی، د صبر او د مانځه حکم ئے کړے دے، او دا په مينځ کښې راوړی ځکه چه پدے امت به الله تعالیٰ امتحانات راولی نو دوی به د صبر نه کار اخلی۔ دا د مسلمانانو تربيت دے۔

﴿يٰۤاَيُّهَا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوا اسۡتَعِيۡنُوۡا بِالصَّبۡرِ وَالصَّلٰوةِ اِنَّ اللّٰهَ مَعَ الصّٰبِرِيۡنَ ﴿۱۵۳﴾

اے ايمان والو! مدد طلب کړئ (د الله نه) په صبر کولو او په مانځه کولو۔يقيناً الله ملګرے دے د صبرناکو۔

**مضمون :** ددے ځائے نه روستو الله تعالیٰ دے اُمت اسلاميه ته څۀ کارونه سپاری نو د هغے نه مخکښې ورته تنبيهات کوی اول دا چه تاسو باندے کوم احوال راځی د هغے مقابله به په صبر او مانځه سره کوئ۔ تردے چه تاسو باندے به د الله تعالیٰ په دين کښې د نفسونو قربانول راځی، وژلے کيږئ به، نو څوك چه پدے لار کښې اُووژلے شی، هغوی ته به بد نۀ ګورئ۔ دويمه تنبيه : دغه شان په ډيرو طريقو به امتحانات راځی خو صبر به کوئ۔ بيا ئے د صفا مروه مسئله راوړے ده د قبلے د بدليدو د متعلقاتو نه ده او د صفا او مروه د سعی په باره کښې د يو شبهے جواب دے چه هغوی وئيلی وو تاسو خپله د جاهليت تابعداری کوئ او مونږه منع کوئ؟۔ نو جواب اُوشو چه دا د جاهليت کار نۀ دے بلکه دا د اسلام د شعائرو نه دے، نو پدے باندے اعتراض کول جائز نۀ دی۔بيا کاتمينو د حق ته زجر دے چه دے خلقو ته د رسول الله ﷺ د حقانيت دلائل واضح دی او بيا ئے هم پټوی۔ او د آخرت تخويف سره د توبے او د هغے د شرطونو نه ذکر کوی۔ او کافرانو ته ئے د آخرت تخويف (يره) ورکړيدے۔ بيا په (وَاِلٰهُكُمۡ) کښې مسلمانانو ته د توحيد عقيده سپاری.

او په هغې ئې دلائل بيان کړيدي، او د محبت په باره کښې ئې د توحيد عقيده خودلې ده چه مؤمن به د الله تعالیٰ سره ډير محبت لري. او زجرئې ورکړې دې هغه مشرکينو ته چه د الله تعالیٰ سره په محبت کښې نور شريکان جوړوي، د براءت مسئله بيانوي چه دنيا کښې ئې چا سره د عبادت محبت کړيدې او د هغه عبادت ئې کړيدې نو قيامت کښې به د هغه نه بري وي. نو اې ايمان والو! دنيا کښې داسې محبوب اُونيسئ چه د هغه نه بيا برائت نهٔ کوئ. تر (۱٦۷) پورې.

**تفسير:** ۱ - د مخکښې سره تعلق او **ربط** دا دې چه د انسان دوه حالته دي، د سراء (خوشحالئ) حالت، نو پدې حالت کښې به شکر کوي. او دويم د ضراء (تکليف) حالت دې نو پدې حالت کښې به صبر کوي، او مانځه ته به متوجه کيږي. او حديث کښې هم راغلي دي :

[عَجَبًا لِاَمْرِ الْمُؤْمِنِ اِنَّ اَمْرَهُ كُلَّهُ لَهُ خَيْرٌ وَلَيْسَ ذٰلِكَ لِاَحَدٍ اِلَّا لِلْمُؤْمِنِ اِنْ اَصَابَتْهُ سَرَّاءُ شَكَرَ فَكَانَ خَيْرًا لَّهُ وَاِنْ اَصَابَتْهُ ضَرَّاءُ صَبَرَ فَكَانَ خَيْرًا لَّهُ] [احمد، مسلم].

تعجب دې په کار د مؤمن چه ددهٔ هر کار ددهٔ دپاره فائده مند دې، او دا خصوصيت صرف د مؤمن دې، که دهٔ ته خوشحالي اُورسي شکر کوي نو دا هم ورله غوره دې، او که دهٔ ته تکليف اُورسي، او صبر کوي نو دا ددهٔ دپاره غوره دې). (قاسمیؒ)

او د صبر او ابتلاء مسئله څکه ذکر کوي چه پدې کښې تنبيه ده چه په تاسو به غټ کارونه مقرريږي نو په هغې کښې به د صبر نه کار اخلئ، جهادونه فرض کيږي، عشر، زکاة، روژې، قصاص به فرض کيږي. نو ډيرې فائدې به درته حاصلې شي.

۲ - دويم دا چه په تيرشوي آيت کښې په (فَاذْكُرُونِيْ) کښې ټول عبادات او په (وَاشْكُرُوْا لِيْ) کښې د ټولو نعمتونو شکر لازم اُوګرزيدو، نو ددې دواړو ادا کول د اسبابو د تعاون نه بغيرنهٔ کيږي، نو اُوس د هغې دپاره وسيله بيانوي چه هغه صبر او صلاة دې چه پدې سره د دغه کارونو ادا کول آسانيږي.

۳ - مُؤمِن به هر وخت عبادت کوي. او دا په څلورو طريقو دې. (۱) په اِمْتِثَالُ الْاَوَامِرِ اَوْ اِجْتِنَابُ النَّوَاهِيْ. سره يعني په امر باندې عمل کول او د نهي نه ځان ساتل.

(۲) اَلشُّكْرُ عِنْدَ النِّعَمِ - د نعمتونو په وخت به شکر کوي. (۳) اَلصَّبْرُ عِنْدَ حُلُوْلِ النِّقَمِ - د مصيبت او عذاب په وخت به صبر کوي.

(٤) اَلتَّوْبَةُ عِنْدَ الذَّنْبِ وَالنَّدَمُ - د ګناه په وخت به توبه اُوباسي او پښيمانه کيږي به. نو دلته د مؤمنانو تربيت غرض دې چه د عباداتو دا ټول اقسام به پوره کوي.

﴿يَا اَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اسْتَعِيْنُوْا بِالصَّبْرِ وَالصَّلَاةِ﴾ اې هغه خلقو چه ايمان مو راوړو او د يهودو او نصاراؤ په شان نشوئ نو راشئ پدې اوامرو او آدابو عمل اُوکړئ.

۱- ددے یوه معنیٰ ده : د الله نه مدد حاصل کړئ په وسیله د صبر او مانځه سره. یعني د الله مدد په صبر او مانځه سره راځي. ۲- دویم دا چه (اِسْتَعِيْنُوا عَلٰى قَضَاءِ حَوَائِجِكُمْ بِالصَّبْرِ وَالصَّلٰوةِ) د خپلو حاجتونو پوره کولو دپاره د صبر او مانځه نه کار واخلئ.

حدیث کښ دي : [كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ إِذَا حَزَبَهُ أَمْرٌ صَلّٰى] (ابو داود باسنادٍ صحيح)

رسول الله ﷺ ته به چه کله څه مشکلات راغلل نو مونځ ته به متوجه شو).

په مانځه سره دیني او دنیاوي مشکلات حل کیږي. د زړهٔ قسوت او سختي ختمیږي. دلته وقف دے یعني صبر به کوئ اګرکه د الله تعالیٰ په لاره کښ قتل کړے شئ. ځکه چه : ﴿إِنَّ اللهَ مَعَ الصَّابِرِيْنَ﴾ چا کښ چه د صبر ماده وي، هغه د الله تعالیٰ ډیر خوښ وي، د ګناه نه صبر، په مصیبتونو صبر، د الله په طاعاتو، عباداتو او نیك اعمالو باندے صبر.

شيخ الاسلام ابن تيمية په خپل کتاب (السياسة الشرعية) کښ لیکي چه د حاکم (او بادشاه) دپاره بالخصوص او د رعیت دپاره بالعموم درے څیزونه مددګار ثابتیږي :

۱- الله دپاره اخلاص او د دعا وغیره په ذریعه په هغه باندے توکل او په زړهٔ او بدن باندے د مانځه حفاظت او پابندي چه دا د اخلاص اصل دے. ۲- د مخلوق سره احسان کول او زکاة ادا کول. ۳- په تکلیف، مصیبت او حادثاتو کښ صبر کول. انتهیٰ. (قاسمي ۱/۳۹۹)

**وجه د تخصیص د صبر او صلاة** دا ده چه په باطني اعمالو کښ سخت ترین عمل په نفس باندے صبر دے، او په ظاهري اعمالو کښ په انسان باندے مشکل کار مونځ دے، ځکه چه په مانځه کښ د دنیا نه انقطاع او الله ته متوجه کیدل دي. او ددے تشریح ددے تفسیر په اول جلد کښ په آیت (٤٥) کښ اُوګورئ.

(مَعَ) معیت ملګرتیا ته وائي او دا معیتِ خاصه دے چه د الله تعالیٰ په محبت او د هغه په نصرت او قربت باندے دلالت کوي یعني الله د صبرکونکو سره محبت کوي، او په سختو ځایونو کښ د هغوي مدد کوي، او هغوي ته نزدے وي. او په هغے سره مشکلات دفع کیږي او حاجات حاصلیږي. او دا معیت په سورة توبه آیت (٤٠) او سورة النحل آیت (١٢٨) او سورة طه آیت (٤٦) او سورة العنکبوت آیت (٦٩) کښ ذکر شویدے چه د مؤمنانو پورے خاص دے. او د معیت یو بل قسم دے (معیتِ عامه) یعني الله تعالیٰ په علم او قدرت سره د خپلو بندګانو سره دے لکه الله فرمائي : (وَهُوَ مَعَكُمْ أَيْنَ مَا كُنْتُمْ) سورة حديد (٤) او سورة المجادله آیت (٧) کښ دي : ﴿وَهُوَ مَعَهُمْ أَيْنَ مَا كَانُوْا﴾ (الله تعالیٰ د دوي سره دے کوم ځائے چه دوي وي) او دا معیت د ټول مخلوق دپاره دے.

**حکمة** : دلته د صبر او صلاة نه روستو په معیت سره بشارت ذکر شو ځکه دا خطاب مؤمنانو ته دے او په هغوی کښې د مخکښې نه خشوع وی، او په (۴۵) آیت کښې ئے ﴿وَإِنَّهَا لَكَبِيرَةٌ﴾ ذکر کړے وو۔ ځکه هغه خطاب بني اسرائیلو ته وو او هغوی ته ئے د صبر او صلاة د آسانوالی دپاره خشوع اُوخودله۔ (احسن الکلام)

| وَلَا تَقُولُوا لِمَنْ يُقْتَلُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَمْوَاتٌ بَلْ أَحْيَاءٌ |
|---|
| او مهٔ وایئ په باره د هغه چا کښې چه اُوژلے شی په لاره د الله کښې چه دا (عام) مړی دی بلکه دوی ژوندی |
| وَلَٰكِنْ لَا تَشْعُرُونَ ﴿١٥٤﴾ |
| دی (په یو خاص قسم ژوند) لیکن تاسو نهٔ پو هیږئ۔ (د هغوی په ژوند)۔ |

**تفسیر** : دے آیت کښې دا وائی چه د الله تعالیٰ په طاعت باندے د صبر کولو لویه نمونه د الله په لاره کښې جهاد کول دی، چه بنده د خپل مالك د رضا دپاره خپل ځان قربان کړی۔ او مؤمنانو وغیره ؤ ته دا خبردارے ورکوی چه ددے شهداؤ په باره کښې به سپکے خبرے نهٔ کوئ، بلکه دوی خو لویه کارنامه اُوکړه چه د حق په لاره کښې شهیدان شول۔ لکه د آیت شان نزول هم دغه شان دے۔

**شان نزول** : کله چه د بدر غزوه اُوشوه نو څوارلس صحابه کرامؓ پکښې شهیدان شول، شپږ د مهاجرینو او اته د انصارو نه نو خلقو اُووئیل چه فلانے مړ شو او د دنیا د مزو او خوندونو نه محروم شو نو الله تعالیٰ دا آیت نازل کړو۔ (خازنؒ، معالم التنزیل للبغوی) چه هغوی خو سوچه خوندونو له ورغلل۔

﴿فِي سَبِيلِ اللَّهِ﴾ سبیل الله کله اعلاء کلمة الله ته وائی یعنی د الله تعالیٰ د دین د اُوچتولو د خاطره مړ شو۔ کله د الله رضا ته وائی۔

﴿أَمْوَاتٌ﴾ دا خبر دے دپاره د مبتدا (أَيْ هُمْ أَمْوَاتٌ) ۔(چه دا مړهٔ دی) ظاهراً خو مړهٔ دی ځکه (یُقْتَلُ) (وژلے شوی) لفظ پرے دلالت کوی۔ خو معنیٰ دا ده : (۱) [أَمْوَاتٌ أَيْ كَسَائِرِ الْأَمْوَاتِ] چه د عامو مړو په شان ئے مهٔ ګنړئ (چه عام خلق مړهٔ شی نو په تکلیف او مصیبتونو کښې وی، او دوی د هغوی په شان نهٔ دی)۔ (معالم التنزیل دبغوی)۔

(۲) او دارنګه داسے مړی ورته مهٔ وایئ چه روح او بدن دواړه ئے مړهٔ دی، او هیڅ فائده نهٔ اخلی خوند نهٔ اخلی۔ نو دلته نفی د خاص قسم مړګ ده۔(۳) أَمْوَاتٌ فِي الْعَوَالِمِ الثَّلَاثَةِ: الدُّنْيَا وَالْبَرْزَخِ وَالْآخِرَةِ۔ که دنیا کښې مړهٔ دی لیکن روستو دوه عالمونو کښې ژوندی دی۔

﴿ بَلْ أَحْيَاءٌ ﴾ ۱ - یعنی ژوندی دی په برزخ کښې. چه د هغې سره د حقیقي مرګ منافات نشته. (ابن کثیر وفتح البیان).

۲ - راغبؒ په مفردات کښې معنیٰ کوی (مُتَلَذِّذُوْنَ) خوندونه او مزې اخستونکی دی. څنګه مزې اخلی؟ نو په هغې تاسو نهٔ پوهیږئ.

۳ - یا معنیٰ ده: أَحْيَاءٌ عِنْدَ رَبِّهِمْ : (دغه شان په سورة آل عمران (۱۶۹) کښې راغلی دی هغه د اُحد د شهیدانو په باره کښې دی) یعنی د الله په نیز ژوندی دی، او د دنیا په احکامو کښې ژوندی نهٔ دی، داسې ژوندی نهٔ دی چه د چا حاجات دې پوره کړی، یا د چا آواز دې واوری، یا دې د هغوی روحونه دنیا ته راځی، او خلقو سره دې مددونه کوی.

بلکه پدې آیت کښې الله تعالیٰ د خلقو وَهم رد کولو چه د عامو خلقو ګمان دا وو چه په بدر کښې کوم شهیدان اُوشو، نو هغوی لاړل ختم شو، نو الله فرمائی: د مړو ګمان پرې مهٔ کوئ چه دا مړې دې، او ختم شو، هیڅ مزې به ورته نهٔ ملاویږی. بلکه ددهٔ روح ژوندې دې، او بدن ته ئې په قبرونو کښې نعمتونه ورکول کیږی خو لیکن د دنیا په لحاظ مړ دې. دنیا ته بیرته نشی راتلې.

فقهاؤ لیکلی دی: [أَمْوَاتٌ فِيْ أُمُوْرِ الدُّنْيَا أَحْيَاءٌ فِيْ أُمُوْرِ الْآخِرَةِ] د دنیا په کارونو کښې مړهٔ دی او د آخرت په کارونو کښې ژوندی دی) نو د دنیا سره ئې هیڅ قسم تعلق نشته.

﴿ وَلٰكِنْ لَّا تَشْعُرُوْنَ ﴾ یعنی مونږ ته د هغوی د ژوند او مزو اخستو پته نشته چه په څه طریقه دې. د دنیا په لحاظ مړهٔ دی. ښځې ئې خلقو واخستې، مال ئې ورله تقسیم کړو، د دنیا په حال نهٔ پوهیږی، لیکن قبر کښې مزې کوی ځکه قبر یا د جنت باغیچه ده یا د دوزخ یوه کنده ده، هلته راحت دې یا سخت مصیبت دې.

**فائده:** دا آیت د برزخ په ژوند باندې دلیل دې او دا چه د برزخ ژوند د دنیاوی ژوند نه افضل او اکمل دې. ځکه د هغه ژوند تعلق د دنیا په نسبت د آخرت سره زیات دې.

بیا حدیث کښې راغلی دی چه:

«د شهید روح د شنو مرغانو په جنجورو کښې اچولې شی او په جنت کښې چکرې لګوی او خوراکونه کوی او د عرش نه لاندې قندیلونو کښې آرام کوی». (صحیح مسلم)

او د عام مؤمن روح د مرغۍ په شکل په جنت کښې وی. (مسند احمد)

نو معلومه شوه چه د شهید روح ډیر افضل دې پدې وجه ئې دلته ددې تخصیص هم اُوکړو.

بیا د آخرت او برزخ په اعتبار سره ټول خلق ژوندی دی، لیکن فرق دې، انبیاء علیهم السلام ډیرو مزو والا وی، بیا وروستې شهداء وی بیا عام مؤمنان وی. او کفار خلق په عذاب کښې وی.

وَلَنَبْلُوَنَّكُم بِشَيْءٍ مِّنَ الْخَوْفِ وَالْجُوعِ

او خامخا مونږ به امتحان کوو په تاسو باندې په معمولي څيز سره د يرې نه او د لوږې نه

وَنَقْصٍ مِّنَ الْأَمْوَالِ وَالْأَنفُسِ وَالثَّمَرَاتِ وَبَشِّرِ الصَّابِرِينَ ﴿۱۵۵﴾

او د کموالي د مالونو او د نفسونو او د ميوو نه او زيرے ورکړه صبرناکو ته.

**تفسير**: پدې آيت کښې الله تعالىٰ مؤمنانو ته د صبر امر کوي ځکه چه څوك د دعوت الى الله او جهاد في سبيل الله ذمه واري قبوله کړي، نو دهغه مقابله به د فاسقانو، فاجرانو سره راځي او څوك چه په حق ولاړ وي او هغے ته نور خلق رابلي نو په هغوي به ازميښت او امتحان ضرور راځي، همدا ابراهيمي سنت دے، او دا امتحان پدې وجه هم ضروري دے چه په دروغجن او رشتيني، په صبر کونکو او جزع فزع کونکو کښې تميز او فرق اوشي.

او پدې کښې په پنځو مصيبتونو باندې د صبر کولو امر دے.

## د مصيبتونو د راتللو فائدے

الله تعالىٰ ولے امتحانات راولي ؟ دا ددې دپاره چه بنده مؤمن سرۀ زر دي او سرۀ زر خلق دے دپاره اُور کښې اچوي چه والىٔ او کانړۀ ترے جوړه شي، بنکرى، ګينټه ترے جوړه شي او ويلي کوي ئے، دے دپاره چه ځيرى او ګندونه ترے لرې شي. او د مخکښې نه الله تعالىٰ مونږ له خبر راکوي چه امتحان به راولم، خبر شئ، دے دپاره چه مصيبت آسان شي ځکه چه کله انسان ته معلومه شي چه دا د الله تعالىٰ قانون دے چه په بنده ابتلاء راولي، او د هغه د پاکولو دپاره ئے راولي، او په دے کښې د الله تعالىٰ ډير حکمتونه وي، د بندګانو د مزاج مطابق په چا سخت مصيبت راولي، په چا آسان راولي، الله تعالىٰ ډير حکيم ذات دے، او که انسان ته دا د مخکښې نه معلومه نۀ وي او امتحان ناڅاپي راشي، نو بيا به ډير سخت وي، د انسانانو زړونه به پکښې آوړي. لکه صحابه کرامؓ په غزوه خندق کښې اُووئيل:

﴿هَٰذَا مَا وَعَدَنَا اللَّهُ وَرَسُولُهُ وَصَدَقَ اللَّهُ وَرَسُولُهُ وَمَا زَادَهُمْ إِلَّا إِيمَانًا وَتَسْلِيمًا﴾ دا ئے ځکه اُووئيل چه مخکښې نه ورته معلومه وه چه امتحان به راځي.

نو تاسو به د صبر نه کار اخلئ! ولے که بنده صبر اُونکړي نو مصيبت به راشي او اجر به ئے اُونۀ شي او چه صبر اُوکړي غټ اجرونه به ورته حاصل شي.

﴿لَنَبْلُوَنَّكُمْ﴾ ابتلاء (امتحان) الله تعالىٰ په انبياؤ عليهم السلام، مؤمنانو او کافرانو راولي پدے

تولو کښې بیل بیل حکمتونه وي په انبیاء علیهم السلام او مؤمنانو امتحان راولي:
(۱) پدې کښې حکمت دا دے چه د بندګانو ګناهونه معاف کړي.
(۲) بنده ته د هغه حقیقت ښکاره کول غرض وي، چه غټې دعوې مهٔ کوه.
۳- کله پرې مرتبې اُوچتوي خاصکر د انبیاء کرامو ابتلاء اتو سره درجات پورته کیږي. او په کافرو باندې عذاب وي او د هغوي توبې ته متوجه کول وي. او ددې اُولس (۱۷) حکمتونه تفسیر قاسمي (۱/۴۰۵) لیکلي دي.
٤- خبیث د طیب نه جدا کوي.
٥- د الله د جباریت او قهر ته اشاره ده.
٦- د انسان ذلت او کمزورئ ته اشاره وي.
۷- د انسان د زړهٔ التجاء او توجه الله تعالیٰ ته پیدا شي ځکه چه ابتلاء نهٔ وي، نو بیا انسان الله ته پوره نهٔ متوجه کیږي. ابتلاء به نهٔ غواړې. ځکه حدیث کښې دي: «تاسو د دشمن د ملاقات (یعني د جنګ) ارمان مهٔ کوئ (بلکه) د الله نه عافیت غواړئ خو کله چه د دشمن سره ملاؤ شوئ نو بیا صبر کوئ». الحدیث. (مستدرك د حاكم بسند صحيح) ځکه په عافیت غوختلو کښې په الله تعالیٰ اعتماد وي او د خپل ځان کمزورتیا وي او په جنګ غوختو کښې په خپل ځان اعتماد وي. نو ځکه د عافیت سوال د الله تعالیٰ خوښ دے.
۸- چا چه ګناه کړي وي هغه ته معافي کول.
﴿وَالْعَافِينَ عَنِ النَّاسِ﴾. ۹- په مصیبت باندې صبر کولو کښې بنده ته ډیر اجر ورکول.
۱۰- ددې د فوائدو د وجه نه پدې باندې خوشحالیدل.
۱۱- په مصیبت زدهٔ خلقو باندې رحمت کول او د هغوي سره د مدد کولو جذبه پیدا کیږي.
۱۲- د عافیة او صحت قدر پیژندل او په هغې شکر کول.
۱۳- پدې کښې پټ فوائد وي ﴿فَعَسَىٰ أَن تَكْرَهُوا شَيْئًا وَيَجْعَلَ اللَّهُ فِيهِ خَيْرًا كَثِيرًا﴾ کله چه جبار بادشاه ساره د ابراهیم ﷺ نه اُونیوله نو پدې مصیبت کښې دا فائده پټه شوه چه هغې ته ئې هاجره رضی الله عنها په خدمت کښې ورکړه نو د هغې نه د ابراهیم ﷺ ځوی اسماعیل ﷺ پیدا شو او د اسماعیل په اولادو کښې خاتم النبیین (محمد رسول الله ﷺ) پیدا شو. نو پدې مصیبت کښې څهٔ ډیر ښهٔ خیر وو !!.
۱٤- مصیبت او تکلیفونه د انسان نه تکبر، فخر، خیلاء، تجبر او ظلم ختموي. نمرود ځکه سرکشي کړې وه چه الله تعالیٰ ورله بادشاهي او روغ صحت ورکړے وو.

۱۵ – په مصیبت باندے راضی کیدو سره د الله تعالیٰ رضا حاصلیږی. ﴿وَرِضْوَانٌ مِّنَ اللهِ أَكْبَرُ﴾ . ددے فوائدو د وجه نه مصیبتونه په انبیاء علیهم السلام او بیا په غوره غوره خلقو زیات وی. (قاسمی)

او د ابتلاء معنیٰ ده: [أَنْ يُّظْهِرَ فِي الْوُجُوْدِ مَا قَدْ عَلِمَهُ] بندګانو ته هغه شے راښکاره کول کوم چه الله ته معلوم دے).

﴿بِشَيْءٍ﴾ شیء لفظ ئے نکره د تحقیر دپاره راوړه، یعنی لږ غوندے یره به راځی. او دا یره به کله د دشمنانو د طرف نه وی او کله به عامه یره وی. ﴿وَالْجُوْعِ﴾ او کله به لوږے راځی. ﴿وَنَقْصٍ مِّنَ الْأَمْوَالِ﴾ کله به مالونه کمیږی، څاروی به مړهٔ کیږی، مال به ورك شی، کاروبار کښې به تاوان اُوکړی. حلال به کم او حرام به ډیر ملاویږی.

﴿وَالْأَنْفُسِ﴾ کله به بال بچ، یا مور او پلار، ښځه یا خاوند، او خپلوان به مړهٔ یا قتل شی. دوستان او ملګری به مړهٔ یا شهیدان شی.

﴿وَالثَّمَرَاتِ﴾ کله به د میوو قحط راشی او د زمکے غلے او آمدنیٔ به کمے شی، باغونه به سیلابونه او کلیٔ خراب کړی، په تا به امتحان وی چه ته صبر کوے او که په الله اعتراض کوے. دا کارونه به کله د جهاد په وجه پیدا کیږی او کله به د هسے تکوینی آفتونو په وجه. ابن عباسؓ فرمائی: ددے نه مراد (قِلَّةُ النَّبَاتِ وَانْقِطَاعُ الْبَرَكَات) دی یعنی ګیاه ګانے به کمے شی او برکات به ختم شی).

امام شافعیؒ پدے کښې وئیلی دی چه دا دینی امتحانات دی، د خوف نه مراد جهاد، یا د الله نه یره ده. او (الْجُوْعِ) نه مراد روژه د رمضان ده او (نَقْصٍ مِّنَ الْأَمْوَالِ) نه مراد زکوٰة او انفاق فی سبیل الله دی چه دا په ظاهره کښې مال کموی لیکن په حقیقت کښې ئے ډیروی. او (أَنْفُس) نه مراد د الله په لاره کښې شهادتونه دی یا بدنی امراض دی.

(وَالثَّمَرَات) نه مراد عشر وغیره دی؛ یا د اولادو مړهٔ کیدل دی. لیکن دا دینی امتحانات سخت نهٔ دی، دنیاوی مصیبتونه سخت وی، بیا دا مصیبتونه الله تعالیٰ په انسان باندے ټول په یو ځائے نهٔ راجمع کوی څکه بیا انسان ډیر په تکلیف کیږی، د طاقت نه خبره اُوځی. نو تاسو به څه کوئ؟ (فَاصْبِرُوْا) صبر به کوئ.

﴿وَبَشِّرِ الصّٰبِرِيْنَ﴾ یعنی دوی ته به هر قسم خوشحالی حاصلیږی په دنیا او په قبر او په حشر کښې. شیخینو د ابو هریره او ابو سعید خدری رضی الله عنهما نه روایت کړیدے چه رسول الله ﷺ فرمایلی دی: (( مسلمان ته چه کله هم کومه پریشانی یا غم، یا ستومانی یا تکلیف رسیږی تردے چه یو ازغے په دهٔ کښې ننوزی نو الله تعالیٰ د هغے په بدله کښې ددهٔ ګناهونه معاف کوی)).

| الَّذِيْنَ اِذَآ اَصَابَتْهُمْ مُّصِيْبَةٌ قَالُوْٓا اِنَّا لِلّٰهِ |
|---|
| (صبرناك) هغه خلق دي كله چه اُورسيږي دوی ته څۀ مصيبت، (نو) دوی وائي يقيناً مونږ د الله يو |
| وَاِنَّآ اِلَيْهِ رٰجِعُوْنَ ﴿۱۵۶﴾ |
| او يقيناً خاص مونږه هغۀ ته ورګرځيدونكي يو۔ |

**تفسیر**: پدے کښ د صابرينو علامه او نخه بيانوی۔

مُّصِيْبَةٌ: کښ تنوين د تحقير او تقليل دے۔ يعنی که دوی ته لږ شان مصيبت هم اُورسی تردے چه د نبی ﷺ ډيوه به مړۀ كيدۀ، يا به ئے د ښپلئ وندنه اُوشو كيده، نو هم اِنَّا لِلّٰهِ به ئے وئيله۔ او دا دعا په هر مصيبت کښ وئيل سنت عمل دے، او صرف د مرګ د خبر اَوريدو په وخت پورے خاص كول ئے ندی پكار۔

﴿قَالُوْٓا اِنَّا لِلّٰهِ﴾ په خوله دا كلمه وئيل سنت دی، او عقيده ساتل ئے فرض دی، او د وينا په وخت کښ زړۀ کښ ددے خبرے استحضار پكار دے۔ ﴿اِنَّا لِلّٰهِ﴾ الله زمونږ مالك دے، مونږه ئے مملوك يو، د هغۀ خوښه ده چه هغه راباندے څۀ كوی، نو مونږه د الله يو چه مو وژنی او كه راحت راولی، يا مصيبت راولی، زمونږ په ځان کښ واك نشته، او هغۀ په خپل ځائے باندے راولی، حكيم دے۔ نو څوك چه ځان مملوك اُوګڼری بيا ورته مصيبت آسانيږی۔

﴿وَاِنَّآ اِلَيْهِ رٰجِعُوْنَ﴾ يعنی مرګ به راځی۔ نو د مرګ په يادولو مصيبت آسانيږی چه دا مصيبت به هميشه نۀ وی بلكه دا ختميدو والا دے، صبا خو زمونږ مرګ دے، آخرت له به ورځو، كه په خوشحالئ کښ دے مرګ رایاد كړو نو تكبر به در کښ نۀ راځی چه دا خوشحالی به هميشه نۀ وی او كه په مصيبت کښ دے رایاد كړو نو مصيبت به درباندے آسان شی۔

۱- په (اِنَّا لِلّٰه) کښ په الله تعالیٰ باندے د اعتراض نۀ كولو اقرار دے ځكه چه هغه مالك او متصرف دے او په دويم کښ د زړۀ تصديق او تسلی ده چه د الله په نيز به پدے مصيبت سره جزاء او ثواب ملاويږی او په دے دواړو سره د زړۀ صبر حاصليږی۔ ۲- دارنګه په اول کښ د عبوديت اقرار دے او په دويم کښ الله تعالیٰ ته د كارونو تفويض (سپارل) دی۔

۱- په حديث کښ د څۀ نقصان په وخت د (اِنَّا لِلّٰهِ وَاِنَّآ اِلَيْهِ رَاجِعُوْنَ) سره (اَللّٰهُمَّ اْجُرْنِیْ فِیْ مُصِيْبَتِیْ وَاَخْلِفْ لِیْ خَيْراً مِنْهَا) فضيلت هم راغلے دے۔ (صحيح مسلم، كتاب الجنائز رقم: ۹۱۸)

څوك چه دا دعا د يو مصيبت يا د بيوشی د فوت كيدو يا د ورك كيدو په وخت اُووائی نو الله به ضرور هغه ته د هغے نه بهتره بدله وركوی۔ ام سلمۀ دا دعا د نبی ﷺ په خوُدنه د ابوسلمۀ د وفات په وخت اُووئيله هغه وائی: زما ګمان نۀ وو چه د ابوسلمۀ نه به څوك غوره وی، نو الله

تعالیٰ راته د ابو سلمهؓ نه غوره رسول الله ﷺ په نکاح راکړو.

۲- ددې یو فضیلت دا هم راغلې دې: امام احمدؒ د حسین بن علیؓ نه روایت کړې چه نبی ﷺ اُوفرمایل: ((کوم مسلمان سړی یا ښځې ته چه یو مصیبت اُورسی او هغه ئې راياد کړی اګرکه ډیر وخت ئې تیر شوې وو، او د هغې دپاره (انا لله وانا الیه راجعون) اُووائی نو ضرور به الله دهٔ لره پدغه وخت کښې اجر راواپس کوی او د مصیبت د ورځې په شان اجر به ورکوی))

(مسند احمد ۲۰۱/۱) دا روایت ضعیف جدا دې. پدې کښې ابو المقدام متروك راوی دې کما فی الحق الصریح (۶۸۲/۶).

۳- د بنده چه ماشوم بچې وفات شی، نو الله تعالیٰ ملك الموت ته وائی چه تا زما د بنده بچې او د هغه د سترګو یخوالې او د زړهٔ میوه واخسته؟ هغه وائی، آو. الله فرمائی: هغه څه اُووئیل: ملك الموت وائی: هغه ستا حمدونه او (انا لله) اُووئیله. الله فرمائی: دهٔ له په جنت کښې کور جوړ کړئ او د هغې نوم (بیت الحمد) کیدئ)). یعنی د حمد په ذریعه حاصل شوې کور.

(مسند احمد ٤۱٥/٤، والترمذی وسنده صحیح).

٤- امام بخاریؒ د ابو هریرهؓ نه روایت کړیدې چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل: ((چا باندې چه الله د خیر اراده اُوکړی هغه ته مصیبت اُورسوی)). (قاسمیؒ والخازنؒ)

| اُولٰٓئِكَ عَلَيۡهِمۡ صَلَوٰتٌ مِّن رَّبِّهِمۡ وَرَحۡمَةٌ |
| --- |
| دغه کسان په دوی باندې ثناء ګانې او آفرین دې د طرفه د رب د دوی نه او رحمت دې |
| وَاُولٰٓئِكَ هُمُ الۡمُهۡتَدُوۡنَ ﴿۱۵۷﴾ |
| او دغه کسان هم دوی لار موندونکی دی. |

**تفسیر**: اُوس د صابرینو درې قسمه انعامات بیانوی. (۱) د الله د طرف نه بخنه او صفت او شاباسې. (۲) او رحمتونه (۳) او د هدایت لارې خودل.

(صَلَوٰتٌ) دلته په معنیٰ د ثنا او مغفرت او آفرین دې. (ابن عباسؓ)

یعنی الله ئې صفت کوی او بخنه ورته کوی او آفرین او شاباسې پرې وائی او برکت ورکوی. او د رحمت معنیٰ ئې نهٔ ده ځکه هغه روستو ذکر دې. ددې نه معلومه شوه چه الله تعالیٰ کله مصیبت راولی نو انسان ته پدې سره بخنه کوی، او مرتبې ورله اُوچتوی. او رحمت او خوشحالی را روانه وی، او کله چه فقر راشی نو پوهه شه چه ددې نه روستو مالداری راځی او که مرض

راشي نو پوهه شه چه ددې نه روستو صحت راځي (إِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا) ځکه د هرې سختۍ نه روستو آساني وي، ليکن الله تعالیٰ د بنده له صبر معلوموي.

امام راغبؒ وائي: صلاة په اصل کښې دعا ته وائي، دا د الله د طرف نه کله په معنیٰ د برکت سره او کله په معنیٰ د بخښې سره وي۔ امام رازيؒ وائي: صلاة د الله د طرف نه ثنا او مدح او تعظيم (لوئي بيانولو) ته وائي۔ امام راغبؒ وائي: صلوات ئې جمع راوړه اشاره ده چه دا صفتونه به ډير وي او دا په دنيا کښې په طريقه د توفيق او لارخودنې سره او په آخرت کښې په ثواب او بخښې سره حاصليږي۔ (قاسميؒ)

﴿وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُهْتَدُونَ﴾ يعنى دې کسانو ته هدايت اُوشو يعنى د ربوبيت او عبوديت حق ئې پوره اداء کړو۔ نو ځکه الله ورته پوره صلوات او رحمتونه ورکوي۔ (قاسميؒ).

عمر فاروق ﷺ فرمائي: (نِعْمَ الْعِدْلَانِ وَنِعْمَ الْعِلَاوَةُ) (صحيح بخاري) ښه دوه اندې دي (صلوة او رحمت) او ښه سربارې او زياتي پنډ دې (هدايت)۔ چه الله ورته هدايت والا هم اُووئيل۔ يعنى الله ورله غټه فائده ورکړه۔

| |
|---|
| إِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ مِن شَعَائِرِ اللَّهِ ۖ فَمَنْ حَجَّ الْبَيْتَ أَوِ اعْتَمَرَ فَلَا جُنَاحَ |
| يقيناً صفا او مروه د نخود دين د الله نه دي نو څوك چه حج د بيت الله کوي يا عمره کوي نو نشته هيڅ گناه |
| عَلَيْهِ أَن يَطَّوَّفَ بِهِمَا ۚ وَمَن تَطَوَّعَ خَيْرًا |
| په دهٔ باندې چه څي راځي په مينځ ددې دواړو کښې او چا چه په خوشحالئ سره اُوکړه نيکي |
| فَإِنَّ اللَّهَ شَاكِرٌ عَلِيمٌ ﴿۱۵۸﴾ |
| نو يقيناً الله قبلونکے دے، پوهه دے۔ (په هرڅه) |

**تفسير:** دا آيت د قبلې د بدليدو سره متعلق دے، مينځ کښې ئې مؤمنانو ته آداب او تنبيهات بيان کړل نو اُوس د صفا مروه مسئله بيانوي ځکه قبله بدله شوه، نو په دې کښې د صفا او مروه مسئله هم راغله ځکه دا د قبلې خوا کښې دے۔

پدې مقام کښې يو وهمي اعتراض دے او دوه واقعي اعتراضونه دي۔ وهمي اعتراض (يعنى د مشرکانو په ذهن کښې دا خبره راتله اگرکه هغوي دا اعتراض نهٔ دے کړے) چه تاسو مونږ د شرك نه منع کوئ او خپله شرك کوئ ځکه صفا مروه کښې منډې وهئ۔ د هغې تعظيم کوئ او دا خو د

اساف او نائلے مکان دے۔ (تبصیر الرحمن للمهائمی)

نو د هغې جواب اُوشو چه دلته کرځیدل شرك نهٔ دے ځکه شرك خو دیته وائی چه خلق غیر الله عبادت اُوکړی او دا خو ځائے د شعائر الله دے، د الله په امر باندے مونږ دلته عبادت کوو۔ او ددے ځائے عبادت نهٔ کوو بلکه د الله عبادت دے۔ اګرکه مشرکانو تر یے د شرك ځائے جوړ کړے وو۔

دویم: واقعی شبهات دا وو (۱) - په صفا او مروه کښې مخکښې دوه بتان پراته وو (اُساف) په صفا او (نائله) په مروه باندے او دا پخوا زمانه کښې دوه کسان وو چه یو بل سره ئے پدے مکان کښې زنا کړے وه نو الله ترے کانړی جوړ کړل او خلقو د عبرت دپاره یو په صفا او بل په مروه کیخودل چه څوك د حرم بیعزتی کوی، د هغه به دا حال وی، روستو زمانه کښې شیطان خلقو ته دا دعوت ورکړو چه ستاسو مشرانو خو به ددے دواړو عبادت کولو، نو خلقو د دوی عبادت شروع کړو۔ کله چه اسلام راغلو نو مسلمانانو اُووئیل دا خو د شرك ځائے وو، مونږ له به دلته منډے وهل ناروا وی؟۔ د مشرکانو سره مشابهت دے۔ نو الله دا آیت نازل کړو۔ چه بالکل جائز دی او دے مکان کښې اګرکه شرك شویدے لیکن پدے سره د الله تعالیٰ د حرم تعظیم نهٔ دے ختم شوے۔ او دا د الله تعالیٰ د دین د نخو نه یوه نخه ده پدے کښې به تاسو عبادت کوئ لکه مخکښې په بیت الله کښې دننه بتان پراته وو، هلته هم شرك شوے وو، نو بیا هغه خالی کړے شو او د الله بندګی پکښې شروع شوه۔ په هغې سره د کعبے احترام ختم نهٔ شو۔

۲- دویم اعتراض دا وو: (چه دا انصارو کړے وو). انصارو به د مدینے منورے نه احرام اُوتړلو او (مُشلّل) علاقے ته به راتلل هلته یو بُت پروت وو، د هغه (مَنَات) نوم وو، د هغه عبادت به ئے کولو او احرام به ئے د هغه دپاره تړلو، د پخوا نه به داسے راتلل او دا به ئے وئیل که مونږ ددے نه تیر شو، نو بیا زمونږ بابا خفه کیږی۔ او مونږ ګناهګاریږو، دا یوه خُرافه او ډکوسله ئے جوړه کړے وه۔ صفا مروه ته په راتلو کښې به ئے ګناه ګنړله نو چه اسلام کله راغلے، دوی اُووئیل: د بتانو نه خو مونږ منع کړے شو خو آیا صفا مروه ته به ځو او که نهٔ؟ نو الله تعالیٰ دا آیت رالیږلو چه آؤ، اُوس به ځئ؛ ځکه چه تاسو په جاهلیت کښې صفا مروه د منات بُت دپاره پریخودله، او اُوس به د الله دپاره صفا مروه ته ځئ۔ او د اسلام نه پس د صفا مروه بتان ګوزار کړے شو۔ نو دا آیت د دغه دوه سوالونو جواب دے:

﴿ إِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ مِنْ شَعَائِرِ اللهِ ﴾ صفا او مروه دواړه غونډئ دی، او کعبے ته نژدے مشرقی جانب ته دوه ځایونه دی۔ صفا: په لغت کښې هموارے او خوئے ګټے ته وئیلے شی جمع د صَفَاةٌ ده۔ یا مفرد دے۔ او (المروة) مفرد دے او جمع ئے (مَرْوٌ) ده، بَکرے یعنی سپینے پرقیدونکے ګټے ته

وئيلے شي چه د هغے نه اُور راوځي۔

(شعائر الله) جمع د شَعِيْرَةٌ ده، خاصے نخے او علامے ته وائي يعنی صفا مروه د الله تعالیٰ د دين د بعض هغه نخونه دي چه په هغے سره دين اسلام پيژندلے شي، او دا د حج ټولو مواضعو او کارونو ته شامل دي، لکه طواف، سعي، حجر اسود، قرباني، مزدلفه، مِنیٰ، عرفات، هدايا، بُدنے او قلائد۔ او دغه شعائر الله ډير شيان دي لکه علماء، مساجد وغيره۔ او د هر يو دين والو دپاره خاص نخے وي لکه د عيسايانو نخه صليب او ګيرجه ده، او د هندوانو زنار، او د سيکانو تُوره او وينسته نه اخستل وغيره۔

نو د (مِنْ شَعَائِرِ الله) معنیٰ دا ده چه د مناسکو (يعنی د حج د کارونو) او د عباداتو د علاماتو نه دي۔ يعنی دا ځايونه د الله د بندګۍ دي۔ او دلته د حج کارونه ادا کولے شي۔

امام رازیؒ فرمائي : ......... [كُلُّ شَيْءٍ جُعِلَ عَلَمًا مِنْ أَعْلَامِ طَاعَةِ اللهِ فَهُوَ مِنْ شَعَائِرِ اللهِ]

(هر هغه شے چه د الله د طاعت او د بندګۍ نخه اُوګرځي هغه د شعائر الله نه دے)۔ (قاسمیؒ)

۲– شعائر : د الله تعالیٰ د قربت او نزديکت علاماتو ته هم وائي۔ (قاسمی)

انسان پدے سره الله ته قريب کيږي۔

په تفسير تدبر القرآن کښې هم يوه ښه وجه دا ليکلے ده : شعيره هغه شي ته وائي چه د يو حقيقت احساس ورکونکے او د هغے مظهر او نخه (symbol) وي۔

د دين په اصطلاح کښې ددے نه مراد د شريعت هغه مظاهر دي چه د الله تعالیٰ او د هغه د رسول د طرف نه د يو معنوی حقيقت د شعور پيدا کولو دپاره د يو نخے او علامے په طور مقرر کړے شوي وي۔ پدے مظاهرو کښې مقصود بالذات خو هغه حقائق وي کوم چه پدے کښې پټ وي ليکن دا مقرر کړي الله او د هغه رسول وي، پدے وجه ددے حقائقو د تعلق سره دا مظاهر هم د تقديس او احترام درجه حاصلوي۔ مثلاً قرباني د اسلام د حقيقت يو مظهر دے۔د اسلام حقيقت دا دے چه بنده خپل ځان ټول په ټوله خپل رب ته حواله کړي، خپل محبوب شے هم د هغه نه منع نکړي، ددے حقيقت عملی مظاهره لکه څنګه چه ابراهيم عليه السلام د خپل ځوی په قربانولو سره اُوکړه هغه د انسانی تاريخ يوه بے مثله واقعه ده۔ پدے وجه الله تعالیٰ د هغے په يادګار کښې د څاروو قرباني د يوے شعيرے په طور مقرر کړل، دے دپاره چه ددے په ذريعه په خلقو کښې د اسلام اصل حقيقت هميشه تازه پاتے شي۔

دغه شان حجر اسود يوه شعيره ده چه پدے باندے لاس راخکل يا ښکلولو سره بنده د خپل رب سره د اطاعت او بندګۍ وعده تازه کوي۔ دغه شان جمرات هم د شعائر الله نه دي۔ دا نخے ددے

دپاره اُودرولے شویدی چه حاجیان پدے باندے کانړی ویشتو سره د خپل هغه عزم اظهار کوی چه دوی به د بیت الله په دشمنانو او د اسلام په دشمنانو لعنت کوی که هغه د ابلیس د اولادو سره تعلق لری یا د انسانانو نه یوے دلے سره۔ او د هغوی په خلاف د جهاد دپاره هر وخت تیار دی۔ دغه شان بیت الله هم یوه شعیره ده، بلکه د تولو نه لویه شعیره ده چه د تول امت قبله او د توحید او د مانځه مرکز دے۔ ددے نه ګیر چا پیره طواف او د خپلو مونځونو او مسجدونو دپاره دا قبله ګرځوی او دا حقیقت راښکاره کوی چه د کوم یو الله د عبادت دپاره چه دا کور جوړ شویدے د هغه بندګان دی، هغه طرف ته مخ ګرځونکی دی، د هغه عبادت کونکی او د هغه د توحید د شمع پتنګان دی، هر قسم قربانئ ته تیار دی۔ دغه شان صفا مروه هم د الله تعالیٰ د شعائرو نه دی۔ د ابراهیم ﷺ د قربانئ ځائے مروه وو، پدے وجه پدے کښې سعی کول د الله د حکم په تعمیل کښې سرګرمی او خپله غلامی ښکاره کول دی، او دارنګه د هاجرے د منډے ترړے یاد داشت دے چه هغے د الله دپاره څو مره قربانی ورکړے وه۔

ددے شعائرو متعلق درے اصول یادول پکار دی (۱) یو دا چه دا شعائر، الله او د هغه رسول مقرر کړیدی، بل هیچا ته دا حق حاصل نهٔ دے چه هغه د خپل طرف نه یو شے د دین د شعائرو او نخو نه اُوګرځوی، یا کوم شے چه په شعائرو کښې داخل دے، هغه د شعائرو د فهرست نه بهر کړی۔ په دین کښې دا قسم د ځان نه تصرفات د شرك او بدعت لارے کولاوه وی۔ تاریخ ګواه دے چه کومو قومونو د خپل طرف نه شعائر مقرر کړی، هغوی د شرك او بت پرستئ لارے کولاوے کړیدی۔

(۲) دویم دا چه لکه څنګه چه شعائر، الله مقرر کړیدی نو دغه شان په اسلام کښې ددے شعائرو حدود هم الله او رسول مقرر کړیدی، د کومے شعیرے د تعظیم چه کوم شکل په شریعت کښې مقرر شویدے، هغهٔ د هغه شعیرے د حقیقت د اظهار دپاره یواځینے شکل دے۔ په بله طریقه سره ددغه شعیرے حقیقت نهٔ راښکاره کیږی۔ که په بله طریقه سره اُوکړے شی نو د هغے نه د شرك او بدعت دروازے کولاویدے شی۔ مثلاً د حجر اسود دپاره شریعت ښکلول او لاس راخکل یا هغے طرف ته اشاره کول صرف په طواف کښې مقرر کړیدی که څوك د شعائر الله د تعظیم په جوش کښې راشی، او هغه کانړی ته سجده شروع کړی یا هغه ته نذر او منښتے پیش کړی، یا په هغه باندے ګولان خوارهٔ کړی یا بل یو حرکت اُوکړی نو پدے کارونو سره نهٔ یواځے دا چه د هغهٔ حقیقت نه بالکل وړاندے کیږی کوم چه پدے شعیره کښې پټ دے بلکه هغه به په شرك او بدعت کښې هم اخته کیږی۔

(۳) دریم دا چه پدے شعائرو کښې اصل مقصود هغه حقیقتونه دی کوم چه پدے کښې پټ دی۔

د هغه حقيقتونو د اظهار دپاره دا شعائر گويا كښې د قالب حيثيت لري. پدے وجه د ملت د ژوند دپاره د تهولو نه ډيره ضروري خبره دا ده چه د خلقو په زړونو او دماغو كښې دا حقيقت هميشه ژوندے او تازهٔ اُوساتلے شي. كه دا اهتمام ختم شي نو د دين اصل روح به اُوځي، صرف قالب به باقي پاتے كيږي او بيا به په آرام آرام سره د خلقو اصل توجه صرف په قالبونو باندے پاتے شي چه د هغے په نتيجه كښې به دين صرف د رسمونو يوه مجموعه پاتے شي.

دلته چه صفا او مروه ته شعائر الله وئيلے شويدي نو پدے سره مقصود يو طرف ته خو دا دے چه دا دواړه شعائر د جاهليت د گرد او غبار نه پاك كړے شي، او د ابراهيمي وراثت پورته كونكي امت دپاره بيرته د سر نه تازهٔ كړے شي. چه دلته به مشركانو شرك او بت پرستي كوله، ليكن اصل تاريخ دا دے چه دا د ابراهيم ﷺ د وخت نه د شعائر الله نه دي او ددے ترمينځ سعي او طواف د ابراهيم ﷺ د سعي او طواف يادگار دے ليكن مشركانو لكه څنگه چه د توحيد په مركز بيت الله كښې په سلگونو بتان اُودرولي، دغه شان دا شعائرئے هم په بت پرستئ سره ككړ كړل. اُوس دا ستاسو ذمه واري ده چه تاسو د گندگئ دا ډيران لرے كړئ او دا شعائر د سر نه تازهٔ كړئ او پدے كښې سعي او طواف صرف د الله دپاره خاص كړئ. او بل طرف ته يهوديانو چه پدے شعائرو باندے د تحريف او د كتمان كومه پرده اچولے وه لكه روستو آيت كښې راځي قرآن هغه پرده هم پورته كړه. څكه چه په تورات كښې دا ذكر په صراحت سره موجود وو چه ابراهيم ﷺ د خپل يوځوي قرباني د مروه په څوا كښې كړے وه، ليكن يهوديانو صرف پدے خيال سره ددے لفظ صحيح تلفظ بالكل ختم كړو چه په څهٔ طريقه سره دا مقام د مكے په ځائے په بيت المقدس كښې ثابت كړي، او دغه شان د آخري نبي د بعثت متعلق چه كومے پيشين گويانے په تورات كښې موجودے دي، هغه د اسماعيل د نسل په ځائے د اسحاق نسل طرف ته منتقل شي، نو قرآن دلته د مروه حواله وركولو سره دے نخے طرف ته گوته پورته كړه چه د خالص حسد او شرارت په بناء ددے د غائب كولو كوشش شوے وو. (تدبر قرآن).

﴿فَمَنْ حَجَّ الْبَيْتَ اَوِ اعْتَمَرَ﴾ **مناسبت** : مخكښې د صفا او مره تذكره اُوشوه، اُوس ددے ترمينځ د سعي حكم بيانوي، گويا كښې اصل دا شو : صفا مروه د الله د شعائرو نه دي نو پدے كښې سعي كوئ او دا حرام مهٔ گنړئ.

حج قصد ته وائي. او عمره زيارت ته وائي. او په شريعت كښې خاص عبادتونو ته وئيلے شي چه د بيت الله او د هغے د ماحول سره ئے تعلق دے.

﴿جُنَاحَ﴾ : د جيم په پيښ سره (گناه، تنكسيا او مواخذے (يعنى رانيولو) ته وئيلے شي.

﴿أَن يَطَّوَّفَ بِهِمَا﴾ (د طواف) نه مراد سعي ده ځکه دے کښې هم تلل راتلل دي. د طواف معنیٰ ده، ډیر تـلـل راتلل برابره ده کیر چاپیره د یو شي نه وي او که نهٔ وي. دے سعي ته ئے د طواف نوم ورکرے ځکه چه دا هم د کعبے نه د کیر چاپیره گرزیدو مشابه دے. دا سعي ئے د حج او عمرے سره مشروط کړه ددے نـه دا خبره راوځي چه دا د حج او عمرے د مجموعه نه یو جز دے، د هغوی نه جـدا ددے هیـڅ مستـقـل حیثیت نشته، نو پدے سره د مشرکانو د هغه رسمونه نفي اُوشوه چه هغوی ددے شعائرو په سلسله کښې د ځان نه زیاتي کړي وو چه د بتانو دپاره به ئے دا سعي کوله.

**د سعي حکم** : سعي په حج او عمره کښې واجب ده لیکن ددے الفاظو د ظاهر نه داسے معلومیږي چه په حج او عمره کښې سعي کول او نکول برابر دي مگر داسے نهٔ ده.

عروهٔ د عائشے رضی الله عنها نه (چه دا ئے ماسي (ترور) وه) سوال اُوکړو چه دے آیت نه خو ظاهر کښې معلومیږي چه سعي واجب نهٔ ده بلکه د سعي صرف اجازت دے ځکه چه معنیٰ دا ده چه گناهګار نهٔ دے که سعي کوي او که نهٔ.

۱ – جواب : عائشے ورته جواب ورکړو (بِئْسَمَا قُلْتَ يَا ابْنَ أُخْتِيْ) (اے خوریه ! خبره دے غلطه اُوکړه). که خبره دغه شان وے لکه څنګه چه تا اُووئیل نو بیا به الله داسے وئیلي وے (أَنْ لَّا يَطَّوَّفَ بِهِمَا) یعني په سعي نـهٔ کولو گناهګار نهٔ دے.او حال دا چه دلته خو وائي چه په سعي کولو بانـدے گنـاهګار نهٔ دے نو په سعي کولو چه گناهګار نهٔ شو نو سعي کول به یا واجب وي یا به مستحب، د نورو دلائلو نه معلومه ده چه سعي کول واجب دي.

۲ – دویـم جـواب دا چه (لَاجُنَاحَ) په جواب د وَهم کښې وئیلے شویدے ځکه چه مسلمانانو گمان کـولـو چـه د شرك د مشـابهت د وجه نه به دے کښې گناه وي، نو د هغے مطابق جواب ورکړے شو چـه گناه پکښې مهٔ ګنړئ او ضرور ئے کوئ، ستاسو عمل به ستاسو د نیت مطابق وي، پدے مقام کښې د بتـانو د موجودګئ په وجه اګرکه قباحت راغلے دے لیکن چونکه دا د حج د شعائرو نه الله مقرر کړیدي پدے وجه تاسو پدے کښې سعي کوئ، ددے په وجه ددے مقام قباحت ختمیږي.

په صحیح مسلم کښې د جابر بن عبد الله ﷺ روایت دے چه رسول الله ﷺ د بیت الله د طواف نه روستـو د صـفا او مروه په مینځ کښې سعي اُوکړه او وے فرمایل :((سعي کوئ ځکه الله تعالیٰ په تاسو بـاندے سعي فرض کړیده)). (وَرَوَاهُ أَحْمَدُ وَابْنُ مَاجَه وَصَحَّحَهُ الْأَلْبَانِيُّ) او عـائشه رضی الله عنهـا فـرمـائـي : د صفا او مروه په مینځ کښې طواف د رسول الله ﷺ سنت دے، پدے وجه هیڅا دپاره ددے پریخودل جائز نهٔ دي. (صحیحین) (تیسیر الرحمن) ددے نـه مـعلومه شوه چه سعي د حج او د عمرے د ارکانو نه یو رکن دے. او د عامو علماؤ په نیز فرض ده.

**فائده :** د صفا او مروه په مينځ كښې سعى (منډه وهل) د هاجره (ام اسماعيل) عليها السلام د منډې وهلو يادګار دې، كله چه د هغې سره خوراك څكاك ختم شو او خپل ځوى ئې د تندې نه پريشانه اُوليدو، نو ډيرې پريشانئ په حالت كښې د الله مخې ته ئې عجز او انكسارى سره د صفا او مروه دواړو غرونو ترمينځ اُووه ځل منډې اُووهلې، دې دپاره چه څوك مددګار به وينى. نو د الله رحمت په جوش كښې راغلو او جبرئيل عليه السلام راغلو او په وزر وهلو سره ئې زمزم چينه راوخكله او د هغې درد او پريشانى ختمه شوه.

پدې وجه سعى كونكى له پكار دى چه په خپل زړه كښې الله ته د خپل ذلت او محتاجئ تصور اُوكړى، د خپلو ګناهونو په باره كښې معافى اُوغواړى، او دعا اُوكړى چه الله د هغه د زړه حالت بهتر جوړ كړى او د هغه عيبونه او نقصانونه لرې كړى.

بعض علماء وائى لكه چه مخكښې تير شو چه دا د ابراهيمى وراثت يادګار دې چه په مروه كښې ابراهيم عليه السلام په خپل ځوى اسماعيل قربانى وركړې وه. (تدبر قرآن)

﴿ وَمَنْ تَطَوَّعَ خَيْرًا ﴾ تطوع : د زړه په خوشحالئ سره يو نيك عمل كول، برابره ده فرض وى كه نفل. (خطيب شربينیؒ).

دا الفاظ ئې زيات كړل څكه چه په حج او عمره كښې ډير بنۀ عملونه كيږى، طوافونه، ذكرونه، استغفارونه، نفلونه او مسجد حرام كښې كيناستل دى. يا پدې سره د فرض حج او د عمرې د اداء كولو نه روستو نفلى حج او عمرې كولو ته ترغيب دې.

﴿ فَإِنَّ اللهَ شَاكِرٌ عَلِيمٌ ﴾ شاكر د الله په صفت كښې په ډيرو معنو دې :

(۱) اَلْمُجَازِىْ : بدله وركونكې دې، د انسان عمل بې بدلې نۀ پريږدى.

(۲) اَلْمُثِيْبُ عَلَى الْقَلِيْلِ بِالْكَثِيْرِ (ابن كثير) په لږ عمل باندې ډير اجر وركوى. نو د الله په نيز د عمل ډير قدر وى. پدې وجه حديث كښې دى : «د نيكيو نه هيڅ شے سپك مۀ ګڼړه اګركه د يو ورور مسلمان سره په كولاؤ تندى ملاؤ شې». (صحيح مسلم)

نو د شاكر معنىٰ ده قدردان ذات. د الله شكر دا دې چه د عمل قدر پيژنى. نو تا له هم پكار دى چه تۀ د عمل قدر اُوپيژنې. (۳) شاكر د شكر نه اخستے شويدې (الثناء الجميل) ته وائى، يعنى د بنده په نيك عمل باندې بنائسته ثنا او صفت ويونكے دې.

او د بنده شكر دا دې چه د الله نعمتونه اُومنى او د هغه بندګى اُوكړى. بنده هم شاكر دې او الله هم شاكر دې ليكن د الله شكر جدا او د بنده جدا دې.

| |
|---|
| إِنَّ الَّذِينَ يَكْتُمُونَ مَا أَنزَلْنَا مِنَ الْبَيِّنَٰتِ وَالْهُدَىٰ |
| یقیناً هغه کسان چه پټوی هغهٔ څه چه نازل کړی دی مونږ د ښکاره دلیلونو نه او د هدایت د خبرو نه، |
| مِن بَعْدِ مَا بَيَّنَّٰهُ لِلنَّاسِ فِي الْكِتَٰبِ أُولَٰٓئِكَ |
| پس د هغې نه چه مونږ هغهٔ بیان کړی دی د خلقو دپاره په کتاب کښ، دغه کسان |
| يَلْعَنُهُمُ اللَّهُ وَيَلْعَنُهُمُ اللَّٰعِنُونَ ﴿۱۵۹﴾ |
| لعنت کوی په دوی باندے الله تعالیٰ او لعنت وائی په دوی لعنت ویونکی۔ |

**تفسیر:** دے آیت کښ هغه خلقو ته سخت وعید او رټنه ده چه د انبیاء او رسولانو په ذریعه رالیږلے شوے هدایت او ښکاره حکمونه او د دین مسئلے پټوی۔

دا آیت اګرکه د یهود او نصاراؤ په باره کښ نازل دے چه هغوی د نبی کریم ﷺ د صدق نخے پټے کړے وے۔ دارنګه د قبلے د بدلیدو مسئله ئے پټه کړے وه۔ او توحید ئے پټ کړے وو۔ لیکن ددے حکم عام دے، ځکه چه په قرآن او حدیث کښ د [اَلْعِبْرَةُ لِعُمُوْمِ اللَّفْظِ لَا لِخُصُوْصِ السَّبَبِ] قانون دے یعنی د قرآن او حدیث عام الفاظو له به اعتبار وی اګرکه په یو خاص سبب کښ نازل شوی وی) نو هر هغه شخص چه د الله د طرف نه د نازل شوی حق نخے پټوی، هغه پدے وعید کښ داخل دے، کتمانِ حق (د حق پټول) دومره غټ جرم دے چه داسے خلق الله تعالیٰ د خپل رحمت او قربت نه لرے کَوی، او د ټولے دنیا لعنتونه به په دوی باندے راپریوزی۔

نو آیت کښ د هر چا دپاره عموم دے۔ ددے آیت نه صحابه کرامؓ یریدلی دی او ځان سره ئے لګولے دے۔ ابو هریره ؓ به وئیل : [لَوْلَا آيَتَانِ أَنْزَلَهُمَا اللَّهُ فِيْ كِتَابِهِ مَا حَدَّثْتُ شَيْئًا أَبَدًا]

(که په قرآن کښ الله تعالیٰ دا دوه آیتونه نهٔ وے نازل کړی نو ما به تاسو ته هیڅ حدیث هیڅ کله نهٔ وے بیان کړے، یو دا آیت دے او دویم ﴿وَإِذْ أَخَذَ اللَّهُ مِيثَاقَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ لَتُبَيِّنُنَّهُ لِلنَّاسِ وَلَا تَكْتُمُونَهُ ......﴾ (آل عمران ۱۸۷)۔

یعنی مونږ احادیث ځکه بیانوو چه ددے آیتونو نه مو خطره ده چه په دے وعید کښ داخل نهٔ شو۔ که دا آیتونه نهٔ وے نو مونږ به هیڅ حدیث نهٔ بیانولے۔ (بخاری)۔

او عثمان ؓ هم حدیث بیان کړو او بیائے اُوفرمایل : که دا آیت نهٔ وے نو ما به تاسو ته دا حدیث نهٔ وے بیان کړے۔ (بخاری) نو ابو هریره او عثمانؓ دا آیت د احادیثو کتمان (پټولو) ته هم شاملوی۔

او انسان حق ولے پټوی؟ یا د حسد یا د مداهنت یا د خلقو د یرے یا د مال د لالچ د وجه نه لکه

مخکښ ددې تفسیر په اول جلد آیت (۴۲) ص (۴۲۲) کښې ئې اُوګوره. که یو انسان پوره د حق بیانونکې شي نو خپل دوستان هم ورسره وخت نشي تیرولې.
حدیث کښې دي: «الله دې په عمر رحم اُوکړي، حق ګوئي دهٔ لره څوك دوست نهٔ دې پریخې». (ترمذي والبزار والحاکم).
۱- ددې آیت ربط او مناسبت د مخکښې سره دې چه یهودیانو د قبلې مسئله پټه کړې وه نو اُوس ورته په کتمان حق زجر ورکوي. ۲- مخکښې شاکر علیم ذکر شو چه الله د خیر په کار باندې اجر ورکوي او که څوك خیر او دین پټوي، او نهٔ ئې بیانوي نو الله په هغه پوهه دې او سزا به ورکوي نو اُوس د حق او خیر پټونکو سزا بیانیږي. (قاسمي)
۳- : یهودو د رسول الله ﷺ د حقانیت نخې هم پټې کړې وو:
﴿إِنَّ الَّذِينَ يَكْتُمُونَ مَا أَنزَلْنَا مِنَ الْبَيِّنَاتِ وَالْهُدَىٰ﴾
کتمان دې ته وائي چه د دین یوې مسئلې ښکاره کولو خلق ته محتاج وي او انسان ئې ترې پټه کړي (خازن).
(البینات) ددې نه مراد تورات او انجیل او قرآن دې. او الهدی احادیث دي.
۲- البینات: ښکاره دلیلونه او آیتونه چه نازل شوي وي او (الهدیٰ) هغه فوائد دي چه ددې نه معلومیږي. ۳- ظاهر دا ده چه بینات او هدی دواړه یو شې دې. ځکه هره بینه هدایت دې لیکن دواړه صفتونه ئې ذکر کړل، دې دپاره چه د هغوي په رد کښې پوره مبالغه او تاکید اُوکړې شي.
او دا آیت دلیل دې چه کوم شې بینات او هُدیٰ نهٔ وي، د هغې کتمان جائز دې چه د خلقو ورته ضرورت نهٔ وي او خاصکر چه کله یره وي لکه ابو هریره رضی الله عنه نه هغه احادیث دیرې په وخت نهٔ بیانول چه هغې کښې سیاسي خبرې وې. (قرطبي) یا عامې قیصې او واقعات.
بعض مفسرین وائي: دلته د بینات او هدی نه هغه عام تعلیمات هم مراد دي چه یهودیانو به د هغې د پټ ساتلو کوشش کولو، لیکن په خاص طور سره هغه نخې هم مراد دي چه په تورات کښې الله تعالیٰ ددې دپاره ښکاره کړې وې چه د هغې په مدد سره یهودیان د آخري نبي په باره کښې رهنمائي حاصله کړي، لیکن یهودیانو د هغې نه د فائدې اخستو په ځائې هغه پټې اُوساتلې.
﴿مِن بَعْدِ مَا بَيَّنَّاهُ لِلنَّاسِ فِي الْكِتَابِ﴾ (ه) ضمیر (مَا أَنزَلْنَا) ته راجع دې او الکتاب جنس دې تولو منزّل کتابونو ته شامل دې. یعني داسې واضحه خبرې دي چه هیڅ قسم تلبیس او اشتباه پکښې نشته، او بیا ئې هم دوي پټوي نو غټ ظالمان دي.
او د (بَيَّنَّاهُ) نه معلومه شوه چه که یو انسان په یوه خبره ښهٔ پوهه نهٔ شي نو د هغې په پټولو

بانډے دا مُجرم نهٔ دے۔

﴿لِلنَّاسِ﴾ يعنى د خلقو د فائدے خبرے دی۔ نو که يوه داسے خبره بيانه نهٔ کړے شى چه په هغې کښ د خلقو ښکاره فائده نهٔ وى نو هم انسان گناهگار نهٔ دے۔

﴿يَلْعَنُهُمُ﴾ د لعنت معنیٰ ده د الله د رحمت نه او د هر خير نه جداوالے، او دا بيا مستلزم دے د الله عذاب او غضب لره۔ او د بندگانو لعنت ښيرے او بد رد او د هغه مخالفت او دشمنى او په هغه بانډے غصه کول او د هغه نه براء ت کول دی۔ (قاسمیؒ)۔

﴿اللّٰعِنُونَ﴾ نه مراد ملائك، نيکان انسانان او جنات دی۔ او دارنگه خپل ملگرى به هم پرے لعنت وائى چه زمونږ نه مو حق پټ ساتلے وو لکه سورة عنکبوت (۲۹) کښ راځى۔ ﴿ثُمَّ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ يَكْفُرُ بَعْضُكُمْ بِبَعْضٍ وَّيَلْعَنُ بَعْضُكُمْ بَعْضًا﴾ ۔او د مخلوق د طرف نه لعنت په معنیٰ د ښيرو سره وى۔ يعنى دوى ورته ښيرے کوى چه اے الله ! دا خلق د خپل رحمت نه جدا کړه۔ او دا لعنت به په دنيا کښ هم وى او په آخرت کښ به ئے پرے هم وائى۔

نو يهوديان د امامت د لوئى نعمت او منصب نه محروم شو او په لويه خوارئ او ذلت او سزا کښ اخته شو۔

په معين شخص بانډے د لعنت وئيلو مسئله په آيت (۸۹) کښ اُوگوره۔

حافظ ابن کثيرؒ ليکى : د عالِم دپاره چه کله حق بيانوى په اُوبو کښ ماهيان او په هوا کښ مارغان بخښنه غواړى نو دغه شان په حق پټونکى عالِم بانډے هغوى لعنت هم وائى۔ او دا آيت دليل دے چه حق پټونکى عالِم سره به تعلقات نشى ساتلے۔

**فائده** : ددے آيت او د روستو آيت (۱۷۵) فرق دا دے چه هلته کتمان د دنيا د وجه نه دے او دلته کتمان د حق دے فقط۔ دويم : هلته د توحيد او حلال او حرامو کتمان دے او دلته صرف د قبلے د مسئلے کتمان دے۔ نو ځکه هلته تاکيد زيات دے او دلته کم دے۔

| اِلَّا الَّذِيْنَ تَابُوْا وَاَصْلَحُوْا وَبَيَّنُوْا |
|---|
| مگر هغه کسان چه توبه ئے ويستله او خپل عمل ئے برابر کړو، او بيان ئے کړه (هغه خبره چه کومه ئے پټه کړے وه) |
| فَاُولٰٓئِكَ اَتُوْبُ عَلَيْهِمْ وَاَنَا التَّوَّابُ الرَّحِيْمُ ﴿۱۶۰﴾ |
| نو دغه کسان زهٔ مهربانى کوم په دوى بانډے او زه ډير توبه قبلونکے، مهربان يم۔ |

**تفسير** : پدے آيت کښ توبے ته ترغيب ورکوى چه څوك توبه اُوباسى نو الله ئے قبلوى، او

هغه خلق ذكر كوي چه د لعنت نه به محفوظ وي. او پدے كښ توبه د عالِم ذكر ده چه هغے كښ درے شرطونه دي. (۱) في الحال به توبه اُوباسي، (۲) او د عمل اصلاح اُوكړي، په تابعدارئ د رسول الله ﷺ كښ نيك اعمال شروع كړي.

(۳) او د حق كومه خبره ئے چه پټه كړي وي، هغه خلقو ته بيان كړي.

او دامي يا د هغه عالِم توبه چه د حق كتمان ئے نۀ وي كړے د عامو گناهونو نه، نو هغے دپاره دوه شرطونه سورة آل‌عمران (۸۹) آيت كښ ذكر دي او د منافق د توبے څلور شرطونه سورة نساء (۱٤٦) آيت كښ ذكر دي.

د توبے متعلق پوره تفصيل مخكښ ددے سورة آيت (۳۷) كښ اُوگوره. بيا سورة النساء وليست التوبة آيت (۱۸) اُوگوره.

﴿ وَبَيَّنُوْا ﴾ عالِم به د خلقو مخكښ پټ كړي مسائل بيان كړي، او دا بيان به كله په خولے سره وي، منبر ته به اُوخيژي. څكه چه ددۀ نه شر خور شويدے او كله به په كتاب كښ اُوليكي چه ما دا مسئلے خطاء ليكلي دي يا مے پټے كړيدي.

نو: ﴿ فَاُولٰٓئِكَ اَتُوْبُ عَلَيْهِمْ ﴾ توبه په معنىٰ د رجوع سره ده يعني زۀ راواپس كيږم دوي ته په توبه قبلولو او رحمت كولو سره.

﴿ وَاَنَا التَّوَّابُ ﴾ تواب هغه ذات ته وائي چه بار بار توبه قبلوي او انسان ته د توبے توفيق وركوي. ددے تشريح هم په آيت (۳۷) كښ اُوگوره.

| |
|---|
| اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَمَاتُوْا وَهُمْ كُفَّارٌ اُولٰٓئِكَ |
| يقيناً هغه كسان چه كفر ئے اُوكړو او مړۀ شو په داسے حال كښ چه دوي كافر وي، دغه كسان |
| عَلَيْهِمْ لَعْنَةُ اللّٰهِ وَالْمَلٰٓئِكَةِ وَالنَّاسِ اَجْمَعِيْنَ ﴿۱٦۱﴾ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا |
| په دوي لعنت د الله دے او د ملائكو او د خلقو تولو، هميشه به وي په دے (لعنت) كښ |
| لَا يُخَفَّفُ عَنْهُمُ الْعَذَابُ وَلَا هُمْ يُنْظَرُوْنَ ﴿۱٦۲﴾ |
| سپك به نۀ كړے شي د دوي نه عذاب او نۀ به دوي له مهلت وركړے شي. |

**تفسير**: اُوس داسے خلقو ته د آخرت يره وركوي چه حق ئے پټ كړيدے او توبه ئے نۀ ده وِستلے.

﴿ اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا ﴾ د كفر نه مراد كفر دے په حق پټولو سره.

﴿وَهُمْ كُفَّارٌ﴾ يعنى تر مرګه پورې ئې حق پټ ساتلې دے او توبه ئې نۀ ده ويستلې۔ يا عام كفر مراد دے۔او همدا ظاهره ده ځکه چه لفظ عام دے، كتمان هم پکښې داخليږي۔
ددے آيت او د مخكنى آيت فرق دا دے ۱- چه مخکښې آيت د حق د کاتمينو (پټونکو) په باره کښې وو او دے آيت کښې عام كفار مراد دى۔
۲- يا هغه کاتمين د حق وو خو لعنت پرے په دنيا کښې مراد وو او دلته هم کاتمين د حق مراد دى او لعنت نه د آخرت لعنت مراد دے۔
﴿وَالنَّاسِ﴾ يعنى كافران او مسلمانان ټول به لعنتونه وائى، دارنګه تابعدار به پرے لعنتونه وائى لکه سورة الاعراف (۳۷) او سورة العنكبوت کښې دى۔ دلته ئې د الله د لعنت سره د ملائکو او د ټولو خلقو لعنت ذكر كړو دا د مخکنى آيت (اللاعنون) تفصيل دے۔
﴿وَلَا هُمْ يُنْظَرُوْنَ﴾ **د انتظار مصداقات :**
۱- دا يا د (نَظِرَةٌ) نه دے يعنى مهلت به ورته نۀ ملاويږي بلکه سمدست به په عذاب باندے اخته كيږي كله چه قبر ته لاړ شي يا آخرت ته لاړشي۔
نو د مهلت نه مراد د عذاب روستو کول شو۔ ۲- يا د توبے دپاره به مهلت نشى وركولے۔
۳- يا د عذر پيش کولو او دنيا ته د واپس کيدو دپاره به مهلت نۀ وركړے كيږي۔
٤- يا مهلت معنىٰ دا چه څه ورځے ورله چهټى وركړى۔ بغير د عذاب نه ئې پريدى۔
۵- يا د نَظَر نه ماخوذ دے يعنى د رحمت په نظر به ورته نشى کتلے۔ نو څلور قسمه عذابونه شو۔ لعنت، او په هغے کښې هميشه اوسيدل او عذاب نۀ سپکيدل او مهلت نۀ وركول۔

| وَاِلٰـهُكُمْ اِلٰـهٌ وَّاحِدٌ لَآاِلٰـهَ اِلَّا هُوَ |
|---|
| او لائق د بندګئ ستاسو يو اِلٰه (معبود) دے، نشته حقدار د بندګئ سوئ د هغه نه، |
| الرَّحْمٰنُ الرَّحِيْمُ ﴿۱۶۳﴾ |
| بے حده مهربان، هميشه رحم کونکے دے۔ |

**تفسير:** ددے نه روستو الله خپل توحيد بيانوى چه اے خلقو الله اوپيژنئ او ايمان والو ته دا عقيده سپارى چه دا كلكه راونيسئ او خلقو ته ئې راښکاره کړئ۔ او دا مهمه مسئله ده۔
مخکښې ئې د قبلے مسئله او د صفا مروه بيان كړه او مينځ کښې ئې دا مسئله بيان كړه چه څوك حق پټوى هغه سره به زۀ ګورم، نو اوس فرمائى چه يوه ضرورى مسئله چه د هغے بيان ضرورى

دے، هغه مسئله د توحید ده، د الله د الوهیت او د هغه د معرفت ده. چه ددے بیان واجب دے. په هغے دلائل راوړی او صحیح ایمان ته دعوت دے. یعنی دا بیانوی چه الله به معبود گنړے او هغه به رب گنړے او د هغه سره به مینه کوے او که چا د هغه نه ماسوئ د نورو معبودانو سره مینه د عبادت اُوکړه نو په قیامت کښې به دهغوی نه برائت کوی. او هیڅ په کار به ئے نهٔ راځی. د یو رکوع نه بعد به نور تفصیل راځی.

مخکښې سره **مناسبت** ۱ – دا دے : [أَوَّلُ مَا يُحَرِّمُ كِتْمَانَهُ وَيَجِبُ إِظْهَارُهُ هُوَ التَّوْحِيْدُ]

(اول هغه شے چه د هغے پټول حرام او ښکاره کول ئے لازم دی، هغه توحید دے). یهودیانو توحید هم پټ کړے وو، بلکه خپله ئے د سخی عبادت کړے او بیت الشرق ته ئے مونځونه کړی نو دا مسئله به څهٔ بیانه کړی. (۲) دویم : ددے امت تربیت شروع دے نو اول تربیت په تحویل القبله اُوشو بیا په اتباع الرسول او بیا په ذکر او شکر بیا په صبر او مونځ بیا زجر په کتمان ورکړے شو نو اُوس تربیت په توحید الالوهیة والاسماء والصفات سره کوی.

﴿وَإِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ﴾ دا خطاب مسلمانانو، مشرکانو او یهودیانو ټولو ته عام دے.

اِلٰه هغه ذات ته وائی چه د هغه عبادت کیږی، د هغه سره مینه کیدے شی او هغه دپاره رکوع او سجده کیږی. مستحق د عبادت وی.

﴿لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ الرَّحْمَٰنُ الرَّحِيمُ﴾ کله یو انسان چا ته وائی چه صرف ما سره مینه کوه او حال دا چه بل هم د مینے لائق موجود وی نو الله د هغے نفی کوی چه هیڅ قسم لائق د بندگئ بل څوک نشته سوئ زما نه.

(الرحمن الرحیم) دا دلیل هم دے او زیرے هم دے. هغه لائق د عبادت ځکه دے چه رحمان رحیم دے. او هر کله چه بنده د الله عبادت اُوکړی نو څه به اُوشی نو الله فرمائی زهٔ رحمٰن او رحیم یم، رحمتونه به دریاندے اُوکړم.

او دا اشاره ده چه الله په تاسو باندے په بندگئ کښې مشقت نهٔ اچوی ځکه هغه رحیم دے. کله چه د انسان عقیده د توحید برابره شی نو ددهٔ اسلام ثابت شو.

**فائده** : دلته الله تعالیٰ د توحید دوه طرفونه په مثبت او منفی دوه شکلونو سره ذکر کړل دے دپاره چه د هیڅ قسم شك او شبهے دپاره څه گنجائش پاتے نهٔ شی.

او ددے توحید سره ئے د الله تعالیٰ دوه صفتونه د دوه علتونو په وجه ذکر کړیدی چه د هغه دوه علتونو د وجه نه عام انسانان شرك کوی. یو علت دا چه د شرك لوئی سبب او محرك د مشرکانو دا غلط تصور دے چه دوی د الله تعالیٰ د هر قسم شغل او عمل او د هر قسم تعلق نه د ارفع او بالاتر

کیدو تصور کړے دا اگر که د الله تعالیٰ د تنزیه او پاکئ تصور دے لیکن په بعض صورتونو کښې ددے نه دا فساد پیدا کیږی چه د الله تعالیٰ یواځے والے دومره لوئی کیږی چه د مخلوق سره د هغه تعلق بالکل ختمیږی او هغه ته رسیدل یا د مخلوق د معاملاتو سره د هغه تعلق ساتل د هغه د الوهیت د شان منافی گنړلے کیږی، دا تصور یو طرف ته په فطری طور سره په زړونو کښې یو قسم مایوسی او نا امیدی پیدا کوی او ددے نتیجه دا راوځی چه انسان د الله د نهٔ موندلو په صورت کښې د خپل ځان د تسلی او اطمینان دپاره واسطے او وسیلے تلاش کوی. گویا کښې الله تر ے ورك شوے وی او د هغه د موندلو دپاره مخلوق هغه ته واسطه جوړوی. قرآن د الله د معرفت او پیژندگلئ په لاره کښې ددے مغالطے د لرے کولو دپاره ځائے په ځائے دا کار کړے چه د الله د وحدانیت او پورته والی بیانولو سره سره د هغه داسے صفات هم ذکر کوی چه د مخلوق سره د هغه تعلق واضح کونکے وی، دے دپاره چه انسان د وسیلو او واسطو تلاش کولو په ځائے خپله د الله د رحمت لمن ونیسی او په هغے کښې د ځان پټولو کوشش اُوکړی. پدے وجه الله تعالیٰ دلته د وحدانیت ذکر کولو نه روستو دا ښکاره اُوفرمایل چه هغه رحمان او رحیم دے یعنی الله خو یکتا او یواځے دے لیکن د مخلوق سره ئے تعلق هم شته هغه رحمان رحیم دے هغه د خپل رحمت په جوش سره تاسو ته وجود درکړے او په خپل رحمت سره ستاسو تربیت کوی او د خپل دے رحمت دپاره ئے ستاسو دپاره د جزا او سزا ورځ مقرر کړے، نو بس تاسو د هغه دپاره ژوندی شئ او د هغه دپاره مړهٔ شئ او خپل تمام حاجات او اُمیدونه یواځے د هغه سره اُوتړئ.

دویم علت دا دے چه مشرکان او بت پرست قومونو همیشه قهر او غضب د الوهیت د ضروری لوازمو نه گنړلی دی، هغوی د کائناتو بادشاه په دنیاوی بادشاهانو قیاس کړے. هغوی اُولیدل چه په دنیا کښې د یو ے علاقے بادشاه دا تسلط او قدرت او جلال او جبروت لری چه د هغه خواله د هغه د مقربینو او درباریانو نه سوئ هیڅوك ورنشی هغه چه څوك غواړی او کله غواړی په دار باندے خیژولے شی نو کوم ذات چه د ټول جهان بادشاه دے د هغه د جلال او جبروت او د هغهٔ د قهر او غضب اندازه څوك کولے شی، پدے طریقه هغوی د الله تعالیٰ تصور د انتهائی خوفناك او دهشتناك هستئ په حیثیت سره اُوکړو او بیائے په خپل ذهن سره څه مقربین او درباریان ایجاد کړل او د هغوی عبادت ئے شروع کړو دے دپاره چه ددے هیبتناك الله د آفتونو نه ئے محفوظ کړی.

په آسمانی مذاهبو والو کښې داسے نهٔ وو لیکن د زمانے په تیریدو سره د هغوی عقیدے هم گنده شوے، پدے غلط تصور کښې یهودیان هم واقع شو چه په هغوی هم د الله تعالیٰ د جمالی صفاتو په نسبت د جلالی صفاتو رنگ غالب شو. د تورات د مطالعے نه معلومیږی چه

يهوديانو هم د الله تعالىٰ د قهر او جلال داستان دومره اُوږد کړے وو چه د هغے په مقابله کښې د الله د رحمن او رحيم کيدو تصور بالکل ډوب شوے وو۔
ددے اثر دا شو چه هغوی هم د مشرکانو په شان د الله د رحمت حاصلولو دپاره مقربين او سفارشيانو ته محتاج شو او ددے مقصد دپاره ئے خپل هغه بزرګان او مشران وسيله اُوګرځوله چه د هغوی په نيز د هغوی تقدس او تقرب موجود وو۔ او بيا په آرام آرام سره اسرائيل خاندان ئے د الله تعالىٰ په خوښو او محبوبانو کښې داخل کړو، او غير بنی اسرائيل د الله د قهر او غضب دپاره پاتے شو۔ په دے آيت کښې چونکه د توحيد دا امانت د بنی اسرائيلو نه واپس اخستو سره دے امت مسلمه ته حواله کيږی پدے وجه دا ضروری شوه چه د الله د رحمانيت او رحيميت د صفاتو نه پرده پورته کړے شی کومه چه د مشرکانو په تقليد کښې يهوديانو په هغے باندے اچولے وه دے دپاره چه دا امت د الله د صفاتو په باب کښې هغه اعتدال طرفته راشی کوم چه د دوی د امت وسط کيدلو په وجه د دوی خصوصيت وو او پدے طريقه د شرك د فتنو دروازه بنده شی۔ (تدبر قرآن)۔
نو ثابته شوه چه الله يواځے ذات دے او رحمن رحيم دے نو ددے ښکلے ذات بندګی تاسو له پکار ده، دا دعویٰ شوه چه زمونږ معبود يو دے نو الله تعالىٰ پدے اته دلائل راوړی او ديته عقلی دلائل وائی او دا دلائل نعمتونه هم دی او دلائل هم، مسئله هم پرے ثابتيږی او ذهن هم پرے کولاويږی، ډيرے فائدے پکښې وی۔ او د الله د وجود دلائل هم دی، د هغه د قدرت او د علم دلائل هم دی۔ لکه (۲۲) آيت اُوګوره۔

| |
|---|
| إِنَّ فِي خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ وَاخْتِلَافِ الَّيْلِ وَالنَّهَارِ وَالْفُلْكِ الَّتِي تَجْرِي |
| بيشکه په پيدائش د آسمانونو او د زمکه کښې او په بدليدو د شپه او ورځ کښې او په هغه کِشتو کښې چه روانے وی |
| فِي الْبَحْرِ بِمَا يَنْفَعُ النَّاسَ وَمَآ أَنْزَلَ اللّٰهُ مِنَ السَّمَآءِ مِنْ مَّآءٍ |
| په درياب کښې په دے وجه چه فائده ورکوی خلقو ته، او په هغه کښې چه راليږلی دی الله د برَه نه څهٔ اُوبه، |
| فَأَحْيَا بِهِ الْأَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا وَبَثَّ فِيهَا مِنْ كُلِّ دَآبَّةٍ |
| پس راژوندئ کړی په هغے سره زمکه پس د اُوچوالی نه، او خوارهٔ کړی دی په ديکښې هرقسمه ځناور |
| وَتَصْرِيفِ الرِّيٰحِ وَالسَّحَابِ الْمُسَخَّرِ بَيْنَ السَّمَآءِ وَالْأَرْضِ |
| او په اړولو راړولو د هواګانو کښې او په هغه وريځو کښې چه تابع کړے شوی دی په مينځ د آسمان او د زمکه کښې |

﴿ لَاٰیٰتٍ لِّقَوْمٍ یَّعْقِلُوْنَ ﴿١٦٤﴾ ﴾

(پدې ټولو څیزونو کښې) خامخا ډیرې نخې (د توحید) دی د هغه خلقو دپاره چه عقل لري۔

**تفسیر** : اُوس پدې کښې د توحید په اثبات اته (۸) دلائل راوړي او دا عقلي دلائل دي او پدې کښې توحید ربوبیت دے او مخکښې (په آیت (۲۲) کښې) مونږ وئیلي وو چه توحید ربوبیت سره توحید اُلوهیت لازم دے یعنی هرکله چه دا کارونه الله کوي نو لائق د عبادت هم صرف هغه دے۔ او پدې دلائلو کښې د الله معرفت هم راځي۔ او مشرکانو هم وئیلي وو چه دا خو دعوه شوه چه لائق د عبادت صرف الله دے، او بل حقدار د بندګئ د الله نه سوئ نشته نو پدې باندے دلیل څه دے؟ نو دا آیت نازل شو۔

﴿ إِنَّ فِیْ خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَاخْتِلَافِ الَّیْلِ وَالنَّهَارِ ﴾ نو پدې کښې الله تعالیٰ انسان ته د فکر دعوت ورکړے چه لږ دے نشاناتو کښې خو فکر اُوکړه، آیا دا د الله د وجود او د هغه په قادر مطلق کیدو باندے دلائل نهٔ دي؟ د آسمان اُوچتوالے، د هغې فراخي، بے ستنو اُودرول، ښائسته رنګ ورکول او عیب او نقصان په هغې کښې نهٔ راتلل، او د راپریوتو او د شیطانانو نه د محفوظ ساتل او د ملائکو مسکن کیدل او په هغې کښې د نمر او د سپوږمئ او د ستورو حالات او دارنګه د زمکے خورول، د هغې د بسترے په شان هموار کول، نهٔ سخته ده نهٔ نرمه ده۔ او د هغې فراخوالے او په هغې کښې اُونے، میوه جات، غرونه، نهرونه، دریابونه او معدنیات، لارے او سړکونه راویستل۔

د آسمان او زمکے د پیدائش نه مراد ددے هغه پیدائش هم دے چه پدے سره د الله تعالیٰ عظیم قدرت واضحه کیږي، ددے هغه جوړخت هم دے چه په هغې سره ددے په بے مثاله کاریګرئ او حیرانتیا کښې اچونکې حکمت باندے ګواهي کیږي، ددے هغه فائدے رَسول هم دي چه په هغې سره د خالق رحمانیت او رحیمیت او ربوبیت ثابتیږي، هغه مقصدیت هم دے چه ګواهي کوي چه د دومره حکمتونو ډکه کارخانه عبث او بے مقصده نهٔ ده بلکه ددے نه روستو یو لوئی مقصد دے چه د هغې د راښکاره کیدو دپاره یوه ورځ مقرر ده، او ددے هغه موافقت او سازګاري هم ده چه ثابتوي چه آسمان او زمکه دواړه د یو خالق په اراده سره راښکاره شویدي او د هغه په حکم سره چلیږي۔ (تدبر)

﴿ وَاخْتِلَافِ الَّیْلِ ﴾ د شپے او ورځے اختلاف په یو بل پسے تلل راتلل، په تیارهٔ او په رڼرا کښې، په زیاتیدو او کمیدو کښې، په سپینوالے او تورووالي کښې، د شپے خوبونه او آرام کول او د ورځے کاروبارونه کول۔ او په څلیریشت ګینټو کښې یو بل پسے راتلل۔ او په بعض علاقو کښې درے

میاشتے ورځ وی۔

﴿ وَالْفُلْكِ الَّتِيْ تَجْرِيْ فِي الْبَحْرِ ﴾ یعنی کشتو کښې هم د الله تعالیٰ د قدرت ډیرے نخے دی چه کشتئ درونـد لـرګـے دے اُوګوره خلق پکښې ناست وی او درياب ئے نهٔ ډوبوی۔ د انسانانو د فائدو دپاره ګرځی، خلق په کښې په دریاب پوریوزی، ښکار کوی، ملغلرے او لؤلؤ او مرجان او قیمتی کانړی د دریابونو نه پرے راوباسی، دریاب ډیر قدرت لری، په هغے کښې لوئی لوئی حیوانات وی لیکن الله تعالیٰ د کشتئ حفاظت کوی۔

﴿ بِمَا يَنْفَعُ النَّاسَ ﴾ ددے نه مراد د تجارت او معیشت هغه سامان دے چه دا کشتئ ئے وړی راوړی او د هغے په وجه په معاشرت او معیشت کښې فراخی راځی۔

پدے کښې اشاره ده چه په دریاب کښې سفر کول د تجارت او عبادت د فائدے نه غیر نه منع دی۔ لکه حدیث کښې د هغے نه منع راغلے ده۔ (بِمَا) (۱) مَا موصوله اسمیه ده او باء د حال دپاره ده (اَیْ تَجْرِیْ مَصْحُوْبَةً بِالْاَعْيَانِ الَّتِيْ تَنْفَعُ النَّاسَ)۔ دا کشتئ روانی وی په داسے حال کښې چه هغه څیزونه ورسره ملګری وی چه خلقو ته فائده ورکوی۔

(۲) یا ما مصدریه ده او باء سببیه حرفیه ده،اَیْ تَجْرِیْ بِسَبَبِ نَفْعِ النَّاسِ فِي التِّجَارَةِ وَغَيْرِهَا) روانی وی په سبب د فائدو د خلقو په تجارت وغیره کښې۔ (اللباب)

﴿ وَمَا اَنْزَلَ اللهُ مِنَ السَّمَاءِ مِنْ مَّاءٍ ﴾ هوا راوالوزی، هغه یخه شی، د هغے نه وریځ پیدا شی او په انسانانو باندے باران اُوشی، د هغوی حیوانات، پتی پرے خړوبه شی۔ او بیا ئے الله په یو ځل نهٔ راپریـدی بلکه تقسیم ئے کړی د چاڼړ په شان، که په یو ایز راشی نو انسانان به تباه کړی او دے حکمت ته اُوګوره، اُوبه ثقیل (درونډ) شے دے د دومره لرے ځائے نه راخلاصے شی لیکن انسان د باران لاندے روان وی او هغه ئے نهٔ خوږوی۔ نو پدے اُوبو سره انسانان قسماقسم فائدے اخلی، طهارت پرے حاصلوی، جامے پرے وینځی، ګندونه پرے صفا کوی۔

﴿ فَاَحْيَا بِهِ الْاَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا ﴾ زمکه اُوچه وی، باران اُوشی نو ګلونه، چمنونه بنانسته شی۔ میوے او غلے او طعامونه او ګیا هګانے او بوټی راپیدا شی۔

﴿ وَبَثَّ فِيهَا مِنْ كُلِّ دَابَّةٍ ﴾

دا په (فَاَحْيَا بِهِ الْاَرْضَ) عطف دے ځکه چه د اُوبو په وجه حیوانات هم ژوند تیره وی۔ که اُوبه نهٔ وی نو خلق به قیمتی حیوانات په معمولی قیمت خرڅوی۔

د دابه مشهور استعمال خو په زمکه ګرځیدونکی حیواناتو دپاره دے بلکه ددے نه ډیر ښکاره استعمال ئے د هغه حیواناتو دپاره کیږی چه په هغے باندے سورلی یا بار وړلے کیږی، لیکن د هر

ساه والا حيوان دپاره هم استعماليږي که څاروی وی او که مارغان بلکه پدے کښې انسانان هم داخليږي لکه بل آيت کښې دی:

﴿ وَلَوْ يُؤَاخِذُ اللّٰهُ النَّاسَ بِمَا كَسَبُوا مَا تَرَكَ عَلٰى ظَهْرِهَا مِنْ دَآبَّةٍ ﴾ (فاطر: ٤٥).

(که الله تعالیٰ خلقو لره د هغوی په گناهونو رانيولے نو د زمکے په شا به ئے هيڅ ساه والا حيوان نهٔ وے پريښے). دغه شان د سورة عنکبوت (٦٠) آيت کښې او د سورة هود (٦) آيت کښې دی. پدے آيتونو کښې ئے عامه معنیٰ ده.

﴿ وَتَصْرِيْفِ الرِّيَاحِ ﴾ دا مجرور دے په خَلْقِ السَّمٰوٰتِ باندے عطف دے. يعنی الله تعالیٰ هواگانے کله يو خوا اړوی کله بل خوا، کله نرمه وی او کله سخته. کله لړه وی او کله زياته او کله درميانه وی، بعض هواگانو سره بدبويانے ختموی او بعضے بوټی بلاربوی. بعض د رحمت وی او بعض د عذاب وی لکه بادِ دَبُوُر چه د مغرب د طرف نه رالوزی، عذابی هواء ده. عاديان پدے باندے هلاك شوی وو. بادِ صبا فائده منه هواء ده.

﴿ وَالسَّحَابِ الْمُسَخَّرِ بَيْنَ السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ ﴾ مختلف قسم وريځے پيدا کوی لکه سپينه، توره، سرهٔ، خړهٔ، نریٔ او غټه او الله تعالیٰ د درياب نونه راوباسی.

﴿ اَلْمُسَخَّرِ ﴾ اَيِ الْمُذَلَّلِ يعنی د الله د حکم تابع دی دا يا صفت د سحاب دے يا د رياح (هواگانو) او سحاب دواړو دے.

بعض وريځے وړاندے وی او بعض نزدے وی اکثر زمکے ته نزدے وی.

ددے آيت نه د الله تعالیٰ د توحيد او د قدرت دليل پدے طريقه سره راوبستلے کيږی چه پدے کښې الله تعالیٰ د اول نه تر آخره پورے متضاد او متقابل اجزاء او عناصر جمع کړيدی او د هغے بے مثاله پيدائش طرف ته ئے اشاره کړيده چه د آسمان سره زمکه، د شپے سره ئے ورځ، د کشتیٔ سره درياب، په ظاهر کښې چه گورے د يو بل ضدين دی ليکن بل طرف ته ددے کائناتو په آبادیٔ کښې د زوجينو په شان ربط او تعلق لری. که دا آسمان او ددے پرقيدونکی ستوری او نمر او سپوږمیٔ نهٔ وے نو زمونږ د زمکے ټول رونق او تازگی به ختمه وے بلکه دا ټوله هستی به نيشت شوے وے. دغه شان که دا زمکه نهٔ وے نو انسانانو به چرته ژوند تيرولے، د چا کور به معلوم وے؟، ددے په اطرافو کښې به څوك گرځيدلے شوے؟، او ددے نه به ئے حاجات څنگه پوره کولے شوے. ددے نهرونه، دا په باغونو او ميوو او بوټو باندے آبادول به د کوم ځائے نه وے؟.

پدے وجه الله تعالیٰ په قرآن کريم کښې خپل بندگان د آسمانونو او د زمکے پيدائش ته زيات متوجه کوی. دغه شان مونږ او زمونږ په شان نور حيوانات په ژوند کښې لکه څنگه چه د ورځے

گرمائش، رنړا او تازگئ او چکر ته محتاج دي، دغه شان د شپې نرمي، سکون او آرام، او خوب کولو تـه هم محتاج دي۔ پدې دوارو سره الله تعالیٰ دا کور آباد کړیدې۔ ورځ ئې د رزق د طلب او د کاروبار دپاره مقرر کړې او شپه ئې د آرام او راحت او عبادت او خپل مناجات دپاره مقرر کړې۔ او دا دواړه هیڅکله خپل کار نۀ پریدي او د الله د حکم نه نۀ روستو کیږي۔
دغـه شان دریاب تـه اُوگوره چه څومره خور او فراخه دې چه هیڅ کناره ئې نۀ ده معلومه او د هغې څـومره هیبتناکې چپې دي لیکن گوره چه ددې سرکشئ او طغیان باوجود په خپله سینه بانـدې زمـونږ د کشتیانو او زمونږ د جهازونو دپاره انتهائي هموار او صفا سرکونه اُوباسي، چه په هغې باندې زمونږ جهازونه شپه او ورځ منډې وهي او د تجارت او معیشت او د خوراکونو او څکاکـونـو او د عـلـوم او فـنـونـو هـر شي دپاره مشرق او مغرب یو بل سره ملاووي۔ دغه شان د آسـمـان نـه باران نازلوي او بیا پدې باران سره زمکه تازهٔ کوي۔ آسمان چرته دې او زمکه چرته۔ لیکن ددې وراندې والي سره سره په دوارو کښې څومره زور تعلق او پیوستون دې۔ په زمکه کښې څـومـره خزانې پټې دي لیکن دا ټولې خزانې تر هغه وخته پورې پټې وي چه تر څو پورې پرې باران نازل شوې نۀ وي۔
دغـه شـان د وریـځـو او هـواگانو تعلق دې۔ وریځې د خپل ځائې نه خوزیدې نشي ترڅو پورې چه هـوا هـغـې لـه دیـکـې ورکولو سره هغه اُونهٔ خوزوي، کله چه غواړي هغه غائبه وي او کله ئې په کـنـارو کـښې رابـنـکـاره کـوي۔ دا متـضـاد عـنـاصـر په یو ځائې راجمع کول ددې دنیا په باره کښې دا فیـصـلـه کـوي چه ددې دپاسـه یـو حـکیـم او مدبر ذات دې چه هغه دې لره حرکت ورکوي او دا مـخـتـلـف عناصر په یو خاص نظام او د یو مجموعي مقصد دپاره استعمالوي۔ دا حقیقت څو یو طرف تـه د شـرك ټـولـې دروازې بـنـدوي او بل طرف ته د دهریت او د ماده پرستئ د ټولو وسوسو جرړې اُوباسي۔ (التفسير الوسيط للسيد طنطاوي وتدبر قرآن)۔
﴿لَآيَاتٍ﴾ دا اسم د إِنَّ دې او ددې ټـولـو سره لـگـي يـعـنـي (پدې ټولو څیزونو او ددې په حالاتو کښې ډیرې نخې او ډیر مقاصد پراته دي، د الله د وجود او د الله د توحید نخې دي او د هغه د عِلم، د حکمت، دکمالاتو او د رحمت نخې دي ځکه دا ټول کارونه بغیر د کامل قدرت او کامل عِلم نه نۀ کیږي۔ بیا ددې منافعو ته الله تعالیٰ حاجت نۀ لري بلکه په خپل مخلوق باندې رحمت کول ئې غرض دې۔ نو دا عجیب ترتیب دلیل په حکمت دې۔ نو بس صرف دغه ذات د تعظیم او ادب او د محبت او عبادت لائق دې۔
﴿لِقَوْمٍ يَعْقِلُونَ﴾ چا کښې چه لږ عقل وي۔ نو هغه پدې باندې خپل مالك حقيقي معلومولې شي۔

| |
|---|
| وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّتَّخِذُ مِنْ دُوْنِ اللهِ اَنْدَادًا يُّحِبُّوْنَهُمْ كَحُبِّ |
| او بعض د خلقو نه هغهٔ څوك دي چه نيسي سوئ د الله نه شريكان۔ مينه كوي د هغوی سره په شان د مينې |
| اللهِ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْآ اَشَدُّ حُبًّا لِّلّٰهِ وَلَوْ يَرَى |
| د الله، او هغه كسان چه ايمان ئې راوړے دے ډير سخت دي په مينه كښې د الله سره، او كه چرته پو هيدے |
| الَّذِيْنَ ظَلَمُوْآ اِذْ يَرَوْنَ الْعَذَابَ اَنَّ الْقُوَّةَ لِلّٰهِ جَمِيْعًا |
| هغه كسان چه ظالمان دي كله چه اُووينې دوی عذاب لره پدے خبره چه بيشكه طاقت ټول الله لره دے |
| وَّاَنَّ اللهَ شَدِيْدُ الْعَذَابِ ﴿١٦٥﴾ |
| او بيشكه الله سخت عذاب والا دے۔ (نو دوی به شرك نهٔ وے كړے)۔ |

**تفسير:** اُوس الله دے آيت كښې رتنه وركوي هغه چا ته چه دومره دلائل پريدي او لار شي د بل چا بندگی شروع كړي۔ الله تعالىٰ د خپل وجود، د خپل قدرتِ مطلقه، د خپل توحيد او د خپل رحمت تخے ددے دپاره بيان كړے چه بنده صرف د هغهٔ عبادت اُوكړي، او صرف د هغهٔ سره محبت اُوكړي، او د هغهٔ په عبادت او د هغهٔ په محبت كښې هيڅوك شريك نهٔ كړي ليكن مشركان بيا هم د الله د عبادت او محبت په ځائے د بل چا عبادت كوي، او خپلو باطلو معبودانو سره داسے محبت كوي لكه چه د الله سره پكار دے پدے وجه د ايمان والو حال د دوی نه جدا دے، هغوی د الله سره هيڅ قسم شريكان نهٔ جوړوي، صرف د هغه عبادت كوي، په هغه باندے توكل كوي او د ژوند په ټولو كارونو كښې صرف د الله پورے پناه اخلي۔

نو پدے آيت كښې په محبت د غير الله او په شرك كولو سره رتنه وركوي۔ او ايمان والو ته دا ذمه واري سپاري چه د الله تعالىٰ سره به بے حده مينه كوي۔

**فائده:** حافظ ابن قيّم په «شرح المنازل» باب التوبه كښې فرمائي: شرك په دوه قسمه دے: شرك اكبر او شرك اصغر۔ شرك اكبر الله تعالىٰ بغير د توبے نه نهٔ معاف كوي، او هغه دا دے چه بنده يو څوك د الله تعالىٰ سره شريك جوړ كړي، او د هغه سره داسے محبت اُوكړي لكه د الله سره ئے چه كول پكار وي، او دا هغه شرك دے چه مشركانو به خپل باطل معبودان د الله تعالىٰ سره برابر گڼړل، او دا برابروالے په محبت او تعظيم او عبادت كښې وو لكه د عالَم د عامو مشركانو حال همدا دے، بلكه اكثر مشركان خو د الله تعالىٰ په مقابله كښې د خپلو معبودانو سره زيات محبت

کوی، او د هغوی په یادولو ډیر خوشحالیږی، که د هغوی د معبودانو یا د هغه مشائخو چه دوی ترے معبودان جوړ کړیدی، څوك په ادب او احترام سره نوم وانخلی نو دومره غصه کیږی چه هغومره د الله په بے ادبئ سره نوم اخستلو باندے نهٔ غصه کیږی، او د پړانګ او د سپی په شان غصه راښکاره کوی۔ او که څوك د الله تعالیٰ حدود پائیمال کوی نو د هغه نه غافل وی بلکه د لږ شان دنیاوی لالیچ په خاطر فوراً خوشحالیږی۔ آه۔

پدے آیت کښ هغه مشرکان او اهل کتاب مراد دی چه دوی خپل بتان، معبودان، باباګان، مُلیان، پیران او مشائخ د الله تعالیٰ سره په محبت، طاعت او تعظیم کښ شریکان جوړ کړیدی یعنی لکه څنګه چه د الله تعالیٰ سره مینه کیدے شی نو دوی ئے د خپلو معبودانو سره کوی، او لکه څنګه چه د الله تعالیٰ طاعت کیدے شی (طاعتِ مطلقه) نو دغه شان دا معبودان او پیران او مُلیان چه دے خلقو له څه حلال کړی هغه (بغیر د دلیل نه) حلال ګنړی او چه څهٔ ورله حرام کړی هغه حرام ګنړی، او د الله په شان تعظیم ئے کوی، سجدے ورته لګوی او سر ورته ټیټوی او د الله په شان رامدد شه ورته وائی۔ د هغه نوم بے اودسه نهٔ اخلی او د هغه نه په مدد نهٔ غوختلو غصه کیږی، او چه څوك د دوی عجز او کمزورتیا بیانوی نو هغوی باندے رد کوی چه دا اولیاء نهٔ منی۔ نو دلته په شرك فی المحبة والطاعة والتعظیم باندے رد دے۔ او داسے مشرکان په عالَم کښ ډیر کم بلکه په منزله د علم (نشت) دی چه هغوی خپل معبودان د الله تعالیٰ سره داسے برابر کړی چه معبودانو له ئے د الله ټول صفات ورکړی وی، لکه الله خالق دے او دوی وئیلی وی چه نهٔ، زمونږ باباګان او معبودان هم خالقان دی۔ بلکه عام شرك د مشرکانو دا په محبت، طاعت او تعظیم کښ دے۔

او دغسے شرك د نبی ﷺ په باره کښ هم ډیرو مقلدینو پیدا کړیدے چه د یو امام او شیخ خبره د الله تعالیٰ او د هغه د رسول د خبرے نه درنه ګنړی او د هغے ډیر تعظیم کوی، او د امام د خبرے په مقابله کښ د الله د رسول د حدیث نه شپاړس جوابونه کوی، د امام خبره خامخا اُوچتوی، او که حدیث هر څنګه شو، نو دا هم یو قسم شرك فی الطاعة دے۔ یعنی په طاعت او خبره منلو کښ شرك دے۔ دلته (وَمِنَ النَّاس) لفظ د تحقیر دپاره دے۔

﴿ اَنۡدَادًا﴾ ددے تفصیل په (۲۲) آیت کښ تیر شویدے۔

﴿ یُحِبُّوۡنَهُمۡ کَحُبِّ اللّٰهِ﴾ (۱) یوه معنیٰ دا ده چه د هغوی سره مینه کوی او د الله سره هم مینه کوی، څکه مشرکان هم کله کله د الله تعالیٰ عبادت او تعظیم کوی، او دعاګانے ترے غواړی۔ او معلومه شوه چه دا هم شرك دے چه د مخلوق سره د الله تعالیٰ په شان مینه اُوکړے شی یعنی د عبادت مینه۔ ۲- دویمه معنیٰ: (دوی مینه کوی د خپلو شریکانو سره په شان د مینے د مؤمنانو

د الله سره). لکه مؤمنان د الله سره مینه کوي نو دوی د خپلو معبودانو سره مینه کوي. اوله معنیٰ ظاهره ده ځکه چه د مشرکانو مینه خو د الله سره هم وي، لیکن کمزورې وي، هسې د دعوې په درجه کښې وي. نو دوی ته ئې چه مشرکان اُووئیل پدې وجه چه دوی د الله تعالیٰ سره هم مینه لرله، او د معبودانو سره ئې هم مینه لرله. شرك في المحبة ئې کولو. او اصل کښې شرك، د الله تعالیٰ نه سوا د بل چا سره د اُلوهیت او عبادت مینه کول دي.

ډیر خلق دا گمان کوي چه شرك به دیته وائي چه څوك بل خالق او بل رازق اُوګنړي، نه، بلکه د غیر الله سره محبت او د هغه تعظیم هم شرك دې، چه هغه ته سرتیټ کړي او د هغه سره د عبادت محبت اُوساتي، بیا نذر او منختې د هغه په نوم کوي نو دا هم سو چه شرك دې.

رسول الله ﷺ به دا بده گنړله چه هغه راشي او صحابه کرام هغه ته پاڅیږي. (صحیح بخاري)

ځکه داسې تعظیم د الله تعالیٰ پکار دې.

۲- او محبت په معنیٰ د اطاعت هم راځي خو دائې مجازي معنیٰ ده. تفسیر باللازم دې. (يَعْنِي يُطِيعُونَهُمْ كَطَاعَةِ اللهِ) د هغوی اطاعت کوي لکه د الله د اطاعت په شان او مؤمنان د الله تعالیٰ سخت اطاعت کونکي دي. د محبت تقاضا دا ده چه خبره به مني ځکه یو کس سره چه ډیر مینه وه، نو د هغه خبره به هم مني، خبره نۀ مني نو د مینې دعوه دروغجنه ده. او پدې مقام کښې مفسرینو د رابعه بصرية اشعار نقل کړیدي:

| | | |
|---|---|---|
| تَعْصِي الْإِلٰهَ وَأَنْتَ تُظْهِرُ حُبَّهُ | | هٰذَا لَعَمْرِيْ فِي الْقِيَاسِ بَدِيْعٌ |
| لَوْ كَانَ حُبُّكَ صَادِقًا لَأَطَعْتَهُ | | إِنَّ الْمُحِبَّ لِمَنْ يُحِبُّ مُطِيْعٌ |

۱: ته د الله مخالفت کوې او د هغه محبت ظاهروې، قسم په الله دا په عقل کښې ناشنا خبره ده. ۲: که چرې ستا محبت د خپل محبوب سره رشتینې وې نو تا به ضرور د هغه اطاعت کولے ځکه محبت کونکے د خپل محبوب اطاعت کونکے وي). شعب الایمان للبیهقي.

## فائده...... د محبت اقسام

هر محبت د غیر الله سره شرك نۀ دے بلکه محبت کښې اقسام دي:

(۱) یو محبت په معنیٰ د شفقت سره دے لکه دا د ماشومانو سره کولے شي، او دې محبت ته هم ترغیب راغلے دے. اقرع بن حابس اووئیل: زما لس بچي دي، ما یو هم نۀ دے خکل کړے. رسول الله ﷺ اُوفرمایل: آیا زۀ اختیار لرم کله چه الله ستا د زړۀ نه رحمت ویستلے دے. (بخاري)

رسول الله ﷺ به د ماشومانو سره ډیره مینه کوله.

(۲) دویم مَحَبَّةُ الْاُخُوَّةِ الدِّیْنِیَّة: د دین د وجه نه د چا سره محبت کول، او دا په اصل کښې د الله سره محبت دے لکه رسول الله ﷺ د ابوبکرؓ په باره کښې فرمائی : دا زما خلیل نهٔ دے لیکن زمونږ محبت د اسلام دے۔ (۳) دریم محبة د ښځے او خاوند ترمینځ دے، دا هم ضروری دے۔ دا دریواړه اقسام د غیر الله عبادت نهٔ دے۔ بلکه پداسے محبت باندے حکم راغلے دے، او دا د الله تعالیٰ د محبت تابع دی، دا به دالله تعالیٰ د محبت سره به برابر یا به د هغے نه زیات نهٔ وی۔

(٤) بل محبة الالوهیة دے یعنی د چا سره داسے مینه اُولری چه هغه ته عاجزی کوی، سر تیټ وی، سجده ورته کوی، هغه د خپل معبود په شان جوړ کړی، د هغه نه بغیر د اسبابو نه یره کوی او د هغه په نوم نذر او منختے کوی لکه مشرکان چه کله د یو ولی یا نبی قبر ته ورشی نو داسے ژړا ګانے کوی او سر ئے ورته تیټ کړے وی، په ډیر ادب او احترام ولاړوی، د هغه د قبر کاڼړی ښکلوی او په ځان پورے ئے راکاږی، د هغه د قبر نه طوافونه کوی، دا محبت که د غیر الله دپاره اُوشی نو سو چه شرك دے۔ د زیارة القبور په نوم ډیر خلق مشرکان شو۔ زیارة القبور کښې خو مقصد دا وو چه هغوی ته دعا اُوشی او آخرت انسان ته یاد شی، نهٔ دا چه د بابا نه څه غواړی او د هغه تعظیم په زړهٔ کښې راولی۔

﴿ وَالَّذِیْنَ آمَنُوْا اَشَدُّ حُبًّا لِلّٰهِ ﴾ (۱) یعنی مؤمنان ډیر محبت والا دی د مشرکانو نه د الله سره۔ ځکه مؤمن سرے یواځے مینه د الله سره لری او د مشرکانو محبت تقسیم دے، کله د الله سره او کله د یو بابا سره او کله د بل بابا سره مینه کوی۔ نو الله فرمائی چه مؤمنان به خالص د الله سره زیاته مینه لری او د مشرکانو په شان به نهٔ وی۔ (۲) دویمه معنیٰ : [وَالَّذِیْنَ آمَنُوْا اَشَدُّ حُبًّا لِلّٰهِ مِنْ حُبِّ الْمُشْرِکِیْنَ لِاٰلِهَتِهِمْ] (د مشرکانو د خپلو معبودانو سره دومره مینه نشته څنګه چه د مؤمنانو د الله سره ده) ځکه مؤمن چه د الله سره مینه لری نو د غرض د وجه نه ئے نهٔ لری چه ګنې زما حاجت پوره کوی، بلکه د هغه د کمال د وجه نه محبت کوی چه الله کامل ذات دے او دا د هغهٔ حق ګنړی۔ په خلاف د مشرکانو نه چه د هغوی محبت د خپلو معبودانو سره په لالچ بناء وی چه زما حاجت به پوره کړی۔ او چه کله پرِ هه شی چه ددهٔ سره زما حاجت نهٔ پوره کیږی نو بیا بل له ورځی چه هر څوك کوم بابا او زیارت ښائی نو بس منډه ورپسے وهی۔ او د الله محبت انسان ځان ته راکاږی ځکه ورسره ډیره مینه کیدے شی او مخلوق کښې خو هغه کمال نشته، نو ځکه د هغه سره پوره مینه نشی کیدے۔ او محبت هغه شے دے چه د بنده په عملونو کښې کمال پیدا کوی، کله چه محبت نهٔ وی نو عبادت کښې خوند نهٔ وی۔

## فائدة - اسباب المحبة

او د الله د محبت د پیدا کیدو ډیر اسباب دی : (۱) د فرائضو نه پس په نوافلو باندے الله تعالیٰ ته خان نزدے کول۔ لکه حدیث قدسی کښ راغلی دی۔ (۲) ذِكْرُهٗ تَعَالىٰ عَلىٰ كُلِّ حَالٍ، بِاللِّسَانِ وَالْقَلْبِ وَالْعَمَلِ وَالْحَالِ۔ (د الله یادول په هر حال کښ په ژبه، په زړهٔ، په عمل او په حالت جوړولو سره) او د الله د ډیر یادولو د وجه نه محبت پیدا کیږی۔

(۳) ...... اِيْثَارُ مُحَابِّهٖ عَلىٰ مُحَابِّكَ عِنْدَ غَلَبَاتِ الْهَوىٰ) ...... (په خپلو محبوب څیزونو باندے د الله محبوب څیزونه غوره کول کله چه خواهشات غلبه اُوکړی) یعنی ستا نفس غواړی چه زهٔ دا خوراك اُوکړم، لیکن شریعت وائی چه مهٔ ئے کوه، نو کله چه تهٔ منع شے، تا سره به د الله مینه پیدا شی، او ستا به د الله تعالیٰ سره پیدا شی۔

(٤) ...... مُطَالَعَةُ الْقَلْبِ فِيْ اَسْمَائِهٖ وَصِفَاتِهٖ ...... (د الله تعالیٰ په اسماء او صفاتو کښ سوچ کول)۔

(۵) ...... مُشَاهَدَةُ بِرِّهٖ وَاِحْسَانِهٖ) ...... د الله په نعمتونو او احساناتو کښ سوچ کول او هغه رایادول۔

(٦) ...... اِنْكِسَارُ الْقَلْبِ بِكُلِّيَّتِهٖ بَيْنَ يَدَيِ اللهِ]

د الله تعالیٰ مخے ته خپل زړهٔ ماتول او پوره عاجزی ښکاره کول۔

۷- اَلْخَلْوَةُ بِهٖ: ...... د الله د نزول په وخت د الله تعالیٰ سره خلوت کول۔

(یعنی د شپے په آخری حصه کښ)۔

(۸) ...... مُجَالَسَةُ الْمُحِبِّيْنَ وَالْتِقَاطُ اَطَايِبِ كَلَامِهِمْ ...... د مخلص محبت کونکو سره کیناستل او د هغوی مزیدار کلام راخستل)۔

(۹) ...... مُبَاعَدَةُ كُلِّ سَبَبٍ يَحُوْلُ بَيْنَ اللهِ وَبَيْنَ الْقَلْبِ)

(د هر هغه سبب نه ځان جدا کره چه د الله تعالیٰ او ستا د زړهٔ په مینځ کښ پرده کیږی)۔

(۱۰) ...... تَدَبُّرُ الْقُرْآنِ۔ (قرآن کښ سوچ او فکر کول)۔

(۱۱) اِتِّبَاعُ السُّنَّةِ النَّبَوِيَّةِ۔ (۱۲) الادعیة۔ ددے دپاره الفوائد جلد (۱) اُوګوره۔

﴿ وَلَوْ يَرَى الَّذِيْنَ ظَلَمُوْٓا ﴾ اُوس الله تعالیٰ دوی ته تخویف ورکوی چه دا ډیر لوئی ظالمان دی چه د معبودانو سره داسے مینه کوی لکه د الله تعالیٰ په شان۔ نو که دوی د الله تعالیٰ قوت او سخت عذاب منلے نو دوی به شرك نهٔ کولے۔ هله به ئے اُومنی چه کله ئے الله تعالیٰ راګیر کړی، لیکن بیا به علم دوی ته فائده ورنکړی۔

بیا پدے آیت کښ دوه تفسیره دی : (۱) - لو یری : رؤیة په دوه قسمه دے : ۱- یو رؤیة د سترګو لیدو ته وائی نو دا یو فاعل او یو مفعول غواړی نو (اَلَّذِيْنَ ظَلَمُوْٓا) ئے فاعل شو او مفعول ئے پټ دے (حَالَ اَنْفُسِهِمْ) (یعنی حال د خپلو ځانونو) او ﴿اِذْ يَرَوْنَ﴾ په (حَالَ) پورے متعلق دے۔

د﴿ اَنَّ الْقُوَّةَ لِلّٰهِ ﴾ نـه مخکښې به جزاء د «لَوْ» پټـه راوباسـے يعنی (لَعَلِمُوْا اَنَّ الْقُوَّةَ) نو اَنَّ الْقُوَّةَ به د (لَعَلِمُوْا) دپاره مفعول وی۔ او دا ليدل به په قيامت کښې مراد وی۔

معنیٰ دا شوه : که چرے ظالمانو د خپل ځان حالت اُوس په دنيا کښې ليدلے هغه حال کوم چه به دوی په قيامت کښې وينی چه هغه د عذاب حال دے۔ نو لَعَلِمُوْا اَنَّ الْقُوَّةَ لِلّٰهِ جَمِيْعًا ۔ (پدے حقيقت به پوهه شوی وے چه ټول قوت خو خاص د الله دپاره دے)۔ د هغه سره هيڅوك شريك او برابر نشته چه د هغـه سره برابر د محبت حقدار وی، بلکه يواځے د ټولو قوتونو اختيارمند او مالك دے۔ او هغـهٔ خپل ځان سره شريك جوړونکو ته سخت عذاب ورکونکے دے چه هيڅوك بچونکے به ئے نهٔ وی۔(او زمـونږ مـعبـودان په هيڅ قـادر نـهٔ دی، مونږ هسے هغوی ته په عبادت او رامدد شه ځانونه سترى کرى) يعنی بيا به ئے دماغ ځائے له راشی خو وخت به تير وی۔

۲- دويـم رؤية : پـه مـعـنـیٰ د عِلم سره دے او دا يو فاعل او دوه مفعوله غواړی نو (اَلَّذِيْنَ ظَلَمُوْا) فاعل او (اَنَّ الْقُوَّةَ) مـعطوف عليه او (وَاَنَّ اللهَ) مـعـطوف دواړه قائم دی په مقام د دوه مفعولونو او پـه آخـر کښې جزاء پټه ده يعنی (لَمَا اَشْرَكُوْا- وَلَمَا اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِ اللهِ اَنْدَادًا) او وضاحت ئے په ترجمه کښې تير شو۔ يعنی که پوهيدے ظالمان خلق پدے خبره چه ټول قوت او قدرت الله لره دے او پـدے خبـره چـه د الله عـذاب ډير سـخـت دے نو دوی به شرك نهٔ وے کړے او دوی به د الله نه بيوا شـريـکان نهٔ وے نيولی، او د غير الله سره به ئے محبت نهٔ ساتلے۔ ليکن مشرکانو سره د الله د قوت او قـدرت عـلـم نشته نو ځکه شرك کوی او غير ته متوجه کيږی، او د غير سره محبت کوی۔ او انسان نه چه ګناه کيږی نو ددے وجه هم دا وی چه د الله علم دده د ذهن نه غائب شی۔

| اِذْ تَبَرَّاَ الَّذِيْنَ اتُّبِعُوْا مِنَ الَّذِيْنَ اتَّبَعُوْا |
| --- |
| کله چه به جدا شی هغه کسان چه تابعداری ئے کړے شويده د هغه کسانو نه چه دهغوی تابعداری ئے کړيده |
| وَرَاَوُا الْعَذَابَ وَتَقَطَّعَتْ بِهِمُ الْاَسْبَابُ ﴿۱۶۶﴾ |
| او اُووينی دوی عذاب لره او اُويه شو کيږی د دوی ترمينځ تعلقات۔ |

**تفسير** : اُوس کـه څـوك اُووائـی چـه زمـونږ مـعـبودان شته هغه به راله سفارش کوی، د الله د عذاب نـه بـه مـو خـلاص کـړی نـو د هغوی برائت بيانوی چه ستاسو باباګان، پيران او معبودان وغيره بـه سـتـاسـو نـه بيزاری اُوکړی، او دا بيزاری به په هغه وخت کښې وی چه کله دوی عذاب وينـی يعنی په سختـه کښې به ئے نهٔ پکاريږی۔ ځکه (اِذْ) د (اِذْ يَرَوْنَ الْعَذَابَ) نه بدل دے۔ يعنی د

عذاب د لیدو وخت کښې به ترې دغه باطل آلهه براءت کوی او هیڅ فائده به نهٔ شی ورکولے۔

﴿إِذْ تَبَرَّأَ الَّذِينَ اتُّبِعُوا مِنَ الَّذِينَ اتَّبَعُوا﴾ یعنی مشران به د کشرانو نه جدا شی، لیډر او پیر او بابا به ترې جدا شی۔ بیا سوال دا دے چه د انبیاؤ تابعداری هم شویده نو آیا د هغوی او د هغوی د تابعدارو ترمینځ به هم براءت وی؟۔

**جواب**: دلته مفسرین لیکی: په گمراهئ کښې چه هر چا تابعداری کړے ده هغه به ترے جدا شی۔ او انبیاء علیهم السلام دچا نه نهٔ جدا کیږی ځکه چه د انبیاؤ تابعداری حقه ده۔ ﴿الْأَخِلَّاءُ يَوْمَئِذٍ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ إِلَّا الْمُتَّقِينَ﴾ نو دلته د تابعداری نه په شرك او گمراهئ کښې تابعداری مراد ده یعنی چه د گمراه مشرانو تابعداری ئے کړیده، نو د هغوی نه به بیزاری کوی۔ او وائی به چه مونږ تاسو نهٔ ئے گمراه کړی۔ او نهٔ مو دریاندے زور کړے او نهٔ مو درته دعوت درکړے۔

۲- آو، که چا ملائك یا جنات یا نیکان خلق معبودان جوړ کړی وی، او د الله سره ئے شریك کړی وی، نو دوی به هم د مشرکانو نه بیزاری کوی ځکه د دوی دا تابعداری هم په شرك کښې شویده، نو دوی به ترے انکار اُوکړی چه مونږ ستاسو د عبادت نهٔ نا خبره وو لکه په سورة الاحقاف آیت (٦) کښې دی …… ﴿وَإِذَا حُشِرَ النَّاسُ كَانُوا لَهُمْ أَعْدَاءً وَكَانُوا بِعِبَادَتِهِمْ كَافِرِينَ﴾

(قیامت کښې به ئے دشمنان وی او د هغوی د عبادت نه به انکار کوی چه تاسو مونږ له بندگی نهٔ ده کړے)۔

نو دا آیت مونږ ته دا هدایت راکوی چه ځانله داسے مشر او امام اُونیسئ چه تاسو له د هغه په تابعدارئ کښې ضرر نهٔ وی او په قیامت کښې درنه بیزاری نهٔ کوی۔ نو پدے کښې په تقلید جامد باندے رد دے۔ (تفسیر قاسمیؒ) لکه دا آیت د درے قسمه خلقو سره لگی۔ معبودانو سره۔

۲- د پیرانو او استاذانو او علماؤ سره۔

۳- د ملك او کلی لیډرانو سره چه دوی پسے بے دلیله لاړ نهٔ شے هسے نه چه صبا له د هغه په تابعدارئ باندے خفه نهٔ شے، او بیا درنه برائت اُونکړی۔

﴿وَتَقَطَّعَتْ بِهِمُ الْأَسْبَابُ﴾ اسباب جمع د سَبَب ده، پړی او رسئ ته وائی دلته ترے مراد تعلقات دی ځکه چه د پړی په ذریعه هم یو شے د بل سره تعلق پیدا کوی۔ یعنی د دوی په خپل مینځ کښې د استاذئ شاگردئ، د پیرئ مریدئ، د انفاق (ورکړے راکړے) تعلقات وو (مجاهدؒ) محبت به ئے وو (ابن عباسؓ) صله رحمی ئے وه (ابن جریج ابن زید) د دوی خپل مینځ کښې عهود او لوظونه وو۔ د مشرانو په کشرانو خاص مرتبے وی نو دا تعلقات به ئے ختم شی او د الله یواځے اُلوهیت به ښکاره شی۔ (ماوردی، خازن، بغوی، بحر العلوم)

۲- دارنګه د عذاب نه د خلاصیدو حیلې او طریقې به ختمې شي۔ (ابن کثیر ۱/۴۷۷)

۴- سُدّیؒ وائي : د اسباب نه مراد هغه عملونه دي چه دوی به ورپورې په دنیا کښې وسیله نیوله چه مونږ به په دې سره خلاص شو۔ (تفسیر بغوی)

او (بِهِمُ) په معنیٰ د (عَنۡهُمۡ) سره دې۔ یعنی د دوی نه به دغه تعلقات ختم شي۔

| وَقَالَ الَّذِيۡنَ اتَّبَعُوۡا لَوۡ اَنَّ لَنَا كَرَّةً |
|---|
| او وبه وائي هغه کسان چه تابعداري ئې کړیده (د خپلو مشرانو) که چرته وې مونږ له دوباره واپسي (دنیا ته) |
| فَنَتَبَرَّاَ مِنۡهُمۡ كَمَا تَبَرَّءُوۡا مِنَّا ؕ كَذٰلِكَ يُرِيۡهِمُ |
| پس مونږ به جدا شو د دوی نه لکه څنګه چه دوی جدا شو زمونږ نه، دغه رنګه وربنائي دوی ته |
| اللّٰهُ اَعۡمَالَهُمۡ حَسَرٰتٍ عَلَيۡهِمۡ ؕ وَمَا هُمۡ بِخٰرِجِيۡنَ مِنَ النَّارِ ﴿۱۶۷﴾ |
| الله تعالیٰ عملونه د دوی دپاره د افسوسونو په دوی باندې او نهٔ به وی دوی راوتونکی د اُور نه۔ |

**تفسیر**: پدې آیت کښې اُوس د تابعدارو پښیمانتیا ده یعنی هر کله چه غلط اتباع والا مشرکان اُوګوري چه د دوی باطلو معبودانو د دوی نه براءت اعلان کړونو په دنیا کښې په خپلو کړو باندې به هلته پښیمانه شي او ارمان به کوی چه مونږ دوباره دنیا ته واپس کړې شوی وې چه مونږ هم ددې خپلو معبودانو نه بری او بیزاره شوی وې او صرف د یو الله عبادت مو کړې وې۔ لیکن سورة الانعام آیت (۲۷) نه معلومیږی ﴿وَلَوۡ رُدُّوۡا لَعَادُوۡا لِمَا نُهُوۡا عَنۡهُ﴾ چه دوی به په دې خبره کښې دروغجن وی بلکه که دوی دوباره واپس هم شي نو همغه شرک به کوی کوم چه ئې مخکښې کولو۔ نو الله به دوی ته دغه بد اعمال د افسوسونو ډیرولو دپاره وربنکاره کړی چه مونږ محبت، خرچه، تابعداري، سجده، نذر او منخته غلط استعمال کړیدی۔ او د اُور فیصله به پرې اُوشی۔ لیکن د موقعې د فوت کیدو نه روستو افسوس به دوی له هیڅ فائده نهٔ ورکوی ((څکه اُوبه به د ورخه تیروی))۔

﴿كَرَّةً﴾ : کرّت مخکښنی حالت ته رجوع او واپس کیدو ته وائي۔ (قرطبی)

﴿اَعۡمَالَهُمۡ﴾ : د اعمالو نه مراد بد اعمال دی لکه شرک، انکار د قرآن نه، انکار د رسول نه، انکار د آخرت نه او نور حقونه د الله او د مخلوق ضائع کول نو دا تول اعمال سیئه او د هغې عاقبتونه به وینی، ارمان به کوی چه دا قسم اعمال مو نهٔ وې کړی نو ښهٔ به وو۔

﴿حَسَرَاتٍ﴾ مفعول لهٔ دے یعنی لِلْحَسْرَةِ (دپاره د افسوسونو)۔
او دا افسوسونو به په جدا جدا مقاماتو کښې وی نو ځکه ئے جمع راوړے ده یا اعمال ډیر دی۔ کله به د ایمان او د توحید پسے افسوس کوی لکه په سورة حجر (۲) آیت کښې دی ﴿رُبَمَا يَوَدُّ الَّذِينَ كَفَرُوا لَوْ كَانُوا مُسْلِمِينَ﴾ (ډیر کرت به کافران ارمان کوی چه مونږ مسلمانان وے)۔
کله به د الله د آیتونو په انکار او تکذیب باندے افسوس وی۔ لکه په سورة انعام (۲۷) کښې دی۔
او کله به د رسول الله ﷺ نه په انکار او د هغه نه په مخالفة کولو افسوس وی لکه په سورة فرقان (۲۷) آیت کښې۔ او کله به د قیامت په انکار افسوس وی، لکه په سورة انعام (۳۱) آیت کښې۔ او کله به د الله د حقوقو په ضائع کولو او کوتاهی کولو افسوس وی۔ لکه سورة زمر (۵۶) آیت کښې دی۔
دے وجه نه قیامت ته يَوْمُ الْحَسْرَةِ (د افسوسونو ورځ) وائی۔
﴿وَمَا هُمْ بِخَارِجِينَ﴾ دا دفع د وهم ده چه آیا دا افسوسونه کول به دوی له فائده ورکړی او د اُور نه به ئے خلاص کړی؟ نو جواب اُوشو چه نهٔ۔ بلکه د دوی طمع ختمه ده۔

| يَا أَيُّهَا النَّاسُ كُلُوا مِمَّا فِي الْأَرْضِ حَلَالًا طَيِّبًا وَلَا تَتَّبِعُوا خُطُوَاتِ |
|---|
| اے خلقو! خورئ د هغه څیزونو نه چه په زمکه کښې دی حلال پاک، او مهٔ روانیږئ په قدمونو (لارو) |
| الشَّيْطَانِ إِنَّهُ لَكُمْ عَدُوٌّ مُبِينٌ ﴿۱۶۸﴾ |
| د شیطان پسے، یقیناً دا ستاسو دپاره دشمن دے ښکاره۔ |

**مضمون** : راتلونکی رکوع پورے حاصل دا دے چه دلته الله تعالیٰ مؤمنانو ته نور قوانین بیانوی، اول دا چه حلال او حرام به د شارع منئ او د ځان نه به حلال او حرام نهٔ جوړوئ، ځکه چه پدے سره دین ګډوډ کیږی۔ او د اتباع د شیطان نه منع کوی۔ بیا رد دے په دلیل د مشرکانو او امر دے په اتباع د کتاب او سنت ځکه کله چه د قرآن او سنت په خلاف د خپلو مشرانو تقلید کیدے شی، او هغوی خبرے منلے شی نو دے سره هم دین ورانیږی۔ بیا الله تعالیٰ د کافرانو په دین باندے د نهٔ پوهیدو او د حق نهٔ منلو مثال راوړیدے۔ نو ځکه حلال او حرام د ځان نه جوړوی۔ بیا الله تعالیٰ په طیباتو (پاکو خوراکونو) باندے په شکر کولو امر کړے۔ بیا د محرمات الهیه ؤ بیان دے یعنی د ځان نه حرام او حلال مهٔ جوړوئ او د الله تعالیٰ حرام کرده څیزونه دا څلور دی۔ بیا تفصیلاً د حق په کاتمینو (پټونکو) باندے رد دے چه دا مسئلے دے مشرکانو او یهود او نصارا

ته معلومے شوے او دوی ئے د دنیا د عیش معاش دپاره پټوی۔
او د هغوی د جهالت بیان چه هدایت ئے پریخے او گمراهی ئے اخستے ده۔ او د دوی په خپل کتاب کښې اختلاف او تحریف بیانوی۔

۱- **مناسبت** ددے آیت د «وَإِلَٰهُكُمْ» سره دے، لکه څنګه چه إِلَٰه (حقدار د بندګئ) یو دے، نو دغه شان مُحَرِّم او مُحَلِّل (حراموونکے او حلالونکے) به هم دغه یو ذات وی۔ یعنی یو قسم توحید الله بیان کړو چه د الله نه سِوا د بل چا بندګی مه کوئ۔ اُوس دلته بل قسم توحید بیانوی او د شرك فعلی رد کوی۔ چه دیته شرك فی التحلیل والتحریم هم وائی۔ شرك فعلی دیته وائی چه حلال او حرام د الله نه ما سوا د بل چا په نوم جوړ کړی، او د بل چا په اختیار ئے جوړ کړی۔ بلکه حلال او حرام جوړونکے صرف الله تعالیٰ دے، دا قانون صرف الله تعالیٰ پورے خاص دے۔ او لکه مشرکانو به دا کار هم کولو چه د الله نه ماسِویٰ به ئے حلال او حرام د ځان نه جوړول، او اُوس دے زمانه کښې هم خلق د ځان نه څیزونه حراموی کله وائی دا شے به نۀ خورو او دا به نۀ کوو، په فلانی وخت کښې به جامے نۀ بدلوو۔ ګاړی کښې چه مړے راوړی نو مخے ته ورته چرګ ذبح کوی چه تیکر راونۀ رسی۔ او په شوال کښې وادۀ مکروه ګڼړی۔ او په هغه زمانه کښې به مشرکانو بحیره، سائبه، وصیله او حام (اُوښان) حرامول۔

۲- ابن کثیرؒ لیکی : مخکښې الله بیان کړل چه د هغه نه سِویٰ حقدار د بندګئ نشته او هغه د هر شی خالق او مالك دے، نو اُوس دا بیانوی چه هغه یواځے روزی ورکونکے دے، نو پدے کښې به د ځان نه حلال حرام نۀ جوړوی۔ د شیطان تابعداری به نۀ کوی۔

ابو حیانؒ وئیلی دی : دا آیت د هغه چا په رد کښې نازل دے چه په ځان باندے هغه څیزونه حرام ګڼړی چه الله تعالیٰ نۀ دی حرام کړی، او ددے ډیر اقسام دی :

(۱)- انکار کوی د الله د حلالو څیزونو نه او په خپل خواهش سره څیزونه په ځان باندے حرام ګڼړی۔ (۲) دویم قسم هغه څیزونه چه نسبت ئے خپلو معبودانو ته کوی او په ځان باندے ئے حرام ګڼړی، لکه بحیره، سائبه، وصیله او حام۔ او ددے د استعمال او د خوراك نه ځان بچ ساتی ځکه چه د معبودانو د ضرر نه په زړۀ کښې یره کوی۔

(۳) دریم قسم هغه څیزونه چه د رهبانیت د وجے نه ئے په ځان باندے حرام ګڼړی، مزیدار حلال خوراك څکاك او جامے په ځان باندے حرامے ګڼړی لکه بعض پیران پخپله هم داسے کوی او په خپلو مریدانو باندے هم حراموی۔ بیا د ځان نه حرامول او حلالول ډیر شکلونه لری، په مختلفو علاقو کښې مختلف قسم مسائل دی مثلاً ۔

۱- مسافر پسے څائے جارو کول بد گنړی.
۲- د مازيګر نـه روستو ليـکـل بـد گـنـړل. ۳- د حـامـلـے (باردارے) ښځې سَمَنَكُ حَلوئ بده گنړل. ٤- شنے جامے بدے گنړل. ٥- د جُمعے په ورځ د حائضے غسل بد گنړل.
٦- بـعـض خـلـق د خپلے ښځې سره زيات کيناستل حرام گنړل. ۷- بعض خلق بعضے ونے نهٔ راپريکوی، پدے وجه چه ددے لاندے فلانی بابا ناسته کړے او دغه شان ډير مثالونه او صورتونه په معاشره کښ موجود دی، دا ټولے د خپل خواهش د طرف نه پابنديانے دی.
﴿ كُلُوا ﴾ دا امر د ايجاب دپاره نهٔ دے، بلکه د اباحت دپاره دے يعني مباح ئے گنړئ او د ځان نه او د معبودانو په نوم ئے مهٔ حراموئ. او پدے کښ د الله احسان دے چه الله مونږ له د زمکے څيزونه حلال کړيدی.
زجاج وئيلی دی: چا چه يو شے د هغه شيانو نه حرام کړو چه الله حلال کړے وو، يا ئے حلال کړو هغه شے چه الله حرام کړے وو نو دا مشرك دے. انتهٰی.
ځکه دا د الله تعالیٰ د قانون په مقابله کښ بل قانون جوړول دی. لکه يهودو به دا کار کولو.
او اکل ئے ذکر کړو مراد ترينه ټولے فائدے اخستل دی، خو خوراك په کښ اَهم جزء دے ځکه پدے سره بدن قائم وی. او د ضرورت په وخت کښ د خوراك امر د وجوب دپاره هم دے.
﴿ حَلٰلًا طَيِّبًا ﴾
دا دواړه چه جدا جدا ذکر شی نو بيا يو شے وی او چه يو ځائے ذکر وی نو بيا ئے فرق دے :
۱- نو حلال هغه ته وائی: مَا يَتَعَلَّقُ بِالذَّاتِ (چه ذات ئے حلال وی) او طيب مَا يَتَعَلَّقُ بِالْكَسْبِ (چه کسبه ئے حلاله وی)، کـلـه د يـو شی ذات حرام وی لکه زهر، گندگی، شراب خنزير وغيره. او په بعض اوقاتو کښ به شے حلال وی ليکن کسب به ئے غلط شوے وی لکه د غلا مال، دروغ وئيلو او دهوکے سره کاروبار کول، سود کول.
۲- حلال خو معلوم دی او طيب هغه دی چه غذاء او نُمو (ترقی) بدن ته ورکوی. نو خاوره حلاله ده ليکن طيبه نهٔ ده ځکه بدن ته ضرر ورکوی.
۳- حلال هغه دے چه شريعت د هغے اجازه ورکړی وی او طيب هغه دے چه بدن او عقل ته ضرر او نقصان نهٔ ورکوی. (ابن كثير).
نو چرس، پوډر او افيون حلال هم نهٔ دی او طيب هم نهٔ دی.
٤- حلال هغه دی چه مفتی د هغے د حلال والی فتویٰ ورکړی، او طيب هغه دی چه زړهٔ د هغے په حلال والی گواهی اُوکړی. (البحر المحيط)

ابوعبد الله الساجی (سعید بن زیدؒ) فرمائی : پنځه خصلتونو سره د انسان عمل پوره کیږی :
۱- د الله معرفت (پیژندګلی) ۲- د حق معرفت۔ ۳- د الله دپاره په عمل کښې اخلاص کول۔
٤-او عمل په تابعداریٔ د سنت کښې کول۔ ٥- او حلال خوړل، که پدې کښې یو نهٔ وی نو عمل د قبولیت مقام ته نهٔ پورته کیږی۔
سهل بن عبد اللهؒ فرمائی : نجات په درې څیزونو کښې دے : ۱- حلال خوړل۔ ۲-فرائض ادا کول۔ ۳- او د نبی کریم ﷺ اقتداء کول۔ (تفسیر القرطبیؒ)۔
**فائده** : حرام خوړلو سره نفس کښې خباثت راځی، بیا د الله تعالیٰ د توحید او تعلق اهلیت ختمیږی، پدے وجه د حلالو په خوړولو امر شویدے۔

## د خطوات الشیطان مصداقات

﴿ وَلَا تَتَّبِعُوا خُطُوَاتِ الشَّيْطَانِ ﴾ خُطُوات جمع دخُطْوَةٌ ده، هغه مسافت چه د دوه قدمونو ترمینځ وی۔ دلته ترې مراد (۱) تحریمات د غیر الله دی۔ یعنی د ځان نه تحریم (حرامول) مهٔ کویٔ۔
(۲) ...... هر معصیت او وړهٔ واړه ګناهونه۔ (ابوعبیدةؒ)
(۳) ...... لارې د شیطان۔ ...... (زجاجؒ)
(٤) ...... كُلُّ مَا خَالَفَ الْكِتَابَ۔ هر هغه شے چه د کتاب الله خلاف وی۔
(ابن عباسؓ - تفسیر فتح البیان)۔
(٥) اَلنُّذُوْرُ فِي الْمَعَاصِيْ : په ګناه کښې نذر کول۔ ...... (ابو مِجلزؒ)۔
٦- تفسیر قرطبیؒ لیکی : ټول بدعتونه او ګناهونه د شیطان قدمونه دی، او کوم شے چه په شریعت کښې نهٔ وی راغلے، نو هغه شیطان ته منسوب وی۔
۷- نَزَغَاتُ الشيطان۔ (یعنی د شیطان وسوسے په هر قسم ګناه)۔
(الشیطان) نه مراد دلته مطلق وسوسه اچونکے دے، انسی وی که جنی۔ د شیطان نه به انسان په څهٔ خلاصیږی نو روستو راځی ﴿ وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ اتَّبِعُوا ﴾ یعنی په اتباع د قرآن۔
﴿ مُبِينٌ ﴾ دا متعدی هم استعمالیږی یعنی خپلے دشمنیٔ لره ښکاره کونکے۔ او مبین د قرآن کریم په صفت کښې هم راځی۔ او لازم هم استعمال دے یعنی ښکاره دشمنیٔ والا۔ ځکه چه آدم علیه السلام ئے د جنت نه راکوز کړو او تاسو ته غلطے لارے ښائی، آیا تاسو نهٔ ګوریٔ چه د شیطان په تابعداریٔ څومره مشکلاتو کښې واقع کیږیٔ، ایمان، صحت او مال خراب شی۔ جګړے او انتشار پیدا شی، شیطان چه اُوخوزیږی نو شرونه پید اکیږی۔

| اِنَّمَا يَاْمُرُكُمْ بِالسُّوْٓءِ وَالْفَحْشَآءِ وَاَنْ تَقُوْلُوْا |
|---|
| يقيناً هغه حکم کوي تاسو ته (په وسوسه اچولو سره) په بدئ او بے حيايئ سره او دا چه تاسو اُووايئ |
| عَلَى اللّٰهِ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿۱۶۹﴾ |
| په الله باندے هغه څه چه تاسو پرے نۀ پوهيږئ۔ |

**تفسير** : د هغه د دشمنئ نخے دا دي چه په درے غلطو کارونو تاسو ته حکم کوی۔ اول : حکم کوی په سوء۔ سوء (۱) بدی ته وائی، دا هرے گناه ته شامل دے، صغيره وی او که کبيره، د ظاهري اندامونو اعمال وی او که د زړونو اعمال وی۔ گناه ته سوء ځکه وائی چه په عاقبت کښ د هغے کونکے خفه کوی۔ او (الفحشاء) هغه گناه ده چه د شريعت سره عقل ئے هم بده گنړی۔ لکه بی حيائی، زنا، نشه، قتل، بخل، تهمت لگول وغيره۔ (تيسير الكريم الرحمن ۱/۹۷)۔

او پدے کښ عطف د خاص دے په عام باندے۔

(۲) ...... السوء کلمه شرکی ده او فحشاء عمل شرکی دے۔

(۳) ...... السوء هغه گناه ده چه په هغے کښ مقرر حد نۀ وی او فحشاء هغه ده چه په هغے کښ حد وی لکه زنا، غلا تهمت لگول، بهتان وغيره۔

(٤) ...... سوء هره گناه او فحشاء هر قول او فعل چه قبيح (بد) وی۔

(۵) ...... سوء وړه گناهونه او فحشاء لوئی گناهونه دی۔ (تفسير العثيمين)

فحشاء ئے جدا راوړه اگرکه دا په سوء کښ داخل ده ځکه بے حيائی مستقله گناه ده، عظيم جُرم دے۔ چه متضمن دے ډيرو گناهونو لره لکه بد الفاظ، بد نظری، لاس لگول، د اجنبی ښځے خکلول، زنا، لواطة، ځان بربنډول، د زنانو تنگے جامے اغوستل، سينډل اغوستل وغيره۔

﴿ وَاَنْ تَقُوْلُوْا عَلَى اللّٰهِ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ ﴾

(يعنی پدے هم حکم کوی چه تاسو په الله باندے په ناپوهئ دروغ اُووايئ)۔

د تَقُوْلُ په صله کښ چه (عَلٰی) راشی نو په معنیٰ د دروغ جوړولو سره وی۔

۱- تقول عَلَى الله (په الله باندے دروغ وئيل) ديته وائی چه الله تعالیٰ يوه خبره نۀ ده کړے، يو څيز ئے نۀ دے حرام کړے او دا وائی دا شے حرام دے۔ دا د الله مُحادّه ده (يعنی د هغه په مقابله کښ نوی حدود کيخودل دی) او صريح مخالفت دے۔ (۲) دويم دا چه انسان ته معلومه نۀ وی چه آيا الله دا شے حلال کړيدے او که نۀ، او انسان هغے ته د ځان نه حلال يا حرام وائی۔ دا هم په الله تعالیٰ دروغ

دی۔ دا تقول علی الله ډیره سخته گناه ده۔ دین کښې د ځان نه خبرې کول چه دا حلال دے او دا حرام دے۔ دا به هله کوے چه دلیل درسره وی او چه دلیل درسره نۀ وی، نو ددے بیانول ډیر لوئی جرم دے ځکه تقول علی الله د شرك نه هم لویه گناه ده، ځکه چه شرك د تقول علی الله یوه نوعه ده، او دا په نن صبا زمانه کښې ډیر زیات دے (نَعُوْذُ بِاللهِ مِنْهُ) د الله سبحانه وتعالیٰ نه یره کمه شویده ځکه خلق په الله باندے جرأت کوی او ځان نه ئے مفتیان جوړ کړی وی۔

او (تَقَوُّل عَلَى الله) نورو ډیرو صورتونو ته هم شامل دے : ۱- یو دروغ وئیل په الله باندے د هغه په ذات کښې لکه ماتریدیه او اشاعره چه غلطه عقیده لری چه د الله ذات نۀ په عالَم کښې داخل دے او نۀ خارج دے، نۀ متصل دے او نۀ منفصل دے، نۀ د عالَم دپاسه دے او نۀ خکته دے۔ دارنگه د هغه د ذات نه انکار، د هغه سره شریکان جوړول۔

۲- دارنگه دا شامل دے د الله تعالیٰ اسماء (نومونو) ته هم چه داسے اُووائی چه د الله نومونه بے معنیٰ اوبے صفته نومونه دی لکه معتزله وائی : الله سمیع دے بلا سمع او بصیر دے بلا بصر او علیم دے بلا علم۔ او هغه علیم دے په اعتبار د ذات سره۔ او علم ئے صفت نۀ گنړی۔

۳- دارنگه دا شامل دے د الله صفاتو کښې بے علمه خبرو ته هم مثلاً بعض صفتونه د الله ثابت کړی او بعضو نه انکار اُوکړی، لکه کله وائی چه ددے صفت نه مراد دا دے او ددے نه دا دے۔ نو دا هم په الله باندے بے علمه دروغ وئیل دی۔ لکه مثلاً اِسْتَوٰى عَلَى الْعَرْشِ کښې وائی چه د (اِسْتَوٰى) نه مراد (اِسْتَوْلٰى) (یعنی غلبه ده په عرش باندے) او د الله استواء په عرش نۀ منی۔ یا د یَد نه مراد قدرت اخلی او د الله لاس نۀ منی۔

٤- دارنگه دا شامل دے د الله افعالو کښې خبرو ته هم، لکه بعض خلق داسے اسباب ثابت کړی چه هغه الله تعالیٰ اسباب نۀ وی جوړ کړی لکه د نجومیانو او اټکل والو، نو دوی د الله په کارونو کښې د ځان نه خبرے کوی وائی : چه ددے فلانی شی د موجودیدو فلانے سبب دے، او دۀ ته یقینی معلومات نۀ وی۔

۵- دارنگه د الله تعالیٰ په احکامو کښې خبرے کول۔ چه جائز ته حرام وائی او حرام ته جائز، یا جائز ته واجب وائی۔ او دۀ ته د هغے معلومات نۀ وی او دا قسم خلق ډیر زیات دی۔ نو په بے علمۍ سره په الله باندے دروغ تړل شاملیږی د الله ذات، د هغه اسماء، د هغه صفات، د هغه افعال او د هغه احکامو ته۔ دا ټول د شیطان حکمونه دی۔

او اکثر دا کار چه څوك کوی نو د هغه مقصد شرافت، مشری او خپل نوم او شهرت سره مینه وی۔ ورنه که چا کښې تقویٰ وی، نو هغه به د الله تعالیٰ سره ډیر په ادب چلیږی، او د الله او د هغه د

رسول نـه بـه ځان نهٔ مخکښ کوی۔ (تفسیر العثیمین٤/١٩٣) او دارنګـه دا مرض د هر مشرك او بدعتی دے چه ګناه ته طاعت وائی او په هغے کښ ثواب ګنړی۔

وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ اتَّبِعُوا مَا أَنزَلَ اللَّهُ قَالُوا بَلْ

او کله چه اُووئیلے شی دوی ته تابعداری اُوکړئ د هغه څهٔ چه نازل کړیدی الله تعالیٰ۔ دوی وائی بلکه

نَتَّبِعُ مَا أَلْفَيْنَا عَلَيْهِ آبَاءَنَا أَوَلَوْ كَانَ

مونږ تابعداری کوو د هغه طریقے چه مونږ موندلی دی په هغے باندے مشران خپل، آیا اګرکه وو

آبَاؤُهُمْ لَا يَعْقِلُونَ شَيْئًا وَلَا يَهْتَدُونَ ﴿١٧٠﴾

مشران د دوی چه نهٔ پوهیدل په هیڅ شی او نهٔ په سمه لار وو۔

**تفسیر** : پدے آیت کښی امر دے په اتباع د کتاب او سنت چه حلال او حرام به د کوم ځائے نه معلوموونو هغه کتاب او سنت دے۔ الله فرمائی چه کله مشرکانو ته وئیلے کیږی چه الله تعالیٰ کوم دین په خپل رسول نازل کړیدے، د هغے تابعداری اُوکړئ نو دوی وائی چه مونږ به هغه کار کوو چه زمونږ پلارانو نیکونو به کولو یعنی د بتانو او خود ساخته معبودانو عبادت به کوو، او رسم و رواج د مشـرانو بـه نهٔ پریـدو۔ نـو الله په دوی رد کـوی چه آیا تاسو به د خپلو پلارانو او مشرانو تابعداری کوئ، اګرکه هغوی په دین بالکل پوهه نهٔ وی او د حق نه ورانده وی؟!۔

**ربط** : ١- مـخـکـښې د شیطان د اتباع نه منع اُوشوه، نو اُوس په غیر د دلیل او حجت نه د خپل پلارانو نیکونو د اتباع نه منع کولے شی چه دا په حقیقت کښ د شیطان اتباع ده۔

٢- کـلـه چه دوی تـه اُووئیـلے شی چـه د ځان نه حرام او حلال مهٔ جوړوئ، او په ما انزل الله کښ حـلال او حـرام شتـه د هـغے تـابعداری اُوکړئ، نو دوی پلار نیکهٔ رامخے ته کړی، چه هغوی نیکان خلق وو، د هغوی تابعداری به کوو۔ نو الله فرمائی : چه هغه خوبے عقله خلق وو، هدایت ورسره نهٔ وو۔ د هغوی پسے د قرآن او حدیث په مقابله کښ څنګه روانیږئ۔

٣- دریـم دا چـه پـه تـقـول عـلی الله کښ انسان اکثر د تـقـلید الآباء (د پلارانو د تـقـلید) په وجه پریوزی۔ ٤- مخکښې د انسان د دشمن حال وو، اُوس د انسان د دوست حال بیانوی چه هغه د الله تعالیٰ کتاب دے۔

٥- د شیطان د وسوسے او د تقلید په مابین کښ فرق نشتـه۔ (امام رازیؒ)

او پدے کښې د مشرکانو په دلیل باندے رد دے چه هغوی د قرآن او حدیث په مقابله کښې اتباع الآباء کوی۔ پلار نیکه پیش کوی۔ او د قرآن او سنت د اتباع نۀ کولو دپاره ئے دغه عذر جوړ کړے وی۔ نن صبا که اهل بدعت پو هه کړے شی چه د دوی د بدعاتو دپاره په دین کښې هیڅ اصل نشته، نو دوی همدا جواب کوی چه دا رسمونه خو زمونږ د پلارانو نیکونو نه راروان دی، حال دا چه د دوی پلاران نیکونه هم د دینی بصیرت نه راندۀ او د هدایت نه محروم پاتے کیدے شی۔ پدے وجه د شریعت د دلیلونو په مقابله کښې د خپل پلار نیکۀ یا د ائمه کرامو او علماءِ عظامو پیروی او تابعداری کول غلط دی۔ الله تعالیٰ دے مسلمانان ددے دلدل نه راوباسی، آمین۔ (احسن البیان)۔

**نکته:** د مشرکانو غالباً څلور دلائل وی: ۱- اتباع الآباء۔ (د پلارانو تابعداری)۔

۲- اتباع الاکثریة۔ (د ډیرو پسے روانیدل)۔ وائی لړو پسے څنګه لاړ شو۔

۳- الظن: گمانونه کول۔ ٤- خرص او تخمین (اټکل) پسے روانیدل۔ فلانی داسے وئیلی دی، او زمونږ دین او مذهب غوره دے۔ او پدے سره د کتاب او د سنت د تابعدارئ نه ځان معذور کنړی۔ لیکن دا عذر قبول نۀ دے۔

﴿ مَا اَنْزَلَ اللّٰهُ ﴾ دا قرآن او حدیث دواړو ته شامل دے۔

﴿ بَلْ ﴾ دا د اِضراب (یعنی اعراض) دپاره دے۔

﴿مَا اَلْفَيْنَا عَلَيْهِ آبَاءَ نَا ﴾ د (آبَاءَ نَا) نه مراد دلته مشران او علماء دی۔ لکه امام راغبؒ وئیلی دی: ای عُلَمَاءَ نَا ۔ څکه عالِم د انسان په عِلم تربیت کوی۔ (مفردات ۷/۱)۔

نو الله پرے رد کوی: ﴿ اَوَلَوْ كَانَ آبَاؤُهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ شَيْئًا وَّلَا يَهْتَدُوْنَ ﴾۔

یعنی که پلاران نیکونه ئے جاهل اوبے هدایته هم وی بیا به ئے هم دوی تابعداری کوی؟ دا څومره بے عقلی ده !!۔

**فائده:** دا آیت د مشرکانو په باره کښې دے چه هغوی قرآن او حدیث له هیڅ اعتبار نۀ ورکولو، او هغه ئے د پلار نیکۀ د تقلید په وجه رد کولو۔ لیکن مفسرین وائی: د قرآن او سنت دا اصولی منلے شوے قاعده ده چه اعتبار د الفاظو عموم له وی او خاص سبب له اعتبار نۀ وی، نو ددے آیتِ کریمه په سیاق کښې رد دے په هغه مقلدینو چه هغوی ته ما انزل الله (قرآن او حدیث) پیش شی، نو هغوی وائی، مونږ د مشرانو او علماؤ پسے څو، زمونږ مُرشد، زمونږ بزرگ او زمونږ فقیه بنۀ پو هیدو، او یقیناً دا حدیثونه به د هغوی په عِلم کښې وی، لیکن د کوم ډیر قوی دلیل په وجه به هغوی ددے حدیثونو نه انکار کړے وی۔ لکه مشرکانو به هم دا وئیل چه زمونږ پلار نیکۀ بنۀ پو هیدل، نو دا د مشرکانو سره ځان مشابه کول دی او د کتاب او د سنت مقابله کول دی۔

او ددے دپاسه بیا غټ ظلم دا شویدے چه دوی د حدیثو انکار ته لاره کولاؤه کړه، او داسے فقهی اصول ئے جوړ کړل او هغه ئے په خپلو کتابونو کښې مُدوّن کړل (وے لیکل) چه کله یو حدیث ددے اصولو خلاف راشی، نو (د دوی په گمان) به هغه رد کولے شی ځکه هغه به یا ضعیف وی یا به مرجوح وی یا به منسوخ وی۔ نو ددے جرم نتیجه دا شوه چه د امت په انفرادی او اجتماعی ژندگئ کښې ډیر کمزوری او واهیات قسم حدیثونه رائج شو، او هغه صحیح حدیثونه چه بخاری او مسلم روایت کړیدی، او په هغے باندے د عمل نۀ کولو هیڅ جواز د امت سره موجود نۀ دے، د سلګونو کلونو نه آوازونه کوی چه اے مسلمانانو! په مونږ باندے عمل اُوکړئ، مونږ د الله د رسول صحیح حدیثونه یو، لیکن مقلدین هغے له هیڅ اعتبار نۀ ورکوی۔ په اسلام کښې د تمامو ګمراه فِرقو وجود، د شرك او بدعت رواج، د قبرونو او مزارونو او د درګاهونو عبادت او د عقائدو ټولے بیماریانے د همدے دروازے نه راداخلے شوے چه قرآن او سنت ئے پریخودو او د خپلو بزرګانو او مشائخو او د خود ساخته معبودانو خبروته ئے ترجیح ورکړه، د هغوی تقلید ئے اُوکړو، او دائے اُووئیل چه دے مشرانو چه څۀ کړیدی نو د هغوی سره به هم خامخا څۀ دلیل وی، پدے وجه مونږ به همغه کوو کوم چه زمونږه بزرګانو کول، او ددے حدیثونو منلو ته مونږ ته تیار نۀ یو، ځکه چه مونږه د خپلو مشرانو نه بنۀ نۀ پو هیږو۔ هغوی به ترے کیدے شی چه څۀ جواب کړے وی، نو آیا دوی په قرآن او حدیث نۀ پو هیږی او د علماؤ په اقوالو پو هه شو۔ عجیب !!۔ (وانظر تیسیر الرحمن)۔

(۱) ابن عطیّة په (المحرر الوجیز) کښې وئیلی دی او قرطبیؒ هم دهغه نه نقل کړیدی: [وَقُوَّةُ اَلْفَاظِ هٰذِهِ الْآيَةِ تُعْطِىْ اِبْطَالَ التَّقْلِيْدِ] ددے آیت د الفاظو قوت فائده ورکوی چه تقلید باطل دے۔

(۲) پدے آیت کښې کامل آواز دے په جهالت د مقلدینو چه د قرآن او د سنت په مقابله کښې پلاران پیش کوی۔ (تفسیر فتح البیان د صدیق حسن خان)۔

(۳) ...... ابو حیان اندلسیؒ وئیلی دی: پدے آیت کښې دلیل دے په بدئ د تقلید باندے۔

(٤) ...... او د ابن عطیّة نه ئے نقل کړیدی چه په عقیدو کښې د تقلید په ابطال (باطلوالی) باندے اجماع منعقده ده۔ (البحر المحیط) والمحرر الوجیز (۱/۱۸٤)۔

(۵) ...... او علامه آلوسیؒ لیکی: پدے آیت کښې منع ده د تقلید نه د هغه چا دپاره چه قدرت لری په فکر کولو او هرچه اتباع د بل چا ده په دینی کارونو کښې روستو د علم نه په یو دلیل سره چه دا حق دے نو دا په حقیقت کښې اتباع د ما انزل الله ده۔ (یعنی په دلیل سره د بل چا تابعداری کول تقلید نۀ دے)۔

**فائده**: ۱- د قرآن او حديث اتباع كه بالكليه څوك پريدي.نو هغه خو كافر او مشرك دے.
۲- او كه څوك ئے بالكليه نهٔ پريدي، په بعض خبرو كښې ئے مني او په بعضو كښې ئے نهٔ مني، بيا پكښې مِنْ وَجه كفر او شرك راغلے دے. ۳- او كه داسے وائي چه مَا أَنْزَلَ اللهُ ښهٔ شے دے، منم ليكن زمونږ مشران او علماء ښهٔ پوهيدل او زهٔ نهٔ پوهيږم.نو بيا حقيقي كافر او مشرك نهٔ دے ليكن تشبيه د هغوی سره راغله څکه آيا دا كتاب او سنت الله تعالىٰ صرف مشرانو له راليږلی وو او تا له ئے نهٔ دی راليږلی څه!. نو پدے آيت كښې د ائمه وُ تقليد هم داخل دے.
علامه ابن ابی العز الحنفیؒ په خپله رساله (الاتباع) او حافظ ابن القيمؒ په اعلام الموقعين بحث التقليد) كښې وئيلی دی چه دلته تشبيه په اعتبار د كفر د يو او ايمان د بل سره نهٔ ده، بلكه تشبيه په اعتبار د تابعداریٔ كولو ده بغير د حجت او دليل شرعي نه. لكه يو څوك چه د چا تقليد په كفر كښې اُوكړی او بل كس ئے په فسق او فجور كښې اُوكړی، او بل ئے په يوه داسے مسئله كښې اُوكړی چه هغه په كښې خطاء شوے وی.نو پدے كښې هر يو تن په بے دليله تقليد كولو باندے ملامته دے.
امام رازیؒ وائي: معنىٰ د آيت دا ده چه الله دوی ته حكم اُوكړو چه الله تعالىٰ كوم ښكاره دليلونه نازل كړی، د هغے تابعداری اُوكړئ، نو دوی اُووئيل، مونږ ددے تابعداری نهٔ كوو بلكه مونږ د خپلو پلارانو او مشرانو تابعداری كوو، نو گويا كښې دوی په تقليد سره د دليل معارضه (مقابله) اُوكړه. بيا وائي: د شيطان د وسوسو تابعداری او د تقليد تابعداری دواړو كښې هيڅ فرق نشته، لكه د مخكښې او ددے آيت مناسبت همدا دے، او دا دليل دے چه نظر او استدلال واجب دے او د زړهٔ په خبره بغير د دليل نه اعتماد كول يا د بل چا په خبره بغير د دليل نه اعتماد كول جائز نهٔ دی. (محاسن التاويل للقاسمی ۱/۴۳۲)

## د تقليد مسئلے وضاحت

تقليد لفظ په عربي ژبه كښې د قلادے نه اخستے شويدے، د چا په غاړهٔ كښې پړے اچول چه ما راكاږه كوم خوا چه ستا خوښهٔ وی يعني خپل ټول اختيار هغه ته وركول. په اصطلاح كښې: د چا قول (وينا) قبلول بغير د دليل نه. (قرطبیؒ)
۲- ابن امير الحاجؒ په التقرير والتحبير شرح د تحرير د ابن الهمامؒ كښې ليكي: «تقليد عمل كول دی بغير د دليل نه په قول د هغه چا چه د هغه قول په شرع كښې حجت نهٔ دے».
(عِقْدُ الفريد ص: ۱۵)
نو پدے سره د طبيب قول په باره د علاج كولو كښې خارج شو څكه چه هغے ته شرعي عمل نهٔ

وثیلی کیږی۔ رجوع د عامی قول د مفتی ته او عمل د قاضی په خبره د عادل گواهانو دا تقلید نهٔ دے ځکه چه ددے کسانو تابعداری په احادیثو سره ثابته ده، لهذا دلیل پرے موجود دے۔

تقلید په قرآن، حدیث، اجماع او د علماء کرامو او صحابه کرامو په اقوالو سره رد کړے شویدے۔

○ د قرآن کریم په یولسو (۱۱) آیتونو کښې د تقلید رد دے چه هغه زمونږ په رساله (حقیقة التقلید واقسام المقلدین ص: ۱۲۷-۱۴۳ کښې تفصیلاً اُوګوره)۔

او دا آیت دلیل دے چه کله دوی ته نص (آیت یا حدیث) پیش کړے شی ،نو دوی وائی : ددے نه به مشرانو څهٔ جواب کړے وی۔ یا دا زمونږ حدیث نهٔ دے، د امام شافعیؒ حدیث دے۔ دا بعینه د حدیث رد کول دی۔ او ددے آیت لاندے تفسیر قرطبیؒ، ابن عطیهؒ، ابو حیانؒ او آلوسیؒ وغیره د تقلید رد لیکلے دے۔لکه مخکښې تیر شو۔

۲- اِتَّبِعُوْا مَا اُنْزِلَ اِلَيْكُمْ مِنْ رَّبِّكُمْ وَلَا تَتَّبِعُوْا مِنْ دُوْنِهٖ اَوْلِيَآءَ (اعراف/۳)۔

○ دولس احادیث په رد د تقلید کښې اُوګوره ............ (حقیقة التقلید ص: ۱۴۴- ۱۵۷)

○ پنځه اجماعی دلائل هم هغه رساله کښې اُوګوره ............ (۱۵۸-۱۶۴)

علی رضی الله عنه فرمائی : [اِيَّاكَ وَالْاِسْتِنَانَ بِالرِّجَالِ]. (اعلام الموقعین ۲/۱۹۵)

(د سړو پسے (بے دلیله) مهٔ ورځه)۔

عبد الله بن مسعود رضی الله عنه فرمائی : [لَا يُقَلِّدَنَّ اَحَدُكُمْ دِيْنَهٗ رَجُلًا، اِنْ آمَنَ آمَنَ وَاِنْ كَفَرَ كَفَرَ]

(جامع بیان العلم وفضله ۲/۱۳۷) مجمع الزوائد ۱/۱۸۰) المیزان للشعرانی (۱/۴۷)

(یو تن دے په تاسو کښې خپل دین دیو سړی نهٔ تابع کوی۔ که هغه ایمان راوړی نو دائے هم راوړی او که هغه کفر کوی نو دائے هم کوی)۔ نهٔ، بلکه تحقیق پکار دے۔

ټولو سلفو د تقلید نه منع کړیده، او فقه حنفی کښې هم ددے تردید شته، ددے وجه نه خلقو ته دا اشکال هم راځی چه دے فقهاؤ د تقلید نه منع کړیده او پخپله ئے کوی هم ؟ دا څهٔ وجه ده ؟ نو ددے جواب دا دے چه دے فقهاؤ کوم تقلید رد کړیدے نو هغه ئے صحیح کار کړیدے، او خپله مقلدین نهٔ وو بلکه کوم ځائے کښې ئے چه دیو امام قول اخستے وی نو دیته موافقة الرأی والاجتهاد وائی، د دوی رایه ددغه امام د وینا سره برابره شوی وی، ځکه چه دا روستو امام هم مجتهد دے، صرف فرق دا دے چه هغهٔ مسئله د کتاب او سنت معلومه کړه او ددے روستو امام او عالِم ذهن هغه واخسته او اجتهاد ئے ددهٔ د اجتهاد سره برابر شو۔لکه امام طحاویؒ ته خلق حنفی وائی او حال دا چه هغه په خپله په تقلید ردکوی فرمائی :[وَهَلْ يُقَلِّدُ اِلَّا غَبِيٌّ اَوْ عَصِبِيٌّ]

تقلید خو یا غبی کوی یا عصبیت والا۔ (لسان المیزان ۱/۲۸۰)

طحاویؒ فرمائی : قاضی ابوعبیدؒ به ما سره د مسائلو تذکره کوله نو یوه ورځ ما په یو مسئله کښې یو جواب ورکړو نو هغه اُووئیل : (مَا هٰذَا قَوْلُ اَبِیْ حَنِیْفَةَ) دا خو د امام ابوحنیفةؒ خبره نۀ ده، نو ما ورته اُووئیل : (اَیُّهَا الْقَاضِیْ اَوَکُلُّ مَا قَالَهٗ اَبُوْحَنِیْفَةَ اَقُوْلُ بِهٖ) اے قاضی ! آیا هر څۀ چه ابوحنیفةؒ وئیلی وی، نو زۀ به ئے هم وایم څه ؟) هغه راته اُووئیل :(مَا ظَنَنْتُكَ اِلَّا مُقَلِّدًا)۔ ما خو په تا باندے گمان کولو چه تۀ مقلد ئے۔ نو ما ورته اُووئیل : (وَهَلْ یُقَلِّدُ اِلَّا عَصِیٌّ)۔ تقلید خو عصبیت والا (یعنی ضدی تعصب والا انسان) کوی۔ نو هغه پکښې دا الفاظ زیات کړل۔ (اَوْغَبِیٌّ) یا ئے کم عقل انسان کوی۔تردے چه دا کلمه په مصر کښې مشهوره شوه او متل اُوګرزیده۔

(رفع الاصر عن قضاة مصر للحافظ ابن حجر العسقلانی ص (۱۲۰)

نوویؒ په ابتداء د ((مجموع شرح المهذب ۱/ ۴۰)) کښې لیکلی دی چه مونږ شوافع نۀ یو (بَلْ وَافَقَ رَاْیُنَا رَاْیَ الشَّافِعِیِّ) ...... بلکه زمونږ رایه د امام شافعیؒ د رائے سره موافق شویده۔

(او په ړندو سترګو د هغې پسے نۀ یو ورغلی)۔

۳ ...... فواتح الرحموت شرح مسلم الثبوت (۱/۴۰۷) کښې دی :

[وَلَمْ یُوْجِبِ اللّٰهُ اَنْ یَّکُوْنَ حَنَفِیًّا اَوْ شَافِعِیًّا اَوْ حَنْبَلِیًّا] ۔ الله تعالیٰ په هیچا نۀ دی واجب کړی چه هغه حنفی، شافعی یا حنبلی جوړ شی۔ دا د هغه د عبارت حاصل دے۔

٤ ...... ملا علی القاریؒ په شرح د ((عین العلم)) کښې وائی : [وَلَمْ یُوْجِبِ اللّٰهُ عَلٰی اَحَدٍ اَنْ یَّتَمَذْهَبَ بِمَذْهَبٍ مُّعَیَّنٍ وَاَنْ یَّکُوْنَ حَنَفِیًّا اَوْ شَافِعِیًّا] یعنی الله تعالیٰ دا په هیچا باندے نۀ دی واجب کړی چه خاص یو مذهب راوتیسی، یا حنفی یا شافعی شی)۔ نو مقلدینو له خو د خپلو مشرانو خبره منل پکار دی۔ شرح عین العلم (۱/۴۱۵)

**دغه شان** اقوال د ابوحنیفه، مالك، شافعی او احمد (رحم الله الجمیع) د تقلید په رد کښې موجود دی۔

**امام ابوحنیفه** رحمه الله تعالیٰ فرمائی : [وَیْحَكَ یَا یَعْقُوْبُ لَا تَکْتُبْ عَنِّیْ کُلَّ شَیْءٍ فَاِنَّمَا اَنَا بَشَرٌ اَقُوْلُ الْقَوْلَ الْیَوْمَ وَاَرْجِعُ عَنْهُ غَدًا] ۔ اے ابویوسف ! خوار شے ما نه هر شے مۀ لیکه، ځکه زۀ انسان یم، نن یوه خبره اُوکړم او صبا له د هغې نه رجوع کوم)۔

(المستفاد من ذیل تاریخ بغداد ۲/ ۷٤) تاریخ بغداد (۱۳/ ٤۲٤) تاریخ یحیی بن معین (۱/ ۷۰) الانتقاء فی فضائل الثلاثة الائمة الفقهاء لابن عبد البر) موسوعة الرد علی الصوفیة (٥١ / ۲۲) لمجموعة من العلماء)

۲– دارنګه فرمائی : کله چه حدیث صحیح ثابت شی نو هغۀ زما مذهب دے۔

(الوجیز فی عقیدة السلف لعبد الله بن عبد الحمید الاثری) وشرح کتاب التوحید لسلیمان اللهمید)

۲- **امام مالک** رحمه الله فرمائی : [إِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ أُخْطِئُ وَأُصِيبُ]۔
زهٔ انسان یم خطاء کیږمه هم او حق ته هم رسیږم۔
۲- د هر چا د قول او د عمل نه به څهٔ اخستلے شی او څهٔ به پریخودلے شی ما سوا ددے قبر والا نه (اشاره ئے اُوکړه قبر د رسول الله ﷺ ته او دا په مسجد نبوی کښې ناست وو)
(موسوعة الدفاع عن رسول الله ﷺ لنايف بن محمود)
۳- **امام شافعی** رحمه الله فرمائی : د ټولو مسلمانانو پدے اجماع ده چه چا ته د رسول الله ﷺ سنت واضح شی، نو دهٔ له جائز نهٔ دی چه دا د چا د قول د وجه نه پریدی۔
(الرساله للشافعیؒ ص: ٤٢٤)
٤- **امام احمد** رحمه الله امام ابوداؤدؒ ته فرمائیلی وو : زما او د امام مالك، او د امام ثوریؒ او د امام اوزاعیؒ تقلید مهٔ کوه او اخستل کوه د هغه ځائے نه چه دوی د هغے نه اخستل کړیدی (چه هغه کتاب او سنت دے) الدرر السنية فى الاجوبة النجدية (٣١٤/٦)۔
او دا خبره غلطه ده چه هغوی په قرآن او سنت پوهیدل او مونږ به نهٔ پوهیږو، بلکه مونږ چه دا نحو وصرف وایو، نو ددے غرض هم دا دے چه په قرآن او حدیث باندے ځان پوهه کړو۔ اګر که مونږ دے سلفو ته نشو رسیدلے۔ لیکن د قرآن او حدیث نه اخذ کول مشکل کار نهٔ دے۔
۲- دارنګه فرمائی : د سړی د فقاهت کموالے دا دے چه په دین کښې د نورو خلقو تقلید کوی۔
(الدرر السنية فى الاجوبة النجدية : ٢٦/٥)۔
دارنګه ابن عبد البرؒ د علماؤ اجماع نقل کړیده فرمائی: أَجْمَعَ الْعُلَمَاءُ عَلَى أَنَّ الْمُقَلِّدَ لَيْسَ مَعْدُودًا مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ) د علماؤ پدے اتفاق دے چه مقلد په علماؤ کښې شمار نهٔ دے۔
(الدرر السنية ٢٦/٥) واعلام الموقعين لابن القيم (٧/١)۔
نو څوك چه ځان ته مقلد وائی دا به جاهل وی۔ ۳- قرطبیؒ لیکی : تقلید د علم لاره نهٔ ده او نهٔ دا رسوونکے دے علم ته په اصولو کښې او نهٔ په فروعو کښې او جاهل حشویه او ثعلبیه وئیلی دی چه دا لاره د پیژندلو د حق ده او واجب دے۔ (قرطبی ٢١٢/٢)
٤- ابن القیمؒ په ((القصيدة النونية)) کښې وائی :

| إِذْ أَجْمَعَ الْعُلَمَاءُ أَنَّ مُقَلِّدًا | ○ | لِلنَّاسِ وَالْأَعْمَى هُمَا أَخَوَانِ |
|---|---|---|

(د علماؤ پدے اجماع ده چه د خلقو تقلید کونکے او ړوند دواړه برابر دی)۔

| وَالْعِلْمُ مَعْرِفَةُ الْهُدَى بِدَلِيلِهِ | ○ | مَا ذَاكَ وَالتَّقْلِيدُ مُسْتَوِيَانِ |
|---|---|---|

(ځکه علم خو مسئله سره د دلیل نه پیژندلو ته وائی، دا او تقلید دواړه چرته برابر دی !!)۔

او څوك چه تقليد پريدى او الله تعالىٰ ورته د تحقيق حلاوت او خوند ورنصيب كړى نو هغه بانديے الله تعالىٰ د اجتهاد لاره راكولاووى او حق ته ئے زر رسوى۔ او څوك چه تقليد كوى نو هغوى د جزئيو پسے ګرځى چه آيا دا مسئله ثابته ده او كه نهٔ او د هغے د اصل او دليل نه خبر نهٔ وى۔

نو غرض دا چه تقليد يو مردود شے دے، او عِلم نهٔ بلكه جهالت دے، بيا هم خلق ځان له جهالت خوښوى !!۔ ......... او خاصكر عوام خو احناف، مالكيه، حنابله او شوافع نشى جوړيدے لكه شامىؒ او دغه شان ابن قيم رحمه الله په «اعلام الموقعين» كښ ليكلى دى۔ چه د اَمى سړى هيڅ مذهب نشى كيدے ځكه مذهب د هغهٔ چا كيدے شى چه د هغه دپاره اهليت د نظر او فكر وى، د يو عالِم كتاب اُوګورى او د هغه د خبره پسے روان شى۔ او امى سړے خو په كتاب نهٔ پوهيږى نو د هغه عالِم تقليد به څنګه اُوكړى، امى ته لكه څنګه چه قرآن او حديث نهٔ دے ياد نو دغه شان فقه هم ورته نهٔ ده ياده۔ بعض جاهل مُليان وائى : تاڼګے وال په حديث څهٔ پو هيږى۔ مونږ وايو : تاڼګے وال په هدايه او شامى څهِ پو هيږى لكه څنګه چه په حديث نهٔ پو هيږى، نو هدايه خو د حديث نه لا ډيره ګرانه ده۔نو تهٔ به ئے ورته ورښائے، نو تهٔ ورته كتاب او سنت ورو ښايه، هدايه ورته څه له ښائے۔ نو دامى مذهب د هغه د مفتى مذهب دے۔ په امى بانديے واجب ده چه د هر پيښكى والا مُلا نه به تپوس نهٔ كوى بلكه د قرآن او د حديث د ماهر نه به تپوس كوى، او د دليل مطالبه به ترے كوى، او كه دهٔ د هر چا نه تپوس كولو او هغه ورته غلطه مسئله اُوخودله نو الله به دا راګيروى۔

الله فرمائى : ﴿فَاسۡـَٔلُوۡۤا اَهۡلَ الذِّكۡرِ اِنۡ كُنۡتُمۡ لَا تَعۡلَمُوۡنَ﴾ يعنى د قرآن او حديث والو نه تپوس كوئ كه تاسو نهٔ پو هيږئ) نو اهل الذكر به د الله د حكم جواب دركړى لكه صحابه كرامو (رضى الله عنهم) كښِ اميان هم ډير وو، هغوى به د الله تعالىٰ او د هغه د رسول د حكم تپوس كولو، نو جواب به ورته داسے وركړے شو چه رسول الله ﷺ دغه شان كړيدى، او دغه شان ئے فرمائيلى دى۔ لكه اُوس هم اميان دغه شان تپوس كوى خو مُليان ورته د شامى نه جواب وركوى۔ نو پدے كښِ به د هغه عالِم شكريه اداء شوه، او بيا به د هغه پسے نهٔ روانيدلو چه د هغه د طرف نه مدافعت شروع كړى، او د هغه د طرف نه جلسے او جلوسونه او مناظرے شروع كړى، لكه نن صبا د تقليد دغه حاصل دے۔

او د **تحقيق حاصل** دا دے چه كه يو عالِم ښهٔ خبره اُوكړه نو هغه به منے او فائده به ترے اخلى، د بيټرى او شونټئ په شان، ليكن د هغه نه به قبله او مقصود نهٔ جوړوے چه بس د هغه هره خبره د كاڼړى كرخه اُوګڼړے، او دے دليله خبرو پسے ورله روان شے۔ او كه يو عالِم په يوه مسئله كښِ خطاء شو نو د هغه تابعدارى به نهٔ كوے، او ددے سره د هغه عالِم اكرام به كوے، د هغه په خطائى سره د

هغه په عزت او اکرام کښې هيڅ فرق نۀ راځي ليکن په وخت د خطائي کښې د هغه تابعداري کول گمراهي او د خواهش تابعداري ده۔

او مُليان هم مقلدين نشي کيدے ځکه چه هغوي مامور دي په اتباع د کتاب او سنت او دے دليله خبرو پسے د روانيدو نه منع شويدي۔ الله فرمائي :

﴿وَلَا تَقْفُ مَا لَيْسَ لَكَ بِهِ عِلْمٌ﴾ (الاسراء : ۳۶)

(مۀ روانيږه د هغه خبرے او کار پسے چه ستا پرے عِلم نۀ وي)۔

پدے کښې آيت فکر اُوکړه، دا آيت د تقليد په حراموالي باندے ښکاره دليل دے۔

نو د تقليد مسئلے ټول خرافات او وهميات دي، هيڅ حقيقت نۀ لري، خلق د اوهامو پسے روان دي۔ که د تقليد نه ځوك خلاص شو نو الله به ورته د کتاب او سنت خوند او د الله او د رسول محبت په نصيب کړي لکه دا خبره په مشاهده کښې راغلے ده۔

مقلدينو ته دا **چيلنج** دے چه دوي دے د امام ابو حنيفةؒ يا بل يو امام نه داسے ثابت کړي چه هغوي خپل تقليد ته دعوت ورکړے وي بلکه هغوي د الله او د رسول تابعدارئ ته دعوت ورکړيدے۔ بلکه دوي د امام ابو حنيفةؒ خبره هم پريخے ده، هغه فرمائي : کله چه زما خبره د حديث خلاف وي نو په ديوال ئې گوزار کړئ۔ نو آيا مقلدينو چرته يوه مسئله د امام ابو حنيفةؒ په ديوال ويشتلے ده ؟ بلکه د صاحب هدايه طريقه خو دا ده چه د امام صاحب دوه روايته ذکر کړي، قديم او جديد نو د دواړو دپاره د خپل ځان نه د خپلے کارخانے دليلونه وائي چه دواړه صحيح دي۔ او کوشش کوي چه هسے نه چه مخکنے قول ئې خطاء ثابت نۀ شي۔ دا کوم ضد او عناد دے او د حديثونه وړاندے والے دے!!۔

بلکه نن سبا چه کوم تقليد شروع دے نو دا تقليد د مقلدينو دے ځکه چه د امام صاحبؒ خپل هيڅ کتاب نشته چه د هغے پسے خلق روان شي بلکه مقلدين مُليان چه فتوي ورکوي نو د هدايه او شامي او عالمگيري نه ئې ورکوي، او دا د امام صاحبؒ نه په سلګونو کلونه روستو راغلي دي۔ نو دوي دعوئ د امام ابو حنيفةؒ د تقليد کوي او مسائل د نورو مُليانو مني، بلکه خپله ئې ليکلي دي چه امام ابو حنيفةؒ اوويا زره مسائل کړيدي، او په فقه حنفي کښې دولس لاکهه مسئلے دي، نو ته سوچ اُوکړه يولس لاکهه ديرش زره مسائلو کښې خو د امام صاحب تقليد اُونشو؟!۔

د تحقيق صحيح طريقه دا ده چه ټول مذاهب اُوګوره (يعني فقه مقارن) نو په هغے کښې چه کوم مذهب د دليل زيات موافق وي، هغه راواخله او باقي هغه عالِم ته اُوسپاره نو د ټولو کتابونو نه

فائدے اخستل پکار دی، او د تحقیق مقصد دا نۀ دے چه ټول کتابونه او مذاهب رد کړے شی لکه مقلدین دا کار کوی چه یو مذهب (د خپل خواهش مطابق) راواخلی او باقی د ډیرو علماؤ مذاهبو ته بد ګوری، هغے ته اُوریدل ګناه کبیره او موجب د حد ګنړی۔

آخر کښې مونږ مقلد مُلا ته وایو چه تۀ به ځان ته یا جاهل وائے یا عالم؟، که عالِم وائے نو د قرآن او حدیث مطالعه کوه او مسائل ترے اخله او کومو علماؤ چه کتابونه لیکلی دی هغے کښې قرآن او حدیث ګوره او عوامو ته مسائل بیانوه۔ تقلید ته دے حاجت نشته۔ او که جاهل ئے نو بیا به تۀ هیڅ آیت او حدیث په دلیل کښې نۀ پیش کوے (لکه د دوی فقهاؤ دا اصول لیکلی دی چه د مقلد د آیت او حدیث سره کار نشته – رجوع الی الحدیث مقلد کا وظیفہ نہیں۔ احسن الفتاوی)

نو تۀ څنګه د تقلید د اثبات دپاره آیت او حدیث او عقلی دلیلونه او منطقی قاعدے پیش کوے، دا خو تۀ د خپلو اصولو نه اُوتختیدے۔ دلته خو مجتهد شو او په نورو مسئلو کښې ځان جاهل ګنړی۔ عجیب تناقض دے ؟! وبالله التوفیق۔

اُوګوره زمونږ کتاب تحفة المناظر یا تناقضات المقلدین)۔

﴿بَلْ نَتَّبِعُ﴾ اتباع هغه ته وائی چه په دلیل سره وی او تقلید هغه دے چه بے دلیله وی، نو پدے باندے سوال دے چه دلته خو اتباع استعمال ده او حال دا چه مشرکانو سره هیڅ دلیل نۀ وو؟۔

جواب دا دے چه اتباع لغت کښې دوه قسمه راځی کله ممدوح وی، او کله مذموم وی که په نیکئ کښې تابعداری اُوکړے شی، نو دا ممدوح ده، او که په بدئ کښې اُوکړے شی نو مذموم ده، او دلته اتباع مذموم ده۔ او هرچه شرعی اتباع ده نو هغه په دلیل سره وی۔ د الله او د رسول او د ما انزل الله وی۔ او تقلید اصطلاحی ټول مذموم دے۔

او کوم علماء چه په کښې ممدوح او مذموم جوړوی لکه حافظ ابن القیمؒ په اعلام الموقعین کښې دوه اقسام جوړ کړیدی نو د هغے مطلب دا دے چه د عالِم نه تپوس ته ئے تقلید وئیلے دے۔ حال دا چه هغے ته په شریعت کښې [مَعْرِفَةُ حُكْمِ اللهِ فِي الْمَسْئَلَةِ] او [سُؤَالُ اَهْلِ الذِّكْرِ فِي الْمَسْئَلَةِ] (یعنی د الله حکم په مسئله کښې معلومول یا د اهل الذکر نه په یوه مسئله کښې تپوس کول) وئیلے شی۔ دیته تقلید نۀ وائی ځکه چه امی باندے واجب ده چه د الله او د رسول د حکم تپوس به د أعلم (لوئی عالِم) نه کوی۔ او پدے باندے امر راغلے دے۔ او که دے ته څوک تقلید نوم ورکوی نو دا به د هغه اصطلاح وی او په اصطلاح کښې څه بخل نۀ وی، خو معروف اصطلاحی تقلید هغه دے چه بے دلیله وی۔

او مونږ وایو چه مقلدینو له بیا پکار دی چه په خپله زمانه کښې د لوئی عالِم نه تپوس اُوکړی

نو آیا په امت کښې صرف یو عالِم په دین پوهه شو، او د هغه تقلید واجب شو، او په لکونو صحابه کرامؓ او علماء عظامؒ تول شاته گوزار شو، دا کوم دین او کوم عقل دے ؟!۔
او دے تقسیم کښې نقصان دا پیدا کیږی چه د هر مقلد نه چه تپوس اُوکړے شی نو هغه خپل تقلید ممدوح گنړی، او حال دا چه غلط تقلید به کوی۔ نو پدے سره خلقو ته غلطه لاره کولاوېږی۔ داسے کومه مسئله ده چه هغه الله او رسول نهٔ وی بیان کړی، او امت ورته محتاج وی او صرف امامانو ایجاد کړی وی؟!۔
﴿ اَوَلَوْ كَانَ آبَاؤُهُمْ ﴾ همزه د استفهام دپاره ده، او مقصود پکښې توبیخ او زورنه ده، او لفظ د (يَتَّبِعُوْنَهُمْ) پټ دے او (لَوْ) وصلیه دے۔ معنیٰ دا ده : آیا دوی د خپلو مشرانو تابعداری کوی اگر که د دوی مشران بے عقله وی)۔ نو پدے کښې ابو حیانؒ وئیلی دی چه پدے کښې رد دے په تقلید د آباؤ باندے په هر حال کښې کله چه بے دلیله وی، او پداسے حال کښې خو اتباع بالکل مناسب نهٔ ده چه کله هغوی بے عقله هم وی۔
﴿ لَايَعْقِلُوْنَ ﴾ د عقل نه مراد په حق باندے پوهه ده، او د لَايَهْتَدُوْنَ نه مراد د حق تابعداری کول او په حق باندے عمل کول دی۔ یعنی دوی په حق نهٔ پوهیدل او نهٔ ئے پرے عمل کولو۔

| وَمَثَلُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا كَمَثَلِ الَّذِىْ يَنْعِقُ بِمَا |
| --- |
| او مثال د هغه کسانو چه کفرئے کړے په شان د هغه سړی دے چه آوازونه کوی هغه گډو بزو ته |
| لَايَسْمَعُ اِلَّا دُعَاءً وَّنِدَآءً صُمٌّ بُكْمٌ عُمْىٌ فَهُمْ لَايَعْقِلُوْنَ ﴿۱۷۱﴾ |
| چه نهٔ آوری مگر آواز او چغه۔ دوی کاڼهٔ دی، گونگیان دی، ړانده دی۔ نو دوی سوچ نهٔ لری۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کښې د کافرانو مثال راوړی چه دوی لا يَعْقِلُوْنَ (بے عقله) او قليل الفهم (ناپوهه) دی۔ او مخکښې سره ئے **مناسبت** دا دے چه مشرانو پسے ځی او مَا اَنْزَلَ اللهُ پریدی، او د حق داعی خبره نهٔ آوری۔
مطلب د آیت دا دے : ۱- پدے کښې الله تعالیٰ د کافرانو تشبیه د څاروو (ځناورو) سره ورکړے ده چه لکه څنگه شپونکے کله خپلو څاروو ته آواز ورکوی، نو هغه څاروی صرف آواز آوری، لیکن د هغے په معنیٰ هیڅ نهٔ پوهیږی، بعینه دغه حال ددے کافرانو دے چه الله تعالیٰ دوی لره د حق او هدایت لارے ته رابللی، قرآن نازلوی، او د الله رسول ﷺ هغوی ته صفا صفا بیان کوی، لیکن هغوی د بد قسمتیٔ په وجه په هیڅ نهٔ پوهیږی، هسے آواز به ئے په غوږونو لگی لیکن

په مقصد ئې نۀ پوهیږي چه دا څۀ مونږ ته وئیلې کیږي. دا کوم طرف ته روان یو او دا څۀ دعوت مونږ ته کیږي. ځکه چه د صحیح عقل نه محروم دي، هغوی د حق آوریدو نه کانړۀ شویدي، چاړاګان دي، د حق آواز جواب نۀ ورکوي، او رانده دي چه زرګونه دلیلونه د هغوی مخې ته تیریږي لیکن هغې ته هیڅ توجه نۀ ورکوي. (محرر الوجیز، تیسیر الرحمن).

نو تقدیر د عبارتونو به داسې وي [مَثَلُ دَاعِي الَّذِينَ كَفَرُوا] (مثال د دعوت کونکي کافرانو ته) یا [مَثَلُكَ وَمَثَلُ الَّذِينَ كَفَرُوا] (اې نبي او اې داعي ستا مثال او ددې کافرانو مثال د شپونکي او ګډو بزو دې) (نو دا دوه مثالونه شو) یا [مَثَلُ الَّذِينَ كَفَرُوا حِينَ يُنَادَوْنَ كَمَثَلِ دَوَابِّ الَّذِي]

(یعنې د کافرانو مثال کله چه دوی ته الله طرف ته دعوت ورکولې شي په شان د ګډو بیزو د هغۀ شپونکي دې) (بدائع التفسیر واعلام الموقعین ۱/۱۸۲).

او د ټولو حاصل مطلب همدغه یو دې.

۲- دویم دا مثال د مشرکانو د خپلو باطلو آلهو نه د بلنې او مدد غوختلو دې، یعنې مشرکان چه خپلو آلهو ته آوازونه کوي، داسې مثال لري لکه یو سړې خپلو ګډو بزو ته آواز کوي او ګډې بزې اګرکه آواز او چغه آوري، لیکن هغه پرې پوهیږي نۀ او هیڅ جواب او فائده نۀ ورکوي، نو دغه شان د دوی باطل معبودان هیڅ نۀ آوري او دوی له فائده نۀ شي ورکولې. د دوی حاجات نشي پوره کولې، آواز ئې ضائع دې، هسې به ځان ستړې کړي لیکن کار به ئې اونشي. دلته به تشبیه په ټولو امورو کښې نۀ وي بلکه تشبیه د مرکب ده د مرکب سره یا تشبیه په ضائع کیدو د آواز کښې ده. نو تقدیر د عبارت داسې دې: [مَثَلُ الَّذِينَ كَفَرُوا فِيْ دُعَوتِهِمُ الآلِهَةَ ...... يا فِيْ دُعَوتِهِمْ غَيْرَ اللهِ] (د کافرانو مثال په رابللو د دوی کښې غیر الله لره داسې برباد دې لکه څنګه چه آواز د شپونکي ګډو بیزو ته برباد دې) (اعلام الموقعین). نو د داعي تشبیه ئې د ناعق (آواز کونکي) سره او د اصنام (بتانو) تشبیه ئې د منعوق (آواز کړې شوي) سره ورکړه. او هر کله چه دوی په خپلو حواسو فائده وانخسته نو دا مشابه شو د هغه چا سره چه هغوی رانده، کانړۀ او ګونګیان وي.

(المحرر الوجیز ۱/۱۸۵) لابن عطیة)

**تشبیه د مفرد:** او که تشبیه د مفرد د مفرد سره شي نو کافران په منزله د بهائمو او چارپیانو دي او کوم داعي چه دوی نیغې لارې او هدایت ته رابلي، هغه په شان د شپونکي دې چه ګډو بزو ته آواز کوي او نیغې لارې ته ئې رابلي. (ابن عباسؓ، عکرمةؒ، سدیؒ، سیبویهؒ- المحرر الوجیز ۱/۱۸۵).

او د داعي دوی لره هدایت ته رابلل په شان د هغه چغې او آواز دي چه ګډو بزو ته کولې شي. او د کافرانو صرف رابلل او آواز باندې پوهیدل په شان د پوهیدو د چارپیانو دې چه صرف د آواز

کونکی آواز باندے پو هیږی، او د مقصد نه ئې خبر نهٔ وی.

(اعلام الموقعین، والامثال فی القرآن لابن القیم والقاسمی ۱/۴۳۲).

۳- دریم مطلب دا هم دے چه دا مثال د هغه چا دے چه تقلید د مشرانو کوی، او د هغوی د حقیقت نه خبر نهٔ وی، لکه چه څاروی د شپونکی د آواز په حقیقت نهٔ پو هیږی، نو دارنګه دا مقلدین د خپلو متبوعینو د حال او حقیقت نه خبر نهٔ دی چه آیا په هغوی کښې عقل، هدایت او علم وو او که نهٔ وو. نو تقدیر د عبارت به داسے وی :[وَمَثَلُ اسْتِدْلَالِ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِآبَائِهِمْ كَمَثَلِ الَّذِيْ آه] یعنی مثال د دلیل نیولو د کافرانو په خپلو مشرانو، داسے دے لکه آواز د شپونکی خپل څاروو ته، نو دا هم عبث دے او هغه هم عبث دے، څاروی هم په حقیقت د آواز باندے نهٔ پو هیږی او دا کافران هم د خپلو مشرانو په حقیقت نهٔ پو هیږی.

﴿ يَنْعِقُ ﴾ نعق د شپونکی آواز کول دی خپلو څاروو ته.

﴿ بِمَا لَا يَسْمَعُ ﴾ د (مَا) نه مراد څاروی (ګډے بزے وغیره) دی.

﴿ اِلَّادُعَاءً وَّنِدَاءً ﴾ دعاء نزدے آواز دے او نداء لرے آواز دے یعنی چغه.

﴿ صُمٌّ بُكْمٌ عُمْيٌ ﴾ یعنی دوی د داعی خبره څکه نهٔ منی چه الله ورله د علم تول اسباب بند کړیدی د دوی د بدبختئ او ضد او عناد د وجه نه.

﴿ فَهُمْ لَا يَعْقِلُوْنَ ﴾ نو دوی په خپله بے عقلئ کښې د مشرانو پسے روان دی، د مشرانو په حال باندے سوچ نهٔ کوی چه هغوی څنګه تیر شویدی. یا دا چه اسباب د علم ترے واخستے شول نو عقل ترے لاړو ختم شو. او مشرك وی همداسے بے عقله، دماغو کښې ئې ګندونهٔ او خوشیان پراتهٔ وی، عظیم خالق پریدی او کمزوری مخلوق ته آوازونه کوی.

| يَـٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا كُلُوْا مِنْ طَيِّبٰتِ مَا رَزَقْنٰكُمْ وَاشْكُرُوْا لِلّٰهِ |
|---|
| اے ایمان والو! خورئ د پاك هغه مالونو نه چه مونږ درکړیدی تاسو ته، او شکر کوئ د الله تعالیٰ |
| اِنْ كُنْتُمْ اِيَّاهُ تَعْبُدُوْنَ ﴿۱۷۲﴾ |
| که چرته تاسو خاص د هغهٔ بندګی کوئ. |

**تفسیر**: اُوس الله تعالیٰ مؤمنانو ته خاص خطاب کوی پس د عام خطاب نه چه تاسو د کافرانو په شان مهٔ جوړیږئ چه د ځان نه حلال حرام جوړ کړئ، او د الله په خوراکونو باندے په شکر امر کوی او پدے کښې رد دے په هغه خلقو چه په طعامونو کښې فراخوالی او د دنیا د څیزونو نه د

مزو او خوندونو اخستلو ته حرام وائي نو الله فرمائي : دا حرام مهٔ گنړئ لکه مشرکانو چه حلال څيزونه په ځان حرام گنړلي دي۔ دارنګه هر کله چه الله تعالىٰ درله ډير او قسماقسم خوراکونه حلال کړي نو تاسو ئې د ځان نه ولې حراموئ۔

## ربط او مناسبت :

(۱) دا خاص خطاب دے پس د عام خطاب نه۔ (۲) د مشرکينو د حال سره ئې مناسبت بالتضاد دے يعنې هغوی ناشکره مشرکين شو نو تاسو شکر گذار عابدين جوړ شئ۔

﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُلُوا مِنْ طَيِّبَاتِ مَا رَزَقْنَاكُمْ ﴾۔

طيبات : ۱- عمر بن عبد العزيزؒ فرمائي : ددے نه مراد طيب الكسب دے يعنې هغه مالونه او خوراکونه خورئ چه تاسو په حلاله طريقه گټلي او پيدا کړي وي۔ او دا مطلب نهٔ دے چه مزيدار او اعلیٰ اعلیٰ خوراکونه کوئ۔ البته که اعلیٰ خوراکونه الله تعالیٰ درکوي بغير د تکلف نه نو د هغے خوړل هم بد نهٔ دي، لکه نبی ﷺ ته به چه اعلیٰ خوراك ملاويدو نو هغه به ئې استعمالولو او چه نهٔ به وو نو بيا به ئې د هغے پسے تکلفات نهٔ کول۔

۲- يا طيبات په خپله معنیٰ دے يعنې: نجس او گنده او ضرری خوراکونه مهٔ کوئ۔

فتح البيان کښې دي چه بعض علماء وائي د طيبات نه مراد خوندور خوراکونه دي، ليکن نبوی طريقه کښې کمال دے لکه چه مخکښې تيره شوه۔

﴿ وَاشْكُرُوا لِلَّهِ إِنْ كُنْتُمْ إِيَّاهُ تَعْبُدُونَ ﴾

يعنې که ستاسو د الله تعالیٰ عبادت خوښ وي او د هغے اراده لرئ، نو د الله تعالیٰ شکر کوئ، نو شکر بعينه د الله تعالیٰ عبادت دے۔لکه د روستو حديث نه معلوميږي۔

او دلته اختيار ورکول مقصد نهٔ دے بلکه ترغيب مقصد دے چه د الله بندگي او شکر اُوکړئ۔ ستاسو پيدائش الله تعالیٰ د همدے مقصد دپاره کړے۔

﴿ وَاشْكُرُوا لِلَّهِ ﴾ : (۱) يعنې اَلْحَمْدُ لِلّٰه پرے اُووايه لکه حديث کښې دي : ((بنده چه روټئ اُوخوری يا اُوبه اُوڅکی او د الله حمد پرے اُووائي نو الله ترے رضا کيږي)) (صحيح مسلم رقم (۸۹)۔

(۲) ...... يا د طعام نه روستو عبادت اُوکړی په مانځه اُودريږی نو دا يو شکر شو۔

(۳) ...... او د هغه احسان اُومنئ چه هغه درکړل۔

نبی ﷺ فرمائي : ((الله تعالیٰ مؤمنانو ته په هغه څهٔ حکم کړے چه پيغمبرانو ته ئې پرے کړے، پيغمبرانو ته ئې ويلي دي :﴿ يَا أَيُّهَا الرُّسُلُ كُلُوا مِنَ الطَّيِّبَاتِ وَاعْمَلُوا صَالِحًا ﴾

(پاك خوراکونه کوئ او نيك عمل کوئ) او مؤمنانو ته ئې دلته فرمايلي دي : ((چه حلال

خوریٔ او شکر کویٔ»، نو شکر د الله بعینه نیك عمل دے۔ نو (وَاعْمَلُوْا صَالِحًا) د (وَاشْكُرُوْا لِلّٰهِ) تفسیر شو۔ د رزق مقابله کښې به نیك عمل کوے، هله به شکر گذار جوړیږے۔ داسے نهٔ چه د الله قسم قسم نعمتونه او خوراکونه او مزے حاصلے کړے او مونځ هم نهٔ کوے۔ او ډیر خلق په رزقونو کښې ناشکری کوی۔ څوك چه د الله نه په لږ رزق رضا شو، الله ترے په لږ عمل رضا کیږی، او که څوك په ډیر رزق نهٔ رضا کیږی نو الله ترے په ډیر عمل نهٔ رضا کیږی۔ او ناشکری د رزق دا ده چه تهی وی ته ناست وی او خوراك کوی، په حرامو ئے لگوی۔ نسبت ئے خپل ځان یا باباگانو ته کوی۔ د الله تعالیٰ نه غفلت کوی او عبادت ئے نهٔ کوی۔

**فائده** : حلاله روزی د دعا او د عبادت د قبلیدو سبب دے او حرام خوری سره دعا او عبادت رد کیږی لکه د ابو هریره ﷺ نه مرفوعاً روایت دے چه «یو سړے به اُوږد سفر کوی، پراگنده ویښتو والا به وی، پریشان حال به وی او خپل دواړه لاسونه به ئے آسمان طرف ته پورته کړی وی، یا رب یارب آوازونه به کوی حال دا چه ددهٔ خوراك به حرام وی، څکاك به ئے حرام وی، لباس به ئے حرام وی او د حرامو په ذریعه به ددهٔ پرورش شوے وی نو ددهٔ دعا به څنگه قبوله شی ؟»۔ (صحیح مسلم)

څکه ئے دلته د حلال خوړلو نه روستو د شکر کولو حکم اُوکړو چه د دواړو مناسبت دے۔

○ څوك چه حلال خوری، ددهٔ نه به د الله طاعت او عبادت کیږی که دا ئے غواړی او که نهٔ۔ او څوك چه حرام خوری، ددهٔ نه به د الله عصیان او نافرمانی کیږی که دا ئے غواړی او که نهٔ۔ (سَهْل التُّسْتَرِی) او دا ډیر عجیبه راز دے۔

| إِنَّمَا حَرَّمَ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةَ وَالدَّمَ وَلَحْمَ الْخِنْزِيْرِ |
|---|
| یقیناً الله حرامه کړیده په تاسو باندے مرداره او وینه (بهیدلے شوے) او غوښه د خنزیر |
| وَمَآ أُهِلَّ بِهٖ لِغَيْرِ اللّٰهِ فَمَنِ اضْطُرَّ |
| او هغهٔ څیز چه آواز اُوکړے شی په هغے باندے دپاره (د نزدے والی) د غیر الله۔ نو څوك چه مُحتاج شو |
| غَيْرَ بَاغٍ وَّلَا عَادٍ فَلَآ إِثْمَ عَلَيْهِ إِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۱۷۳﴾ |
| چه نهٔ دے طلبگار د خوند او نهٔ دے زیاتی کونکے، نو نشته گناه په دهٔ، یقیناً الله بخونکے مهربان دے۔ |

**تفسیر** : ددے ځائے نه اُوس (محرماتِ الٰهیه) یعنی د الله حرام کړے شوی څیزونه بیانوی چه دا په تاسو حرام دی (دے ته به حرام وایئ) او باقی څیزونه چه دین کښې نهٔ دی حرام شوی هغه حلال دی۔

**مناسبت** : ○ مخکښې آيت کښې تحريم د ما احل الله باندے رد اُوشو (چه حلال څيزونه په ځان مه حراموئ) نو اُوس رد کوی په تحليل د ما حرم الله. (يعنی حلال ګنړل د هغه څه چه الله حرام کړيدی). ○ مخکښې ئے اُووئيل چه پاك خوراکونه کوئ اُوس ضرورت راغلو چه خبيث او حرام خوراکونه بيان کړی. (قاسمیؒ).

بيا ئے دا څلور محرمات خاص ذکر کړل اګرکه احاديثو کښې نور محرمات هم ذکر دی لکه سپے، شرمخ، زمرے، پيشو، ګيدړ، چندخ وغيره نور خوراکونه (۱) ليکن ددے تخصيص ئے پدے وجه اُوکړو چه دا به مشرکانو حلال ګنړل نو الله تعالیٰ ورته اُوفرمايل : د ځان نه تحليل او تحريم مه کوئ او د الله تعالیٰ حرام شوی څيزونه بعض دا څلور دی. نو دا حصر اضافی دے. يعنی ستاسو د حرامو په نسبت دا څيزونه حرام دی. او بحيره، سائبه، وصيله او حام او د باباګانو په نوم باندے حرام شوی څيزونه په اصل کښې حرام نهٔ دی. نو د ځان نه ئے ولے حراموئ.

(۲) دارنګه دا څلور په ټولو آسمانی دينونو کښې حرام وو، نو پدے کښې په يهود، نصاریٰ او مشرکانو باندے رد دے چه دا خو اتفاقی حرام دی او تاسو ددے مخالفت کوئ. نو دلته حصر (راګيرول) د ټولو محرماتو مقصد نهٔ دے.

﴿ الْمَيْتَةَ ﴾ هغه حيوان دے چه په خپل مرګ مر شی، او وينه ترے په ذبح سره اُونهٔ وځی. چه ددے بعض اقسام په ابتداء د سورة المائده (۳) آيت کښې ذکر دی.

دا دليل دے چه د مردار حيوان نه هر قسمه فائده د خوراك وغيره اخستل حرام دی سوئ د هغے نه چه په احاديثو کښې د هغے تخصيص شوے دے لکه ماهيان (او د سمندر مرداره) او ملخان، جائز دی. (موطا، مسند، سنن)

يا وينسته د مردارے او وړئ او هډوکی او څرمن د هغے کله چه رنګ کړے شی. نو ددے نه (د خوراك نه علاوه) فائده اخستل جواز لری. نبی ﷺ يوه چيلئ اُوليدهٔ چه مرداره پرته وه وے فرمايل : تاسو ددے د څرمنے نه ولے فائده نهٔ اخستله ؟ خلقو اُووئيل : دا خو مرداره ده. وے فرمايل : ددے خو صرف خوراك حرام دے.

د ﴿ الدَّمَ ﴾ نه مراد (اَلدَّمُ الْمَسْفُوْحُ) بهيدونکے وينه ده. چه هغه د رګونو وينه ده. او کومه وينه چه د ذبح نه روستو په غوښه کښې وی، يا په وازدهٔ يا هډوکو پورے لګيدلے وی نو هغه پاکه ده. د صحابه کرامؓ په زمانه کښې استعمال شويده. او حديث کښې د دوه قسمه نورو وينو استثناء هم راغلے ده چه هغه ګِيډ (جګر، اينه) او طحال (تورے). (ترمذی بسند صحيح).

وينه د هر قسم استعمال دپاره نا روا ده، چرګانو له ورکول هم حرام، او دا چائے کښې اچول، يا ددے

نه پالش جوړول دا ټول حرام دي. حدیث کښې دي:

[إِنَّ اللّٰهَ إِذَا حَرَّمَ شَيْئًا حَرَّمَ ثَمَنَهُ] ...... (مسند احمد : ۲٦٧٨ والدارقطنی وغیرهما بسند صحیح)

(الله چه کله یو شے حرام کړی نو د هغې پیسے هم حرامے کړی).

﴿وَلَحْمَ الْخِنْزِيرِ﴾ غوښه ئے ذکر کړه ځکه چه دا ډیر استعمالیږی او دا مقصود اصلی دے او مراد ترے نه ټول بدن دے. امام قرطبیؒ لیکی: دا ټول بدن ته شامل دے سوئې د ویښتو نه چه دا د ګنډلو دپاره استعمالول جائز دي. خنزیر کښې الله ډیر بد صفات اچولی دی نو کله چه ددهٔ غوښه وغیره استعمال کړے شي، په انسان کښې هغه بد صفات راځي نو ځکه شریعت ددهٔ هرڅه حرام کړیدی او دا ئے نجس العین ګرځولے دے. خنزیر بے حیاء دے، بے غیرته دے. پدے وجه یهود او نصارئ دا کوشش کوی چه ددهٔ غوښه او ټول بدن په مختلفو څیزونو کښې استعمال کړی او په مسلمانانو باندے ئے اُوخوروی، په هوټلونو کښې ئے ذبح کوی او زمونږ ډیر جاهلان مسلمانان په هغه هوټلونو کښې کارونه کوی، او دوی د مسلمانانو دے حیاء او بے غیرته کولو دپاره دا او اَلګحل په صابونونو، شرابونو، شربتونو، شیمپوګانو، غوړو، عطرونو، سپرے ګانو او هر قسم موادو کښې استعمالوی. نو مؤمن به ددے څیزونو په استعمال کښې ډیر احتیاط کوی. دے ټولو څیزونو کښې ضرر دے ځکه شریعت حرام کړل.

﴿وَمَا أُهِلَّ بِهِ لِغَيْرِ اللّٰهِ﴾ پدے کښې یو څو تفسیرونه او مصداقونه دي:

(۱) **تفسیر**: (مَا) هغه حیوان (أُهِلَّ) چه آواز اُوکړے شي په هغې دپاره د نذر او نزدیکت د غیر الله (یعنی بابا وغیره). یا د هغه د رضا کولو او د هغه د خوشحالولو په نیت چه دا حیوان د بابا دپاره نذر شو، نو که پدے باندے د ذبح په وخت د الله تعالیٰ نوم هم واخستے شي، هم حرامه ده. لکه څنګه چه په خنزیر او سپی باندے په وخت د ذبح کښې تکبیر وئیلو سره حلت نهٔ شي راتلے، او په مرداره باندے د الله په نوم اخستو سره هیڅ نفع نهٔ حاصلیږی. نو دغه شان د غیر الله په نوم نذر او د هغه په نوم نامزد (مقرر) کولو سره هغه حرام شو نو په وخت د ذبح کښې د الله په نوم اخستو سره هرګز نفع او حلت نهٔ شي راتلے.

۲- **تفسیر**: یا ((أُهِلَّ)) په معنیٰ د (ذُبِحَ) دے. یعنی د غیر الله په نوم ذبح کړے شي. نو دا حیوان حرام دے. یعنی د ذبح په وخت د غیر الله نوم واخلی.

او ددے د حلال والی طریقه دا ده چه دا ناذر (نذر کونکے) د حیوان د ذبح کولو نه مخکښې الله تعالیٰ ته توبه اُوباسی، او د خپل نیت نه رجوع اُوکړی نو ددے په حلالوالے کښې بیا هیڅ شبهه نشته. بیرته به حلال شي ځکه ددهٔ د خبیث نیت او د آواز په وجه په حیوان کښې خباثت راشی

لکه د مرتد او مشرك ذبيحه شريعت ناروا کړيده ځکه چه د هغه خبيثه عقيده په مذبوح حيوان او منذور شي کښې اثر کوي. (الدين الخالص ۴۳/۲) د صديق حسن خان).

## ددے خلورو څیزونو د حراموالی حکمتونه

ددے څیزونو د حراموالی حکمتونه او رازونه دا دی (۱) میته خو ځکه حرامه شوه چه پدے کښې گنده وینه جمع شویده، او د الله تعالیٰ د نوم په نهٔ اخستو سره هغے کښې گندگی پیدا شوے ده نو د الله محبت د هغے نه ختم شو، نو ددے په خوراك سره نفسونو کښې خباثت پیدا کیږي، او د الله د محبت نه کټ کیږي او د مردارے په خوړلو سره زړهٔ مړ کیږي. او د ماهی میته (مرداره) جائز شوه ځکه چه اُوبه پاك شے دے، نجاست پکښې نشته، که د اُوبو په وجه ترے روح اُوځی نو دا پکښې خباثت نهٔ راپیدا کوي.

(۲) او بهیدلے وینه ځکه حرامه ده چه دا د شهوانی او غَضَبی قوتونو مَجْمَع ده او کله چه دا زیاته شي، نو پدے قوتونو کښې طغیان او سرکشی پیدا کوي او دارنگه دا ځائے د روانیدو د شیطان دے. (ابن تیمیة). دارنگه د انسان نه د وینے په خوړلو سره قاتل جوړیږي.

(۳) او د خنزیر غوښه ځکه حرامه ده چه دا خو یو نفس ته ضرر ور کوي لکه ځنګه چه مخکنی څیزونه ضرر ور کوي. ځکه چه په کوم شي کښې چه کوم خوئی او صفت وي د هغه د غوښے د خوړلو په وجه په روح باندے اثر کیږي. او جدید طبیبانو پدے زمانه کښې د خنزیر د غوښے ډیر مُضرات خودلی دی لکه پدے سره په خیټه کښې یو چینجے پیدا کیږي چه د هغے په سبب په کولمو کښې ډیر مرضونه پیدا کیږي لکه پیچش، دستونه، قیء او خوراك ته خواهش نهٔ کیدل، سردرد، بیهوشي، سرگرداني، فکری پریشانی، کله نا کله غوټه او مرگی، تشنج او د اعصابو راغوندیدل، بدن سُستیدل، هضم نهٔ راتلل او سترے ستومانه کیدل او دغه شان نور امراض.

او مَا اُهِلَّ کښې ددے څیزونو او حیواناتو په ذات کښې د حرمت هیڅ وجه نشته، صرف پدے وجه حرام شو چه ددے نسبت غیر الله ته اُوشو، مرکز د توجه بدل شو، ضمیر (زړهٔ) خالص پاتے نهٔ شو، روح پاك پاتے نهٔ شو، زړهٔ د الله دپاره سالِم پاتے نهٔ شو او عقیده او نظریه پاکه پاتے نشوه نو د روحانی سبب په وجه ددے څیزونو استعمال حرام کړے شو او د مادی څیزونو په شان نجس حساب کړے شو او اسلام د ظاهری بدن د پاکئ په نسبت د روح د پاکئ زیات لحاظ ساتی. نو د ناذر غلط نیت په حیوان کښې تاثیر اُوکړو چه د هغے اثر بیا په خوړونکی کښې هم پیدا کیږي.

(محاسن التاویل للقاسمی ۴۳۷/۱ بتغیر وزیادة)

**مسئله** : اُوس دلته دا مسئله واوره چه ابن باز رحمه الله د فتح المجید په تعلیق ص (۱۲۶) کښې لیکلی دی چه چا یو گډ یا یو شے د غیر الله دپاره نذر کړو نو که مشرك ذبح کړو، حرام دے او که یو مسلمان ذبح کړو، بسم الله ئے پرے اُووئیله. نو خوراك ئے جائز دے. او که د حیوان نه علاوه بل یو نذری شے وو، نو اگر که مشرك د بابا په نوم نذر کړے وی خو مؤحد دپاره د هغے خوراك جائز دے. هغه ته شبهه ددے نه پیدا شویده چه په لات بت کښې سرۀ زر پراته وو، هغه راوړے شو او رسول الله ﷺ عروه بن مسعود ثقفیؓ له ورکړل چه ته پرے قرض خلاص کړه. نو که دا حرام وے، رسول الله ﷺ به دغه صحابی له نۀ ورکولے.

**جواب** : دغه حیوان او دغه نذری شے حرام دے ځکه چه غلطه عقیده د ناذر پدے حیوان وغیره کښې اثر کوی. ۱ – لکه دا آیت پرے دلیل دے. نو په نذر د غیر الله کښې نیت لره اعتبار دے، برابره ده که د غیر الله نوم ئے پرے ذکر کړے وی او که نۀ.

نو چا چه مثلًا یوه غوا دیو مړی دپاره نذر کړه نو دا په مجرد (صرف) نذر سره مشرك شو؛ برابره ده که دے د ذبح په وخت د الله نوم اخلی او که د دغه مړی نوم یادوی، ځکه عبرت ددۀ نیت لره دے، او ددے ناذر (نذر کونکی) نیت ددے مړی نه خپل مشکلات دفع کول او فائدے حاصلول وی. ۲ – دویمه وجه دا ده چه دا خو په منکر باندے تعاون دے او د مشرك په خپل شرك باندے ثابت پریخودل دی چه مونږ به مشرکانو ته وایو چه تاسو نذر د غیر الله کوئ مونږ به ئے درله خورو. او کله چه پابندی اُولگولے شی چه مسلمان به دا قسم نذر نۀ خوری نو څوك به دا نۀ کوی. ۳ – او د عائشے رضی الله عنها نه تپوس اُوشو په باره د هغه ځاروو کښې چه عجمیان (مشرکان) ئے په خپلو اخترونو کښې ذبح کوی او مسلمانانو ته ئے هدیه کوی؟ نو هغے اُوفرمایل : هغه ځاروے چه په دغه ورځ ذبح کړے شی د هغے نه خوراك مۀ کوئ. (ځکه دا د غیر الله د تقرب (نزدیکت) دپاره وی، ددے ورځے د تعظیم دپاره ئے ذبح کوی اگر که د غیر الله نوم پرے نۀ وی اخستے شوے). تفسیر القرطبی وفتاوی الدین الخالص (۱۷/٤)

٤ – د حسن بصریؒ نه تپوس اُوکړے شو چه یوه زنانه (جینئ؛ په لوبو کښې) د خپلو گوډو وادۀ جوړ کړی او په هغے کښې اُوښه حلاله کړی؟ نو هغه په جواب کښې اُووئیل : دا به نۀ خوړلے کیږی ځکه دا د صَنَم (بت) دپاره ذبح کړے شوه (اگر که د بت نوم ئے پرے نۀ وی اخستے).

(تفسیر احسن الکلام ۱/٥٦٦)

او هرچه د عروه بن مسعودؓ حدیث دے نو هغه د غنیمت د باب سره متعلق دے او په غنیمت کښې قانون دا دے چه دا که کافرو په هره طریقه پیدا کړے وی، اگر که سود ئے کړے وی، یا ورسره

امانت پروت وی خو چه کله ترے مسلمان اُونیولو نو مسلمان له حلال طیب دے۔ لکه نبی ﷺ به بتانو پسے صحابه کرامؓ لیږل او د هغے خزانه به ئے کتله چه سرهٔ زر (مال) به پکښ راوختل نو هغه به ئے غنیمت حسابولو۔ خالد بن ولیدؓ ئے د لات د ختمولو دپاره اُولیږلو نو هغه د هغے خزانه اُوکتله او د هغے نه ئے لباس او کانړهٔ راویستله او خالد د خپلو ملګرو سره رسول الله ﷺ ته هغه راوړل او رسول الله ﷺ په همدغه ورځ تقسیم کړل، او د الله حمد ئے اُووئیلو چه خپل نبی سره ئے مدد اُوکړو او خپل دین ته ئے عزت ورکړو۔ (الرحیق المختوم ص: ٤٤٩)

صدیق حسن خان په الدین الخالص (٤٣/٢) کښ لیکی: که یو مسلمان ښاروے ذبح کړی او د هغه په ذبح کولو سره د غیر الله د تقرب قصد اُوکړی نو دا شخص مرتد شو او ذبیحه ددهٔ ذبیحه د مرتد ده۔

او جهود علماء الحنفیة (١٥٦٢/٣) کښ علامه شمس الدین السلفیؒ د حنفی علماؤ د کتابونو نه پدے مسئله ډیرے حوالے جمع کړیدی چه هغوی هم دا وئیلی دی چه دا قسم نذر او ذبیحه حرامه ده، صرف ملاجیون تفسیراتِ احمدیه کښ لیکلی دی: چه هغه غوا چه د غیر الله دپاره نذر شی کله چه په هغے باندے د الله نوم واخستے شی نو حلاله ده۔ لیکن خبره ئے غلطه ده۔

**حاصل** دا چه ددے آیت د لاندے هغه حیوانات هم راځی چه جاهل مسلمانان ئے د وفات شوی بزرګانو د عقیدت او محبت، د هغوی د خوشحالولو او هغوی ته د تقرب (نزدیکت) حاصلولو دپاره یا د هغوی نه د ډیرے یا امید ساتلو په نیت د قبرونو او درګاهونو په خواکښ ذبح کوی، یا ئے منجاورانو ته د باباګانو په نوم نذر ونیاز راوړی، لکه په ډیرو بزرګانو او قبرونو باندے ئے بوردونه لګولی وی چه (د داتا صاحب (علی هجویری) د نیاز او نذر دپاره چیلۍ دلته جمع کړئ) نو دا ښاروی اګرکه د ذبح په وخت د الله نوم پرے واخستے شی، او مسلمان ئے هم ذبح کړی او بسم الله اُووائی بیا هم حرام دی، ځکه چه ددے نه مقصود، د الله رضا نهٔ ده بلکه د قبرونو والا رضا او د غیر الله تعظیم یا د غیر الله نه (مافوق الاسباب طریقے سره) خوف (یره) او امید دے، او دا شرک دے، او پدے طریقه د حیواناتو نه علاوه چه د کومو څیزونو د غیر الله په نوم نذر ونیاز او منخته اُوکړے شی نو دا به هم حرام وی لکه قبرونو خواته وړلو سره یا هلته نه اخستو سره د قبرونو په خواؤ شا کښ غریبانو او مسکینانو باندے دیګونه او لنګرونه یا میټهائیانے او پیسے وغیره تقسیمول یا هلته په صندوقچه کښ د نذر او منختے پیسے اچول، یا د عرس په موقعه باندے هلته پیۍ وړل او تقسیمول دا ټول حرام او ناجائز دی ځکه دا ټول د غیر الله دپاره د نذر او منختے صورتونه دی، او نذر هم د مانځه او د روژے وغیره په شان عبادت دے او هر قسم عبادت صرف د یو الله پورے خاص دے۔ حدیث کښ دی: [مَلْعُوْنٌ مَنْ ذَبَحَ لِغَيْرِ اللهِ] (صحیح الجامع ١٠٢٤/٢)

(چا چه د غير الله په نوم څاروي ذبح کړو نو هغه باندې لعنت شويدے)۔
او رسول الله ﷺ د غير الله په نوم باندې د ذبح کولو نه سخته منع فرمائيلې ده۔ يو ے زنانه اُوفرمايل: ما نذر کړے چه زهٔ په بُوانه علاقه کښې اُوښان حلال کړم۔
رسول الله ﷺ اُوفرمايل: آيا هلته د جاهليت څه اختر کيدو، هغې اُووئيل: نهٔ۔ وے فرمايل: آيا په هغې کښې د جاهليت څهٔ وثن (بت) وو چه عبادت ئې کيدے شو؟۔ وے وئيل: نهٔ۔ نو بيا ئې ورته د حلالې اجازت ورکړو۔
۳- تفسير: (مَا) عام دے حيوان، تيل، باتۍ، شمعې، غلافونه، مالګه، جنډے، جرندے، قرآنونه، مسجدونه، اُوبه، وريژے، او غوښه چه د غير الله د تقرب دپاره نذر کړے شي نو دا حرام دي۔
۴- مَا لفظ عبارت دے د کلمې نه يعنې هغه خبره چه د غير الله د تقرب دپاره اُوشي، آواز پرے اُوچت کړے شي او د غير الله تعظيم پکښې راځي نو دا هم حرامه ده لکه اُووئيلې شي فلانے بابا په هوا الوتو او په ترخ کښې به ئې سر نيولو او داسې مړے وو، خلقو سره به ئې مددونه کول۔ نو دا خبرے هم د کفر دي۔ دا معنىٰ زمونږ بعض مشائخو ته منسوب ده۔ ليکن د آيت دا معنىٰ نهٔ ده ځکه دلته خوراکي څيزونه مراد دي۔
**فائده**: دا آيت په قرآن کريم کښې څلور ځائے راغلے دے۔ سورة مائده (۳) او سورة انعام (۱۴۵) او سورة نحل (۱۱۵) آيت کښې۔ دلته ئې (بِهٖ) په (لِغَيْرِ اللهِ) باندې مقدم کړے ځکه چه دلته د ترتيب اصلي لحاظ دے ځکه چه (بِهٖ) د اُهِلَّ پورے متعلق دے او په روستو سورتونو کښې لِغَيْرِ الله لفظ مقدم دے ځکه هلته لحاظ د مقصد شويدے چه هغه غير الله دے۔ چه ددهٔ ذبيحه دومره مقصدي نهٔ ده چه هغه چا اُوخوړله او که نهٔ خو تقرب غير الله ته مقصد وو چه هغه حرام کار دے۔
**فائده**: امام بخاريؒ د عائشې رضي الله عنها نه روايت کړيدے چه څهٔ خلقو د نبي کريم ﷺ نه پوښتنه اُوکړه چه بعض خلق مونږ ته غوښه راکوي او مونږ ته پته نهٔ وي چه حيوان په بسم الله وئيلو سره ذبح کړے شويدے او که نهٔ؟ نو نبي ﷺ اُوفرمايل چه تاسو بسم الله وئيلو سره هغه خورئ۔ عائشه رضي الله عنها وائي چه هغه خلق نوي نوي مسلمانان شوي وو۔
معلومه شوه چه هغه غوښه حرامه نهٔ ده چه د هغې په باره کښې معلومه نهٔ وي چه دا به په بسم الله وئيلو سره ذبح کړے شوي وي او که نهٔ، بلکه حرامه هغه ده چه د هغې په باره کښې معلومه وي چه پدے باندې د غير الله نوم اخستے شويدے۔ او د علي ﷛ نه روايت دے چه هغه اُوفرمايل: که يهود او نصارىٰ د غير الله نوم اخستو سره ذبح اُوکړي، نو مهٔ ئې خورئ او که داسې وانهٔ ورئ، نو خورئ ځکه الله د هغوي د ذبح کړي حيوانانو غوښې حلالې کړيدي او الله ته

پو هیری چه دا خلق د ذبح په وخت کښې څۀ وائی۔ (تیسیر الرحمن)

**فائده** : په کتاب الزهد کښې امام احمدؒ د طارق بن شهابؒ نه هغه د سلمانؓ نه نقل کړی : یو سړے د مچ په باره کښې جنت ته داخل شو او بل سړے اُور ته د مچ په باره کښې داخل شو خلقو اُووئیل دا څنګه ؟ ورے فرمایل : دوه سړی په یو قوم تیریدل چه هغوی د خپل یو بت منجاوری کوله او دا ئے وئیلی وو چه نن ورځ به په مونږ څوك نۀ تیریږی مګر (ددے بت په نوم به) څه وړاندے کوی نو یو سړی ته ئے اُووئیل، څۀ واچوه، هغه انکار اُوکړو وے وئیل چه زۀ د الله نه سوئی هیچا ته هیڅ شے (په نذر کښې) نۀ وړاندے کوم، نو خلقو هغه قتل کړو او بل ته ئے اُووئیل : څۀ وړاندے کړه، که نور هیڅ نۀ وی یو مچ خو وړاندے کړه، نو هغه اُووئیل : مچ خو معمولی خبره ده، نو هغه (د بت په نوم) مچ وړاندے کړو نو (پس د مرګ نه) اُور ته داخل شو۔

(ابن ابی شیبه (٤٧٣/٦ ح ٣٣٠٣٨) الزهد لاحمد ص (١٦)

بیا ددے باقی څیزونو نه استثناء اټ شته لیکن د (مَا اُهِلَّ) خباثت دومره زیات دے چه ددے نه هیڅ شے مستثنیٰ نۀ دے۔ چه بعض جائز وی او بعض نۀ۔ سوئی د حالت د اضطرار نه۔نو دا ترقی ده د ادنیٰ نه اعلیٰ ته، د میتے نه دوه مردارے، او د وینے نه دوه وینے مستثنیٰ دی۔ لکه مخکښې تیر شو۔

نو اُوس **سوال** پیدا شو چه آیا هیڅ وخت کښې به ددے محرماتو خوړل جائز نۀ وی ؟ نو اُوس ددے محرماتو نه استثناء بیانوی چه د مجبورتیا په حالت کښې ئے خوړل جائز دی، دا د الله تعالیٰ احسان دے چه حرام څیزونه ئے هم درله په سخته مجبورتیا کښې حلال کړل، نو ولے ناشکری کوئ :

﴿ فَمَنِ اضْطُرَّ ﴾ اضطرار (مجبورتیا) په دوه قسمه ده (۱) یو دا چه یو ظالم په مسلمان باندے اِکراه (زور) اُوکړی چه وژنم دے دا حرام به خورے، او د هغه ظالم نه خلاصے نۀ وی (هسے ګواښ او دهمکی به نۀ وی) نو پدے وخت کښې تا له الله تعالیٰ اجازت درکړو چه دا څیزونه استعمال کړه او ځان پرے مۀ وژنه۔ (۲) دویم : سخته لوږه دریاندے راغله، دا په انسان باندے اکثرد سفر په حالت کښې راځی۔ لکه سورة المائده (۳) کښې دی : ﴿ فَمَنِ اضْطُرَّ فِیْ مَخْمَصَةٍ ﴾ نو پدے وخت کښې هم ددے خوړل جائز شو۔

او ددے نه دا شرعی قاعده مستنبطه ده چه [اَلضُّرُوْرَاتُ تُبِیْحُ الْمَحْظُوْرَاتِ] (ضرورت او مجبورتیا حرام څیز هم جائز کوی)۔

مسروق رحمه الله فرمائی :که چا په اضطراری حالت کښې څۀ حرام شے اُونۀ خوړلو او خپل ځان ئے بچ نکړو او مړ شو نو هغه به جهنم ته داخلیږی۔ ابو الحسن الکیا الهراسیؒ (صاحب د احکام

القرآن) وائی چه زمونږ په نیز دا خبره صحیح ده لکه څنګه چه په مریض باندے ډیر کرته افطار (روژه ماتول) واجبیږی۔ (تیسیر الرحمن)۔

﴿غَيْرَ بَاغٍ وَّلَا عَادٍ﴾ ددے فرقونه دا دی: (۱) غَيْرَ بَاغٍ: اَیْ بِاَنْ يَّاْكُلَهٗ مِنْ غَيْرِ ضَرُوْرَةٍ اَیْ بَغٰى فِیْ اَكْلِهٖ وَّلَا عَادٍ: اَیْ وَّلَا يَعْدُوْ لِشَبْعِهٖ. (حسن، قتاده، ربیع، مجاهد و ابن زید-اللباب)

(یعنی زیاتے کونکے نهٔ وی پداسے طریقه چه بے ضرورته ئے اُوخوری، مضطر نهٔ وی یعنی د هغے د خوراك متعلق زیاتے اُوکړی، او عادی (زیاتے کونکے) نهٔ وی یعنی چه د موړوالی نه زیاتے اُوکړی)۔

(۲) اَیْ غَيْرَ طَالِبٍ لِلَّذَّةِ ...... (د خوند طلبګار به نهٔ وی) یعنی چه هسے د خوند دپاره ئے خوری۔

عاد: د عدوان نه دے په معنیٰ د زیاتی سره یعنی (اَكْلًا كَثِيْرًا) (ډیر خوړونکے به نهٔ وی) چه د حاجت نه زیات ئے اُوخوری۔ بلکه د ضرورت مطابق به ئے استعمالوی۔ (سدیّ- طبریّ)

دا دواړه قریب قریب دی۔ او ددے نه دا شرعی قاعده راوځی چه [مَا اُبِيْحَ لِلضَّرُوْرَةِ فَيُقَدَّرُ بِقَدْرِهَا] کوم شے چه د ضرورت د وجه نه مباح شوے وی نو هغه به د ضرورت په اندازه استعمالولے شی)۔

(۳) باغ: زیاتے کونکے نهٔ وی په خپل ملګری (چه هغه له ئے نهٔ ورکوی او خپله ئے خوری یا د هغه نه ئے راوتختوی او هغه هلاك شی) ولا عاد: نهٔ ځان سره وړونکے وی (کلی ته) د ضرورت نه زیاتی چه بیا ئے کور کښې پخوی۔

(٤) باغ: د مسلمانانو د جماعت نه به جدا کیدونکے نهٔ وی (چه هغوی سره مقابله کښې راوتے وی) ولا عاد: نهٔ وی مبتدع، مخالف د سنت۔ (سهل بن عبد الله تستری)۔

یعنی دا اجازت صرف سنی مسلمانانو ته دے، نهٔ مبتدعین او د سنت مخالفینو ته۔

(٥) باغ: یعنی تجاوز کونکے نهٔ وی د مقدار د حلال نه۔ (یعنی ډیره به نهٔ خوری چه ځان پرے ښهٔ موړ کړی) او عاد: نهٔ وی قصور کونکے په هغه اندازه کښې چه دهٔ لره حلال وی یعنی چه بالکل ئے پریدی تر دے چه هلاك شی۔ (اللباب للدمشقی، والبغوی)۔

(٦) باغ: یعنی نهٔ وی حلال ګنړونکے مطلقاً او (عاد): نهٔ وی ځان سره توخه وړونکے۔

(مقاتل بن حیان- بغوی)

(۷) ...... غَيْرَ بَاغٍ اَیْ غَيْرَ طَالِبِهَا وَهُوَ يَجِدُ غَيْرَهَا وَّلَا عَادٍ اَیْ غَيْرَ مُتَعَدٍّ مَا حَدَّ لَهٗ فَمَا يَاْكُلُ حَتّٰى يَشْبَعَ وَلٰكِنْ يَاْكُلُ مِنْهَا قُوْتًا بِمِقْدَارِ مَا يُمْسِكُ رَمَقَهٗ) ...... (بغوی)

یعنی نهٔ وی طلب کونکے کله چه ددے نه سوئ بل څه موندے کوی۔ ولا عاد: او د حد نه زیاتے نهٔ کوی چه ډیر پرے ځان موړ کړی بلکه دومره اندازه به ئے خوری چه روح ئے پرے بچ شی)۔

(۸) ...... باغ: اَیْ غَيْرَ خَارِجٍ عَلَى السُّلْطَانِ وَّلَا عَادٍ: مُتَعَدٍّ عَاصٍ بِسَفَرِهٖ، بِاَنْ خَرَجَ لِقَطْعِ الطَّرِيْقِ وَالْفَسَادِ

فِی الْاَرْضِ (ابن عباس،مجاهد، سعید بن جبیر - اللباب، بغوی)

یعنی نهٔ وی خروج کونکے په بادشاه (امیر المؤمنین) یعنی د بادشاه نه ئے بغاوت نهٔ وی کړے۔ ولا عاد : یعنی تجاوز کونکے نهٔ وی په سفر سره یعنی گناهگار نهٔ وی چه د لارے شوکولو دپاره یا فساد کولو دپاره راوتلے وی)۔ امام شافعیؒ فرمائی: څکه که دهٔ ته اجازت ورکړے شی نو دا د هغه سره په گناه باندے تعاون کول دی۔ (بغوی)

﴿فَلَا اِثْمَ عَلَيْهِ﴾ اَیْ فِی التَّنَاوُلِ مِنْهَا : یعنی گناه او تنگسیا نشته په دهٔ په استعمالولو ددے محرماتو کښې په حالت د اضطرار کښې۔

﴿اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ﴾ دا ئے وروسته راوړو اشاره ده که د یو انسان نه د ډیرے لوږے د وجه نه بے اختیاره او بے ارادے زیات خوراك اُوشو نو الله به ئے معاف کړی۔ څکه هغه غفور رحیم دے۔ او رحیم کښې اشاره ده چه الله تعالیٰ په خپلو بندگانو ډیر رحم کونکے دے څکه ورله رخصتونه ورکوی۔

| اِنَّ الَّذِيْنَ يَكْتُمُوْنَ مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ مِنَ الْكِتٰبِ وَيَشْتَرُوْنَ بِهٖ ثَمَنًا قَلِيْلًا |
|---|
| یقیناً هغهٔ خلق چه پټوی هغهٔ چه نازل کړیدے الله تعالیٰ د کتاب نه، او اخلی په هغے عوض لږ (یعنی دنیا) |
| اُولٰٓئِكَ مَا يَاْكُلُوْنَ فِىْ بُطُوْنِهِمْ اِلَّا النَّارَ وَلَا يُكَلِّمُهُمُ اللّٰهُ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ |
| دا کسان نهٔ اچوی په خپلو خیټو کښې مګر اُور، او خبرے به نهٔ کوی دوی سره الله تعالیٰ په ورځ د قیامت، |
| وَلَا يُزَكِّيْهِمْ وَلَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿۱۷۴﴾ |
| او نهٔ به پاکوی دوی لره او د دوی دپاره عذاب دردناك دے۔ |

**تفسیر** : د حلال او حرامو تفصیل ئے اُوکړو اُوس بیا دوباره کاتمینو د حق ته د آخرت یره او رټنه ورکوی چه یهودو ته دا مسئلے معلومے وے، د رسول الله ﷺ صفات او د هغه د رسالت نخے وغیره ورته ښه واضحه معلومے وے لیکن بیا به ئے هم پټولے او که رسول الله ﷺ به ښکاره کولے نو دوی به پرے اعتراضات کول، دے دپاره چه عربو باندے د دوی برتری باقی پاتے وی، او کومے هدیے او تحفے چه د هغوی د طرف نه دوی ته ملاویږی د هغے سلسله جاری پاتے شی نو الله فرمائی : چه دا خلق په حقیقت کښې (ددے معمولی هدیو په بدله کښې) په خپلو خیټو کښې د جهنم اُور اچوی او قیامت کښې به ورته الله تعالیٰ غصه وی، د رحمت هیڅ خبرے به ورسره نهٔ کوی او په دردناك عذاب کښې به اخته وی۔

او پدے امت کښې چه څوك حق پټوی الله تعالیٰ د هغوی بدی هم بیانوی، سخت وعید ورکوی، نو په مخکښې تیر شوی آیت کښې دا بیان شو چه دوی حق پټ کړے وو د خلقو د ویرے د وجه نه او دلته وائی چه دوی حق پټوی د دنیا حاصلولو دپاره، نو دا ډیر لوئی مجرم دے نو پدے وجه دلته وعید هم سخت ذکر دے، ددے آیت نه یره کول پکار دی :

﴿ يَكْتُمُوْنَ مَا أَنْزَلَ اللهُ ﴾ : (۱) د کتمان (پټولو) نه په باطلو تاویلاتو سره پټول مراد دی چه دیته تحریف معنوی وائی۔ (۲) یا دا چه عوامو ته مَا أَنْزَلَ الله (دینی مسئلے) نهٔ ښکاره کوی۔

﴿مِنَ الْكِتَابِ﴾ یعنی بعض مسائل د کتاب۔ (مِنْ بعضیه دے)۔ ځکه دوی ټول کتاب نهٔ وو پټ کړے۔ لکه سورة مائده (۱۵) او انعام (۹۱) آیت پرے دلیل دے۔ او دا دلیل دے که څوك د کتاب الله او د دین یوه مسئله هم پټه کړی نو دا وعید ورته شامل دے۔

﴿ وَيَشْتَرُوْنَ بِهٖ ثَمَنًا قَلِيْلًا ﴾ (۱) ددے نه مراد د دنیا سامان او معمولی شان مال دے۔

(۲) یا ټوله دنیا مراد ده ځکه چه دوی د آخرت د ثواب او د رضائے إلٰهی نه محروم شو او دا یوه عظیمه خساره ده او ددے په مقابله کښې بے شکه چه ټوله دنیا ثمن قلیل دے۔ (فی ظلال)

﴿ مَا يَأْكُلُوْنَ فِيْ بُطُوْنِهِمْ ﴾ د ((اَكَلَ فِیْ بَطْنِهٖ)) معنیٰ ده ځان پوره مړهٔ ول او ډکول۔ او دا جمله اکثر د حرامو د خوراك دپاره استعمالیږی۔

﴿ إِلَّا النَّارَ ﴾ د نار نه مراد دلته حرام خوری ده، ذکر د سبب دے او مراد تړینه مسبب، ځکه حرام خوړل سبب د اُور دے۔ او پدے کښې اشاره ده چه دوی خپل آخرت په خیټو او خوراکونو تباه کړو۔ یا نار (اُور) په خپله معنیٰ دے یعنی جهنم کښې به اُور خوری۔

﴿وَلَا يُكَلِّمُهُمُ اللهُ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ﴾ د رحمت خبرے به ورسره نهٔ کوی۔ لکه دنیا کښې خلق وائی: زهٔ به تاسره خبرے نهٔ کوم، زهٔ به درنه مره وریم، نو الله رب العزت به د دوی نه ناراضه وی۔ او بنده له ډیر زور ورکوی، دا یو مستقل عذاب دے چه مالك حقیقی د انسان نه نا رضا وی۔ او د سوال وجواب او حساب کتاب اَو د دوی د غم زیاتولو خبرے به ورسره کوی لکه اعراف (٦) آیت کښې راغلی دی۔ یا دا چه بالکل به دوی سره خبرے نهٔ کوی او هرچه حساب او سوال جواب دے نو هغه په واسطه د ملائکو سره کوی لکه سورة المؤمنون (۱۰۸) آیت نه معلومیږی۔

﴿وَلَا يُزَكِّيْهِمْ ﴾ ○ یعنی نهٔ ئے پاکوی (د بدو اعمالو نه په دنیا کښې) یعنی همدغسے ناولی به ئے پریږدی ځکه چه انسان د دین په دعوت او بیانولو باندے پاکیږی، نهٔ په دنیا پرستئ۔ نو دے کښې اشاره ده دے ته چه څوك د دین دعوت کوی نو الله تعالیٰ به ئے پاکوی ځکه چه څوك بل ته د نیك عمل خبره کوی، نو الله تعالیٰ هغه ته پخپله د عمل توفیق ورکوی او چه بل ته حق نهٔ

بیانوی او حق پټ ساتي، نو همدا سې به ناولې پاتې کیږي.

○ یا دا چه په آخرت کښې به ئې د ګنده خلقو سره اُودروي. او د عذاب نه به بچ نۀ وي.

○ زجاج وائي : لَايُثْنِيْ عَلَيْهِمْ خَيْرًا، وَلَا يُسَمِّيْهِمْ اَزْكِيَاءَ) د دوي ښه صفت به نۀ کوي چه ګنې دا زما په کتاب عالمان وو. او د پاکو خلقو نوم به ورته نۀ ورکوي.

﴿وَلَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ﴾ دوی دپاره ئې عذاب اليم ذکر کړو ځکه چه دوي هم د منافقانو په شان کار کړيدې چه زړۀ کښې پوهه ليکن په خوله باندې ئې ځان ناپوهه ښکاره کړيدې.

او دا مرض زمونږ ددې امت په ډيرو باطل پرستو مُلیانو کښې دې، د تدریس یا امامت یا عهدې د خاطره حقې مسئلې او سنت طریقې پټوي، وائي : که دا بیان کړو نو خلق به مو د تدریس یا امامت نه لرې کړي. (قَبَّحَهُمُ اللهُ).

بیا دا قسم عذابونه د نور قسم خلقو دپاره هم وئیلې شویدي لکه سورة آلعمران کښې دي چه څوك د الله په لوظونو او قسمونو باندې ثمن قليل اخلي الخ.

○ حدیث کښې دي : درې کسان دي چه الله به ورسره خبرې نۀ کوي او نۀ به ئې پاکوي او نۀ به ورته ګوري. ابوذرؓ اووئیل: دا خو نامراد او تاوانیان شو، دا څوك دي یا رسول الله ؟ نبي ﷺ اُوفرمایل :

۱- هغه څوك چه پېنځې (لنګ) ځان پسې راکاږي. ۲-احسان زباتونکې. ۳- په دروغو سره په سودا کښې قسم کونکې. (احمد، مسلم) - دارنګه درې قسمه نورو خلقو دپاره هم دغه عذاب ذکر شويدې : ۱-بوډا زناکار. ۲- بادشاه دروغجن ۳- غریب متکبر. (صحیح مسلم).

نورو روایاتو کښې ورسره زیادات راغلي دي لکه يو سړې د يو امام او بادشاه سره د دنيا دپاره بيعت اُوکړي، که هغه ورله څۀ ورکړي، وفاداري کوي، او که ورنکړي نو وفاداري نۀ کوي.

درې قسمه نور خلق دي : ۱- يو سړې چه د يو مسلمان نه د مال حاصلولو دپاره په دروغه قسم اُوکړي. ۲- هغه سړې چه د ماز يګر مانځه نه روستو د خپلې مبيعې (سودا) رائج کولو دپاره قسم اُوکړي. ۳- هغه سړې چه زياتي اُوبه منع کړي. (بخاری ومسلم).

| اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ اشْتَرَوُا الضَّلٰلَةَ بِالْهُدٰى وَ الْعَذَابَ |
|---|
| دا هغهٔ کسان دي چه دوي اخستې ده ګمراهي په مقابله د هدايت کښې او عذاب |
| بِالْمَغْفِرَةِ فَمَآ اَصْبَرَهُمْ عَلَى النَّارِ ﴿۱۷۵﴾ |
| په مقابله د بخنه کښې، نو څۀ ډير صبرناك دي دوي په اُور. |

**تفسیر**: دا د مخکښې آیت سره متعلق دے او پدے کښې د حق پټونکو کم عقلي او خُسران (تاوان) بیانوي۔

هدایت دا وو چه حق ئے بیان کړے وے او ګمراهي دا ده چه حق ئے بیان نکړو۔

﴿ وَالْعَذَابَ بِالْمَغْفِرَةِ ﴾ د الله د دین په بیانولو بنده ته بخښنه کیږي او د الله د دین په نهٔ بیانولو په بنده عذاب راځي۔ ﴿ فَمَا أَصْبَرَهُمْ عَلَى النَّارِ ﴾ ١- دا تعجب په نسبت د خلقو دے، یعنې هر کله چه د دوی داسے سخت او دردناك عذاب یو لیدونکے وینې، نو د دوی په صبر به تعجب کوي چه دا خلق څنګه داسے مشکل اُور برداشت کولے شي چه د هغې برداشت ناممکن دے۔ ٢- یا مطلب دا دے چه دا اُور د دوی څومره خوښ دے او صبر پرے کوي۔ په اُور باندے څوك صبر نهٔ شي کولے خو دا کلمه د تعجب ده او د دوی پورے استهزاء ده۔

٣- أَصْبَرَ په معنیٰ د اَجْرَأَ دے: یعنې څه شي زړهٔ ورکړیدی دوی لره په اُور باندے چه داسے عملونه کوي چه اُور ته روان دي او پرواه ئے نشته۔ (فراء او کسائي)۔

یا څه شي دوی لره صبرناك جوړ کړل په اُور باندے۔ (تفسیر قرطبیؒ)۔

| ذٰلِكَ بِأَنَّ اللّٰهَ نَزَّلَ الْكِتٰبَ بِالْحَقِّ |
|---|
| دا (عذاب) پدے وجه دے چه یقیناً الله نازل کړیدے کتاب په حق (او دوی پکښې اختلاف کوي) |
| وَإِنَّ الَّذِيْنَ اخْتَلَفُوْا فِي الْكِتٰبِ لَفِيْ شِقَاقٍ بَعِيْدٍ ﴿١٧٦﴾ |
| او یقیناً هغه کسان چه اختلاف ئے کړے په کتاب کښې، خامخا په مخالفت کښې دي لرے (د حق نه)۔ |

**تفسیر**: په دے آیت کښې د تیرشوي عذابونو سبب ذکر کوي۔ نو ذٰلِكَ تیرشوي عذابونو ته اشاره ده۔ او (بِأَنَّ) د (ثَابِتٌ) مقدر پورے متعلق دے او د (بِالْحَقِّ) لفظ نه روستو وقف دے معنیٰ دا ده: (فَكَتَمُوْهُ) نو دوی هغه پټ کړو۔ یعنې دا عذاب پدے وجه په دوی ثابت شو چه الله تعالیٰ کتاب په حق او رښتیا سره رالیږلے وو او دوی پټ کړو۔

٢- یا ئے په کښې اختلاف شروع کړو۔ ٣- یا ئے پرے کفر اُوکړو۔ او انکار ئے اُوکړو۔

﴿ وَإِنَّ الَّذِيْنَ اخْتَلَفُوْا فِي الْكِتَابِ ﴾ (١) د کتاب نه مراد جنس منزل کتابونه دي۔

○ او اختلاف د خلقو دا وو چه د الله تعالیٰ په بعض کتابونو ئے ایمان راوړو او د بعضو نه ئے انکار اُوکړو۔ (روح المعاني) ○ یا دا چه د الله د کتابونو په مقصد کښې ئے اختلاف شروع کړو چه څوك پکښې توحید نهٔ مني او څوك رسالت او څوك قیامت نهٔ مني۔ (خازن)۔

(۲) - یا د الکتاب نه مراد تورات دے نو نصاراو دعوه اُوکړه چه پدے کښې صفات د عیسیٰ ﷺ شته او یهودیان ترے منکرشو۔ ○ یا اختلاف دا دے چه دوی په تورات باندے د عمل کولو په باره کښې د خپلو مشرانو مخالفت اُوکړو۔ ○ یا دا چه په تورات کښې د رسول الله ﷺ کوم صفات ذکر وو په هغې کښې ئے اختلاف شروع کړو۔

(تفسیر القرطبی ۲/۲۳٦)

(۳)- یا د کتاب نه مراد قرآن کریم دے، د یهودیانو اختلاف پکښې دا وو چه بعضو ترینه مطلقاً انکار اُوکړو او چا پکښې اُووئیل چه دا په اُمیین (عربو) پورے خاص دے او اهل کتاب پدے سره مخاطب نهٔ دی۔ او د مشرکانو اختلاف دا وو چه چا اُووئیل دا سحر (جادو) دے چا وئیل : شعر دے چا وئیل کهانت دے، چا وئیل افتراء ده (دخان نه جوړ شوے دے) چا وئیل : د پخوانو قصے دی۔ (آلوسی)

﴿ لَفِیْ شِقَاقٍ بَعِیْدٍ ﴾ شقاق د شِق نه دے په معنیٰ د طرف سره یعنی دوی د حق په مقابله او اُلټه طرف کښې اُودریدل۔ او داسے مخالفت کښې واقع شو چه حق ته رانژدے کیدل ئے ډیر مشکل دی۔ وجه دا ده چه حق خو د الله په کتاب کښې وو، او د رسول الله ﷺ سره وو، او بیا د حق داعی سره وو، او کله چه څوك د الله تعالیٰ په کتاب کښې ورانے شروع کړی او پیغمبر او داعی باندے اعتراض اُوکړی نو حق خو پدے لاره کښې وو او دهٔ دا لاره په ځان باندے بنده کړه۔ نو بیا به حق چرته ملاؤ شی؟۔ او دا خبره په سورة الفرقان (۹) آیت کښې راغلے ده۔

﴿ فَضَلُّوْا فَلَا یَسْتَطِیْعُوْنَ سَبِیْلًا ﴾ ۔

(داسے گمراه شو چه د هدایت د لارے موندلو طاقت هم نهٔ لری)۔

﴿ بَعِیْدٍ ﴾ : ئے ځکه اُووئیل چه یو مخالفت په درجه د عصیان کښې دے نو هغه خلق هدایت ته قریب وی۔ دویم مخالفت په درجه د عداوت او دشمنیٔ کښې دے نو دا د حق قبلولو نه ډیر لرے دے۔لهذا د حق سره ضد ندے پکار۔ وبالله التوفیق۔

| لَیْسَ الْبِرَّ اَنْ تُوَلُّوْا وُجُوْهَکُمْ قِبَلَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ وَلٰکِنَّ الْبِرَّ |
|---|
| نهٔ ده نیکی (خاص) دا خبره چه تاسو واړوئ مخونه خپل په طرف د مشرق او مغرب لیکن نیکی |
| مَنْ اٰمَنَ بِاللّٰهِ وَالْیَوْمِ الْاٰخِرِ وَالْمَلٰٓئِکَةِ وَالْکِتٰبِ وَالنَّبِیّٖنَ |
| (نیکی) د هغه چا ده چه ایمان ئے راوړے دے په الله او په ورځ روستنئ؛ او په ملائکو او په کتابونو او په (ټولو) پیغمبرانو، |

| |
|---|
| وَاٰتَى الْمَالَ عَلٰى حُبِّهٖ ذَوِى الْقُرْبٰى وَالْيَتٰمٰى وَالْمَسٰكِيْنَ وَابْنَ السَّبِيْلِ وَالسَّآئِلِيْنَ |
| او ورکړی مال له سره د محبت د هغه ؛ خپلوانو ته، يتيمانانو او مسکينانو او مسافروته او سوال گروته |
| وَفِى الرِّقَابِ وَاَقَامَ الصَّلٰوةَ وَاٰتَى الزَّكٰوةَ وَالْمُوْفُوْنَ بِعَهْدِهِمْ |
| او په آزادولو د ختونو (مريانو) کښ، او قائم کړي مونځ او ورکړي زکوٰة، او پوره کونکي وي د خپلو وعدو |
| اِذَا عٰهَدُوْا وَالصّٰبِرِيْنَ فِى الْبَاْسَآءِ وَالضَّرَّآءِ |
| کله چه وعده اوکړي او (زۀ صفت کوم د) صبر کونکو په تکليف د مال کښ او تکليف د بدن کښ |
| وَحِيْنَ الْبَاْسِ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ صَدَقُوْا وَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُتَّقُوْنَ ﴿۱۷۷﴾ |
| او په وخت د جنګ کښ دغه کسان رشتيني دي او دغه کسان خاص هم دوی تقوىٰ والا دي. |

**تفسير :** ......**ربط مضموني :** مخکښ آيتونو کښ الله تعالىٰ د مسلمانانو تربيت بيانولو په ذکر د قوانينو لکه د قبلے مسئله ئے ورته ذکر کړه. په کتمانِ حق ئے ردونه اُوکړل. او وئے فرمايل چه اوله مسئله چه د هغے بيان ضروري دے هغه د توحيد مسئله ده، د توحيد دوه قسمونه ئے بيان کړل او بيا ئے کاتمينو د حق ته رټنه پدے مخکنو آيتونو کښ ورکړه.

اُوس ددے ځائے نه الله تعالىٰ امتِ مسلمه ته نورے ذمه وارياني سپاري چه تاسو ته خلافت درکړے شونو تاسو به څۀ کارونه کوئ نو هغه يو څو کارونه دی : ۱- اول : اصلاح النفس په صحيح عقيده، اعمالو او اخلاقو سره چه پدے آيت کښ ئے لس خبرے ددے متعلق راوړي دي. او ديته انفرادي اصلاح وئيلے شي. ۲- دويم : بيان د السياسة المدنية (يعني په تاسو لازم ده چه په ملک کښ به شرعي قانون رائج کوئ، بيا د ملکي سياست دپاره ئے ضروري قوانين څلور ذکر کړيدي چه په هغے سره په ملک کښ امن راځي او حرام خوري ختميږي.

۱- اول قانون د قصاص : قصاص چه نافذ شو نو پدے سره امن وامان راځي. نو بيا ئے حکمة د قصاص بيان کړيدے. ۲- دويم قانون : تقسيم المال بالحکم الشرعي. په حکومت کښ چه کله مال د صحيح ځائے نه پيدا کيږي او په صحيح ځائے لګيږي، نو د الله تعالىٰ مدونه راځي او کله چه په مسلمانانو ظلمونه کولے شي، ټيکسونه لګولے شي او د خزانے غلط استعمال وي نو امن او راحت نشي راتلے.

کله چه اقتصادي نظام برابر شي نو پدے سره اصلاح د ملک کيږي.

او په مال کښې به په صحیح طریقه وصیت کولے شی چه په ورثه ؤ ظلم رانشی۔
۳- دریم قانون د صوم دے: یعنی په ملك کښې دے روژه رائجه شی او دا قوانین لکه څنګه چه ملکی دی نو دغه شان شخصی او جزئی هم دی۔ نو اوس که اسلامی خلافت نهٔ وی، هم مسلمانان پدے آیتونو عمل کولے شی۔ او په روژے سره تقوی پیدا کیږی، انسان کښې د پابندئ او صبر ماده پیدا کیږی، نور مالونه او طاقتونه به بے ځایه نهٔ استعمالوی۔ جهاد به د الله په لار کښې کولے شی، نو نظام به برابر وی۔
٤- بیا د رشوت ورکولو نه منع شوے ده ځکه چه پدے سره مشکلات ختمیږی۔ او په رشوت سره نظام خرابیږی، برکات ختمیږی۔ بیائے د سپوږمئ متعلق مسئله راوړے ده چه د صوم او د باقی ټولو احکامو سره متعلق ده چه حساب به په سپوږمئ کوئ۔
٥- بیا ئے حکم او قانون د جهاد ذکر کړیدے چه خلافت خرابونکو خلقو سره به جهاد کولے شی۔ او د جهاد متعلق احکام تر (۱۹٤) پورے بیان شویدی۔ بیا جهاد وغیره کښې مال لګول ضروری دی نو حکم د اتفاق ئے راوړیدے۔ بیائے مسائل د حج راوړیدی چه جهاد به کوئ دے دپاره چه مکان د حج آزاد شی۔ او بله دا چه حج هم یو نوع جهاد دے۔
(۲) دویم ربط روستو شان نزول کښې راځی۔
(۳) دریم ربط د موضوع د سورت سره دے چه هغه تفصیل الایمان دے۔
په دے آیت کښې پنځه کارونه د زړهٔ د عقیدے سره تعلق لری او پنځه د ظاهری اعمالو او اخلاقو سره چه پدے کښې اصلاح د نفس ده۔
**شان نزول**: دا آیت د یهودیانو او نصاراؤ په رد کښې نازل شوے وو چه هغوی د قبلے د بدلیدو نه روستو د اسلام او د مسلمانانو په باره کښې مختلفے فتنه راپورته کونکے خبرے شروع کړے وے او دا ئے وئیلی وو چه مونږه پوره نیکان یو ځکه چه زمونږه قبله غوره ده او بیت اللحم او بیت الشرق ته مونځ کوو، دا مونږ له بس دے۔ او د مسلمانانو قبله غلطه ده۔ نو الله اُوفرمایل: چه مشرق یا مغرب ته مخ اړول نیکی نهٔ ده بلکه پوره نیکی دا روستو اعمال دی او هغه په تاسو کښې پوره نشته، ځانله په یو عمل کولو باندے انسان نهٔ ښه سړے کیږی۔ (دا هله چه د دوی قبله شرعی شی او صحیح دا ده چه د دوی قبله بدعت وه نو د لیس البر معنیٰ دا ده چه نهٔ ده نیکی مشرق او مغرب ته مخ اړول (بلکه دا بدعت ده) او همدا معنیٰ ظاهره ده۔
دارنګه مفسرینو لیکلی دی چه هرکله مخکښې اُووئیلے شو چه الله تعالیٰ دے امت ته د قبلے هدایت اُوکړو ﴿إِلَّا عَلَى الَّذِينَ هَدَى اللَّهُ﴾ نو د قبلے د بدلیدو نه روستو بعض مسلمانانو د خپلے

خوشحالئ اظهار اُوکړو او پدے باره کښې د دوی تشدد داسے حد ته اُورسیدو چه د کعبے قبله جوړیدل د هغوی په نظر کښې د دین د تولو نه لوئی غرض او غایه ښکاره شوه او داسے ئے اُووئیل : (اِنَّا تَحَصَّلْنَا الْبِرَّ اَجْمَعَ) مونږ ټولے نیکئ راجمع کړے) نو دا آیت نازل شو چه دا خو پوره نیکی نـهٔ ده او نیکی پدے کښې بنده نهٔ ده چه انسان صرف مشرق یا مغرب ته مخ واړوی بلکه اصلی نیکانے خو نورے زیاتے شته، هغه تاسو نهٔ دی پیژندلی چه هغه د عقیدو او اعمالو او اخلاقو نوم دے۔ دا صفات به هم څان کښې پیدا کوئ هله به پوره نیکان جوړیږئ۔

نو پدے آیت کښې رد دے په هغه چا چه بعض نیك اعمال کوی او دعوه د ټول دین کوی۔ بعض عوام خلق، صرف مونځ او أودس کولو او تسبیح کرزولو ته پوره نیکی وائی۔ او صرف پدے سره څان د جنت طمعدار گنړی۔ بعض خلق صرف د یو څو خبرو دعوت کوی او څان پوره پوهه او د دین ټیکیدار گنړی۔ ډیر تنظیمونو والا یو نیك عمل کوی او څان پوره نیکان گنړی۔ حق په خپل څان کښې منحصر گنړی۔ داسے نهٔ ده پکار۔

دا ډیر ښکلے آیت دے چه الله تعالیٰ مونږ ته چل راښائی چه ضروری څیزونه اُوپیژنئ چه هغه ایمانیات، اخلاق، او اعمال دی۔

﴿ لَيْسَ الْبِرَّ اَنْ تُوَلُّوْا وُجُوْهَكُمْ قِبَلَ الْمَشْرِقِ ﴾ که دا د یهود او نصاراؤ سره خطاب شی نو بیا معنیٰ دا ده چه ستاسو خپلو قبلو ته مخ کول هیڅ نیکی نهٔ ده۔ ځکه دا قبلے د څان نه ایجاد شویدی۔ راشئ نیکیانے اُوپیژنئ۔ یعنی څان کښې صحیح ایمان پیدا کړئ۔ او دا تفسیر ظاهر القرآن دے۔

○ او که مؤمنانو ته خطاب شی نو معنیٰ به دا وی : [لَيْسَ الْبِرُّ مُنْحَصِرًا] نهٔ ده نیکی منحصره او راګیره په دے کښې چه تاسو مخونه مشرق او مغرب طرف ته واړوئ۔ کله بیت المقدس ته مونځ کوئ او کله بیت الله ته مونځ کوئ، بلکه دا خو صرف د مرکزیت او اجتماعیت د حاصلولو یوه طریقه ده او دے کښې ټوله نیکی راګیره نهٔ ده۔ نو که ته یو نیك کار کوے نو څان به پوره نیك عمله نهٔ گنړے۔

## مسئلة عقدية : ...... اهل قبله ته د تکفیر حکم څه حیثیت لری ؟

بیا دلته مفسرین دا عقیدَوی مسئله (تَكْفِيْرُ اَهْلِ الْقِبْلَةِ) بیانوی چه اهل قبله ته به کافر نشی وئیلے، نو ددے معنیٰ دا ده چه کله تا یو انسان اُولیدو چه د مسلمانانو قبلے (یعنی کعبے) ته مونځ کوی، او بیا ورسره گناهونه هم کوی نو په گناهونو به هغه ته د کفر نسبت نشی کیدے۔ ځکه دا د اهل السنة والجماعة مذهب دے چه (لَا نُكَفِّرُ اَهْلَ الْقِبْلَةِ) (مسلمانانو (قبلے والو) ته به د کفر نسبت نهٔ کوو)۔ لیکن که یو انسان د ضروریاتو د دین نه منکر وی یعنی مثلاً یوه مسئله دین

کښې ښکاره ثابته ده چه په هغې کښې هيڅ صحيح تاويل نهٔ کيږي۔ او دارنګه جهالت په انسان کښې نهٔ وي، او بيا هم انکار کوي، نو دهٔ ته به کافر ويلے شي لکه مسئله د بشريت د رسول الله ﷺ واضحه مسئله ده، که څوک د رسول الله ﷺ بشريت نهٔ مني، دا به هم کافر وي اګرکه قبلے ته مونځ کوي ځکه چه دا په دين کښې د ښکاره مسئلے منکر دے۔ يا غير الله ته د مدد آوازونه کوي۔ يا رسول الله مدد يا علي مدد وائي نو دا به هم کافر وي۔

او دغه شان نور مسائل واخله چه دائے د بحث ځائے نهٔ دے۔

﴿الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ﴾ دائے د مثال په طور ويلي دي۔ ○ يا دا چه د نصاراؤ قبله مشرق طرف ته وه او د بيت المقدس مغرب طرف ته د يهوديانو قبله وه۔

﴿وَلَـٰكِنَّ الْبِرَّ مَنْ﴾ دلته د (مَنْ) نه مخکښې مضاف حذف دے يعني [لَـٰكِنَّ الْبِرَّ بِرُّ مَنْ آمَنَ] (يعني نيکي د هغه چا نيکي ده) دا ځکه راوباسو چه حمل د (مَنْ) په (الْبِرُّ) باندے صحيح شي۔ يا د (اَلْبِرُّ) نه مخکښې مضاف پټ دے يعني [وَلٰكِنَّ ذَا الْبِرِّ مَنْ] (يعني ليکن نيکي والا هغه څوک دے الخ)۔

نو اول بنيادي شے: په الله تعالیٰ باندے، د هغهٔ په وجود، د هغهٔ په اسماء او صفاتو او د هغه په توحيد ألوهيت او ربوبيت او د هغه په ټولو أوامر او نواهيو باندے ايمان لرل دي۔ چه د هغے تفصيل په ابتداء ددے سورت کښې ذکر شويدے۔ او دغه شان دا نور ايمانيات۔

﴿وَالْكِتَابِ وَالنَّبِيِّينَ﴾ پدے کښې په يهود او نصاراؤ تعريض دے چه هغوي د قرآن کريم او د آخري رسول الله ﷺ نه منکر دي۔

دا ايمانيات شو: ﴿وَآتَى الْمَالَ﴾ دا اُوس د اندامونو اعمال دي چه دوي حقوق (عبادات) مالي اداکوي۔ ﴿عَلَىٰ حُبِّهِ﴾ ددے ډيرے معاني دي: (۱) په حُبِّهٖ کښې ضمير مال ته راجع دے يعني د مال سره ئے مينه ده او دا مينه هله وي چه انسان روغ وي (مرض الوفات نهٔ وي) لکه حديث کښې دي: ((بهترينه صدقه دا ده چه تهٔ صدقه اُوکړے په داسے حال کښې چه تهٔ روغ ئے او بخل کونکے ئے او د مالدارئ اميد لرے او د غريبئ نه يريږے (ځکه د روستو ژوند اميد دے وي) او صبر مهٔ کوه تردے چه ستا روح مرئ ته اُورسي نو بيا وائے چه دومره مال د فلاني شو او دومره د فلاني او حال دا چه هغه د بل چا شوے وي))۔ (متفق عليه)۔

نو اشاره دے ته کوي چه د مرګ نه مخکښې مال اُولګوئ۔ ○ يا معنیٰ دا ده چه محبوب مال ورکوي يعني کرهٔ مال۔ ۲- يا د (حُبِّهٖ) ضمير الله ته راجع دے۔ (يعني الله سره ئے مينه ده ځکه مال ورکوي)۔ ۳- يا راجع دے (ايتاء) يعني ورکړے د مال ته۔ او مراد ترينه اخلاص او د الله تعالیٰ د رضا طلب دے۔ ٤- يا ضمير مسکين ته راجع دے يعني مسکين سره ئے مينه وي په هغوي

باندے تکبر نهٔ کوی۔ اول احتمال ډیر ښکاره دے۔

بیا ددے نه مراد وجوبی او نفلی صدقات دی۔ سوی د زکوٰة نه ځکه هغه روستو مستقلًا ذکر دے۔ لکه یو حدیث دے [إِنَّ فِي الْمَالِ لَحَقًّا سِوَى الزَّكٰوةِ] (په مال کښې د زکاة نه علاوه هم حق شته) دا روایت اګرکه د سند په لحاظ ضعیف دے، په سند کښې ئے ابوحمزه میمون الاعور دے، ترمذیؒ وائی: دا ضعیف راوی دے وکذا في التقریب۔ او شریك بن عبد الله القاضی سیء الحفظ دے۔ شیخ البانیؒ فرمائی: وَجُمْلَةُ الْقَوْلِ اَنَّ الْحَدِيْثَ بِلَفْظَيْهِ ضَعِيْفٌ وَالصَّحِيْحُ اَنَّهُ مِنْ قَوْلِ الشَّعْبِيِّ]. الضعیفة ۳۹٤/۹)۔ خلاصه د خبرے دا شوه چه دا حدیث په مذکوره دواړو لفظونو سره ضعیف دے او صحیح دا ده چه دا د شعبیؒ قول دے) آه۔

لیکن معنیٰ ئے ثابته ده ځکه چه دا آیت ئے تائید کوی۔ ځکه چه زکوٰة روستو ذکر دے۔ کما قال الامام القرطبی فی تفسیره (۲٤۱/۲) او ددے حق مثال: لکه د خلقو ضروری حاجتونه پوره کول (اوږے مړول، بربنډ ته جامے اغوستول، ملستیا ورکول، د جهاد په یوه موقعه کښې مال ته ناځاپی ضرورت راغلو نو د مال ورکول به واجب وی۔ په خپلوانو کښې بدحالی انسان له د مال څهٔ حصه ورکول)، دا ټول واجب صدقات دی۔

﴿ذَوِي الْقُرْبٰى﴾ : دلته د مال شپږ مصارف بیانوی یعنی اول به فقیر ته مال ورکولے شی چه رشته دار وی، ځکه چه پدے کښې صدقه او صله رحمی دواړه دی۔

﴿وَالْيَتٰمٰى﴾ بیا هغه بے پلاره بچی چه محتاج دے۔ دا ئے ځکه ذکر کړل چه په دے امت کښې به یتیمانان ډیر وی، مجاهد امت دے۔

﴿وَالْمَسٰكِيْنَ﴾ بیا عام مسکینان چه خپلوان نهٔ وی۔ حدیث کښې دی: ((مسکین هغه دے چه هغه داسے څه نهٔ مونده کوی چه ددهٔ پرے کار روان شی او خلق هم پرے نهٔ پوهیږی چه صدقه پرے اُوکړی)) (متفق علیه)۔

﴿وَابْنَ السَّبِيْلِ﴾ بیا هغه څوك چه په وقتی توګه سره حاجت لری لکه مسافر شو، دا کله مالدار هم وی لیکن فی الحال ورسره څه نهٔ وی، نو دهٔ له به دومره مال ورکولے شی چه خپل کلی ته پرے ځان اُورسوی۔ دغه شان ډیو سړی د عبادت او طاعت، د علم یا د دعوت او تعلیم دپاره د سفر اراده ده، نو دهٔ ته به هم دومره ورکولے شی چه ددهٔ د تللو او راتللو کافی شی۔ او پدے کښې میلمه هم داخلیږی۔

﴿وَالسَّآئِلِيْنَ﴾ بیا هغه څوك چه حاجت ئے معلومیږی په سوال کولو سره او کله غنی هم وی، لیکن یو ضرورت ورته پیدا شوے وی۔

په يو روايت د ابوداودٌ او احمدٌ وغيره كښې راغلي دي: ((د سوال كر حق دے اگركه په آس باندے راشي)) (سنداً ضعيف دے په سند كښې ئے يعلى بن ابى يحيى مجهول دے. (اعظمي، شعيب الارنووط، الباني) ليكن معنىٰ ئے صحيح ده، د بل حديث نه ثابته ده نبي ﷺ فرمائي: [رُدُّوا السَّائِلَ وَلَوْ بِظِلْفٍ مُحْتَرِقٍ] (احمد ١٦٦٤٨، واسناده حسن - شعيب الارنووط، شرح السنة٦/١٧٦، صحيح ابن حبان٨/١٦٧).

(تاسو سوال كونكے واپس كړئ اگركه په سوزيدلے پانچے سره وي).

يعنى سائل اگركه مالدار وي، ضرور به هغه ته څۀ نا څه وركولے شي ځكه چه د الله نوم درته اخلي، د هغه لحاظ به كولے شي، او كه في الحال درسره څه نۀ وي، وعده به ورسره اُوكړے چه بيا راشه. نو د مسلمانانو معاشره به داسے وي چه په هغے كښې به سوالگر هم محروم نۀ وي اگركه د هغوى به بيل علاج كيږي، هغوى ته به د سوال كولو گناه او نحوست او سپيرۀ والے خودلے كيږي چه بے ځايه سوالونه اُونكړي.

﴿ وَفِي الرِّقَابِ ﴾ بيا هغه څوك چه خپل ملكيت ئے نۀ وي او محتاج وي. لكه مريان (غلامان، وينزے) شو يا قرضداران او قيديان مسلمانان وي.

(فِي الرِّقَابِ) يعنى فِيْ فَكِّ الرِّقَابِ. (د مريانو په آزادولو كښې).

رقاب جمع د رَقَبَةٌ ده څټ ته وئيلے شي. دلته ذكر د جزء دے مراد ترے نه كل دے. او پدے ترتيب كښې ترقي د اعلىٰ نه ادنىٰ ته ده، هر اولنے د روستنى نه ډير محتاج دے. (راغبٌ).

﴿ وَآتَى الزَّكٰوةَ ﴾ دلته فرضي زكوٰة مراد دے ځكه چه د صلاة سره ئے يو ځائے كړے.

﴿ وَالْمُوْفُوْنَ بِعَهْدِهِمْ ﴾ دا دريم عمل دے او د اخلاقو د قبيلے نه دے. يعنى د هر چا سره د لوظ پابندى كوي، د الله تعالىٰ سره وي، كه د مسلمان سره او كه د كافر سره وي.

(عهد) هغے ته وائي چه د جانبينو نه وي. او لوظ ماتول د منافقانو خصلت دے او حديث كښې دي: نبي ﷺ عبد الله بن عمرو بن العاصٌ ته اُوفرمايل: ستا به څۀ حال وي چه تۀ داسے وخت ته پاتے شے (قيامت ته نزدے چه داسے خلق به پيدا شي) [مَرَجَتْ عُهُوْدُهُمْ وَاَمَانَاتُهُمْ] (الصحيحة: ٢٠٥ وصحيح ابن ماجه) (چه لوظونه او امانتونه به ئے گډوډ وي) الحديث.

او دا زمانه اُوس شروع ده.

او (الْمُوْفُوْنَ بِعَهْدِهِمْ) ئے جمله اسميه راوړه، اشاره ده دوام او هميشوالى ته پدے كار.

﴿ وَالصّٰبِرِيْنَ ﴾ دا څلورم عمل دے او دا هم د اخلاقو د قبيلے نه دے. دا ئے منصوب راوړو ترتيب لفظي ئے بدل كړو، پدے كښې اهتمام ته اشاره ده. ○ او دا منصوب دے په دے وجه چه دا

مخصوص بالمدح دے او مفعول دے د (اَمْدَحُ یا اَخُصُّ بِالْمَدْحِ) (زهٔ صفت کوم د صابرینو) یا (خاص کوم په صفت کولو سره صابرینو لره)۔

○ یا په ذَوِی الْقُرْبیٰ باندے عطف کیدو سره د (آتَی) دپاره بالواسطه مفعول دے۔ یعنی مال ورکوی هغه صبرناکوته چه په وخت د مصیبت کښې هم سوال نهٔ کوی۔ لیکن اول تفسیر غوره دے ځکه چه د مؤمن ممدوح او غوره صفتونه زیات دی او صبر پکښې د تولو نه افضل دے او که دا په ذوی القربیٰ عطف شی نو بیا به صبر د هغوی په اخلاقو کښې رانشی۔

﴿فِی الْبَاْسَآءِ وَالضَّرَّاءِ﴾ په عامو اوقاتو کښې صبر هر څوك کوی، لیکن دے درے اوقاتو کښې صبر د صفت لائق دے۔ (بَأساء) دیته وائی چه انسان غریب شی۔ د مال تکلیف او مصیبت پرے راشی او صبر اُوکړی، چا ته شکایتونه نهٔ کوی۔ او ضراء دیته وائی چه بیماریانے پرے راشی، تکلیف د بدن۔

﴿وَحِیْنَ الْبَاْسِ﴾ یعنی په وخت د جنګ د کافرانو دشمنانو کښې۔ ددے نه مراد قتال فی سبیل الله دے۔ په هغه وخت کښې کلك ولاړ وی تختی راتختی نه چه جنګ پریدی۔

نو الله فرمائی: زهٔ د داسے خلقو خصوصاً صفت کوم، دا ډیر اُوچت مؤمنان دی۔

﴿اُولٰٓئِكَ الَّذِیْنَ صَدَقُوْا﴾ ۱- یعنی دا کسان په دعویٰ د نیکئ کښې رشتینی دی۔ که دوی اُووائی، مونږ نیکان یو نو صحیح ده۔ ۲- او (صَدَقُوْا فِی الْعَمَلِ) په عمل کښې رشتینی دی۔ رشتینی عاملان دی۔

﴿وَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُتَّقُوْنَ﴾ تقویٰ څه ته وائی؟ چه بنده کښې صحیح ایمان، صحیح عملونه او اخلاق راشی، دا تقویٰ ده۔ دا آیت دلیل دے چه چا کښې دا مجموعه کارونه راجمع شی نو هغه ته نیك وئیلے شی او که چا کښې تول راجمع نشی نو دا به نیك نهٔ وی۔ (واحدیؒ- قاسمیؒ)۔

## فوائد الآیة

(۱) پدے آیت کښې د انسانانو کمالات ئے په درے خصلتونو کښې جمع کړیدی:

(۱) عقیده صحیح کول او ددے دپاره ئے پنځه ایمانیات ذکر کړل۔

(۲) ښائسته معاشرت او ژوند تیرول۔ مستحقینو ته مال ورکولو سره ئے دا خصلت بیان کړو۔

(۳) تهذیب او پاکوالے د نفس: په مونځ او زکاة ادا کولو او لوظ پوره کولو او صبر کولو سره ئے دا خصلت بیان کړو۔ دا کارونه چه څوك عملی کړی نو کمال ئے سرته رسیږی۔

(۲) فائده: پدے آیت کښې د دین درے اقسام او مرتبے ذکر دی (۱) ایمان په پنځه امورو۔ (۲) اسلام چه عبارت دے د مونځ، زکاة او صدقاتو نه۔ (۳) دریم: احسان دے چه عبارت دے د لوظ د

وفاداریٔ، د صبر، د رشتیا وئیلو او د تقویٰ نه.

(۳) فائده: دے آیت کښې د نیکیانو څلور انواع او اقسام راجمع دی:

(۱) ایمان په اعتقادی اصولو. (۲) د محتاجو او ضرورتمندو خلقو حقوق ادا کول. (۳) خالص عبادتونه چه د هغے اهم ارکان مونځ او زکاة دی. (٤) فضائل د اخلاقو چه دوه اخلاق د هغے عمده ئے ذکر کړل یو وفاء بالعهد چه دا د اجتماعیت سره تعلق لری. او دویم صبر او د صبر د متعلقاتو نه ئے درے ځیزونه ذکر کړل. صبر په مصیبت مالی، په مصیبت نفسی، په قتال. او آیت ئے په صدق او تقویٰ ذکر کولو سره ختم کړو.

٤- فائده: په آیت کښې په یهود، نصاریٰ او منافقینو رد دے چه دوی دغه شان نهٔ دی.

(۵) په آیت کښې د نفس تهذیب او تزکیه ذکر ده او د هغے طریقه خودلے شوے ده.

(٦) د عربی ژبے دا طرز دے چه کله د فعل یو شان صیغے ذکر کړی، او بیا دا طرز بدل کړی او د صفت (مشتق) صیغے راوړی، نو پدے کښې اهتمام، اختصاص، تاکید او تنبیه ته اشاره وی او ددے تاکید وجه دلته دا ده چه د ایفاء بالعهد او صبر دواړو تعلق د سیرت او کردار سره دے او د سیرت او کردار معامله د ډیر عزم او یقین او د ریاضت او تربیت محتاجه وی. ځکه چه اهل مذاهب عام طور سره په ظاهری عقائدو او عباداتو خو ډیر زور ورکوی لیکن د سیرت او کردار په جوړولو کښې سُستی کوی، چونکه ددے آخری امت رهنمائی د ډیر او اطاعت مقام طرف ته کیږی، پدے وجه په کردار باندے ئے ډیر زور ورکړو.

دارنګه د تمامو عقائدو او عباداتو نه اصل مقصود اعلیٰ سیرت او کردار جوړول دی. په الله او په رسول باندے د ایمان راوړو او مونځ او روژے د اهتمام نه مقصد صرف په یو څو رسمونو باندے عمل کول نهٔ دی. بلکه ددے اصل مقصد دا دے چه په الله او په رسول باندے د ایمان په راوړو سره چه په انسان کښې کومه رڼړا پیدا کیږی په هغے سره زمونږ زړونه روښانه شی او په مونځ او روژه سره چه کوم مضبوط انفرادی او اجتماعی کردار پیدا کیږی هغه زمونږ د انفرادی او اجتماعی ژوند خصوصیت جوړ شی. ددے نه بغیر تمام عقائد او عبادات بالکل بے ساه او بے روحه دی. همدا وجه ده چه قرآن کریم په هر ځائے کښې د عقائدو او عباداتو په عملی اثراتو ډیره توجه ورکوی دے دپاره چه ددے نه غفلت اُونشی. (تدبر)

**سوال**: د کردار او سیرت متعلق خو نور هم ډیر کارونه شته نو ایفاء بالعهد او صبر ئے ولے خاص ذکر کړل؟. ددے جواب دا دے چه په حقیقت کښې دا دوه ځیزونه د ټولو دپاره مرکزی حیثیت لری، په ایفاء بالعهد کښې ټول واړهٔ او لوئی حقوق راځی، که هغه د مخلوق سره متعلق

وی، او که د خالق سره، یا لیکلے شوے معاهده وی، یا د رشتے او نسبت او قرابت په وجه وی، او په صبر ذکر کولو کښې اشاره ده چه هر هغه مزاحمت چه د حقوقو په پوره والی کښې حائل جوړیږی چه په کلکه اراده او استقامت سره د هغے مقابله اُوکړی او په هیڅ حال کښې هم د طمع، دے همتئ یا د یرے نه مغلوبه نهٔ شی۔

| |
|---|
| يَـٰٓأَيُّهَا الَّذِينَ اٰمَنُوا كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِصَاصُ فِى الْقَتْلٰى |
| اے ایمان والو! فرض کړے شویدے په تاسو باندے قصاص (نافذ کول) په باره د وژلے شوو کښې (په قتل عمد سره) |
| اَلْحُرُّ بِالْحُرِّ وَالْعَبْدُ بِالْعَبْدِ وَالْاُنْثٰى |
| آزاد به وژلے شی په مقابله د آزاد کښې، او غلام په مقابله د غلام کښې او زنانه په مقابله د زنانه کښې |
| فَمَنْ عُفِىَ لَهٗ مِنْ اَخِيْهِ شَىْءٌ |
| پس هغه څوك چه معافی اُوکړے شوه هغه ته د طرفه د ورور د هغه نه د څهٔ شی |
| فَاتِّبَاعٌ بِالْمَعْرُوْفِ وَاَدَآءٌ |
| پس لازم دی په (وارث باندے) وروسے کیدل (قاتل پسے) په ښهٔ طریقے سره او (لازم دی په قاتل باندے) اداکول |
| اِلَيْهِ بِاِحْسَانٍ ذٰلِكَ تَخْفِيْفٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ وَرَحْمَةٌ |
| وارث ته په ښائسته طریقه۔ دا (حکم د معافی) آسانی ده ستاسو د رب د طرفه او مهربانی ده |
| فَمَنِ اعْتَدٰى بَعْدَ ذٰلِكَ فَلَهٗ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿۱۷۸﴾ |
| پس چا چه زیاتے اُوکړو روستو ددے (معافی) نه نو دهٔ لره عذاب دردناك دے۔ |

**تفسیر:** مخکښې اصلاح او د نفسونو تزکیه او د اخلاقو تهذیب وو نو اُوس د سیاست مدنی قوانین بیانیږی۔ هرکله چه د مؤمنانو په مدینه کښې اسلامی حکومت او خلافت جوړ شو، نو دوی ته الله تعالیٰ قوانین بیان کړل چه قصاص دے نافذ شی۔ دویم پردے مال دے خلق نهٔ استعمالوی۔ او دا دواړه کارونه د امن او عدل د قائمیدو دپاره بنیادونه دی۔او عام خلق د وینی او د مال د محفوظ کیدو کوشش کوی۔ نو هر شخص به د بل د ځان احترام ساتی۔ او دغه شان د هغه د مال احترام به ساتی۔ او دا دواړه په شریعت نافذ کولو باندے کیږی۔ او د عزت حفاظت

روستو آیتونو کښې راځي۔

نو دے آیت کښې د قصاص قانون بیانیږي چه قصاص کله په ملك کښې جاري وي نو ددے ډیرے فائدے دي۔ او دا ظلم نهٔ، بلکه دا د ظالم سرې لاس نیول دي۔

د قصاص دا قانون خو د اهل کتابو سره هم وو او د عربو سره هم۔ لیکن هغوی لکه د نورو قوانینو په شان ددے قانون نه هم روح ویستلے وو۔ ددے قانون اصل روح بیحده انصاف او کامل مساوات دے۔ یعني پدے معامله کښې به ادنیٰ او اعلیٰ، امیر او غریب، شریف او رذیل، غلام او آقا ټول یو شان وي۔ او د عدالت قانون به د ټولو سره یو شان معامله کوي لیکن دا د اهل کتابو سره هم باقي پاتے نهٔ وو، او نهٔ د عربو سره بلکه نن صبا د ترقي او تمدن د دعوے باوجود د دنیا په هیڅ ملك کښې هم د نفس د احترام او مساوات تصور باقي پاتے نهٔ دے۔

﴿ یَا اَیُّهَا الَّذِیْنَ آمَنُوْا ﴾ دا خطاب ۱ – یا حُکامو (بادشاهانو) ته دے چه چا له الله تعالیٰ واك ورکړے وي لکه په هغه زمانه کښې نبي ﷺ او صحابه کرامؓ مخاطب وو، او بیا په هره زمانه کښې چه چا له الله تعالیٰ څهٔ نا څهٔ قدرت ورکړے وي، هغوی باندے قصاص نافذ کول فرض دي۔

او ددے طریقه دا ده چه مسلمانان به خلیفه او فوج جوړ کړي، د هغے په ذریعه به مجرمان رانیولے شي، او قصاص وغیره حدود به پرے جاري کولے شي۔ ځکه بادشاه د الله تعالیٰ سورے وي چه هغه ته هر مظلوم پناهي حاصلوي، او حکومت د مسلمانانو دپاره ډیر ضروري شے دے ځکه پدے سره دین او دنیا دواړه بنهٔ کیږي او په کفري حکومت کښې کله چه په انصاف سره چلیږي صرف دنیا بنهٔ کیږي۔

۲– یا خطاب دے قاتلانو ته نو معنیٰ به دا وي چه اے قاتلانو! په تاسو فرض کړے شویدي ځان سپارل قصاص ته۔ یعني قاتل ته وائي چه تښتـه مهٔ او د مسلمانانو معاشره مهٔ خرابوه۔

۳– دارنګه عامو خلقو ته هم دا خطاب دے ځکه چه بعض کسانو باندے به په قصاص باندے رضا او معاونت لازم وي او په بعضو باندے به دا لازم وي چه زیاتے به نهٔ کوي بلکه قصاص به اخلي یا به دیت اخلي۔ (قاسميؒ)

(کتب) کتابت دلته په معنیٰ د فرض والي سره دے۔ یعني دا حکم په تاسو فرض شویدے او لیکلے شویدے۔

﴿ الْقِصَاصُ ﴾ په معنیٰ د بدلے اخستو سره دے۔

﴿ فِي الْقَتْلٰی ﴾ دا جمع د قتیل ده، مقتول (وژلے شوی) ته وائي۔

﴿ اَلْحُرُّ بِالْحُرِّ وَالْعَبْدُ بِالْعَبْدِ ﴾ دا اُوس د قصاص تفصیل کوي او پدے تفصیل کښې مقصد د عربو

جاهليت والو په عادت باندے رد وو چه هغوی به د ادنیٰ شخص په مقابله کښې سرکردهٔ سړے وژلو او د يو په مقابله کښې به ئے ډير وژل۔

**شان نزول** : دارنګه حافظ ابن کثيرؒ ددے آيت شان نزول دا هم ليکلے دے چه بنو نضير او بنو قريظه ؤ خپل مينځ کښې د جاهليت په زمانه کښې جنګ کړے وو، چه په هغے کښې بنو نضير غالب راغلی وو، نو د هغے نه روستو (دا قانون پاس شوے وو) چه نضری به د قرظی په بدله کښې نهٔ قتل کيږی، بلکه د سل (۱۰۰) وسق (تقريباً پنځلس زره کيلو ګرامه) کجورو په بدله کښې به نضری قاتل خلاصيږی، او ددے برعکس قرظی به د نضری په بدله کښې قتل کيږی، او که په فديه به اتفاق کيد و نو قرظی به د نضری دوچنده ديت ورکولو يعنی بنو قريظه به دوه سوه وسق (تقريباً ديرش زره کيلو ګرام) کجورے ورکولے۔ نو دا سراسر ظلم وو، ځکه الله تعالیٰ دا آيتونه نازل کړل چه په اسلام کښې به انصاف وی، قصاص به هم يو شان وی او ديت به هم يو شان وی۔

بيا پدے کښې اتفاق دے چه که غلام آزاد سړے قتل کړی، نو غلام به قتلولے شی ځکه چه د غلام مرتبه د آزاد په نسبت خکته ده۔ خو چه آزاد، غلام لره قتل کړی نو دوه صورتونه دی يا به ئے خپل غلام وژلے وی يا پردے که خپل غلام ئے وژلے وی، نو دهٔ باندے قصاص نشته مګر تعزيراً که بادشاه ئے ورکوی نو جائز به وی۔ او کوم روايت د ابو داودؒ او ترمذیؒ کښې چه راغلی دی چه (چا خپل غلام قتل کړو مونږ به ئے قتل کوو) نو هغه ضعيف دے (ضعيف سنن الترمذی ۲۳٦ رقم (۱٤٤۷) الحسن عن سمرة وهی رواية منقطعة) او که صحيح شی نو په تغليظ حمل دے لکه امام نوویؒ وئيلی دی۔

او چه پردے غلام ئے وژلے وی نو پدے کښې د علماؤ اختلاف دے چه ديت به ورکوی او که قصاص : ۱- مفهوم مخالف له چه کوم علماء اعتبار ورکوی هغوی وائی : نهٔ به شی وژل کيدے۔ ځکه دلته ئے قتل د حر خاص کړيدے په قتل د حر پورے الخ۔ او د عبد مقابل کښې ئے نهٔ دے وئيلے۔ سفيان ثوریؒ او اهل الکوفة وائی چه قاتل به وژلے شی۔ (نقله الترمذی)۔

او همدا ظاهر دے۔ د وجه ددے قول د الله تعالیٰ نه : ﴿اَنَّ النَّفۡسَ بِالنَّفۡسِ﴾ [مائده: ٤٥]

او په حديث کښې دی : [لَا يُقۡتَلُ الۡمُسۡلِمُ اِلَّا بِاِحۡدٰی ثَلَاثٍ اَلنَّفۡسُ بِالنَّفۡسِ ......] رواه البخاری ومسلم۔

(مسلمان به نشی وژلے کيدے مګر په درے جرمونو سره۔ که يو نفس ئے وژلے وی نو ددهٔ نفس به وژلے شی......)۔ نو نفس، غلام ته هم شامل دے۔

﴿وَالۡاُنۡثٰی بِالۡاُنۡثٰی﴾ پدے کښې هم اتفاق دے چه زنانه به په مقابله د زنانه او زنانه په مقابله د سړی او سړے په مقابله د زنانه کښې وژلے شی۔ او دلته ظاهری مفهوم نهٔ دے مراد بلکه مقصد دا دے

چه په قصاص کښې به صرف قاتل وژلے شي، که سړے وي او که زنانه. ځکه حديث کښې دي :
[اَلْمُسْلِمُوْنَ تَتَكَافَأُ دِمَاؤُهُمْ] [سنن ابى داود كتاب الجهاد باب فى السرية ترد على اهل العسكر]
(د ټولو مسلمانانو (سړے وي که ښځه، ماشوم وي که غټ) وينه برابره ده)
نو ګويا کښې ددے مفهوم به هغه وي کوم چه په بل آيت کښې راغلے دے ﴿وَكَتَبْنَا عَلَيْهِمْ فِيهَا أَنَّ النَّفْسَ بِالنَّفْسِ﴾ (المائدة: ٤٥) پدے کښې حسنؒ او عطاؒ خلاف کړيدے چه سړے به د ښځې په بدله کښې نشي وژلے د وجے ددے آيت نه، ليکن صحيح دا ده چه مفهوم مخالف لره اعتبار نشته.
احنافو علماؤ ددے نه دليل نيولے دے چه مسلمان به د کافر په بدله کښې وژلے شي، وائي چه په آيت د مائده کښې دي (النَّفْسَ بِالنَّفْسِ) . ليکن جمهور علماء ددے قائل نهٔ دي ځکه چه په حديث کښې ښکاره راغلي دي : [لَايُقْتَلُ مُسْلِمٌ بِكَافِرٍ] (صحيح بخاري كتاب الديات باب لا يقتل المسلم بالكافر).(مسلمان به د کافر په بدله کښې نهٔ وژلے کيږي). (تفسير فتح القدير ١/٢٧١)
او دا آيت مقيد دے او آيت د مائدے مطلق دے او د احنافو په نيز هم دا منلے شوے قاعده ده چه مطلق به په مقيد حمل کولے شي کله چه حادثه يوه وي. نو دلته ددے حديث د وجه نه به هم مطلق په مقيد حمل وي لهذا د احنافو دا مسئله د حديثونو د نظره صحيح نهٔ ده. (قاسمیؒ، ابن کثيرؒ).

## فوائد او علوم

(١) والدين به د اولادو په بدله کښې نهٔ وژلے کيږي. حديث کښې دي :
[لَايُقَادُ الْوَالِدُ بِالْوَلَدِ] ...... (نسائي، ترمذي، ابن ماجه).
(٢) د جُمهورو علماؤ مذهب دے چه ذمي د مسلمان برابر نهٔ دے، نو مسلمان به د ذمي په بدله کښې نهٔ وژلے کيږي.
(٣) ائمه اربعه وغيره وائي چه جماعت (ډير کسان) به د يو تن په مقابله کښې وژلے شي. يو غلام اُووه کسانو وژلے وو. عمر فاروق رضی الله عنه هغه ټول قتل کړل او بيائے اُووئيل : که ټول صنعاء (يَمَن) والا ددهٔ په مرګ راجمع شوي وے نو ما ټول وژل. او د عمرؓ مخالف نهٔ دے موجود نو دا يو قسم اجماع ده. (صحيح بخاري: ٧٧٧) .
حديث د ترمذيؒ کښې ابوسعيد خدريؓ او ابو هريرهؓ د رسول الله ﷺ نه روايت کوي : (( که اسمان او زمکے والا د يو مؤمن په وينه کښې شريك شي نو الله به خامخا دوي ټول اُور ته پرمخے ګوزار کړي)). (صحيح سنن الترمذي: ١٣٩٨)
د امام احمدؒ نه يو روايت دا دے چه جماعت به د يو تن په مقابله کښې نهٔ وژلے کيږي او ديته ابن المنذرؒ اصح وئيلي دي او دائے د معاذؓ او ابن الزبيرؓ ، عبد الملك بن مروانؒ، امام زهريؒ او محمد

بن سیرینؒ قول شمارلے دے۔ (ابن کثیر ۱/ ۴۹۰) لیکن اول قول غوره دے۔

(٤)- **فائده:** شیخ الاسلام ابن تیمیةؒ په (السیاسة الشرعیة) کښ لیکی :

د قتل درے قسمه دی : ۱ - قتل عمد : قصداً قتل کول۔ پدے باندے قصاص واجبیږی لیکن د مقتول وارثان قصاص هم اخستے شی، او که غواړی معافی هم کولے شی، او که غواړی دیت هم اخستے شی۔ او د قاتل نه علاوه بل څوك وژل جائز نهٔ دی، که څوك د معافی او دیت اخستو نه روستو قاتل قتل کړی نو دا د اول قاتل نه لوئی مجرم دے۔

پدے وجه بعض علماؤ وئیلی دی چه ددهٔ قتل کول واجب دی، ددهٔ معامله به د مقتول ورثاؤ ته نهٔ حواله کیږی۔

۲- قتل شبه عمد : د ظلم او زیاتی په نیت سره څوك په دُره او کوړه یا امسا باندے وهل چه د مرگ اراده ئے نهٔ وی، لیکن ددهٔ د ظلم او زیاتی په وجه هغه مړ شو نو ددهٔ دیت سل اُوښان دی چه په هغے کښ به څلوېښت اُوښانے حاملے وی۔

۳- قتل خطاء : لکه چا د ښکار کولو دپاره غشے اُوویشتو او په غلطئ سره یو انسان اُولگیدو، پدے کښ قصاص نشته بلکه دیت او کفاره ده۔

(۵) ...... قصاص به صرف حاکم یا د حاکم نائب اخلی، عوام د یو بل نه قصاص نشی اخستے ځکه چه پدے سره فساد پیدا کیږی۔ او دا اتفاقی فتویٰ ده۔ (التفسیر المنیر) هان که وے اخستلو نو د الله په نیز به گنهکار نهٔ وی۔ خصوصاً چه کله اسلامی حکومت نهٔ وی موجود۔

(٦) ...... قصاص د قَصَص نه دے چه په اصل کښ د چا پسے روستو، د هغه د نقشِ قدم سره سره تللو ته وائی۔ لکه ﴿ فَارْتَدَّا عَلَىٰ آثَارِهِمَا قَصَصًا ﴾ [کهف : ٦٤] کښ دی۔ او ددے نه قِصّه هم اخستے شوے ده ځکه چه قصه بیانونکے گویا کښ قدم په قدم د هغه د حالاتو تعاقب کوی۔ ددے نه قصاص راوتے دے ځکه چه د قاتل پسے هم روستو تلاش کولے شی او د هغه تعاقب کیږی۔ او قصاص شامل دے۔ جانی بدلے ته هم او مالی ته هم۔ چه هغے ته دیت وائی۔

(۷) ...... د قصاص ذمه واری په حکومت ده، نهٔ د مقتول په وارثانو۔ ځکه چه ددے خبرے امکان شته چه یو شخص قتل شی او د هغه هیڅوك ولی وارث نهٔ وی، نو حکومت به ترے بدله اخلی۔ که دا ئے صرف د مقتول ولی ته سپارلے وے نو که د چا ولی نهٔ وے، د هغه وینه به ضائع کیدے۔ دارنگه کله د یو شخص وارثان هم وی، لیکن د یو سبب په وجه هغوی د مقتول د قصاص په معامله کښ څه دلچسپی نهٔ لری بلکه کله نا کله د قاتل سره همدردی کوی۔

دارنگه د قصاص په معامله کښ د تحقیق او تفتیش ذمه واریانے او بیا د حدودو نافذ کول

فراخه اختیارات غواړي، او دا صرف حکومت کولے شي۔ بیا حکومت باندے دا پابندي لګولے شویده چه هغه به خپله فیصله نکوي بلکه د مقتول اولیاؤ ته به اختیار ورکوي چه هغوی د اسلامي قانون په حدودو کښې دننه د مجرم سره کومه معامله خوښول غواړي هغه اُوکړي۔ که هغه قتل وي او که دیت قبلول وي۔ (تدبر قرآن)۔

﴿ فَمَنْ عُفِيَ لَهُ مِنْ اَخِيْهِ شَيْءٌ ﴾

اُوس دے اُمت سره الله تعالیٰ احسان کوي، اختیار ورکوي په درے صورتونو کښې۔

۱- یو انسان همیشه قاتل نهٔ دے، قطاع الطریق نهٔ دے، صرف یو کرت ترے قتل اُوشو نو بس د الله تعالیٰ د رضا دپاره ئے معاف کړه، د هغه دپاره هم خیر او ستا دپاره هم ثواب۔

۲- دویم صورت: دیت (سل اُوښان، یا دولس زره درهم یا زر اشرفئ (دینار) دِے ترے واخستے شي۔ ۳- یا قصاص واخستے شي۔ معافي ئے مقدم کړه اشاره ده ترغیب ته۔

﴿ مِنْ اَخِيْهِ ﴾ دا دلیل دے چه په قتل سره انسان نهٔ کافر کیږي۔ او (اَخِيْهِ) ذکر کولو کښې دے ته هم اشاره ده چه دا ستا ورور (مسلمان) دے، مینه ورسره مهٔ ختموه۔

(شَيْءٌ) یعني معمولي شے۔ پدے کښې دا صورت جاري کیږي چه کله د مقتول دوه وارثان وي، یو د قصاص معافي اُوکړي او بل ئے نهٔ کوي، نو بس دا قصاص معاف او ساقط شو ځکه چه قصاص تجزي (تبیدل) نهٔ قبلوي۔ پدے وجه ئے (عَفَا اَخُوْهُ) په ځائے (عُفِيَ) مجهول صیغه ئے راوړه۔ د بعض سلفؒ نه نقل دي چه ښځې د معافئ حق نهٔ لري۔ [قاله الحسن، قتادة، زهري، ابن شبرمه، لیث او اوزاعي) او باقي سلف د دوی خلاف دي۔ (ابن کثیر و التفسیر المنیر)۔

﴿ فَاتِّبَاعٌ ﴾ دلته (فَعَلَيْهِ) (لازم دي په دهٔ باندے) لفظ پټ مراد دے ـ او دا د مقتول د وارثانو صفت دے، یعني کله چه په قصاص کښې د مقتول وارثانو قاتل معاف کړو او دیت ترے اخلي ټول یا بعض، نو دوی له پکار دي چه د عرف مطابق د قاتل نه دیت واخلي او هغه تنګ نکړي چه په لنډ وخت کښې ئے ترے غواړي چه مثلاً نن ئے راکړه۔ او (فَاتِّبَاعٌ) دلیل دے چه معافي کولو سره دیت پخپله لازمیږي۔ او دا مذهب د اکثرو اهل علمو دے، البته ولي د مقتول دا هم معاف کولے شي۔ او د احنافو په نیز دیت نهٔ لازمیږي ترڅو پورے چه د دیت شرط ئے نهٔ وي لګولے، لیکن دا د آیت د ظاهر نه خلاف ده۔ ...... (ابن کثیرؒ)۔

او بل حدیث د ابوشریح الخزاعيؓ دے چه امام احمدؒ مرفوعاً روایت کړیدے:

[مَنْ قُتِلَ لَهُ قَتِيْلٌ فَلَهُ اَنْ يَّقْتُلَ اَوْ يَعْفُوَ اَوْ يَاْخُذَ الدِّيَةَ] (د چا چه مړے اُوشو نو هغه له یو د دریو کارونو نه جائز دي که قصاص اخلي یا معافي کوي یا دیت اخلي)۔

وصححه الالباني في الترمذي والارواء (۲۲۲۰)

نو پدے کښې کوم کار چه ولي د مقتول غوره کړو نو قاتل به په هغې مجبوره کولے شي۔ قرطبيؒ وائي دا رائے اصح ده د وړ۔ د دغه حديث د ابوشريح نه۔ (التفسير المنير لوهبة)۔

﴿ بِالْمَعْرُوْفِ ﴾: معروف هر هغه قول او فعل ته وائي چه د هغې حُسن (ښائست) په عقل يا په شرع معلوميږي۔

دلته ترے مراد دا دے چه وارثان د مقتول به په مطالبه کښې سختي نهٔ کوي۔

﴿ وَاَدَاءٌ اِلَيْهِ بِاِحْسَانٍ ﴾ دا کار د قاتل دے چه هغه به بغير د ټال متول نه ديت اداء کوي۔ او بغير د ټال متول نه اداٸيګئ ته احسان وئيلے کيږي۔ نو دواړو طرفونو ته ئے اُوفرمايل: چه يو بل سره به احسان کوئ او خپله خپله ذمه واري به سپارئ۔

﴿ ذٰلِكَ تَخْفِيْفٌ ﴾ اشاره ده معافي کولو او ديت اخستلو ته۔ او دا تخفيف څکه دے چه اختيار راغلو په قصاص، ديت او عفوه کولو کښې۔ او په يهوديانو صرف قصاص يا معافي واجب وه او ديت اخستل ورله حرام وو۔ (مګر دوی د خپل طرف نه دا قانون بدل کړے وو)۔

او په نصاراؤ صرف عفوه واجب وه۔ قصاص او ديت اخستل ورله حرام وو لکه دا خبره ابن عباسؓ، قتادهؒ او سعيد بن جبيرؒ وغيره کړيده۔

(ابن جرير الطبريؒ وابن کثيرؒ وصحيح سنن النسائي ٤٧٨١ و٤٧٨٢)۔

﴿ فَمَنِ اعْتَدٰى بَعْدَ ذٰلِكَ ﴾ يعني څوك چه د معافي کولو او ديت اخستلو نه روستو قتل اُوکړي نو دا به غټ مُعْتَدِئ (ظالم، زياتے کونکے) وي۔ (ابن عباسؓ)۔

او دهٔ کښې د منافقانو په شان د خداع او دهوکے عادت راغلو، نو څکه ورله الله تعالىٰ عذاب اليم ورکوي۔ او ډير انسانان دا قسم ظلم کوي، د الله تعالىٰ د حکم رعايت نهٔ ساتي نو بيا الله تعالىٰ دغه شان خلقو له ذليله کوي۔

بعض علماء وائي: د عذاب اليم نه مراد دا دے چه بادشاه له پکار دي چه دا قسم ظالم قتل کړي۔ (حسنؒ، قتادهؒ، سعيد بن جبيرؒ) او اکثر اهل علم وائي چه د داسے شخص حکم د ابتدائي قاتل په شان دے، يا به قصاص کولے شي، يا به معاف کولے شي او د (عذاب اليم) نه د آخرت عذاب مراد کوي۔ (تفسير المنار ۲/۱۳۰) او دا رائے صحيح معلوميږي۔

او کوم روايت د ابوداود کښې چه راغلي دي چه (زهٔ نهٔ معاف کوم هغه څوك چه د ديت اخستو نه روستو قتل کوي) نو هغه ضعيف دے۔ په سند کښې ئے مجهول راوي دے۔ (ضعفه الالباني في ضعيف الجامع ٦١٧٣: عن مطر الوراق عن رجل عن جابر وهي منقطعة ايضاً)

وَلَكُمۡ فِى الۡقِصَاصِ حَيٰوةٌ يّٰاُولِى الۡاَلۡبَابِ لَعَلَّكُمۡ تَتَّقُوۡنَ ﴿۱۷۹﴾

او ستاسو دپاره په (جاري كولو د) قصاص كښې ناشنا ژوند دے اے صفا عقل والو ! دے دپاره چه تاسو كښې تقوىٰ راشي۔

**تفسیر** : اُوس د قصاص فائده بيانوي چه كله قصاص نافذ شي، نو خلق به د قتلونو نه بچ شي، متقيان به شي او تول خلق به ژوندي پاتے شي، ولے ؟ هر سړے به يريږي كه زهٔ قتل اُوكړم، صبا پرے نيولے كيږم او قصاص كيږم، نو د قتل نه به منع كيږي۔ نو پدے كښې د خلقو روحونه بچ پاتے كيږي۔ او د قاتل روح د قصاص نه بچ كيږي، نو قصاص د دوه نفسونو د ژوند سبب شو۔ (كشاف، قاسميؒ) ......... نو دا بعينه د الله تعالىٰ د رحمت او حكمت سره موافقه خبره ده۔ ليكن ظالمان خلق ددے په حكمت نهٔ پوهيږي او اعتراض كوي۔ او په قصاص قائمولو كښې په خلقو ناشنا رعب راځي، خلق ددے په وجه خامخا منع كيږي، په كومه معاشره كښې چه د قصاص قانون نافذ وي، هلته د قصاص ډيرے نه معاشره د قتل او وينے توئي كولو نه محفوظه وي او سكون او امن وامان حاصليږي۔

﴿ حَيٰوةٌ ﴾: كښې تنوين د تعظيم دپاره دے۔ يعني يو عظيم او لوئي ژوند دے۔

په مخكښنو عربو كښې ددے معنىٰ د ادا كولو دپاره داسے الفاظ مشهور وو [اَلۡقَتۡلُ اَنۡفٰى لِلۡقَتۡلِ] (قتل ډير ختمونكے دے قتل لره) ليكن قرآني عبارت ددے نه په اته وجوهو سره بليغ دے اُوكوره۔ (تلخيص المفتاح)

دارنګه علامه قاسميؒ په شل وجو سره ددے آيت كمال ذكر كړيدے۔ (محاسن التاويل ۴۴۹/۱)

﴿ الۡاَلۡبَابِ ﴾ : جمع د لُبّ ده خالص او صفا عقل ته وائي چه د خواهشاتو او وهمونو نه خالي وي، او پدے كښې اشاره ده چه كوم خلق د قصاص قانون ته ظلم وائي، نو هغوي كښې صحيح او خالص عقل نشته۔ او دارنګه اشاره ده چه چا كښې عقل او سوچ او فكر وي نو هغه د قتل په وخت په عاقبت كښې سوچ كوي، نو كله چه اراده د قتل كوي او پوهه شي چه زهٔ به قصاص كيږم، نو پدے سوچ سره به منع شي ځكه چه عاقل انسان د بل په هلاكولو سره خپل ځان هلاكول نهٔ غواړي۔ او كه چا كښې دا سوچ او عقل نهٔ وي نو هغه د قتل نه نهٔ يريږي۔ ځكه الله تعالىٰ دلته اُولُو الۡاَلۡبَاب (عقلونو) والو ته خاص خطاب اُوكړو۔ (قاسميؒ)

﴿ لَعَلَّكُمۡ تَتَّقُوۡنَ ﴾ يعني قصاص نافذ كول سبب د تقوىٰ دے۔ يا لغوي معنىٰ مراد ده يعني دے دپاره چه تاسو بچ شئ د قتلونو نه) د قصاص په وجه په ملك كښې تقوىٰ پيدا كيږي۔ او د قتلونو نه بچ كيږي۔ دا عمومي تقوىٰ ده۔ او ظاهر دا ده چه شرعي تقوىٰ مراد ده، لغوي تقوىٰ

په هغې کښې داخل ده. ګویا کښې مسلمانانو ته د تقویٰ فضائل او خیرونه معلوم دی نو چه کله اُوئیل شی چه دا سبب د تقویٰ دے، نو هغوی به په جلتئ سره دغه حکم اخلی او قبلوی به ئے ځکه چه دا سبب د حصول د تقویٰ دے.

كُتِبَ عَلَيْكُمْ إِذَا حَضَرَ أَحَدَكُمُ الْمَوْتُ إِنْ تَرَكَ خَيْرًا

فرض کړے شویدے په تاسو کله چه حاضر شی یو ستاسو ته مرګ که چرته پریخودلے ئے وی مال لره،

الْوَصِيَّةُ لِلْوَالِدَيْنِ وَالْأَقْرَبِينَ بِالْمَعْرُوفِ حَقًّا عَلَى الْمُتَّقِينَ ﴿۱۸۰﴾

وصیت کول مور او پلار ته، او خپلوانو ته په ښائسته طریقے سره دا لازم دے په تقویٰ والو باندے.

**تفسیر** : دا دویم قانون دے چه مال په شرعی طریقے سره تقسیموئ، نو د کور او د ملك نظام به برابر وی.

**مناسبت**: ○ مخکښې د روح او وینے حفاظت وو اُوس د مال حفاظت. او دواړه ضروری دی.

○ مخکښې قانون د قصاص وو اُوس قانون د اقتصاد بیانوی. چه مال دِے صحیح تقسیم شی.

○ نزدے سره ربط : مخکښې قصاص (مرګ) ذکر شو نو اُوس وائی چه د مرګ په وخت کښې صحیح وصیت پکار دے.

﴿إِذَا حَضَرَ أَحَدَكُمُ﴾ د مرګ د حضور نه د هغے نخې او علامے ښکاره کیدل مراد دی ځکه چه کله مرګ په انسان حاضر شی نو بیا خو خبرے نشی کولے نو وصیت پرے څنګه فرض کیږی ؟!. (الْوَصِيَّةُ) دا نائب فاعل د (كُتِبَ) دے.او وصیت هغه مضبوطے خبرے ته وئیلے شی چه د مرګ نه روستو د هغے د کولو او جاری کولو تاکید کولے شی. دلته معنیٰ مصدری مراد ده یعنی وصیت کول.

﴿إِنْ تَرَكَ خَيْرًا﴾ ددے شرط جزاء، په نیز د بعض علماؤ مخکښې (كُتِبَ) دے یعنی که مال پریدی نو وصیت پرے فرض دے او که مال ئے نهٔ وو نو بیا پرے وصیت فرض نهٔ دے.

(خَیر) حلال مال ته وائی.او ډیر مال ته وائی لکه دا خبره تفسیر قرطبیؒ لیکلے ده. بیا نقد وی، که سامان وی یا زمکے او جائیدادونه او کورونه وی.

○ ابن عباسؓ فرمائی : چا چه شپیته دیناره پریښودل هغه خیر (یعنی ډیر مال) نهٔ دے پریخے. ○ طاوس وائی : خیر اتیا دینارو ته وائی. ○ قتادةؒ وائی : زر دیناره یا ددے نه زیات ته خیر وائی. ○ ابن ابی ملیکه عائشےؓ ته اُوئیل : زما د وصیت اراده ده، هغے ورته اُوفرمایل : څومره

مال ډیر دے؟- هغه اُووئیل : درے زره۔ وے فرمایل :څومره اولاد دی؟- وے وئیل : څلور۔ عائشے اُوفرمایل : الله تعالیٰ فرمائی : (اِنْ تَرَكَ خَيْرًا) (که ډیر مال ئے پریخے وی) او دا درے زره څو معمولی شے دے نو خپل اهل وعیال ته ئے پریده، دا به ستا دپاره ډیره غوره وی۔

(قرطبی ۲/۲٦۱) وابن کثیر، الکشف والبیان للثعلبی)

○ بعض وائی : اَلْمَالُ الْكَثِيْرُ الْفَاضِلُ عَنْ نَفَقَةِ الْعِيَالِ ۔ (هغه ډیر مال چه د اهل وعیال د نفقے نه زیاتی وی)۔ لکه دغه روایت د عائشهؓ پرے دلیل دے۔

○ او علی رضی الله عنه په دریمه حصه د مال باندے وصیت کولو ته ډیر شے وئیلے دے۔

د امام زهریؒ نه نقل دی چه خیر هر قلیل او کثیر (لږ او ډیر) ته شامل دے۔ (زاد المسیر ۱/۱۸۲)

﴿ لِلْوَالِدَيْنِ ﴾ لام متعلق دے د(اَلْوَصِيَّةُ) سره یعنی وصیت به د مور او پلار وغیره په حق کښې کوی۔

﴿ بِالْمَعْرُوْفِ ﴾ یعنی د عرف مطابق۔ ○ او بِالْعَدْلِ لَا وَكْسَ فِيْهِ وَلَا شَطَطَ۔ (قرطبی)

یعنی په عدل او انصاف سره چه نهٔ په کښې نقصان وی او نهٔ زیادت۔

(حقاً) په پرهیزګارانو باندے دا لازم دے چه وصیت به په مال کښې کوی چه زما مال دومره دومره مور او پلار له ورکړئ او دومره نورو خپلوانو له۔

**فائده**: دا آیت کریمه په ابتداء زمانه کښې ددے دپاره نازل وو چه کله به یو شخص مړ کیدو نو مور او پلار وغیره ته به ئے وصیت کولو چه دومره دومره ورکړئ، او میراث به بچو ته پاتے کیدو، او نورو میراث خورو ته به د وصیت مطابق مال ورکیدے شو، او دائے د مړ کیدونکی اجتهاد ته او د والدین وغیره (مُوْصٰی لَهُمْ) حالت ته سپارلی وو۔ بیا الله تعالیٰ دا حکم د میراث په آیت او په احکامو د میراث سره منسوخ کړو۔ کوم چه په سورة النساء کښې راغلی دی۔

۲- دویم په حدیث :...... [اَلَا لَا وَصِيَّةَ لِوَارِثٍ] ...... (احمد، ابوداود، ترمذی بسند صحیح)

(یعنی د وارث دپاره وصیت نشته)

ددے حکم د منسوخ کولو حکمت دا دے چه یو سړی ته به مور پلار ګران وو نو بچو ته به ئے څه نهٔ پریخودل، په ټول مال به ئے وصیت اُوکړو۔ او چا ته به بچی ګران وو، نو مور او پلار ته به ئے معمولی شان څه وصیت اُوکړو، نو ظلم پکښې راتلو پدے وجه الله پخپله تقسیم اُوکړو۔ ﴿ لَا تَدْرُوْنَ اَيُّهُمْ اَقْرَبُ لَكُمْ نَفْعًا ﴾ څکه چه انسان ته نهٔ ده معلومه چه کوم یو تن هغه دپاره فائده مند دے) نو وصیت ته حاجت پاتے نشو۔ (او دا قول د ابن عباسؓ دے)۔

امام احمدؒ د محمد بن سیرینؒ نه نقل کړی چه ابن عباس رضی الله عنهما سورة البقره تلاوت کړه او کله چه دے آیت ته راورسیدو نو وے وئیل چه دا آیت منسوخ شویدے۔

۲- دویم : دا آیت غیر منسوخه معنیٰ هم لري : د معروف نه مراد قانون شرعي دے۔ او الوصیة نه مراد (اَلْوَصِیَّةُ بِتَوْرِیْثِ الْوَارِثِ) دے (یعني وصیت کول په میراث ورکولو وارثانو ته)

(یا هغه وصیت چه الله تعالیٰ په سورة النساء کښې ذکر کړیدے په (یُوْصِیْکُمُ اللّٰهُ) سره)۔ (قاسمیؒ)

نو مطلب دا شو چه کله یو تن ته مرګ حاضریږي نو داسے به وائي چه زما مال تاسو د شریعت مطابق تقسیم کړئ او وارثانو له ضرور حق ورکړئ، زما لونړو له هم حق ورکړئ، ښځو له ئې هم ورکړئ، ماشومانو له هم۔ او په هغه وصیت عمل اُوکړئ کوم چه په سورت نساء کښې راغلے دے چه هغه قانون شرعي دے۔ او د هیڅ وارث حصه مهٔ کموئ)۔ دا وصیت کول خاصکر په هغه وخت کښې فرض دی چه کله انسان یریږي چه زما بچي وغیره به نورو ته میراث ورنکړي۔ او په حکم شرعي به عمل اُونکړي۔ څکه اکثر خلق زنانو له میراث نهٔ ورکوي، نو دا وصیت بیا په متقیانو (یعني ایمان والو) لازم دے۔ متقیان څکه ذکر کوي چه تقویٰ یو ضروري شے دے مسلمانانو ته ددے منقبت او درجه معلومه وه نو څکه الله فرمائي : دے کښې تقویٰ ده او که تهٔ خان ته متقي وائے نو دا وصیت ضروري دے۔

او پدے کښې دا هم داخل دي چه انسان وصیت اُوکړي چه زما په مال کښې غلط خیراتونه، اسقاطونه، ماښامونه، دریمے او کلیزے مهٔ کوئ۔

۳- دریم دا چه بعض مفسرینو وئیلي دي چه د والدینو نه مراد کافر مور او پلار دي څکه هغوی میراث نهٔ وړي، او معنیٰ دا ده چه دکافر مور او پلار په حق کښې دا مستحب ده چه هغوی ته وصیت اُوکړي یا نور خپلوان چه میراث خوارهٔ نهٔ وي، دهغوی دپاره څهٔ وصیت اُوکړي۔ خو دا به صرف د مال په دریمه حصه کښې وي۔نو حقاً به په معنیٰ د مستحب او لائق سره وي۔ رسول الله ﷺ سعد بن ابي وقاصؓ ته صرف د دریمے حصے دمال وصیت کولو اجازت ورکړے وو۔او هغے ته ئے هم زیات وئیلے وو۔ (فتح البیان)۔

**مسئله مهمه** : وصیت وارثانو ته منسوخ شوے دے لیکن هغه خپلوان چه وارثان نهٔ دي هغوی دپاره د وصیت حکم باقي دے، نو د هغوی په باره کښې وصیت کول ددے آیت د وجه نه لازم دي۔ یعني که مور او پلار ته او دغه شان نورو وارثانو ته وصیت نهٔ کوي صحیح ده، لیکن د هغه خپلوانو په باره کښې به وصیت کوي چه غریبانان وي، پدے شرط چه څه ناڅه مال ئې پریښے وي۔ مثلاً داسے به وائي چه زما وررور، کاکا، ترهٔ څوي، ماما وغیره ته زما د مال نه دومره دومره حصه ورکړئ۔ دا هم یو ضروري حکم دے لیکن ډیر خلق ددے نه غافله دي۔ او دا پدے آیت کښې ذکر دے۔

او دغه شان په حدیث د عبد الله بن ابی اوفیٰ کښې راغلي دي. چه دهٔ ته طلحهٔ اُووئیل : [ کَیْفَ کُتِبَ عَلَی النَّاسِ الْوَصِیَّةُ وَلَمْ یُوْصِ ]۔ چه رسول الله ﷺ په خلقو وصیت څنګه لازم کړے او خپله ئې وصیت نهٔ دے کړے؟۔ هغه اُوفرمایل : اَوْصٰی بِکِتَابِ اللہ۔

(رسول الله ﷺ د الله په کتاب وصیت کړے)۔ (بخاری کتاب الوصایا) یعنی د الله په کتاب کښې د وصیت حکم موجود دے چه د چا سره مال وی نو د غیر وارثانو خپلوانو دپاره به وصیت کوی.

دارنګه دے آیت کښې دا حکم ذکر دے او ناسخ ئې نشته ۔ نو پدے باندے عمل کول پکار دی۔ او دا وصیت به د مال په دریمه حصه کښې وی۔ اوګوره الدین الخالص (۲) او احکام الجنائز للالبانی ص (۵)۔

| فَمَنْ بَدَّلَهٗ بَعْدَ مَا سَمِعَهٗ فَاِنَّمَاۤ اِثْمُهٗ |
|---|
| نو چا چه بدل کړو دا وصیت پس د هغې نه چه وائې وریدو (او پوهه شو په هغې) نو یقیناً ګناه د دے |
| عَلَی الَّذِیْنَ یُبَدِّلُوْنَهٗ اِنَّ اللّٰهَ سَمِیْعٌ عَلِیْمٌ ﴿۱۸۱﴾ |
| پهٔ هغه کسانو ده چه بدلوی دا وصیت، یقیناً الله اوریدونکے، په هر څه پوهه دے۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کښې د وصیت د بدلولو نه منع ده کله چه د شریعت مطابق وی۔ او که چا بدل کړو نو ګناه به صرف په هغه راځی او د وصیت کونکی اجر به د الله په نیز ثابت وی۔ د تبدیلی صورتونه دا دی : (۱) وصیت د یو دپاره اُوشی او دا ئې بل چا ته ورکړی۔

(۲) وصیت ډیر وی دا ئې کم کړی۔ (۳) وصیت وی دا ئې ختم کړی، یا ئې پټ کړی۔

(سَمِعَه) نه اَوریدل او بیا پرے پوهیدل مراد دی۔

﴿ فَاِنَّمَاۤ اِثْمُهٗ عَلَی الَّذِیْنَ یُبَدِّلُوْنَهٗ ﴾ دا بدلونکے ګناهګار دے او وصیت کونکے ګناهګار نهٔ دے، او په سمیع علیم کښې زورنه ده چه الله تعالیٰ ستا په حال او نیت عالِم دے۔

| فَمَنْ خَافَ مِنْ مُّوْصٍ جَنَفًا اَوْ اِثْمًا |
|---|
| نو هغه څوک چه یریږی د وصیت کونکی نه د اوریدو د حق نه (په خطا) او یا د ګناه نه (قصداً) |
| فَاَصْلَحَ بَیْنَهُمْ فَلَاۤ اِثْمَ عَلَیْهِ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِیْمٌ ﴿۱۸۲﴾ |
| نو صلح اُوکړی په مینځ د دوی کښې نو نشته هیڅ ګناه په هغهٔ، یقیناً الله ډیر بخونکے، رحم کونکے دے۔ |

**تفسیر** : مخکښې ئې اُوفرمایل : چه عام وصیتونه به نهٔ بدلوی، نو دلته وائی چه بعض

وصيتونه بدلول جائز دي، هغه دا دے چه وصيت کونکی غلط (د شريعت خلاف) وصيت کړيدے۔ يا ئے کوی، او څوك هغه برابر کړی، او د وارثانو ترمينځ جوړ خ راولی، نو دۀ باندے څۀ گناه نشته بلکه ثواب ئے کيږی۔ مثلاً وصيت کونکے بعض وارثانو ته په ميراث نۀ ورکولو باندے وصيت اُوکړی، چه چينکو له ميراث مۀ ورکوئ، يا د ثلث نه زيات وصيت بل چا دپاره کوی۔ يا په بدعاتو او رواجونو او قطع رحمئ باندے او د مړی په نقل کولو او په غلط خيراتونو او د خپل ځان پسے د سنډا او ميخے په ذبح کولو باندے وصيت اُوکړی، نو يو تن راشی او د هغه دا وصيت د شريعت مطابق کړی، نو پدے بدلولو د وصيت کښ څۀ گناه نشته۔ يا دا چه يو وصيت کونکے د چا دمحبت د وجه نه غلط وصيت کوی، نو يو وارث اُووائی : چه زما په وجه څۀ له غلط وصيت کوی، ما له پکښ دومره راکړه او دومره مۀ راکوه، نو وصيت ورله بدل رابدل کړی، دے دپاره چه دغه وصيت کونکے گناهگار نۀ شی۔ نو دا خير دے د اصلاح اراده ئے ده۔

﴿ فَمَنْ ﴾ ددے نه مراد وارث دے يا يو دريمګړے انسان دے۔

﴿ جَنَفًا ﴾ (جنف) ديته وائی چه (په خطائی او جهالت سره) د حق نه ميلان او کږيدل اُوشی، يعنی څۀ کسانو ته زيات مائل شی او د نورو حق برباد کړی۔ او اثم ديته وائی چه قصداً په عِلم سره داسے کوی۔ (ايسر التفاسير) ـ بعض برعکس فرق کوی۔ ۲- يا د (اثماً) نه مراد د گناه وصيت دے چه د هغے بدلول او په هغے باندے عمل نکول ضروری دی۔

﴿ فَاَصْلَحَ بَيْنَهُمْ ﴾ يعنی په ژوند ددے مړی کښ ورله وصيت برابر کړی۔ يا د هغه د مرګ پس وصيت د شريعت مطابق کړی۔ (بَيْنَهُمْ) ضمير وصيت کونکو ته يا وارثانو ته راجع دے، يعنی وارثان خپل مينځ کښ د مړی وصيت د شريعت مطابق کړی۔ يا هغه چا ته چه وصيت ورته شوے وی۔ ﴿ فَلَآ اِثْمَ عَلَيْهِ ﴾ يعنی پدے اصلاح کونکی گناه نشته بلکه د ثواب حقدار دے، خو د گناه نفی ئے اُوکړه ځکه چه ظاهر کښ وصيت بدلول دی۔

﴿ غَفُوْرٌ ﴾ يعنی کله چه وصيت کونکی د غلط وصيت اراده کړی وی او څوك ئے منع کړی او هغه منع شی نو الله ورته بخنه کوی۔

﴿ رَّحِيْمٌ ﴾ او په هغه چا رحم کونکے دے چه د وصيت کونکی اصلاح کوی۔

**مسئله** : ددے آيت نه معلومه شوه چه يو بنده د يو شی وقف کوی نو ددۀ الفاظ د شارع په شان نۀ دی۔ نو پدے کښ رد دے په هغه فقهاؤ چه وائی چه د وقف کونکی الفاظ د شارع د الفاظو په شان دی۔

**مسئله** : حکم او فيصله په گمان جائز ده لکه دلته دا سرے يريدلے دے چه امکان شته چه

غلط وصیت اُوکړی، نو څکه ورله اصلاح کوی. او که یقیناً غلط وصیت وی، نو بیا خو بدلول فرض دی کما فی القرطبیؒ۔

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا كُتِبَ عَلَيْكُمُ الصِّيَامُ كَمَا كُتِبَ

اے ایمان والو : فرض کړے شوی دی په تاسو روژے نیول لکه څنګه چه فرض کړے شوے وے

عَلَى الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكُمْ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُوْنَ ﴿۱۸۳﴾

په هغه کسانو چه ستاسو نه مخکښې وو دے دپاره چه تاسو تقوی حاصله کړئ۔

**تفسیر : ربط** : بل قانون د روژے بیانوی. چه دا به په عام ملك کښې وی شخصی قانون هم دے او اجتماعی قانون هم دے۔ او په روژه کښې فائده دا ده چه خلقو کښې تقویٰ پیدا شی او دا مقصود دی شے دے، دا د جهاد دپاره تدریب (ټریننګ) دے۔ د مسکینانو د احوالونه به خبر شی چه په هغوی باندے څومره سختیانے تیریږی. نو انسان به مال لګوی، لهذا دا د غمخورئ او مال لګولو ذریعه ده ۔ د شیطان لارے بندیږی. ځوك چه یوه میاشت د خولے او د بدن کنټرول اُوکړی، تول کال ورته الله تعالیٰ د نیکیانو توفیق ورکوی او روژه د نفس تزکیه پیدا کوی، نو دلته د روژے اود هغے بعض احکام بیانیږی۔

(۲) مخکښې د نیکئ درے ارکان د اسلام – ایمان، مونځ او زکوٰة – بیان شو نو اُوس څلورم رکن د اسلام روژه ذکر کوی۔

(۳) دریم ربط دا دے چه مخکښې د مال حفاظت او خپل نفس د حرامو نه محفوظ ساتل وو۔ اُوس دلته ترقی ده د نفس حفاظت دے د حلالولو نه په بعض اوقاتو کښې۔

او ایمان والو ته خطاب څکه کوی چه د روژے په فائده باندے ایمان والا پوهیږی۔

﴿كُتِبَ﴾ روژه د هجرت په دویم کال په شعبان میاشت کښې فرض شوه، او حکم اُوشو چه تاسو به په راتلونکی رمضان کښې روژے نیسئ۔

روژے د مخکښې نه هم وے لکه اول کښې ایام البیض (د میاشتے دیارلسم، څوارلسم، پنځلسم) وے، او دارنګه د عاشورے ورځ وه لیکن بیا د هغے فرضیت منسوخ شو او د رمضان مکمله میاشت فرض شوه۔ او دا څکه روستو فرض شوه چه محبوب څیزونه او شهوات پریخودل په نفسونو باندے ډیر ګران کار وی، خو کله چه په توحید او مانځه سره د دوی نفسونه تیار شو او د قرآن اوامرو سره اموخته شو نو حکم د روژو راغلو۔ (قاسمیؒ)۔

**فائده :** حافظ ابن قیمؒ فرمائی : د روژے د فرضیت درے مرتبے دی :
۱ - اول کښې په طریقه د اختیار سره فرض شوے وے چه روژه نیسی او که د هرے ورځے په بدله کښې مسکین ته طعام ورکوی۔ ۲ - بیا د اختیار نه لزوم ته نقل شو او طعام ورکول د شیخ فانی او بوډئ ښځے په باره کښې پاتے شو۔ لیکن که روژه دار به د طعام ورکولو نه مخکښې اُوده شو نو خوراك څکاك به پرے تر راتلونکی شپے پورے حرام وو، بیا دا منسوخ شو په دریم حکم، په کوم باندے چه تر قیامته پورے عمل دے۔ هغه روستو راځی۔ (زاد المعاد، قاسمیؒ)
(الصیام) جمع د صوم ده او کله په معنیٰ مصدری سره هم استعمالیږی یعنی روژه نیول۔ روژه په شریعت کښې دیته وائی چه انسان د صبا صادق راختلو نه پس تر مابنامه پورے د خوراك، څکاك، جماع او هر قسمه گناه نه ځان اُوساتی سره د نیت کولو نه۔
﴿كَمَا كُتِبَ عَلَى الَّذِينَ مِن قَبْلِكُمْ﴾ یعنی دا نوے عبادت نهٔ دے بلکه دا د پخوا نه شروع دے، پدے کښې مقصود اُمت ته تسلی ده چه مهٔ خفه کیږئ، دا څه ابتدائی عمل نهٔ دے بلکه په مخکنو هم دا عمل لازم کړے شوے وو نو تاسو له هم پدے عمل پکار دے۔
○ دارنگه پدے کښې ددے اُمت فضیلت ته اشاره ده چه د خپل فضیلت سره سره ئے د پخوانو امتونو اعمال هم راجمع کړیدی۔
﴿كَمَا كُتِبَ﴾ دا تشبیه په څهٔ کښې ده ؟ پدے کښې دوه قوله دی (۱) اول دا چه دا تشبیه په شمار او وقت کښې ده، او پدے کښې بیا اقوال دی : ○ یو دا چه د شمار نهٔ مراد درے ورځے دی چه هغے ته ایام البیض وائی (یعنی د میاشتے دیارلسم، څوارلسم او پنځلسم تاریخ) چه دا په پخوانو فرض وے نو په تاسو هم فرض۔ او د عاشوراء ورځ هم فرض وه۔ او دا بیا منسوخ شو په روستو آیت (شهر رمضان) سره۔ نو د روستو ایاماً معدودات نه مراد دغه ایام البیض شوے۔
○ دویم قول دا چه ددے نه عینِ رمضان مراد دے چه دا په یهود او نصاراؤ فرض وو لیکن نصاراؤ په کښې د ځان نه زیاتے اُوکړو او پنځوس ورځے ئے ترینه جوړے کړے۔ (اللباب)
او د هغے وجه دا وه چه نصاراؤ باندے یوه میاشت روژے وے نو دوی به په اُوړی کښې نهٔ نیولے، او د اُوړی اوژمی په درمیانی ورځو کښې به ئے نیولے (یعنی پسرلی کښې) بیا به ئے ددے کار په کفاره کښې شل ورځے زیاتی نیولے، نو پنځوس ئے ترے جوړے کړے۔ (ماوردیؒ عن الشعبیؒ)۔
او بعض وائی چه دوی به یوه ورځ د رمضان نه مخکښې او یوه ورځ روستو احتیاطی روژه نیوله، نو دوی به دغسے کار کولو تردے چه روستنو خلقو پنځوس روژے مقرر کړے۔ ددے وجه نه د شك د ورځے د روژے نه زمونږ په دین کښې منع راغله۔ (خازن)۔

یا کله چه دوی روژے د خپل موسم نه اُوویستلے نو ددے په کفاره کښې ئے لس ورځے زیاتے کړے، بیا د دوی یو بادشاه بیمار شو او نذرئے اُوکړو، که زهٔ روغ شوم نو اُووه ورځے روژے به نیسم بیا روستنو بل بادشاه راغلو چه دے درے ورځو له څهٔ شویدی؟ بس هغه ترے پنځوس جوړے کړے۔ (رازی)

او دا خبره غلطه ده چه په پخوانو شپږ میاشتے روژے فرض وے۔ غوره دا ده چه په ټولو امتونو رمضان فرض وو باقی بدعات وو۔

(۲) **دویم قول** : دا تشبیه صرف په فرضیت کښې ده، او په کیفیت د فرضیت کښې نهٔ ده ځکه چه مونږ ته معلومه نهٔ ده چه په پخوانو اُمتونو باندے په کوم کیفیت روژه فرض وه۔ دارنګه په تیر شوی اُمتونو کښې د خبرو نه بندیدو روژه هم وه لکه په سورة مریم (۲۶/۱۱) کښې په قصه د زکریا او مریم علیهما السلام کښې روژه د خبرو کولو نه ذکر شویده۔ نو دلته مقصود صرف په فرضیت کښې تشبیه ده۔

﴿ اَلَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكُمْ ﴾ ددے نه مراد ټول اُمتونه دی د آدم علیه السلام نه واخله تر آخری اُمت پورے۔ (قرطبی عن مجاهدؒ والنیسابوری عن علیؓ والماوردی عن قتادة) ۔ او بعض وائی یهود او نصاریٰ مراد دی۔ یعنی اُمت د موسیٰ او عیسیٰ علیهما السلام۔ (مجاهد- النکت للماوردی)۔

علامه قاسمیؒ د تورات او انجیل او د بنی اسرائیلو د کتابونو نه ډیر شواهد نقل کړی پدے خبره چه روژه په هغوی هم فرض وه۔ (محاسن التاویل ۱/۴۵۶)۔

﴿ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُوْنَ ﴾ یعنی کله چه انسان د خوراك، سکاك او د جماع نه د الله دپاره بند شی او د الله په بندګئ کښې مشغول شی، نو په هغه کښې تقویٰ پیدا کیږی۔ نو د روژے دا فائده ده چه انسان کښې تقویٰ پیدا شی، خو هغه روژه چه بنده پکښې د خُلے، د سترګو، د لاسونو، د غوږونو او د خپو حفاظت اُوکړی داسے نه چه هسے خُلے ته ئے کورے اچولے وی، خوراك او سکاك نه ئے ځان بند کړے وی او نور هر قسمه ګناه کوی۔ داسے روژه انسان کښې تقویٰ نهٔ راولی۔ نبی علیه السلام فرمائی : «څوك چه (په روژه کښې) دروغ (او غلطے خبرے) او عمل په دروغو باندے پرے نهٔ ږدی نو الله ددے هیڅ پرواه نهٔ کوی چه دا انسان صرف خوراك څکاك پریدی»۔ (احمد، صحیح بخاری: ۵۷۱۰)

او پدے فائده ذکر کولو کښې دا فائده ده چه ایمان والو ته خو تقویٰ ډیر بهترین عمل ښکاری نو دا ترغیب ورکوی تعمیل ددے حکم ته چه هر کله په روژه سره انسان کښې تقویٰ پیدا کیږی، او تقویٰ خو بهترین عمل دے نو پدے روژه باندے عمل کول پکار دی چه تقویٰ حاصله شی۔

**سوال** : په رمضان کښې شیطانان تړلے شویدی لیکن خلق بیا هم ګناه کوی جنګونه، کنځلے، خیانتونه کوی، دروغ وائی ؟۔

**جواب** : په رمضان کښې اګرکه شیطانان تړلے شوی وی، لیکن د انسان نفس دا کار کوی او هغه د شیطان په وسوسو په ګناهونو اموخته شوے وی. ﴿ إِنَّ النَّفْسَ لَأَمَّارَةٌ بِالسُّوْءِ ﴾ (یوسف).

۲- **جواب** : د شرعی روژے تعریف مخکښې بیان شو چه د هر قسم ګناه نه ځان اوساتی نو هله به تقویٰ پیدا کیږی۔ او مخکښې حدیث پرے دلیل دے۔ ددے وجه نه د ابن حزمؒ مذهب دے چه څوك په روژه کښې ګناه اوکړی روژه ئے ماته ده۔ ځکه دغسے روژه خو کافر او حیوانات هم نیولے شی۔ او عام اهل علم وائی چه اجر ئے نهٔ کیږی اګرکه غاړه ئے آزاده ده۔

## فوائد الصیام :

په روژه کښې مقصد (۱) نفس د خواهشاتو او شهواتو او محبوب څیزونو نه بند ساتل دی۔

(۲) ...... قوت شهوانی ورسره برابریږی چه بیا نفس د خپل نعمت او سعادت حاصلولو په طلب کښې لګیا کیږی۔ (۳) ...... لوږه او تنده د نفس تیزی او جوش ماتوی۔

(٤) ...... د فقیرانو او وږی خلقو حالت مخے ته کیږی۔

(٥) ...... د شیطان لارے بندیږی ځکه چه د خوراك څکاك نهٔ کولو په وجه لارے تنګے کیږی۔

(٦) ...... د اندامونو قوت رابندیږی او د مزاج او طبیعت حکم ته نهٔ پریخودلے کیږی چه هغه ئے په دنیوی او اُخروی ضررونو کښې واقع کړی۔

(۷) ...... هر اندام د خپلے سرکشئ نه رابندیږی او هغے ته واګے وراغوستولے شی پدے وجه روژه د متقیانو واګے او د مجاهدینو ډهال او د ابرار او مقربینو ریاضة دے۔

(۸) ...... روژه د بنده او د هغه د رب په مابین کښې راز دے چه هیڅوك پرے نهٔ خبریږی ځکه چه بنده د خپل رب د محبت او رضا دپاره خپل خواهشات او مزے پریدی ځکه الله فرمائی چه روژه صرف زما دپاره ده۔ او زهٔ به ئے بدله ورکوم۔ لنډه دا چه روژه د ظاهری او باطنی اندامونو او د قوتونو په حفاظت کښې عجیب تاثیر لری او د فاسدو مادو نه ئے ساتی نو روژے سره د زړهٔ او د اندامونو او د روح صحت راځی او شهواتو چه کوم اثر ختم کړے وی هغه ورته راواپس کوی نو دا په تقویٰ حاصلولو ډیر لوئی مددګار دے۔ [قاسمی ۱/٤٥٦]۔

د انسان ظاهری بدن په ظاهری غذا سره پرورش کوی او په دهٔ کښې روح دے، د هغے دپاره هم یوه غذا پکار ده، نو لکه څنګه چه روح آسمانی او الهی دے، نو دا به د دنیا په غذا سره پرورش نهٔ مونده کوی، بلکه دا به د الله په تعلق سره غذا حاصلوی، که دا غذا ورنکړے شی نو بدن به د اُوچتو مرتبو حاصلولو نه کوتاه پاتے شی۔

| أَيَّامًا مَّعْدُودَاتٍ فَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ مَرِيضًا أَوْ عَلَىٰ سَفَرٍ |
| --- |
| ورځې شمار کړې شوې، نو هغه څوك چه وي ستاسو نه مريض يا وي په سفر (او روژې اُونهٔ نيسي) |
| فَعِدَّةٌ مِنْ أَيَّامٍ أُخَرَ وَعَلَى الَّذِينَ يُطِيقُونَهُ فِدْيَةٌ |
| نو په دهٔ باندې شمارل دي د ورځو نورو (دپاره د قضا راوړلو) او په هغه کسانو چه طاقت د روژې لري، فديه ده |
| طَعَامُ مِسْكِينٍ فَمَنْ تَطَوَّعَ خَيْرًا فَهُوَ خَيْرٌ لَهُ |
| چه طعام د مسکين دې (د يوې ورځې دپاره) نو چا چه په خوښې سره اُوکړو يو نيك کار نو دا ډيرغوره ده هغهٔ له |
| وَأَنْ تَصُومُوا خَيْرٌ لَكُمْ إِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿۱۸۴﴾ |
| او چه روژه اُونيسئ دا ډيره غوره ده ستاسو دپاره که چرته تاسو پو هيږئ. |

**تفسير** : پدې آيت کښې تسلي ورکوي چه دا يو څو ورځې دي مشکل کار نهٔ دې. او بيا د روژې د رخصت دپاره عذرونه او د فديې حکم بيانوي.

﴿ أَيَّامًا مَّعْدُودَاتٍ ﴾ دا منصوب دې دلته فعل (صُومُوا) (روژې نيسئ) پټ دې.

او پدې کښې بعض مفسرين وائي چه ددې نه مراد ايام البيض دي. ليکن صحيح دا ده چه ددې نه د رمضان د مياشتې ورځې مراد دي، خو ديته ئې د تسلي ورکولو دپاره يو څو ورځې وئيلي دي چه په ځان ئې بوج مهٔ ګڼرئ. او ورسره رخصتونه هم شته، نو هر قسمه حرج ئې ختم کړيدې.

**فائده** : د روژې د فرضيت د اعلان نه روستو په څلورو طريقو سره ئې د هغې د اسبابو د آسانوالي بيان اُوکړو (۱) كُتِبَ كَمَا كُتِبَ. يعني دا يواځې په تاسو نهٔ دي فرض. نو يو کار چه عام مقرر شي هغه انسان ته آسان شي. (۲) لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ . هر شے چه د تقوىٰ وسيله وي، نو انسانانو ته د هغې حاصلول آسانيږي ځکه چه فائده پکښې ښکاري.

(۳) أَيَّامًا مَّعْدُودَاتٍ . (يو څو ورځې دي) يعني نهه ويشت يا ديرش او ډيرې مياشتې او کلونه نهٔ دي. نو نيول ئې آسان دي. (٤) که څوك په سفر کښې وي، يا بيمار وي او د روژې نيولو طاقت نهٔ لري نو روژه ماتول ورله جائز دي، نو څومره آسان حکم شو لهذا ددې نه روستو هم ددې نهٔ پوره کول به ډيره بې وفائي وي.

## د صوم رمضان رخصتونه

د رمضان روژه : ۱ – په هغه چا فرض نهٔ ده چه (الشيخ الخرف) وي يعني عقل ئې د بوډاوالي په

وجه خراب شوے وی۔ او په داسے شخص فدیه هم نشته۔

٢- الشیخ الفانی : هغه بوډا چه عقل ئے په ځائے دے، لیکن روژه ورته سخت تکلیف ورکوی، نو هغه ته شریعت وئیلی دی چه روژه مهٔ نیسه او فدیه ورکړه۔ لکه دا د صحابه کرامؓ نه نقل ده او دے آیت کښ ورته اشاره ده۔

٣- مریض ته اجازت دے چه فی الحال روژه اُونهٔ نیسی او قضائی راوړی۔

٤- حامله (بارداره) یا مُرضعه (تے ورکونکے) ښځے ته چه په روژه نیولو کښ تکلیف وی، نو روژه دے ماته کړی، او روستو به قضائی راوړی۔ دا هم د مریض په حکم کښ دی۔

٥- په ماشومانو هم لازم نهٔ ده۔

٦- او په ابتداء د اسلام کښ دا وه چه روغ انسان ته هم اختیار وو، روژه نیسی او که فدیه ورکوی۔ ځکه ابتداء کښ د روژو مسئله سخته وه۔ روستو آیت ﴿فَمَنْ شَهِدَ مِنْكُمُ الشَّهْرَ فَلْيَصُمْهُ﴾ سره منسوخ شو۔

(مَرِيْضًا) د مریض نه مراد بعض خلق وائی هغه دے چه آسمان او زمکه نهٔ پیژنی۔ لیکن دا خبره صحیح نهٔ ده۔ بلکه د مریض نه مراد هغه بیمار دے چه د عامو خلقو نه ئے عادت جدا وی لکه تبه، اسهال، سخت سر درد ورته لګیدلے وی، اَلتَّهِیْ ورځی۔ چه روژه ورته تکلیف ورکوی، نو د ماتولو اجازه شته۔ او داسے معمولی بیماری هم نهٔ ده مراد چه د هغے سره د روژے نیولو سخت تکلیف نهٔ وی۔

﴿أَوْ عَلٰى سَفَرٍ﴾ د سفر نه مراد شرعی سفر دے چه د عامو اهل علمو په نیز (اته ځلویښت میله) دے او غوره دا ده چه په عرف کښ کوم سفر مراد وی، بس هغے کښ اجازه د روژے ماتولو شته اګر که تکلیف ورته نهٔ وی، ځکه چه نفس سفر سبب د رخصت دے ځکه چه دا قائمقام د مؤنهٔ او مشقت دے۔ او مسافر دپاره روژه ماتول به کله جائز وی او کله واجب او کله به ماتول او نهٔ ماتول دواړه برابر وی۔ چه د هغے تفصیل په احادیثو کښ راځی۔

په حالت د سفر کښ روژه نیول او ماتول دواړه د رسول الله ﷺ نه ثابت دی۔ ددے وجه نه ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی : رسول الله ﷺ (په سفر کښ) روژه نیولے هم ده او افطارئے هم کړیدے نو څوک چه غواړی روژه دے نیسی، او څوک چه غواړی روژه دے ماته کړی۔ (متفق علیه)۔

٢- د بعض خلقو په نیز په سفر کښ روژه نیول افضل دی او د بعضو په نیز افطار غوره دے، لیکن صحیح دا ده چه دا دواړه خبرے مطلق نهٔ دی، بلکه که سفر داسے وی چه په هغے کښ هیڅ تکلیف او پریشانی نهٔ وی، او نهٔ د دشمن مقابله وی، نو روژه نیول افضل دی او که روژه نیولو

سره تـکـلـيـف راځـي، يـا د مـلـګـرو خدمت کول ئے غرض وي، نو بيا ورله روژه ماتول افضل دي.
البتـه کـه يـوانسـان ذ رخصت نـه نـفـرت کوي او زړه ئے نهٔ مني، او ددے په وجه روژه ماتونکو ته سپك ګـوري، نـو دهٔ لـه روژه نـيـول حـرام دي لکه رسـول الله ﷺ ته د څه کسانو نه اُورسيدل چه نبی ﷺ روژه ماته کړه او هغوی ماته نهٔ کړه نو رسول الله ﷺ اُوفرمايل : [اُولٰئِكَ الْعُصَاةُ] (همدا خلق نافرمان دي) (صحيح الترمذی بسند صحيح) او بل حديث دے : [لَيْسَ مِنَ الْبِرِّ الصِّيَامُ فِي السَّفَرِ] (مسند احمد، ابوداود، نسائی بسند صحيح)، (په سفر کښې روژے نيول نيکي نهٔ ده).
دا هم پدے صورت باندے محمول دے.
الله رب الـعـالـمـين د سفر او مرض سره هيڅ قسم قيد او شرط اُونهٔ لګولو، نو پدے کښې د ځان نه د سختـي پيدا کـولـو دپاره شرطونو لګولو ته هيڅ ضرورت نشتـه، بلکـه د الله مقصد اُمت سره آسـانـي کـول دي، او په دے قيد نهٔ لګولو کښې به داسے حکمت وي چه هغه به زمونږ ذهن ته نهٔ راځـي ځـکـه چه دا خـطـاب ايـمان والو ته دے او هغوی عبادتونه د رخصت تالاش کولو دپاره نهٔ کوي. د روژے او د هغے د رخصت متعلق تفصيلي بحث په تفسير (فی ظلال القرآن د سيد قطب) وغيره کښې اُوګورئ.
د سـفـر د شروع نـه مـخـکښې روژه ماتولو کښې اختلاف شته، ليکن صحيح دا ده چه که چا په کـور کـښې يـا په کلي کښې روژه ماته کړه او بيا سفر ته روان شو نو جائز ده د صحابه کرامو نه نقل دي. آثـار پـه تـفسير القاسمی (۴۶۰/۱) او ابوداود کتـاب الـصـوم کښې کتلے شي. والتفصيل فی الدين الخالص (۱۳۲/٦)
د (فَمَنْ) دپاره جزاء پټه ده يعنی (وَلَمْ يَصُمْ) يعنی هر يو ددے کسانو روژه اُونهٔ نيوله. نو :
﴿ فَعِدَّةٌ مِنْ اَيَّامٍ اُخَرَ ﴾ يـعنی د پريخودلو روژو مطابق قضاء دے راوړي، لکه لس ترے قضاء شوی دي نو نورو ورځو کښې دے دهغے قضائي راوړي.
او د (ايام اخر) د نـورو ورځـو تعيين ئے نهٔ دے کړے نودا دليل دے چه په قضائي راوړلو کښې پرله پسے والے او زر نيول شرط نهٔ دے، او په روستو کولو کښې ئے کفاره هم نشتـه. او همدا خبره غوره ده. هاؤ، زر نيول ئے افضل دي. فَاسْتَبِقُوا الْخَيْرَاتِ باندے عمل کول دي.
دارنګـه دا دليل دے چه که دے انسان ته د نورو ورځو موقعه ملاؤ شوی وي، نو هله به قضاء راوړي او کـه مـوقـعه ورته نهٔ وي ملاؤ شوی، او په رمضان کښې يا د اختر په ورځ وفات شو او د قضائي موده ورته ملاؤ نشوه نو په دهٔ باندے نهٔ قضاء شته او نهٔ کفاره. نوحيله د اسقاط ختمه شوه.

## حیلهٔ اسقاط

ددې وجه نه دلته مسئله د اسقاط بیانیږي : په شریعت کښې اسقاط صرف د روژو راغلې دې او هغه هم په دوه طریقو دې : (۱) د مړي میراث خور به د هغهٔ د طرف نه روژه اُونیسي۔
حدیث کښې دي : ...... [مَنْ مَاتَ وَعَلَيْهِ صِيَامٌ صَامَ عَنْهُ وَلِيُّهُ] ...... (صحیح بخاري بروایة عائشة)
(څوك چه مړ شي او په هغه باندې روژې وي نو د هغه د طرف نه به وارث روژه نیسي)
(۲) دوېم : فدیه ورکول چه هغه پنځلس کیلو وره دي۔ روستو راځي۔
نو د اسقاط مسئله آسانه وه، لیکن خلقو د یو بدعت نه بل بدعت پیدا کړو، پدې کښې ئې د مانځه فدیه هم راپیدا کړه، حال دا چه د مانځه فدیه په دین کښې نشته۔ نهٔ د نبي ﷺ، نهٔ د صحابه کرامو او نهٔ د تابعینو او نهٔ د ائمه اربعوّ نه نقل ده بلکه دا ې دیني ده ځکه په اسلام کښې د مانځه قضاء کول نشته۔ صحیح بخاري کښې دي : (لَا كَفَّارَةَ لَهَا إِلَّا ذٰلِكَ) د مانځه کفاره نشته مګر همدا مونځ کول دي) بلکه فقهاءِ احنافو د مانځه فدیه د امام محمدؒ د یو اُمید نه پیدا کړه چه هغه وئیلي وو چه زما اُمید دې چه د مانځه فدیه به قبوله شي۔
نو فقهاءِ احنافو د اُمید نه دین جوړ کړو۔ او بیا ئې پکښې دا خبره راپیدا کړه چه یو انسان وفات شي او د هغه نه ډېره موده مونځونه فوت شوي وي، نو ددهٔ د فدیې سره به څهٔ کوو ځکه ددهٔ نه دا پاتې شوې مال (پیسې) خو ددې مونځونو او روژو نهٔ کافي کیږي، نو دې دپاره ئې حیله جوړه کړه چه یوه دائره به اُولګوي او د مسکین پیسې مثلاً زر روپۍ به راوړل شي، یو مسکین له به ورکړې شي، نو د زرو روپو په مقدار مونځونه او روژې به مړي ته معاف شي، بیا به ئې هغه بل مسکین له ورکړي او د هغې ثواب به مړي ته اُوبخي، نو دغه شان نور مونځونه او روژې به معاف شي او پدغه طریقه به په ټوله دائره کښې اُوګرځولې شي که لس کسان وي، نو د لس زره روپو په مقدار به مونځونه معاف شي۔ د الله سره حیله او چل کوي، او بیا پدې کښې په مسکین باندې دا شرط لګوي چه تهٔ به ئې بل ته بخې، او ورسره دا بې ادبي هم کیږي چه قرآن کریم پکښې ګرزولې شي۔ دا د دین په احکامو کښې هغه حیلې دي چه یهود او نصاراؤ به کولې۔ بیا دوی دا حیله اسقاط د مالدار دپاره هم کوي، او د غریب دپاره هم۔ دارنګه که د چا نه روژې او مونځونه قضاء دي او که نهٔ دي خو دا چلونه الله تعالیٰ سره کوي۔ مُلیان خپل جیب ګرموي۔ دا د بدعتیانو دین دې !!۔ او بیا وائي چه ددې دهوکې ثابتولو دپاره مونږ مناظره کوو۔
او فقهاءِ احنافو ددې دپاره لس شرطونه وئیلي دي۔
او ددې تفصیل په الحق الصریح (۱۷۳/۴) کښې اُوګوره۔ اُوس الحمد لله حیله د اسقاط په اکثرو

علاقو کښې ختمه شوه او د بدعت همد غسې انجام وي.

﴿وَعَلَى الَّذِينَ يُطِيقُونَهُ فِدْيَةٌ طَعَامُ مِسْكِينٍ﴾ (۱) ...... ددې آيت حکم د اسلام په ابتدائي زمانه کښې وو چه چا به د روژو طاقت لرلو، او روژه به ئې نهٔ نيوله، نو هغه دپاره اجازه وه چه طعام د مسکين دې ورکړي، بس دا به ئې د روژې په ځائې کافي شي. او د روژې حکم ابتداء کښې ګران وو، نو الله تعالىٰ پدې سره اموخته کول پدې وجه ئې اختيار ورکړې وو. بيا الله تعالىٰ دا حکم په روستو آيت (شَهْرُ رَمَضَانَ الَّذِيْ) سره منسوخ کړو. او دائې ورته وئيلي وو چه ﴿وَأَنْ تَصُومُوا خَيْرٌ لَكُمْ﴾ روژه نيول غوره دي. او دا د سلمه بن اکوعؓ، معاذ بن جبلؓ او عبد الله بن عمرؓ او د شعبيؒ نه نقل شويدي. (بخاريؒ، طبريؒ، قرطبيؒ، بغويؒ).

(۲) ...... او دې کښې دويمه معنىٰ ابن عباسؓ دا هم کړيده چه دا آيت منسوخ نهٔ دې بلکه دا په حق د هغه بوډا او بوډئ او حاملې او مُرضعې (تې ورکونکې ښځه) کښې دې چه روژې نيول ورته تکليف ورکوي نو د (يُطِيقُونَهُ) معنىٰ دا ده چه په مشقت او تکليف سره طاقت لري (أَىٰ يَتَجَشَّمُوْنَهُ) (طاقت لري سره د تکليف نه) (بخاري عن ابن عباسؓ) لکه دا معنىٰ په (اطاق، يطيق) باب کښې پرته ده. نو دوی ته شريعت دا اجازه ورکړيده چه د هرې روژې په بدله کښې مسکين ته خوراك ورکړي. (صحيح بخاريؒ) (قرطبيؒ).

او دا حکم اُوس هم باقي پاتې دې.

○ يا يطيقون باب افعال دې او پدې کښې همزه د سلب دپاره هم راځي يعني چه طاقت نهٔ لري نو فديه به ورکړي. دا هسې احتمال دې او اول مطلب غوره دې.

پدې کښې بعيدې دوه معانې نورې هم دي.

(۳) شيخ عبد القادر جيلانيؒ فرمائي : چه دلته د فديه نه مراد افطار الصائم دې نو معنىٰ دا ده چه کوم کسان چه طاقت د روژې لري نو هغه دې هم اُونيسي او هغه له پکار دي چه فديه هم ورکړي چه هغه مسکين ته خوراك (افطار) ورکول دي. يعني خپله هم روژې نيسه او يواځې خوراك مهٔ کوه چه تول خوراکونه خپلې مخې ته کېردې بلکه بل مسلمان هم يادوه. او دا فديه ورکول مستحب دي.

(٤) ...... د شيخ الاسلام ابن تيميةؒ نه دا معنىٰ هم نقل ده چه د فديه نه مراد دلته صدقة الفطر (سرسايه) ده. يعني څوك چه طاقت د روژو لري او روژه ئې اُونيوله، نو هغه باندې د روژو نيولو نه پس فديه ورکول لازم دي چه هغه د مسکين خوراك دې (يعني سرسايه، فطرانه) لکه نبي ﷺ هم دا فرض کړيدې. ددې دوه فائدې دي (۱) طُهْرَةٌ لِلصَّائِمِ مِنَ اللَّغْوِ وَالرَّفَثِ

(د لغو او بے حیاء خبرو په وجه د روژے خرابیدو نه پدے سره صفائی راځی)۔
(۲) اِغْنَاءُ لِلْمَسَاکِیْنِ۔(پدے ورځ پدے سره مسکینان بے پرواه کولے شی)۔ او دا درے واړه معانی منسوخ نۀ دی۔
(فدیة) په اصل کښ هغه شی ته وائی چه قائم وی د یو څیز په ځائے او جزاء ته هم وئیلے شی۔

## د فدیے مقدار:

د فقهاء الحجاز په نیز یو مد (نیمه کیلو) طعام دے۔او دا د ابن عباس رضی الله عنهما نه نقل دی۔او دا یو قول د امام مالك دے۔○ او امام ابو حنیفة وائی : نیم صاع (دوه مده، یعنی یو کیلو او تقریباً سل گرامه) د غنمو نه دے او د نورو طعامونه یو صاع (دوه کیلو او دوه سوه گرامه) دے۔ او د ابن عباس رضی الله عنهما نه دا هم نقل دی چه دا به دوه وخته ورکولے شی د پیشنمی او روژه ماتی په بدله کښ۔(معالم التنزیل للبغوی۱/ ۱۹۷)
او په مرفوع احادیثو کښ ئے څۀ خاص مقدار نۀ دے ذکر مگر د قرآن کریم نه معلومیږی چه دومره خوراك وی چه مسکین پرے مړیږی۔
﴿فَمَنْ تَطَوَّعَ خَیْرًا﴾ (خوك چه زیاتی اُوکړی یو نیك عمل)
پدے کښ ترغیب ورکوی چه د مسکینانو سره احسان اُوکړی او د فدیئے د مقرر حد نه زیات ورکړی مثلًا د یو مسکین په ځائے درے څلورو کسانو ته خوراك ورکړی۔ یا یو مسکین ته د خپل مقرر نه زیات ورکړی۔ ○ دارنگه په دے کښ ترغیب دے هر قسم نیك عمل کولو ته په اخلاص سره څکه چه روژه کښ تلاوتونه، ذکر اذکار، تراویح، د تهجدو مونځونه، صدقات او عبادتونه کولے شی او دا د جهاد میاشت هم ده۔
﴿وَأَنْ تَصُوْمُوْا خَیْرٌ لَّکُمْ﴾ ۱- که د منسوخے معنیٰ سره اُولګی نو معنیٰ دا چه د فدیئے ورکولو نه روژه نیول غوره دی۔ ۲- که دویمه معنیٰ واخلو نو معنیٰ دا ده چه بوډا او بوډئ که روژه نیسی او تکلیف تیر کړی نو دا د فدیئے ورکولو نه غوره ده۔ ۳- یا د سفر او مرض سره لګی : یعنی په سفر او مرض کښ روژے نیول افضل دی۔ او پدے کښ په دهریو او سوشلزم والو باندے رد دے چه هغوی وائی : په هغه زمانه کښ اقتصاد خراب وو نو څکه رسول الله ﷺ په روژو باندے امر کولو او اُوس خو هر څه فراخه دی، نو روژو ته څه ضرورت !۔ نو الله فرمائی : چه دا بے علمه خلق دی۔ څکه د روژو غرض خو دا نۀ دے چه اقتصاد بنۀ شی بلکه پدے کښ خو رزق لا فراخه کیږی، نۀ، بلکه غرض پدے کښ دا دے چه مسلمان هرکله د حلالو نه ځان ساتی، نو د حرامونه به په طریق اولیٰ پرهیز کوی۔ او نور فوائد ئے مخکښ ذکر شو۔

| شَهْرُ رَمَضَانَ الَّذِیٓ اُنْزِلَ فِیْهِ الْقُرْاٰنُ هُدًی لِّلنَّاسِ وَبَیِّنٰتٍ |
|---|
| (دغه ورځې) مياشت د رمضان ده هغه چه نازل شوے دے په هغې کښې قرآن چه هدايت دے د خلقو دپاره او ښکاره خبرے |
| مِّنَ الْهُدٰی وَالْفُرْقَانِ، فَمَنْ شَهِدَ مِنْکُمُ الشَّهْرَ |
| د هدايت دي او د جدائي راوستلو په مينځ د حق او باطل کښې نو څوک چه حاضر شو ستاسو نه دے مياشتے ته |
| فَلْیَصُمْهُ وَمَنْ کَانَ مَرِیْضًا اَوْعَلٰی سَفَرٍ فَعِدَّةٌ مِّنْ اَیَّامٍ اُخَرَ |
| نو روژه دے اُونيسي د هغے او څوک چه وي ناجوړه يا وي په سفر نو په دهٔ باندے شميرل دي د نورو ورځو. |
| یُرِیْدُ اللّٰهُ بِکُمُ الْیُسْرَ وَلَا یُرِیْدُ بِکُمُ الْعُسْرَ وَلِتُکْمِلُوا الْعِدَّةَ |
| غواړي الله په تاسو آساني او نهٔ غواړي په تاسو گراني، او دے دپاره چه تاسو پوره کړئ شمير |
| وَلِتُکَبِّرُوا اللّٰهَ عَلٰی مَاهَدٰکُمْ وَلَعَلَّکُمْ تَشْکُرُوْنَ ﴿۱۸۵﴾ |
| او دے دپاره چه لوئي بيان کړئ د الله په هغه طريقه چه خودلے ئے ده تاسو ته او دے دپاره چه تاسو شکر اُوکړئ. |

**تفسير**: پدے آيت کښې د روژے د مياشتے تعيين دے چه هغه رمضان دے او ددے عظمت او فضيلت ذکر کول دي (چه دا هغه مياشت ده چه پدے کښې الله تعالیٰ قرآن کريم نازل کړے چه حق دين ښکاره پيش کوي او حق او باطل، هدايت او گمراهي بيانوي، د نيك بخت او بد بختو نخے بيانوي او بيا د هغوي انجام بيانوي). او امر دے په فرضيت د روژو. او د سفر او مرض په وخت رخصت ذکر دے سره د قضاء راوړلو نه. او د هغے حکمتونه بيانوي.

﴿شَهْرُ رَمَضَانَ﴾ دا د (ايام معدودات) بيان دے.

**تركيب**: (۱) شهر رمضان خبر د مبتدا محذوف دے يعني ذٰلِکُمْ شَهْرُ رَمَضَانَ ـ يا هِيَ شَهْرُ رَمَضَانَ (دغه ورځې مياشت د رمضان ده) (فراء بغوی)

(۲) – يا د (الصيام) نه بدل دے يعني هغه فرض کړے شوے روژے څهٔ شے دي؟ هغه مياشت د رمضان ده. (کسائي). (۳) يا دا مبتداء ده او اَلَّذِیْ اُنْزِلَ فِیْهِ الْقُرْاٰنُ ئے خبر دے.

(رمضان): ۱– د رمض نه دے په معنیٰ د سوزيدلو سره، او پدے مياشت کښې د بنده په عبادتونو سره گناهونه سوزي. ۲– يا دا نوم ورته په هغه مياشت کښې کيخودلے شو چه گرمي وه. ۳– دارنگه رمض هغه باران ته وائي چه د زمکے نه دوړه پورته کړي نو د رمضان روژے زړونه

د ګناهونو نه پاکوي. (اللباب للدمشقي) اول قول ظاهر دے. او بيائے شهر أوويَيل، معلومه شوه چه مياشت روژے نيول فرض دي که هغه د نهه ويشتو وي او که د ديرشو.

﴿ الَّذِیٓ اُنْزِلَ فِيهِ الْقُرْاٰنُ ﴾ **سوال**: کله وائي قرآن کريم په ليلة القدر کښې نازل دے، کله وائي په رمضان کښې او کله وائي په ليلة مباركة کښې او په درويشت کاله کښې نازل دے؟.

۱- **جواب** دا دے چه دد ے منافات نشته ځکه قرآن کريم آسمان د دنيا ته د لوح محفوظ نه په يو ځل د رمضان په مياشت کښې د ليلة القدر په شپه نازل شو چه ديته ليلة مباركه هم وائي. او هلته په بيت العزة کښې کيخودے شو او بيا د آسمان د دنيا نه زمکے ته په درويشت کاله کښې د حالاتو مطابق نازل شو. (ابن کثیرؒ).

۲- يا مطلب دا دے چه ابتداء د نزول ئے په رمضان کښې شويده. او په هر رمضان کښې به جبريل ﷺ نبي ﷺ ته لوستلو. او په کوم کال چه وفات کيدو نو په هغه رمضان کښې ئے ورسره د قرآن کريم دوه ځل دَور کړے وو.

۳- يا معنیٰ دا ده (اُنْزِلَ فِیْ فَضْلِهٖ وَوُجُوْبِ صَوْمِهِ الْقُرْاٰنُ) چه نازل شويدے په باره د فضيلت او فرضيت د روژو د رمضان کښې قرآن کريم. (سفيان بن عُيَيْنَة) (ابن کثيرؒ والرازيؒ).

ليکن دا معنیٰ کمزورے ده ځکه چه د مانځه او حج وغيره عباداتو د فضيلت په باره کښې هم قرآن کريم نازل دے. يواځے د رمضان په باره کښې نۀ دے.

٤- يا دد ے په فرضيت کښې قرآن نازل دے. (ابن الانباريؒ)

ليکن دا هم د مخکښې دليل په وجه ضعيف قول دے. اول او دويم مطلب ئے واضح دے.

او د يو حسن روايت نه معلوميږي چه د الله تعالیٰ ټول کتابونه د رمضان په مياشت کښې نازل شويدي. «صحف ابراهيم په اوله شپه د رمضان، تورات په شپږم رمضان، انجيل په ديارلسم رمضان او زبور په اتلسم او قرآن په څليرشتم د رمضان نازل شويدي».

(مسند احمد، والبزار، الصحيحة : ١٥٧٥) بسند حسن).

دد ے نه معلوميږي چه د الله د کتاب (قرآن) د رمضان او روژو سره مناسبت او تعلق دے لکه حديث کښې دي: [اَلصِّيَامُ وَالْقُرْاٰنُ يَشْفَعَانِ لِلْعَبْدِ] (روژه او قرآن به د بنده دپاره د قيامت په ورځ سفارش کوي. روژه به وائي: اے ربه! ما دے د خوراك او شهواتو نه منع کړے وو نو زما سفارش دۀ په باره کښې قبول کړه. او قرآن به وائي: ما د شپے د خوب نه منع کړے وو، زما سفارش دۀ په باره کښې قبول کړه. نو د دواړو سفارش به قبولے شي).

(احمد، طبراني في الکبير بسند حسن صحيح- صحيح الترغيب : ١٤٢٩)

ددے وجه نه په رمضان کښې قرآن زیات لوستل پکار دی، په ترجمه او تفسیر او په تلاوت سره او په تهجدو کښې، دا د قرآن میاشت ده۔

(القرآن) په لفظ او حرف سره د الله تعالیٰ کلام دے، الله پرے تلفظ کړیدے، مخلوق نهٔ دے او څوک چه کلام دوه قسمونو ته تقسیم کوی، یو کلام لفظی او هغے ته قرآن نهٔ وائی او دویم کلام نفسی (یعنی معنیٰ د قرآن) او دے ته قرآن وائی، نو دا د سلف صالحینو نه خلاف عقیده ده، او په دین کښې نوے بدعت پیدا کول دی۔ چه دا مقام د تفصیل نهٔ دے۔ تفصیل دپاره زمونږ « اصول التفسیر وعلوم القرآن » ته رجوع اُوکړه۔

اُوس د قرآن صفت کوی: ﴿هُدًى لِلنَّاسِ وَبَيِّنَاتٍ مِنَ الْهُدَىٰ﴾

نو څوک چه پدے کتاب ایمان راوړی او ددے تصدیق اُوکړی او بیا ددے د احکامو تابعداری اُوکړی نو د هغه زړونو ته هدایت کوی۔

نو ۱ – (هُدًى للناس) ددے امت احکام او (وبینات من الهدی) د پخوانو امتونو غیر منسوخ احکام هم پکښې بیان شوی دی۔ د هدایت واضحے خبرے او واضح تعلیمات د پخوانو هم پکښې بیان شویدی۔ او (الفرقان) عطف دے په الهُدیٰ باندے ای (بَيِّنَاتٍ مِنَ الْفُرْقَانِ) یعنی واضحے خبرے د جدائی راوستو په مینځ د حق او باطل او د دروغ او رشتیا او حلال او حرام او مامور او محظور هم پکښې شته۔

۲ – یا د (هُدًى) نه مراد مجموعه هدایت د خلقو دے او واضحه خبرے د هدایت چه هغه حلال او حرام او ښکاره مواعظ او نصیحتونه او قیصے دی، هغه هم پکښې بیان شویدی۔

۳ – د اول هدایت نه مراد هدایت د عقائد او اصولو دے او دویم هدایت د احکامو او فروعو دے۔

٤ – یا اول نه دلائل عقلیه او دویم نه مراد احکام دی۔

٥ – یا اول هدایت اجمالًا دے او دویم هدایت تفصیلًا دے یعنی هرکله چه انسان ته د نیغے لارے هدایت اُوکړی نو بیا ئے بغیر د واضح او ښکاره دلیل او روښانه صورت نه نهٔ پریدی بلکه د توحید او آخرت او د رسول د حقانیت او د دنیا د سیاست او د آخرت د سعادت ضمانت هم ورکوی۔ او په بصیرت باندے ئے روانوی۔ یعنی په قرآن کښې هدایت هم شته او دلیل د هدایت هم شته۔ (الزهر البیان)۔

او (الْفُرْقَانِ) کښې اشاره ده هغه دلیلو ته چه د حق او باطل جدائی راولی۔

**فائده:** (هُدًى) په منزله ددے دے چه یو شخص ته د نیغے لارے هدایت او خودنه اُوشی۔ (بینات) په منزله د لارے د علاماتو دے چه هغه انسان ته تفصیلًا ښائی۔ او (الفرقان) په منزله

ددے دے چه د هغه لارے د خودلو دپاسه دا بیان اُوشی چه ددے لارے او د نورو لارو ترمینځ فرق دے، دا لاره انسان اصلی هدف ته رسوی او نورے لارے چه ددے په مقابله کښې دی هلاکت ته راکاږی۔ (ازهربتغیر)۔ نو قرآن کښې درے وارِه کارونه شته۔

نو ﴿فَمَنۡ شَهِدَ مِنۡكُمُ الشَّهۡرَ﴾ مخکښې فضیلت د رمضان او د هغے د آسانوالی طریقے بیان شوے، نو اُوس ئے فرضیت بیانوی۔

شَهِدَ : په معنیٰ د حَضَرَ او عَلِمَ سره دے۔ یعنی څوك چه حاضر شی میاشتے ته یا پوهه شی په میاشت راختلو سره که په هره ذریعه سره وی، په لیدلو سره وی، یا د بل نه په آوریدو سره وی، یا په یوه علاقه کښې اُولیدے شی، او د نورو علاقو خلقو ته خبر اُورسیږی نو هغوی له هم روژے نیول پکار دی۔ یا د شعبان په دیرش ورځو پوره کیدو سره وی۔ او په [صُوۡمُوۡا لِرُؤۡیَتِهٖ وَاَفۡطِرُوۡا لِرُؤۡیَتِهٖ] (متفق علیه) کښې خطاب عام مسلمانانو ته دے نو د هرچا لیدل ضروری نهٔ دی لکه بعض ناپوهه ددے نه د هر چا په لیدلو دلیل نیسی۔ ځکه چه د عادل گواهانو گواهی قبلول هم شریعت لازم کړیدی۔ او معنیٰ د حاضریدو دا ده چه روژه نیونکے عاقل، بالغ، مقیم وی او د میاشت په راتلو کښې ژوندے وی۔ نو : ﴿فَلۡيَصُمۡهُ﴾ (روژه دے اُونیسی او دا پرے فرض ده، او نابالغ دپاره روژه نیول مستحب دی، او د مسافر، یا مریض دپاره اجازه ده چه فی الحال ئے پریدی، خو روستو به ئے قضائی راوړی۔

نو اُوس هغه استثنائی صورت بیانوی او دا ئے دوباره راوړو ځکه اُوس روژه فرض شوه نو دا وَهم راځی چه آیا دا حکم د رخصت به هم ختم شوے وی۔

دارنګه د روستو علتونو ذکر کولو دپاره ئے دوباره راوړو :

﴿وَمَنۡ كَانَ مَرِيۡضًا اَوۡ عَلٰى سَفَرٍ﴾ دے سره دا قید مراد دے(وَلَمۡ یَصُمۡ) (یعنی روژه ئے په میاشت د رمضان کښې اُونهٔ نیوله)۔نو (فَعِدَّةٌ) یعنی دهٔ باندے شمارل لازم دی د نورو ورځو دپاره د قضاء راوړلو)۔

دا مطلق دے نو پرله پسے قضائی راګرځول ضروری نهٔ دی۔

اُوس د مخکنو پنځه احکامو علتونه او وجے بیانوی :

﴿يُرِيۡدُ اللّٰهُ بِكُمُ الۡيُسۡرَ﴾ دا د اول حکم سره متعلق دے چه هغه د مریض او مسافر نه فرضیت ساقطول دی۔ ﴿وَلَا يُرِيۡدُ﴾ دا د دویم حکم سره متعلق دے چه د قضاء راوړلو ورځو کښې ئے تخصیص اُونهٔ کړو۔دا ئے اُونهٔ وئیل چه فلانئ فلانئ ورځو کښې قضاء راوړئ۔ ځکه چه پدے کښې تنګسیا ده او هغه الله نهٔ غواړی۔

او حدیث دے : [اِنَّ الدِّيۡنَ يُسۡرٌ] ...... (دین آسان دے) ...... (بخاری والنسائی)۔

Scanned by CamScanner

دے دپاره چه بندګان د اُور نه په آسانئ خلاص شی او جنت ته لاړ شی، دا د الله مهربانی ده۔
دے کښ دا معنیٰ هم ده : [يُرِيْدُ اللهُ بِكُمُ الْيُسْرَ وَلَا يُرِيْدُ بِكُمُ الْعُسْرَ] الله غواړی چه تاسو آسانی اُوکړئ د خپل ځان سره او نهٔ غواړی چه تاسو سختی اُوکړئ بلکه د هغه رخصتونه قبول کړئ او داسے مهٔ کوئ چه خامخا به په سفر او مرض کښ روژی نیسئ او روژه ماتول بد ګنړئ۔ نبی ﷺ فرمائی : [يَسِّرُوْا وَلَاتُعَسِّرُوْا]
(آسانی کوئ او سختی مهٔ کوئ) (متفق علیه)۔
او حدیث کښ دی : «الله خوښوی چه د هغه په رخصتونو باندے عمل اُوشی لکه څنګه چه دا بده ګنړی چه د هغه احکام مات کړے شی»۔
(مسند احمد ۵۸٦٦ والبیهقی واسناده صحیح)۔
۳- دے کښ حاصل معنیٰ دا هم ده چه یُسر جنت ته وائی او عُسر جهنم ته۔ یعنی الله دا احکام څکه رالیږی چه تاسو جنت ته داخلوی او که ګران احکام راولیږی نو بیا به پرے عمل نهٔ شی کیدے نو خلق به جهنم ته ځی او الله خو هغه نهٔ غواړی۔ او دا دلیل دے چه د دین ټول احکام د بندګانو د وسع مطابق آسان دی۔ څکه الله د ګرانو احکامو رالیږلو اراده نهٔ لری۔
﴿وَلِتُكْمِلُوا الْعِدَّةَ﴾ دا د (يُرِيْدُ) سره متعلق دے (اَىْ يُرِيْدُ اللّٰهُ اَنْ تُكْمِلُوا الْعِدَّةَ) یعنی الله غواړی چه تاسو شمار پوره کړئ۔ (التفسیر المنیر)
۲- یا د (اَمَرْنَا) مقدر پورے متعلق دے یعنی (اَمَرْنَاكُمْ بِالْاَدَاءِ وَالْقَضَآءِ) (تاسو ته مے امر اُوکړو په اداء کولو د پاتے شوو روژو) دے دپاره چه شمار د روژو پوره کړئ۔ چه دیرش یا نهه ویشت روژے دی۔ ولے که قضائی رانهٔ وړی نو د الله حکم به مات شوے پاتے شی، نو تاسو ته به نقصان اُورسی۔
**فائده** : د الله د حکم پابندی په دوه طریقو سره کیږی (۱) یو دا چه د عدد خیال به ساتی (۲) دویم د کیفیت۔ که په یو مقام کښ کیفیت معاف شی، نو عدد به نهٔ پریدی لکه په رمضان کښ د سفر یا د بیمارئ د وجه نه روژے پاتے شی، نو کیفیت ئے شرعاً پاتے شو، لیکن عدد چه (۲۹) یا (۳۰) دی، دا به تهٔ نهٔ خرابوے۔ بلکه شمار به پوره کوے۔
﴿وَلِتُكَبِّرُوا اللّٰهَ عَلٰى مَا هَدٰاكُمْ﴾
۱- ددے یوه معنیٰ دا ده چه د الله تعظیم او لوئی والے بیان کړئ پدے احکام رالیږلو۔ او د هغه لوئی والے ستاسو زړهٔ کښ راشی چه داسے آسان احکام رالیږی او تاسو ته پرے هدایت کوی۔
۲- دویم : ددے تکبیر نه مراد تکبیرات التشریق دی چه د رمضان په آخر کښ د اختر د شپے نه د اختر د مانځه پورے دا تکبیرات وئیلے شی، احادیثو کښ ثابت دی۔ نو معنیٰ دا ده (لِتَذْكُرُوا اللّٰهَ

عِنْدَ انْقِضَاءِ عِبَادَتِكُمْ) تاسو الله رایاد کړئ، د هغه ذکر اُوکړئ په وخت د ختمیدو د عبادت ستاسو کښې) چه روژه ده او د مانځه د ختمیدو نه روستو، نو د روژے او د مونځونو نه روستو الله اکبر الله اکبر کلمات الخ وئیل دی۔ لیکن اول مطلب اولیٰ دے ځکه چه په دے احکامو باندے عمل کولو کښې د بنده په زړهٔ کښې د رب تعالیٰ کبریاء او لوئی والے دے پدے وجه هغه روژے نیسی او نهٔ ئے ماتری ځکه چه د هغه دا عقیده ده چه الله ما ته گوری او هغه په ما پوهه دے۔

او د (عَلٰى مَا هَدَاكُمْ) (۱) یوه معنی دا ده: په هغه طریقه چه الله درته خودلے ده۔ اشاره ده چه الفاظ د تکبیراتو به د شریعت موافق وئیلے شی، د ځان نه به الفاظ نهٔ جوړوی۔

(۲) دویمه معنیٰ دا ده چه علیٰ تعلیلیه او ما مصدریه ده (ای لِتُكَبِّرُوا اللّٰهَ لِاَجْلِ اَنَّهٗ هَدَاكُمْ) یعنی په سبب د هدایت ستاسو، چه الله تاسو ته د خپل قربت او نزدے والی طریقه اُوخودله۔نو تاسو د الله لوئی والے اُووایئ چه اے الله! ته ډیر لوئی ئے چه مونږ سره دے دا انعامات کړی، او دا روژے دے مونږله د تقویٰ او فائدو دپاره راکړے، او بیا دے پکښې آسانی هم پیدا کړه او دا قرآن دے راولیږلو۔

بل تعبیر: (لوئی اُووایئ په هغه خبره چه تاسو ته ئے هدایت کړے)۔

﴿وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ﴾ دا د الله په احکامو باندے د پابندی کولو دپاره علت دے یعنی دا احکام مے راولیږل او تاسو ته مے پرے د پابندئ حکم اُوکړو، دے دپاره چه تاسو شکر اُوکړئ۔ او دارنګه دغه احکام لوئی انعامات دی چه د شکر کولو مستحق دی۔ یا نتیجه د رخصت ده یعنی الله تعالیٰ رخصت درکړو نو شکر اُوکړئ۔ د شکر معنیٰ په دین باندے عمل کول هم دی، یعنی دے دپاره چه تاسو د الله تعالیٰ په حکم او د هغه په دین عمل کونکی جوړ شئ او همدا شکر دے۔

وَاِذَا سَاَلَكَ عِبَادِیْ عَنِّیْ فَاِنِّیْ قَرِیْبٌ اُجِیْبُ دَعْوَةَ الدَّاعِ

او کله چه تپوس کوی ستا نه بندګان زما په باره زما کښې نو یقیناً زهٔ نزدے یم، قبلوم دُعا د دُعا کونکی

اِذَا دَعَانِ فَلْیَسْتَجِیْبُوْا لِیْ وَلْیُؤْمِنُوْا بِیْ لَعَلَّهُمْ یَرْشُدُوْنَ ﴿۱۸۶﴾

کله چه ما نه دعا غواړی نو دوی دے خبره اُومنی زما، او ایمان دے راوړی په ما، دے دپاره چه دوی په سمه لار شی۔

## تفسیر:

**مناسبت**: ۱- ددے جملے مناسبت د مخکښې سره دا دے چه په روژه سره بنده الله تعالیٰ ته نزدے کیږی نو الله هم پدے آیت کښې خپل قربت بیانوی چه زهٔ نزدے یم۔

۲- پدے کښې د تکبیر او لوئی بیانولو طریقه ده یعنی ذکر به په پټه کوے لکه روستو د شان

نزول نه معلومیږي۔

۳- قاسميؒ وائي: چه کله روژه ماتوي نو د الله تعالیٰ نه دعا کول پکار دي ځکه حدیث کښې دي چه د روژه ماتي په وخت کښې دعا نهٔ رد کیږي۔ ○ عبد الله بن عمر رضی الله عنهما به د افطار په وخت ټول بال بچ سره یو ځائې دعا کوله ځکه چه رسول الله ﷺ فرمایلي دي چه د روژه دار د افطار په وخت دعا قبلیږي۔ (مسند طیالسي)۔

په یو بل حدیث کښې دي چه د درې کسانو دعا نهٔ رد کیږي: د عادل امام (بادشاه)، د روژه دار، او د مظلوم۔ (مسند احمد، ترمذي، نسائي، ابن ماجه)۔

٤- مخکښې ئې بندګانو ته په تکبیر او ذکر او شکر باندې حکم اُوکړو نو اُوس وائي زهٔ ستاسو د شکر نه خبردار یم، او زهٔ ستاسو آواز آورم او ستاسو دعا قبلوم او ستاسو امیدونه به نهٔ ضائع کوم۔ (النیسابوري)

**شان نزول**: ۱- بعض صحابه کرامو (یو روایت کښې دي چه یو بانډچي) تپوس کړې وو چه یارسول الله! آیا زمونږ رب نژدې دې چه مونږ ورسره خبرې اُوکړو (په پټه) او که لرې دې چه آواز ورته اُوکړو، او پدې تپوس کښې د دوی نیت ښهٔ وو۔ لیکن عِلم ورته نهٔ وو، نو نبی ﷺ خاموش شو، الله تعالیٰ دا آیت نازل کړو۔ (ابن جریرؒ وابن ابی حاتمؒ)

او د شفقت بیان ئې اُوکړو چه زهٔ نژدې یم۔ چغو ته حاجت نشته۔

۲- یا د یهودیانو په جواب کښې نازل دې چه هغوی وئیلي وو، زمونږ رب په زمونږ دعا څنګه واوري او حال دا چه ته وائې چه زمونږ او د آسمان ترمینځ پنځه سوه کاله مسافه ده؟۔ (قرطبيؒ والبغويؒ عن ابن عباسؓ)۔

۳- د بعض صحابه کرامو نه په روژه کښې د حکم د سختوالي په وجه (چه د خوب نه روستو جماع کول ورله حرام وو لکه روستو راځي) مخالفت شوې وو نو هغوی رسول الله ﷺ ته پښیمانه راغلل او توبه ئې اُوویستله او تپوس ئې اُوکړو چه آیا الله به زمونږ توبه قبوله کړي؟ نو دا آیت نازل شو۔ (قرطبي، والتفسیر المنیر)۔

نو دا آیت ګویا کښې د روستو حکم دپاره تمهید شو۔

٤- قتادهٔ وائي: صحابه کرامو تپوس اُوکړو چه مونږ د خپل رب نه څنګه دعا اُوغواړو اے د الله نبي! او په روایت د عطاءٔ کښې دي چه په کوم وخت دعا اُوغواړو چه الله زمونږ دعا قبوله کړي؟ نو الله دا آیت نازل کړو۔ (بحر العلوم للسمرقندي والنیسابوري)۔

**مسئله**: ددې وجه نه اهل علم فرمائي: ټول ذکرونه او دعاګانې به په پټه وئیلې شي ځکه په

جهر کښې د الله تعالیٰ زيات ادب نشته او په اخفاء کښې ادب ډير دے۔ مګر هغه چه شريعت کښې د هغے جهر ثابت وي لکه اذان، تکبيرات د تشريق او جهري مونځونه۔

او حديث کښې هم راغلي دي، صحابه کرامو په جهر ذکر اُوکړو نو رسول الله ﷺ ورته اُوفرمايل : [يَا اَيُّهَا النَّاسُ اِرْبَعُوْا عَلٰى اَنْفُسِكُمْ، اِنَّكُمْ لَاتَدْعُوْنَ اَصَمَّ وَلَا غَائِبًا، اِنَّكُمْ تَدْعُوْنَ سَمِيْعًا قَرِيْبًا] (متفق عليه)

(اے خلقو! په خپلو ځانونو رحم اُوکړئ ځکه چه تاسو کوڼ او غائب ته آواز نۀ کوئ، تاسو خو آوريدونکي، نزدے ذات ته آواز کوئ، هغه ستاسو سره دے، او هغه تاسو ته د اُوښے د څټ نه هم زيات نزدے دے)۔

حسن بصريؒ فرمائي : د پټے دعا او د ښکاره دعا ترمينځ آويا چنده فرق دے۔

(بغوي، خازن، اللباب)۔

﴿فَاِنِّيْ قَرِيْبٌ﴾ قُرب (نزدے والے) په ډيرو معنو کښې مشترک دے : نزدے والے د مکان، د زمان، د مرتبے، د نسب، نزدے والے په اعتبار د حفاظت، په اعتبار د علم، په اعتبار د قدرت۔ او دلته د الله نزدے والے په اعتبار د علم، قدرت، حفاظت، سمع او اجابت سره دے۔ يعني الله رب العزت د عرش دپاسه دے، او علم او قدرت، سمع او اجابت ئے په هرځائے کښې دي۔ مونږ باندے خبر دے۔ د مرئ د رګ نه مونږ ته نزدے دے ځکه انسان خپل بدن تول نۀ شي ليدلے، او الله رب العزت ته تول ښکاره کيږي۔ او د استواء على العرش او قرب منافات نشته ځکه چه الله تعالیٰ په عرش هم دے او د ډير لوئي والي د وجه نه قريب هم دے۔

شيخ الاسلام ابن تيميةؒ ددے مثال داسے ورکوي لکه سپوږمئ په خپل مدار کښې وي ليکن هر سړے (مسافر وي که مقيم، روان وي که ولاړ) وائي چه سپوږمئ ما سره ده۔

دارنګه دا ټول کائنات د الله په لاس کښې دي۔ نو ورته نزدے دے۔ او دا نزدے والے حمل د مشترک لفظ دے په يوه معنیٰ باندے او دا حقيقت وي۔ او دغه شان تاويل په لفظ د مُحْكَمْ کښې هم دے چه دا په اصل کښې تاويل نۀ دے۔

او بعض اهل علم وائي چه دلته نزدے والے د متشابهاتو نه دے، الله وائي زۀ تاسو ته نزدے يم نو څنګه نزدے دے ؟ ددے کيفيت الله تعالیٰ ته معلوم دے، او مونږ له پدے باندے ايمان راوړل پکار دي چه الله بندګانو ته نزدے دے او که د متشابهاتو نه هم شي نو منافات ئے د استواء على العرش سره نشته ځکه چه د عرش دپاسه دے او سره د هغے نه هر څيز ته نزدے هم دے۔ لکه مخکښې تير شو۔

﴿اُجِيْبُ دَعْوَةَ الدَّاعِ﴾ الله رب العزت ضرور د بنده دعا قبلوي، لفظي دعا ئے هم قبلوي او عبادت ئے هم قبلوي۔ دعا دوه قسمه ده۔ دعاء العبادة ...... يعني (اُثِيْبُ مَنْ عَبَدَنِيْ) (بدائع التفسير)

(ځوك چه زما بندګي کوي نو زهٔ ورته ثواب ورکوم)۔

او دعاء الحاجة (یعنی دعاء النداء) هم قبلوي۔

﴿ اِذَا دَعَانِ ﴾ یعني هرکله، په هر وخت او په هر ځائے کښې چه ما نه دعا غواړي زهٔ ئے قبلوم۔

بیا دلته **سوال** دے چه دلته وائي هره دعا قبلیږي او حال دا چه مؤمن ډیرے دعاګانے کوي او نهٔ قبلیږي؟ ۔ ...... **جواب** : بعض وائي: دے سره دا قید دے «اِنْ شِئْتُ» یعني که زما خوښه شي۔

لیکن دا جواب کمزورے دے ځکه چه دا د مقام د لطف او رحم سره مناسب نهٔ دے۔ ځکه الله تعالیٰ دلته وعده د قبول والي کوي۔ او دا قید خو په مقام د مشیت او تقدیر کښې وئیلے شي۔

او دارنګه د مشرکانو په باره کښې دا قید دے لکه سورة انعام (۴۱) آیت کښې دي :

(فَيَكْشِفُ مَا تَدْعُوْنَ اِلَيْهِ اِنْ شَآءَ)۔

(الله به لرے کوي هغه شے چه تاسو الله لره هغے ته رابللے وي خو که الله اُوغواړي)۔

۲- صحیح دا ده چه هره دعا قبلیږي خو د قبلیدو ډیر صورتونه دي، کله عین هغه مقصد پوره کړي او کله د هغے اجر او ثواب ورکړي، او کله د هغه نه مصیبت لرے کړي۔ لکه دا خبره په صحیح حدیث کښې راغلے ده۔ او د دعا د استجابت غم مهٔ کوه بلکه د دعا د راکولاویدو غم کوه۔ عمر فاروق رضی الله عنه فرمائي : زما دا غم نشته چه زما دعا به قبوله شي او که نهٔ، بلکه دا غم مے دے چه د دعا دروازه رابانديے کولاوه شي۔ (ځکه چه دعا دربانديے راکولاوه شوه نو ضرور ئے الله قبلوي)۔ او دا دروازه نن صبا مونږ بندګانو په ځان بنده کړے، د الله نه مستغني شوي يو۔ والله المستعان ولا حول ولا قوة الا بالله۔

۳- **جواب** : هره دعا قبلیږي خو چه په خپلو شرطونو سره وي او هغه دا دي :

○ - مُؤمن به وي۔ ○ استجابت به پکښې وي یعنی حرام او حلال به مني۔ لکه روستو راځي۔ ○ - زړهٔ به ئے غافل او لاهي نهٔ وي۔ (لَا يَسْتَجِيْبُ دُعَاءً عَنْ قَلْبٍ غَافِلٍ لَاهٍ) (ترمذی، حاکم - ابن کثیر) ۔ ○ - د ټولو ګناهونو نه به الله ته توبه اُویاسي۔ ○ - قبلے ته به متوجه کیني۔

○ - لاسونه به پورته کړي۔ ○ د الله په اسماءِ حسنیٰ سره وي۔ لکه یارب، یا ارحم الراحمین وغیره الفاظو سره۔ ○ او د هغه ثناء او صفت به مخکښې اُوکړي بیا به درود اُووائي بیا به خپل حاجتونه وړاندے کړي۔ او (یا خدا) او نورو غیر منقول الفاظو سره به نهٔ وي۔

○ - اخلاص به پکښې وي۔ ○ - دعا کونکے به د خپل مسکنت او محتاجي اظهار اُوکړي۔

○ - د یوے ګناه دعا به نهٔ وي، د صله رحمي قطع کولو دعا به نهٔ وي۔ (احمد، ترمذی)

○ - جلتي به نهٔ کوي یعني دعا به پدے وجه نهٔ پریږدي چه زر ولے نهٔ قبلیږي۔ (صحیحین)

○ - د دعا په قبلیدو باندې یقین کول. (مسند احمد)

○ د مسافر دعا بنهٔ قبلیږي.○ - د مظلوم دعا سمدست قبلیږي.○ - د قبولیت په اُوقاتو کښې به وي لکه ○ آخري دریمه حصه د شپې.○ د اذان په وخت.○ د اذان او د اقامت ترمینځ.

○ -د روژه ماتي په وخت کښې. ○ - د باران د نازلیدو په وخت کښې. ○ د قتال في سبیل الله په صف کښې. ○ - د جُمعې د اجابت په ساعت کښې. چه امام منبر ته ختلو نه تر مانځه ختمیدو پورې دې. ○ -د جُمعې په ورځ د مازیګر آخري ساعت. ○ نبي کریم ﷺ په سجده کښې د دعا کولو حکم کړیدې او فرمائیلې ئې دي: (په سجده کښې په دعا کښې بنهٔ کوشش کوئ لائقه ده چه ستاسو دپاره به قبول کړې شي). (صحیح مسلم)

○ حرام خور به نهٔ وي.○ - د مور او پلار دعاګانې بچو دپاره بنې قبلیږي.○ د غائب دعا د غائب دپاره زر قبلیږي.○ پاك مکانونو کښې دعا زر قبلیږي لکه کعبه معظمه، ملتزم، میزابِ رحمت، ریاض الجنة. او ټول حرم. ○ - بار بار په الحاح او مبالغې (اوزور) سره وي.

حدیث کښې دي: تاسو د دعا کولو نه مهٔ تنګیږئ، ځکه چه کوم سړې (همیشه) دعا کوي هغه نهٔ هلاکیږي. (مستدرك الحاكم).

﴿فَلْيَسْتَجِيبُوا لِي﴾ (اَیْ اِذَا دَعَوْتُهُمْ لِلْاِیْمَانِ وَالطَّاعَةِ) ...... (محاسنؒ- قرطبي وقاسمي)

یعني د الله تعالیٰ دعوت (چه ایمان او اطاعت دې) هغه دې پوره قبول کړي یعني طاعت او عمل دې اُوکړي) زما احکام دې اُومني او زما بندګي دې اُوکړي. لکه څنګه چه زهٔ د دوی دعا قبلوم.

اجابة په لغت کښې طاعت او کوم شې چه غوختلې شي د هغې ورکولو ته وائي. نو د الله د طرف نه په معنیٰ د ورکړې سره وي او د بنده د طرف نه په معنیٰ د طاعت او خبرې منلو سره وي. معنیٰ دا ده: (فَلْيَسْتَجِيبُوا لِيْ بِالطَّاعَةِ) (زما قبول والې دې اُوکړي په بندګي کولو سره).

۲- ابن عطیهٔ وغیره وائي: (اَیْ لِیَسْتَدْعُوْا مِنِّي الْاِجَابَةَ) یعني ما نه دې د دعا د قبلیدو سوال اُوکړي) او ددې حقیقت هم دا دې چه زما اطاعت دې اُوکړي. (معالم التنزیل للبغوی ۲۰۵/۱).

امام راغبؒ وائي: د (فَلْيُجِيبُوا) په ځائې ئې (فَلْيَسْتَجِيبُوا) غوره کړو، پدې کښې يوه باريکه نکته ده او هغه دا چه د استجابة حقيقت طلب د اجابة (قبول والي) دې، اګرکه د اجابة په معنیٰ هم استعماليږي. نو الله بيان کړل چه بندګان کله د خپل وَس مطابق د دعا د قبليدو کوشش کوي، الله به ترې راضي کيږي. (قاسميؒ).

آيت دليل دې چه څوك څو مره د الله تعالیٰ خبره مني او د هغه د احکامو استجابت کوي نو هغومره به ئې دعا بنهٔ قبليږي. لکه حديث کښې دي: د الله تعالیٰ بعض بندګان داسې دي چه که

په الله قسم اُوکړی نو الله ئے پوره کوی) ...... (صحیح بخاری).

وجه دا ده چه دهٔ خپل خواهشات قربان کړی وی نو الله هم د هغه خبره زمکے ته نهٔ ارتوی.

مونږ بندګانو کښې دا خوئی دے چه د الله نه ګیله کوو چه زما دعا نهٔ قبلوی او حال دا چه خپله د الله تعالیٰ د حکمونو پابندی نهٔ کوو.

﴿ وَلْيُؤْمِنُوا بِيْ ﴾ ایمان ئے د استجابت نه روستو راوړو.

۱- اشاره ده دیته چه انسان اول خبره اُومنی نو روستو ئے ایمان زیاتیږی. یعنی ایمان به ئے په طاعاتو باندے په عمل کولو سره کمال ته رسی. ۲- یا ایمان د زړهٔ صفت دے او استجابت د جوارحو عمل دے یعنی د ظاهری اعمالو کولو سره به ئے په زړهٔ کښې په الله باندے یقین هم وی. یعنی ظاهراً او باطناً دِے تسلیم شی نو دعا به ئے قبلیږی.

۳- یا دوام علی الایمان (همیشوالے په ایمان) مراد دے.

٤- یا د ایمان نه مراد یقین دے او چه د چا څومره یقین وی، نو هغومره ئے استجابت وی نو اشاره ده چه ستاسو استجابت به هله زیات وی چه ستاسو یقین زیات شی.

٥- یا په قبول والی د دعا باندے یقین کول مراد دی. یعنی ما نه دِے د دعا د قبول والی سوال اُوکړی او بیا دِے ددے په قبول والی یقین هم اُوکړی.

بیا اجابت نفس جواب ورکول دی که په نَعَم (آؤ) سره وی او که په لَا (نهٔ) سره، او استجابت دیته وائی چه جواب په نَعَمْ (منلو) سره وی.

﴿ لَعَلَّهُمْ يَرْشُدُوْنَ ﴾ رشد: مقابل د غَیٌ (ګمراهئ) کښې استعمالیږی.

هدایت او کامیابئ ته رسیدل او دنیوی او اُخروی فائدو حاصلولو ته وائی. نو معلومه شوه چه څوک د الله خبرے منی او په هغه باندے ډیر یقین لری نو د هغه دعا به زر قبلیږی، او هغه ته به هدایت کیږی او کامیابئ ته به رسیږی. دا د هدایت اسباب دی.

| أُحِلَّ لَكُمْ لَيْلَةَ الصِّيَامِ الرَّفَثُ إِلٰى نِسَآئِكُمْ هُنَّ لِبَاسٌ لَّكُمْ |
|---|
| حلال کړے شویدی ستاسو دپاره په شپه د روژو کښې بو ځائے کیدل د خپلو ببیانو سره، دوی جامه ده ستاسو دپاره |
| وَأَنْتُمْ لِبَاسٌ لَّهُنَّ عَلِمَ اللهُ أَنَّكُمْ كُنْتُمْ تَخْتَانُوْنَ أَنْفُسَكُمْ |
| او تاسو جامه یئ د دوی دپاره، الله ته معلومه وه چه یقیناً تاسو په خیانت کښې اچوئ ځانونه خپل |
| فَتَابَ عَلَيْكُمْ وَعَفَا عَنْكُمْ فَالْئٰنَ بَاشِرُوْهُنَّ وَابْتَغُوْا |
| نو مهربانی ئے اُوکړه په تاسو او معافی ئے اُوکړه تاسو نه، نو اُوس نزدیکت کوئ د خپلو ببیانو سره او اُولټوئ |

| مَا كَتَبَ اللّٰهُ لَكُمْ وَ كُلُوْا وَاشْرَبُوْا حَتّٰى يَتَبَيَّنَ لَكُمُ الْخَيْطُ الْاَبْيَضُ مِنَ الْخَيْطِ الْاَسْوَدِ |
|---|
| هغه شے چه الله ليکلے دے تاسو لره او خورئ او څکئ تردے چه صفا ښکاره شی تاسو ته سپين تار د تور تار نه |
| مِنَ الْفَجْرِ ثُمَّ اَتِمُّوا الصِّيَامَ اِلَى الَّيْلِ وَلَا تُبَاشِرُوْهُنَّ وَاَنْتُمْ |
| د صبا نه، بيا پوره کړئ روژے تر شپے پورے او نزديکت مه کوئ د ښځو سره په داسے حال کښې چه تاسو |
| عٰكِفُوْنَ فِي الْمَسٰجِدِ تِلْكَ حُدُوْدُ اللّٰهِ فَلَا تَقْرَبُوْهَا |
| اعتکاف کونکی يئ په جماتونو کښې، دا د الله پولی دی، پس مه نزدے کيږئ دے ته (په ماتولو سره) |
| كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ اٰيٰتِهٖ لِلنَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَتَّقُوْنَ ﴿۱۸۷﴾ |
| دغسے بيانوی الله تعالیٰ آيتونه خپل خلقو ته، دے دپاره چه دوی کښې تقویٰ راشی۔ |

**تفسير:** پدے آيت کښې اُوس د روژے نور احکام راوړی۔ او دا د ﴿يُرِيْدُ اللّٰهُ بِكُمُ الْيُسْرَ﴾ سره متعلق دے چه د الله تعالیٰ آسانتيا دا ده چه تاسو ته ئے د روژے په باره کښې سخت حکم لرے کړو۔

**شان نزول:** د اسلام په ابتداء زمانه کښې به دا حکم وو چه څوك به د روژه ماتی نه روستو اُودهٔ شو، بيا به ئے خوراك، څکاك او جماع نهٔ شو کولے، بلکه د هغه وخت نه به روژه شروع شوله، او خوراك، څکاك او جماع به حرام شو نو دا حکم لږ غوندے سخت وو، پدے وجه د بعض صحابه کرامو نه په دے کښې نقصان اُوشو۔

په صحيح بخاری، مسند احمد، ابوداود او حاکم کښې راځی چه قيس بن صِرمَه انصاری رضی الله عنـه د پټی (د کاروبار) نه ستړے کور ته راغلو (د روژه ماتولو نه روستو) خوراك کور کښې نهٔ وو، ښځه ئے د خوراك تلاش کولو دپاره لاړه چه راغله خاوند ئے اُوده شوے وو، هغے اُوئيل: هلاکت دے تا لره، (اُوس خو دا خوراك نشے کولے) نو هغه پدے حالت کښې روژه وو تردے چه صبا له نيمه ورځ کښې پرے د زياتے تندے او لوږے نه بے هوشی راغله نو رسول الله ﷺ ته ددے خبر ورکړے شو۔ الله تعالیٰ دا آيت نازل کړو۔ صحابه کرامؓ پدے آيت باندے ډير خوشحاله شو۔ انتهیٰ۔ (القرطبی)۔

دارنګه د رمضان په شپو کښې خپل اهل سره نزديکت حرام وو، نو پدے کښې د عمر فاروق او د کعب انصاری رضی الله عنهما نه په سهوه سره جماع اُوشوه او دواړه ډير خفه رسول الله ﷺ ته راغلل چه مونږ خو هلاك شو نو الله تعالیٰ دا آيتونه نازل کړل۔ او دا حکم ئے بدل کړو او رخصت

ئې راولیږلو چه څه دا حکم هم تاسو ته آسان شو. نو د ماښام نه واخله تر صبا راختلو پورې ستاسو دپاره هر جائز شے حلال دے. (بخاری ومسلم)

﴿أُحِلَّ لَكُمْ لَيْلَةَ الصِّيَامِ الرَّفَثُ إِلَىٰ نِسَائِكُمْ﴾ (الرفث) : ۱- ددے یو معنیٰ جماع ده. (ابن عباسؓ)

۲- دویم: (كُلُّ مَا يُرِيْدُ الرَّجُلُ مِنِ امْرَأَتِهٖ أَيِ الْجِمَاعُ وَدَوَاعِيْهِ) هر هغه شی ته وائی چه سړے ئې د خپلې ښځې نه اراده لری، هغه فعل وی که قول او که لاس وروړل وی. (زجاج عن ابن عباسؓ) چه دیته جماع او د هغې اسباب وائی. رفث کله په معنیٰ د فاحشو خبرو (کنځلو) سره راځی، او دائې اصلی معنیٰ ده خو دلته نۀ ده مراد. هان لړه آزادی ښځه او خاوند کولے شی ځکه چه آیت کښې عموم دے.

﴿هُنَّ لِبَاسٌ لَّكُمْ وَأَنتُمْ لِبَاسٌ لَّهُنَّ﴾ دا د (أُحِلَّ) دپاره علت دے یعنی تاسو له زنانه پدے شپو کښې ځکه حلالے شوے چه دا ستاسو لباس دے. او لباس خلق اغوندی د هغے نه صبر کول او ځان ساتل گران وی، نو دا هم تاسو پدے شپو کښې اغوستلے شیٔ. (کشاف، قاسمیؒ)

۱- ښځو ته ئې لباس یو پدے وجه اُووئیلو چه لکه څنګه چه په لباس سره بدن پټیږی نو دغه شان ښځه او خاوند یو بل دپاره د بد نامیٔ او بد کاریٔ نه پرده ده. ۲- د ابن عباسؓ نه نقل دی چه لباس کښې د بدن دپاره آرام او سکون وی، نو دغه شان د ښځے په وجه هم انسان ته ظاهری سکون ملاویږی، او د چا چه ښځه نۀ وی نو هغه بے سکون وی.

لِبَاسٌ لَّهُنَّ : ښځے چه وادهٔ نۀ وی کړے نو بے سکون او پریشانه وی، او دارنګه د بدنامیٔ نه محفوظه نۀ وی، او کله ئې چه خاوند په سفر تلے وی نو ښځه پریشانه وی، ځان ورته تاشنا ښکاری. ۳- دارنګه ښځه او خاوند د تولائی او برستنے په شان دی، نو د دواړو د یو بل نه پرده نشته لکه څنګه چه د لباس نه پرده نۀ وی. (ربیعؒ).

**فائده** : په لباس کښې درے خصوصیتونه دی ۱- حفاظت د یخنیٔ او گرمیٔ نه. ۲- عیبونه پټول. ۳- د بدن زینت او ډول. نو پدے تشبیه کښې هم دا درے نکتے دی ځکه چه ښځه او خاوند د یو بل د انحرافاتو او کړیدو نه حفاظت کوی. د یو بل د آرام وسیله ده، د یو بل عیبونه پټوی. او هر یو د بل دپاره ډول شمارلے شی. (الزهر البینات).

بیا ښځے ئې په سړو باندے مخکښې کړیدی، حال دا چه د قرآن طریقه دا ده چه سړی مخکښې کوی (۱) ځکه خطاب سړو سره دے (۲) یا دا چه د سړی حاجت ښځو ته زیات وی، او د سړی صبر د زنانو نه کم دے، او د زنانو زیات دے ځکه چه د هغې په مزاج کښې الله تعالیٰ برودت (یخوالے) پیدا کړے، سړو ته ئې توجه کمه وی، او چه کله په څۀ کار مشغوله شی نو بیا د سړو نه غافله وی. او سړے که ستړے او مشغول هم وی نو زنانو ته ئې توجه وی.

﴿ عَلِمَ اللّٰهُ اَنَّكُمْ كُنْتُمْ تَخْتَانُوْنَ اَنْفُسَكُمْ ﴾ په شپو د رمضان کښې د جماع د حلالوالی دپاره دا دویم علت دے۔ او پدے کښې الله تعالیٰ خپل احسان بیانوی یعنی الله تعالیٰ ته دا پته ده چه که زهٔ چرته دا حکم اُوکړم چه پدے شپو کښې به نزدیکت نهٔ کوئ، نودوی به ئے کوی نو په گناه کښې به واقع کیږی او چه گناه کښې واقع شو نو د الله په غضب کښې به واقع کیږی۔ نو الله وائی زهٔ ترے غضب لرے کوم او مهربانی پرے کوم۔

تَخْتَانُوْنَ: دا د خیانت نه دے، په امانت کښې نقصان کولو ته وئیلے شی۔ لیکن په گناه کولو سره هم د الله تعالیٰ په حقوقو کښې خیانت راځی پدے وجه ئے گناه ته خیانت اُووئیلو۔

﴿ فَتَابَ عَلَيْكُمْ ﴾ او مهربانی دا ده چه دا حکم ئے درنه لرے کړو۔

○ یا د فتاب معنیٰ ده الله توفیق د توبے درکړو۔

﴿ وَعَفَا عَنْكُمْ ﴾ یعنی کومه گناه چه درنه شوے ده، نو هغه ئے درته معاف کړه۔ دا د صحابه کرامو لویه مرتبه ده چه د هغوی کومه گناه ذکر ده نو د هغے معافی ئے هم په قرآن کښې ذکر کړیده، دا دلیل دے چه صحابه کرامو د خپلو گناهونو نه استغفار هم طلب کړیدے۔

(۲) دے کښې تفسیر قرطبیؒ او قاسمیؒ دا معنیٰ هم کړیده (چه شان نزول ترے لرے کړے) اومعنیٰ ئے په تعلیق بناء کړیده یعنی الله ته پته وه چه که په تاسو ئے دا حکم پریخے وی او رفث ئے دریاندے حرام کړے وے نو تاسو به خیانت کښې ځانونه اچولی وے نو فَتَابَ عَلَيْكُمْ (یعنی په تاسو ئے مهربانی اُوکړه او دا حکم ئے درنه لرے کړو (وَعَفَا عَنْكُمْ) او فراخی ئے دریاندے راوسته، نو عفو په معنیٰ د توسعه سره ده، او توبه په معنیٰ د رفع الحکم (حکم پورته کولو) او تخفیف او آسانی راوستو سره ده۔ لیکن دا تفسیر ضعیف دے ځکه د صحیح حدیث خلاف دے۔

﴿ فَالْـٰٔنَ بَاشِرُوْهُنَّ ﴾ (فَالْـٰٔنَ) ابو البقاء وئیلی دی چه (اَلْـٰٔنَ) لفظ په اصل کښې هغه وخت ته وائی چه ته په کښې موجود ئے، او په نزدے تیره شوے او نزدے راتلونکے زمانه باندے هم دلالت کوی ځکه چه دا قریب په منزله د حاضر وی۔ او دلته همدا مراد دے۔ نو تقدیر د عبارت داسے دے: [فَالْـٰٔنَ اَبَحْنَا لَكُمْ اَنْ تُبَاشِرُوْهُنَّ] (قاسمی ۱/۴۷۸) ...... (اُوس مونږ تاسو ته جائز کړه دا خبره چه تاسو خپلو بیبیانو سره د رمضان په شپو کښې نزدیکت کولے شئ)۔

مباشرت: یو بدن د بل بدن سره یو ځائے کیدو ته وائی، او دا د جماع نه کنایه ده۔ او دا ادبی الفاظ دی۔ پدے کښې امت ته ادب دے چه کله دا قسم مقاصد څوك بیانوی، نو په ادبی الفاظو سره پکار دی او د فاحشو او کریهو الفاظو د استعمال نه به ځان ساتی۔

﴿ وَابْتَغُوْا مَا كَتَبَ اللّٰهُ لَكُمْ ﴾ پدے کښې اشاره ده چه ددے حکم د آسانولو مقصد دا دے چه د نسل

زیاتوالے راشی۔ پدیے کبن (۱) یوه معنیٰ دا ده چه په وخت د جماع کبن د بچي اراده اُوکړیٔ۔ (مجاهدؒ) ځکه چه د جماع مقصد صرف شهوت پوره کول نهٔ دی بلکه د نسل زیاتول مقصد دیے۔او پدیے کبن د جاهلانو په منصوبه بندیٔ او نسل کشئ باندے رد دیے چه دا د شریعت د مقصد نه خلاف کار دیے۔نو ابتغاء نه مراد نیت کول او کَتَبَ نه مراد تقدیر کبن لیکل دی۔

۲- او عامه معنیٰ پکبن غوره ده چه هر شي ته شامله ده۔ یعنی اُولټویٔ خوراك، څکاك، بچي، دعاء، استغفار، ذکر اذکار او تلاوت د قرآن پدیے شپو کبن او لیلة القدر او رخصت (ځکه الله پدیے خوشحالیږی چه د هغه رخصت ته راتلل اُوکړیے شی) او هغه ځائے چه الله درله حلال کړیدیے په ښځه کبن چه مخکبن عورت دیے۔

او دیے کبن اشاره ده دیے ته هم چه هرکله یو شے حلال شی نو داسے به نهٔ کوی چه بس هغے ته اُولګی او د هغے په وجه ترے مهم مهم کارونه پاتے شی۔ هرکله چه تا له جماع پدیے شپو کبن جائز شوه نو داسے به نهٔ کوے چه ټولے شپے په دیے کارونو مشغول کړیے بلکه د الله عبادتونه به کویے، د الله تعالیٰ ذکر اُوکړه، مونځونه، تهجد اُوکړه، لیلة القدر طلب کړه او دعاګانے اُوکړه۔ نور نیك اعمال چه درله الله لیکلی وی هغه طلب کړه۔ (حافظ ابن قیمؒ فی البدائع)۔

**فائده** : راغبؒ وائی : په آیت کبن یوے لطیفے ته اشاره ده چه په شهوت نکاحی کبن یو مقصد پروت دیے چه هغه د نسل انسانی حفاظت دیے نو څوك چه د نفس د حفاظت او د هغے د بے حیائی نه د ساتلو نیت کوی، نو دهٔ طلب کړو هغه شے چه الله دهٔ له پدیے نکاح کبن لیکلے وو۔ او چا چه ددیے نه اولاد مراد کړیدی د هغے مقصد هم دیے ته راجع کیږی۔ (قاسمیؒ)۔

﴿ وَكُلُوا وَاشْرَبُوا ﴾ دا په (بَاشِرُوهُنَّ) باندے عطف دیے یعنی (اُوس خوراك او څکاك کویٔ) یعنی خوراك څکاك درله حلال شو۔دارنګه ددیے ځائے نه اُوس د روژیے حدود بیانوی چه د کوم وخت نه شروع کیږی او کوم وخت باندے ختمیږی۔

او پدیے کبن اشاره ده پیشمنی کولو ته چه دا هم ضروری حکم دیے او نبی ﷺ دیے ته ترغیب ورکړیدیے چه پیشمنی کویٔ ځکه پدیے کبن برکت دیے (صحیحین وغیره)۔

**فائده** : که په یو روژه دار باندے په حالت د جنابت کبن صبا راوخیژی یا ئے احتلام اُوشی نو غسل به اُوکړی او همدا روژه به پوره کړی۔ (صحیحین) او هیڅ قضاء پرے نشته۔

﴿ حَتّٰى يَتَبَيَّنَ ﴾ تبیَّن دیته وائی چه یو شے ښهٔ ښکاره شی یعنی صبا ښهٔ راښکاره شی چه د هغے رڼرا په غرونو او په لارو کبن خوره شی نو تر هغه وخت پورے خوراك څکاك جائز دیے۔ (قَالَهُ ابْنُ عَبَّاسٍ وَاِسْنَادُهٗ صَحِيْحٌ قَالَهُ ابْنُ كَثِيْرٍ وَالْقَاسِمِيُّ ۱/۴۸۱)

لکه حدیث کښې هم ثابت دی چه کله یو انسان خوراك څكاك كوی او اذان شروع شی نو دهٔ له د هغې پوره کول جائز دی۔

ابوداود کښې دی (۲/٤٤٧) ابو هریره ﷺ فرمائی: رسول الله ﷺ فرمایلی دی: «کله چه یو تن ستاسو اذان واوری او لوښے د هغه په لاس کښې وی نو هغه دې نهٔ اړدی تردے چه د هغے نه خپل حاجت پوره کړی» (وسنده صحيح ارواء الغليل)

او په حدیث د ابن عباسؓ کښې مرفوعاً ثابت دی:

[اِنَّا مَعْشَرُ الْاَنْبِيَاءِ اُمِرْنَا بِتَعْجِيْلِ فِطْرِنَا وَتَاخِيْرِ سُحُوْرِنَا......] (الصحيحة للالباني (٤/٣٧٦)

(مونږ انبیاؤ ته دا حکم شوېدے چه روژه ماتے په اول وخت اُوکړو او پیشمنے روستو کړو)۔ او دا طریقه د عامو صحابه کرامو وه لکه مصنف د عبد الرزاق کښې د عمرو بن میمون الاودیؒ نه نقل شویدی۔ (رجوع اُوکړه فتاوی الدین الخالص (۸/۲۰۱) ته۔ لهذا پدے رخصت باندے عمل بهتر دے۔

﴿الْخَيْطُ الْاَبْيَضُ﴾ د سپین تار نه مراد د مشرق د طرف نه د صبا صادق په وخت کښې اُوږد خور وور سپینوالے دے او د تور تار نه مراد د شپے تیارهٔ ده ځکه چه د دغه سپینوالی دپاسه توره شپه ښکاری، نو دا دواړه ئے داسے کړل لکه سپین او تور تارونه ځکه چه دا په ابتداء کښې اُوږده ښکاره کیږی لیکن بیا اشتباه راتله چه دا ظاهری تارونه مراد دی نو د هغے د ختمولو دپاره ئے (مِنَ الْفَجْرِ) اُوویلو۔ یعنی دا د صبا تارونه دی نهٔ ظاهری۔

﴿مِنَ الْفَجْرِ﴾ امام بخاریؒ د سهل بن سعد ﷺ نه روایت کړیدے چه بعض خلق د (خیط ابیض او خیط اسود) په معنیٰ پوهه نشو او د صبا ناوخته پورے به ئے خوراك څكاك كولو نو الله تعالیٰ (مِنَ الْفَجْرِ) (لفظ) نازل کړو، نو خلقو ته پته اُولګیده چه د سپین او تور تار نه مراد شپه او ورځ دی۔

او عدی بن حاتم ﷺ دوه تارونه (تور او سپین) د بالخت لاندے ایخوستی وو، هغے ته به ئے کتل چه کله به ورته ښهٔ ښکاره شو نو روژه به ئے بندوله، نو نبی ﷺ ته ئے اُوویل چه دا خو ډیر ناوخته پورے نهٔ لیدلے کیږی۔ هغه ورته اُوفرمایل: (اِنَّكَ لَعَرِيْضُ الْقَفَا) (صحیح بخاری ومسلم) (ستا شټ خو ډیر پلن دے) چه کنارے د آسمان ورے د سر لاندے کړیدی۔ بلکه ددے نه مراد د شپے تیارهٔ او د ورځے رڼرا ده۔ دا حدیث دلیل دے چه د قرآن په تفسیر کښې احادیثو ته ضرورت دے خاصکر د احکامو په آیتونو کښې۔

﴿ثُمَّ اَتِمُّوا الصِّيَامَ اِلَى الَّيْلِ﴾ د روژے ابتدائی وخت بیان شو چه د صبا صادق نه شروع کیږی، اُوس د روژے دویم طرف بیانوی چه د شپے راختلو پورے به وی۔ او د شپے راختل ددے نه معلومیږی چه نمر پریوزی او د شپے د تور والی آثار ستا سر ته راوړسیږی۔ او دارنګه مشرق

طرف ته توره لیکه ښکاره شي۔
دا دلیل دے چه کله شپه راوخیژي نو بس روژه ئې ماته شوه، د شپې روژه نۀ وي۔ او اذان د شپې د راختلو دپاره صرف علامه وي، ورنه د اذان انتظار لازم نۀ دے کله چه انسان ته یقیني شپه راختل معلوم شي۔ حدیث کښې ددې وضاحت راځي : رسول الله ﷺ په سفر کښې وو یو صحابيؓ ته ئې اُووئیل: کوز شه (فَاجْدَحْ لَنَا) زمونږ دپاره سَتْوان تیار کړه۔ هغه اُووئیل یارسول الله ﷺ ورځ لا باقي ده۔ ورته ئې اُوفرمایل کوز شه : درې ځل ئې ورته دغه شان خبره اُوکړه۔
بیا هغه کوزشو او ستوان ئې تیار کړل او نبي ﷺ اُوڅکل۔ بیا رسول الله ﷺ اُوفرمایل : (إِذَا أَقْبَلَ اللَّيْلُ مِنْ هٰهُنَا وَأَدْبَرَ النَّهَارُ مِنْ هٰهُنَا وَغَابَتِ الشَّمْسُ فَقَدْ أَفْطَرَ الصَّائِمُ)
(کله چه شپه د مشرق طرف نه رامخامخ شي او ورځ بل طرفته شا واړوي او نمر پریوزي نو د روژه دار روژه ماته شوه)۔ (متفق علیه)
په یو حدیث کښې دي : زما امت به په خیر (فطرت) روان وي ترڅو چه روژه ماتے وختي کوي (یعني د شپې د داخلیدو په ابتداء کښې)۔ (صحیح بخاری : ۱۸۵۶ ومسلم)
ځکه چه پدې کښې د یهود او نصاراو مخالفت دے۔
عائشےؓ ته ابوعطیه رحمه الله راغلو چه مونږ کښې دوه صحابه کرامؓ دي، یو وختي روژه ماتوي او ناوخته پیشمنے کوي۔ بل روایت کښې دي : یو وختي روژه ماتوي او وختي مونځ کوي)۔ او بل ناوخته روژه ماتوي او وختي پیشمنے کوي (یعني د کوم یو عمل غوره دے) ؟ هغې اُوفرمایل : کوم یو وختي والے کوي ؟ هغه اُووئیل : عبد الله بن مسعودؓ۔ عائشےؓ اُوفرمایل همدغه شان کار به رسول الله ﷺ کولو۔ او بل صحابي ابوموسیٰ اشعريؓ وو۔ (السنن الکبری للبیهقي)۔
﴿إِلَى اللَّيْلِ﴾ نه معلومه شوه چه د شپې د راختلو سره سمدست روژه ماتول مستحب عمل دے، او معلومه شوه چه وصال کول افضل نۀ دي لکه ځنګه چه ددے نه په احادیثو کښې هم منع راغلے ده۔ ځکه چه په امت باندے مشقت راځي۔ وصال دیته وائي چه د یوے روژے مکمل کولو نه روستو دوباره بله روژه شروع کړي چه مینځ کښې روژه ماته نۀ کړي۔ ددے اجازت صرف د پیشمنی پورے راغلے دے، که یو انسان اُوږدهٔ روژه نیسي، نو د یو پیشمني نه بل پیشمني پورے نیولے شي۔ (متفق علیه)۔
﴿وَلَا تُبَاشِرُوهُنَّ وَأَنْتُمْ عَاكِفُونَ فِي الْمَسَاجِدِ﴾
**شان نزول** : د ضحاكؒ او قتادةؒ نه نقل دي چه بعض کسان به د اعتکاف په وخت کښې د مسجد نه (د یو حاجت دپاره) اُووتل نو کورته به لاړو او خپلے بي بي سره به ئې جماع کوله نو الله

دا آيت نازل کړو۔ چه کله تاسو په اعتکاف کښې يئ نو مباشرت به نهٔ کوئ برابره ده مسجد کښې وي او که بهر وي۔ (ابن جريرؒ، ابن کثيرؒ)

بی بی ورله ملاقات له راتلے شي، خوا کښې ورسره کيناستے شي خو خواهشات، جماع، يا لاس وروړل په طريقه د شهوت او خکلول به نهٔ وي۔ لکه عائشہؓ به د نبی ﷺ سر گمنځولو، وينځلو۔ او صفيه رضى الله عنها د رسول الله ملاقات ته (د هغه د اعتکاف په حالت کښې) راغلې وه۔

اعتکاف : په لغت کښې :(اَلْاِقْبَالُ عَلَى الشَّيْءِ عَلٰى وَجْهِ التَّعْظِيْمِ) يو شي ته متوجه کيدل په طريقه د تعظيم، لکه په مسجد کښې يو انسان ناست وي د الله تعظيم، د هغه عبادت پکښې کوي۔ او شرعي معنیٰ ئے دا ده : هُوَ الْمُكْثُ فِي الْمَسْجِدِ بِالنِّيَّةِ مَعَ الصَّوْمِ وَاَدْنَاهُ يَوْمٌ۔

په مسجد کښې په نيت د عبادت او تعلق بالله سره وخت تيرول خو چه روژه ورسره وي او ادنیٰ وخت ئے يوه ورځ دے۔

بعض ئے داسے تعريف کوي : د هر شي نه جدا کيدو سره د الله په ياد کښې يواځے کيناستلو ته وائي۔ او مسجد کښې کول ددے د لوازمو نه دي۔ پدے وجه په اعتکاف کښې د بی بيانو سره نزديکت هم حرام دے۔ (تدبر قرآن)۔

اعتکاف دے اُمت ته الله تعالیٰ مشروع کړيدے ځکه چه پخواني امتونه به کو دونو کښې کيناستل، نو دے اُمت ته هم الله تعالیٰ دا عبادت مشروع کړو او فائده ئے دا ده [جَمْعِيَّةُ الْقَلْبِ عَلَى اللهِ] (چه په الله باندے د بنده زړهٔ راجمعه شي او تزکيه د نفس ئے اُوشي) او اعتکاف کښې مقصد تَبَتُّلٌ اِلَى اللهِ دے۔ يعني د الله سره ځان يواځے کول۔ او د دنيا نه ځان راخکل دي۔

او دا يو سنت عمل دے او د رمضان په آخري عشره کښې کولے شي، پدے وجه ئے د روژے د احکامو سره متصل راوړو۔ او د جمهورو سلفوؒ په نيز اعتکاف دپاره د ورځے روژه نيول شرط دي۔ او شيخ الاسلام ابن تيميهؒ او حافظ ابن قيمؒ دے مذهب ته ترجيح ورکړيده۔

(قيام رمضان للالبانيؒ)

﴿فِي الْمَسَاجِدِ﴾ د مسجد قيد ئے اُولګولو لکه احاديثو کښې هم د مسجد قيد راغې دا دليل دے چه د مسجد نه بهر په کورونو کښې د زنانه او سړو دپاره اعتکاف نهٔ وي۔ او پدے باندے امام قرطبیؒ د اجماع دعوه کړيده۔ او که بغير د مساجدو نه جائز وے نو د رسول الله ﷺ بيبيانے ډيرے حياناکے وے، هغوی به کړے وے حال دا چه هغوی د مسجد نه سوئ په بل ځائے کښې اعتکاف نهٔ دے کړے۔ ددے نه دا هم ثابته شوه چه څوك په غارونو او غرونو او خانقاه گانو او شاړو ځايونو کښې چيلے اُوباسي نو دا سو چه بدعات دي چه په شريعت کښې هيڅ ثبوت نهٔ لري، دا شيطاني

عبادات دي۔

## مسئله : اعتکاف په کوم مسجد کې کولے شي ؟

دا اختلافي مسئله ده چه کوم مسجد کښې اعتکاف کولے شي او کوم کښې نهٔ ؟

(۱) یو قول دے چه اعتکاف په مساجد ثلاثه ؤ پورے خاص دے (یعني مسجد حرام، مسجد نبوی، مسجد اقصیٰ) لکه دا په صحیح حدیث کښې راغلي دي۔ (ابن ابی شیبه، سیر اعلام النبلاء، مشکل الآثار للطحاوی) ۔ مګر بعض علماؤ (زبیر علیزیٔ) دا روایت د دوه وجو نه ضعیف ګرځولے دے، یو تدلیس د سفیان چه دا اکثر د ثقاتو نه تدلیس کوی لیکن کله نا کله د غیر ثقاتو نه هم تدلیس کوی نو ددهٔ په روایت کښې شك دے او د تولو روایاتو مدار همدا دے۔ دویم : پدے روایت کښې اضطراب هم دے۔ حافظ زبیر علیزیٔ دا هم وائي چه مسجد اقصیٰ ددے حدیث د وینا په زمانه کښې د مسلمانانو په لاس کښې نهٔ وو بلکه دا عمر فاروق په سنه (۱۵ هـ) کښې فتح کړے وو۔

(۲) قول ثاني دا دے چه اعتکاف په هر جامع مسجد کښې کیږی، او ددے حدیث مطلب دا دے چه په دے مساجدو کښې اعتکاف د نورو مساجدو د اعتکاف نه غوره دے۔یا روایت ضعیف دے۔ ۲- دارنګه ابن حزمؒ او شیخ الاسلام ابن تیمیهٔ فرمائي چه دا په باره د نذر کښې دے یعني چا چه نذر کړے وی چه زهٔ به په یو ددے درے مساجدو کښې اعتکاف کوم، نو هغه به ئے پوره کوی او بل مسجد کښې د هغے په ځائے اعتکاف نهٔ کافي کیږی۔

(المحلی (۳۲۳/۸) مجموع الفتاوی (۲۵۱/۲۷)

**دلیل** : یو ددے آیت نه استدلال کیږی چه دلته ئے مَسَاجِدِ جمع راوړیده۔ او تخصیص ئے د دریو مساجدو نهٔ دے کړے۔ ۲- دویم حدیث د ابوداود (۲۷۲/۱) دے۔

عائشهٔ فرمائي: (......و لَا اِعْتِكَافَ اِلَّا فِيْ مَسْجِدٍ جَامِعٍ) (وَصَحَّحَهُ الْاَلْبَانِيُّ) (اعتکاف صرف په جامع مسجد کښې وی) او جامع مسجد هر هغه جمات ته وائي چه د جُمعے مونځ پکښې کیږی۔

او پدے قول کښې په تولو دلائلو عمل راځي۔ والله اعلم۔

او تفصیل په فتاوی الدین الخالص (۱۸۶/۸) کښې اُوګوره۔

﴿ تِلْكَ حُدُوْدُ اللّٰهِ ﴾ (تِلْكَ) اشاره ده مخکښې ذکر شوی حکمونو ته که اوامر وی او که نواهي۔دا د الله حدود دي۔

(حدود) جمع د حد ده په اصل کښې منع ته او د یو شي انتهاء ته وئیلے شي۔ او حد په معنیٰ د پولې سره راځي، نو دا ذکر شوی حکمونه (امرونه وی که نواهي) دا تول د الله حدود یعني پولے دي او ددے ماتول منع شویدي۔ حدود کله په معنیٰ د اوامرو (امرونو) سره وی او کله په معنیٰ د

نـواهیو سره وی او کـله په معنیٰ د زجرونو سره وی لکه خاص حدود۔ دلته تولو ته شامل دے او دے تـه ئے حـدود ځکه اُووئیل چه لکه ځنګه حد جامع او مانع وی نو دغه شان د الله په حکمونو کښ هم یے دلیله نور حکمونه نشی داخلیدلے۔

﴿ فَلَا تَقْرَبُوْهَا ﴾ یـعـنـی د ماتولو او مخالفت دپاره مهٔ ورنزدے کیږئ ځکه چه د ګناه په خوا کښ خوزیدلو سره انسان په ګناه کښ واقع کیږی۔

**فائده** : روستو راځی فَلَا تَعْتَدُوْهَا (بقره: ۲۲۹) او دلته فَلَا تَقْرَبُوْهَا وائی :

(۱) وجه دا ده چه پـدے مقام کښ نواهی زیات بیان شو او امرونه کم۔ او ددے سره د نزدیکت نه منـع مـنـاسـب ده ځـکـه دا کـنایه ده چه د صریح نه ابلغ ده۔ او روستو آیت کښ د طلاق، ایلاء او نکاح احکام دی او د هغے سره د تعدی نه منع مناسب ده۔

(كَذٰلِكَ) دا کـاف د بـیـان د کـمـال دپاره دے۔ یـعـنـی تیر شوی احکام په مختصر، جامع او کامل وضاحت سره ذکر دی۔ او پدے جمله کښ خلقو ته ترغیب دے چه پدے احکامو باندے عِلم راولی، او بیا پرے عمل اُوکړی چه تقویٰ پکښ پیدا شی۔

﴿ اٰيٰتِهٖ لِلنَّاسِ ﴾ یـعـنـی هغه آیـتـونـه چه متضمن دی د الله احکامو لره۔ او عامو خلقو ته ئے بیانوی چه غبی او ذکی پکښ برابر دی۔

﴿ لَعَلَّهُمْ يَتَّقُوْنَ ﴾ دا دلـیـل دے چـه روژه، دعا، د لیـلـة الـقـدر طلب، او په مسجد کښ اعتکاف ته کیناستل، دا ټول د تقویٰ اسباب دی۔

| وَلَا تَاْكُلُوْٓا اَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ بِالْبَاطِلِ وَتُدْلُوْا بِهَآ اِلَى الْحُكَّامِ |
|---|
| او مهٔ خورئ مالونه د یو بل خپل مینځ کښ په ناروا طریقو، او مهٔ وړئ دا مالونه حاکمانو ته |
| لِتَاْكُلُوْا فَرِيْقًا مِّنْ اَمْوَالِ النَّاسِ بِالْاِثْمِ وَاَنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ﴿۱۸۸﴾ |
| دے دپاره چه تاسو اُوخورئ یوه حصه د مالونو د خلقو نه په ګناه (ظلم) سره او تاسو پو هیږئ۔ |

**تفسیر** : اُوس بـل (خـلـورم) حـکم او قانون بیانیږی هغه دا دے چه په غلطو طریقو او رشوتونو سره پـریـدی مـالـونـه مهٔ خورئ۔ نو پدے کښ اصلاح الاموال (د مالونو اصلاح) ده۔ نو عنوان د آیت دے : (اَلنَّهْيُ عَنْ اَكْلِ الْاَمْوَالِ بِالطُّرُقِ الْبَاطِلَةِ وَالْاِرْتِشَاءِ)

(په غلطو طریقو او رشوت سره د مالونو د خوړلو نه منع ده)۔

**ربط** : مـخـکـښ سـره ئے مناسبت دا دے چه روژه بنده د حرامونه بچ کوی، ځکه چه روژه کښ

بنده د حلالو نه بچ وي. نو د حرامونه به په طريقه اولىٰ سره بچ كيږي. نو روژه د حرامو نه د بچ كيدو سبب دے.

دلته ذكر د (اكل) (خوراك) دے مراد ترے نه (اخذ) (اخستل او حاصلول) دي. او دا په عرف كښ استعماليږي، خلق وائي (سود خور دے، رشوت خور دے). ځكه چه د مال د اخستو اصل مقصد خوراك وي. نو پردے مال د لږ ساعت دپاره هم مۀ اخله، ددے وجه نه دا هم نارواده چه څوك پردئ چپلي بغير د اجازت نه استعمال كړي. لكه ډير خلق پردئ چپل واچوي دوه درے ورځے ئے اوګرځوي بيا ئے راوړي نو دا كار هم سخته ګناه ده. او پدے باندے ډير جاهلان نۀ پوهيږي.

﴿ بِالْبَاطِلِ ﴾ يعنى په ناروا طريقه سره. دا يو عام مفهوم لري چه ددے لاندے ډير خيزونه او طريقے راځي لكه دهوكے دركے، رشوت او په غلط بيوعو، غلط خيراتونو سره ئے اُوخوري.

○ او پدے كښ خپل مال په غلطه طريقه خوړل هم داخل دي چه تي وي، دمتوب، شراب، چرس، افيون، د خنزير غوښے پرے واخلي يائے خرڅ كړي. يا په اسراف طريقو سره په ودونو او رواجونو كښ مالونه لګول، جواري، د زنا اُجرت (ټكټ)، غلا، لوټ مار، غصب، په خريد وفروخت كښ دهوكه كول، په امانت كښ خيانت كول. سود مال، په داسے كار اجرت اخستل چه هغه ټيك نۀ وي، د وقف او وصيت مال په ناحقه خوړل، د مسلمانانو نه ټيكسونه اخستل، په ختم د قرآن او د سورة يس په ختمونو اجرت اخستل، په امامت او اذان باندے مزدوري اخستل، د خويندو تريندو ميراث خوړل.

او دا قسم ټول هغه صورتونه چه په هغے سره د خلقو مال په ناحقه خوړلے كيږي داټول حرام مال دے او په هيڅ طريقه جائز نۀ دے. او د حرام خوړلو نه ځكه منع اُوشوه چه په حرام مال سره د انسان توحيد خرابيږي.

﴿ وَتُدْلُوْا ﴾ دا په (تَاْكُلُوْا) باندے عطف دے نو د (لَا) د لاندے دے لكه په قراءت د ابى بن كعبؓ كښ ورسره (لا) ذكر شويده. هركله چه د خلقو مال خوړل په باطله طريقه سره يو عام مفهوم وو، نو اُوس څۀ كسان به پردے مال پدے ګمان جائز ګنړي چه دا مال د قاضي په حكم سره لاس ته راغلے دے نو الله تعالىٰ د دوي ګمان پدے جمله كښ رد كوي.

او د اِدْلَاء معنىٰ ده زوړندول لكه بوقه چه كوهي ته زوړندولے شي. نو پدے صورت كښ به (بِهَا) كښ باء صله د اِدْلَاء وي او ضمير به (حُكُومَة) يعنى فيصلے ته راجع وي. او ادلاء به د القاء (ګوزارولو) نه مجاز وي. اَىْ لَا تُلْقُوْا اَمْرَهَا وَالْحُكُوْمَةَ فِيْهَا – اِلَى الْحُكَّامِ)

معنىٰ دا چه مۀ زوړندوئ يا مۀ ګوزاروئ كار او معامله د مالونو او فيصله پدے مالونو كښ

حاکمانوته چه کله پو هیږي چه مدعي سره گواهان نشته، نو قاضي به زما دپاره فیصله اُوکړي۔ او د دروغو قسم نه نۀ یریږي۔ نو د حاکمانو د فیصلو په وجه تا له دا مال نۀ حلالیږي۔

حافظ ابن کثیرؒ په خپل تفسیر کښې لیکي: علي بن ابي طلحةؒ د ابن عباسؓ نه روایت کړے چه دا آیت د هغه سړي په باره کښې دے چه په هغه باندے مال وي، او په هغے کښې د مدعي سره گواهان نۀ وي نو دا د مال نه انکار اُوکړي او جګړه حاکمانو ته یوسي، دے دپاره چه فیصله ددۀ په حق کښې اُوشي او دا پو هیږي چه دا گناهګار دے او د حرامو خوړلو کوشش کونکے دے۔ (قاسمیؒ)

د صحیحینو په حدیث کښې د ام سلمةؓ نه روایت دے چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل:

«زۀ انسان یم، ما ته جګړه کونکي راځي، کیدے شي چه ستاسو نه بعض کسان د نورو نه په دلیل کښې چالاك وي نو زۀ به د هغه دپاره فیصله اُوکړم، نو چا له چه زۀ د مسلمان په یو حق فیصله اُوکړم نو (دا ددۀ دپاره جائز نۀ ده بلکه) دا یوه ټکړه د اُور ده۔ داوړے ځان سره واخلي یا دے ئے پریږدي»۔ نو دا آیت او دا حدیث دلیل دے چه د حاکم او قاضي او مفتي فیصله یو شے د نفس الامر نه نۀ بدلوي، که یو شے په نفس الامر او واقع کښې حرام وي نو هغه حلال نۀ ګرځوي، او که یو شے حلال وي نو هغه حرام نۀ ګرځوي۔ بلکه د قاضي فیصله صرف په ظاهر کښې نافذه وي، نۀ په باطن کښې۔ که د نفس الامر او واقع سره برابره شوه خو ښۀ ده او که نۀ وي نو د حاکم اجر اُوشو او په حیله کونکي د هغے گناه راغله۔ پدے وجه ئے په آخر د آیت کښې اُوفرمایل: (وَاَنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ) یعني تاسو ته د خپلے دعوے او د خپلو خبرو باطلوالے معلوم وي۔ (تفسیر القاسمي ۱/۴۸۶)۔

(۲) **دویم تفسیر**: (بِهَا) ضمیر اموالو ته راجع دے، او مراد ترے نه رشوت دے۔

[اَیْ لَاتُلْقُوْا بَعْضَهَا اِلٰی حُکَّامِ السُّوْءِ عَلٰی وَجْهِ الرِّشْوَةِ لِیُعِیْنُوْکُمْ عَلَی اقْتِطَاعِ اَمْوَالِ النَّاسِ] (قاسمي)

یعني غلطو حاکمانو ته په طریقه د رشوت مالونه مۀ ورکوئ، دے دپاره چه هغوي تاسو سره د پردي مال په حاصلولو کښې مدد اُوکړي) ځکه رشوت ورکول ستا دپاره هم گناه ده او هغه دپاره ئے اخستل حرام دي۔ ځکه حدیث کښې دي: [لَعَنَ اللّٰهُ الرَّاشِيَ وَالْمُرْتَشِيَ وَالرَّائِشَ] (مسند احمد، وَصَحَّحَهُ التِّرْمِذِيُّ وَالْاَلْبَانِيُّ) (الله لعنت کړے په رشوت ورکونکي (په غلطه کښې) او په رشوت اخستونکي او څوك چه د دوی ترمینځ منده وهي)۔

او پدے رشوت کښې دوه لوئي جرمونه راغلل۔ یو رشوت ورکول او بل په باطله طریقه پردے مال حاصلول۔

بیا رشوت دیته وائي چه یو انسان حاکم ته ددے دپاره څۀ مال ورکړي چه هغه ددۀ په حق کښې د پردي مال یا زمکے وغیره فیصله اُوکړي۔ او که یو انسان یو ظالم یا حاکم ته څۀ مال وغیره ورکړد

ددې دپاره چه د خپل مال حفاظت پرې اُوکړي، نو دا به جائز وي اګر که د حاکم او ظالم دپاره ددې اخستل حرام دي۔ دارنګه يو غل درباندې پينځ شي مال درنه اخلي نو تهٔ ورته اُووائې دا لس شل روپئ واخله ما پريده نو دا به ستا دپاره جائز وي۔

او رشوت ورنه اخستل اصل کښې د يهودو طريقه وه او بيا دې اُمت کښې هم کافي طريقې سره رائج دي، او الله ته د مخکښې نه معلومه وه چه دا اُمت به دا کار کوي ځکه ئې دوی ته هم خطاب کړيدې۔

**فائده :** علماء فرمائي : [فِيْهِ نَهْيٌ عَنْ اِقَامَةِ حُجَّةٍ بَاطِلَةٍ] پدې کښې بادشاه او حاکم ته د پردي مال حاصلولو دپاره د باطل دليل وئيلو نه منع ده، که هغه په چالاکئ سره وي يا په غلطو ګواهانو قائمولو سره وي۔ لنډه دا چه په هره غلطه طريقه سره پردې مال خوړل حرام دي۔نو ددې نه دا مسئله ثابتيږي چه حرام مال په فيصله د قاضي هم نهٔ حلاليږي کله چه تا ته په زړهٔ کښې معلومه وي چه دا پردې مال دې۔ لکه دا خبره په حديث د بخاري وغيره کښې صراحةً مخکښې تيره شوه۔

﴿ اِلَى الْحُكَّامِ ﴾ حکام جمع د حاکم ده۔ (فيصله کونکے) که قاضي وي او که بادشاه وي۔

﴿ لِتَاْكُلُوْا ﴾ يعنې دا ورور ل د خوراك دپاره منع دي۔

(فَرِيْقًا) د فريق نه مراد حصه او برخه ده۔

﴿ بِالْاِثْمِ ﴾ (باء سببيه ده او مراد د اِثم (ګناه) نه د دروغو ګواهي يا رشوت ورکول يا په دروغه قسم خوړل دي۔ او دا د لِتَاْكُلُوْا پورې متعلق دې، يعني چه تاسو خورئ څهٔ حصه د مالونو د خلقو نه په سبب د ګناه چه هغه د دروغو ګواهي ده، يا رشوت ورکول يا قسم خوړل دي۔ يا باء د ملابست او مصاحبت ده يعني چه ستاسو دا خوړل د مالونو په ګناه مشتمل وي او د ګناه سره ملګرې وي نو داسې مهٔ کوئ۔ او که په ګناه سره نهٔ وي، بلکه خپل حق وي نو بيا جائز دي۔

﴿ وَاَنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ﴾ (بِاَنَّكُمْ عَلَى الْبَاطِلِ وَالْمَعْصِيَةِ) يعنې تاسو ته دا معلومه ده چه تاسو په باطله ئې او په ناحقه ئې۔ دا قيد ځکه لګوي چه کله يو انسان ته دا معلومه نهٔ وي چه دا پردې مال دې بلکه ددهٔ غالب ګمان دا وي چه دا زما مال دې، او مينځ کښې پردې وي، نو پدې باندې دا ګناهګار نهٔ دې۔ ځکه دا ناپوهه دې۔ د جهالت د وجه نه ئې پردې مال واخستو۔ او دغه شان خبره روح المعاني او البحر المحيط هم ليکلې ده۔

oooooooooo

يَسْئَلُوْنَكَ عَنِ الْاَهِلَّةِ قُلْ هِيَ مَوَاقِيْتُ لِلنَّاسِ

دوی تپوس کوی ستا نه په باره د میاشتو کښې، اُووایه چه دا وختونه مقرر شویدی د خلقو (د فائدې) دپاره

وَالْحَجِّ وَلَيْسَ الْبِرُّ بِاَنْ تَاْتُوا الْبُيُوْتَ مِنْ ظُهُوْرِهَا وَلٰكِنَّ الْبِرَّ

او د حج دپاره، او نهٔ ده دا نیکی چه تاسو راځئ کورونو ته د شاګانو نه لیکن نیکی دا ده

مَنِ اتَّقٰى وَاْتُوا الْبُيُوْتَ مِنْ اَبْوَابِهَا وَاتَّقُوا اللّٰهَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ﴿۱۸۹﴾

چه څوك اُووېرېږی د الله نه، او راځئ کورونو ته د دروازو نه او اُووېرېږئ د الله نه دے دپاره چه تاسو کامیاب شئ۔

**تفسیر**: پدے آیت کښې د سپوږمئ په باره کښې د یو سوال جواب دے۔

مناسبت د مخکښې سره دا دے چه روژه وغیره نور عبادات په میاشت سره معلومیږی نو اُوس د میاشتے تذکره کوی حدیث کښې دی: «د میاشتے په لیدو روژه نیسئ او د میاشتے په لیدلو سره روژه ماتوئ» (بخاری ومسلم).

او پدے آیت کښې د جاهلیت د بعض رواجونو رد کوی او د تصور اصلاح کوی۔

ابن عباسؓ فرمائی: صحابه کرامؓ د نبی ﷺ نه په ټول ژوند کښې صرف څوارلس تپوسونه کړیدی۔ او د هغې جوابونه الله ورکړیدی۔ غالباً د احکامو متعلق دی لکه یو دا سوال دے او بل (۱۸۶) آیت کښې، او بعض نور تپوسونه هم پدے سورت کښې راروان دی۔

ددے وجه نه هرکله چه دا سوال دے نو په سوال کښې مختلف څیزونه جمع کوی نو د مخکښې سره ربط ته هم ضرورت نشته۔ اګرکه ربط ئے هم واضح دے۔

﴿يَسْئَلُوْنَكَ﴾: دا تپوس چا کړے وو؟ (۱) نو ظاهر قول دا دے چه دا تپوس بعض صحابه کرامؓ (معاذ بن جبل او ثعلبه بن غنم رضی الله عنهما) کړے وو۔ چه اے د الله رسوله! څهٔ راز دے چه سپوږمئ د تار په شان باریکه راخیژی، بیا غټیږی تردے چه ګول شی بیا ورهٔ کیږی تردے چه د مخکښې په شان باریکه شی، (د نمر په شان) په یو حال باندے باقی نهٔ پاتے کیږی نو دا آیت نازل شو۔ (معرفة الصحابة لابی نعیم: ۱۳۰۶) وابن عساکر

او دا قول د ابن عباسؓ، قتادهٔ او ربیعؒ وغیره دے۔ (قرطبیؒ واللباب والبغوی).

(۲) بعض وائی: دا تپوس یهودیانو د معاذ بن جبل او ثعلبه بن غنم رضی الله عنهما نه کړے وو، نو هغې دواړو رسول الله ﷺ ته ذکر کړو چه مونږ نه یهودیانو داسے تپوس اُوکړو چه څهٔ وجه ده سپوږمئ اول نرئ ښکاره کیږی او بیا زیاته شی بیا برابره شی او بیا کمیږی او نرئ کیږی۔ (قرطبیؒ)

نو کـه ابتداءً تپوس د مسلمانانو شي نو هغوی د حکمت تپوس کړے او جواب هم د حکمت په بیان سره ورکړے شو چه دے کښې ډیر حکمتونه دي. د سپوږمۍ په ذریعه خلق د خپل ژوند د ضروریاتو اَوقات مقررَوی، د قرض، د اخستو خرڅولو تاریخ، روژه، افطار، حج، اجارے، کرایه ګانے، تنخواه ګانے، د حیض (ماهواری) ورځے. د زنانو عدتونه او د شرطونو مودے، دا ټول مواعید د سپوږمۍ په ذریعه معلومیږي.

مواقیت جمع د میقات ده، مقرر وخت ته وائي.

او کـه دا تپوس د یهودیانو شي یا د صحابه کرامو شي چه دوی د نرۍ والی او غټ والی د سبب تپوس کړے وو خو هرکله چه دا تپوس بے فائدے وو، نو جواب ورکړے شو په حکمت بیانولو سره، پدے کښې تنبیه ده چه اے خلقو ! تاسو له ددے فائدو تپوس پکار دے نۀ د سبب، ځکه په سبب معلومولو کښې فائده نشته او دا د مفتی هوښیارتیا وی چه کله د هغه نه یو قسم تپوس اُوشی، نو هغه د مخاطب د حال مطابق جواب ورکړی، نۀ د سوال مطابق. او دیته په علم البلاغة کښې الاسلوب الحکیم وائي. یعنی دوی د سبب فاعلي تپوس کړے وو او جواب په سبب غائي سره ورکړے شو.

او پدے کښې تعریض دے په یهودو چه دا نبی مۀ تنګوئ او مفید تپوسونه اُوکړئ. ځکه چه نبی ﷺ ددے دپاره نۀ دے راغلے چه د کائناتو د څیزونو وجوهات او اسباب بیان کړی بلکه د نبی کار د دین احکام بیانول دي. او دلته تفتازانی په مطول کښې غلطه خبره لیکلے ده چه دا تپوس صحابه کرامو کړے وو، لیکن هرکله چه هغوی د ریاضۍ او علم هیئت په باریکاتو نۀ پوهیدل نو ددے وجه نه الله تعالیٰ ورته د حکمت جواب ورکړو.

دا د صحابه کرامو سپکاوے دے. بله دا چه صحابه کرامو او عربو کښې علم ریاضی ډیر زیات وو، هغوی پدے علومو پوهیدل. دا رنګه که نۀ پوهیدلے، نو چه الله جواب ورکړے وے پوهه شوی به وے. صحیح دا ده چه که دا د صحابه کرامو تپوس شي نو جواب ځکه ورنکړے شو چه په هغے کښې فائده دومره نۀ وه ځکه چه نبی ﷺ ددے دپاره رالیږلے شوے وو چه خلقو ته د دنیا او د آخرت د صلاح او جوړوالی بیان اُوکړی او د علم هیئت سره ددے هیڅ تعلق نشته ځکه دا د شرعی علومو نه نۀ دے. نو ځکه ئے حکمت ذکر شو او دا مطلب نۀ دے چه صحابه کرامؓ په جواب نۀ پوهیدل.

﴿عَنِ الْأَهِلَّةِ﴾ اَهله جمع د هِلَال ده سپوږمۍ ته وائي چه په اولو درے شپو کښې وی، هلال په اصل کښې آواز اُوچتولو ته وائي، نو سپوږمۍ ته هِلَال ځکه وائي چه کله راوخیژی، خلق چغے

وهي چه هغه ده سپوږمۍ راختلې ده۔

**فائده:** (۱) زمونږ د مسلمانانو حساب به همیشه په قمري حساب بناء وي۔
او په شمسي طریقه حساب کولو باندې بعض علماؤ رد کړیدې چه دا په اسلام باندې نصرانیت ته ترقي ورکول دي، لکه نن صبا د خلقو همدا حال دے، د شرعي سَنې او تاریخ نه خبر نهٔ دي۔ دے وجه نه صحابه کرامو په عیسوي سنه باندې اکتفاء اُونکړه بلکه خپله هجري قمري سنه ئے مقرر کړه۔

(۲) د سپوږمۍ تخصیص ئے اُوکړو، نهٔ د نمر ځکه چه د سپوږمۍ د اختلاف د احوالو په وجه هر عقلمند انسان اګرکه امي وي د اوقاتو معلومات کولے شي لکه ډیر عوام خلق تاریخ د میاشتے نه معلوموي، د هغې وړوکوالي او غټوالي ته ګوري۔ او د نمر نه معلومات کول سخت دي، صرف د هغه نه ځلور موسمونه معلومیږي او هغه هم هرڅوك نشي معلومولے، بلکه جنتري (کلینډر) کتلو ته به حاجت راځي۔

﴿ قُلْ هِيَ مَوَاقِيتُ لِلنَّاسِ وَالْحَجِّ ﴾

(وخت معلومول او مقررول دي د خلقو د کارونو او د حج دپاره)۔
حج ئے خاص ذکر کړو ۱ – پدے کښې د عربو په رواج او عادت باندے رد غرض دے چه هغوی به په حج کښې نَسِيءُ کوله یعنی حج به ئے په خپله طبعه سره دیوے میاشتے نه بلے میاشتے ته نقل کولو او روستو کولو به ئے، نو په تخصیص د حج کښې د دوی په بدعت باندے رد اُوشو چه حج یو داسے عبادت دے چه مکان ئے خاص دے، نو دغسے زمان ئے هم خاص دے، چه هغه درے میاشتے دي (روستو راځي) نو ددے روستو کول بدعت او ناروا کار دے۔
۲ – دارنګه مخکښې نه د بِرّ (نیکیانو) او د فرائضو تفصیل شروع دے نو مخکښې روژه وه اُوس ځلورمه فریضه د حج ذکر کوي۔ مینځ کښې ئے د میاشتے خبره اُوکړه ځکه چه روژه هم میاشتے معلومولو ته حاجت لري او حج هم میاشتو ته ضرورت لري۔

﴿ وَلَيْسَ الْبِرُّ بِأَنْ تَأْتُوا الْبُيُوتَ مِنْ ظُهُورِهَا ﴾

ددے جملے ذکر کولو وجه دا ده چه د یوے خبرے نه بله خبره پیدا شي، مخکښې د حج متعلق یو بدعت ئے رد کړو نو اُوس د عربو د حج په باره کښې بل بدعت او رواج او غلطي رد کوي، او د الله تعالیٰ په قرآن کریم کښې عادتِ مبارکه دا دے چه د دین په باره کښې غلط تصور رد کوي ځکه چه دا دین خرابوي چه عام ګناهونه ئے هغومره نهٔ خرابوي ځکه د هغې ضرر شخصي دے، او د بدعت ضرر متعدي دے۔ نوے شریعت جوړول دي۔ او دا د الله تعالیٰ مقابله ده۔ لکه د دوی

بدعات به په قرآن کريم کښې ځائے په ځائے رد کيږي.

**شان نزول :** او ددے په سبب د نزول کښې ډير اقوال دي :

(۱) حسن بصريؒ فرمائي : د جاهليت په وخت کښې به چه يو سړے د سفر دپاره د کور نه اُووتلو (که هر سفر به وو) بيا به ئې رائے بدله شوه او سفر به ئې پريخودو نو د کور د دروازے نه به نهٔ داخليدو بلکه د شا د طرف نه به په ديوال (يا په بله ذريعه) راداخليدو او په دروازه داخليدل به ئې سپيرهٔ والے ګنړلو. نو الله تعالىٰ دا آيت نازل کړو. (ابن کثيرؒ)

نو بنا پدے به د نيکۍ نه مراد دلته د سپيرهٔ والي نه بچ کيدل وي يعنې د کور د شا طرف نه داخليدل د سپيرهٔ والي نه بچ کيدل نهٔ دي بلکه په تقوىٰ او په توکل علی الله سره به د سپيرهٔ والي نه بچ کيږئ. (تفسير القرطبي).

(۲) محمد بن کعبؒ پکښې دا وئيلي دي چه سړے به د اعتکاف نه واپس کيدو کښې د کور د دروازے نه نهٔ داخليدو.

(۳) عطاء بن ابي رباحؒ وائي : مدينے والا به چه کله د اخترونو نه واپس کيدل نو د کورونو د شا طرف نه به داخليدل او دا عقيده ئې وه چه دا کار نيکۍ ته ډير نزدے دے. (ابن کثيرؒ).

(٤) امام قرطبيؒ وائي : ډير صحيح قول پدے باره کښې د براء بن عازبؓ قول دے چه انصارو به کله د حج (يا عمرے) دپاره احرام اُوتړلو او د حج نه به فارغ شو، نو کورونو ته به د دروازو نه نهٔ داخليدل (بلکه يا به ئې پارسنګ کيخودلو يا به ئې سورے کولو) نو دغه وخت يو انصاري ددے خلاف اُوکړو او په دروازه داخل شو نو هغه له خلقو پيغور ورکړو چه تا د خپل رواج خلاف اُوکړو. نو دا آيت نازل شو. (بخاري ومسلم)

او رد اُوشو چه دا څهٔ د نيکۍ تقاضا نهٔ ده چه په دروازه باندے نهٔ داخليږي بلکه نيکي په تقوىٰ کولو کښې ده. او د الله په احکامو منلو کښې ده.

(۵) په يو روايت کښې دي، امام زهريؒ فرمائي : انصارو کښې څهٔ کسانو چه به کله احرام اُوتړلو نو دا به ئې لازمه ګنړله چه زمونږ او د آسمان په مابين کښې به څهٔ حائل (پرده) نهٔ واقع کيږي، بلکه کله چه به ئې کورته د راواپس کيدو ضرورت راپيښ شو نو د ديوال دپاسه به راوختلو او د کور په منډو کښې به اُودريدو او خپل حاجت به ئې پوره کړو او بيا به تلو او دا کار به ئې ثواب ګنړلو. (تفسير الطبريؒ)

هر سبب چه وي خو د سياق نه معلوميږي چه دا رواج په حج کښې وو نو الله تعالىٰ دا غلط تصور رد کړو او د نيکۍ صحيح تصور ئې ورکړو چه نيکي د الله نه د يرے نوم دے، په ظاهر او

باطن کښې د الله نګرانی او د هغه د وجود پوخ شعور بس همدا نیکي ده۔
﴿ وَلٰكِنَّ الْبِرَّ مَنِ اتَّقٰى ﴾ دلته مضاف پټ دے یعنی لٰكِنَّ الْبِرَّ بِرُّ مَنِ اتَّقٰى) (لیکن قبوله نیکی نیکي د هغه چا ده)۔
﴿ وَأْتُوا الْبُيُوْتَ مِنْ اَبْوَابِهَا ﴾ په دے جمله کښې ډیر اشارات دی:
○ یعنی [اِءْتُوا الْاُمُوْرَ عَلٰى وُجُوْهِهَا] (کارونو ته په خپلو صحیح طریقو او خپلو مخونو راتګ کوئ) په دے کښې تنبیه ده چه کوم شے بغیر د خپلے طریقے نه طلب کړے شي نو د هغے حاصلول ګرانیږي۔ ○ نو مال چه د چا نه اخلے نو حلال مال اخله، نۀ حرام۔
○ روژے چه نیسے نو د ورځے، نۀ د شپے۔ ○ بیبیانو ته چه راتګ کوئ نو د شا (دُبر) نه نۀ بلکه د مخے نه دِ‍ے وی۔ (ابن الانباریؒ والماوردیؒ عن ابن زیدؒ)
○ سَلُوا الْعُلَمَاءَ وَلَا تَسْئَلُوا الْجُهَّالَ) (د علماؤ نه تپوسونه کوئ او د جاهلانو نه تپوسونه مۀ کوئ) (قرطبیؒ عن ابی عبیدةؒ) ○ د نیکئ هر کار په هغه طریقه کوئ چه د هغے امر الله تعالیٰ کړے وی، یعنی په دلیل شرعی سره عمل کوئ او بے دلیله عمل مۀ کوئ۔
○ کوم خیر (قول او فعل) چه الله قربت (ثواب) نۀ وی ګرځولے او هغے ته ئے ترغیب نۀ وی ورکړے نو هغه به ثواب نۀ ګنړئ۔ بلکه عبادت او قربت به د الله او د هغه د رسول نه زدۀ کوئ۔ (قرطبیؒ)۔ ○ یهودیانو ته په کښې تعریض دے چه تاسو سوالونه مۀ اُلټه کوئ بلکه په صحیح طریقه سوالونه کوئ لکه دوی د میاشتو د وروکوالي او غټوالي د سبب تپوس کولو او پکار دا ده چه سوال ئے د فائدو کړے وے، داسے مثال ئے دے لکه یو انسان چه د کور دروازه پریږدی او د شا طرف نه کورته داخلیږي۔ نو یهودیان د جاهلانو په شان اُلټه کارونه کوی۔ (اللباب)۔
○ خپل اهل او لائق خلقو ته ذمه واری سپارئ او نا اهلو ته ئے مۀ سپارئ۔
نو په دے کښې د عقیدے، د اعمالو او د اخلاقو متعلق په ټولو بدعاتو رد دے۔
﴿ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ﴾ یعنی تقویٰ او د الله احکام منل سبب د کامیابئ دے، نۀ رواجونه او بدعات۔

| وَقَاتِلُوْا فِىْ سَبِيْلِ اللّٰهِ الَّذِيْنَ يُقَاتِلُوْنَكُمْ وَلَا تَعْتَدُوْا |
|---|
| جنګ کوئ د الله په لار کښې د هغه کسانو سره چه تاسو سره جنګ کوی او زیاتے مۀ کوئ |
| اِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ الْمُعْتَدِيْنَ ﴿۱۹۰﴾ |
| یقیناً الله مینه نۀ کوی د زیاتی کونکو سره۔ |

**تفسير** : اُوس پنځم قانون د السياسة المدنية دپاره بيانوي چه هرکله دا قوانين مخکښې بيان شول، او اسلامي حکومت جوړ شو نو اُوس وائي چه څوك دا قوانين نهٔ مني او ددې د ورانولو او ختمولو کوشش کوي، نو د هغوي سره قتال کول پکار دي۔ لکه د کفارو دا طريقه ده چه د هر قانون بالادستي مني ليکن د اسلام بالادستي او حاکميت منلو ته تيار نهٔ دي، لهٰذا مسلمانان به د دوي د هتهکر (په سختئ سره) مقابله کوي۔

نبي کريم ﷺ چه کله مدينې منورې ته تشريف راوړو، او د مسلمانانو څهٔ قوت او تمکن پيدا شو، نو دوي ته حکم اُوشو چه اُوس به د دشمن مقابله کوئ۔ او تاسو ته چه کوم اسلامي نظريهٔ حيات درکړې شوه نو دا به راخلئ او د ټول انسانيت قيادت به کوئ او دا دعوت به ورته رسوئ او څوك چه لار کښې رکاوټ واقع کيږي هغې سره به مقابله کولې شي۔

په بعض روايتونو کښې راغلي دي چه د جنګ د قانون په سلسله کښې دا د قرآن کريم اولنے حکم دے، ددې نه مخکښې الله تعالیٰ هغه مؤمنانو ته چه د کفارو سره په مقابله کښې وو، صرف د جنګ اجازت ورکړے وو، پدے وجه چه دوي مظلوم دي لکه هغه په سورة الحج (۳۹) آيت کښې راغلي دي ﴿ اُذِنَ لِلَّذِيْنَ يُقٰتَلُوْنَ﴾ نو مسلمانانو محسوس کړه چه دا اجازت د جهاد د فرضيت دپاره يو تمهيد دے۔ نو بيا دا حکم نازل شو۔

په مکه کښې د لاس اُوچتولو او قتال کولو ممانعت هم په يو خاص حکمت بنا وو۔ او هغه دا چه (۱) په مسلمانانو کښې داسې جذبه پيدا شي چه هغوي د امير د اطاعت عادي شي، او د قتال حکم پورې انتظار اُوکړي ځکه چه هغوي د جاهليت په دور کښې د مخکښې نه سخت جنګجو وو او په اولني آواز به ميدان ته راوتل، او په معمولي بده خبره ليدلو سره به په هغوي کښې د صبر هيڅ ماده نهٔ پاتې کيدهٔ، ليکن الله تعالیٰ غوختل چه په دوي کښې ښائسته صفات پيدا شي او تربيت ئې اُوشي او داسې سيرت ئې جوړ شي چه دا تمام نفسياتي کمزورياني ئې په نظم وضبط بدلې شي او د جاهليت د دَور تمام عصبيتونه او ناجائزې طرفداريانې پريدي۔

(۲) دارنګه د عربو معاشره يوه بهادره او شريفه معاشره وه، خلق د حِلم او د نفس د عزت او شرافت مالکان وو، په مسلمانانو کښې بعض داسې خلق هم وو چه د شرې جواب ئې په کانړي سره ورکولې شو، ليکن ددې باوجود چه کله هغوي په مظالمو باندې صبر کولو، نو د ډيرو شريفانو په عزتِ نفس او شرافت کښې به جوش راتلو او د هغوي زړونه به اسلام طرف ته مائل کيدل، او ددې عملاً اظهار په هغه وخت اُوشو چه کله قريشو بني هاشمو سره د بائيکاټ فيصله اُوکړه۔ او په شعب ابي طالب کښې بند کړې شو۔ نو کله چه په هغوي باندې تکليفونه د برداشت نه

اُووتل نو د ډيرو شريفانو شرافت او غيرت په جوش کښې راغلو، او هغه صحيفه ئې اُوشو کوله، او محاصره ختمه شوه، دا د رسول الله ﷺ د دَور مکي پاليسي وه چه د عربو جذبات ئې ملحوظ کړي وو چه خلق خپله اسلام ته آماده شي۔ او د مسلمانانو په مظلوميت باندے غيرت اُوکړي۔

(۳) دارنګه د مسلمانانو قوت منتشر (خور وور) وو او مجتمع ئې نۀ وو، تمکن ئې نۀ وو، او جهاد شروع کول خو تمکن او د پناه حاصلولو ځائے غواړي چه هغے ته انسان د جنګ په وخت کښې پناه وړي، او په مکه کښې د مسلمانانو دا قسم طاقت نۀ وو، نو ځکه الله ورته حکم د قتال نۀ کولو۔

پدے آيت کښې د قتال متعلق څلور امور دي۔ اول فرضيت د قتال په (قَاتِلُوْا) سره۔ دويم مقصد د قتال چه فِيْ سَبِيْلِ اللهِ دے۔ دريم اهل د قتال چه اَلَّذِيْنَ يُقَاتِلُوْنَكُمْ دي۔ څلورم آداب او شرطونه د قتال په (وَلَا تَعْتَدُوْا) سره۔

د عبد الله بن عباسؓ نه روايت دے چه دا آيتونه په حديبيه کښې نازل شوي وو، کله چه مشرکانو مؤمنانو لره د بيت الله نه منع کړل، او بيا صلح اُوشوه چه راتلونکي کال کښې به مکے معظمے ته د عُمرے دپاره صرف درے ورځو دپاره داخليږئ، نو مسلمانانو سره يره پيدا شوه چه که دوی په راتلونکي کال کښې مونږ سره بے لوظي اُوکړي او په حرم مکي او په مياشت د حُرمت کښې زمونږ سره قتال اُوکړي نو دا خو به زمونږ دپاره ګناه وي۔ نو الله تعالىٰ دا آيتونه نازل کړل۔ (القرطبيؒ)

نو د قتال دا حکم د حج او عمرے سره متعلق شو او دائے د مخکښې سره تړون او مناسبت هم شو۔

﴿وَقَاتِلُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللهِ﴾ **ربط** دا دے چه دا په مخکښې (وَاتَّقُوا اللهَ) باندے عطف دے، او مطلب دا دے چه د تقوىٰ په اقسامو کښې اشد ضروري او ډير اَهم شے قتال في سبيل الله دے۔ او د مضمون سره ئې مناسبت دا دے چه په مخکنو امورو کښې د قتال دپاره تياري وه نو اُوس ورته په قتال باندے امر کوي۔

(قَاتِلُوْا) لفظ په قرآن کريم کښې (۱۵) کرته راغلے دے۔

﴿فِيْ سَبِيْلِ اللهِ﴾ يعني د الله د دين د اُوچتولو دپاره۔ او دا د جهاد د اته مقصدونو نه يو مقصد دے۔ چه هغه مقاصد په فتاوى الدين الخالص (۹/۱٤۰) جلد کښې تفصيلا ذکر شويدي۔

او بل جهاد د مسلمانانو مظلومو د راخلاصولو دپاره دے۔ که ددے نه علاوه د رياء، شهرت، قوم پرستئ، غيرت خودلو، او د غنيمت او کرسئ حاصلولو په نيت وي نو دا هلاکت دے۔ ديته جهاد في سبيل الله نشي وئيلے۔

﴿اَلَّذِيْنَ يُقَاتِلُوْنَكُمْ﴾ دا قيد ئې ځکه اُولګولو چه کوم کافران د مسلمانانو سره جنګ نۀ کوي او په آرام ناست وي، نو د هغه سره جنګ نۀ وي۔ بلکه جزيه او ټيکس به ورکوي، زمونږ اسلام

جنگونہ نۂ غواړي، هغه غواړي چه کله کافران مقابله کوي۔ دا وجه ده چه اسلامي تاریخ اُوګوره، رسول الله ﷺ کله هم ابتدائي حمله نۂ ده کړې بلکه کفارو فساد کړې، نو رسول الله ﷺ ورسره بیا جنګ کړې، قریشو اول مسلمانان تنګول او اسلام ته ئې نۂ پریخودل، نو رسول الله ﷺ ورسره مقابله اُوکړه۔ دارنګه د مدینې یهودیانو سره ئې اول صلح اُوکړه خو کله چه هغوی صلح ماته کړه، نو رسول الله ﷺ ورسره جنګ اُوکړو۔ او کله چه د کفارو سره جنګ شروع شي، نو بیا په هره طریقه د هغوی وژل جائز وي، په پټه وي که په ښکاره۔

**فائده :** د جهاد څلور مراحل وو، (۱) اول : په مکه کښې دعوت او د مشرکانو د طرف نه په تکلیفونو باندې صبر کول۔ (۲) بیا د قتال اجازت او اباحت نازل شو۔ (۳) بیا څوك چه قتال کوي د هغوی سره د قتال کولو اجازت۔ (٤) څلورم : په ﴿وَقَاتِلُوا الْمُشْرِكِينَ كَافَّةً﴾ سره د ټولو کافرانو سره اقدامي جهاد شروع شو۔ نو دې آیت کښې دریمه مرحله ده۔

(فتاوی الدین الخالص بالتفصیل ۹/۱۰٤)۔

**فائده :** ﴿الَّذِينَ يُقَاتِلُونَكُمْ﴾ هغه کسانو ته هم شامل دې چه فی الحال د مسلمانانو سره جنګ کوي، یا په کښې د جنګ اهلیت وي یعنی ځوانان وي۔ نو کوم کسانو کښې چه د جنګ اهلیت نۂ وي نو هغوی سره به جنګ نشي کولې لکه زنانه، ماشومان، بوډاګان، البته کومه زنانه چه د کافرانو مشري کوي او د هغې نه ډیر فساد خوریږي۔

دارنګه کوم بوډاګان چه دوي ته مشورې ورکوي نو د هغوی سره به هم جنګ کولې شي او د هغوی وژل هم جائز دي۔

په ﴿الَّذِينَ يُقَاتِلُونَكُمْ﴾ کښې په جهاد کولو تیزي ورکول دي ځکه چه تاسو سره کفار جنګ کوي، ستاسو دین ختمول غواړي، نو تاسو به ورسره ولې جنګ نۂ کوئ حال دا چه تاسو په حقه یئ۔

﴿وَلَا تَعْتَدُوا﴾ إعتداء د حد نه تیروتو ته وائي۔ پدې کښې ټول ګناهونه داخل دي چه انسان جنګ ته اُووځي نو د الله او د هغه د رسول مخالفتونه به نۂ کوي۔ دارنګه بوډاګان، ماشومان، او زنانه قتل کول او پیران چه په ګوډونو کښې ناست وي جنګ نۂ کوي۔ یا څوك چه په جنګ کښې کلمه اُووائي او تسلیم شي، یا په غنیمت کښې غلول (خیانت) کول، یا د کفارو مُثله کول، دارنګه کورونه او مالونه سیزل، ونې پریکول، حیوانات وژل، په معاهده او صلح کښې دننه جنګ کول، دا ټول د حد نه تیروتل دي۔ البته که زنانه او ماشومان تبعاً اُووژلې شي نو جائز به وي مثلاً په یو کلي باندې د شپې حمله کیږي، په هغې کښې غیر اختیاري طریقې سره ماشومان اُولګي نو رسول الله ﷺ ددې اجازت ورکړیدې۔ او پدې معنیٰ سره دا آیت منسوخ نۂ دې۔ او که د

(لَاتَعْتَدُوْا) معنیٰ دا شی چه اول قتال مهٔ شروع کویٔ. نو بیا به دا آیت په آیت (فَاقْتُلُوا الْمُشْرِكِيْنَ) سره منسوخ وی. (بغوی).
لیکن راجح دا ده چه دا منسوخ نهٔ دے. او دریمه مرحله د قتال ده. اُوس هم په څلورو مراحلو عَمل کول شته خو کله چه ضرورت وی او موقعه او وخت ئے راشی.
﴿اِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ الْمُعْتَدِيْنَ﴾ محبت د الله تعالیٰ صفت دے او په خپله حقیقی معنیٰ دے، تاویل به پکښې نشی کیدے. د الله تعالیٰ او د مخلوق د محبت ترمینځ فرق دا دے چه د الله تعالیٰ دمحبت او نفرت کولو ترمینځ واسطه نهٔ وی. محبت کوی، که محبت نهٔ وی نو بیا بغض ساتی او عذابونه ورکوی او د مخلوق د محبت او بغض په مینځ کښې واسطه وی لکه یو انسان د چا سره نهٔ محبت ساتی او نهٔ بغض. نو دلته معنیٰ دا ده چه الله د زیاتے کونکو سره مینه نهٔ کوی او چه مینهٔ ئے اُونکړه نو بنده هلاك شو.

| وَاقْتُلُوْهُمْ حَيْثُ ثَقِفْتُمُوْهُمْ وَاَخْرِجُوْهُمْ مِّنْ حَيْثُ اَخْرَجُوْكُمْ وَالْفِتْنَةُ |
|---|
| او وژنئ دوی لره چرته چه اُوموموئ دوی لره او اُوباسئ دوی لره د هغه ځائے نه چه تاسو ئے ویستلی یئ، او شرك |
| اَشَدُّ مِنَ الْقَتْلِ وَلَا تُقٰتِلُوْهُمْ عِنْدَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ حَتّٰى يُقٰتِلُوْكُمْ |
| ډیر سخت دے د قتل نه او جنګ مهٔ کوئ د دوی سره د مسجد حرام په خوا کښې تردے چه هغوی جنګ شروع کړی |
| فِيْهِ فَاِنْ قٰتَلُوْكُمْ فَاقْتُلُوْهُمْ كَذٰلِكَ جَزَآءُ الْكٰفِرِيْنَ ﴿۱۹۱﴾ |
| تاسو سره په هغے کښې نو که هغوی درسره جنګ شروع کړی نو مړه کړئ دوی لره، دغسے بدله د کافرانو ده. |

**تفسیر**: پدے آیت کښې اُوس خاص د قریش کافرانو په قتلولو حکم کوی په دوه طریقو سره، یو په قتل د هغوی هر ځائے چه موندهٔ شی، دویم د هغوی د کورونو نه په ویستلو او شړلو سره. یعنی کوم خلق چه تاسو سره جنګ کوی، نو هغوی چه چرته موندهٔ کړئ، قتل ئے کړئ، او د کوم ښار نه ئے چه تاسو راویستلی یئ، تاسو ئے هم اُوباسئ، ځکه چه دوی تاسو سره ظلم جائز کنړلے دے، تاسو ئے په عذابونو کښې اخته کړی یئ، او د وطن نه ئے ویستلی یئ، او ستاسو په مال اوجائیداد ئے قبضه کړے، تاسو ئے په امتحاناتو کښې اچولی یئ، او د دین نه ستاسو اړول ئے خوښ کړی، دا جرمونه د قتل نه ډیر لوئی دی.
لیکن خیال ساتئ چه د مسجد حرام په خوا کښې دوی سره قتال اُونکړئ، آو، که دوی هلته

تاسو سره قتال شروع کړي، نو بيا د تيختے لاره مه اختياروئ، بلکه دوی قتل کړئ ځکه چه کافرانو ته دغه شان بدله ورکول پکار دی۔ او تاريخ گواه دے چه رسول الله ﷺ مکے ته د فاتح په حيثيت داخل شو او د مکے کومو مشرکانو چه اسلام قبول نکړو نو د هغوی د لوظ د مودے ختميدو نه روستو ئے هغوی د مکے نه اُوويستل او مسجد حرام ئے د بتانو او د مشرکانو نه پاك کړو او مسلمانانو هلته په عزت ژوند تيرول شروع کړل۔

﴿ وَاَخۡرِجُوۡهُمۡ ﴾ يعنی که په وژلو مو طاقت بر شی نو قتل ئے کړئ او که په ويستلو مو طاقت بر شی نو ويے باسئ۔

**فائده** : دا آيت دليل دے چه په دفاعی جهاد کښ هيڅ شرط نشته، کله چه کافرانو د مسلمانانو په ملك حمله کړی وی، نو د الله د عبادت دپاره د هغے آزادول ضروری دی، د مور او پلار اجازه هم ضروری نۀ ده۔ او امير وی او که نۀ۔

﴿ حَيۡثُ ثَقِفۡتُمُوۡهُمۡ ﴾ حيث : لفظ د عموم دپاره راغی يعنی په هر مکان او هر زمان کښ دوی وژلے شئ، که زمکه د حرم وی او که زمکه د حِل وی، د حرمت مياشت وی او که نۀ وی، ليکن روستو د مسجد حرام او د حرمت (احترام والا) مياشتو استثناء بيانوی چه پدے کښ به په قتال کولو ابتداء نشی کولے۔

ثقف : معنیٰ ده په هوښيارتيا او مضبوطيا سره يو شے لاندے کول او موندل۔

مفسرين ددے معنیٰ کوی : (حَيۡثُ تَمَكَّنۡتُمۡ مِنۡ قِتَالِهِمۡ) (ايسر التفاسير)

يعنی هر ځائے کښ چه ستاسو د هغوی په وژلو وَس بر شی نو قتل ئے کړئ، ځکه چه کله حربی کافر شو، بيا د هغه سره دا نشته چه دا عبادت خانه کښ ناست دے، او دا حج او عمرے ته روان دے۔ بلکه هرځائے کښ به وژلے شی۔

﴿ وَاَخۡرِجُوۡهُمۡ مِّنۡ حَيۡثُ اَخۡرَجُوۡكُمۡ ﴾ حيث : (۱) يا مکانيه دے يعنی د هغه علاقے نه ئے اُوباسئ، مراد ددے نه مکه ده اوددے نه مراد اگر که په هغه وخت کښ مکه وه، ليکن پدے کښ عموم هم مراد کيدے شی چه کافران مسلمانانو لره د کورونو او علاقو نه اُوباسی، نو بس مسلمانانو له هم پکار دی چه هغوی سره مقابله اُوکړی او خپل وطن ترے آزاد کړی۔ او دارنګه پدے کښ د الله تعالیٰ د طرف نه وعده ده چه الله به مؤمنانو ته بيرته مکه فتح کوی۔

(۲) يا حيث تعليليه دے، په معنیٰ د علت دے يعنی اُوباسئ دوی لره پدے وجه چه تاسو ئے د کورونو نه ويستلی يئ، نو پدے کښ مؤمنانو ته د کافرانو په ويستلو تيزی ورکول دی۔

﴿ وَالۡفِتۡنَةُ اَشَدُّ مِنَ الۡقَتۡلِ ﴾ ددے ډير معنے دی : (۱) [اَیۡ شِرۡكُهُمۡ اَشَدُّ مِنۡ قَتۡلِهِمۡ فِی الۡحَرَمِ وَالۡاِحۡرَامِ]

شرك د مشرکانو ډیر سخت دے د وژلو دوی نه په حرم او احرام کښې)۔
که دوی تهٔ په حرم او احرام کښې مړهٔ کړے، نو دے کښې دومره گناه نشته لکه دوی چه څومره شرك د الله تعالیٰ سره کوی۔ دا شرك ډیره سخته گناه ده، نو په هر ځائے کښې د مشرکانو وژل پکار دی۔ گویا کښې دا د (وَاقْتُلُوْهُمْ) دپاره علت دے۔ یعنی شرك د دوی د وژلو دپاره علت شو۔
(۲) یا د قتل نه مراد د مؤمن مرگ دے۔ یعنی شرك د مؤمن د مرگ نه هم سخت دے۔ که مؤمن اُووژلے شی خیر دے، خو چه شرك اُونشی، لهٰذا د دوی سره جنگ پکار دے چه د دوی شرك ختم شی۔
(۳) دریم د فتنے نه [اِفْتِنَانُ الْمُؤْمِنِ عَنْ دِیْنِهٖ] مراد دے یعنی د مؤمن گمراه کول او هغه د ایمان نه اړول ډیر سخت دی په هغه باندے د وژلو د هغه نه یعنی مؤمن ته دا ښهٔ ښکاری چه ما څوك مړ کړی خو چه گمراه مے نهٔ کړی۔
لکه په مکه کښې د مسلمانانو همدا حال وو۔ او دا کافران اُوس کوشش کوی او تاسو گمراه کوی، نو جنگ اُوکړئ، دے دپاره چه مؤمنان څوك گمراه نهٔ کړی۔
او پدے کښې اشاره ده چه د صحابه کرامؓ ایمان ډیر مضبوط دے او هغوی ته ډیر خوښ دے۔ او پدے دواړو معنو کښې د شرك لوئی قباحت دے چه که مسلمان مړ شی او که کافر نو خیر دے خو چه شرك نهٔ وی۔
(٤) یا د فتنے نه مراد عذاب دے یعنی عذاب د آخرت د مشرکانو دپاره سخت دے د وژلو د دوی نه په دنیا کښې۔ (اللباب)۔ لیکن مخکنی تفسیرونه ډیر غوره دی۔
﴿وَلَا تُقَاتِلُوْهُمْ عِنْدَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ﴾ اُوس وائی چه شرك ډیر غټ جرم دے، لیکن بیا به هم د حَرَم لحاظ کوئ، او ابتداء د جنگ به نهٔ کوئ، که هغوی جنگ شروع کړو نو بیا د هغے جوابی کاروائی کول جائز دی۔ او د کافرانو نه تختیدل نهٔ دی پکار۔
(عِنْدَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ) نه مراد ټول حرم مکی دے چه دا تقریباً اته څلویښت کیلو میټره دے۔ شمالی طرف ته ئے حد (تَنْعِیْم) دے چه د مکے نه (٦) کیلو میټره فاصله کښې دے۔ جنوبی طرف ته ئے (أَضَاة) دے چه ددے او د مکے ترمینځ (۱۲) کیلو میټره مسافت دے۔ او مشرقی طرف ته ئے (جِعِرَّانَه) حد دے چه ددے او د مکے ترمینځ (۱٦) کیلو میټره دی۔ او شمال مشرقی طرف ته ئے (وادی نَخْلَه) حد دے چه ددے او د مکے ترمینځ (۱٤) کیلو میټره فاصله ده۔ (فقه السنه ۱/٦۸۸) او دا حکم هر مسجد ته هم شامل دے۔
﴿فَاِنْ قٰتَلُوْكُمْ فَاقْتُلُوْهُمْ﴾ یعنی که دوی در سره جنگ کوی او اقدام درباندے اُوکړی، نو بیا ئے په

حرم کښې هم وژلے شئ. لکه ابن خطل د کعبے غلاف لاس کښې نيولے وو بيا هم رسول الله ﷺ د هغه په وژلو حکم اوکړو.

﴿كَذٰلِكَ جَزَاءُ الْكٰفِرِيْنَ﴾ (کذلك) دا اشاره ده قتـل ته يعنی د تولو کافرانو سزا قتل دے يعنی کفر کول د هغوی د قتل علت دے، او پدے کښې اشاره ده چه جهاد حسن لذاته شے دے ځکه چه پدے کښې تعظيم د الله تعالیٰ دے، چه د هغه د دين د خاطره د هغه دشمنان وژلے شی او پدے کښې تذليل د کفر دے.

| فَاِنِ انْتَهَوْا فَاِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۱۹۲﴾ |
|---|
| پس که دوی منع شو نو يقيناً الله ډير بخونکے، رحم کونکے دے. |

**تفسير**: پدے کښې کافرانو ته د شرك او کفر نه د توبے ويستلو ترغيب دے، يعنی که دوی د کفر او شرك نـه منع شو نو بيا ورسره جنگ مهٔ کوئ بلکه الله غفور رحيم دے، گناه ورته معاف کوی او بيا به ستاسو ورونه وی. نو د جنگ لائق به نهٔ وی.

او دلتـه صـرف د قتـال نه او د مسلمانانو د تکليف او فتنو کښې اچولو نه منع کيدل نهٔ دی مراد ځکـه صرف پـدے کـار سره دوی اهل د مغفرت او رحمت نهٔ گرځی. بلکه د شرك او کفر نه منع کيدل مقصد دے. (فی ظلال القرآن)

څـهٔ عـظيم بنائسته اسلام دے چه کافرو ته هم مغفرت او رحمت ښکاره کوی چه راشئ په اسلامی صفـونـو کښې داخل شئ نو تاسو ته د تشدد او ظلم قصاص معاف، ديت معاف، تاسو خلق وژلی دی، هر قسم تشدد هم کړے. دا تول معاف او د مغفرت او د رحمت په باران کښې داخل.

| وَقٰتِلُوْهُمْ حَتّٰى لَا تَكُوْنَ فِتْنَةٌ وَّيَكُوْنَ الدِّيْنُ لِلّٰهِ |
|---|
| او جنگ کوئ د دوی سره تردے چه پاتے نهٔ شی شرك (يا فساد) او شی دين تول الله لره |
| فَاِنِ انْتَهَوْا فَلَا عُدْوَانَ اِلَّا عَلَى الظّٰلِمِيْنَ ﴿۱۹۳﴾ |
| نو که دوی منع شو (د قتال نه) نو نشته زياتے کول مگر په ظالمانو. |

**تفسير**: پدے آيت کښې د قتال بل مقصد ذکر کوی چه د فتنے او فساد او ظلم ختميدل راشی او صرف د الله بندگی شروع شی او مؤمن د آز ميښتونو نه خلاص شی.

﴿وَقٰتِلُوْهُمْ حَتّٰى لَا تَكُوْنَ فِتْنَةٌ﴾ (۱) د فتـنے نـه مراد شرك او کفر دے يعنی قتال به تر هغه وختـه

پورے کوئ چه په دنیا کښې شرك او کفر پاتے نۀ شی او شرك او کفر خو به تر قیامته پورے وی، نو جهاد او قتال به هم تر قیامته پورے جاری وی۔

دنیا د الله ده، بندګان د هغه دی، او عبادت د بل چا کیږی دا هیڅرے نشی کیدے!!۔ بیا الله تعالیٰ داسے کولے شو چه مشرکان او کفار خپله تباه کړی لیکن په مسلمانانو باندے امتحان دے چه تاسو د الله تعالیٰ دین قبول کړے او جنت غواړئ، نو ددے شرك ختمول ستاسو په ذمه دی۔ نو ترڅو چه مسلمانان باقی وی، جهاد به باقی وی۔

(۲) دویم : فتنه [اِفْتِتَانُ الْمُؤْمِنِ عَنْ دِیْنِهٖ] (مؤمن د دین او ایمان نه اړولو) نه وائی یعنی جنګ تر هغۀ وخت پورے کوئ چه مؤمن لره د دین نه اړول او مرتد کول ختم شی، مسلمان ته پکښې دینی تکلیف نۀ وی، کنځل، وهل تکول، مسخرے کول او د کورونو او مالونو نه ویستل نۀ وی، څوك ئے شرك ته نۀ دعوت کوی او په زوره پرے شرك نۀ کوی او غلبه د اسلام راشی۔ اګرکه په پټه کفر او شرك ډیر وی خو غلبه او بالادستی به د اسلام وی۔ او د هغوی نه به جزیه او ټیکس اخستے شی۔

او د مکے کفارو او مشرکانو به مسلمانان په زوره په خپل شرك او کفر کښې داخلول، او که چا به نۀ منله، نو هغوی له به ئے عذابونه ورکول تردے چه ډیر صحابه کرامؓ حبشو ته او بیا مدینے طیبے ته په هجرت باندے مجبور شو۔

امام بخاریؒ په کتاب التفسیر سورة الانفال کښې د ابن عمر رضی الله عنهما نه روایت کوی چه مونږ قتال د رسول الله ﷺ په زمانه کښې کړیدے چه مسلمانان لږ وو او سړے به د دین نه په زوره اړولے شو، یا به ئے وژلو یا به ئے تړلو تردے چه مسلمانان زیات شول نو فتنه پاتے نشوه۔

(بخاری : ۴۲۷۳)۔

علامه جمال الدین قاسمیؒ معنیٰ کوی : [اَیْ تَقْوٰی بِسَبَبِهٖ یَفْتِنُوْنَ النَّاسَ عَنْ دِیْنِهِمْ] یعنی کافرو سره تر هغه وخته پورے جنګ کوئ چه داسے طاقت د کافرو پاتے نۀ شی چه د هغے په سبب دوی مسلمانان د خپل دین نه واړوی)۔

﴿وَیَکُوْنَ الدِّیْنُ لِلّٰهِ﴾ الدین په معنیٰ د طاعت او عبادت سره دے، یعنی ټول عبادتونه او طاعتونه د الله دپاره۔ او د دین معنیٰ بلنه او آواز هم دے یعنی آوازونه او عظمت او کبریاء صرف د الله تعالیٰ دپاره وی۔ او نظام او قانون دے د الله تعالیٰ دپاره وی۔

دا څومره لوئی نقصان دے چه بندګان دے د الله وی او عبادت او طاعت او قانون او نظام دے د بل چا چلیږی او مسلمانان دے هم ژوندی وی!!۔

﴿ فَاِنِ انْتَهَوْا فَلَا عُدْوَانَ اِلَّا عَلَى الظّٰلِمِیْنَ ﴾ یعنی که منع شو په توبه ویستلو سره د شرك او کفر نه، یا د جنگ نه منع شو په جزیه قبلولو سره، نو بیا به ورسره جنگ نهٔ کوئ صرف جنگ به د هغه چا سره وی چه هغه ظالم وی۔ او نهٔ منع کیږی، ځکه چه جهاد ظلم او ظالمینو ته متوجه کولے شی۔ او د ظلم د ختمولو دپاره کولے شی۔

ذکر د (عدوان) د مشاکلت د وجه نه دے، ورنه دا بدله د ظلم او زیاتی ده۔ ځکه د شریعت امر سراسر عدل او انصاف دے۔ د ظالمین نه مراد عکرمة وائی : [مَنْ اَبٰی اَنْ یَّقُوْلَ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ] (زبدة التفسیر) یعنی هغهٔ څوك چه د توحید کلمے وئیلو نه انکار کوی۔

(۲) [فَلَا قِتَالَ اِلَّا عَلَى الَّذِیْنَ یَرْجِعُوْنَ اِلَى الْكُفْرِ وَیَنْقُضُوْنَ الْعَهْدَ اَوِ الَّذِیْنَ اسْتَمَرُّوْا عَلَى الْكُفْرِ فَمَا یَنْتَهُوْنَ] ...... (تعلیق صحیح البخاری للدکتور مصطفی دیب البغا)

(یعنی جنگ به نهٔ وی مگر هغه کسانو سره به وی چه کفر ته واپس کیږی او لوظونه ماتوی، یا هغه کسانو سره چه په کفر باندے همیش والے کوی او نهٔ منع کیږی)۔

د عدوان معنیٰ دلته د اقدام کولو هم ده۔ یعنی اقدام به صرف د ظالمانو په خلاف کیږی۔ (تدبر)

**فائده** : بیا د ظالم او کافر توبه دوه قسمه ده : (۱) یو دا چه اصالةً کافر وی نو دا که په جنگ کښ توبه اُوباسی او د تورے لاندے راغلو نو هم دهٔ توبه قبوله ده۔ اگرکه تهٔ ئے زخمی کړے ئے، ضرر ئے درکړے۔ لکه انگریزان او نور کافران۔ واقعه د اسامةؓ او واقعه د خالد بن ولیدؓ پرے دلیل دے۔ (۲) دویم هغه کلمه گو کافر دے چه په خوله کلمه وائی لیکن په زړهٔ کښ کافر وی، یعنی منافق وی نو دا به په هر حالت کښ وژلے شی۔

(۳) او که یو انسان (العیاذ بالله) د اسلام نه مرتد شی نو دا که په خپله خوښه اسلام ته راځی، توبه ئے قبوله ده، لیکن که د تورے لاندے راغلو او د اسلام دعوه کوی، نو توبه به ئے قبوله نهٔ وی، او پدے حالت کښ دهٔ مرگ جائز دے۔ او همدا طریقه د دهریه ؤ او کمیونستو هم ده۔ او همدا ئے حکم دے۔

| اَلشَّهْرُ الْحَرَامُ بِالشَّهْرِ الْحَرَامِ وَالْحُرُمٰتُ قِصَاصٌ فَمَنِ اعْتَدٰى |
| --- |
| میاشت عزتمنه په بدل د میاشت عزتمنه کښ ده او ټول عزتونه بدلے والا دی، نو چا چه زیاتے اُوکړو |
| عَلَيْكُمْ فَاعْتَدُوْا عَلَيْهِ بِمِثْلِ مَا اعْتَدٰى عَلَيْكُمْ |
| په تاسو نو تاسو هم زیاتے اُوکړئ په هغه باندے په شان د هغے چه زیاتے ئے کړے دے په تاسو۔ |

وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ مَعَ الْمُتَّقِيْنَ ﴿۱۹٤﴾

او اُویریږئ د الله نه او پو هه شئ چه یقیناً الله ملګرے د متقیانو دے۔

**تفسیر** : په دے آیت کښې دا ادب بیانوی چه کله تاسو سره څوك په عزتمنه میاشت کښې جنګ شروع کوی، نو تاسو له هم د هغوی سره جنګ کول جائز دی، ځکه ظلم او تعدی هغوی کړیده۔ او دا د مخکښې حکم [حَيْثُ ثَقِفْتُمُوْهُمْ] نه استثناء ده یعنی هر وخت کښې ورسره جنګ شروع کولے شئ، لیکن په عزتمنه میاشت کښې به ابتداء د جنګ نهٔ کوئ۔ او جوابی کاروائی پکښې جائز ده۔

په اسلام کښې عزتمنے میاشتے څلور دی (رجب، ذی قعده، ذی الحجه، محرم)۔

**مسئله** : آیا ددے څلورو میاشتو عزت اُوس باقی دے او که منسوخ دے؟، قتال پکښې جائز دے او که نهٔ ؟ (۱) مشهور قول دا دے چه دا حکم په ابتداء د اسلام کښې وو، او بیا منسوخ شو ځکه چه رسول الله ﷺ په عزتمنو میاشتو کښې هم صحابه کرامؓ جنګونو ته لیږلی دی۔ او خپله ئے اهل طائف څلویښت ورځے په ذی القعده میاشت کښې محاصره کړی وو۔

○ دارنګه آیت د سورة براءت کښې ئے څلور میاشتے د حرمت ذکر کړی او بیا ئے وئیلی دی : ﴿فَلَا تَظْلِمُوْا فِيْهِنَّ اَنْفُسَكُمْ وَقَاتِلُوا الْمُشْرِكِيْنَ كَآفَّةً﴾ یعنی مشرکان ټول وژنئ نو پدے څلورو میاشتو کښې ئے د مشرکانو د وژلو استثناء اُونکړه۔

(۲) دویم قول دا دے چه ددے میاشتو عزت اُوس هم باقی دے، پدے کښې نیك عمل ډیر اجر لری، او ګناه کول سخته سزا لری، او پدے کښې قتال ابتداءً کول ناروا دی۔ او که د کافرو حملے شروع وے نو بیا قتال پکښې جائز دے۔ او دلیل دا دے چه روستو آیت کښې راځی (يَسْئَلُوْنَكَ عَنِ الشَّهْرِ الْحَرَامِ قِتَالٍ فِيْهِ) او هغه څو منسوخ نهٔ دے۔

○ دارنګه نبی ﷺ د خپل وفات نه اتیا ورځے مخکښې په مِنیٰ او عرفات کښې په خطبه کښې اُوفرمایل :[فَاِنَّ دِمَآئَكُمْ وَاَمْوَالَكُمْ – وَاَعْرَاضَكُمْ – عَلَيْكُمْ حَرَامٌ كَحُرْمَةِ يَوْمِكُمْ هٰذَا فِيْ شَهْرِكُمْ هٰذَا] (صحیح البخاری کتاب العلم رقم ۱۰۵) (ستاسو وینے په تاسو باندے داسے حرامے دی لکه ددے ورځے د احترام په شان پدے میاشت (ذی الحجه) کښې)۔

معلومه شوه چه ددے حرمت د قیامت د ورځے پورے باقی دے۔ او هرچه آیت د سورة براءة دے نو ممکنه ده چه دا مستقل حکم وی او د مخکښې سره مربوط نهٔ وی۔ یعنی کله چه کافران ستاسو په قتال راجمع کیږی نو تاسو هم ورته راجمع شئ۔

○ یا دا چه دا محمول دے په ابتدائی قتال شروع کولو باندے او کله چه د مشرکانو د طرف نه قتال شروع شو، نو بیا پدے میاشت کښ هم قتال جائز دے لکه د طائف محاصره هم دغه شان وه۔ (تفسیر ابن کثیر)

او د دلیل په اعتبار سره همدا قول راجح دے۔

**شان نزول:** دا آیت د صلح حدیبیه په واقعه کښ نازل شوے چه هرکله کافرانو د مسلمانانو مخه اُونیوله، او مکے ته ئے د داخلیدو نه منع کړل، او پدے کښ د عثمان رضی الله عنه د مرګ خبر راغلو، نو رسول الله ﷺ او مسلمانانو د هغوی د جنګ اراده اُوکړه، بیا ئے خیال راغلو چه دا خو د عزت په میاشت (ذی القعده) کښ مونږ د جنګ اراده اُوکړه او دا خو حرام کار دے۔ (الطبری) یا دا چه مشرکانو پرے اعتراض اُوکړو۔

○ مشهور روایت دا دے چه په صلح حُدیبیه کښ د مسلمانانو سره یره پیدا شوے وه چه آینده کال په دغه میاشت (ذی القعده) کښ که مشرکان مونږ سره جنګ اُوکړی، نو څهٔ به کوو ؟۔ (هسے نه چه د عزتمنے میاشتے او د مسجد حرام تقدس خراب نشی)۔

نو دا آیت نازل شو چه خیر دے کله چه کافران تاسو سره په عزتمنه میاشت کښ جنګ کوی نو تاسو هم ورسره پدے میاشت کښ جنګ کولے شئ۔ او د عزتمنے میاشتے رعایت د هغه چا سره واجب دے چه د عزتمنے میاشتے رعایت کوی، او څوك چه د دے میاشتے د حرمت خیال نهٔ کوی نو د هغوی سره د دے میاشتے د حرمت خیال نهٔ ساتلے کیږی۔ نو پدے قول سره به معنیٰ دا وی : [حُرْمَةُ الشَّهْرِ الْحَرَام بِعِوَضِ حُرْمَةِ الشَّهْرِ الْحَرَام] یعنی د عزتمنے میاشتے د عزت خیال ساتل په مقابله د عزت د عزتمنه میاشت کښ دے)۔ یعنی که هغوی ئے د عزت خیال ساتی نو تاسو ئے هم ساتئ، او که هغوی په قتال کولو سره د دے خیال نهٔ ساتی نو تاسو لره هم قتال جائز دے۔

(۲) بعض مفسرین پکښ داسے تفسیر کوی چه کله د هجرت په شپږم کال کښ د مکے مشرکانو د ذی القعدے په میاشت کښ صحابه کرامؓ د عُمرے نه منع کړل، نو په اُووم کال په همدغه میاشت کښ مسلمانانو عُمره اُوکړه ځکه چه کفارو ورسره صلح او معاهده کړے وه، نو دا آیت د تسلیٔ په طور نازل شو چه اے نبی او اے ایمان والوا مهٔ خفه کیږئ دا میاشت په مقابله د هغه میاشت کښ شوه چه پروسه کال تاسو پکښ د عمرے نه منع شوی وئ۔ (البغوی والطبری)

لیکن اول قول غوره دے۔

﴿ وَالْحُرُمٰتُ قِصَاصٌ ﴾ دا اُوس عام کلی حکم بیانوی او دا د مخکښ حکم دپاره دلیل دے۔

قِصَاص معنیٰ : برابر۔ یعنی ټول عزتونه برابر دی په بدله کښ۔ یا دلته مضاف (ذات) لفظ پټ

دے أَیْ ذَاتُ قِصَاصٍ ۔ یعنی عزتونه بدلے والا دی۔ یعنی که ستا عزت چا واخستو، ته ئے هم ترے اخستلے شے۔ او حرمات ئے جمع راوړه، اشاره ده حرمت او عزت د احرام، عزت د بلد (حرم)، عزت د مال، عزت د نفس تولو ته یعنی که چا دا عزتونه مات کړل نو ته هم د هغے بدله اخستے شے۔ لهذا دا به مستقل حکم شي۔

(۲) یا دا د مخکنی حکم سره متعلق دے او د حرمات نه د میاشتے حرمت مراد دے، او جمع ئے راوړیده د وجے د حرمت د میاشتے، حرمت د مکے مکرمے او حرمت د احرام وغیره نه یعنی هغه عزتونه د مؤمنانو چه مشرکانو په شپږم کال د هجرت کښ ضائع کړل نو د هغے پوره بدله په اُوم کال د مؤمنانو په عمره کولو سره ادا شوه۔ (احسن الکلام)

﴿ فَاعْتَدُوا عَلَيْهِ بِمِثْلِ مَا اعْتَدَىٰ عَلَيْكُمْ ﴾ د فَاعْتَدُوا معنیٰ ده (فَعَاقِبُوا) یعنی په تاسو باندے چا زیاتے اُوکړو نو د هغه زیاتی بدله ترے واخلئ۔ او اخستے شئ۔ یا په خپله که ممکن وی، یا د حاکم په ذریعه۔ (تفسیر القرطبی)۔

او په سورة النحل (۱۲۶) آیت کښ ورسره دا دي چه که صبر کوئ نو دا ډیر غوره دے نو هغه په باب د دعوت کښ دے او دا په باب د قتال کښ دے۔

د مثل نه په اتفاق د علماؤ سره دلته دا معنیٰ نۀ ده مراد چه کافر یو مسلمان لره قتل کړی نو تۀ به صرف یو کافر وژنے۔ نۀ، بلکه د کافرانو خو ډیر زیات وژل پکار دی۔ دلته د مثل معنیٰ دا ده چه که هغوی د یوتن مُثله کړی وی (غوږ، پوزه او اندامونه ئے پریکړی وی) نو تۀ هم د هغوی نه په یوتن کښ دغه شان کار کولے شے۔ او که هغوی د ډیرو کړی وی نو تۀ ئے هم د ډیرو نه کولے شے۔ دارنګه که هغوی په هر وخت کښ کړے وی، نو تۀ هم په هر وخت کښ کولے شے۔ اګرکه میاشت د حرمت وی۔ نو مثلیت نه په مقدار (اندازه) او زمانه کښ مثلیت مراد دے۔

○ تفسیر قرطبیؒ لیکی: چه مثلیت دا هم دے چه تا نه څوک په زور او ظلم سره مال واخلی، نو تۀ هم ترے خپل حق اخستے شے، یا څوک ستا پیاله ماته کړی نو تۀ هم د هغه پیاله ماتولے شے۔ یا ترے د هغے مثل (عوض) اخستے شے۔ دارنګه که هغه تا ته کنځل اُوکړی یا ستا بے عزتی اُوکړی نو تۀ هم هغه سره دغه شان کولے شے، خو تعدی به نۀ کوے چه د هغه مور او پلار وغیره ته کنځل اُوکړے او د هغوی بے عزتی شروع کړے۔ آه۔ او دا کار تقویٰ ته سپارلے شویدے ځکه روستو په تقویٰ امر کوی۔

او دیته ئے اعتداء د مشاکلت او مقابلے د وجه نه اُووئیله یعنی بدله د زیاتی ده او په خپله دا زیاتے نۀ دے۔ لکه دا په شان ددے آیت دے۔ ﴿ وَجَزَاءُ سَيِّئَةٍ سَيِّئَةٌ مِثْلُهَا ﴾

(بدله د بدئ بدی ده د هغې په شان)۔ (الشوری: ٤٠)

﴿وَاتَّقُوا اللهَ﴾ (۱) دلته د تقوئ نه مراد دا دے چه د بدلے اخستو په وخت کښې ځان د تجاوز نه بچ کړئ ځکه چه انسان غصه وی نو د هغه نه کله تجاوز کیږی۔ (کشاف)

(۲) یا د الله نه یره اُوکړئ په بے عزتی کولو د عزتمنې میاشتے او مسجد او حرم کښې بغیر د بے عزتی کولو د هغوی نه۔ (قاسمی)

(۳) ابن کثیرؒ وائی: دا امر دے په طاعت کولو د احکامو د الله تعالیٰ باندے۔ او روستو فائده د تقوئ بیانوی چه هغه د الله ملګرتیا ده۔

﴿وَاعْلَمُوْا اَنَّ اللهَ مَعَ الْمُتَّقِيْنَ﴾ پدے کښې اشاره ده چه مؤمن او متقی به په حالت د جنګونو او بدلو اخستلو کښې د الله تعالیٰ د حکمونو تابع وی، نو هله به د هغهٔ سره د الله تعالیٰ معیت (ملګرتیا) او نصرت او مدد راځی۔

**فائده**: الله تعالیٰ داسے نهٔ دی وئیلی (وَاعْلَمُوْا اَنَّ اللهَ مَعَ الْمُقَاتِلِيْنَ ۔(چه الله د جنګ کونکو سره دے) بلکه مَعَ الْمُتَّقِين ئے وئیلی دی۔ یعنی نفس قتال سبب د معیت د الله تعالیٰ نهٔ دے، بلکه د تقوئ سره د الله تعالیٰ مدد او ملګرتیا ده۔

| وَاَنْفِقُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللهِ وَلَا تُلْقُوْا بِاَيْدِيْكُمْ اِلَى التَّهْلُكَةِ |
|---|
| او مال اُولګوئ په لار د الله کښې او مهٔ غورزوئ (خپل ځانونه) په خپلو لاسونو هلاکت ته |
| وَاَحْسِنُوْا اِنَّ اللهَ يُحِبُّ الْمُحْسِنِيْنَ ﴿۱۹۵﴾ |
| او نیک عملونه کوئ یقیناً الله مینه کوی د نیک عمل کونکو سره۔ |

**تفسیر**: اُوس انفاق ته ترغیب ورکوی، اګرکه د انفاق ذکر پدے سورت کښې روستو تفصیلًا راځی، لیکن دلته د جهاد متعلق دے ځکه چه جهاد کښې د مال لګولو ډیر ضرورت وی، بلکه بغیر د مال نه جهاد ممکن نهٔ دے ۔نو پدے وجه هر ځائے د جهاد سره انفاق ذکر کیږی۔ او انفاق د مؤمن صفت دے عامو اوقاتو کښې به هم مال لګوی۔ نو مخکښې امر په قتال اُوشو او دشمنان خو د سامان جنګ په لحاظ زیات وو نو اُوس د جهاد دپاره د مالونو په انفاق سره د تیارئ حکم کوی۔ (ابن عاشور)۔

﴿وَاَنْفِقُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللهِ﴾ (۱) د فی سبیل الله نه مراد جهاد دے۔

(۲) یا د الله رضا ده۔ ځکه حدیث کښې دی: ((هر شے چه بنده د الله تعالیٰ د رضا دپاره لګوی په

هغې باندې اجر ملاويږي. مګر هغه نفقه چه په خاورو کښې ئې لګوي».
(صحيح ابن حبان ۷/۲۶۵ ح ۲۹۹۹) ...... يعنې بې ضرورته آباديانې کوي.
نو دلته صدقات، زکاتونه او خپلو خپلوانو سره احسان، او ميلمستيا ورکول مراد دي.
﴿وَلَا تُلۡقُوا۟ بِأَيۡدِيكُمۡ إِلَى ٱلتَّهۡلُكَةِ﴾ ددې معنی دا نۀ ده چه جهاد ته يو سړې ورځي او په کافرو فدائي حمله کوي او د کافرانو مينځ ته ورننوزي، دا کښې ځان هلاکول دي، ځکه چه د مسلمان مرګ هم يو نوع فتح وي لکه واقعه د عبد الله بن تامر پرې دليل دې.

## هلاکت ته د ځان غورځولو مطلبونه

(۱) بلکه ددې معنیٰ هغه ده کومه چه ترمذي کښې راغلې ده چه هغه (ترك الجهاد) دې يعنې چه جهاد پريدی نو بس ځان ئې هلاك کړو. (۲) يا [بِجَمۡعِ الۡمَالِ] د مال په جمع کولو او کورونو کښې پاتې کيدل). لکه دا په حديث د ابو ايوب انصاريؓ کښې راغلې ده چه د هغه په زمانه کښې يو سړي د مهاجرينو نه د قسطنطينيه په جنګ کښې د کافرانو په صفونو باندې يواځې حمله اُوکړه تردې چه هغه ئې څيرې کړل (اوبل طرف ته واوړيدو) نو خلقو اُووئيل : ځان ئې هلاکت ته ګوزار کړو. نو ابوايوب انصاري ﷛ اُوفرمايل : اې خلقو مونږ پدې آيت ښۀ پوهيږو او دا زمونږ په باره کښې نازل شويدې، مونږ د رسول الله ﷺ سره ملګري شو او د هغه سره معرکو او جنګونو ته حاضر شو، نو کله چه اسلام خور شو، مونږ انصار راجمع شو او دا مو اُووئيل چه الله تعالیٰ اسلام غالب کړو او ابتداء کښې مونږ د اسلام د غلبې دپاره د خپل اهل او مال نه تير وو، نو اُوس به مونږ واپس لاړ شو او د خپل اهل سره به کينو او د خپلو مالونو حفاظت به کوو، نو الله تعالیٰ زمونږ په باره کښې دا آيت نازل کړو. نو د تهلُکه (هلاکت) نه مراد په خپل اهل او مال کښې اُوسيدل او جهاد پريخودل دي. (ابوداود والترمذي) (ابن کثير).

(۳) ...... [اَلۡقُنُوۡطُ عَنِ التَّوۡبَةِ وَعَنۡ رَحۡمَةِ اللّٰهِ] يعنې د توبې او د الله د رحمت نه نا اُميده کيدل، انسان ګناه کوي او بيا وائي زۀ هلاك شوم، زما توبه نۀ شته، بس ګناهونو کښې ننوزي. (ابن سيرين وعبيدة السلماني) (السراج المنير وابن جرير الطبري).

(٤) ...... يا د يوې ګناه دپاسه بله ګناه کول او توبه او استغفار نۀ کول. (احسن البيان)

(٥) ...... [اِقۡتِحَامُ الۡاَخۡطَارِ] د جهاد نه علاوه ځان داسې ځائې ته بوتلل چه هغه خطري وي، او ځان پکښې انسان هلاك کړي لکه لامبو نۀ ورځي او درياب ته دانګي، دا ناروا ده او هرچه جهاد دې نو مينځ د کافرو ته ورتلل ناروا نۀ دي بلکه هغه دين دې.

(٦) ...... بخاريؒ کښې راځي حذيفه ﷛ فرمائي : دا آيت د نفقې په باره کښې نازل شوې) يعنې

هلاکت دا دے چه انسان د الله په لار (جهاد) کښې نفقه نهٔ کوی۔ (بخاری: ٤٥١٦)
نو پدے کښې په نفقه کولو سره سخته تیزی ورکول دی، اګرکه د یو غشی په مقدار وی۔ لکه دا خبره د ابن عباسؓ نه نقل ده۔ (ابن جریر الطبری)۔
(۷) – د عکرمهؒ وغیره نه نقل دی چه ددے نه مراد د حرامو نه انفاق کول دی چه هغه په انسان بیرته رد شی نو هلاك به شیٔ۔ (قرطبی، بحر العلوم للسمرقندی)۔
او دآیت الفاظ عام دی، لهٰذا دا ټول مطلبونه پدے کښې صحیح دی۔
بیا (لَا تُلْقُوْا بِاَيْدِيْكُمْ اِلَى التَّهْلُكَةِ) په عربیٔ کښې هلاکت ته د خان سپارلو دپاره متل دے یعنی خانونه هلاکت ته مهٔ تسلیمویٔ او مهٔ سپاریٔ۔ بعض وائی: د لَا تُلْقُوْا دپاره مفعول پټ دے یعنی [لَاتُلْقُوْا اَنْفُسَكُمْ بِاَيْدِيْكُمْ]۔ (نفسونه په خپلو لاسونو هلاکت ته مهٔ غورزویٔ)
○ مبردؒ وائی: ذکر د ید دے، مراد ترے نه نفس دے یعنی لَا تُلْقُوْا اَنْفُسَكُمْ او باء د تاکید دپاره زائده ده، او دا قول ابن عاشورؒ غوره کړیدے ځکه چه پدے کښې تاکید زیات دے چه هلاکت ئے په منزلـه د نیونکی د لاس دے او هلاکونکے په شان د لاس ورکونکی دے هلاکت لره۔ یعنی ګویا کښې دهٔ خپل لاس هلاکت له ورکړو او هلاکت ورله لاس اُونیولو۔
مخکښې خاص احسان ذکر وو چه هغه د الله تعالیٰ په لار کښې مال لګول وو، اُوس په عام احسان باندے حکم کوی:
﴿وَاَحْسِنُوْا﴾ (نیکی کویٔ)۔ دا احسان او نیکی ټولو اقسامو د احسان ته شامله ده (۱) که په مال او انفاق کښې وی (۲) او که جاه او مرتبے سره وی۔
(۳) که په امر بالمعروف او نهی عن المنکر سره وی۔ (٤) په تعلیم د عِلم نافع سره وی۔
(۵) د مسلمانانو د حاجتونو په پوره کولو سره وی۔ او د هغوی نه په تکلیفونو او سختو لرے کولو سره وی۔ (٦) ...... د بیمارانو په تپوس کولو سره۔ (۷) په جنازو ته حاضریدو سره وی۔
(۸) ...... او که په اداء الفرائض والطاعات سره وی، یعنی ښائسته طریقے سره عبادتونه او فرائض اداء کویٔ۔ [اَنْ تَعْبُدَ اللّٰهَ كَاَنَّكَ تَرَاهُ]۔
(۹) او په الله باندے ښائسته ګمان کویٔ چه الله به په دنیا او آخرت کښې د انفاق بدله درکوی۔
(۱۰) یا احسان دا دے چه په لګولو کښې نهٔ کموالے اُوکړے شی او نهٔ اسراف۔ (فتح البیان ۱/۳٦۲)۔
(۱۱) ...... یا د احسان نه په جهاد کښې انفاق کول مراد دی او د تهلکه نه مراد جهاد ته بغیر د توخے نه تلل دی۔ (ابن عاشورؒ)۔
بیا احسان (۱) یو د مخلوق سره وی لکه مال لګول او هر قسمه احسان کول او هغه معلوم

دي۔ (۲) دويم د الله سره نيکي او احسان کول دي، او هغه اداء د فرائضو او عباداتو ده پداسې طريقه چه گويا کښې انسان الله تعالىٰ ته گوري يا دا يقين کوي چه الله ما ته گوري۔ او دا د ايمان اُوچته درجه ده۔ مجاهد له داسې مرتبې ته رسيدل پکار دي۔ دې دپاره چه مددونه او نصرتونه د الله ورسره شامل وي۔

| وَاَتِمُّوا الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ لِلّٰهِ فَاِنْ اُحْصِرْتُمْ |
| --- |
| او پوره کړئ حج او عمره د الله دپاره نو که چرته تاسو بند کړے شوئ (د پوره کولو د هغې نه) |
| فَمَا اسْتَيْسَرَ مِنَ الْهَدْيِ وَلَا تَحْلِقُوْا رُءُوْسَكُمْ حَتّٰى يَبْلُغَ الْهَدْيُ |
| نو لازم دي په تاسو هغه چه آسان وي د هدې (قرباني) نه او مه خريوئ سرونه خپل تردې چه اُورسيږي قرباني |
| مَحِلَّهٗ فَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ مَّرِيْضًا اَوْبِهٖٓ اَذًى مِّنْ رَّاْسِهٖ |
| ځائې د حلالولو د هغې ته، نو هغه څوك وي ستاسو نه ناجوړه يا په هغه باندې تکليف وي د هغه د سر د وجې نه۔ |
| فَفِدْيَةٌ مِّنْ صِيَامٍ اَوْصَدَقَةٍ اَوْنُسُكٍ |
| نو لازم ده په هغه باندې فديه (بدله) ورکول د (درې) روژو يا صدقه (د شپږ مسکينانو) يا قرباني (د يَو گډ) |
| فَاِذَآ اَمِنْتُمْ فَمَنْ تَمَتَّعَ بِالْعُمْرَةِ اِلَى الْحَجِّ فَمَا اسْتَيْسَرَ |
| نو کله چه تاسو په امن شئ نو چا چه فائده واخسته په عمره کولو د حج سره (يو ځائې) نو لازم دي په دهٔ باندې هغه چه آسان وي |
| مِنَ الْهَدْيِ فَمَنْ لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ ثَلٰثَةِ اَيَّامٍ فِي الْحَجِّ |
| د قرباني نه پس که چا (قرباني) نهٔ موندله، نو (په دهٔ) روژې نيول دي درې ورځې د حج په ورځو کښې۔ |
| وَسَبْعَةٍ اِذَا رَجَعْتُمْ تِلْكَ عَشَرَةٌ كَامِلَةٌ ذٰلِكَ لِمَنْ لَّمْ يَكُنْ اَهْلُهٗ حَاضِرِي |
| او اُووه ورځې کله چه تاسو واپس شئ (کورته)، دا لس (روژې) دي پوره (ثواب والا)، دا حکم د هغه چا دپاره دې |
| الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ ﴿۱۹۶﴾ |
| چه نهٔ وي کوروالا د هغه اُوسيدونکي په مسجد حرام کښې، او اُويريږئ د الله نه او پوهه شئ چه يقيناً الله سخت عذاب والا دې۔ |

**تفسیر** : اُوس د حج مسائل راوړی تر (۲۰۳) آیت پورې. څکه مخکښې د میاشتې تذکره اُوشوه، نو اُوس د حج متعلقات بیانوی او جهاد سره ئې نزدې راوړو څکه چه حج یو قسم جهاد دې. او بله دا چه مشرکانو سره جګړه وه او هغوی د الله تعالیٰ حرم په لاس کښې نیولې وو، مسلمانانو ته ئې ورته نهٔ پریخودل، نو الله تعالیٰ فرمائی چه جهاد به ورسره کوئ او کله چه حج له تلئ او دوی مو منع کوی نو څهٔ به کوئ؟ هغه احکام راوړی.

بله وجه دا ده چه سورة البقرة فسطاط القرآن (د قرآن کریم خیمه) ده، دې کښې د دین تول احکام بیانیږی. نو دا یو بل قانون دې د حج متعلق، خو د حج تول احکام ئې نهٔ دی راوړی بلکه صرف هغه احکام ئې راوړی چه مشرکانو په کښې غلط رواجونه جوړ کړی وو.

نو الله تعالیٰ د دغه رواجونو رد کړیدې. او عام احکام د حج او عمرې په احادیثو کښې تفصیلاً ذکر شویدی.

دلته ئې صرف پنځه لوئی احکام راوړی دی، او په آخره کښې ئې درې قسمه خلق بیان کړیدی، دوه نیك بخت او دوه بد بخت. او دا اقسام د حاجیانو او غیر حاجیانو دی. بیا جهاد ته ترغیب دې په داخلیدو په اسلام کښې تول په توله . سره د تخویف نه د هغه چا دپاره چه د الله تعالیٰ په دین کښې پوره نهٔ داخلیږی په (۲۱۰) آیت کښې.

عائشې اُوویل: آیا په زنانو جهاد شته؟ نو رسول الله ﷺ اُوفرمایل :

«په دوی جهاد لازم دې چه هغې کښې قتال نشته چه حج او عمره دی».

(احمد، ابن خزیمه، ابن ماجه بسند صحیح).

رسول الله ﷺ په شپږم کال کښې خوب اُولیدو چه زهٔ د صحابه کرامؓ سره عمرې کولو دپاره تلې یم، نو څان سره ئې څوارلس سوه صحابه کرامؓ واخستل او د عمرې په اراده روان شو، کله چه حدیبیه مقام ته اُورسیدو نو په لاره کښې کافرانو بند کړو او د هغوی سره دغه صلح اُوشوه چه کال له به دا عمره پوره کوئ، او اُوس به بیرته واپس کیږئ نو دا آیتونه نازل شو. نو څوارلس سوه صحابه کرامؓ خپلې بُدنې (اُوښانې) چه اُوه اویا وې، ذبح کړې، اُووه اووه کسان پکښې شریك وو.

﴿وَاَتِمُّوا الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ لِلّٰهِ﴾ د حج او د عمرې د اتمام دوه تفسیره دی :

(۱) [اَدُّوْهُمَا عَلٰى وَجْهِ التَّمَامِ وَالْكَمَالِ بِاَنْ يَّكُوْنَ عَلٰى وَفْقِ السُّنَّةِ وَبِالنَّفَقَةِ الْحَلَالِ وَاِخْلَاصِ النِّيَّةِ] (خازن) یعنی د حج او د عمرې د پوره کولو معنیٰ دا ده چه په سنت طریقه باندې ئې اُوکړئ، پوره پوره ئې ادا کړئ او حلاله نفقه پکښې اُولګوئ، او نیت خالص کړئ. او د میقات نه ئې شروع کړئ)، سفیان ثوریؒ وائی : اتمام دا دې چه د کور نه اراده د حج یا عمرې اُوکړه او داسې مهٔ کوه چه

تجارت یا حاجت دپاره لاړ شي بیا وائي چه حج کوم یا عمره کوم، دا جائز دي لیکن کامله طریقه نهٔ ده. (ابن کثیرؒ، السراج المنیر).

(۲) دویم دا چه کله انسان حج یا عمره کښې شروع اُوکړي، فرضي وي او که نفلي نو په هغه باندې ددې سر ته رسول واجب دي او په مینځ کښې به ئې نیمګړې نهٔ پریدي، او دا خبره اتفاقي ده، خو که د بند والي څه عذر ورته راپیښ شو نو بیا ورله د هدیه په لیږلو ځان د احرام نه کولاوول جائز دي.او دا معنیٰ د سیاق سره ډیره واضحه ده.

او ددې آیت د نزول په وخت کښې حج فرض نهٔ وو، ځکه چه پدې وخت کښې حرم د مکې مشرکانو په لاس کښې وو، نو الله تعالیٰ داسې نهٔ کوي چه په یو ځائې کښې اختیار نهٔ وي او هلته عبادات فرض کړي.او بیا دې ئې پیغمبر څلور کاله روستو ادا کوي. بلکه صحیح دا ده چه حج د فتح د مکې نه روستو فرض شوې وو. نو دا حکم استحبابي دې. او په عمره کښې اختلاف دې چه آیا دا واجب ده او که مستحب؟ ظاهر دا ده چه فرض نهٔ ده په نیز د اکثرو علماؤ او دلائل ئې په تفسیر فتح البیان او ابن کثیرؒ او قرطبيؒ وغیره کښې ګوره. او دلته د اتمام معنیٰ مخکښې ذکر شوه چه ښهٔ طریقې سره ئې پوره کړئ.

(لله) یعنې خاص الله دپاره ئې پوره کړئ. دا ځکه وائي چه مشرکانو به د حج بعض کارونه د بتانو او د غیر الله د تقرب د حاصلولو دپاره کول لکه تلبیه کښې به ئې داسې وئیل: [إِلَّا شَرِيكًا تَمْلِكُهُ وَمَا مَلَكَ] (ستا شریك نهٔ شته مګر هغهٔ شریك شته چه تهٔ د هغې مالك ئې او د هغه خپل اختیار نشته). دارنګه ډیرو مشرکانو خپل خپل حجونه مقرر کړیدي نصاریٰ د عیسیٰ علیه السلام د ولادت د ځائې نه حج کوي، د (اورشلیم) زیارتونه کوي، په روم کښې د (ماربولس) او (ماربطرس) د قبرونو زیارتونه کوي. د اسلام د زمانې نه مخکښې به نصاراؤ د شام د (عَسْقَلان) ښار حج کولو. او خلق به ئې د کعبې نه دې طرف ته راړول. دارنګه د مصریانو او یونانیانو او هندوانو ډیر حجونه دي. (ابن عاشورؒ)

نو الله په هغوي باندې رد اُوکړو او مسلمانانو ته ئې اُوفرمایل: چه صرف د الله د رضا او تقرب دپاره حج او عمره کوئ ځکه چه حج او عمره او دغه مقدس مقامات الله تعالیٰ د خپل توحید دپاره مقرر کړیدي.

ابن عاشورؒ وائي (لله) ئې ځکه اُووئیلو چه مشرکانو هم د الله دپاره حج او عمره کول لیکن مشرکانو مسلمانان د حج او عمرې نه بند کړي وو، نو ګال له چه دوي حج کولو نو دوي ته اُووئیلې شو چه تاسو به د مشرکانو د ضد نه حج او عمره نهٔ کوئ بلکه پکار ده چه ستاسو نیت

دے د الله دپاره وی۔ او اکر که تاسو ته تکلیف اُورسیدو خو بیا هم د الله دپاره حج او عمره مهٔ پریدیٔ۔ (التحریر والتنویر ۲/۲۱۵)

﴿ فَإِنْ أُحْصِرْتُمْ ﴾ احصار بندیدل او راګیریدلو ته وائی۔

یعنی که د حج یا د عمرے په لاره کښ څه مانع راشی لکه دشمن لاره بنده کړی، (لکه دا د جمهورو علماؤ رایه ده چه احصار صرف په دشمن سره وی) (لکه په حدیبیه کښ دغسے اُوشو) یا څهٔ بیماری راشی، یا لاره ورکه شی یا په بله طریقه لاره بنده شی، غل ئے اُوتختوی (لکه دا د محققینو رایه ده او همدا راجح ده) نو مُحرم ته چه کوم څاروے (د اُوښ یا د غوا اُوومه حصه یا یو ګډ یا چیلے) آسان وی هغه به ذبح کړی او سر به اُوخروی نو حلال به شی او بغیر ددے نه احرام نشی کوزولے لکه چه نبی ﷺ او صحابه کرامؓ په حُدیبیه مقام کښ په (سنه۶ هجری) کښ دغه شان کار اُوکړو او بیا ئے په سنه (۷ ﻫ) کښ ئے ددے عمرے قضاء راوړه۔

او د څاروی د لاژمیدو نه بغیر احرام کوزول په یو صورت کښ راغلی دی چه مُحرم د احرام تړلو په وخت کښ د الله تعالیٰ سره شرط اُولګوی چه اے الله ! ما د حج یا عمرے احرام اُوتړلو لیکن کوم ځائے چه زهٔ بند شوم نو هلته به احرام کوزوم۔ لکه دا خبره نبی ﷺ ضباعه بنت الزبیر ته کړے وه چه داسے اُووایه۔ (صحیحین عن عائشة)۔

﴿ فَمَا اسْتَيْسَرَ مِنَ الْهَدْيِ ﴾ دے کښ مبتداء پټه ده یعنی [فَالْوَاجِبُ مَا اسْتَيْسَرَ] یا خبر پټ دے [فَعَلَيْكُمْ مَا اسْتَيْسَرَ] (په تاسو لازم دے هغه شے چه آسان وی) یا فعل امر پټ دے یعنی [فَاذْبَحُوا مَا اسْتَيْسَرَ] (ذبح کړئ هغه چه آسان وی تاسو ته)۔

(هدی) دلته هغه څاروی ته وائی چه د احرام نه د وتلو په مقابله کښ حرم ته لیږلے شی۔ ابن عباسؓ فرمائی : دا د څلورو اقسامو نه جائز ده (اُوښ، غوا، ګډ، چیلے)۔ او همدا غوره قول دے۔ بعض ئے صرف د اُوښ او غوا پورے خاص کوی۔ او دا قول د ابن عمرؓ دے۔ (ابن کثیر) او دا څاروے ئے که ځان سره بولے وی او که هلته ئے اخلی تولو ته عام دے۔

**مسئله** : که انسان ته هدی نهٔ ملاویږی یا د هغے طاقت نهٔ لری، نو آیا د هغے بدل شته او که نهٔ ؟ یو قول دا دے چه ددے بدل نشته ځکه چه الله نهٔ دے ذکر کړے۔ (دا قول د امام ابو حنیفةؒ دے) او دویم قول دا دے چه ددے بدل شته لکه چه د تمتع او قِران په هدی کښ چه بدل شته او په حالت د عذر کښ هم شته نو دلته هم په طریقه د قیاس سره ده۔ (احسن الکلام)۔

لیکن په قیاس باندے احکام ثابتول کمزورے خبره ده۔

﴿ وَلَا تَحْلِقُوا رُءُوسَكُمْ ﴾ سر خرتیل دوه قسمه دی، (۱) یو د اختر په ورځ د احرام کوزولو دپاره نو

دا به د قربانۍ ذبح کولو نه روستو وي خو که چا مخکښې سر اُوخرئيلو او بيا ئې ذبح اُوکړه نو صرف د افضل خلاف کار ئې اُوکړو. او دم پرې نۀ واجبيږي. لکه دا خبره په حديث د صحيحينو کښې راغلې ده.

(۲) او دويم : د حج يا عمرې نه د احصار (بندش) په وخت سر خرئيل دې نو پدې کښې د هدې د ذبح کيدلو نه مخکښې سر خرئيل جائز نۀ دې لکه دلته هغه بيانيږي.

او که دا په حالت د امن کښې مراد شي نو بيا مطلب دا دې چه که حج کونکې د هَدْي څاروې خان سره روان کړې وي، نو په حالت د امن کښې د هدې د ذبح کولو ځائې حرم دې، ترڅو پورې چه د هدې څاروې حرم ته اُونۀ رسي او حج کونکې د حج اِو د عمرې د اعمالو نه فارغ شوې نۀ وي نو د هغه دپاره سر خرئيل يا لنډول جائز نۀ دي. او افضل دا ده چه په لسم تاريخ (د اختر په ورځ) د جمراتو ويشتو نه روستو ذبح اُوکړي بيا سر اُوخروي. (تيسيرالرحمن)

﴿حَتّٰى يَبْلُغَ الْهَدْيُ مَحِلَّهٗ﴾ (محله) (ځائې د حلالي). ددې نه مراد د احنافو په نيز حرم دې. يعني محصَر انسان به څاروې يا پيسې حرم ته ليږي او کله چه دۀ ته په څۀ ذريعه خبر راورسيلو چه ستا څاروې په حرم کښې حلال شو نو بيا به دا احرام کوز کړي.

دليل ئې ﴿ثُمَّ مَحِلُّهَا اِلَى الْبَيْتِ الْعَتِيْقِ﴾ (الحج/۳۲) آيت دې. ليکن جواب دا دې چه هغه حکم په باره د امن والا کښې دې، نۀ د محصر. (فتح البيان ۱/۳۹٦)

او جمهور اهل علم فرمائي چه (مَحِلَّهٗ) هر ځائې او هر زمان ته شامل دې، حرم وي او که هغه ځائې وي کوم ځائې چه بند شويدې. **دليل** دا دې چه حُديبيه د حرم نه نۀ ده، او نبي ﷺ او صحابه کرامؓ په همدغه مقام کښې قرباني اُوکړه او احرامونه ئې کوز کړل.

دارنګه مخکښې حديث د ضباعة بنت الزبير هم دليل دې.

۳- دارنګه فَمَا اسْتَيْسَرَ نه معلوميږي چه پدې کښې تخصيص د حرم نشته. او همدا راجح قول دې. ليکن عبد الله بن عباس رضي الله عنه فرمائي: که امکان وي نو حرم ته دې اُوليږي او که نۀ وي نو بيا هر ځائې کولې شي. (بخاري) ...... او همدا ظاهر دې او پدې کښې په ټولو دلائلو عمل راځي.

**اوس پله مسئله** : چه احرام دې اُوتړلو او چا بند نۀ کړې ليکن نور تکليف دې مثلاً زخمي شوې يا سر خارخ کوي يا پکښې سپږې د اُوږد سفر د وجه نه پيدا شي لکه کعب بن عجره رضي الله عنه فرمائي : دا آيت زما په باره کښې نازل دې او حکم ئې تاسو ته عام دې او هغه دا چه په ما باندې سپږې ډيرې بهيدلې نو رسول الله ﷺ راته اُوفرمايل : آيا تا ته دا حشرات تکليف درکوي؟ ما ورته اُووئيل : آو. وې فرمايل : سر اُوخرئيوه او ګډ حلال کړه. الحديث. او صبا له بيا په حديبيه

کښې تول صحابه کرامؓ بند کړے شو۔

﴿ فَمَنْ كَانَ ﴾ د دے جزاء پټه ده : (فَلْيَحْلِقْ رَأْسَهُ) (یعنی سر دے اُوخروی)

﴿ اَوْبِهٖ اَذًى مِّنْ رَّاْسِهٖ ﴾ (اذی) تکلیف او ضرر تـه وائی، دلته ترے مراد دا دے چه سپږے پکښې شوی وی، یا ئے په سر باندے درد وی یا پکښې زخمونه او دانے وی۔

﴿ فَفِدْيَةٌ ﴾ دلتـه فعل پټ دے [اَیْ فَیَلْزَمُ عَلَیْهِ فِدْیَةٌ] (نو لازم ده پـه دهٔ باندے فدیه) او فدیه بدلے او عوض ته وئیلے شی۔ یعنی کله ئے چه سر اُوخرئیلو نو فدیه به ورکړی۔

﴿ مِنْ صِيَامٍ ﴾ ددے نه مراد درے روژے دی لـکـه دا پـه حدیث د کعب بن عجرةؓ کښې په بخاری (٦٧٠٨) او مسلم (٢٩٣٧) کښې راغلی دی۔ او درے روژے ځکه مقرر شوے چه دهٔ په درے کارونو کښې جنایت کړے یعنی په احرام، طواف او سعی کښې۔ او ظاهر دا ده چه هره روژه د یو صاع قائم مقام ده۔ (المنار)

﴿ اَوْ صَدَقَةٍ ﴾ دا درے صاعه د کجورو دی چه شپږ مسکینانو ته به ورکولے شی یعنی هر یو ته نیم نیم صاع چه تول (شپږ کیلو او تقریباً پنځه سوه گرامه جوړیږی)۔

﴿ اَوْ نُسُكٍ ﴾ جمع د نَسِيْكَةٌ ده پـه معنیٰ د هغه ځاروی (قربانی) چه خاص د الله دپاره ذبح کولے شی۔ او ددے قربانی ادنیٰ مقدار یو گډ دے۔

او هدی هغـه ځاروی ته وئیلے شی چه حرم ته بوتللے شی۔ او ددے فدیئے مکان متعین نهٔ دے بلکه کوم ځائے چه ورکوی خوښه ئے ده۔ (مجاهد)۔

**فائده**: دا حکم په هغه وخت کښې دے چه په حالت د احرام کښې د عذر د وجه نه سر اُوخروی، او که څوك بغیر د عذر نه سر اُوخروی نو هغه باندے فدیه واجب ده۔ نو د ابو حنیفةؒ او شافعیؒ او ابو ثورؒ په نیز صرف دم واجب دے۔ او پدے درے څیزونو کښې اختیار نشته۔ او امام مالكؒ وائی : کار ئے غلط اُوکړو، فدیه پرے واجب ده، لیکن اختیار پکښې شته۔ او که په هیره سره سر اُوخروی یا خوشبوئی استعمال کړی نو آیا فدیه پرے شته او که نهٔ ؟۔ اکثر اهل علم وائی په دے صورت کښې هم فدیه واجب ده۔ او بعض اهل علم وائی : فدیه پرے واجب نهٔ ده۔ راجح دویم قول دے۔ ځکه سهوه او نسیان دے امت ته معاف دی۔ فتاوی الدین الخالص (١٠)۔

**تنبیه**: دلته (اَوْ) د تخییر یعنی اختیار دپاره دے، ستا خوښه ده چه هر یو ورکوے او کعب بن عجرةؓ ته ئے چه اول په گډ حکم کړے وو، نو هغه د وجه د افضلیت نه او باقی جائز دی۔ (ابن کثیرؒ)۔

﴿ فَاِذَاۤ اَمِنْتُمْ ﴾ اُوس د امن په حالت کښې حکم بیانوی، برابره ده چه دا امن د اول نه وی او که پس د احصار نه وی۔ تمتع په دواړو صورتونو کښې جائز دے۔

﴿ فَمَنْ تَمَتَّعَ بِالْعُمْرَةِ إِلَى الْحَجِّ ﴾ د تمتع معنیٰ ده فائدے او مزے اخستل۔ او عمره کونکے د احرام کوزولو نه پس تر وخت د حج پورے په ممنوعاتو د احرام باندے فائدے اخلی۔
حج په درے قسمه دے۔(۱) **حج متمتع** : طریقه ئے دا ده چه د حج په میاشتو کښې د میقات نه احرام اُوتړی (دا خبره د بهر ملك والا دپاره ده) او مکے ته داخل شی او طواف د بیت الله او سعی د صفا او مروه اُوکړی، بیا ځان حلال کړی (په سر خرئیلو یا په قصر (لنډولو) سره) بیا د میقات نه بهر اُونهٔ وځی او وطن ته واپس لاړ نهٔ شی تردے پورے چه احرام د حج اُوتړی او اعمال د حج اُوکړی نو دا شخص مُتمتع دے۔ او دا طریقه اتفاقی ده۔
۲- دویم **حج قِران** دے او دیته هم په معنیٰ لغوی سره تمتع وئیلے شی۔ چه د میقات نه احرام د عمرے او د حج دواړو اُوتړی او بیا کارونه د عمرے اَول اُوکړی او ځان حلال نکړی تردے پورے چه په همدغه احرام کښې پاتے شی او د حج کارونه هم ادا کړی او بیا ځان حلال کړی (یعنی په یو احرام کښې عمره او حج دواړه یو ځائے کول) پدے دواړو صورتونو کښې د اختر په ورځ هدی (قربانی) کول واجب دی۔
۳- **حج افراد** دیته وائی چه د اول نه اراده د حج اُوکړی او احرام د حج اُوتړی صرف طوافِ قدوم اُوکړی بیا مِنیٰ ته لاړ شی یا سیده عرفات ته لاړ شی۔په حاجی مفرد باندے هدی (قربانی) لازم نهٔ ده۔ دلته دا حج نهٔ دے مراد۔
**مسئله** : لیکن په حج قِران کښې سوق د هدی لازم دے که نهٔ وی، نو بیا به خامخا تمتع یا افراد کوی۔ نو کوم خلق چه ځان سره د خپل ملك نه هدی (یعنی قربانی) روانه نکړی نو هغه حج قِران نشی کولے۔
﴿ فَمَنْ تَمَتَّعَ بِالْعُمْرَةِ ﴾ دلته ددے نه مراد دا دے چه په عمره فائده واخلی د حج سره یعنی دواړه په یو سفر کښې جمع کړی په طریقه د تمتع یا قِران سره او دواړو نه فارغه شی نو :
﴿ فَمَا اسْتَيْسَرَ مِنَ الْهَدْيِ ﴾ نو هغه باندے هدی (قربانی) کول واجب دی۔
چه دا هدی د حج تمتع او د حج قِران د وجه نه ده۔ یعنی تا په یو کال کښې حج او عمره دواړه شریك اُوکړل نو اُوس به د اختر په ورځ قربانی کوے او دا قربانی درباندے فرض شوه۔ که غریب وی نو روژے به اُونیسی۔ او هرچه د اختر په ورځ قربانی ده، نو هغه په غریب نهٔ ده واجب۔ او د حاجی او غیر حاجی تولو دپاره ده۔
**فائده** : پدے هَدْی (قربانی) کښې اختلاف دے۔ د امام شافعیؒ په نیز دا دم جَبر دے۔ ځکه چه د امام شافعیؒ په نیز په یو سفر کښې حج او عمره شریك کول افضل نهٔ دی۔ نو دا د نقصان جبیره

ده۔ نو دم ورکړه۔ او د جمهورو په نیز دا دم د نسك او د شکر دے۔ یعنی د دوه عبادتونو د شکر ادا کولو دپاره کولے شی۔

**فائده:** دلته دریے قسمه هدی راغلے (۱) یو د احصار په صورت کښې د احرام نه د څان ویستلو په وخت کښې۔ (۲) دویم د تکلیف د سر یا د مرض د وجه نه هدی یا صدقه یا روژے دی۔ (۳) دریم په صورت د حج تمتع یا حج قِران کښې هدی ده۔ او څلورم به په سورة المائده ﴿ لَا تَقْتُلُوا الصَّيْدَ وَاَنْتُمْ حُرُمٌ ﴾ کښې ذکر کیږی او هغه په ښکار کولو او ونے پریکولو کښې لازمیږی۔ (فتح البیان)۔

همدغه دمونه قرآن او حدیث کښې دی۔ یو بل دم په صورت د جماع کښې د عمر فاروقؓ نه موقوفاً نقل دے۔ نو پنځه شو۔ باقی نور دمونه صحیح حدیث کښې نشته، صرف ابن عباسؓ موقوفاً وئیلی دی :[مَنْ قَدَّمَ شَيْئًا مِنْ حَجِّهٖ اَوْ اَخَّرَهٗ فَلْيُهْرِقْ لِذٰلِكَ دَمًا] (شرح مشکل الآثار للطحاوی (۲۸۸)۔

(څوك چه یو عمل مخکښې روستو کړی نو هغه دِے ددے په بدله کښې وینه توی کړی)۔ لیکن ظاهر دا ده چه دا حدیث موقوف دے او دا په حکم د مرفوع کښې نۀ دے لهذا په خلقو هسے چتی دمونه لازمول نۀ دی پکار۔ کما فی فتاوی الدین الخالص (۱۰)۔

﴿ فَمَنْ لَّمْ يَجِدْ ﴾ اُوس رخصت بیانوی د هغه چا دپاره چه هدی (قربانی) نۀ موندہ کوی څکه نۀ ملاویږی یا دا چه پیسے ورسره نۀ وی۔ نو بیا به د حج په ورځو کښې دریے روژے اُونیسی۔ او غوره دا ده چه دا به د ذی الحجے د میاشتے شپږمه، اُومه او اتمه ورځ وی۔ او که نهمے یعنی عرفے ورځے ته ئے روستو کړی، هم جائز ده۔

﴿ وَسَبْعَةٍ اِذَا رَجَعْتُمْ ﴾ (یعنی کله چه خپل کورته واپس شی نو بیا به اُووه ورځے روژے اُونیسی۔ نو د رجوع نه مراد یا کلی ته واپس کیدل دی یا د حج نه فارغ کیدل دی۔ اګرکه په مکه کښې وی۔ (او دا قول د ابو حنیفۂ دے) لیکن اول قول د مسلم (۱۲۲۷) د حدیث د وجه نه غوره دے چه په هغے کښې (اِذَا رَجَعَ اِلٰى اَهْلِهٖ) لفظ دے۔(یعنی چه کله خپل اهل ته واپس شی)۔

**نکته** : د دم په مقابله کښې روژے نیول په ظاهر کښې د عقل خلاف دی لیکن د الله په عِلم کښې به پدے کښې ډیر حکمتونه وی۔ څکه چه دا یو عبادت بدنی نو دا بل عبادت مالی دے۔ د یو بل قائمقام راځی۔

﴿ تِلْكَ عَشَرَةٌ ﴾ دا ورسره وائی اشاره کوی چه د دریے او د اُووه ترمینځ اختیار نشته بلکه دواړه به جمع کوی۔ یعنی واو په معنی د (اَوْ) نۀ دے۔ (زجاج)۔

یا دا چه څوك ګمان اُونکړی چه د اُووه نه روستو به نور عدد هم باقی وی۔ (مبرد۔ فتح البیان)۔

﴿ كَامِلَةٌ ﴾ یعنی ثواب ئے پوره دے۔ دا ګمان اُونکړے چه ددے مرتبه او ثواب به د هدی نه کمه

وی ځکه حالت د مجبورتیا دے۔

﴿ ذٰلِكَ ﴾ امام شافعیؒ وغیره (یعنی جمهور علماء) وائی : دا هدی ته اشاره ده۔ یعنی د تمتع او د قِران قربانی په هغه حاجیانو واجب ده چه اهل حرم (یعنی مکے والا) نهٔ وی۔ بلکه آفاقی وی او په دهٔ ځکه لازم ده چه دا به د حج احرام د مکے نه تړی، نهٔ د میقات نه، نو ددهٔ حج ناقص ګرځی نو دا نقصان به په قربانی کولو پوره کړی۔ او حرم ته نزدے خلق تمتع او قِران کولے شی، لیکن قربانی پرے واجب نهٔ ده۔

۲- بعض علماء وائی چه حج تمتع او قِران ته اشاره ده کوم چه په (فَمَنْ تَمَتَّعَ) کښې ذکر دے۔ لکه عبد الله بن عباس رضی الله عنهما دا تفسیر کړے دے۔ (ابن جریر، الدر المنثور، نقله البخاری فی صحیحه) او همدا راجح دے نو دا دلیل دے چه ځوك د مسجد حرام په خوا کښې وی، هغه به حج تمتع او حج قِران نهٔ کوی، که وے کړو نو دم پرے واجب دے چه د هغے نه به خپله خوراك نهٔ کوی۔ او د مکے اُوسیدونکے خو تول کال مسجد حرام ته حاضر وی نو هغه له څهٔ پکار چه په میاشتو د حج کښې عمره کوی۔

﴿ لِمَنْ لَّمْ يَكُنْ اَهْلُهٗ حَاضِرِى الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ﴾ یعنی کوم خلق چه د مسجد حرام په خوا کښې اُوسیږی۔ حَاضِر په معنیٰ د مُقیم سره دے۔ یعنی د میقات نه دننه وی (ابو حنیفةؒ) یا هر هغه ځوك چه ددهٔ او د حرم ترمینځ موده د سفر نهٔ وی۔ (شافعیؒ) یا مکے والا مراد دی۔ (مالكؒ) ...... (فتح البیان)۔

هغوی ته حج تمتع یعنی عمره او حج شریك نهٔ کوی بلکه هغوی دپاره حج افراد دے۔ ځکه هغوی خو هر وخت عمرے کولے شی، نو دا تمتع او قِران به هغه ځوك کوی چه هغه د بهر نه راشی لکه د پاکستان، هندستان، افغانستان وغیره نه راشی۔ نو هغه له پکار دی چه عمره اُوکړی او بیا حج اُوکړی، ځکه هغه هر وخت نشی راتللے۔ نو هرکله چه تا تمتع اُوکړو نو په تا باندے هدیه لازمه ده۔ او په مکے والو دا هدیه نهٔ ده لازمه ځکه چه هغوی دپاره تمتع او قِران نشته۔

﴿ وَاتَّقُوا اللّٰهَ ﴾ (اَىْ بِالْعَمَلِ بِالْاَحْكَامِ) اُوبیریږئ د الله نه په عمل کولو کښې په احکامو د الله۔

﴿ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ ﴾ دا یره ده هغه چا ته چه د الله د احکامو مخالفت کوی۔

اَلْحَجُّ اَشْهُرٌ مَّعْلُوْمٰتٌ فَمَنْ فَرَضَ فِيْهِنَّ الْحَجَّ

د حج یو څو میاشتے دی معلومے نو چا چه فرض کړو په دے ورځو کښې (په ځان باندے) حج (چه احرام ئے ورله اُوتړلو)

فَلَا رَفَثَ وَلَا فُسُوْقَ وَلَا جِدَالَ فِى الْحَجِّ وَمَا تَفْعَلُوْا مِنْ خَيْرٍ

نو نهٔ به وی خبرے د زنانو او نهٔ ګناه کول او نهٔ جګړے کول په حج کښې او هغه چه تاسو کوئ څهٔ نیکی، لره

﴿يَعْلَمْهُ اللّٰهُ ۗ وَتَزَوَّدُوْا فَاِنَّ خَيْرَ الزَّادِ التَّقْوٰى ۚ وَاتَّقُوْنِ يٰٓاُولِي الْاَلْبَابِ﴾﴿۱۹۷﴾

پو هیږي په هغې باندې الله او ځان سره توخه وړئ یقیناً غوره توخه تقویٰ ده او اُویرېږئ ما نه اے عقل والو!۔

**تفسیر** : پدې آیت کښې د عربو په رواج او غلط عادت باندې رد دے چه هغوی په حج کښې دا جهالت پیدا کړے وو چه نسيء به ئې کوله، کله به ئې حج په (صفر) میاشت کښې کولو، او کله به ئې (رمضان) کښې کولو۔ او دا به ئې وئیل چه څلور میاشتو له عزت ورکول پکار دی که هره میاشت له دے ورکړو۔ نو خپله خوښه به ئې پکښې استعمالوله۔ او پدے آیت کښې د حج بعض احکام بیانوي، کومو کښې چه د خلقو تصور غلط شوے وو۔ (۱) یو وخت د احرام د حج بیانوي۔ (۲) دویم ممنوعات د حج۔ څکه دوی به په حالت د احرام کښې تقوئ نۀ کوله او د محرماتو نه به ئې ځان نۀ ساتلو۔ (۳) امر په توښه وړلو سره۔ څکه چه دوی به توښه وړل گناه گڼرله۔

نو الله پرے اُوس رد کوی : ﴿اَلْحَجُّ اَشْهُرٌ مَّعْلُوْمٰتٌ﴾ دلته مضاف پټ دے یعنی (وَقْتُ اِحْرَامِ الْحَجِّ) وخت د احرام د حج معلومے میاشتے دی چه هغه درے دی، شوال، ذی القعده، او د ذی الحجے لس ورځے دی، یعنی د وړوکي اختر نه روستو د حج دپاره احرام تړل جائز دی اګرکه حج په یو څو ورځو د ذي الحجه کښې ادا کیږي، لیکن شریعت اُوئیل چه مخکښې نه هم احرام تړل صحیح دی څکه د لرے دنیا نه به خلق راځي۔ نو حج ته به رسیدے شي۔ یا دا چه څوك پدے میاشتو کښې عمره اُوکړي، نو حج ئې تمتع یا قِران جوړیږي۔ او ددے نه معلومه شوه چه که ددے نه مخکښې څوك احرام د حج دپاره تړي نو دا به غلط وي۔

او څوك چه پدے میاشتو کښې د حج نیت اُوکړي، نو په هغه باندے د احرام تعظیم واجب دے، او ددے تعظیم تقاضا دا ده چه مُحرم به د جماع او د هغې د مقدماتو، او تمام قسم گناهونو او جنگ جګړو نه پرهیز کوی، رسول الله ﷺ فرمایلی دی : «څوك چه ددے کور حج اُوکړي او د جماع او د نورو گناهونو نه ځان بچ ساتي نو هغه د گناهونو نه داسے پاك شو لکه د هغه ورځے په شان چه دۀ لره مور زیږولے وو»۔ (متفق علیه)

﴿فَمَنْ فَرَضَ فِيْهِنَّ الْحَجَّ﴾ یعنی چاچه لازم کړو په ځان باندے حج کول په دے طریقه چه نیت ئې اُوکړو په زړۀ کښې او په احرام تړلو سره او په تلبیه وئیلو سره په ژبه باندے۔ (قرطبیؒ، فتح البیان) نو :

﴿فَلَا رَفَثَ وَلَا فُسُوْقَ وَلَا جِدَالَ فِي الْحَجِّ﴾ دا نفي په معنیٰ د نهي ده۔ یعنی (لَا تَرْفُثُوْا وَلَا تَفْسُقُوْا وَلَا تُجَادِلُوْا) (یعنی رفث او فسوق او جګړے مۀ کوئ) لیکن جمله خبریه ئې راوړه، اشاره ده چه د حاجی د شان او حال نه دا لرے ده چه هغه په حج کښې دغه کارونه اُوکړي۔

ځکه چه حج تول د يو شعور او فکر نوم دے چه انسان دا شعور اُوکړی چه ما کفن واغوستو او د الله ملنګ شوم او د هغه په امر به چليږم. نو حج په انسان کښې تبديلی راولی. ليکن که دا شعور نهٔ وی د حج نه به هيڅ اثر رانهٔ وړی ځکه هغه ځهٔ د چکر ځائے هم نهٔ دے.

دا درے قسمه قوتونه به نهٔ استعمالوی. (۱) قوت شهوانی. (په رفث کښې) (۲) قوت شيطانی په فسوق کښې. (۳) او قوت سَبُعِی په جدال کښې. بلکه ځان کښې به قوت ملکی پيدا کړی چه هغه د الله عبادتونه کول او بل ته فائدے ورکول دی. او په دے زمانه کښې غالباً د حج اثر نهٔ وی ځکه چه بے شعوره کيږی، او دا درے قوتونه بے ځائے استعماليږی. او دا درے څيزونه په عام حالتونو کښې منع دی ليکن په حج کښې منع ئے زياته ده.

رفث نه په دے مقام کښې (تَعَاطِي الْجِمَاعِ وَدَوَاعِيهِ بِحَضْرَةِ النِّسَاءِ) يعنی جماع کول يا اسباب د جماع اختيارول، د شهوت خبرے کول او بوس وکنار کول په حضور د زنانو کښې)

او که زنانه حاضره نهٔ وی او انسان داسے وائی چه زهٔ به وادهٔ کوم، يا به د ښځے سره جماع کوم. لکه دا خبره ابن عباسؓ کړے وه چه زهٔ که واپس لاړم خپله ښځه (لميس) سره به جماع کوم نو هغه باندے اعتراض اُوشو چه په حالت د احرام کښې ته دا خبرے کوے؟ نو هغه اُوفرمايل: چه رفث هغه دے (مَا كَانَ بِحَضْرَةِ النِّسَاءِ) چه په حضور د زنانو کښې وی. ليکن اثر د ابن عباسؓ سنداً ضعيف دے کما قال عبد الرزاق المهدیّ فی تعليق ابن کثيرؒ.

ليکن احرام کښې به ډير ګپ شپ نهٔ لګوی ځکه چه احرام د نورو حالاتو دپاره قالب دے.

(فسوق) عام ګناهونه کول يا په حالت د احرام کښې ښکار کول، عطر او خوشبوئی لګول، نوکونه يا ويښته پريکول (ابن عمرؓ)، د حرم ونے او بوټی پريکول. ظلمونه کتل او بد نظری او بے حيائی کول. کنځل کول.

(جدال) د ملګرو وغيره سره به جګړے نهٔ کوی. اُوسنی حاجيان غالباً هسے چکر دپاره ځی، د حج نه اثر نهٔ راوړی. او اکثر په خپل مينځ کښې ئے په معمولی خبرو بحثونه او جګړے وی. دا نيک حج نهٔ دے. يا دينی جګړے جائز دی لکه امر بالمعروف او نهی عن المنکر کوی، څوک غلط کار کوی، هغه منع کوی، او په نيک کار باندے خلقو ته ترغيب ورکوی نو دا ښهٔ کار دے، دا په حج کښې منع نهٔ دے.

﴿ وَمَا تَفْعَلُوا مِنْ خَيْرٍ يَعْلَمْهُ ﴾ **ربط** دا دے چه د دغه کارونه به ځان ساتی. (وَيَفْعَلُ الْخَيْرَ) او د خير کارونه به کوی. ځکه چه په حج کښې نور نيک عملونه کيږی، هغے ته ترغيب ورکوی. لکه تلبيه زيات وئيل، قربانی کول، بل باندے خوراکونه خوړول او نرمے خبرے کول. يعنی لکه

ځکه چه په حج کښې ګناهونه پریخودل ضروري دي نو نیك عملونه کول هم ضروري دي نو ځکه ئې ذکر کړل. او حدیث کښې دي :[اَیُّ الْحَجِّ اَفْضَلُ ؟ قَالَ الْعَجُّ وَالثَّجُّ] بهترین حج هغه دے چه په هغے کښې تلبیه زیاته اُوئیلے شي او وینه په کښې زیاته توئې شي (یعني قرباني). (ترمذی (۸۲۷) بسند صحیح).

او حدیث کښې دي : د حج مبرور (مقبول) بدله نشته مګر جنت دے. (مسند احمد و صحیح مسلم)

((او حج مبرور هغه دے چه په هغے کښې په خلقو باندے خوراك (صدقه) اُوکړے شي او نرمے خبرے اُوکړے شي)). کما فی صحیح ابن خزیمه والترغیب (۱۱۰٤) صحیح لغیره)

او هیڅ ګناه ورسره شریکه نشي.

﴿ وَتَزَوَّدُوْا ﴾ دا جزئي حکم ئې راوړو ځکه چه پدے کښې د یمن والو په رواج باندے رد دے چه هغوی به کله حج یا عمرے ته راتلل، نو ځان سره به ئې د سفر توښهٔ نهٔ راوړله او توښهٔ نهٔ راوړل به ئې ثواب ګنړلو، او دا به ئې وئیل (نَحْنُ مُتَوَكِّلُوْنَ) (مونږ په الله توکل کړیدے) نو الله خو په بندګانو باندے امتحان راولي، نو چه کله به راروان شو، په سفر کښې به وږي شو، بیا به ئې د حج په نوم د خلقو نه سوالونه کول. او په خلقو به بوج شو، نو الله تعالیٰ دا آیت نازل کړو.

(بخاری، ابو داود، نسائی وغیرهم عن ابن عباس).

نو الله فرمائي : ځان سره توښهٔ راوړهٔ، حج درباندے هله فرض کیږي چه دومره توښهٔ درسره وي چه حج ته پرے راشے او بیرته واپس کلي ته لاړ شے.

بعض خلقو د حج نه د تجارت او کاروبار ذریعه جوړه کړې وي. علي ﷺ یو تن په عرفات کښې سوال کونکے اُولیدو نو دُره ئې پسے اُوچته کړه چه آیا تهٔ پدے ورځ او په دے مقام کښې د غیر الله نه سوال کوے. (رزین - مشکاة : ۱۸۵۵)

﴿ فَاِنَّ خَيْرَ الزَّادِ التَّقْوٰى ﴾ دے کښې دوه معنے دي : (۱) التقویٰ نه مراد دومره توښهٔ ده چه انسان پرے ځان د سوال نه بچ کړي یعني ادنیٰ توښهٔ هم کافي ده، دا ضروري نهٔ ده چه انسان سره به ډیر مال پیدا کیږي چه هلته پرے چرګان او ګډان خوري نو هله به حج ته ځي.

[اَیْ فَاِنَّ خَيْرَ الزَّادِ مَا اتَّقٰى بِهِ الْمُسَافِرُ مِنَ التَّهْلُكَةِ وَالْحَاجَةِ اِلَى السُّؤَالِ وَالتَّكَفُّفِ] (فتح البیان ۱/۴۰۵).

(یعني غوره توښهٔ هغهٔ ده چه مسافر په هغے سره ځان د هلاکت او د خلقو د سوالونو او لاس نیولو نه اُوساتي) نو تقویٰ نه مراد لغوي تقویٰ ده.

(۲) دویم : شرعي تقویٰ مراد ده، ځکه چه مخکښې د مال تذکره اُوشوه، دنیا ته توجه پیدا شوه چه مال خو ډیر ښهٔ شے دے، نو اُوس الله تعالیٰ بنده لره آخرت ته متوجه کوي چه د دنیا د توښے

سره د آخرت توښه هم ځان سره واخله۔ د وړوکي سفر دپاره څومره فکر مند يې، نو دغسې سفر دپاره هم تیارې شروع کړه۔ اول قول د شان نزول سره برابر دے، نو هغه راجح دے۔(فتح البيان)

ليکن تقوىٰ چه مطلق ذکر شي مراد ترې شرعي تقوىٰ وي او همدا خبره ظاهره ده۔ او معنىٰ به دا وي : إِتَّخِذُوا التَّقْوىٰ زَادَكُمْ لِمَعَادِكُمْ فَإِنَّهَا خَيْرُ زَادٍ] (آلوسی)۔

(تقوىٰ د خپل آخرت دپاره توښه جوړه کړئ ځکه چه دا غوره توښه ده)۔

﴿ وَاتَّقُونِ يَا أُولِي الْأَلْبَابِ ﴾ څوک چه عاقل وي هغه به د الله نه يريږي، بے عقله خلق د الله تعالىٰ نه نۀ يريږي۔ څومره چه عقل کم وي هغومره د الله نه يره پکښې کمه وي ځکه چه د آخرت سوچ ورسره نۀ وي۔

**فائده** : په وَاتَّقُونِ کښې د الله تعالىٰ په جلال (لوئي والی) او عظمتِ شان باندے تنبيه ده۔ (خازن)۔ دارنګه مخکښې په(خَيْرَ الزَّادِ التَّقْوىٰ) کښې تيزي ده په تقوىٰ باندے او په وَاتَّقُونِ کښې تيزي ده په تقوىٰ کښې په اخلاص پيدا کولو باندے، يعنې صرف ما نه اُويريږئ۔نو شائبه د تکرار نشته۔ (آلوسی)۔

| لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَنْ تَبْتَغُوا فَضْلًا مِّنْ رَّبِّكُمْ فَإِذَآ أَفَضْتُمْ مِّنْ |
|---|
| نشته په تاسو ګناه چه لټوئ تاسو احسان د طرفه د رب ستاسو نه، نو هرکله چه تاسو راکوز شوئ د |
| عَرَفٰتٍ فَاذْكُرُوا اللّٰهَ عِنْدَ الْمَشْعَرِ الْحَرَامِ وَاذْكُرُوْهُ كَمَا هَدٰىكُمْ |
| عرفات نه نو يادوئ الله لره په خوا د مشعر حرام کښې او يادوئ الله لره لکه ځنګه چه تاسو ته ئې خودنه کړيده |
| وَإِنْ كُنْتُمْ مِّنْ قَبْلِهِ لَمِنَ الضَّآلِّيْنَ ﴿۱۹۸﴾ |
| او يقيناً وئ تاسو مخکښې ددے نه خامخا د ګمراهانو نه۔ |

**تفسير** : دا د عربو په بل رواج رد دے چه د هغوی به دا طريقه وه چه حج ته به راتلل نو تجارتونه به ئې کول۔ د شوال د مياشتے نه به درے ميلے لګيدلے۔(ذو المجاز، مجنّه، او عُکاظ) نو دوی به د شوال نه اِحرام اُوترلو او پدے ميلو به ګرځيدل، تجارتونه به ئې کول او بيا به ئې حج هم اُوکړو، نو کله چه اسلام راغلو او اسلام خو هميشه په اخلاص امر کوي، نو د صحابه کرامؓ دا وَهم پيدا شو چه حج کښې به تجارت ناروا وي۔ يو خو دا ميلے دکافرانو ځايونه وو هلته به تګ هم جائز نۀ وي۔ دويم: د حج په احرام کښې تجارت کول د اخلاص منافي دي؟!۔

نو الله تعالیٰ دا آيت نازل کړو چه کله ستاسو اصلي مقصود د الله تعالیٰ عبادت وي، که ضمناً پکښې تجارت يا کاروبار اُوشو او مال حاصل شو مثلاً هلته څۀ اخلي او څۀ خرڅوي يا څۀ شے راوړي يا ئے څان سره يوسي۔ نو دا کار ناروا نۀ دے او دا د اخلاص منافي نۀ دے۔ خو اول نه به د تجارت په نيت نۀ ځي۔ (بخاري عن ابن عباسؓ)

او دا کار صرف جائز دے اګرکه غوره دا ده چه د انسان صرف يو عبادت غرض وي، او د دنيا بل کار ورسره ملګرے نشي۔

﴿ فَضۡلًا ﴾ ددے نه د تجارت مالونه مراد دي، او ديته ئے فضل اُووئيلو ځکه چه په مال سره د خير ډير کارونه کيږي۔ انسان پرے د سوال نه بچ کيږي، عزت پرے محفوظ کيږي، د دين کار پرے کيږي۔

﴿ فَإِذَآ أَفَضۡتُم ﴾ فاء ئے راوړه ځکه چه پدے کښې قريشو او د هغوي ملګرو بل مرض دا پيدا کړو چه قريش به عرفات ته نۀ تلل او دا به ئے وئيل چه مونږ د عامو خلقو نه جدا يو، مونږ حُمس (يعني په خپل دين کښې مضبوط) يو۔ زمونږ جدا حکم دے۔ مونږ د الله د کور والا يو، مونږ به د حرم نه بهر نۀ ځو (صحيح بخاري)

نو الله تعالیٰ ورته فرمائي چه تاسو ټول به عرفات ته ځئ او بيا به د عامو خلقو سره مزدلفه کښې وقوف کوئ (ايساريږئ به) او د الله په ذکر اذکار کښې به مشغول کيږئ۔

دا آيت دليل دے چه عرفات کښې وقوف کول (ايساريدل) فرض دي۔ د رسول الله ﷺ مشهور حديث دے ((د حج بنيادي کار د عرفے وقوف دے)) (ترمذي والنسائي وغيره)

او دا خبره د جاهليت د دَور نه معلومه وه۔ په مزدلفه کښې د لسم تاريخ شپه تيرول او د صبا د مانځه نه روستو د مشعر حرام په خوا کښې الله تعالیٰ ډير يادول پکار دي۔ بعض علماء ديته واجب وائي۔ او بعض ورته سنت وائي۔

او صحيح حديث کښې دي چه حج ددے نه په غير نۀ پوره کيږي۔ الترمذي والمشکاة ۱)

﴿ أَفَضۡتُم ﴾ إفاضه په اصل کښې د (فَاضَ الإِنَاءُ) نه اخستے شوے چه لوښے د اُوبو نه ډک شي او په غاړو ترينه اُوبهيږي۔ او دلته په معنیٰ د راکوزيدلو دے ځکه چه عرفات اُوچت ځائے دے۔ يعني هرکله چه تاسو په عرفات کښې په اذکارو او دعاګانو ماړۀ شئ، او بيا د هغے نه راکوز شئ۔ او دا راکوزيدل به د نمر پريوتو نه روستو وي، او د ماښام مونځ به هلته يا په لاره کښې نۀ ادا کوي بلکه په مزدلفه کښې به ئے د ماسخوتن مانځه سره يو ځائے کوي۔

﴿ عَرَفَٰتٖ ﴾ : ديته عرفات او عرفه وائي۔(۱) دا ورته ځکه وائي چه دا د الله تعالیٰ د معرفت او

پیژندګلنې ځائے وو ځکه چه الله تعالیٰ عالَم الارواح (روحونه د بندګانو) دلته پیدا کړی وو. او دلته ئے ترے د خپل ربوبیت اقرار اخستے وو. (۲) یا آدم او حواء علیهما السلام د آسمان نه د راکوزیدو نه روستو دلته یو بل پیژندلی وو.

(۳) یا ابراهیم ﷺ د خپل خوب تعبیر پیژندلے وو. او دا یو میدان دے.

﴿ فَاذْكُرُوا اللهَ ﴾: (۱) ددے ذکر نه مراد د ماښام او ماسخوتن مونځ یو ځائے کول دی.

(۲) او ددے نه عام ذکرونه او دعاګانے او تلبیه او تکبیرونه هم مراد کیدیشی. او په حج کښې د نبی ﷺ نه څهٔ مقرر اذکار نهٔ دی نقل بلکه عام قِسم ذکرونه وئیل پکار دی.

(مشعر حرام) په اصل کښې ځائے د علامت ته وائي، مراد ترینه تول مزدلفه ده او مزدلفه تول موقِف (ځائے د اُودریدو) دے، اګرکه د مشعر حرام خوا کښې (چه اُوس هلته مسجد جوړ دے) اُودریدل غوره دی. حرام ورته ځکه وائي چه پدے کښې هغه کارونه کول منع دی چه د هغے اجازت شریعت نهٔ وی ورکړی. اګرکه نور ځایونو کښې هغه کارونه جائز وی.

﴿ وَاذْكُرُوهُ كَمَا هَدَاكُمْ ﴾ دلته د ذکر نه مراد د صبا مانځه نه روستو او د نمر خاته نه مخکښې پورے ذکر اذکار او دعاګانے کول دی. لکه دا د نبی ﷺ طریقه وه چه د نمر ختلو نه لږ وړاندے په مِنیٰ طرف ته روان شو. (صحیح مسلم)

او مشرکان به د نمر خاته نه پس روانیدل. او دویم ځلی ئے په ذکر کولو امر اُوکړو، پدے کښې د ذکر تاکید، دوام او همیشوالے او په ذکر کښې اخلاص پیدا کول غرض دے.

○ یا دا چه مخکښې ذکر پدے وجه وو چه الله یاد کړئ په اعتبار د ذات سره بغیر د کتلو د نعمتونو د هغه نه ځکه چه الله تعالیٰ مستحق د حمد دے په اعتبار د ذات سره او په اعتبار د انعام کولو په مخلوقاتو باندے. او د دویم ذکر نه مراد ذکر دے په مقابله د نعمت د هدایت کښې نو په كَمَا هَدَاكُمْ کښې به کاف د تعلیل (علت) دپاره وی. یعنی ذکر ئے ځکه اُوکړئ چه هدایت ئے درته کړے. (فتح البیان).

﴿ كَمَا هَدَاكُمْ ﴾ دا دلیل دے چه د ذکر دپاره به شرعی طریقه پیژندل ضروری وی، او د ځان نه به په جهر سره اذکار او بدعی اذکار نهٔ جوړوی. یا کاف په معنیٰ د علت دے یعنی الله تعالیٰ په شکر سره یاد کړئ ځکه چه تاسو ته ئے هدایت کړیدے. توحید ئے در نصیب کړے. او د نبی ﷺ په واسطه ئے د حج طریقے درخودلی دی کوم چه د کامیابئ طریقے دی او د جاهلیت د رسمونو نه ئے بچ کړی یئ.

﴿ وَإِنْ كُنْتُمْ ﴾ إِنْ مخفف دے د مثقل نه یعنی اِنَّهُ كُنْتُمْ او لام ابتدائیه تاکیدیه دے. یا اِنْ وصلیه دے.

﴿ مِنْ قَبْلِهِ ﴾ : (۵) ضمیر یا هدایت ته راجع دے په ضمن د هَدَاكُمْ کښې. یا رسول، یا قرآن کریم ته

راجع دے۔ او دا دليل دے چه د قرآن او د رسول نه بغير انسان په گمراهئ کښ وی۔
(الضَّآلِّيۡنَ) (۱) يعنی د ايمان او د طاعت نه جاهلان او ناخبره وئ۔ (خطيبؒ)
(۲) يا جاهلان وئ، نهٔ پوهيدئ چه څنګه د الله ذکر او عبادت اُوکړئ۔ (فتح البيان)۔

| ثُمَّ اَفِيۡضُوۡا مِنۡ حَيۡثُ اَفَاضَ النَّاسُ وَاسۡتَغۡفِرُوا اللّٰهَ |
|---|
| بيا (وايم) راکوزيږئ د هغه ځائے نه چه راکوزيږی ټول خلق او بخنه غواړئ د الله نه |
| اِنَّ اللّٰهَ غَفُوۡرٌ رَّحِيۡمٌ ﴿۱۹۹﴾ |
| يقيناً الله تعالیٰ ډير بخونکے، رحم کونکے دے۔ |

**تفسير**: پدے آيت کښ عرفات ته د تللو او بيا د عرفات نه د راکوزيدو تاکيد دے۔ او مخکښ آيت سره صرف خبر ورکړے شو۔ او پدے آيت کښ پرے امر کوی او ددے فرضيت ثابتوی۔ دا رنګه د قريشو په رسم باندے صراحةً رد دے چه عرفات ته به نهٔ تلل۔ لکه مخکښ تير شو۔
بعض علماء (يعنی ضحاکؒ وغيره) وائی چه ددے نه مراد د مزدلفے نه مِنیٰ ته کوزيدل دی۔ ځکه چه دا کوزيدل هم ضروری دی۔ او دا قول ابن جرير طبریؒ غوره کړے او علامه صديق حسن خان قنوجیؒ وائی چه دا د قرآن د ظاهر سره برابر قول دۓ۔ (فتح البيان)۔
بناء په اول قول (ثُمَّ) لفظ د ترتيب ذکری دپاره دے۔ يعنی بيا دا هم واورئ۔ او بناء په دويم قول (ثُمَّ) په خپله معنیٰ دے ځکه چه کوزيدل د مزدلفے نه مِنیٰ ته روستو دی۔
(الناس) نه مراد يا عام عرب دی، يا ابراهيم عليه السلام او د هغه تابعدار دی۔ اشاره ده چه قريشو ملتِ ابراهيمی پريخے وو۔
﴿وَاسۡتَغۡفِرُوا اللّٰهَ﴾ ځکه چه حج اُوس ختميږی، نو په دغه ځائے کښ ډيره بخنه غوختل پکار دی۔ او دارنګه د هر عبادت نه روستو استغفار وی، لکه د فرض مانځه نه روستو درے کرته استغفرالله وئيلے شی۔ او انسان د الله تعالیٰ د پوره حق ځنګه چه د هغهٔ لائق وی – ادا کولو نهٔ قاصر او کوتاه دے۔ (۲) يا بخنه اُوغواړئ ځکه چه تاسو به په موقِف کښ د ابراهيم عليه السلام د سنت نه مخالفت کولو او عرفات ته به نهٔ تللئ۔ (۳) يا به ستاسو نه پدے موقِف کښ ډير مخالفتونه شوی وی۔ (٤) د ټولو ګناهونو دپاره بخنه اُوغواړئ۔
او په استغفار ئے حکم اُوکړو ځکه چه دا د رحمت د راتويدو ځايونه دی، او د قبوليت مقامات دی، او د دعا د قبليدو د ګمان ځايونه دی۔ دا ټول مطلبونه اخستل صحيح دی۔

**فائده** : د هر عبادت نه روستو استغفار ځکه مشروع دے چه د الله تعالیٰ حق ډیر لوئی دے او بنده د هغے په اداء کولو کښې قصور کوی۔ او بل پدے وجه چه د عمل صالح شرطونه زیات دی، کیدے شی چه بنده به هغه ټول وی پوره کړی۔

| فَاِذَا قَضَيْتُمْ مَّنَاسِكَكُمْ فَاذْكُرُوا اللّٰهَ كَذِكْرِكُمْ اٰبَآءَكُمْ |
| --- |
| نو کله چه تاسو پوره کړئ کارونه د حج ستاسو نو یادوئ الله لره په شان د یادولو ستاسو پلارانو لره |
| اَوْ اَشَدَّ ذِكْرًا فَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّقُوْلُ رَبَّنَآ |
| یا د هغے نه په زیات یادولو سره۔ نو بعضِ د خلقو نه هغه څوك دی چه وائی اے ربه زمونږ ! |
| اٰتِنَا فِي الدُّنْيَا وَمَا لَهٗ فِي الْاٰخِرَةِ مِنْ خَلَاقٍ ﴿۲۰۰﴾ |
| راکړه مونږ ته په دنیا کښې (هر شے) او نۀ وی دۀ لره په آخرت کښې څۀ برخه۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کښې الله تعالیٰ د حج د کارونو د فراغت نه روستو په ذکر کولو حکم کوی چه د الله په توفیق سره دا عظیم عبادت پوره شو، نو د هغه شکر کول او د هغه په ذکر کښې مصروف کیدل پکار دی، او د جاهلیت په رسم باندے رد دے چه هغوی به د مزدلفے نه مِنیٰ ته واپس کیدو نه روستو د جَمراتو خوا کښې میلے او مجلسونه لګول او د خپل پلار نیکۀ په شان کښې به ئے قصیدے او اشعار لوستل، او په هغوی به ئے فخرونه کول لکه اُوس هم د عامو حاجیانو نه دا ورځے هسے په ګپ شپ تیریږی۔

نو الله تعالیٰ د ایمان والو د فکر اصلاح کوی، او دوی ته تعلیم ورکوی چه صرف الله تعالیٰ ډیر یاد کړی او په یوائے والی او په محبت سره ئے یاد کړی، او د هغه شکر اُوکړی، ځکه پلار نیکۀ دوی له څۀ خیر ورکړے دے، او کوم هدایت ئے ورته پریخے دے، او کوم رزق ئے ورکړیدے۔

او دا ذکر به خاصکر په هغه موقعه زیات کولے شی چه کله حُجاج د قربانی، د طواف زیارت او د صفا او مروه د سعی نه فارغ شی او په مِنیٰ کښې د جمراتو د ویشتلو دپاره ایسار وی، نو دا صرف د ذکر اذکار ورځے دی۔ پدے کښې د الله تعالیٰ سره تعلق قائمول پکار دی۔

﴿مَّنَاسِكَكُمْ﴾ (۱) د مناسك نه مراد د حج اعمال او کارونه دی۔ (۲) یا قربانیانے مراد دی۔ یعنی د اختر په ورځ د قربانی کولو نه روستو په ذکرونو کښې شروع شئ۔

﴿كَذِكْرِكُمْ اٰبَآءَكُمْ﴾ دا تشبیه (۱) په وحدت (یووالی) کښې ده، یعنی لکه څنګه چه تۀ د خپل

پلار سره نور څوك شريك نهٔ گنړے نو دغه شان الله هم يو اځے ياد کړه۔ د هغه سره څنګه شريکان جوړوے؟!۔ (۲) يا په محبت کښې ده۔ يعنې الله په مينه ياد کړئ لکه پلار نيکهٔ چه په مينه يادوے۔ او فخر په پلار نيکهٔ کوے، نو په الله باندے فخر اُوکړه۔

﴿ اَوْ اَشَدَّ ذِكْرًا ﴾ ځکه چه حق د الله تعالىٰ زيات دے، او احسانات د هغهٔ زيات دى، هغهٔ تاسو ته د اسلام هدايت اُوکړو او د نيکيو توفيق ئے درکړو، نو پکار دا ده چه هغه ډير ياد کړے شي۔

﴿ فَمِنَ النَّاسِ ﴾ د استغفار او د کثرتِ ذکر د نصيحت نه روستو الله تعالىٰ دعا طرف ته توجه ورکړه ځکه چه د ډير ذکر کولو نه روستو د دعا د قبليدو اميد زيات وى۔ او بيا ئے د هغه خلقو بدى بيان کړه چه د هغوى د ژوند اول مقصود، د دنيا حاصلول وى، او عبادتونه هم صرف د دنيا د حاجاتو پوره کيدو دپاره کوى، او د هغه خلقو صفت ئے اُوکړو چه د هغوى نظر د آخرت په کاميابئ او د اُور نه په نجات حاصلولو لګى۔

او ددے ځائے نه روستو اُوس الله تعالىٰ د خلقو تقسيم بيانوى چه حج ته لاړ شي يا عامه دنيا کښې وى چه دا څلور قِسمه انسانان دى۔او ددے په ذکر کولو کښې ترغيب او ترهيب ورکوى۔ چه د ښو په شان جوړ شئ او د بدو صفاتو والا خلقو د صفاتو نه ځان اُوساتئ۔

**فائده** : ددے ځائے نه څلور اقسام د انسانانو ذکر کيږى (۱) اول انسان صرف د دنيا سره مينه لرى ظاهراً او باطناً۔ (۲) دويم د دنيا او آخرت دواړو سره مينه لرى ظاهراً او باطناً۔ (۳) او دريم د آخرت سره مينه لرى ظاهراً، او د دنيا سره مينه لرى باطناً۔ (٤) او څلورم صرف د آخرت سره مينه لرى ظاهراً او باطناً، د دنيا نه ظاهراً او باطناً اعراض کونکے دے۔ (فتح البيان ۱/٤١٨)

د عبد الله بن عباس رضى الله عنهما نه روايت دے چه بعض بانډيچيانو به په عرفات کښې د الله تعالىٰ نه دنياوى فائدے غوختے او د آخرت هيڅ ذکر به ئے نهٔ کولو۔

بعض وائى چه عربو مشرکانو به دغسے کول۔

او ځينې وائى چه بعض مسلمانانو به دغسے کول چه د خپل ژوند د ښه کولو سوال به ئے کولو او آخرت به ئے هيروو، نو ددے خلقو متعلق دا آيت نازل شو۔

او مشرکانو چه به کله په پلارانو فخرونه اُوکړل، نو بيا به ئے دا سوال کولو چه اے الله !مونږ ته هم د دنيا دغه اسباب او مالونه راکړه کوم چه ډيرے زمونږ پلار نيکهٔ له ورکړى وو۔

﴿ اٰتِنَا فِى الدُّنْيَا ﴾ مفعول ئے نهٔ دے ذکر کړے يعنې جَمِيْعَ الْاَشْيَاءِ۔ (ټول څيزونه راکړه) يا (مَا نُرِيْدُ) (څهٔ چه مونږ غواړو) په دنيا کښې راکړه يعنې صرف د دنيا سوال کوى۔ اے الله ! صحت راکړه، مال راکړه او بچى مے ښهٔ کړه نو دنيا غواړى او آخرت باندے ئے نظر نشته۔

﴿ وَمَالَهٗ فِی الْاٰخِرَةِ مِنْ خَلَاقٍ ﴾ څکه دا ډیر قلیل الهمة انسان دے، ظاهر بین دے، غټ شے (آخرت) ده ته نهٔ ښکاره کیږی۔ او صرف په دنیا ئے نظر لګی۔

که دا د مؤمنانو سره اُولګی نو بیا معنیٰ دا ده چه په آخرت کښې به ئے هغه برخه نهٔ وی کوم چه د نورو کاملو نیکانو ده چه هغوی دنیا او آخرت دواړه غوختے وی۔

(۲) یا به دلته تقدیر وی۔ (اِلَّا اَنْ یَّعْفُوَ اللّٰهُ عَنْهُ) یعنی برخه ئے په آخرت کښې نشته مګر که الله ورته معافی اُوکړه نو بیا به ئے برخه وی۔ لیکن ظاهر دا ده چه دا د کفارانو په حق کښې دے خو فاسقان په دوی کښې ضمناً د هغوی د فسق مطابق داخلیږی۔

| وَمِنْهُمْ مَّنْ يَّقُوْلُ رَبَّنَآ اٰتِنَا فِى الدُّنْيَا حَسَنَةً |
|---|
| او بعضِ د دوی نه هغه څوک دی چه وائی، اے ربه زمونږ! راکړے مونږ ته په دنیا کښې ښائسته ژوند |
| وَّفِى الْاٰخِرَةِ حَسَنَةً وَّقِنَا عَذَابَ النَّارِ ﴿۲۰۱﴾ |
| او په آخرت کښې ښائسته ژوند او اُوساته مونږ د عذاب د اُور نه۔ |

**تفسیر:** دا د حج والو دویم قسم دے۔ او دا نیکان (نیک بخت) خلق دی۔ چه دنیا او آخرت دواړه غواړی۔ او د نبی ﷺ عادت مبارک هم دا وو چه هرے دعا سره به ئے دا دعا ملګرے کوله۔ او په حدیث د ابوداود وغیره کښې دی چه رسول الله ﷺ به د رکن یمانی او د حجر اسود په مابین کښې دغه دعا کوله۔

امام احمدؒ او امام مسلمؒ د انس رضی الله عنه نه روایت کړے چه رسول الله ﷺ د یو مریض پوښتنه اُوکړه چه هغه د بیمارئ په وجه سخت نرے شوے وو، نو رسول الله ﷺ هغه ته همدغه دعا اُوخودله، هغه داسے اُوکړل، نو بیماری ئے لرے شوه)۔ او د الله تعالیٰ هغه دعا خوښه وی چه دنیا او آخرت پکښې دواړه اُوغوختے شی څکه چه پدے کښې تواضع وی څکه چه کوم انسان دنیا نهٔ غواړی، نو ددے معنیٰ دا جوړیږی چه اے الله! که زما دنیا خرابه هم وی، نو زهٔ صبر کولے شم، دا په ځان باندے یو قِسم اعتماد دے۔ او کوم انسان چه صرف دنیا غواړی نو دا قلیل الذهن او قلیل الهمت وی، غټ مقصد ترے پاتے دے۔

﴿ حَسَنَةً ﴾ (ښائسته ژوند) ددے یو مصداق دے۔ (۱) ...... اَلْعِلْمُ۔ چه انسان له الله علم او پوهه په دین ورکړی دا ښهٔ ژوند دے۔ (۲) ...... اَلْوَلَدُ الصَّالِحُ (نیک بچے)۔

(۳) ...... علی رضی الله عنه فرمائی: اَلْمَرْاَةُ الصَّالِحَةُ (نیک عمله ښځه) چه سړی سره د دین په کار کښې مدد

کوی او خدمت ئې کوی۔

(٤) ..... تَوْفِيقُ الْحَسَنَاتِ وَالْعَمَلُ الصَّالِحُ : (چه انسان ته د نیك عملونو توفیق ملاویږی او ژوند ئې د الله په تعلق کښې تیریږی)۔ (٥) ..... اَلْمَالُ الْحَلَالُ حلال مال پکښې هم داخليږی ځکه چه د حلال په خوړلو سره انسان ته په نیك عملونو توفیق ملاویږی او اعمال ئې د قبولیت مقام ته رسیږی۔ (٦) عافیت، روغ صحت، (طبریؒ) (٧) فراخه کور۔(٨) آسانه او نرمه سورلی۔

(٩) او د خلقو ددهٔ په حق کښې ښائسته صفت کول۔ (یعنی لسان صدق)۔

(١٠) ..... ابوعبد الرحمن القاسمؒ فرمائی : مَنْ أُعْطِيَ قَلْبًا شَاكِرًا وَلِسَانًا ذَاكِرًا وَجَسَدًا صَابِرًا فَقَدْ أُوْتِيَ فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً] (تفسیر ابن ابی حاتم۲/۳۵۹) ۔ چا ته چه شکر گزار زړهٔ، ذکر کونکے ژبه او صبرناك بدن ورکړے شو نو هغه ته په دنیا کښې حسنه ورکړے شوه۔

علامه قرطبیؒ فرمائی : حسنه نکره ده، په مقام د دعا کښې راغلے ده نو د دنیا هر قسم خیرونه او فائدے او ښائسته حالتونه پکښې داخل دی۔

او د آخرت حسنه دا ده چه انسان ته جنت، د الله تعالیٰ دیدار، آسان حساب ملاؤ شی، د فزع اکبر نه امن، او د عذاب د اُور نه بچاؤ ملاؤ شی، دا غټه خبره ده، او ددے نه ماسوا چه کوم مصائب دی هغه تول کمزوری دی، غټې مسئلې خو پس د مرګه شروع کیږی۔

بیا چونکه د آخرت حسنه د ایمان او عمل صالح سره تړلے ده نو پدے وجه طلب ددے حسنې ایمان او عمل صالح لره متضمن دی۔

| |
|---|
| أُولَٰئِكَ لَهُمْ نَصِيبٌ مِّمَّا كَسَبُوا ۚ وَاللَّهُ سَرِيعُ الْحِسَابِ ﴿٢٠٢﴾ |
| دغه کسان دوی له برخه ده د هغه عمل نه چه دوی کړیدی۔او الله زر حساب کونکے دے۔ |

**تفسیر** : دا یا دے روستو ډلے (نیك بختو) ته اشاره ده چه دوی له به الله تعالیٰ پوره حصه د آخرت او د دنیا دواړو ورکړی۔ او د اولنۍ ډلے دپاره په آخرت کښې هیڅ نشته۔

○ یا دا دواړو ډلو ته اشاره ده یعنی دواړو ډلو له به الله تعالیٰ د عمل خپله خپله برخه ورکړی، نیکه وی او که بده۔ ○ یا چا چه دنیا غوختے وی دنیا به ورکړی او که چا دنیا او آخرت دواړه غوختے وی نو دواړه به ورکړی۔

﴿نَصِيبٌ مِّمَّا كَسَبُوا﴾ (١) نصیب نه مراد حصه او د (كَسَبُوا) نه مراد طلب دے ځکه چه (کسب وئیلے شی طلب کول د هغه شی چه د هغے سره مینه کیدے شی) یعنی دوی دپاره برخه ده د هغه دعا او حاجت نه چه دوی طلب کړے وو۔ او دا د الله د طرف نه د مسلمانانو سره وعده ده چه پداسے

مبارکو ځایونو کښې به د دوی دعا قبلوي.
(۲) یا د نصیب نه مراد ثواب دے او د کَسَبُوْا نه مراد عمل دے. یعني دوی ته به د دوی د عملونو ثوابونه ملاویږي.
(التحریر والتنویر ۲/۲٤٤).
﴿وَاللّٰهُ سَرِیْعُ الْحِسَابِ﴾ (۱) یعني د الله حساب زر راروان دے. یعني قیامت زر راتلونکے دے نو په نیك اعمالو سره جلتي اُوکړئ. (۲) یا په قیامت کښې به حساب په جلتۍ سره کوي، او د دے په مقدار کښې مختلف روایات دي. بعضو کښې دي چه د بیزے د لوشلو په مقدار. په بعضو کښې د مؤمن د فرض د مانځه ادا کولو د وخت اندازه ذکر ده. او بل روایت کښې دي چه تر نیمائي ورځ پورے به حساب ختم کړي. (قرطبي)
د علي ؓ نه تپوس اُوشو: الله به د بندګانو سره سَره د ډیر والي نه څنګه زر حساب کوي؟ نو وے فرمایل: [کَمَا یَرْزُقُهُمْ عَلٰی کَثْرَتِهِمْ] لکه څنګه چه سره د ډیر والي نه تولو ته په یو ځل رزق ورکوي. (تفسیر القرطبي والتسهیل).
نو پدے کښې د الله کمالِ قدرت ته اشاره شوه.
او پدے جمله کښې انسانانو ته تیزي ورکول دي چه دنیا کښې نیك اعمال کوئ او ځان سره د ګناهونو حساب کوئ چه پدے سره تاسو ته د الله حساب په آخرت کښې آسان شي. (قرطبي)
او د حساب طریقه دا ده چه الله به بنده ته نیك او بد عمل ورښائي او بیا به ترے د هغے تپوس کوي چه دا دے ولے کړے؟ او څنګه دے کړے؟ او بیا به د هغے بدله او سزا ورکوي.
(۳) یا حساب په لغت کښې شمار ته وئیلے شي، بیا ئے اطلاق کیږي په شمار د هغه شي چه هغه ادا کولے شي یا په هغے جزا ورکولے شي، نو د حق د وفا او پوره والي په معنیٰ استعمالیږي، نو معنیٰ دا ده چه الله د اعمالو بدله او د هغے جزا په جلتۍ سره ورکوي او ستاسو دعا به زر قبلوي.
لکه عَطَاءً حِسَابًا. أَیْ وِفَاقًا لِأَعْمَالِهِمْ. (هغه ورکړه چه د دوی د عملونو برابره وي). (ابن عاشور).

وَاذْكُرُوا اللّٰهَ فِیْٓ اَیَّامٍ مَّعْدُوْدٰتٍ فَمَنْ تَعَجَّلَ فِیْ یَوْمَیْنِ

او یادوئ الله لره په ورځو شمار کړے شوو کښې پس چا چه جلتي اُوکړه (په وېشتود جمراتو) په دوه ورځو کښې

فَلَآ اِثْمَ عَلَیْهِ وَمَنْ تَاَخَّرَ فَلَآ اِثْمَ عَلَیْهِ لِمَنِ اتَّقٰى

نو ګناه نشته په هغه او څوك چه روستو شو (دریمے ورځے ته) نو نشته ګناه په هغه. دپاره د هغه چا چه بربرې د الله نه،

وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّكُمْ اِلَيْهِ تُحْشَرُوْنَ ﴿۲۰۳﴾

او أُوويريږئ د الله نه او پوهه شئ چه يقيناً تاسو به خاص دے الله ته وړجمع کولے شئ۔

**تفسير** : پدے کښې امر دے په ذکر د الله تعالیٰ سره په ورځو د منیٰ کښې، او ددے نه مراد تکبيرات وئيل دي پدے ورځو کښې په هر ساعت کښې۔ او پس د فرض مونځونو نه په اُوچت آواز سره داسے : [اَللّٰهُ اَكْبَرُ اَللّٰهُ اَكْبَرُ اَللّٰهُ اَكْبَرُ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاللّٰهُ اَكْبَرُ، اَللّٰهُ اَكْبَرُ وَلِلّٰهِ الْحَمْدُ]۔ نور اذكار هم شته لکه اُووه قسمه ذکرونه راغلي دي په دے ورځو کښې۔

احكام العيدين للفريابي وفتح الباري وارواء الغليل (۳/۱۲۶)۔

او خصوصاً د جمراتو د ويشتو په وخت کښې د هر کانړي ويشتلو سره الله اکبر وئيل مسنون دي۔

﴿فِىٓ اَيَّامٍ مَّعْدُوْدٰتٍ﴾ عبد الله بن عباس رضی الله عنهما وائي چه د ((اَيَّامٍ مَّعْدُوْدٰتٍ)) نه مراد ايام تشريق دي، او هغه څلور ورځے دي، د قرباني ورځ او د هغے نه روستو درے ورځے يعني يولسمه، دولسمه او ديارلسمه ورځ۔ د ابن عمرؓ، ابن زبيرؓ، ابوموسیٰؓ، مجاهدؒ، سعيد بن جبيرؒ او قتادهٔ وغيره هم هـمدا قول دے۔ او ددے آيت نه هم ددے تائيد کيږي۔ او د مسلم په روايت کښې دي: رسول الله ﷺ فرمايلي دي: ((ايام تشريق د خوراك، څكاك، او د ذكر الهي ورځے دي))۔

د بخاري روايت دے چه ابن عمر رضی الله عنهما به په مِنىٰ کښې په هر وخت او هر حال کښې تکبيرات لوستل، د مونځونو نه روستو، په خپله بستره او په خپله خيمه کښې، او په ناسته او په روانه کښې پدے ټولو ورځو کښې۔ (فتح البيان)۔

(معدودات) ئے جمع راوړه ځکه چه ددے نه مراد د ورځے هر ساعت او هر وخت دے۔ او پدے کښې اشاره ده چه ددے ورځو هر وخت د تکبير وخت دے او صرف د فرض مونځونو نه روستو لوستلو پورے ئے تخصيص نشته (لکه چه په يو ضعيف حديث سره په خلقو کښې مشهور شويدی) او دليل پرے مخکښې عمل د ابن عمرؓ دے۔

**فائده** : په سورة الحج (۲۸) آيت کښې ئے ((اَيَّامٍ مَّعْلُوْمٰتٍ)) وئيلي دي، او دلته ((مَّعْدُوْدٰتٍ))؟ وجه دا ده چه هلته د ذبح ورځے مراد دي، او هغه عربو پيژندلے چه د اختر ورځ او د هغے نه دوه ورځے روستو دي۔ او دلته د شيطانانو د ويشتو ورځے مراد دي، او پدے کښې د جاهليت والو اختلاف وو۔ (لکه روستو راځي) پدے وجه دا ورځے به ئے شمارلے چه نن دويمه ورځ ده او که دريمه ده۔

او ددے نه دا هم معلومه شوه چه معدودات د اختر د ورځے نه علاوه روستو درے ورځے مراد دي، او د معلومات نه د اختر د ورځے سره درے ورځے مراد دي۔ يعني آخري ديارلسمه ورځ پکښې نه ده

داخله۔ اګرکه په راجح مذهب کښې په څلورمه ورځ هم ذبح کول جائز دي۔

نو لسمه (۱۰) ورځ د معلومات نه ده، نهٔ د معدودات نه، او د اختر نه دوه ورځې روستو معلومات او معدودات دواړه دي، او څلورمه ورځ د اختر د معدودات نه ده، نهٔ د معلومات نه۔ (ابن عاشور)۔

﴿ فَمَنْ تَعَجَّلَ فِيْ يَوْمَيْنِ ﴾ په دے نيم آيت کښې په بل رواج باندے رد دے : بعض خلقو به په مِنیٰ کښې دوه ورځے تيرولے او چا بـه درے ورځے تيرولے او پدے کار سره به ئے يو بل ته بد کتل۔ نو الله تـعـالـیٰ فـرمائي چه دواړه طريقے جائز دي، که څوك ديارلسمے ورځے ته پاتے کيږي هم جائز او که څـوك مـخکښې ځي نو هم جائز، نو ولے د الله په حکمونو کښې سختي پيدا کوئ؟ او ددے په وجه يـو بـل تـه بد ګوري؟ او دا دليل دے چه مستحب عمل، واجب او فرض ګنړل ـ يا مستحب عمل حرام ګنړل بدعت کار دے۔

(فَمَنْ تَعَجَّلَ) يـعـنـي چا چه جلتي اُوکړه په ويشتلو د شيطانانو کښې) تعجل او تأخر دواړه داسے فعلونه دي چه فاعل ئے نفس ماده د فعل ده ...... اَیْ مَنْ فَعَلَ فِعْلَ الْعَجَلَةِ وَفَعَلَ التَّاخُرِ

(چا چه جلتي اُوکړه او تاخير ئے اُوکړو)۔ او مفعول نهٔ غواړي۔

يا مفعول محذوف دے اَیْ فَمَنْ تَعَجَّلَ النَّفْرَ وَمَنْ تَاَخَّرَهٗ۔

(چا چه جلتي اُوکړه په تللو د منیٰ نه او چا چه روستو والے اُوکړو په تللو کښې د منیٰ نه)۔

(فِيْ يَوْمَيْنِ) يـعـنـي پـه پـوره کـولـو د دوه ورځو کښې جلتي کوي چه دوه ورځې جمرات اُوولي او درے (آخري) ورځے ته ايسار نهٔ شي۔ نو دا هم جائز دي۔ د يومين نه مراد د اختر د ورځے نه علاوه دوه ورځے دي۔ يعني يو لسمه او دولسمه ورځ د زوال نه روستو جمرات اُوولي او بيا د مِنیٰ نه لاړ شي۔ او ديارلسمے ورځے تـه ايسار نشي نو هم جائز ده۔ ليکن شرط دا دے چه د نمر د پريوتو نه مخکښې مخکښې به اُوځي۔ که نمر پرے مِنیٰ کښې پريوتو نو بيا به ايساريږي۔

﴿ وَمَنْ تَاَخَّرَ فَلَآ اِثْمَ عَلَيْهِ ﴾ يعني که څوك ديارلسمے ورځے ته پاتے شو نو ګناهګار نهٔ دے، ليکن پاتے کيدو کښې خير دے ځکه چه نبی ﷺ پخپله د اختر څلورمے ورځے ته پاتے شوے وو۔ دلته ئے نفي د اِثم اُوکړه ځکه چه خلقو پدے کښې ګناه ګنړله۔

**فائده :** دا آيت نه دليل دے چه مِنیٰ کښې شپے تيرول واجب دي۔ او که چا مِنیٰ کښې شپے تيرے نـکـړے نـو واجـب تـرے پاتے شو نو په دهٔ به دم لازم وي بناء په موقوف روايت۔ او مرفوع حديث پـکښې نشتـه۔ مـګـر کـه د چا سخت ضرورت وي نو بيا شپه بهر تيرول جائز دي لکه نبی کريم ﷺ سيدنا عباس ﷺ تـه رخصت ورکړے وو چه مـکـے تـه لاړ شي او خلقو باندے د زمزم اُوبه اُوڅکي۔ (ابن عاشور)۔

﴿لِمَنِ اتَّقٰى﴾ (۱) يعني دا اختيار او دا حكم د جلتي او تاخير كولو د هغه چا دپاره دے چه په هغه كښې تقوىٰ وي، حج ئے په كامله طريقه ادا كړے وي او په غلط نيت نۀ ځي، او د جلتي تللو حكم قبلوي، ليكن روستو پاتے كيږي د الله د عبادت او ځان نزدے كولو دپاره۔ او كه د وراني دپاره تلو، مثلاً غلا، ډاكے، زنا دپاره جلتي كوي نو د هغه دپاره دا رخصت نشته۔

(۲) يا [اَلْمَغْفِرَةُ وَغُفْرَانُ الذُّنُوْبِ لِمَنِ اتَّقٰى] يعني مغفرت د الله به هغه حاجي دپاره وي چه د الله نه يريږي۔ په حج كښې هم تقوىٰ كوي او آينده كښې هم تقوىٰ كوي۔

(۳) يا [لِمَنِ اتَّقَى الْاِثْمَ فِي التَّقَدُّمِ وَالتَّاَخُّرِ] يعني ځوك چه ځان دپاره مخكښې والي او روستو والي كښې د گناه نه يريږي۔ چه كوم كښې به گناه وي نو الله فرمائي : گناه پكښې نشته، پاتے كيدل او تلل ورله جائز دي۔

(٤) ابـن عاشورؒ ددے ښۀ نكته ذكر كړيده چه الله تعالىٰ هر كله (فَمَنْ تَعَجَّلَ فِيْ يَوْمَيْنِ فَلَا اِثْمَ عَلَيْهِ) ذكر كړو، نو ددے گمان پيدا كيدو يره راغله چه جلتي؛ سره وتل به غوره وي ځكه چه هسے نه چه په مِنىٰ كښې په بدو خبرو او فخرونو كښې واقع نشي نو دا گمان ئے دفع كړو په دے قول (وَمَنْ تَاَخَّرَ فَلَا اِثْمَ عَلَيْهِ) نو هر كله ئے چه دا گمان نفي كړو نو آوريدونكے پو هه شو چه د روستو پاتے كيدونكي دپاره پدغه پاكو مباركو مقاماتو كښې فضيلت شته چه د الله ذكر اُوكړي ددے وجه نه ئے روستو پسے (لِمَنِ اتَّقٰى) راوړو يعني ځوك چه د الله نه يريږي په روستو پاتے كيدو كښې او رفث او فسوق نكوي په ورځو د مِنىٰ كښې نو د هغه دپاره پدے مقامامو كښې پاتے كيدو كښې فضيلت شته، ورنه ځلورمے ورځے ته روستو كيدل د هغه چا دپاره چه تقوىٰ نۀ كوي گناه ده۔ لهذا (لِمَنِ اتَّقٰى) د نفي د معنىٰ پورے متعلق دے چه په هغے باندے (لَا) دلالت كوي۔ يا خبر د مبتدا دے اي ذلك لمن اتقى۔ او بغير ددے نه د (لِمَنِ اتَّقٰى) ذكر كولو هيڅ وجه نۀ ښكاره كيږي۔

(التحرير والتنوير ۲/۲٤۸)

﴿وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّكُمْ اِلَيْهِ تُحْشَرُوْنَ﴾ پدے كښې حاجيانو ته تيزي وركوي چه د حج نه روستو پكار دا ده چه تاسو كښې تقوىٰ راشي، او ځانله د حج پورے دے تقوىٰ خاص نۀ وي۔ لكه د جاهليت والو به دا طريقه وه، او اُوس هم ډير جاهلان د حج په ورځو كښې (دارنگه په رمضان كښې) خو بزرگان وي ليكن كله چه كلي ته راشي نو همغه شان بلكه د هغے نه زياتے سركشئ او گناهونو كښې مبتلا شي۔ او جاهليت والو به د حج نه روستو جگړے او لوټ مار او فسادونه كول۔ (ابن عاشورؒ)

| وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يُعْجِبُكَ قَوْلُهُ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا |
|---|
| او بعض د خلقو نه هغه څوك دي چه تعجب كښې اچوي تا لره وينا د هغه په باره د ژوند دنيوي كښې |
| وَيُشْهِدُ اللّٰهَ عَلٰى مَا فِي قَلْبِهِ وَهُوَ اَلَدُّ الْخِصَامِ ﴿۲۰۴﴾ |
| او گواه كوي الله لره په هغه څه چه د هغه په زړه كښې دي او هغه ډير سخت جګړه مار دے. |

**تفسیر:** اُوس دوه قسمه نور خلق بيانوي چه يو غټ منافق (اَلشَّقِيُّ الْاَعْلٰى) غټ بدبخت) دے چه د دنيا د محبت سره ئے نور بد صفات هم يو ځائے كړيدي. او بل غټ نيك عمله انسان. (اَلسَّعِيْدُ الْاَعْلٰى) (لوئي نيك بخت) چه صرف د آخرت سره ئے مكمله مينه ده. او په آخرت ئے خپل ځان قربان كړيدے. او دا د حاجيانو سره هم تعلق لري او د عامو انسانانو سره هم.

**ربط او مناسبة** : (۱) دا هم د حجاجو اقسام دي (۲) يا نور خلق دي. د خبرے نه خبره پيدا شوه. (۳) مَنْ تَعَجَّلَ او تَاَخَّرَ سره لګيري چه اَلَدُّ الْخِصَامِ دے چه په ديني مسائلو كښې جګړے كوي. او پدے كښې مقصود ترغيب او تحذير دے يعني ددے يو په شان طريقه اختياره كړئ او ددے بل د عمل نه ځان بچ كړئ.

﴿وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يُعْجِبُكَ قَوْلُهُ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا﴾

**شان نزول** :دا آيت د اخنس بن شريق ثقفي منافق په باره كښې نازل وو چه دا ښائسته شكل او خوږو خبرو والا وو، ليكن سخت ضرري انسان وو، د دنيا په باره كښې ماهر او د آخرت په باره كښې ناپوهه. ابن جرير د سُدّي په حواله نقل كړيدي چه دا آيت د اخنس په باره كښې نازل شوے وو چه هغه رسول الله ﷺ ته راغلو او د خپل مسلمانيدلو اعلان ئے اُوكړو، حال دا چه د زړه نه كافر وو. د ابن عباس رضي الله عنهما د يو روايت مطابق د منافقانو د يو جماعت په باره كښې نازل شوے وو چه هغوي د خُبيب ﷺ او د هغه د ملګرو پورے توقے كړے وے. هر څنګه چه وي خو د مشهورے قاعدے مطابق چه د قرآن او سنت نه د فائدے اخستو دپاره د الفاظو عموم له اعتبار وي نۀ خاص سبب له.

نو دا آيت په هر هغه شخص باندے صادقيږي چه اسلام د عقيدے او د ژوند د منهج په طريقه نۀ قبلوي، ليكن د دنيوي مصالحو او فائدو د خاطره اعلان كوي چه زۀ هم مسلمان يم. (تيسير الرحمن).

ډير خلق داسے شته چه د ووټونو او د مشري حاصلولو د خاطره مونځونه شروع كړي او نفلونو له زور وركړي، جنازو ته حاضريږي او خلقو ته وائي چه زۀ هم مسلمان يم.

او اول خطاب په يُعْجِبُكَ کښې نبي ﷺ ته وو بيا هر مخاطب په هره زمانه کښې مراد دے۔ پدے آيت کښې ورله درے بد صفات بيانوي۔

(من الناس) دا د تحقير (سپکوالي) کلمه ده۔

﴿يُعْجِبُكَ﴾ دا د إعجاب نه دے او هغه د عُجب نه دے په معنىٰ د تعجب سره۔

راغبؒ وائي : عجب هغه حيرانتيا ته وائي چه انسان ته د يو څيز په سبب باندے د نا پوهئ په وخت عارضيږي۔ بيا اعجاب کښې يو شے ښهٔ کنټرل وي او په عُجب کښې غالباً انکار وي۔

﴿فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا﴾ (۱) دا متعلق دے د يُعْجِبُكَ پورے يعنى دا صرف دنيا کښې چالاکه دے ليکن په آخرت کښې به چاړا وي۔ آخرت کښې به هغه څوك خبرے کوي چه انبياء عليهم السلام او صالحين او متقين وي۔

۲- يا د (قَوْلُهٗ) پورے متعلق دے، او همدا ظاهر مطلب دے يعنى د دنيا په باره کښې به ډير چالاکه هوښيار او ماهر وي، د دنيا په څيزونو او کاروبارونو به ښهٔ پو هيږي، مصنوعات به جوړوي، ليکن د دين په باره کښې به صفر وي، عقيده به ئے د کفر او شرك وي۔

حسن بصريؒ فرمائي : که روپئ ورله لاس کښې ورکړے نو په نوك باندے ئے کړهٔ او کوته پيژني ليکن [وَلَا يُحْسِنُ يُصَلِّيْ] (مونځ به ورله نهٔ ورځي)۔ نو دا بدي د هر هغه چا ده چه د دنيا په باره کښې خو ښهٔ ماهر وي، تمامتر چه اخلي نو شل ځائے تپوس کوي، او چه د دين مسئله راشي، بيا وائي چه مونږ اميان خلق يو، د کوم مُلا خبره اُومنو۔ کوم يو په حق دے؟ او دا حالت د هر هغه چا وي چه د دين غم ورسره نهٔ وي او منافق وي۔ او مؤمن ددے په خلاف وي (غِرٌّ كَرِيْمٌ) د دنيا په باره کښې سيده ساده وي (دهوکه ئے نهٔ وي ياده) او د دين په باره کښې شرافت والا۔ او دا صفت د منافقانو په سورة المنافقون (٤) آيت کښې راغلے دے

﴿وَاِنْ يَّقُوْلُوْا تَسْمَعْ لِقَوْلِهِمْ﴾۔ (که دوي خبرے کوي نو تهٔ به د دوي خبرو ته غوږ لردے)۔

او دا صفت په اخنس بن شريق کښې هم وو چه هغه به د نبي ﷺ او د مسلمانانو سره د محبت او وفادارئ خبرے کولے او د دين په باره کښې ئے هيڅ خبره نشوه کولے۔ (التحرير والتنوير ١/٢٠١)

۲- يا د قَوْلُهٗ نه مراد د ايمان دعوىٰ او د کافرانو نه د براءت، او د مؤمنانو د خير خواهئ، او د اخلاص او د ايمان والو او د نبي کريم ﷺ سره د محبت دعوىٰ ده۔

او مؤمنان او نبي ﷺ په دے خبرو خوشحاليږي۔ ليکن په حقيقت کښې دوي هغه شان نهٔ وي۔ لکه عبد الله بن ابى ابن سلول به د نبي ﷺ د منبر په خوا کښې ويل :..... [هٰذَا رَسُوْلُ اللهِ حَقًّا] دا د الله رشتينے رسول دے، ددهٔ په تابعدارئ کښې خير دے) او مينځ کښې غټ کافر وو۔

بل بد صفت ئې دا دے :

﴿ وَيُشْهِدُ اللّٰهَ عَلٰى مَا فِىْ قَلْبِهٖ ﴾ وائې چه الله گواه دے چه زما په زړهٔ کښې همدا خبره ده، او د خوله او د زړهٔ خبره مے يوه ده۔ او زهٔ مسلمان يم او زهٔ تاسره مينه لرم۔ يا د دين سره مينه لرم۔ او پدے صفت کښې اشاره ده چه دوی په دروغو قسمونه کوی۔ لکه دغه شان صفت د دوی په سورة التوبه (٤٢، ٥٦) آيت کښې هم راغلے دے۔

﴿ وَهُوَ اَلَدُّ الْخِصَامِ ﴾ دا دريم صفت دے۔ (اَلَدُّ) د لَدَدٌ نه دے، معنیٰ ئې ده :شَدِيْدُ الْخُصُوْمَةِ۔ (سختے جګړے والا) او د خصام: معنیٰ كَثِيْرُ الْخُصُوْمَةِ ده۔ يعنی ډيرے جګړے والا۔ خصام مصدر هم دے او جمع هم راځی۔ دلته معنیٰ مصدری مراد ده۔ يعنی دا سختے جګړے کوی، او سختی ئې دا ده چه بيرته معافی او رجوع نهٔ کوی او جګړه ئې نهٔ ختميږی او په باطله باندے جګړے کوی، او په هر ځا باندے دعوے کوی۔ او دارنګه ډيرے جګړے کوی، د هر ځا سره انختے وی۔ او څوك چه دغه شان وی نو دا غټ منافق وی۔

لکه حديث کښې هم راغلی دی۔ [اِنَّ اَبْغَضَ الرِّجَالِ اِلَى اللّٰهِ الْاَلَدُّ الْخَصِمُ] ...... (متفق عليه)

(الله تعالیٰ ته ډير مبغوض انسان هغه څوك دے چه سخت او ډير جګړه مار وی)

او دا غټه بد اخلاقی ده۔ ځکه چه د جګړو په وجه د انسان دين، عملنامه او تقویٰ خرابيږی، د زړهٔ نه ئې نور او رڼا اوځی۔ حديث کښې دی: ((څوك چه جګړه د الله دپاره پريږدی اګرکه په حقه وی نو الله ورله د جنت په طرف کښې کور جوړوی)) (ابوادود وسنده صحيح)

بل روايت کښې دی : [مَا ضَلَّ قَوْمٌ بَعْدَ هُدًى كَانُوْا عَلَيْهِ اِلَّا اُوْتُوا الْجَدَلَ] (مسند احمد والترمذی بسند صحيح - البانی) (يو قوم چه د هدايت نه روستو ګمراه کيږی نو ددے سبب دا وی چه هغوی ته جګړے ورکړے شی)۔

وَاِذَا تَوَلّٰى سَعٰى فِى الْاَرْضِ لِيُفْسِدَ فِيْهَا

او کله چه واوړی (ستاسو نه)، کوشش کوی په زمکه کښې، دے دپاره چه فساد اُوکړی په دے کښې

وَيُهْلِكَ الْحَرْثَ وَالنَّسْلَ وَاللّٰهُ لَا يُحِبُّ الْفَسَادَ ﴿۲۰۵﴾

او هلاك کړی فصل او نسل لره او الله مينه نهٔ کوی د فساد سره۔

**تفسير** : پدے کښې ددغه منافق نور درے بد صفتونه ذکر کوی چه دا متعدی ضررونه دی۔

﴿ وَاِذَا تَوَلّٰى ﴾ د (تَوَلّٰى) (۱) يوه معنیٰ ده [اِذَا اَدْبَرَ وَانْصَرَفَ عَمَّنْ خَدَعَهٗ بِكَلَامِهٖ] (قاسمی ۱/۵۱۱)

(د هغه چا نه واوري چه هغه ئې په خپله خبره دهوکه کړي)
او د هغه د مجلس نه واوري۔ نو روان شي په زمکه کښې د فسادونو دپاره۔ مطلب دا چه مخکښې آیت کښې ددهٔ حالت ذکر شو کله چه دا د مسلمانانو په مجلس کښې وي۔ او پدې آیت کښې ددهٔ حالت ذکر دے په وخت د غائب والي کښې د هغوی نه۔
(۲) دویم مطلب : دا د ولایة نه دے (تَوَلّٰی یَعۡنِیۡ صَارَ وَالِیًا) یعني کله چه د یو ځائے مشر شي نو بیا فسادونه کوي، د خلقو نه زمکے قبضه کوي، او فصلونه تباه کوي، او نور ظلمونه کوي۔ (ضحاك)۔ لکه زمونږ د زمانے غالباً مشران همدغسے وي۔
(۳) تولی کله په معنیٰ د (أَنِفَ وَغَضِبَ) سره وي۔ (طبری عن ابن جریج) (وفتح البیان)
او دے ته د زړهٔ اوړیدل وائی یعني (کله چه نفرت اوکړي او غصه شي) څوك ئې په غصه کړي چه دا منافقت ولے کوے؟ نو بیا دوی فسادونو ته لاس واچوي۔
(سَعٰی) ددے سَعۡی نه مراد یا په قدمونو باندے فسادونو ته منډه وهل او مزل کول دي لکه لارے شوکول، صله رحمي پریکول او دمسلمانانو ترمینځ جنګونه واقع کول او د هغوی وینے توئی کول۔ نو معنیٰ دا شوه (په جلتئ) سره کرځي د فسادونو دپاره)۔
(۲) یا د سعي نه مراد عمل في الفساد دے یعني د فساد کار کول دي اګرکه په هغے کښې د قدمونو مزل نهٔ وي لکه د مسلمانانو په خلاف تدبیرونه او چلونه جوړول۔ او هر هغه عمل چه انسان ئې په جوارحو او حواسو سره کوي هغے ته سعي وئیلے شي، او دا ددے آیت نه ښکاره کیږي۔ (فتح البیان ١/٤١٦)۔
﴿ لِیُفۡسِدَ فِیۡهَا ﴾ فساد ئې دا دے چه د ایمان په باره کښې د خلقو په زړونو کښې شبهے اچوي، د کفر د تقویت سازشونه کوي۔ (قاسمیؒ)، او د مسلمانانو د هر قسم بربادئ دپاره ئې کوشش جاري وي؛ ظاهري نقصانات هم ورکوي، او نسل ئې هم تباه کوي۔ او نور ګناهونه او وراني کوي۔ د هغوی وینے تویه وي او صله رحمي قطع کوي۔ (طبریؒ)
ډاکے کوي، لارے شوکوي، لکه اخنس بن شریق به دغه کارونه کول چه د مسلمانانو فصلونو ته به ئې اور اچولو او د هغوی خرهٔ به ئې قتلول۔
علامه مفسر قاسميؒ لیکي : د خلقو په زړونو کښې شبهات اچول او د کفر د مضبو طوالی دپاره چلونو جوړولو ته فساد وئیلے شي لکه دا معنیٰ په بل آیت کښې راغلے ده، فرعون وئیلي وو :
﴿ اَتَذَرُ مُوۡسٰی وَقَوۡمَهٗ لِیُفۡسِدُوۡا فِی الۡاَرۡضِ ﴾ (الاعراف/۱۲۷)
یعني موسیٰ او د هغه قوم به ستا قوم د دین نه واړوي او شریعت به ورله خراب کړي)

او دے معنیٰ ته فساد ځکه وائی چه دا کار د خلقو ترمینځ اختلاف پیدا کوی او د هغوی اجتماعیت جدا کوی، او خبره دے ته رسیږی چه بعض د بعضو نه براء ت اُوکړی، نو صله رحمی به ختمه شی او وینے به توئی شی۔ او دا معنیٰ په قرآن کښ زیاته استعمال ده۔ آه۔

﴿ وَيُهْلِكَ الْحَرْثَ وَالنَّسْلَ ﴾ (الحَرُث) یعنی فصلونه ورله تباه کوی او نسل بچو او ماشومانو ته وائی چه هغوی ته بد اخلاقی وربنائی، ډیرو خلقو ورله سنیما گانے او ویډیو گیمونه جوړ کړی او کیبل، او وی سی آر، او سی ډیز، د انسانی نسل د تباهئ دپاره تیار کړیدی۔

(۲) او حرث کله دین ته هم وائی۔

(۳) او کله زنانو ته هم وائی، هغوی ته د آزادی په نوم بے حیائی وربنائی لکه دا د یهود او نصاراؤ او د منافقانو مشن دے پدے زمانه کښ هم۔

زجاج وائی : منافقت کښ د مسلمانانو د کلمے تفریق (وحدت او اجتماعیت تس نس کول) او جګړے واقع کول راځی او پدے سره نسل هلاکیږی۔ (فتح البیان)

او نسل عوام الناس ته او هر روح والا حیوان ته هم وائی۔ (مجاهد- فتح البیان)

○ یا د حرث او نسل هلاکول مجموعه د ایذاء شدید (سخت ضرر) نه کنایه ده یعنی خلقو ته سخت ضررونه رسوی۔ (قاسمیؒ)

حافظ ابن کثیرؒ لیکی : حرث او نسل ئے خاص ذکرکړل ځکه چه په حرث سره د فصلونو او میوه جاتو ترقی راځی، او نسل سره د حیوانانو ترقی راځی، او اکثر عرب ددے دواړو مالکان وو او پدے سره ئے ژوند آباد وو، او دا منافق انسان پدے سره د انسانانو ژوند تباه کول غواړی۔

د امام مجاهدؒ نه نقل دی : کله چه دا انسان په زمکه کښ فسادونه او ظلمونه شروع کړی نو ددے په وجه الله تعالیٰ بارانونه بند کړی او قحط او سوکړهٔ راپیدا کړی، نو په هغے سره څاروی او فصلونه هلاك شی۔ نو ددهٔ فساد د نسل د هلاکت سبب جوړ شی۔

(تفسیر الطبری و ابن کثیر وفتح البیان)

**فائده** : دا آیت دلیل دے چه کوم شی سره نسل تباه کیږی، هغه فساد دے لکه منصوبه بندی او د (ضبطِ تولید) مشن چلول سراسرے دینی او کفری سازش دے چه هغوی پدے طریقه د مسلمانانو نسل کشی کوی۔ مسلمانانوله ددے نه اثر اخستل غفلت دے۔

﴿ وَاللّٰهُ لَا يُحِبُّ الْفَسَادَ ﴾ یعنی د الله تعالیٰ فساد خوښ نهٔ دے، دینی وی او که دنیوی۔ او نهٔ هغه خوك چه فساد ترے صادریږی که هغه هر څوك وی۔ او اخنس بن شریقؓ به خپل قوم سره دغه غداری کوله چه باغونه او فصلونه به ئے ورله سیزل اگرکه هغوی به کافران هم وو نو ځکه الله

اُوفرمایل چه الله نفس فساد نهٔ خوښوی اګرکه کافرانو سره وی. (ابن عاشور)

محبت د الله تعالیٰ حقیقی صفت دے بغیر د تمثیل اوتشبیه او بغیر د تاویل نه به منلے شی. او په معنیٰ د ارادے او رضا سره اخستل ئے تحریف دے.

| |
|---|
| وَإِذَا قِيلَ لَهُ اتَّقِ اللَّهَ أَخَذَتْهُ الْعِزَّةُ بِالْإِثْمِ |
| او کله چه اُووئیلے شی دهٔ ته یره اُوکړه د الله نه نو اُونیسی دهٔ لره غیرت په ګناه باندے |
| فَحَسْبُهُ جَهَنَّمُ وَلَبِئْسَ الْمِهَادُ ﴿۲۰۶﴾ |
| نو کافی دے دهٔ لره جهنم او خامخا ډیر بد ځائے دے تیار کړے شوے. (دا جهنم). |

**تفسیر**: په دے کښ دد ے منافق بل بد صفت ذکر کوی چه هغه غرور او تکبر او د جاهلیت غیرت دے، د چا نصیحت پرے اثر نهٔ کوی. یعنی کله چه دے فاجر ته اُووئیل شی چه د الله نه یره کوه او دا فسادونه مهٔ کوه او د خپل قول او فعل د تضاد نه منع شه (ځکه مخکښ آیت کښ ئے قول ذکر شو او دے آیت کښ عمل ذکر دے او د دواړو ترمینځ تضاد دے) او حق ته رجوع اُوکړه نو دا په غرور او تکبر او د جاهلیت په غیرت کښ راشی، خپل عزت ورته مخے ته راشی او نصیحت نهٔ قبلوی، نو د داسے خلقو ډیر بد انجام دے چه هغهٔ جهنم دے.

د عبد الله بن مسعود رضی الله عنه نه نقل دی: چه د ټولو نه لویه ګناه (اوکافی ګناه) دا ده چه یو تن ته اُووئیلے شی چه د الله نه اُویریږه، نو هغه په جواب کښ اُووائی: تهٔ خپل فکر کوه.

په بل روایت کښ دی: «الله تعالیٰ ته د ټولو نه ډیره بده او مبغوضه خبره دا ده چه یو سړے بل ته اُووائی د الله نه یره اُوکړه هغه وائی چه د خپل ځان غم کوه».

(شعب الایمان والصحیحة ۶/۹۹ رقم: ۲۵۹۸)

هارون الرشید نه یو یهودی د څهٔ حاجت مطالبه اُوکړه نو هغه پوره نکړے شو، نو یوه ورځ هارون بهر را اُووتو نو دے یهودی ورته اُووئیل: (اتَّقِ اللَّهَ يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ) د الله نه اُویریږه ایے د مؤمنانو امیره! نو هارون د آس نه راکوز شو او سجده ئے اُوکړه، بیا ئے د هغه په حاجت پوره کولو امر اُوکړو. چا ورته اُووئیل د یهودی په خبره تهٔ د آس نه راکوز شوے؟ هغه اُوفرمایل: ما د الله تعالیٰ دا قول را یاد کړو (وَإِذَا قِيلَ لَهُ اتَّقِ اللَّهَ الخ) (تفسیر القرطبی).

او دغه شان واقعه د عمر فاروق رضی الله عنه سره هم راغلے وه. چه هغهٔ ته اُووئیل شو (اتَّقِ اللَّهَ) نو هغه په سجده پریوتو. (تفسیر البغوی).

○ مالك بن مِغْوَل رحمة الله علیه ته یو سړی اُووئیل، د الله نه یره اُوکړه !۔ نو هغه الله ته د عاجزۍ او تواضع کولو دپاره راپرېوتو او اننګے ئے په زمکه کیخودو۔ (فتح البیان)

﴿ اَخَذَتْهُ الْعِزَّةُ ﴾ یعنی دهٔ کښې خو عزت نشته، لیکن ځان ورته عزتمند ښکاری، او غیرت کښې راشی۔ د عزت نه مراد دلته د جاهلیت غیرت دے، او د اخذ نه مراد غلبه ده، یعنی غیرت پرے غالبه شی، او په غصه کښې راشی۔ اخذ کښې معنیٰ د راتاوولو او راګیرولو ده یعنی غیرت دهٔ نه راتاو شی۔

﴿ بِالْاِثْمِ ﴾ (۱) یعنی دا غیرت ئے په ګناه دے او اسلامی غیرت نهٔ دے۔ (۲) یا باء سببیه ده، یعنی سبب ددے غیرت ګناه وی چه د مخکښې نه دهٔ په زړهٔ کښې ګناهونه جمع شویدی، پدے وجه په حقه خبره ورله غیرت ورځی۔ او دا وائی زهٔ عزتمند یم، ما ته دا خبرے څهٔ له کوے او صرف زهٔ مو لیدلے یم، یا وائی، زهٔ ښهٔ پوهیږم۔ کله وائی چه زهٔ به دا ګناه خامخا کوم، که تهٔ راته ډیر وائے خو زهٔ ستا خبرے نهٔ منم۔

او تفسیر روح المعانی لیکی: د اکثرو رسمیانو او بدعتیانو طریقه او صفت هم دا دے چه کله تهٔ ورته اُووائے، دا کار مهٔ کوه، دا حرام دے، بدعت دے، نو په غرور کښې راشی، چه اُوسه پورے مونږ کړیدی هیچا نهٔ یو منع کړی، او تاسو نوے مسئلے پیدا کړی۔ او اهل حقو ته چه حق بیان کړے شی، اګر که هغه پرے بد اُولګی خو منی ئے۔ او دعا کوی چه الله دِے تا له اجر درکړی چه زهٔ دِے په دے خبره پوهه کړم۔ او څوك چه په یوه نیکه حقه خبره باندے غصه کیږی نو دا منافق دے۔ او دا آیت هغه ته شامل دے۔ (روح المعانی)۔

او ددے آیت په شان د سورة الحج آیت دے ﴿ وَاِذَا تُتْلٰی عَلَیْهِمْ اٰیٰتُنَا بَیِّنٰتٍ تَعْرِفُ فِیْ وُجُوْهِ الَّذِیْنَ كَفَرُوا الْمُنْكَرَ یَكَادُوْنَ یَسْطُوْنَ بِالَّذِیْنَ یَتْلُوْنَ عَلَیْهِمْ اٰیٰتِنَا...... ﴾ الآیة۔

یعنی په حق باندے غصه کیږی او په داعی باندے حمله کوی۔

﴿ فَحَسْبُهٗ جَهَنَّمُ ﴾ حَسْب اصل کښې کافی ته وئیلے شی یعنی جهنم دهٔ دپاره کافی سزا ده۔ ځکه ګناه ئے غټه ده، نو سزا ئے هم د هغے برابر ده۔ یا دا چه د یو خیر خواه نصیحت په هغه باندے اثر نهٔ کوی نو د جهنم اُور به ئے برابر کړی چه ډیر خراب ځائے دے۔

﴿ وَلَبِئْسَ الْمِهَادُ ﴾ (۱) (مِهَاد) جمع د مَهْد ده، د خوب او د آرام دپاره تیار شوی ځائے ته وائی۔

(۲) یا مفرد دے په معنیٰ د فِراش (بسترے) سره۔ او جهنم ته مِهَاد پدے وجه اُووئیل شو چه دا د کافرانو د قرارۍ او د اُوسیدو ځائے دے۔ د کافرانو شاګانے به ورسره لګیږی۔ او جهنم ته مِهَاد وئیل په طریقه د تهکم او مسخرے سره دی۔

(۳) یا د مِهَاد نه مراد اعمال دی. یعنی [بِئْسَ مَا مَهَّدُوْا لِاَنْفُسِهِمْ مِنَ الْاَعْمَالِ السَّیِّئَةِ] (مجاهد) (بد دی هغه اعمال چه دے مجرمانو د خپلو ځانونو دپاره د مخکښ نه تیار کړی دی) نو هغه اعمال به دوی ته هیڅ فائده نهٔ ورکوی. (تفسیر فتح البیان للصدیق حسن خان).

لیکن اول تفسیر ظاهر دے.

| وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّشْرِىْ نَفْسَهُ ابْتِغَآءَ مَرْضَاتِ اللّٰهِ وَاللّٰهُ رَءُوْفٌۢ بِالْعِبَادِ ﴿۲۰۷﴾ |
| --- |
| او بعض د خلقو نه هغه څوک دی چه خرڅوی ځان خپل دپاره د طلب د رضا د الله او الله شفقت کونکے دے په بندګانو خپلو. |

**تفسیر:** اُوس د نیک عَمَله انسان حال بیانوی چه پوره کامیاب او نیک بخت دے او دا څلورم قسم دے. مفسرین پدے کښې مختلف اقوال کوی :○ حافظ ابن جریر الطبریؒ وائی ظاهر دا ده چه دا آیت د امر بالمعروف او نهی عن المنکر کونکی په باره کښې نازل دے ځکه چه دا د مخکښې منافق مقابل دے. هغه دنیا پرست دے، خپل دین په دنیا طلب کولو باندے خرچ کوی، او دا د حق بیانونکے دے، اګرکه نفس ئے پکښې هلاك شی، او خلق ئے بے عزتی هم اُوکړی.

○ حافظ ابن کثیرؒ فرمائی : دا د مجاهد په باره کښې دے، چه دا جهاد د امر بالمعروف او نهی عن المنکر په طریقه سره وی او که د قتال په طریقه سره وی.

○ او د ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دے چه دا آیت د صهیب بن سنان رومی رضی الله عنه په باره کښې نازل شوے وو کله چه د مکے نه د هجرت په وخت د مکے مشرکانو هغه راګیر کړو چه تهٔ خپل مال ځان سره نشے وړے، که مال پریدے نو تلے شے، نو هغه ټول جائیداد مکے والو ته حواله کړو او صرف د ایمان اخستو سره مدینے ته روان شو، هغه لا مدینے ته رسیدلے نهٔ وو چه دا آیتونه نازل شوی وو. کله چه رسول الله ﷺ هغه اُولیدو، وے فرمایل : [رَبِحَ صُهَيْبٌ، رَبِحَ صُهَيْبٌ] (صهیب په خپل تجارت کښې ګټه اُوکړه، صهیب ګټه اُوکړه). (صحیح ابن حبان (۷۰۸۲) مستدرك د حاکم، تفسیر ابن مردویه بسند صحیح).

دا آیت اګرکه ابتداءً د صهیبؓ په باره کښې نازل دے، لیکن د آیت د الفاظو عموم لره اعتبار وی نو پدے وجه دا آیت هر مجاهد فی سبیل الله ته هم شاملیږی چه د الله د رضا دپاره د خپل نفس او مال قربانی پیش کوی. قتادةؒ وائی : ددے نه مراد مهاجرین او انصار دی. (فتح البیان).

○ دارنګه دآیت مراد هر هغه انسان دے چه د الله تعالیٰ د رضا دپاره د مال، د نفس، د خواهش نو د ارام او راحت قربانی ورکوی.

﴿ وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّشْرِىْ نَفْسَهُ ابْتِغَآءَ مَرْضَاتِ اللّٰهِ ﴾ (يَشْرِىْ) د شراء نه دے، په معنیٰ د اخستو هم

راضي او په معنیٰ د خرڅولو (بَيْع) سره هم راځي۔

دلته ئې معنیٰ د خرڅولو ده او اخستونکے ددے نفس الله تعالیٰ دے لکه چه الله فرمائي: ﴿ إِنَّ اللَّهَ اشْتَرَىٰ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ أَنفُسَهُمْ وَأَمْوَالَهُم بِأَنَّ لَهُمُ الْجَنَّةَ ﴾ (سورة توبه: ۱۱۱) او ثمن او عوض ئې جنت، او د الله رضا حاصلول دي۔ يعني الله له ئې ځان ورکړے او د الله رضا ئې اخستے ده که په هرځائے کښې استعماليږي، د الله رضاء ئې مقصد وي، که خدمت کښې وي، که په جهاد کښې وي، که په عبادت کښې وي۔ حاصل معنیٰ ئې د قربانولو ده۔

او حديث کښې هم دي چه څوك د الله رضا لټوي، نو الله تعالیٰ جبرئيل ته اُووائي، دا بنده هميشه زما رضا لټوي، نو ته پوهه شه چه زما رحمت په هغه نازل شو......)۔

(او زهٔ د هغهٔ نه راضي شوم)۔ الى آخر الحديث۔ (مسند احمد ۲۲٤٦٥ بسند حسن)

او د الله رضا حاصلول ډير عظيم نعمت دے۔ تردے چه جنتيانو ته به الله اُوفرمائي:

[اَلْيَوْمَ أُحِلُّ عَلَيْكُمْ رِضْوَانِي فَلَا أَسْخَطُ عَلَيْكُمْ أَبَدًا] ...... [متفق عليه]

نن به زهٔ تاسو ته د خپلے رضا اعلان کوم او هيڅکله به په تاسو نهٔ غصه کيږم)۔

نو جنتيان به ددے نه لوئي بل نعمت محسوس نهٔ کړي۔

﴿ وَاللَّهُ رَءُوفٌ بِالْعِبَادِ ﴾ الله په مؤمنانو بندګانو شفقت کوي چه داسے ښهٔ صفات پکښې وي۔ د عِبَاد نه مراد مؤمنان دي۔ په مؤمنانو باندے په خاص طور باندے مهربان دے، هغوي ته ئې اُوچتو درجو حاصلولو دپاره خپله لاره کښې د خپل محبوب روح او مال قربانولو لاره اُوښودله او د خپلے رضامندئ د حاصلولو طريقے ئې اُوښودلے۔

رأفت د رحمت نه اُوچته درجه ده۔ معنیٰ ئې ده نعمتونه ورکول او مصيبتونه او تکليفونه دفع کول۔ بيا د الله رأفت او رحمت دا دے (۱) چه په لږ او منقطع عمل باندے هميشه نعمتونه ورکوي۔ (۲) او د الله د رأفت نه دا هم ده چه د نفس د بچ کولو دپاره ئې دوی ته کلمه د کفر وئيل جائز کړيدي۔ (۳) او نفس باندے د هغه د وسع مطابق تکليف اچوي۔

(٤) د سلو کالو کافر که توبه اُوباسي نو ددے تولو کلونو سزا ترے لرے کوي او ددے په بدله کښې هميشه ثوابونه ورکوي۔ (٥) نفس او مال اصل کښې د الله دي بيا ئې اخلي او ددے په بدله کښې بنده ته اجر ورکوي۔ [اللباب لابن عادل، وروح المعاني للآلوسي]

﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا ادْخُلُوا فِي السِّلْمِ كَافَّةً وَلَا تَتَّبِعُوا خُطُوَاتِ الشَّيْطَانِ إِنَّهُ لَكُمْ عَدُوٌّ مُّبِينٌ ﴾ (۲۰۸)

اے ايمان والو! داخل شئ په اسلام کښې پوره او مهٔ روانيږئ د قدمونو د شيطان پسے، يقيناً هغه ستاسو دپاره دشمن دے ښکاره۔

**تفسیر : ربط :** (۱) مخکښې د خلقو څلور اقسام بیان شول نو اُوس الله تعالیٰ دعوت ورکوی چه دا ټول دې په یو دین باندې مکمل روان شي چه هغه اسلام دې۔

(۲) مناسبت دا دې چه ترغیب الی الجهاد شروع دې نو دې کښې بیا جهاد ته ترغیب دې۔

(۳) دریم : تربیة الجماعة المسلمه شروع دې نو دلته د تربیت دوه خبرې بیانوی (۱) ټول اسلام باندې عمل کول (۲) او د کفر او ارتداد نه ځان ساتل۔ او په خپل مابین کښې ئې مناسبت ښکاره دې، ځوک چه په دین باندې عمل نکوی نو په هغه باندې د ارتداد احتمال زیات وی۔

## شان نزول

(۱) دا آیتونه اصل کښې په باره د بعض مسلمانانو کښې نازل وو چه د یهودیانو نه وو، او د اسلام نه پس به ئې د خالي د ورځې تعظیم کولو، او بعض خوراکونه به ئې بد ګنړل لکه د اُوښانو غوښې۔ دارنګه دا به ئې وئیل چه که مونږه تورات لولو، نو دا به څنګه وی؟ نو الله تعالیٰ دا آیتونه نازل کړل چه دا خو پوره اسلام نهٔ دې، هرکله چه تا اسلام راوړو، نو بیا به پوره پوره په دې عمل کوئ۔ (۲) او پدې کښې رد دې په منافقانو هم چه په بعض دین عمل کوی او په بعض ئې نهٔ کوی۔ دعوې د ایمان او اسلام کوی، او کله چه به موقعه د جهاد راغله نو بیا به پټیدل۔

نو الله فرمائی چه په پوره اسلام کښې ظاهراً او باطناً داخل شئ، او د الله حکم چه راشي نو هغې ته تیار یږئ۔

(۳) دارنګه عام مسلمانانو ته هم الله فرمائی : چه دوی دې اسلام د ټولو جزئیاتو او تفاصیلو سره قبول کړی او د هغه چا په شان دې نهٔ کیږی چه د نفس د خواهشاتو غلامان جوړ شوی دی چه کومه خبره د هغوی د خواهش مطابق وی، هغه اخلي او کومه چه د هغوی د خواهش مطابق نهٔ وی، هغه پریدی، د اسلام راوړلو تقاضا دا ده چه د مسلمان هر خواهش د الله تعالیٰ د دین تابع شی، کوم نیك اعمال چه کولے شی هغه دې کوی، او کوم چه نهٔ شی کولے، د هغې د کولو نیت دې اُوکړی کله چه دوی ته قدرت او طاقت ملاؤ شی۔ دې دپاره چه د نیت اجر ورته ملاؤ شی۔ (تیسیر الرحمن)۔

او د اسلام مثال داسې دې لکه یو قمیص چه یو لستونړی اغوستلو سره قمیص نهٔ اغوستلے کیږی بلکه دا به ټول اچوې۔

(٤) دارنګه پدې کښې په بدعتیانو او رسمیانو باندې رد دې چه هغوی په دین کښې نوی کارونه راداخل کړی او د اسلام اعمال او عقائد ئې بدل کړی، د خپلو رسمونو رواجونو نه ئې دین جوړ کړے، کله ئې چه جګړې راشي نو په نرخ او رواج باندې فیصله کوی، اسلام ته نهٔ تیاریږی۔ په خپل غم او

ښادئ کښې د خپل رواج پسې روان وي، او بيا هم ځان ته بزرګان او کامل مسلمانان وائي۔ اهل بدعت دعوه د قرآن او حديث کوي او چه کله مسائل راشي نو بيا پکښې د بل چا خبرې مني۔ دا پوره اسلام نۀ دے۔ بعض خلق يو څو خبرو ته دعوت ورکوي، او دا پوره دين ګڼړي، دا هم د الله په نيز غلطه ده۔ بلکه ټول اسلام ته دعوت پکار دے۔

﴿ اُدْخُلُوْا فِى السِّلْمِ كَآفَّةً ﴾ (کافَّةً) په معنیٰ د جَمِيْعًا (ټول) سره، دا د (اُدْخُلُوْا) د فاعل او د (السِّلْمِ) دواړو نه حال واقع دے۔ (ابن عطية)

معنیٰ دا ده: ټول داخل شئ او په ټول اسلام کښې داخل شئ۔ يعنې داسې نۀ چه مونځ کوئ او زکوٰة نۀ ورکوئ، زکوٰة ورکوئ او روژه نه نيسئ، په مرض کښې د الله تعالیٰ تابع او په صحت کښې د خواهش تابع، کله وائي: ګيره دې پکښې نۀ وي، پينڅې پورته کول دې پکښې نۀ وي۔ کله وائي: مونږ خوځه صحابه نۀ يو، دا يو رواج دے پکښې اُوکړے شي، خير دے۔ نۀ، بلکه ټول کارونه د دين به کوئ۔ او ټول خلق په اسلام کښې داخل شئ، هيڅ پير فقير، ملا او امي، امير او ګدا، ښځه او سړے دې ددې نه بهر نۀ وي۔

(السِّلْم) سلم په زور او زير د سين، اسلام ته هم وائي او صلح ته هم وائي۔ بعض اهل لغتو فرق کړے چه په زور سره صلح ته وائي او په زير سره اسلام ته۔ ليکن اکثرو وئيلي دي چه دواړه يو شان دي۔ اګرکه په زور سره د صلح دپاره زيات استعماليږي۔

﴿ وَاِنْ جَنَحُوْا لِلسَّلْمِ ﴾ (انفال)۔

پدې کښې يو تفسير دا هم شويدے چه اے ايمان والو په صلح کښې داخل شئ او د يو بل سره جنګ جګړې مۀ کوئ لکه څنګه چه تاسو په جاهليت کښې يو بل سره جنګونه کول۔ (ابن عاشور ٢/٢٦١) ليکن اول قول غوره دے۔ ځکه د سياق نه معلوميږي۔

○ يا د سِلْم معنیٰ امن او صلح ده۔ او ددې نه مراد دينِ اسلام دے۔ يعنې داخل شئ په امن او صلح کښې چه هغه دينِ اسلام دے چه دا د امن دين دے۔ (جواهر القرآن)۔

﴿ وَلَا تَتَّبِعُوْا خُطُوٰتِ الشَّيْطٰنِ ﴾ دا وريسې ځکه وائي چه انسان په پوره اسلام باندې هغه وخت تللے شي چه کله د شيطان مخالفت د خپل ژوند عادت اُوګرځوي۔ پدې وجه ئې د شيطان د اتباع نه منع اُوکړه۔ او تنبيه ئې ورکړه چه دا ستاسو ښکاره دشمن دے۔ (تيسير) قدمونه د شيطان څه شے دے؟ (جَمِيْعُ الْبِدَعِ وَالْمَعَاصِىْ) (قرطبي)

يعنې ټول بدعات او ګناهونه، فسق او فجور او منافقت او پخوانی دينونه۔

دارنګه هغه شبهات چه ګمراهان ئې پيدا کوي۔ (فتح)۔

﴿ اِنَّهٗ لَكُمْ عَدُوٌّ مُّبِيْنٌ ﴾: شیطان ستاسو ښکاره دشمن دے، هغه همیشه ستاسو د ګمراه کولو متعلق سوچ کوی او ستاسو په زړونو کښې نوی نوی خیالات او نوے نوے طریقے پیدا کوی، دے دپاره چه ستاسو عملونه او عقیدے خرابے کړی۔

| فَاِنْ زَلَلْتُمْ مِّنْ بَعْدِ مَا جَآءَتْكُمُ الْبَيِّنٰتُ |
|---|
| نو که چرته تاسو اوښویدلئ (د پوره اسلام نه) پس د هغے نه چه راغلی دی تاسو ته ښکاره دلیلونه |
| فَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ ﴿۲۰۹﴾ |
| نو پوهه شئ چه یقیناً الله تعالیٰ زورور دے، حکمتونو والا دے۔ |

**تفسیر:** څوك چه په اسلام كښې داخل شی، او بیا په آرام آرام یو یو حکم ماتوی نو هغوی ته سخت تخویف (یره) ورکوی۔ دارنګه د زیات تاکید دپاره وائی چه که د واضح دلائلو راتللو باوجود تاسو د شیطان تابعداری کوئ، نو یاد لرئ چه الله تعالیٰ ډیر قدرت لرونکے دے، د هغهٔ د انتقام نه هیڅوك نشی بچ کیدے، او حکمت والا دے، د هغهٔ هیڅ کار د حکمت او مصلحت نه خالی نهٔ وی، د هغه د قهر او عذاب نه بچ کیدل ممکن نهٔ دی۔

او اشاره ده دے ته چه د اسلام نه هغهٔ څوك اوړی چه د الله د حکمونو پرواه نهٔ لری، کله یو ماتوی او کله بل۔ او دهٔ باندے د ګمراهئ خطره ده۔ الله به ترے دین واخلی ځکه چه دین قیمتی شے دے، څوك چه د دے قدر نهٔ کوی، الله ئے ترے بیرته اخلی۔ لکه پلار یو قیمتی شے بچی له ورکړی او هغه ئے اکرام نهٔ کوی نو هغه ئے ترے بیرته اخلی۔ نو د اسلام د حدودو پوره پوره لحاظ پکار دے۔

﴿ فَاِنْ زَلَلْتُمْ ﴾ د دے نه ظاهری ښویدل نهٔ دی مراد بلکه عبد الله بن عباسؓ فرمائی: (ضَلَلْتُمْ وَاَشْرَكْتُمْ وَعَرَجْتُمْ عَنِ الْحَقِّ) که تاسو ګمراه شوئ او شرك مو شروع کړو او د حق او دین نه واوړیدئ۔ او د ابن عباسؓ یو بل روایت دے: که تاسو سرهٔ د نزول د قرآن نه تعظیم د خالی ورځے کوئ او د اوښانو غوښے حرامے ګنړئ۔

﴿ مِنْ بَعْدِ مَا جَآءَتْكُمُ الْبَيِّنَاتُ ﴾ یعنی ښهٔ پوهه شوئ په دلائلو سره چه دا حق دے۔ او بیا هم اونهٔ منلو، نو دلته جزاء پټه ده یعنی (يُعَلِّبُكُمُ اللّٰهُ) الله به عذاب درکړی۔ ځکه چه الله تعالیٰ غالب از حکمت والا دے، د هغه د سزا ورکولو نه هغه څوك نهٔ شی منع کولے او د حکمت په تقاضا چه کومه سزا ورکول غواړی د هغے نه څوك نشی بچ کیدے۔

**فائده:** مفسرین لیکی: [فِيْ هٰذِهِ الْاٰيَةِ وَعِيْدٌ لِمَنْ كَانَ فِيْ قَلْبِهٖ نِفَاقٌ اَوْ شَكٌّ اَوْ شُبْهَةٌ فِي الدِّيْنِ] (فتح

البیان) (پدے آیت کښې وعید دے هغه چا ته چه د هغه په زړهٔ کښې منافقت وي یا د اسلام په باره کښې شك وي یا په دین اعتراضونه لري چه دا د جهاد او نور حکمونه ولے کیږي) نو الله به داسے قسم خلقو له سزا ورکوي۔

قتادة فرمائي : الله تعالیٰ ته د مخکښې نه معلومه وه چه څهٔ کسان به ددین نه اوړي نو الله تعالیٰ دوي ته د مخکښې نه خبر ورکړو، که دین او د دین احکام مو پریخودل نو سزا به درکوم۔ دے دپاره چه د الله تعالیٰ حجت په دوي باندے قائم شي۔

﴿فَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ عَزِیْزٌ حَکِیْمٌ﴾ کعب الاحبار رحمة الله علیه چه کله اسلام راوړو، نو قرآن ئے زدهٔ کولو، استاذ ورته داسے اُولوستل (فَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِیْمٌ) نو هغه اُووئیل : زهٔ خو دا ناشنا گنړم چه داسے وي (ځکه چه د حکیم ذات سره لائق نهٔ دی چه اول کښې وعید (دهمکی) ورکړي او بیا ورته د مغفرت اُمید ورکړي)۔ نو د دواړو په خوا کښې یو سړے تیریدو، کعبؓ ورته اُووئیل دا آیت څنګه دے ؟ هغه اُووئیل : (فَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ عَزِیْزٌ حَکِیْمٌ)۔ کعبؓ اُووئیل: همداسے پکار دے۔

(حاشیة فتح البیان)۔

دے نه معلومه شوه چه د آیتونو فواصل د خپل خپل مقام سره پوره مناسبت لري۔ او داسے واقعه د یو اعرابی سره هم راغلے ده چه هغه د یو قاري نه واوریدل (غفور رحیم) نو هغه اُووئیل چه حکیم ذات داسے خبره نهٔ کوي چه په خوئیدو باندے د معافۍ اعلان اُوکړي ځکه چه دا خو په غلطۍ باندے تیزي ورکول دي۔ (کشاف، وابن عاشور)۔

| هَلْ یَنْظُرُوْنَ اِلَّآ اَنْ یَّاْتِیَهُمُ اللّٰهُ فِیْ ظُلَلٍ مِّنَ الْغَمَامِ |
|---|
| انتظار نهٔ کوي دوي (په ایمان راوړلو کښې) مګر ددے چه راشي دوي ته الله په سورو کښې د وریځو نه |
| وَالْمَلٰٓئِکَةُ وَقُضِیَ الْاَمْرُ وَاِلَی اللّٰهِ تُرْجَعُ الْاُمُوْرُ ﴿۲۱۰﴾ |
| او ملائك راشي او فیصله اُوشي د کار او خاص الله ته ورګرځیدلے شي ټول کارونه۔ |

**تفسیر** : اُوس الله تعالیٰ هغه چا ته دنیوي تخویف او رټنه ورکوي چه بنهٔ د دین نه خبر دے او دین کښې پوره نهٔ داخلیږي، دین له سمه غاړه نهٔ ورکوي۔ او د خطوات الشیطان تابعدار دے، د خپلو شرارتونو او فسادونو نه نهٔ منع کیږي۔ نو الله فرمائي : دا د عذاب په انتظار کښې ناست دے چه الله ورله کله ښیره ورکړه بیا به په اسلام کښې پوره داخلیږي، خو هغه وخت به بیا فائده نهٔ ورکوي۔ یعنی دوي په ایمان راوړو کښې د قیامت او د هغے د یرو انتظار کوي کله چه الله تعالیٰ به په خپل پوره جلال

او لوڼې والی کښې راشي، او صرف د هغه بادشاهي به وي، د هغه حکمونه به نافذ کيږي، او صرف هغه به په تمامو کارونو کښې تصرف کوي، او ټول مخلوق به د هغه مخې ته په هغه ورځې بغير د تفريق نه سر ټيټونکي وي او د هغه ورځې يرې او ګبراهټ به دومره لوئې وي چه د ظالمانو زړونه به خوزيږي او په هغه ورځ به الله تعالىٰ کافرانو ته د هغوي د کفر سزا ورکوي۔

﴿ هَلْ يَنْظُرُوْنَ ﴾ هَلْ په معنىٰ د نفي دے او (يَنْظُرُوْنَ) په معنىٰ د انتظار دے او دا انتظار په ايمان راوړلو کښې او په دين کښې پوره داخليدو کښې دے۔ او اتيان د متشابهاتو نه دے چه دلته ئے تاويلي معنىٰ هم شته او حقيقي معنىٰ هم۔

نو حاصل معنىٰ دا شوه چه دا خلق ايمان نۀ راوړي او دے دين له غاړه نۀ ورکوي، غرض ئے دا دے چه الله ورله عذاب ورکړي بيا به ئے قبول کړي او د عذاب نه روستو دين کښې داخليدل الله تعالىٰ ته قبول نۀ دي، هغه د مشاهدے دين دے او د الله په نيز ايمان بالغيب مقبول دے۔ نو مطلب دا شو چه دوي دين نۀ مني مګر هله چه څپيړه ورکړے شي۔ او قبر ته اُورسولے شي نو بيا به دوي له ايمان راوړل څۀ فائده ورکړي؟ !!۔

نو پدے آيت کښې ټولو کفارو، منافقانو، مجرمانو او خوك چه فسق او فجور او ګناهونو کښې مبتلا دي هغوي ته د صحيح ايمان راوړلو دعوت دے۔

﴿ اِلَّا اَنْ يَّاْتِيَهُمُ اللّٰهُ ﴾ يعنى الله تعالىٰ دوي ته د قيامت په ورځ د دوي ترمينځ د فيصلے کولو دپاره راشي او هر عمل کونکي ته د هغه د عمل جزا او سزا ورکړي۔

اتيان (راتلل) د الله حق دي او دا په خپله حقيقي معنىٰ دے او څنګه به راځي د هغے کيفيت الله تعالىٰ ته سپارل شويدے لکه دا د سلف صالحينو د الله تعالىٰ د ټولو صفاتو متعلق عقيده ده چه هغه د الله راکوزيدل، په عرش باندے استواء (برابروالے)، تلل راتلل وغيره دي چه دا به هم مونږ الله دپاره ثابت ګڼرو او پدے به ايمان لرو او د مخلوق د صفاتو سره به ئے نۀ مشابه کوو، او نۀ به د مخلوق د صفت په ذريعه د هغے مثال بيانوو، او نۀ به ددے صفاتو تاويل کوو لکه باطل پرست معطله، جهميه، معتزله، اشاعره، ماتريديه، خوراج او باطلو فرقو د الله تعالىٰ صفات هغه شان نۀ دي منلي څنګه چه الله تعالىٰ ځان دپاره ثابت کړيدي يا د هغه رسول ﷺ د هغه دپاره ثابت کړيدي۔ لکه دا خبره امام قرطبيؒ، امام سمعانيؒ او ابن عبد البرؒ کړيده او حافظ ابن کثيرؒ د مجاهدؒ نه نقل کړيده۔

ابن کثيرؒ او قاسميؒ وئيلي دي : چه دلته د راتلو نه په آخرت کښې راتلل مراد دي۔ او په قيامت کښې د الله تعالىٰ او ملائکو راتلل حق دي۔ الله فرمائي: ﴿ وَيَوْمَ تَشَقَّقُ السَّمَآءُ بِالْغَمَامِ وَنُزِّلَ الْمَلٰٓئِكَةُ

تَنْزِيْلًا ﴾ (الفرقان : ۲۵) (په کومه ورځ چه آسمان به په وریځے سره اُوچوی او ملائک به راکوز شی) نو الله تعالیٰ به د بندګانو سره حساب کوی۔

او ابن مردویة، امام ابوداودؒ او منذریؒ د ابن مسعود رضی الله عنه نه مرفوعاً روایت راوړیدے چه ((الله تعالیٰ به اولنی او روستنی خلق د یوے مقررے معلومے ورځے دپاره راجمع کړی چه د دوی سترګے به آسمان ته نیغے کولاوے وی، انتظار به کوی چه ددوی ترمینځ فیصله اُوشی او الله به د عرش نه کرسی ته د وریځو په سورو کښې راکوز شی))۔

(ابوداود باب ۱۶۳ وصحیح الترغیب والترهیب ۳۵۹۱ للالبانی) وفتح البیان للصدیق (۱/۴۲۲)۔

او تاویلی معانی پکښې دا دی : ○ دلته مضاف پټ دے (اَیْ اَمْرُ اللهِ) یعنی رابه شی د الله امر او عذاب۔ لیکن دا تاویل به هله صحیح وی چه دے سره د الله تعالیٰ راتلل حق ګنړی۔

(۲) یا فِیْ په معنیٰ د باء سره دے یعنی الله دوی ته د وریځو سوری راولی او د هغے نه ورله عذاب ورکړی۔ (۳) اتیان کله په معنیٰ د هلاکت وی، یعنی الله ئے د وریځو په سورو کښې هلاك کړی۔ لکه ﴿ فَاَتَی اللهُ بُنْيَانَهُمْ مِنَ الْقَوَاعِدِ ﴾ کښې د اتیان نه مراد عذاب او هلاکت دے۔ او په قصه د بنی النضیر کښې ﴿ فَاَتَاهُمُ اللهُ مِنْ حَيْثُ لَمْ يَحْتَسِبُوْا ﴾ (اخفش)۔

دا معانی به هله صحیح وی چه کله انسان د الله حقیقی راتلل منی۔ (فتح البیان، القاسمی)

حافظ ابن کثیرؒ پدے مقام کښې هغه احادیث نقل کړی چه په هغے کښې د الله تعالیٰ په راکوزیدو باندے صراحت شویدے۔ لهذا د الله تعالیٰ دپاره دا صفات په خپل ظاهر باندے بناء دی، بغیر د تشبیه او تاویل نه به منلے شی۔

﴿ مِنَ الْغَمَامِ ﴾ وریځ ئے ولے ذکر کړه ځکه چه (اَلْغَمَامُ مَظِنَّةُ الرَّحْمَةِ وَالْعَذَابُ مِنْهُ اَفْظَعُ)

وریځ د الله د رحمت د ګمان ځائے وی، نو ددے نه عذاب راتلل ډیر ګبراهټ او هیبت والا وی) ددے وجه نه به رسول الله صلی الله علیه وسلم د وریځے نه ډیر یریدو، کیناستو او پاڅیدو او وتلو ننوتلو به، د عائشهؓ په جواب کښې ئے اُوفرمایل : ددے نه په یو قوم عذاب نازل شوے وو، زهٔ یریږم چه چرته ددے د طرف نه عذاب رانشی۔ (متفق علیه)

او د وریځے د شر نه به ئے پناه طلب کوله۔

﴿ وَالْمَلٰٓئِكَةُ ﴾ دا په لفظ (الله) باندے عطف دے۔ یعنی ملائک به راشی، الله تعالیٰ به ملائک راولیږی۔ او هغه به دا نافرمان بندګان د مرئ نه اُونیسی او زمکے ته به ئے راخطا کړی، یا به پرے زمکه واړوی۔ (۲) یا به ملائک د الله سره راشی، یا به د وریځے نه ګیر چاپیره وی۔

﴿ وَقُضِيَ الْاَمْرُ ﴾ (او فیصله اُوشی د کار) ۔ (۱) یعنی هلاك به ئے کړی، زلزله به پرے راولی، غر

به پرے راګوزار کړي۔(۲) یا د قیامت سره متعلق دے۔ فیصله د کار به اُوشي یعني قیامت به قائم شي۔ (عکرمة)۔ یا به ئے په قیامت کښې هلاك کړي او حساب به ورسره اُوکړي۔ او نیك او بد به خپل خپل انجام ته اُورسیږي۔ نو بیا به دوی ایمان راوړي لیکن بیا ئے څه فائده ؟!۔
(قضی) ئے ماضي راوړه، اشاره ده یقیني واقع کیدو ته ګویا کښې دا کار واقع شویدے۔
﴿ وَاِلَى اللّٰهِ تُرْجَعُ الْاُمُوْرُ ﴾ واو په معنیٰ د (اذ) دے، یعني په قیامت کښې به د کارونو فیصله څکه کولے شي چه ټول کارونه به هغه ته واپس کولے شي۔ د هیچا تصرف به نۀ وي۔ په دنیا کښې بعضې کارونه امیرانو، قاضیانو او افسرانو ته ورګرځي لیکن په آخرت کښې به صرف الله ته ورګرځي۔ نو پدے کښې مخلوق ته خبردارے دے چه هغه به په عملونو جزا او سزا ورکوي۔
(۲) یا دا چه دنیا کښې هم ټول کارونه الله ته واپس کیږي ځکه چه فاعل حقیقي ددے ټولو کائناتو الله تعالیٰ دے، انسانان که څۀ کارونه کوي نو دا هم د الله په قدرت او طاقت ورکولو دے۔

| سَلْ بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ كَمْ اٰتَيْنٰهُمْ مِّنْ اٰيَةٍ ۢ بَيِّنَةٍ ؕ وَمَنْ يُّبَدِّلْ نِعْمَةَ |
|---|
| تپوس اُوکړه د بني اسرائیلو نه څومره ورکړي وو مونږ دوی ته نخښې ښکاره او څوك چه بدل کړي نعمت |
| اللّٰهِ مِنْۢ بَعْدِ مَا جَآءَتْهُ فَاِنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ ﴿۲۱۱﴾ |
| د الله (په ناشکرئ سره) پس د هغې نه چه راغلے دے ده ته۔نو یقیناً الله سخت عذاب ورکونکے دے۔ |

**مناسبت** (۱) د مخکښې (فَاِنْ زَلَلْتُمْ) سره دے۔ یعني یو انسان له الله تعالیٰ قرآن او رسول راولیږي، عظیم نعمت پرے اُوکړي او دلائل ورته واضح کړي او دا بنده د هغې نه اعراض اُوکړي او فائده ترے وانخلي لکه د بني اسرائیلو په شان چه الله تعالیٰ ډیر واضح معجزات او آیات ورکړي وو، لیکن د خپل رسول سره ئے ضد اُوکړو، بیا ئے پرے ضعیف شان ایمان راوړو، بیا ئے د هغه نه روستو دین بنۀ بدل کړو۔
نو بني اسرائیل په مثال کښې راوړي چه دوی د نعمتونو ناشکري کړے وه۔ الله تعالیٰ سزا ورکړه نو تاسو سره به هم هغه شان کار اُوکړے شي۔
(۲) موجوده منکرینو ته دلائل راوړل فائده نۀ ورکوي لکه څنګه ئے چه بني اسرائیلو ته فائده نۀ وه ورکړي، لهذا د دوی په اسلام کښې د داخلیدو دپاره لویه معجزه او دلیل غوختل صحیح نۀ دي۔ (ابوحیان)
**مضمون** : الله تعالیٰ د قوانینو او د احکامو او د اخلاقو او آدابو په ذکر کولو سره ددے امت

تربيت بيانوي. نو د حج احكام ئې مخكښې بيان كړل، بيا ئې ذكر كړي چه بعض بنۀ خلق دي او بعض ناكاره، او ورسره ئې دا بيان كړل چه د الله تول دين كښې داخل شئ او څوك چه نۀ داخليږي، د هغوي عذاب مقصد دے چه پرے راشي. نو اُوس الله فرمائي: دا دين يو عظيم نعمت دے، دا مے تاسو له دركړو او دا نعمت تاسو اُوس شاته غورزوئ. د بني اسرائيلو په شان كيږئ، لاړ شئ بني اسرائيلو نه تپوس اُوكړئ، هغوي له ما څومره نعمتونه وركړي وو، هغوي بدل كړل. او د الله د حكمونو پرواه ئې نۀ لرله، نو الله تعالىٰ تباه كړل نو كه تاسو هم د هغوي په شان كار كوئ، تاسو به هم تباه شئ. الله مونږ ته خپل نعمت رايادوي چه دين زما يو لوئي نعمت دے. ناشكري ئې مۀ كوئ او د ټولو نعمتونو نه لوئي نعمت، دين، قرآن او حديث، د الله تعالىٰ عبادت او د هغه توحيد دے.

روستو آيت كښې الله تعالىٰ بيا د دنيا ے رغبتي بيانوي. چه دنيا يو سپك شے دے، خلق دين د دنيا په وجه پريدي نو دا كار ولے كوئ؟ دنيا سپكه ده او آخرت ډير لوئي دے، د آخرت عظمت او د دنيا سپك والے بيانوي، رټنه كافرو ته وركوي، زيرے مومنانو ته وركوي.

بيا روستو آيت كښې حكمة ارسال الرسل (د رسولانو د راليږلو حكمت) بيانوي چه الله تعالىٰ دا انبياء عليهم السلام دے دپاره خلقو ته راليږلي دي چه دا اختلافات لرے شي او په يو دين روان شي، نو چه تاسو حق دين پريدئ نو بيا د پيغمبرانو د راليږلو فائده څه ده؟.

بيا روستو (۲۱۴) آيت كښې په تكليفونو او شدائدو باندے د صبر امر كوي. دا د جهاد سره متعلق آيتونه دي. بيا د تدبير منزل احكام بيانيږي چه كورنئ برابره كړئ چه د هغے دپاره ئې اتلس احكام راوړي تر (۲۴۲) آيت پورے د انفاق مسئلے، د قتال، د اشهر حرم مسئلے، د شراب او جوارئ مسئلے، د يتيمانانو، د عدت، د طلاقو، قسمونو، ښځو ته د راتللو مسائل او د بچو د تربيت مسائل ئې بيان كړيدي، بيا د هغه ځائے نه روستو ئې دوه واقعات د ترغيب الى الجهاد دپاره ذكر كړيدي چه اے ايمان والو! تاسو به د كور جوړولو نه روستو د الله په لار كښې قتال كوئ، او داسے سُستي به نۀ كوئ لكه څنګه چه بني اسرائيل سُست شوي وو او د مرګ نه پريدلي وو، او د بعض مضبوطو بني اسرائيلو په شان جوړ شئ، بيا په (۲۵۱) آيت كښې به د قتال حكمت بيانيږي، بيا د رسول الله ﷺ د رسالت د رشتينوالي او د عامو رسولانو تذكره ده.

﴿ سَلْ بَنِىٓ اِسْرَاۗءِيْلَ ﴾ دا خطاب دے نبي ﷺ ته او مراد ترينه هر مخاطب دے، او دلته د سوال نه مراد تحقيق دے يعني د هغوي د نعمتونو په باره كښې معلومات اُوكړه.

د بني اسرائيلو نه د تپوس كولو مقصد دا نۀ دے چه انسان بني اسرائيلو له ورشي او هغوي نه

تپوس اُوکړی چه تاسو له الله تعالیٰ څومره نعمتونه درکړی دی؟۔ بلکه معنیٰ دا ده چه د هغے په باره کښې تهٔ سوچ اُوکړه، تحقیق اُوکړه چه الله رب العزت څومره نعمتونه هغوی له ورکړی وو، بدل ئے کړل الله پرے څه چل اُوکړو لکه خلق وائی : فلانکی نه تپوس اُوکړه ما ورسره څهٔ اُوکړل۔ یعنی خان خبر کړه۔

﴿كَمْ آتَيْنَاهُمْ﴾ کم استفهامیه دے۔ او خبریه کیدل ئے هم جائز دی۔

﴿مِنْ آيَةٍ بَيِّنَةٍ﴾ مفسرین لیکی : دلته د نخو نه مراد نعمتونه دی، او بنی اسرائیلوته چه کوم نخے ورکړے شوے وے، هغه هم نعمتونه وو، څکه معجزے ورکړے شوے وے، لکه د موسیٰ علیه السلام امسا، یَدِ بیضاء، مَنْ او سَلْویٰ راتلل او په دریاب باندے اړول۔ او په میدان تیه کښې سورے راتلل۔ (ابو العالیهؒ) او انبیاء او رسولان د دوی د هدایت دپاره رالیږل او نور قسمه کرامتونه ورکړے شوی وو، دے دپاره چه دوی د الله شکر اُوکړی او صحیح ایمان راوړی۔

○ او نقلی دلائل هم مراد دی چه په تورات او انجیل کښې د محمد رسول الله ﷺ د نبوت په صدق باندے واضح دلائل موجود وو، لیکن دوی هغه بدل کړل، یا ئے پټ کړل۔

آیة لفظ ئے څکه راوړو چه دینی نعمتونه پرے ډیر زیات وو، نو وقف دے : (فَبَدَّلُوْهَا) (یعنی هغوی دا نعمتونه بدل کړل)۔ او ناشکری ئے شروع کړه۔ او د رسولانو خبرے ئے نهٔ منلے او د هغوی د وژلو کوشش ئے شروع کړو۔

﴿وَمَنْ يُّبَدِّلْ نِعْمَةَ اللهِ﴾ یعنی څوک چه د الله نعمت بدل کړو په کفر، انکار، کتمان، غلط تاویل، د بعضو نه په اعراض کولو او په ناشکریٔ سره۔ د نعمت نه مراد عام نعمتونه دی (۱) که هغه اسلام دے چه دے لره یو انسان بدل کړی، پرے ئے دی، او د یهود، نصاراؤ او د مشرکانو لاره او د فسق او د فجور لاره اختیار کړی۔ نو الله به سخته سزا ورکړی۔

(۲) او که محمد رسول الله ﷺ دے لکه دا سورة ابراهیم (۲۸) آیت کښې راغلے دے۔

(۳) او که قرآن دے۔ چه خلقو د دنیا ذریعه جوړه کړه او پټ ئے کړو۔

(٤) دارنګه امن او حکومت نعمت دے، چه د الله قانون پکښې نهٔ نافذ کوی او پدے کښې ضمناً صحت او علم هم داخل دے چه انسان خپل صحت او علم د دنیا دپاره استعمال کړی او د دین هیڅ کار اُونکړی۔ او پدے کښې هر قسم نعمت داخل دے۔ (فتح البیان)۔

او پدے کښې هغه سړے هم داخلیږی چه الله تعالیٰ ورته پاک زړهٔ ورکړے وی او ددے لحاظ اُونهٔ ساتی نو هغه خراب او فاسد شی۔ دارنګه تقویٰ او ایمان ورته ورکړی بیا د هغے حفاظت اُونکړی۔ اَللّٰهُمَّ اَنْتَ الْمُسْتَعَانُ۔

﴿مِنۢ بَعۡدِ مَا جَآءَتۡهُ﴾ دے لفظ کښې ډیر تاکید دے چه څوك سره د معرفت او عِلم نه نعمت بدل کړی نو هغه ډیر بد تر حالت والا دے۔
﴿شَدِیۡدُ الۡعِقَابِ﴾ یعنی سخت عذاب به ورکړی پدے تبدیلۍ؛ ځکه چه د دوی دا تبدیلي د عِلم او پوهے نه پس ده او په غلطۍ؛ او جهالت سره نۀ ده۔

| |
|---|
| زُیِّنَ لِلَّذِیۡنَ کَفَرُوا الۡحَیٰوةُ الدُّنۡیَا وَیَسۡخَرُوۡنَ مِنَ الَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡا وَالَّذِیۡنَ |
| ښائسته کړے شویدے کافرانو ته ژوند دنیوی او توقے کوی د هغه کسانو پورے چه ایمان ئے راوړے او هغه کسان |
| اتَّقَوۡا فَوۡقَهُمۡ یَوۡمَ الۡقِیٰمَةِ وَاللّٰهُ یَرۡزُقُ مَنۡ یَّشَآءُ بِغَیۡرِ حِسَابٍ ﴿۲۱۲﴾ |
| چه ویریږی د الله نه، دپاسه به وی په دوی باندے په ورځ د قیامت کښې او الله رزق ورکوی چا له چه اُوغواړی بے حسابه۔ |

**تفسیر** : دے آیت کښې د دنیا بے رغبتی ده، او کافرانو ته رټنه ورکوی چه دوی د ایمان والو پورے مسخرے او توقے کوی۔
مناسبت : خلق د دین نه ولے اوړی، او د الله نعمتونه ولے بدلوی ؟ نو دے آیت کښې وجه بیانوی : [لاختیارهم الحیٰوة الدنیا علی الآخرة] ځکه دوی دنیا په آخرت غوره کړیده)۔
نو پدے آیت کښې کافرانو ته توبیخ او زورنه ده چه دوی دنیا په آخرت غوره کړیده۔ او کله چه انسان آخرت په دنیا غوره کړی نو بیا په دین کښې پوره داخلیدے شی او خواهشات قربانولے شی۔ او که دنیا غوره کړی نو بیا پوره نشی داخلیدے ځکه د دنیا او د دین تعارض راځی۔ نو الله ایمان والو ته ضمناً زیرے ورکوی چه قیامت کښې به ستاسو مزے وی اګرکه دنیا والا تاسو پورے توقے کوی نو صبر کوئ۔ او ترغیب دے چه دنیا مۀ غوره کوئ؛ زهد اختیار کړئ۔
﴿زُیِّنَ لِلَّذِیۡنَ کَفَرُوا الۡحَیٰوةُ الدُّنۡیَا﴾ حاصل مطلب دا دے چه کافرانو ته د دنیا ژندګی ښائسته ښکاره شویده چه په دے باندے خوشحاله او مطمئن دی، دولت جمع کوی، او د الله په لار کښې ئے نۀ خرچ کوی، او مسلمانانو پورے مسخرے کوی چه دوی فقیران دی، او د دوی دا ګمان دے چه دنیاوی مال او متاع حقیقی سعادت او نیك بختی ده، او څوك چه ددے نه محروم دے، نو هغه شقی او بد بخت دے، لیکن ایمان والا د دنیا نه اعراض کوی او کوم مال چه حاصلوی هغه د الله په لار کښې خرچ کوی، پدے وجه په قیامت کښې به د دوی مقام جنت وی او د کافرانو ټکانه به جهنم وی، هغوی به علیین کښې وی او کفار به اسفل السافلین کښې وی۔
(زین) دا تزیین چا کړیدے : (۱) نو یا فاعل ئے الله تعالیٰ دے یعنی الله ورته دنیا ښائسته ښکاره

کریده ○ (بِالْاِمْهَالِ) چه دنیا کښې ئې مهلت ورکړیدے، که الله ورله زر زر سزا ورکولے نو دنیا به ورته بدې ښکاره کیدلے. ○ یا (بِخَلْقِ الْاَشْیَاءِ الْعَجِیْبَةِ) په دنیا کښې الله تعالیٰ ناشنا او ښائسته څیزونه پیدا کړی دی چه هغه د کفارو دپاره امتحان گرځیدلے دے.

(۲) یا شیطان ورته په وسوسه اچولو سره ښائسته ښکاره کړے ده.

(۳) یا هغه نفسونه چه د دنیا سره په مینه کښې اموخته شویدی هغے ورته ښائسته ښکاره کریده. تول مطلبونه صحیح دی ځکه شیطان وسوسه اچوی او الله پکښې ناشنا څیزونه پیدا کړی او نفس په هغے سره اموخته دے.

بیا دنیا خو ایمان والو ته هم ښهٔ ښکاری او کفارو ته هم، لیکن فرق دا دے چه ایمان والا دنیا په آخرت باندے نهٔ غوره کوی، د الله حکمونه پکښې نهٔ ماتوی، او کفار صرف د دنیا د ژوند ښهٔ کولو دپاره لګیا دی او د الله تعالیٰ د حکمونو هیڅ پرواه نهٔ لری لکه دا به سورة آل عمران (۱٤) آیت کښې هم راشی. او ددے دنیا ښائسته ښکاره کیدلو نتیجه او مسبب دا دے:

﴿ وَيَسْخَرُوْنَ مِنَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا ﴾ چه ایمان والو پورے مسخرے کوی چه دا غریبانان دی او کم او کمزوری او کم عقل دی چه ددے نبی (ﷺ) خبره منی. او دا طریقه ده چه دنیا پرستو ته دنیا لوئی شے ښکاری، نو پدے وجه مسلمانان ورته سپك ښکاری، او دا اعتراضونه کوی چه که دا د الله تعالیٰ دوستان وے نو الله به ورله گاری موټرے او ښائسته جامے او بنگلے ورکړے وے. لکه دا همیشه د کافرو اعتراض رارروان دے.

﴿ وَالَّذِيْنَ اتَّقَوْا فَوْقَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ﴾ دا فوقیت (پورته والے) په مرتبه کښې هم مراد دے او په مکان کښې هم. ایمان والا به په اعلیٰ علیین (جنت) کښې وی او کافران او منافقان به په لاندے طبقه د جهنم کښې وی. بیا به قیامت کښې ایمان والا د کفارو پورے مسخرے کوی. لکه سورة المطففین (۳٤) آیت کښې دی:

﴿ فَالْيَوْمَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مِنَ الْكُفَّارِ يَضْحَكُوْنَ ﴾.

(نن ورځ به مؤمنان د کافرانو پورے خاندی)

او دا دلیل دے چه ایمان والو ته فوقیت د تقویٰ د وجه نه حاصلیږی، نو پدے کښې د تقویٰ په حاصلولو تیزی رکول دی. یا پدے کښې خبردارے دے چه دوی د دنیا نه اعراض ځکه کړیدے چه دوی د دنیا نه ځان ساتلے دے ځکه چه دا د الله تعالیٰ نه مشغوله کول کوی. (فتح البیان).

﴿ وَاللّٰهُ يَرْزُقُ ﴾ ددے جملے مقصد دا دے چه کفار د رزق د فراخئ د وجه نه تکبر کوی نو الله فرمائی: رزق خو د الله په لاس کښې دے، چا له ئې بے حسابه او زیات ورکوی، نو دا خو د کامیابئ

او د الله تعالىٰ د محبت نخه او سبب نهٔ دے. او پدے سره ئے ددے شبهے ازاله هم اُوکړه چه د کومے د پیدا کیدو امکان وو چه که چرے کافران په حق نهٔ دی، نو بیا الله تعالىٰ هغوی ته دومره ډیر مال او دولت ولے ورکړے دے؟ نو وے فرمایل چه دا دولت خو د څو ورځو دپاره دے او محض د دنیا زینت او رونق دے، په آخرت کښې خو به صرف دا ایمان او تقویٰ پکار راځی.

﴿بِغَيْرِ حِسَابٍ﴾ (۱) ابن عباس ﷺ فرمائی: (كَثِيْرًا بِلَا مِقْدَارٍ) یعنی ډیر رزق ورکوی چه هیڅ مقدار ئے نهٔ وی. (۲) توسیع مراد ده یعنی [يُوَسِّعُ الرِّزْقَ عَلٰى مَنْ يَّشَآءُ]

یعنی الله په دنیا کښې چا له فراخه رزق ورکوی.

(۳) ظاهر مطلب دا دے: [يَرْزُقُ فِي الدُّنْيَا بِلَاحِسَابٍ فِي الْآخِرَةِ] دنیا کښې فراخه رزق ورکوی او په آخرت کښې ورسره حساب نهٔ کوی، لکه د مؤمنانو رزق همدغسے وی. پدے کښې اشاره ده چه تاسو سره به حساب کیږی اے کافرو ولے په غنی ذات تکبر کوئ؟!.

(٤) یا حساب گمان ته وائی: ﴿وَيَرْزُقْهُ مِنْ حَيْثُ لَا يَحْتَسِبُ﴾ (طلاق/۳) او دا د متقیانو رزق دے چه گمان ئے هم نهٔ وی او رزق ورته ملاویږی. (٥) یا په آخرت او په جنت کښې داسے رزقونه ورکوی چه بے حسابه به وی، د دنیا په نسبت به ډیر زیات وی. یا حساب به ورسره نهٔ کوی. او دنیا کښې خو په رزق باندے حساب دے. نو کافران ډے نهٔ خوشحالیږی.

(٦) یا مطلب دا دے [لَايَخَافُ اللّٰهُ نَفَادَ مَا فِيْ خَزَائِنِهٖ] چه الله تعالىٰ د خپلو خزانو د ختمیدلو نه نهٔ یریږی چه حساب ئے اُوکړی چه څومره اُولگیدلے او څومره پاتے شوے.

(۷) یا بِغَيْرِ حِسَابٍ مَعَ اللّٰهِ) یعنی د الله سره څوك حساب نشی کولے چه ولے ډے فلانی ته رزق ورکړو او فلانی ته نهٔ. (فتح البيان) دا ټول مطالب صحیح دی. دریم ظاهر دے.

| كَانَ النَّاسُ اُمَّةً وَّاحِدَةً فَبَعَثَ اللّٰهُ النَّبِيّٖنَ مُبَشِّرِيْنَ وَمُنْذِرِيْنَ وَاَنْزَلَ مَعَهُمُ |
| --- |
| وو خلق یوه ډله (په دین باندے) نو الله راولیږل پیغمبران زیرے ورکونکی او ویره ورکونکی او نازل ئے کړل د هغوی سره |
| الْكِتٰبَ بِالْحَقِّ لِيَحْكُمَ بَيْنَ النَّاسِ فِيْمَا اخْتَلَفُوْا |
| کتابونه په حق سره، دے دپاره چه فیصله اُوکړی په مینځ د خلقو کښې په هغه څهٔ کښې چه دوی اختلاف کړے وو |
| فِيْهِ وَمَا اخْتَلَفَ فِيْهِ اِلَّا الَّذِيْنَ اُوْتُوْهُ مِنْ بَعْدِ مَا |
| په هغے کښې او اختلاف نهٔ وو کړے په هغے کښې مگر هغه کسانو چه ورکړے شوے وو هغوی ته کتاب روستو د هغے نه |

جَآءَتۡهُمُ الۡبَيِّنٰتُ بَغۡيًا بَيۡنَهُمۡ فَهَدَى اللّٰهُ الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا

چه راغلی وو هغوی ته ښکاره حکمونه د وجه د ضد نه په خپل مینځ کښ۔ نو الله هدایت اُوکړو هغه کسانو ته چه ایمان ئے راوړے وو

لِمَا اخۡتَلَفُوۡا فِيۡهِ مِنَ الۡحَـقِّ بِاِذۡنِهٖ وَاللّٰهُ يَهۡدِىۡ مَنۡ يَّشَآءُ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسۡتَقِيۡمٍ ﴿۲۱۳﴾

هغه خبرے ته چه دوی پکښ اختلاف کړے وو د حق نه۔ په توفیق خپل سره او الله تعالیٰ هدایت کوی چاته چه اُوغواړی نیغے لارے ته۔

**تفسیر** : اوس حکمة ارسال الرسل بیانوی، چه الله تعالیٰ انبیاء کرام څه له راالیږلی دی؟ هغه دا چه خلق په حق باندے اُودریږی، او اختلافات ختم شی، څوك چه خبره اُومنی هغوی له زیرے ورکړی، او څوك چه نهٔ منی هغوی له یره ورکړی۔ دارنګه د پیغمبرانو کار بیان وی چه هغه انذار او تبشیر دے۔

**مناسبت** : (۱) کافرانو دنیا غوره کړے وه او ایمان والو آخرت، نو پدے وجه ئے اختلاف پیدا شو، نو الله تعالیٰ انبیاء راولیږل چه دواړو ته بیان اُوکړی چه کومه لاره حقه ده۔

(۲) اُدۡخُلُوۡا فِى السِّلۡمِ كَآفَّةً سره ئے مناسبت دے چه الله تعالیٰ نبی دے دپاره راالیږلے دے چه ټول خلق په صحیح دین کښ داخل شی او اختلاف ختم شی او کله چه تاسو اختلافات کوئ او د هغه خبره نهٔ منئ نو بیا د رسول د رالیږلو فائده څه شوه؟۔

(۳) د موضوع د سورت سره مناسبت دا دے چه د ایمان فائده، هدایت ورکول دی۔

﴿ كَانَ النَّاسُ اُمَّةً وَّاحِدَةً ﴾ (وو خلق یوه ډله) دا په کومه زمانه کښ مراد دے؟۔

(۱) بعض وائی : د نوح ﷺ په زمانه کښ مراد دے چه ټول خلق په توحید او صحیح ایمان باندے روان وو لکه ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی : د آدم او د نوح علیهما السلام ترمینځ د لسو صدیو موده وه، پدے ټوله موده کښ خلق په یو حق شریعت (صحیح دین توحید) باندے روان وو، بیا د دوی ترمینځ په تیریدو د زمانے سره په عقائدو کښ اختلاف پیدا شو (انتهیٰ)۔

نو الله تعالیٰ د هغوی په صحیح لاره راوستو دپاره انبیاء کرام علیهم السلام راولیږل چه هغوی د الله بندګی کونکو ته د دنیا او د آخرت د کامیابئ او د جنت زیرے ورکړو او د الله نافرمانی کونکو ته ئے د دنیا او د آخرت د ناکامئ او محرومئ او ذلت او رسوائی او جهنم نه یره ورکړه، او بیا ئے یواځے په هغے اکتفاء اُونکړه بلکه بل احسان ئے ورسره دا اُوکړو چه د دوی سره ئے کتابونه راولیږل چه په هغے کښ رشتینے او د عدل نه ډك حکمونه وو چه په اصولو او فروعو کښ د اختلاف کونکو ترمینځ فیصله کونکی وو۔

یهود او نصاریٰ د الله په کتابونو کښې (سره د پوهې نه) اختلاف اُوکړو او ددې سبب د هغوی خپل مینځ کښې ضد او حسد وو لیکن الله تعالیٰ مسلمانانو ته په خپل فضل او کرم او توفیق سره حق طرف ته هدایت اُوکړو، هغوی په تمامو آسمانی کتابونو ایمان راوړو، بیائې په قرآن باندې ایمان راوړو، او په هغه تمامو کارونو کښې ئې د اعتدال لاره اختیار کړه چه په هغې کښې یهود او نصاراو اختلاف کړې وو۔

په صحیحینو او مسند احمدؒ وغیره کښې د ابو هریره ﷺ روایت دې چه نبی کریم ﷺ اُوفرمایل چه «مونږ مسلمانان د زمانې په اعتبار سره آخر کښې راغلی یو، د قیامت په ورځ به اولنی خلق یو۔ مونږ به اول جنت ته داخلیږو، حال دا چه اهل کتابو ته زمونږ نه مخکښې کتاب ورکړې شوې او مونږ ته د هغوی نه روستو کتاب راکړې شوې، لیکن الله تعالیٰ مونږ لره حق طرف ته په خپل فضل او کرم سره هدایت اُوکړو۔ خلقو د جُمعې د ورځې په باره کښې خپل مینځ کښې اختلاف اُوکړو، (چا د خالی ورځ او چا د اتوار ورځ غوره کړه) نو الله تعالیٰ مونږ ته هدایت اُوکړو نو مونږ د جُمعې ورځ اختیار کړه (د الله د بندګی او تعظیم دپاره) او خلق زمونږ تابع شو یعنی د خالی ورځ یهودیانو اختیار کړه او نصاراو د اتوار ورځ»۔ (یعنی دا دواړه ورځې روستو دی د جُمعې نه نو یهود او نصاریٰ به هم د مسلمانانو نه روستو روستو وی)۔

(۲) **دویم تفسیر** : بعض وائی : دلته مقصد دا دې چه تول خلق په کفر باندې روان وو، یعنی خلق د نوح ﷺ د زمانې نه په کفر باندې یوه دله شوه، راجمع شو۔ نو الله تعالیٰ ورته د نوح ﷺ نه سلسله د رسالت شروع کړه چه کفر او شرك ئې ختم شی۔ لیکن اول قول ظاهر دې ځکه چه د سورت یونس (۱۹) آیت پرې دلیل دې چه اختلاف روستو پیدا شو او مخکښې په توحید باندې اتفاق وو۔ او په قراءت د ابی بن کعبؓ کښې ورسره پدې آیت کښې (فَاخْتَلَفُوْا) راغلے دې۔ (طبری)

(۳) د ابی بن کعب ﷺ نه نقل دی چه [كَانَ النَّاسُ عِندَ خَلْقِهِمْ] یعنی خلق یوه دله وه په وخت د پیدائش د دوی کښې، تول د الله منونکی وو، او چه کله پیدا شو نو بیائې اختلافات شروع کړل۔
نو دلته وقف دې (فَاخْتَلَفُوْا) نو هغوی اختلاف شروع کړو۔ لکه دا لفظ په سورة یونس (۱۹) آیت کښې راغلے دې۔ ﴿وَمَا كَانَ النَّاسُ اِلَّا اُمَّةً وَّاحِدَةً فَاخْتَلَفُوْا﴾۔ او دا د روستو (فیما اختلفوا) نه هم معلومیږی۔

(٤) امام قرطبیؒ لیکی : پدې کښې دا احتمال هم شته چه ګانَ صرف د ثبوت دپاره وی او ددې نه هره زمانه مراد شی یعنی هرکله چه به الله تعالیٰ انبیاء راولیږل او دعوت نه پس به ئې مخالفین الله تعالیٰ هلاك کړل نو باقی مؤمنان به تر یو وخت پورې په صحیح دین توحید باندې روان وو

لیکن څهٔ وخت روستو به په دوی کښې اختلاف پیدا شو، نو الله تعالیٰ به بل نبي راولیږلو۔

○ او دا مطلب هم دے چه د الله په نیز دلته تولو خلقو ته د یو ے لارے حکم دے، کوم وخت چه به د دے لارے نه خلق بل کوم طرفته اُوخوځیدل نو الله تعالیٰ به پیغمبر راولیږلو چه پو هه ئے کړی او کتاب به ئے راولیږلو چه په هغے باندے لاړ شی، بیا چه به د کتاب والا ے لارے شول، نو هغه وخت به بل کتاب ته حاجت پیښ شو۔ تول کتابونه او پیغمبران د یو ے لارے قائمولو دپاره راغلی دی۔

د دے مثال لکه چه صحت یو دے او بیمارئ ډیرے دی، چه کله یو مرض پیدا شی نو یوه دوائی او پرهیز ئے د هغے موافق اُوفرمایلو، چه کله دویم مرض پیدا شو نو دوائی او پرهیز ئے د هغے موافق اُوخودلو، آخری کتاب کښې ئے داسے لاره اُوښودله چه د هر مرض نه خلاصے دے، دا د تولو په بدله کښې پوره والے کوی۔ (تفسیر جواهر القرآن د شیخ غلام الله خان رحمه الله)۔

﴿ مُبَشِّرِيْنَ ﴾ مومنانو ته په جنت زیرے ورکونکی۔ ﴿ وَمُنْذِرِيْنَ ﴾ نهٔ منونکو ته په عذابونو یره ورکونکی۔ د انبیاؤ علیهم السلام د بعثت دا دواړه مقاصد دی۔

﴿ وَاَنْزَلَ مَعَهُمُ الْكِتٰبَ بِالْحَقِّ ﴾ یعنی بشارت او انذار به په کتاب باندے وو، نهٔ په اخوا دیخوا خبرو ـ ﴿ فِيْمَا اخْتَلَفُوْا فِيْهِ ﴾

یعنی په کومو خبرو کښې چه دوی اختلاف کوی چه هغه عقیده وی، که عمل وی نو دا کتاب به ورله فیصله کوی چه دا صحیح دے او دا غلط۔

دا دلیل دے چه د اختلاف د ختمولو یواځینۍ ذریعه د الله کتاب او د رسول الله ﷺ فیصله ده۔ او اشاره ده چه انبیاء خو اختلاف ختمولو دپاره راغلی دی نو تاسو اختلافات مهٔ جوړوئ۔

نو سوال دا دے چه دا خلق په حق کښې ولے اختلاف کوی؟ نو الله فرمائی : بعض عنادګر خلق وو چه د ایمان والو او د انبیاؤ او د هغوی د معجزاتو دشمنان وو، نو د هغوی نه ئے انکار اُوکړو۔ معلومه شوه چه اصل اختلاف کونکی هغه خلق دی چه حق نهٔ منی۔ دارنګه د اختلاف سبب حسد دے نو حسد ډیره غټه بیماری ده۔

﴿ وَمَا اخْتَلَفَ فِيْهِ ﴾ اختلاف نهٔ دے کړے په دے حق کښې۔

﴿ اِلَّا الَّذِيْنَ اُوْتُوْهُ ﴾ یعنی دا حق ورکړے شوے وو لیکن دوی قبول نکړو۔ یا علم د محمد ﷺ د رشتینوالی ورکړے شوے وو لیکن بیا ئے هم اُونهٔ منلو۔

○ یا د اَلَّذِيْنَ اُوْتُوْا نه دد ے کتاب پوهان او درس او تدریس کونکی او د قوم پیشوایان مراد دی۔

﴿ مِنْۢ بَعْدِ مَا جَآءَتْهُمُ الْبَيِّنٰتُ ﴾ یعنی ښکاره نښے دوی ته راغلے وے او پته ورته لګیدلے وه چه آو دا حق دے، خو بیا ئے هم اختلاف پیدا کړو۔

○ یا د البینات نه مراد عقلی دلائل دي یعنی د کتاب سره سره مونږ په توحید باندے عقلی دلائل هم قائم کړي وو۔ (کبیر)۔

پدے کښې د یهود او نصاراؤ سخته بدي ده چه سره د علم او پوهې نه د انبیاؤ او د حق نه انکار کوی۔ اختلاف دے ته وائی چه سړے حق نهٔ مني، اختلاف پیدا کونکے هغه څوك نهٔ دے چه حق بیانوی۔

﴿ بَغۡيَۢا بَيۡنَهُمۡ ﴾ پدے سره د اختلاف سبب بیانوی: یعنی د مؤمنانو حق پرستو سره ئے کینه ده پدے وجه اختلاف ورسره کوی۔ اشاره ده چه دا اختلاف د جهل او د اجتهاد د وجه نه نهٔ وو بلکه قصداً او د ظلم او حسد په بنیاد وو۔ بغی: ظلم او کینې ته وائی۔

(بَيۡنَهُمۡ) دے کښې بل جانب پټ دے یعنی بَيۡنَهُمۡ وَبَيۡنَ اَهۡلِ الۡحَقِّ یعنی د دوی او د اهل حقو ترمینځ کینه وه۔ لیکن حسد د دوی د طرف نه وو نو خکه ئے اهل حق ذکر نهٔ کړل۔

(۲) یا دا چه ددے متعلق پټ دے (بَغۡيًا بَاغِضَ بَيۡنَهُمۡ) یعنی داسے حسد وو چه دوی کښې خور شوے وو او د دوی ترمینځ ئے اګئ (اچولے وے) یعنی سخت حسد وو۔ او دا ظاهر د قرآن دے۔

**فائده:** دلته دوه ځل اختلاف ذکر دے یعنی (اخۡتَلَفُوۡا فِيۡهِ او مَا اخۡتَلَفَ الخ)

(۱) نو بعض علماء وائی چه دواړو نه یو قسم اختلاف مراد دے، لیکن اول کښې ئے نسبت عامو خلقو ته اُوکړو او بیا ئے د علم والو پورے تخصیص اُوکړو۔

(۲) دویم دا چه اول اختلاف د خلقو د کتاب د راتلو نه مخکښې وو، نو کله چه کتاب الله راغلو نو د هغه خلقو فیصله اُوشوه، بیا کله چه وخت تیریدو نو سره د پوهې نه خلقو اختلافات شروع کړل، او د انبیاؤ صحیح ښشن او دعوت ئے پریخودو او د انبیاؤ صحیح خبرو کښې ئے تحریف او تلبیس شروع کړو او یو بل ته ئے د کفر نسبتونه اُوکړل نو دا اختلاف روستو د کتاب نه دے۔ او دا احتمال غوره دے۔

﴿ مِنَ الۡحَقِّ ﴾ دا بیان دے د (مَا) یعنی هغه څهٔ شے دے چه دوی پکښې اختلاف کړے وو؟ هغه حق دے۔ یعنی په کوم حق کښې چه اختلاف شوے وو، په هغه حق کښې الله تعالیٰ مؤمنانو ته هدایت اُوکړو۔ او دوی ئے په دے حق مضبوط کړل۔ او دا دلیل دے چه د ایمان په وجه او د اختلاف نهٔ کولو په وجه انسان ته هدایت کیږی۔ او د اهل حقو سره ضد او کینه کول او د هغوی د حق نه انکار کول د ګمراهئ سبب دے۔ او دلیل دے چه انسان هرکله د حق نه انکار اُوکړی نو څنګه به ورته هدایت اُوشی؟!۔

﴿ بِاِذۡنِهٖ ﴾ یعنی دوی ته چه دا هدایت اُوشو نو دا د دوی هوښیارتیا نهٔ وه، بلکه دا د الله تعالیٰ په

احسان او توفيق سره اُوشو، نو که تا ته چرته هدايت اُوشو نو دا ستا کمال نۀ دے چه گنے ته هوښيار او عاقل سړے ئے، بلکه دا د الله تعالیٰ خصوصي احسان او فضل اُوگنړه.

﴿ وَاللهُ يَهْدِيْ مَنْ يَّشَاءُ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ﴾

نو فائده دا شوه چه ټول اختيار د الله دے. پدے جمله کښې دويمه فائده دا ده چه اے بنده ! د الله تعالیٰ نه هدايت اُوغواړه ځکه چه د الله په اختيار کښې هدايت دے. نو تا له د هغه نه مطالبه پکار ده. او د اهل حقو سره ضد نۀ دے پکار. لکه نبي ﷺ به په تهجدو کښې د هدايت دعا کوله : [اِهْدِنِيْ لِمَا اخْتُلِفَ فِيْهِ مِنَ الْحَقِّ بِاِذْنِكَ اِنَّكَ تَهْدِيْ مَنْ تَشَآءُ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ] [مسلم].

اشاره ده چه د الله مشيت هميشه د هغه خلقو د هدايت سره متعلق وی چه ضد او عناد نۀ کوی، او د زړۀ په صدق او د عمل په اخلاص سره د حقے لارے طلبگار وی. (جواهر)

**فائده** : په دے آيت کښې درے څيزونه بيان شويدی (۱) اختلاف کومو خلقو اُوکړو. (۲) کله ئے اُوکړو. (۳) ولے ئے اُوکړو؟ يعنی اختلاف هميشه ناکاره علماؤ کړے، او سره د پوهے نه ئے کړے، او د عناد او د ضد د وجے نه ئے کړے.

| اَمْ حَسِبْتُمْ اَنْ تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ وَلَمَّا يَاْتِكُمْ |
|---|
| آيا تاسو گمان کوئ چه داخل به شئ جنت ته او حال دا چه تر اُوسه پورے نۀ دے راغلے تاسو ته |
| مَّثَلُ الَّذِيْنَ خَلَوْا مِنْ قَبْلِكُمْ مَسَّتْهُمُ الْبَاْسَآءُ وَالضَّرَّآءُ |
| حال د هغه کسانو چه مخکښې تير شويدی ستاسو نه، رسيدلی وو هغوی ته تکليف د مال او تکليف د بدن |
| وَزُلْزِلُوْا حَتّٰى يَقُوْلَ الرَّسُوْلُ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مَعَهٗ |
| او خوزولے شوی وو تردے چه اُويه وئيل رسول او هغه کسانو چه ايمان ئے راوړے وو |
| مَتٰى نَصْرُ اللهِ اَلَآ اِنَّ نَصْرَ اللهِ قَرِيْبٌ ﴿۲۱۴﴾ |
| د هغه په ملګرتيا کښې، کله به وی مدد د الله تعالیٰ، خبر شئ ! يقيناً مدد د الله نزدے دے. |

**تفسير** : تردے ځائے پورے د جماعت مسلمه د تربيت هدايات او اصول او د ژوند جامع تصور بيان شو، اُوس دوی ته امر کوی چه لږ د پخوانو ايمان والو د حالاتو مطالعه هم اُوکړی چه په

هغوی باندې د اسلام د دښمنانو او مخالفینو د طرف نه څومره مصیبتونه او تکلیفونه راغلي وو۔ نو پدې آیت کښې اووم (اَلْاَمْرُ بِالصَّبْرِ بِالشَّدَائِدِ) دی،
یعنی حکم کوی چه تاسو به په تکلیفونو صبر کوئ، هله به جنت ته داخلیږئ، اسلام جنت ته د داخلیدو سبب دې، لیکن شرط دا دې چه امتحانات او تکالیف به برداشت کوی، د خپلو عقائدو او نظریاتو دپاره به مشکلات برداشت کوی، دا د الله تعالیٰ قانون نۀ دې چه انسان ایمان راوړی او په هغه دې امتحان نۀ وی راغلے۔
حدیث کښې دی: [حُفَّتِ الْجَنَّةُ بِالْمَكَارِهِ وَحُفَّتِ النَّارُ بِالشَّهَوَاتِ] ...... [احمد، مسلم، ترمذی]
(د جنت نه تکلیفونه تاو کړے شویدی او د جهنم نه شهوات) دا ددې دپاره چه جنت ته عاجز او سُست او خوا هشاتو والا داخل نۀ شی۔ نو مؤمن به داسے نۀ وی چه معمولی سخته راشی او د دین نه اُودانګے، یا وائی چه دا خو د رواج خلاف ده، خلق به راسره اختلاف کوی، جګړے به پیدا شی، او خلق به تکلیف راورسوی۔ بلکه مؤمن ته به پدې لار کښې تکالیف رسی، کله به ورته فتح نصیب کیږی او کله به شکست۔ لیکن هغه به په هر حال کښې په خپلو نظریاتو باندې ثابت قدم وی، هیڅ سختی به هغه لره نۀ متزلزل کوی، هیڅ طاقت به هغه لره نۀ شی یرولے، د مشکلاتو او ازمیښتونو د پرله پسے حملو کښې به هغه همت نۀ بیلی، که چا داسے اُوکړل نو هغه به د الله تعالیٰ د مدد مستحق کیږی نو الله فرمائی: زۀ چه کوم خلق په دې دنیا کښې خپل امینان جوړوم او د هغوی په ذریعه اسلامی نظام قائموم او شریعت نافذ کوم نو هغوی به اول د مصائبو په بټیۍ کښې اچوم، د هغوی تربیت به کوم دا زما تاریخی سنت دې۔
نو الله فرمائی: صبر به کوئ هله به جنت ته داخلیږئ او دا اول کښې صحابه کرامو ته خطاب وو او بیا تولو مؤمنانو ته خطاب دې۔
د مخکښې سره **مناسبت** دا دې چه (۱) دا متعلق دې د جهاد سره هم۔ (۲) او متعلق دې د (فَإِنْ زَلَلْتُمْ) سره هم۔ یعنی دین به نۀ پریدئ اګرکه سخت مصائب راشی، د رسول الله ﷺ اتباع به خوشحالئ او خفګان دواړو کښې لازم ده۔
عنوان د آیت دا دې چه په آیت کښې د الله په دین کښې په تکلیفونو باندې په صبر کولو امر دې۔ دویم: د الله تعالیٰ عادت ابتلاء او ازمیښت کول دی۔
او دا آیت د جهاد (قَاتِلُوا) سره هم لګی چه تاسو به د الله په لاره کښې جهاد کوئ نو په دې کښې به تکلیفونه هم راځی او تاسو به صبر کوئ نو هله به جنت ملاویږی۔
او داسے آیت په سورة العنکبوت (۱) کښې راغلے دې۔

﴿أَحَسِبَ النَّاسُ أَنْ يُتْرَكُوا﴾ او سورة آل عمران (۱٤۲) او توبه (۱٦) آیت کښې راغلے دے۔
**شان نزول** : قتادهٓ وائي : دا آیت د غزوه خندق (غزوه احزاب) په باره کښې نازل شویدے چه نبی ﷺ او د هغه اصحابوؓ ته مصیبت او د دشمنانو محاصره رسیدلے وه۔ بعض وائي چه غزوه احد کښې نازل دے۔ (فتح البیان)
﴿أَمْ حَسِبْتُمْ أَنْ تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ﴾ (أَمْ) دا أَمْ منقطعه دے په معنیٰ د بَلْ سره دے، لیکن کله نا کله په معنیٰ د همزه استفهامی سره استعمالیږی۔ او په ابتداء د کلام کښې راځی (فراء)
او استفهام انکاری دے یعنی آیا تاسو دا گمان کوئ بلکه دا گمان مهٔ کوئ۔ یا استفهام تقریری دے یعنی ستاسو دا گمان موجود دے۔ (أَنْ تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ) د جنت د داخلیدو نه مراد بغیر د تکلیف او مشکلاتو نه داخلیدل دی، یا دخول اولی (رومبے داخلیدل) مراد دی۔
﴿وَلَمَّا يَأْتِكُمْ﴾ لما راځی د تاکید د استغراق د نفی د زمانے د ماضی نه تر زمانه حالی پورے۔
﴿مَثَلُ الَّذِينَ مِنْ قَبْلِكُمْ﴾ (مَثَل) په معنیٰ د حال سره دے۔ یعنی د پخوانو په شان احوال به په تاسو هم راځی، په هغوی باندے مالی او بدنی دومره سخت مصیبتونه راغلی وو چه د انبیاء علیهم السلام او په هغوی باندے ایمان راوړونکو خلقو به د سخت مصیبت او درد او پریشانئ په وجه او د خلقو د مخالفتونو په وجه الله تعالیٰ ته داسے آوازونه کول چه اے الله ! اُوس خو خپل مدد راولیږه او کله چه د هغوی امتحان اُوشو او د هغوی صبر الله تعالیٰ خلقو ته ښکاره کړو نو الله به اُوفرمایل : چه آؤ، اُوس زما مدد مؤمنانو او صالح بندگانو سره نزدے دے، ځکه الله خو په هر څه قادر دے، الله خو از میبنت کول غوختل چه په میدان د عمل کښې کوم بنده رشتینی دے۔
امام بخاریؒ د خباب بن الارت ؓ نه روایت کړے چه رسول الله ﷺ د کعبے په سوری کښې یو څادر ته تکیه لګولے وه او مونږ ته د مشرکانو ظلم او زیاتے انتهاء ته رسیدلے وو نو مونږ اُووئیل : مونږ دپاره د الله تعالیٰ نه مدد اُوغواړه، مونږ دپاره دعا اُوغواړه ؟ نو نبی ﷺ اُوفرمایل : چه ستاسو نه مخکښې زمانه کښې به یو مسلمان سړے نیولے شو او کنده به ورله اُوکنستے شوه، بیا به په آرے سره دوه ټکړے کړے شو، یا به د اُوسپنے په ګمنزے سره د هغه غوښه د هډوکی نه جدا شوه، لیکن دے عذاب به هغه لره د دین نه نهٔ اړولو، قسم په الله ! الله تعالیٰ به دا دین پوره کوی تردے چه یو سور انسان به د صنعاء نه حضرموت ته ځی او هغه به د الله نه سیویٰ د بل هیچا نه نهٔ یریږی او شپونکے به په خپلو ګډو بیزو باندے د شرمخ نه نهٔ یریږی۔ لیکن تاسو جلتی کوئ آه۔
﴿مَسَّتْهُمُ الْبَأْسَاءُ وَالضَّرَّاءُ﴾ دا د (مَثَل) تفسیر دے یعنی هغه حالات داسے وو۔
تکلیفونه دوه قسمه دی، یو ذاتی او دویم هغه چه د بل د طرف نه وی۔ او ذاتی بیا دوه قسمه

دي۔ اول مالي (غربت وغيره) هغې ته بأساء وائي او دويم بدني مرضونه، زخم وغيره او هغې ته ضراء وئيلې شي او دويم قسم په (زُلْزِلُوْا) سره ذکر شويدی۔

﴿وَزُلْزِلُوْا﴾ خوزولې شوي وو، پريشانه شوي وو۔ دلته د زلزلې نه مراد د دشمنانو د طرف نه د زړونو زلزلې دي يعنې د خلقو د طرفه پريشاني پرې راغلې وه۔ چه دغه دې دشمن راغلو او حمله به کوي او قتلوي به مو۔ او دا کار په مؤمنانو باندې ډير راځي، خاصکر کله چه سړې د حق دعوت کوي۔ نبي ﷺ ته هم د قتل پلان جوړ شوې وو، او عيسىٰ عليه السلام ته هم او د هغه نه مخکښ انبياء کرامو عليهم السلام ته هم۔ او دا پريشاني او مصيبتونه به دومره زيات شول چه نزدې وه چه خلق نا اُميدئ درجې ته رسيدلي وې۔

﴿حَتّٰى يَقُوْلَ الرَّسُوْلُ وَالَّذِيْنَ آمَنُوْا مَعَهٗ مَتٰى نَصْرُ اللّٰهِ﴾

دلته **سوال** دې چه ددې امت مؤمنانو د سخت تکليف په وخت ايمان او تسليم زيات شوې وو لکه سورة الاحزاب (۲۲) کښې راغلي دي او دلته نه معلوميږي چه انبياء او پخواني مؤمنان د الله تعالىٰ مدد وړاندې ګڼړي ؟۔ **جواب** : ۱- بعضو جواب کړيدې چه آيت کښې تقطيع ده يعنې (حَتّٰى يَقُوْلَ الرَّسُوْلُ اَلَا اِنَّ نَصْرَ اللّٰهِ قَرِيْبٌ وَيَقُوْلَ الَّذِيْنَ آمَنُوْا مَتٰى نَصْرُ اللّٰهِ) يعنې ايمان والو به د الله مدد طلب کولو او رسولانو به د هغوی د تسلي دپاره فرمايل چه د الله مدد نزدې دې)۔ نو زمونږ د امت مؤمنان د پخوانو مؤمنانو نه اُوچت دي۔ اګر که د انبياؤ په شان نۀ دي۔

۲- **اصل جواب** دا دې چه دلته الله تعالىٰ د انبياء او د ايمان والو د زړۀ تمنیٰ او پريشاني ذکر کوي او د هغوی په ايمان باندې تثبت او کلك والې بيانوي، نو (مَتٰى) دلته د تمنی او طلب دپاره ده، يعنې دوی به دا ارمان او طلب کولو چه د الله مدد به کله راځي ځکه چه مدد به ترې لږ وخت پورې لرې شوې وو۔ او د الله د مدد نه منکر نۀ وو۔ يعنې رسول ډير اوچت صبر والا وو، ليکن هغه به هم بې صبرئ ته نزدې شو، نو دومره غټ مصيبتونه به وو۔ او بيا به ئې هم دين نۀ پريخودو۔ او دا تفسير د ابن عباسؓ نه نقل دې۔ (فتح البيان)۔

مفسرين ليکي : (يَسْتَفْتِحُوْنَ عَلٰى اَعْدَائِهِمْ وَيَدْعُوْنَ بِالظُّفْرِ وَالْفَرَجِ وَاِزَالَةِ الشِّدَّةِ) (ابن کثير) دعا به ئې کوله چه يا الله ! په دشمنانو زر کاميابي راکړه او د مصيبت نه کشادګي راوله او دا سختي ختمه کړه) پدې حالت کښې به نا اميدئ ته قريب شو۔ ځکه انسان زړۀ تنګې دې، کله چه مصيبت اُوږد شي او د کفارو ناشنا تکاليف او د مؤمنانو ظاهري بدحالي اُويني نو د هغه زړۀ ته غير اختياري شبهات راشي او د نا اُميدئ درجې ته اُورسي۔ لکه سورت يوسف (۱۱۰) کښې راغلي دي : (حَتّٰى اِذَا اسْتَيْئَسَ الرُّسُلُ) د هغه آيت او ددې آيت يوه معنیٰ ده۔

نو د الله د طرف نه به جواب راغلو چه ستاسو دعا قبوله شوه۔ او مطلب دا دے چه ددوی به دغه شان حال وو، دوی لره اوږد امتحان او سخت مصیبت د دین نه وانۀ ړول تردے پورے چه د الله مدد ورته راورسیدو۔ نو اے مسلمانانو! تاسو هم دغه شان مصیبتونه برداشت کړئ ځکه چه د الله د مدد راتلل نزدے دی۔ (فتح البیان ۱/۴۳۱)۔

ځکه کله چه امتحان سختیږی نو د الله مدد زر رانزدے کیږی۔

(اَلَا) یعنی خبر شئ، واورئ)

﴿إِنَّ نَصۡرَ اللَّهِ قَرِيبٌ﴾

د الله د مدد مستحق هغه خلق وی چه آخر وخت پورے ثابت قدم پاتے وی، د خلقو د مصائبو په مقابله کښې کلك ولاړ وی، د مصائبو د سختوالی په وجه خپل دعوت او مشن او جهاد او عقیده او نظریه نۀ پریږدی نو هرکله چه مصیبتونه انتهاء ته اُورسی او د ایمان والو ظاهری هیڅ مددګار پاتے نۀ شی او صرف د الله تعالیٰ نصرت باقی پاتے شی او مؤمنان صرف الله طرف ته نظر پورته کونکی شی نو بس د الله مدد بیا راتلونکے وی۔

او حدیث کښې هم دغسے راغلی دی چه [وَاعْلَمْ أَنَّ النَّصْرَ مَعَ الصَّبْرِ وَأَنَّ الْفَرَجَ مَعَ الْكَرْبِ وَأَنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا] (السنن الکبرٰی) (والصحیحة رقم: ۲۳۸۲)۔ (پوهه شه چه مدد د صبر سره وی او کشادګی د مصیبت سره وی او د سختئ سره آسانی ضرور وی)۔

او هر کله چه انسان سخت مصیبت برداشت کړی نو بیا ددۀ دشمنان هم دۀ طرف ته راواپس کیږی۔ او څومره چه ایمان مضبوط وی، نو هغومره امتحان او مصیبت هم سخت وی، او بیا مدد هم ډیر قوی وی۔ او انسان باندے الله تعالیٰ داسے سخت مصیبتونه ځکه راولی چه دۀ ته د صبر په نتیجه کښې یو عظیم قوت ورکړے شی، او په خپل ذات باندے ئے حاکمیت حاصل شی، د مصیبت او تکلیف په بټئ کښې د نفس انسانی عناصر صفا کیږی، په اسلامی نظریۀ حیات کښې ئے زور والے او قوت پیدا کیږی۔ مرتبے ئے پورته کیږی او د خلقو دپاره امام جوړیږی۔

(فی ظلال)

| يَسۡـَٔلُونَكَ مَاذَا يُنفِقُونَۖ قُلۡ مَآ أَنفَقۡتُم مِّنۡ خَيۡرٖ |
|---|
| تپوس کوی دوی ستا نه اے پیغمبره! چه څۀ شے خرج کړی، نۀ اُووایه! هغه چه تاسو خرج کوئ څۀ مال (حلال) |
| فَلِلۡوَٰلِدَيۡنِ وَٱلۡأَقۡرَبِينَ وَٱلۡيَتَٰمَىٰ وَٱلۡمَسَٰكِينِ وَٱبۡنِ ٱلسَّبِيلِۗ وَمَا تَفۡعَلُواْ مِنۡ خَيۡرٖ فَإِنَّ ٱللَّهَ بِهِۦ عَلِيمٞ ﴿۲۱۵﴾ |
| نو دپاره د مور او پلار او خپلوانو او یتیمانو او مسکینانو او مسافر دے او هغه چه تاسو کوئ نیك عمل۔ نو الله په هغے پوهه دے۔ |

**تفسير**: ددے ځائے نه روستو اتلس احکام د تدبير منزل دی۔ يعنی هغه احکام چه د کور د جوړولو سره تعلق لری ځکه چه کله د کور حالات برابر وی نو انسان د الله په لار کښې جهاد او د دين عام کارونه کولے شی۔ او ددے سره به انتظامی احکام هم بيانيږی۔

اول حکم دا دے [بَيَانُ مَصَارِفِ الْإِنْفَاقِ وَكَيْفِيَّةِ الْإِنْفَاقِ] (چه مال به په کوم ځائے کښې لګوی او په کومه طريقه به ئے لګوی) ولے که د مال نظام په ملك کښې، په کور کښې برابر نۀ وی نو هغه ملك او علاقه او کور وران دے، او کله چه سړے د صحيح ځائے نه مال راخلی او په صحيح ځائے کښې ئے لګوی نو دا ډير اُوچت ملك او اُوچت کور دے او د دوی هر پروګرام به الله تعالیٰ برابروی۔

**مناسبت**: (۱) ددے امت تربيت شروع دے نو دا نور احکام د تربيت دی۔

(۲) صحابه کرامؓ يو څو تپوسونه کړی، يسئلونك عن الاهله وغيره وغيره نو د هغے جوابونه الله تعالیٰ ورکوی نو مناسبت د سوالونو په جوابونو کښې دے، اګر که د سوالونو ترمينځ ډير مناسبت نۀ وی۔ (۳) مخکښې د جهاد، انفاق مسئله راروانه ده مينځ کښې حج او د هغه متعلقات بيان شول نو اُوس بيرته اصل طرف ته رجوع ده۔

(٤) او ددے آيت تعلق د مخکښې الْبَأْسَاءُ سره دے چه ايمان والو باندے به ابتلاء او ازميښت په مالونو کښې هم راځی، نو دوی به د الله په لار کښې مالونه لګوی۔

﴿يَسْئَلُوْنَكَ مَا ذَا يُنْفِقُوْنَ﴾ بعض صحابه کرامؓ (لکه عمرو بن جموح ﷺ) دا تپوس کړے وو چه د خپلو مالونو نه څومره خرچ کړو او په چا باندے ئے خرچ کړو؟ نو دا آيت د هغه په جواب کښې نازل شو۔ (ابن کثيرؒ، وابن جريرؒ) نو د دواړو خبرو جواب اُوشو۔

اول په (مِنْ خَيْرٍ) سره چه حلال مال به خرچ کوئ هرڅومره چه وَس وی۔ او د دويم جواب په (فَلِلْوَالِدَيْنِ) سره اُوشو۔

**فائده**: بعض مفسرينو ليکلی دی چه پدے مقام کښې سوال د خرچ کړے شوی څيز په باره کښې شوے وو يعنی څۀ او څومره خرچ کړی او جواب کښې د خرچ مصارف بيان کړے شويدی پدے سره دے طرفته اشاره ده چه دا خبره پريږدئ چه څۀ او څومره خرچ کول پکار دی۔ اصل څيز خو مصرف دے، ددے وجه نه چه تاسو کوم څۀ خرچ کول غواړئ برابره ده لږ وی که زيات، نو هغه دِے په صحيح مصرف کښې خرچ کړے شی۔ (روح المعانی ۲/۱۰۵)۔

**فائده**: په (مِنْ خَيْرٍ) لفظ کښې دوه اشارے دی يو دا چه هر شے چه تاسو خرچ کوئ نو د هغے خير کيدل پکار دی، چه د ورکونکی دپاره هم خير وی، اخستونکی دپاره هم، د هغۀ معاشرے دپاره هم خير وی په کوم کښې چه دا لين دين کيږی، او په خپل ذات کښې هم هغه خير وی، داسے

وی چه عمل هم پاك، تحفه هم پاکه او شے هم پاك.

دویمه اشاره دا ده چه خرچ کونکی لره په بنهٔ سوچ کولو سره د خپل مال نه اعلیٰ تر څیز خرچ کول پکار دی، او بیا تلاش کولو سره د خپل مال نه بهتر څیز خرچ کول یو داسے اقدام دے چه پدے سره په زړهٔ کښې طهارت (پاکی) پیدا کیږی، انسانی نفس پاکیږی.

لیکن دا صرف اشاره ده، او لازم او فرض نهٔ دی گرځولے شوی لکه چه په نورو آیتونو کښې ددے وضاحت شویدے. نو دے باره کښې مناسب دا ده چه أوسط درجے مال د الله په لار کښې خرچ کړے شی، نهٔ ډیر قیمتی وی او نهٔ بالکل ردی وی، البته پدے آیت کښې دا اشاره ده چه په نفس باندے د قابو موندلو دپاره بهتر مال خرچ کول پکار دی، او د ایمان والو پدے باندے د آماده کولو کوشش شویدے. دا د قرآن کریم د تربیت انداز دے یعنی په ذریعه د ترغیب او آمادگئ سره اصلاح کیږی. (فی ظلال القرآن).

بیا ددے انفاق نه مراد عام صدقات او واجب انفاق دے، نهٔ زکوٰة. ځکه چه مور او پلار لره زکوٰة ورکول صحیح نهٔ دی. بیا د الله تعالیٰ د حق نه روستو په بندگانو کښې د والدینو حق دے، کله چه دوی سره خپل مال نهٔ وی او کاروبار نشی کولے او بچی سره څهٔ ناڅهٔ مال وی نو په مور او پلار به انفاق کوی او دا پرے حق دے. بیا د نورو خپلوانو او یتیمانانو چه د هغوی د کارو کسب دپاره څوك نشته نو حاجت ئے زیات وی.

حدیث کښې راځی : نبی کریم ﷺ اُوفرمایل : ((په خپل مور او پلار باندے خرچه کوه، په خپل خور او ورور باندے خرچه کوه، ددے نه روستو د مرتبو مطابق په نزدے خپلوانو باندے)).

(مسند احمد بسند صحیح).

میمون بن مهران رحمة الله علیه دا آیت اُولوستلو او بیا ئے اُوفرمایل : دا د خرچے ځایونه دی، پدے کښې ئے تمبل او باجے او شپیلئ نهٔ دی ذکر کړی، او نهٔ د لرگی تصاویر او نهٔ د دیوالونو کپړے. (الطبری).

ابو هریره ﷺ فرمائی: یو سړے رسول الله ﷺ ته راغلو وے فرمایل : ما سره یو دینار دے څهٔ پرے اُوکړم ؟ وے فرمایل : په خپل ځان ئے خرچ کړه. هغه اُووئیل : ما سره بل دینار دے څهٔ پرے اُوکړم ؟ وے فرمایل : په خپل اهل ئے خرچ کړه. هغه اُووئیل : ما سره بل دینار دے؟ وے فرمایل : په خپل بچی ئے خرچ کړه. هغه اُووئیل : ما سره بل دینار دے ؟ وے فرمایل : په خپل خادم ئے خرچ کړه. هغه اُووئیل : ماسره بل دینار دے، وے فرمایل : تهٔ بنه پو هیږے.

(ابوداود والنسائی وصحیح ابن حبان۴۲۳۲ وسنده حسن)

﴿وَمَا تَفۡعَلُوا مِنۡ خَيۡرٍ﴾ هر نیك عمل چه کوئ الله به د هغې اجر درکوي. یعنې که چا سره ډېر څه نیکي اُوکړه که مالي وي یا بدني وي، وړه وي یا غټه نو د الله د علم نه بهر نهٔ ده، الله به د هغې بدله درکوي. اګرکه دغه ذکر شوي مصارف نهٔ وي. نو الله تعالیٰ ستا د انفاق نه هم خبر دې، او ددې د مقصد نه هم خبر دې، او د بنده د نیت نه هم خبر دې، د الله په دربار کښې د هیڅا انفاق نهٔ ضائع کیږي، خو پدې شرط چه په ریاء کارئ او غلط نیت سره نهٔ وي، د الله تعالیٰ په دربار کښې ریاکاري او دهوکه نهٔ چلیږي.

| كُتِبَ عَلَيۡكُمُ الۡقِتَالُ وَهُوَ كُرۡهٌ لَّكُمۡ وَعَسٰٓى |
| --- |
| فرض کړې شوې دې په تاسو باندې جنګ (د کافرانو سره) او دا بد لګي په تاسو، او کیدې شي |
| اَنۡ تَكۡرَهُوۡا شَيۡـًٔا وَّهُوَ خَيۡرٌ لَّكُمۡ وَعَسٰٓى اَنۡ تُحِبُّوۡا شَيۡـًٔا |
| چه تاسو بد ګنړئ یو شے او حال دا چه هغه فائده مند وي ستاسو دپاره. او کیدې شي چه تاسو به ښهٔ ګنړئ یو شے |
| وَّهُوَ شَرٌّ لَّكُمۡ وَاللّٰهُ يَعۡلَمُ وَاَنۡتُمۡ لَا تَعۡلَمُوۡنَ ﴿۲۱۶﴾ |
| او هغه بد وي تاسو لره او الله پوهیږي او تاسو نه پوهیږئ. |

**تفسیر**: بل حکم د قتال فی سبیل الله دې. چه ستاسو کور به هله جوړیږي چه د الله په لاره کښې د الله د دشمنانو سره جنګ اُوکړئ، ولې که دا نهٔ وي نو نظام د کور به ډېر خراب شي، کافران به راشي ګډوډ به ئې کړي. او دا معنیٰ هم په دې آیت کښې پرته ده چه خیر او شر به په شرع معلومیږي. شریعت چه یو شي ته خیر اُووائي نو هغه خیر دې او که شریعت ورته خیر اُونهٔ وائي نو هغه خیر نهٔ دې. تاسو به د ځان نه خیر او شر نهٔ جوړوئ. او دې آیت کښې قتال فی سبیل الله ته ترغیب دې.

**ربط**: (۱) دویم قسم ابتلاء (الضَّرَّاء) د بدن تکلیف دې او هغه په جهاد کښې وي. نو تاسو به جنت ته هله داخلیږئ چه قتال فی سبیل الله اُوکړئ.

(۲) مَدَارُ الۡخَيۡرِ وَالشَّرِّ فِيۡ تَدۡبِيۡرِ الۡمَنۡزِلِ بِاتِّبَاعِ الشَّرِيۡعَةِ لَا بِالطَّبِيۡعَةِ) یعنې ستاسو کور چه برابریږي نو هغه پدې طریقه چه د شریعت تابعداري اُوکړې شي، نهٔ د طبیعت، لکه ستا طبیعت دا غواړي چه تېې وي کور ته راوړه، نو دا د کور برابرول نهٔ دي بلکه ورانول دي، کله به ښځه وائي ګیره اُوخرئیوه نو دا د کور ورانول دي. یا قتال فرض دې او کور والا به وائي چه جنګ له مهٔ

نشه. لیکن تللو کښې خیر دے۔

(۳) او دارنګه مخکښې قَاتِلُوْا فِیْ سَبِیْلِ اللهِ سره ئے هم ربط دے چه الله امر د قتال اُوکړو نو اُوس ئے دلته فائده بیانوی، چه دے کښې ډیر خیرونه دی او پدے سره د عالَم اصلاح راځی۔

﴿ کُتِبَ عَلَیْکُمُ الْقِتَالُ ﴾ په دے امت قتال فی سبیل الله فرض دے چه موقعه ئے راشی نو انسان به پکښې ځان ضرور استعمالوی۔

﴿ وَهُوَ کُرْهٌ لَّکُمْ ﴾ (کُرْه) د کاف په پیښ سره۔ یعنی مکروه شے دے چه مزاج او طبیعت ئے بد ګنړی نو د کراهت نه مراد طبعی کراهت او ناخوښی ده۔ او دا ځکه طبیعت بد ګنړی چه پدے کښې د مال لګول دی، د خپل اهل او وطن نه جدا کیدل او ځان مرګ ته وړاندے کول دی۔ د خوندونو او خوبونو او خوراکونه جدائی ده۔ او دلته (کُرْهٌ) مصدر دے، تعبیر ئے په مصدر سره اُوکړو مبالغةً۔ یا کُرْهٌ په معنیٰ د مَکْرُوْهٌ دے۔ یعنی طبعاً ناخوښه ځیز دے۔ یا کُره نوم دے د (مَکْرُوْه) یعنی هغه شے چه بد ګنړلے شی۔ لکه د (خُبز) په شان۔ (ابن عاشورؒ)

کُره د کاف په پیښ سره، مشقت ته وئیلے شی او د کاف په زوَر سره، هغه شے چه تهٔ پرے زور اُوکړے یعنی په معنیٰ د اِکْرَاه دے۔

﴿ وَعَسٰی اَنْ تَکْرَهُوْا شَیْئًا وَّهُوَ خَیْرٌ لَّکُمْ ﴾ یعنی کیدے شی چه ځینے ځیزونه د خپلو ظاهری او مادی نقصاناتو د وجے نه تاسو ته ناخوښه وی او تاسو هغه بنهٔ نهٔ ګنړئ، لیکن د انجام په لحاظ سره او د پټو فائدو په لحاظ سره هغه ستاسو دپاره د خیر او برکت او د دنیا او د آخرت د کامیابئ سبب وی۔ لکه جهاد واخله چه کله نا کله د انسان ګمان ته دا خبره راشی چه خلق د کافرانو سره جنګونه ولے کوی، دا خو د هشتګردی ده، اختلافات دی، علاقے ورانول دی، لیکن الله تعالیٰ فرمائی چه دے کښې خیر دے۔ ځکه په جهاد کښې خیریت دا دے چه یا خو به د الله په دشمنانو غلبه حاصله شی، او د الله د شمنان به ذلیله شی، د الله دین به پورته شی، د مسلمان شان او شوکت به قائم اُوساتلے شی، د هغوی نه به غنیمتونه حاصل شی او که د کافرانو د طرف نه مسلمان ته مصیبت اُورسی، نو اجر به ورته حاصل شی، او که قتل شی نو شهادت او بیا جنت ته به اُورسیږی۔

﴿ وَعَسٰی اَنْ تُحِبُّوْا شَیْئًا وَّهُوَ شَرٌّ لَّکُمْ ﴾ لکه انسان دا خوښوی چه کور کښې د خپلو بچو او ښځے سره کینی او خپل کاروبار کوی، لیکن دے کښې خیر نشته۔ ځکه چه ددهٔ نه عظیمه فریضه پاتے ده۔ د د دوارو جهانونو خساره ده ځکه چه پدے کار سره به تاسو د کافرانو د لاسه خوار او ذلیله شئ، هغوی به تاسو تباه او برباد کړی، مالونه به مو لوټ کړی او بچی او ښځے به مو غلامان

کړي، ستاسو په ښارونو به قبضه اُوکړي، او ستاسو دين او دنيا به ختم کړي. نو دا په بله طريقه جهاد ته ترغيب دے، لهذا په جهاد کښې خير دے، دغه شان په مال لګولو کښې خير دے ځکه الله چه کوم شے اُوخودلو، نو بس هغه کول پکار دي. ځکه هغه د بندګانو خير خواه دے، الله پاندے اختراعات کول نهٔ دي پکار چه يا الله داسے اُوکړه او دا وکړه، او دا عمل زمونږ دپاره فرض کړو؟ ځکه الله پوهيږي او ته نهٔ پوهيږے.

(عَسىٰ) په لغتِ عربي کښې د اميد دپاره راځي. ليکن مفسرين ليکي : [عَسٰى مِنَ اللهِ وَاجِبَةٌ] يعني عسىٰ د الله د طرف نه د وجوب او تحقيق دپاره راځي.

﴿وَاللّٰهُ يَعْلَمُ وَاَنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ﴾ پدے کښې الله تعالىٰ مونږ ته ترغيب راکوي چه هرکله الله تعالىٰ پوهيږي په خير او په شر او تاسو نهٔ پوهيږئ نو هغه ته تسليم شئ اے بندګانو !.

**فوائد** : هرکله چه انسان ته د خير او د شر پوره طريقے سره معلومات نشي کيدے بلکه د هر څه پوره عِلم الله تعالىٰ ته دے، نو انسان له پکار دي :

(۱) ...... [ اِمْتِثَالُ اَمْرِ رَبِّهٖ وَاِنْ شَقَّ عَلَيْهِ] (چه د الله د حکم اُومنى اګرکه په دهٔ ګران وي).

(۲) ...... اَلتَّفْوِيْضُ اِلٰى مَنْ يَّعْلَمُ بِعَوَاقِبِ الْاُمُوْرِ] (ځان سپارل هغه ذات ته چه هغه ته د کارونو انجام معلوم دے) نو خپل اختيار مهٔ استعمالوه.

(۳) ...... [اَنْ لَا يَقْتَرِحَ عَلٰى رَبِّهٖ وَلَا يَخْتَرِعَ عَلَيْهِ وَلَا يَسْئَلَهٗ مَا لَيْسَ لَهٗ بِهٖ عِلْمٌ] .

(په الله به مطالبے نهٔ کوي او داسے څهٔ به نهٔ غواړي چه دهٔ ته په هغے عِلم نهٔ وي).

بلکه مطلق سوال به کوي اے الله ! که پدے فلاني څيز کښې خير وي نو ما له ئے راکړه. ځکه کيدے شي انسان داسے څيز اُوغواړي چه په هغے به هلاك شي.

(٤) ...... [اَنْ يُّرِيْحَ نَفْسَهٗ مِنَ الْاَفْکَارِ الْمُتْعِبَةِ وَيُفَرِّغَ قَلْبَهٗ مِنَ التَّقْدِيْرَاتِ وَالتَّدْبِيْرَاتِ] (خپل نفس له به د ډيرو اُوږدو فکرونو نه راحت ورکړي او زړهٔ به د ډيرو فرضياتو، خيالاتو او بے ځايه تدبيراتو نه فارغ کړي) ...... يعني داسے به نهٔ وائي که دا اُوکړم نو داسے به اُوشي. بلکه که يو شے ورته په شريعت کښې خير ښکاره کيدو نو هغه دے اُوکړي او الله ته دے ځان سپاري او که د شريعت خلاف ورته ښکاره کيدو نو ځان به ترے ساتي. هرکله چه داسے کارونه اُوکړي نو په بنده به د الله لطف او مهرباني راځي او مدد به ئے کيږي. (انظر بدائع التفسير).

يَسْئَلُوْنَكَ عَنِ الشَّهْرِ الْحَرَامِ قِتَالٍ فِيْهِ قُلْ قِتَالٌ فِيْهِ

تپوس کوي دوي ستا نه په باره د مياشتو عزتمنو کښې د جنګ کولو نه په دے کښې، ته اُووايه جنګ کول په دے کښې

كَبِيْرٌ وَصَدٌّ عَنْ سَبِيْلِ اللهِ وَكُفْرٌ بِهٖ وَالْمَسْجِدِ الْحَرَامِ

لویه گناه ده، او خلق منع کول د الله د لارې نه او کفر کول په هغه او (منع کول) د مسجد حرام نه۔

وَاِخْرَاجُ اَهْلِهٖ مِنْهُ اَكْبَرُ عِنْدَ اللهِ وَالْفِتْنَةُ اَكْبَرُ مِنَ الْقَتْلِ

او ویستل د حقدارو ددې، ددې نه، ډیره لویه گناه ده په نیز د الله۔ او شرك كول ډیره لویه گناه ده د قتل نه

وَلَا يَزَالُوْنَ يُقَاتِلُوْنَكُمْ حَتّٰى يَرُدُّوْكُمْ عَنْ دِيْنِكُمْ اِنِ اسْتَطَاعُوْا

او همیشه به وی دوی چه جنگونه به کوی تاسو سره تردې چه واپس کړی تاسو د خپل دین نه که د دوی وس پر شی۔

وَمَنْ يَّرْتَدِدْ مِنْكُمْ عَنْ دِيْنِهٖ فَيَمُتْ وَهُوَ كَافِرٌ فَاُولٰٓئِكَ

او څوك چه واوړيدل ستاسو نه د خپل دين نه بيا مړ شو پداسې حال كښې چه كافر وى نو دغه كسان

حَبِطَتْ اَعْمَالُهُمْ فِى الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ وَاُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿۲۱۷﴾

برباد دی عملونه د دوی په دنیا او په آخرت کښې او دغه کسان اُور والا دی دوی به په دې کښې همیشه وی۔

**تفسیر**: پدې آیت کښې بل حکم دے: [تَعْظِيْمُ الْاَوْقَاتِ الْمُقَدَّسَةِ فِى الشَّرْعِ]
(په شریعت کښې چه کوم اوقاتِ مقدسه دی د هغې تعظیم کول پکار دی) لکه اشهر حرم (عزتمنې میاشتو) کښې به قتال نهٔ کوئ، او هغه څلور میاشتې دی۔
○ او دویم قانون په دې آیت کښې دا دے چه څوك په دوه مصیبتونو او مشکلاتو کښې راگیر شو نو کوم چه آسان وی هغه دې اختیار کړی۔ او د غټ مصیبت نه دې ځان اُوساتی۔
او دا عامه اسلامی قاعده ده، په ډیرو احادیثو کښې هم ثابته ده۔ لکه دلته یو طرف ته د میاشتې عزت خرابیدل او بل طرف ته د کافرانو فوت کیدل دی، نو خیر دے د میاشتو د عزت نقصان دې اُوشی، لیکن شرك غټ مصیبت دے چه دا ختم شی۔ (دا هله چه شك وی چه میاشت داخل وه او که نهٔ؟ کچرته یقیناً عزتمنه میاشت وی بیا د کفارو سره قتال نشته که فوت کیږی او که نهٔ۔ فتدبر)۔
○ او ظاهری فائده پکښې دا ده چه عزتمنو میاشتو کښې ابتداءً قتال کول ناروا دی، لیکن که کافرانو په تا اقدام اُوکړو نو جوابی کاروائی کول جواز لری۔ او پدې کښې رد دے په مشرکانو چه د بل چا گناه ته گوری او خپل غټ گناهونه ترې هیر دی۔ نو بیا په هر هغه چا رد دے چه د بل گناه ته گوری او خپل گناهونه ترې هیر وی۔

## شان نزول

دا آیت په هغه خاص واقعه کښې نازل شویدے چه نبی ﷺ یوه سریه (جماعت) اُولیږلو۔ اته کسان وو چه په هغے کښې سیدنا عمار بن یاسر، سعد بن ابی وقاص، سیدنا عتبه بن غزوان، سیدنا واقد بن عبد الله، سیدنا سهیل بن بیضاء، سیدنا عامر بن فهیرة، سیدنا ابو حذیفة بن عتبة (رضی الله عنهم اجمعین) وو۔ او په دوی باندے ئے سیدنا عبد الله بن جحش ﷺ امیر مقرر کړو او مکے مکرمے ته قریب د کافرانو سره ملاؤ شو، چه هغوی د طائف د طرف نه راتلل نو دوه کسان (الحکم بن کیسان او مغیرة بن عثمان) ئے ترے اُونیول او عبد الله بن المغیرة اُوتختیدو او واقد بن عبد الله پکښې عمرو بن الحضرمی لره قتل کړو او څۀ اوښان ئے ترے راوستل، او دا په اسلام کښې اولنے غنیمت وو چه صحابه کرامؓ اُونیولو۔ او دا د رجب اوله ورځ وه لیکن مسلمانانو ته دا شك راپیښ شوے وو چه گنے دا د جمادی الآخر آخری ورځ ده، (یعنی دیرشم لیکن اتفاقاً هغه میاشت د یو کم دیرشو وه او دا د رجب ړومبے تاریخ وو) نو مشرکانو خپلو قیدیانو پسے فدیه راولیږله او بیا ئے په مسلمانانو دا اعتراض اُوکړو چه دوی د ملتِ ابراهیمی نه خلاف اُوکړو او دا نبی گمان کوی چه زۀ د الله تابعدار بنده یم او حال دا چه د عزتمنے میاشتے اوله یے عزتی دۀ اُوکړه۔ او زمونږ ملگرے (ابن الحضرمی) ئے په رجب میاشت کښې قتل کړو۔ نو صحابه کرامؓ هم ډیر خفه وو چه مونږ خو ظلم اُوکړو، نو ددے اشتباه د لرے کولو دپاره ئے تپوس اُوکړو چه په میاشت د حرمت کښې قتال څنگه دے ؟ ۔ (ابن کثیر ۱/۵۷٤)۔

بعض وائی دا آیت د صلح حدیبیه په موقعه نازل شوے وو چه نبی ﷺ د عثمان ﷺ د قتل خبره واوریدۀ نو د خلقو نه ئے په قتال کولو بیعت واخستو او دا د ذی العقدے میاشت وه نو مؤمنانو تپوس اُوکړو یا مشرکانو اعتراض اوکړو چه د حرمت په میاشت کښې قتال څنگه کولے شی ؟۔ ابن عاشورؒ وائی دا قول د روستو (صَدٌّ عَنْ سَبِيْلِ اللهِ) سره زیات مناسب دے۔ آه۔ لیکن اول قول هم ورسره لگیږی۔

نو الله دا آیتونه نازل کړل چه ټیك دہ، دے عزتمنو میاشتو کښې خو قتال کول گناه ده، او دے کسانو دا کار بنه نۀ دے کړے، آینده کښې ددے کار نه اجتناب پکار دے، لیکن دومره ده چه اے مشرکانو ! خپلے گناه ته هم اُوگورئ ! خپله گناه درنه پټه ده، او بل ته گوته نیسئ، خپلو گناهونو ته هم متوجه کیدل پکار دی۔ نو الله هغوی ته د هغوی گناهونه په گوته کوی چه تاسو شرك کوئ، د الله د لارے نه خلق اړوئ، دے پیغمبر باندے کفر کوئ، الله باندے کفر کوئ، د مسجد حرام نه خلق منع کوئ او همدا حقدار خلق ددے مسجد حرام نه تاسو ویستلی دی۔

دارنګه تاسو مسلمانان په فتنه کښې اچوئ او همیشه د مسلمانانو د ارتداد کوشش کوئ۔ دے ته ګناه نهٔ وایئ او چه بل چا لږ معمولي نقصان اُوکړو بس تاسو د هغه ګناه نیغه نیغه کوئ، او دا د جاهلانو خلقو طریقه ده، ځان ته نهٔ ګوری او بل ته ګوته نیسی۔ نو الله د مؤمنانو د طرف نه مدافعت کوی، او پدے کښې هم د اُمتِ مسلمه ناشنا تربیت دے۔ نو آیت کښې مقصد دا دے چه عزتمنو میاشتو کښې آینده دپاره قتال مهٔ کوئ او مخکښې چه کوم شویدے نو مشرکان دے اعتراض نهٔ کوی ځکه چه د هغوی خپل جرمونه ډیر زیات سخت دی او د هغوی سره د قتال سبب موجود دے نو هغوی دے خپلے ګناه ته فکر اُوکړی او اعتراض دے نهٔ کوی۔

**ربط** : نو مخکښې سره ئے مناسبت واضح دے، چه قتال فرض دے خو په عزتمنو میاشتو کښې نه، مګر هله ئے کول جائز چه کافرانو دریاندے شروع اُوکړه۔

کله چه دا آیتونه نازل شو نو ددے واقعے متعلق عبد الله بن جحش ﷺ داسے اشعار اُووئیل :۔

| | | |
|---|---|---|
| تَعُدُّوْنَ قَتْلًا فِي الْحَرَامِ عَظِيْمَةً | | وَأَعْظَمُ مِنْهُ لَوْ يَرَى الرُّشْدَ رَاشِدٌ |
| صُدُوْدُكُمْ عَمَّا يَقُوْلُ مُحَمَّدٌ | | وَكُفْرٌ بِهٖ وَاللّٰهُ رَاءٍ وَّشَاهِدٌ |
| وَإِخْرَاجُكُمْ مِنْ مَسْجِدِ اللهِ أَهْلَهٗ | | لِئَلَّا يُرَى لِلّٰهِ فِي الْبَيْتِ سَاجِدٌ |
| فَإِنَّا وَإِنْ عَيَّرْتُمُوْنَا بِقَتْلِهٖ | | وَأَرْجَفَ بِالْإِسْلَامِ بَاغٍ وَّحَاسِدٌ |
| سَقَيْنَا مِنِ ابْنِ الْحَضْرَمِيِّ رِمَاحَنَا | | بِنَخْلَةَ لَمَّا أَوْقَدَ الْحَرْبَ وَاقِدٌ |
| دَمًا وَابْنُ عَبْدِ اللهِ عُثْمَانُ بَيْنَنَا | | يُنَازِعُهٗ غُلٌّ مِنَ الْقَدِّ عَانِدٌ |

(ابن کثیر ۱/۵۷۸)

○ تاسو په عزتمنه میاشت کښې قتل عظیم جرم ګڼړئ او حال دا چه هوښیار سړی ته ددے نه غټ جرم دا ښکاری......

○ چه تاسو د محمد (ﷺ) د خبرو نه خلق منع کوئ او په هغه کفر کوئ او الله ستاسو دا عمل وینی او حاضر دے۔

○ او تاسو د الله د مسجد نه حقدار د هغے ویستلی دی، دے دپاره چه د الله په کور کښې الله ته څوك په سجده اُونهٔ لیدلے شی۔

○ نو که تاسو مونږ ته د (ابن الحضرمی) په وژلو پیغور راکوئ او په اسلام پسے باغی او حسد کونکے ډنډوره (هم) اُوکړی۔ (نو هیڅ پرواه نشته بلکه) ......

○ مونږ د عمرو بن الحضرمی د وینو نه خپلے نیزے په نخله مقام کښې خړوبه کړے کله چه واقد جنګ بل کړو او عثمان بن عبد الله زمونږ ترمینځ د ځرمنے په هتکړو کښې په زوره سره

راخکلي شو).

﴿اَلشَّهْرُ الْحَرَامُ﴾ پدې کښې الف لام جنسي څلور واړه میاشتو د عزت ته شاملیږي.

﴿قِتَالٍ فِيْهِ﴾ دا د (الشهر الحرام) نه بدل اشتمال دې. مطلب دا شو چه تپوس کوي ستا نه په باره د جنګ کولو کښې په دې میاشت کښې چه آیا دا جائز دې او که حرام ؟. او فائده په بدل اشتمال راوړو کښې اهتمام د میاشتې دې د قتال په باره کښې، نۀ اهتمام د قتال په باره د میاشت کښې.

﴿قُلْ قِتَالٌ فِيْهِ كَبِيْرٌ﴾ (قتال) ئې اسم ظاهر راوړو دپاره ددې چه حکم د عزت تولو میاشتو ته شامل شي، او که تخصیص مراد وې، نو بیا به ئې ضمیر راوړې وې کوم چه په تعیین او تخصیص دلالت کوي. او قِتَالٌ ئې نکره راوړه ځکه چه یو معین قتال نۀ دې مراد، بلکه هر قسمه قتال مراد دې ځکه چه د عبد الله بن جحش ﷛ قتال کبیره ګناه نۀ وه. او دا دلیل دې چه دا حکم اُوس هم باقي پاتې دې او منسوخ شوې نۀ دې.

(کبیر) غټې جثې والا او قوي څیز ته وئیلې شي دلته مراد غټې ګناه والا دې.

﴿وَصَدٌّ عَنْ سَبِيْلِ اللهِ﴾ صَدٌّ په ترکیب کښې مبتداء ده او اَكْبَرُ ئې خبر دې.

ددې ځائې نه شپږ علتونه ذکر کوي چه د مشرکانو سره په عزتمنو میاشتو کښې قتال جائز کوي. چه اې مشرکانو! تاسو شپږ کارونه کوئ دا خو اکبر (ډیر غټ) ګناهونه دي په نسبت د هغه عمل چه مسلمانانو ستاسو په مخالفت کښې کړیدې لهٰذا د دفعې دپاره قتال جائز کړې شو. او دا (صَدٌّ) اول سبب دې.

(صَد) منع کول او اړولو ته وائي. او سبیل الله عام دې، اسلام، هجرت، حج، عمرې، قرآن او نبي ﷺ تولو ته شامل دې بلکه که څوك د دین د یوې مسئلې نه خلق منع کوي، نو هغه هم پدې کښې داخل دې.

﴿وَكُفْرٌ بِهٖ﴾ دا دویم علت دې او (بِهٖ) ضمیر الله ته راجع دې. یعني د الله د ذات او د صفاتو او احکامو نه انکار کول او د هغه سره شریکان جوړول. یا سبیل ته یا نبي ته راجع دې.

﴿وَالْمَسْجِدِ الْحَرَامِ﴾ دا مجرور دې په (سَبِيْلِ الله) باندې عطف دې، او د (صَد) د لاندې داخل دې. او دا دریم علت دې یعني دوي د مسجد حرام نه خلق منع کوي، او دا نبي کریم ﷺ او صحابه کرام رضوان الله علیهم اجمعین ئې د صلح حدیبیه په موقعه کښې منع کړي وو، او دغه شان عام مسلمانان به ئې نۀ پریخودل، د الله نبي ﷺ به ئې په مسجد حرام کښې تنګولو، کله به ئې پرې لړې او پریوانونه ارتول او کله به ئې د څادر نه راخکلو او قسماقسم اذیتونه او تکلیفونه به ئې ورته رسول.

○ یا دا په ضمیر د (بِهٖ) باندے عطف دے او دا د کوفیانو په نیز جائز دے۔ (یعنی کفر کول په مسجد حرام باندے)۔ او په مسجد حرام باندے د کفر کولو نه مراد د طواف او مونځونو نه خلق منع کول دی۔

﴿ وَاِخْرَاجُ اَهْلِهٖ مِنْهُ ﴾ دا څلورم علت دے۔ دواړه ضمیرونه مسجد ته راجع دی، یعنی د مسجد حقدار خلق (چه دا نبی ﷺ او صحابه کرام رضی الله عنهم دی) دا ئے ددے مسجد نه ویستلی دی۔ او د مسجد د اهل نه مراد مؤمنان دی چه دوی د مسجد لائق دی، او دیته په سورة الانفال (۳٤) آیت کښې اولیاء وئیلے شویدی۔ او دوی ته اهل او اولیاء ځکه وئیلے شی چه دوی اصلی وارثان د ابراهیم علیه السلام دی کوم چه کعبه جوړه کړے وه۔

﴿ اَكْبَرُ عِنْدَ اللّٰهِ ﴾ دا د (صَدٌّ) دپاره خبر دے، یعنی دغه مذکوره کارونه د الله په نیز په اعتبار د گناه سره ډیر غټ دی ددے نه چه یو مشرك په اشهر حرم کښې مړ شی، هغے کښې دومره گناه نشته۔ دارنگه قتال د عبد الله بن جحش رضی الله عنه د رجب په میاشت کښې په دے گمان سره وو چه دا رجب نهٔ دے۔ او مشرکان خو دا جرمونه د حرمت په میاشتو کښې قصداً او یقیناً کوی لهذا د دوی د قتل اسباب موجود وو۔ نو ولے دا اعتراضونه کوی۔

﴿ وَالْفِتْنَةُ اَشَدُّ مِنَ الْقَتْلِ ﴾ دا پنځم علت دے، او په دے کښې دوه معنے دی :

(۱) یو دا چه شرك د مشرکانو ډیره لویه گناه ده د قتل د یو مشرك نه په دے میاشتو کښې۔

(۲) دویم دا چه د دین اسلام نه د مسلمانانو اړول په شبهاتو اچولو سره، یا په عذاب ورکولو او مصیبتونو کښې اخته کولو سره او منع کول د هغوی د ایمان نه او په قول او فعل سره د هغوی تنکول دا ډیر غټ جرم دے ځکه چه په ډیرو کفریاتو او مظالمو باندے مشتمل دے۔ نو دا د قتل نه هم زیات بد کارونه دی۔ لهذا د مشرکانو دا دلیل نیول چه مسلمانانو د عزتمنو میاشتو د احترام هیڅ خیال نهٔ دے ساتلے، یا د بیت الحرام د حرمت هیڅ خیال ئے نهٔ دے کړے، دا خالصه یوه پروپیگنډه ده او بے اعتباره خبره ده ځکه چه په حقیقت کښې همدوی هغه خلق دی چه د مقدس حرم هیڅ احترام نهٔ کوی او د هغے تقدس ئے پائیمال کړیدے، او بیا مسلمانانو ته ددے د تقدس خیال نهٔ ساتلو پیغور او عار ورکوی۔ دا سراسر بے انصافی ده۔

﴿ وَلَا يَزَالُوْنَ يُقَاتِلُوْنَكُمْ ﴾ دا شپږم علت دے او په دے کښې قتال ته ترغیب ورکوی ځکه چه ددے مخکښې واقعے نه صحابه کرامؓ په خطره کښې شو چه دا خو مونږ د گناه کار اُوکړو، نو دا وَهم او گمان کیدے شو چه بیا به جنگونو له نه ځو، کیدے شی چه دغه شان گناه رانه سرزد شی؟ نو الله رب العزت ترغیب ورکوی چه هغوی تاسو سره همیشه جنگونه کوی، نو تاسو به د جنگ نه

نۀ پريږئ، که په يو ځائے کښې درنه خطائي اُوشوله نو خير دے، ددے خو دا معنىٰ نۀ ده چه تاسو به جهاد پريدئ۔
دارنګه کافران ستاسو د مرتد کولو کوشش کښې لګيا دي نو سبب د قتال موجود دے۔
دارنګه اقدام هم درباندے هغوی کوی نو تاسو له د هغوی سره مقابله بالکل پکار ده۔
په بل تعبير سره الله تعالىٰ پدے آيت کښې مسلمانانو ته دا حقيقت ښکاره کوی چه د کوم شر سره ستاسو مقابله ده نو دا څه سطحی (سرسری) شر نۀ دے، بلکه دا ډير ژور شر او فساد دے، د دشمنانو منصوبه ډيره ژوره ده او هغوی پدے باندے د اصولو په طور کلك روان دی۔ هغوی په زمکه باندے د اسلام وجود نۀ برداشت کوی۔
﴿ إِنِ اسْتَطَاعُوا ﴾ پدے شرط ذکر کولو کښې حکمت دا دے چه پدے کښې اشاره ده د صحابه کرامو د ايمان قوت ته چه د مشرکانو د هغوی په مرتد کولو باندے وَس نۀ رسی۔ او اشاره ده چه د مشرکانو کوششونه د هغوی په مرتد کولو کښې عبث او باطل دی۔
﴿ وَمَنْ يَرْتَدِدْ مِنْكُمْ عَنْ دِينِهِ ﴾ پدے آيت کښې اشاره ده چه د دين نه هغه خوك آوړی چه جهادونه نۀ کوی، په کوم ملك او کومه علاقه کښې چه جهاد ختم شی، نو خلق به ئے ډير مرتد کيږی، لکه دے زمانه کښې د جهاد د کموالی د وجه نه خلق په قسماقسم تنظيمونو او غلطو پارټيانو کښې ننوتل، عقيدے ئے خرابے شوے۔ او پدے جمله کښې د موقع مناسب يوه تنبيه ده چه مسلمانانو ته ورکړے شويده چه که دوی د کافرانو د ظلم او زياتی نه په رعب کښې شی او د خپل دين نه واوړی او بيا پدے حالت کښې ورله مرګ راشی، نو د دوی مخکښې کړی تول نيك اعمال به برباد وی۔ والعياذ بالله۔
﴿ فَيَمُتْ ﴾ دا قيد څکه لګوی چه که يو انسان مرتد شی او د مرګ نه مخکښې بيرته ايمان راوړی، نو د هغه ايمان معتبر دے، ليکن غالباً کوم انسان چه په خپله خوښه کفر اختيار کړی، نو هغه ته د ايمان توفيق نۀ ملاويږی۔ څومره رحيم رب دے چه دهغه بنده ته هيڅ ضرورت نشته او بيا هم د مرګ نه مخکښې توبه ويستلو باندے راضی کيږی!!۔
﴿ فَأُولَئِكَ حَبِطَتْ أَعْمَالُهُمْ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ ﴾ حَبِطَتْ د حُبُوط نه دے، عرب وائی حَبِطَتِ النَّاقَةُ (اُوښه چه کله يو ضرری بوټے اُوخوری او د هغے په وجه ئے خيټه اُوپړسيږی او هلاکه شی) الله تعالىٰ د کافرانو د عملونو دپاره داسے لفظ استعمال کړے چه په هغے سره د حسی او معنوی مفهومونو مطابقت هم معلوميږی۔ لکه څنګه چه اُوښه په ظاهره کښې د نقصانی بوټی په خوړلو سره اُوپړسيږی ليکن انجام ئے هلاکت وی، دغه شان د کفارو اعمال ډير غټ او پړسيدلی

معلومیږي، لیکن د هغې انجام هیڅ نهٔ وي، بلکه تباه کیږي به او بے اثر به وي او هیڅ صحیح نتیـجه بـه ئے نهٔ وي، او دا حال به د هغه شخص هم وي چه د اسلام د پیژندلو او د تجربه کولو نه روستو، د مصیبتونو او ضررونو-نه د ګبراویدو په وجه ددے نه مخ واړوي۔

او د الله تعالیٰ په نیز باندے عمل ډیر قدر او شرافت لري، پدے وجه ئے په سزا کښې د عمل بربادیدل ذکر کړل، او د عمل د بربادیدلو نه په الله تعالیٰ پورے امان طلب کول پکار دي، ځکه چه ډیرو خلقو د کفارو مجرمینو روسانو سره جهادونه کړي وو، لیکن روستو د دنیاوی لالچ او کرسۍ په طمع د صلیبیانو حیله ګرو ملګري شو۔ [اَعَاذَنَا اللّٰهُ مِنْ دَیْدَنِهِمْ]

کوم زړهٔ چه د ایمان ذوق او خوند اُوځکي، او په صحیح طریقه اسلام اُوپیژني، نو ددے خبرے هیڅ امکان نشته چه هغه في الواقع اسلام پریدي او د ارتداد لاره اختیار کړي۔

## د حبط (یعنې د عمل د بربادیدو) مصداقات

بیا ځوك چه د اسلام نه واوړیدو نو ددهٔ عملونه په دنیا کښې بربادیدل دا دي چه دهٔ ته به په دنیا کښې ځوك مجاهد، مؤمن، متقي او مونځ کونکے نهٔ وائي بلکه مرتد به ورته وائي۔

او په دنیا کښې هم د نیك اعمالو بدله شته، الله تعالی به ئے د هغے نه محروم کړي۔

دارنګه دا به قتل کولے شي کله چه د مسلمانانو پرے وَس بَر شي۔ حدیث دے:

[مَنْ بَدَّلَ دِیْنَهٗ فَاقْتُلُوْهُ الحدیث......] [بخاري ۲۸۵٤]

(چا چه دین پریخودو هغه قتل کړئ)۔

او که مقابله کوي نو جنګ به ورسره کولے شي۔ دارنګه د اسلامي ریاست د ټولو مدني حقوقونه به محروم کیږي۔ او مؤمنان به ورسره هیڅ قسم تعلق او دوستانه نهٔ ساتي، او نصرت او مدد به ئے نشي کولے، او ښځه به ترے جدا کړے شي، او د مسلمانانو د میراث نه به محروم کړے شي۔ او په آخرت کښې ئے هم عملونه برباد شو، هیڅ اجر به ورته نهٔ ملاویږي او د جهنم په اُور کښې به همیشه وي۔

د ﴿اَعْمَالُهُمْ﴾ نه هغه نیك اعمال مراد دي چه د اسلام په حالت کښې ئے کړي وو یعنې مونځ روژه، زکاة، حج وغیره۔

| إِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَالَّذِيْنَ هَاجَرُوْا وَجٰهَدُوْا فِيْ سَبِيْلِ |
| --- |
| یقیناً هغه کسان چه ایمان ئے راوړے او هغه کسان چه هجرت ئے کړے او جهاد ئے کړیدے په لاره |

اللهِ أُولَٰئِكَ يَرْجُونَ رَحْمَتَ اللهِ وَاللهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿۲۱۸﴾

د الله کښې دا کسان امید لري د الله د رحمت او الله بخونکے، رحم کونکے دے۔

**تفسیر : ربط** : ۱- اُوس د مرتدینو په مقابله کښې ایمان والو ته زیرے بیانیږي، او پدے کښې ایمان، هجرت او جهاد ته ترغیب ورکوی چه هرکله تاسو پدے کارونو همیش والے کوئ۔نو ستاسو عملونه به د بربادیدو نه محفوظ شي۔ او د ایمان والو دا درے صفتونه په قرآن کریم کښې غالباً یو ځائے ذکر کیږي۔ایمان، هجرت او جهاد۔ ځکه چه ایمان اصلي شے دے او جهاد او هجرت د هغے محافظ او مددګار دي۔

بله وجه دا ده چه د درے وارو ملازمه ده، هجرت او جهاد بغیرد ایمان نه قبول نهٔ دي، او دے دوارو سره د ایمان تاکید او مضبوطوالے راځي او جهاد بغیر د هجرت نه پوره طریقے سره نهٔ شي کیدے۔ قاله الحافظ ابن قیم في زاد المعاد وانظر فتاوی الدین الخالص (۸۹/۹)۔

او پدے کښې مسلمانانو ته دا لارخودنه هم ده چه د کافرانو د ظلمونو جواب ارتداد نهٔ دے بلکه هجرت او جهاد دے۔

۲- ربط : پدے آیت کښې دغه سریه (فوجي دستے) ته بشارت دے کوم چه په شهر حرام کښې قتال کړے وو۔ ۳- پدے آیت کښې د ارتداد نه د حفاظت لاره او سبب بیان شویدے۔

﴿وَهَاجَرُوا﴾ هجرت په لغت کښې ترک (پریخودلو) ته وئیلے شي، د ایمان والو ژوند به د هجرت نه خالي نهٔ وي، ضرور به په یو قسم هجرت کښې وي، (۱) غټ هجرت دا دے (لکه حدیث کښې دي : اَنْ تَهْجُرَ مَا كَرِهَ رَبُّكَ) (ستا رب چه کوم شے بد ګنړي او حرام کړے ئې دے هغه پریدے) [وَالْمُهَاجِرُ مَنْ هَجَرَ مَا نَهَى اللهُ عَنْهُ] [صحیح بخاري] (کامل مهاجر هغه دے چه د الله تعالیٰ حرام کړي کارونه پریدي) او پدے معنیٰ باندے هر مسلمان مهاجر دے۔

(۲) دویم هجرت د دار الحرب نه دار الامان ته اګرکه د کفر ملك وي۔ لکه حبشو ته هجرت شو۔ (۳) دریم هجرت د دار الکفر نه دار الایمان ته لکه هجرت د مکے نه مدینے ته۔

(٤) هجرت د دار الفسوق نه دار الطاعة ته۔ یعنې په یوه علاقه کښې فسق او فجور کیږي نو هغه علاقے ته هجرت اُوکړه چه په هغے کښې د الله طاعتونه کیږي۔

(٥) هجرت د بدانو د مجلس نه د نیکانو مجلس ته (یو مجلس کښې غیبت او بهتان او کنځل او مؤمنانو پورے توقے کیږي نو د نیکانو مجلس ته هجرت واجب دے)۔

مؤمن سړے به هر وخت پدے فکر کښې وي چه زهٔ کوم ځائے اُوسیږم، او کوم مجلس کښې

ناست یم، آیا دلته د الله طاعت او بندګي کیږي او که نهٔ ؟ زما عبادات برابر دي او که نهٔ ؟۔ او دین دومره قیمتي شے دے چه د دین د حفاظت دپاره به ایمان والا خپل کور، مال، او بال بچ، پوله پټے، امامت، عزت او مشري پریدي۔

﴿ وَجَاهَدُوا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ﴾ دا ورسره ځکه وائي چه په نفسِ هجرت کار نهٔ کیږي بلکه د هجرت نه پس به د الله په لاره کښې د هغه د دین د غالبه کولو دپاره جهادونه کوي نو بیا دے دوی د الله د رحمت اُمید اُوساتي۔

(جهاد) په لغت کښې کوشش ته وائي او په شریعت کښې [بَذْلُ النَّفْسِ وَالْمَالِ لِاِشَاعَةِ الْاِسْلَامِ] ته وائي (یعنې خپل نفس او مال د اسلام د خورولو دپاره لګول)۔

جهاد هم د مؤمن داسے صفت دے چه ددهٔ نه نهٔ جدا کیږي، مؤمن سړے به همیشه په جهاد کښې وي، د جهاد د دیارلسو اقسامو نه په یو قسم کښې به ضرور مصروف وي:

۱- جهاد بِتَعَلُّمِ الْعِلْمِ (دین زدهٔ کول) ۲- (وَتَعْلِيْمِهٖ) (دین بیانول)۔

۳- وَالْعَمَلِ بِهٖ (په دین باندے عمل کول) ٤- وَالصَّبْرِ فِيْ ذٰلِكَ (د دعوت او د تعلم او د عمل په تکالیفو صبر کول) دا جهاد د نفس سره وي۔

○ د شیطان سره جهاد دوه قسمه دے۔ ۱- بِدَفْعِ الشَّهَوَاتِ (د خواهشاتو په دفع کولو سره د شیطان مقابله کول) ۲- بِدَفْعِ الشُّبُهَاتِ : (د شیطان غلطے شبهے او وسوسے دفع کول)۔

○ د کفارو سره جهاد په څلورو طریقو دے :۱- بِالْقَلْبِ (په زړهٔ بد ګنړل)

۲- بِاللِّسَانِ (په ژبه باندے د هغوی مقابله کول) ۳- بِالسَّيْفِ وَالسِّنَانِ (په توره او نیزه باندے)

٤- بِالْمَالِ : په مال لګولو سره د هغوی مقابله کول۔

○ بل جهاد المنافقین دے۔ دا په یو څو طریقو دے : ۱- بِالْغِلْظَةِ عَلَيْهِمْ : (هغوی سره سختي کول)۔ ۲- بِاِقَامَةِ الْحُدُوْدِ (هغوی باندے حدود نافذ کول) ۳- بِاِكْفِهْرَارِ الْوَجْهِ) هغوی ته مخ تورول او تندے تریوَول۔ مؤمن به پدے جهادونو کښې ضرور مصروف وي۔

﴿ اُولٰٓئِكَ يَرْجُوْنَ رَحْمَةَ اللّٰهِ ﴾ رجاء دیته وائي چه بنده نیک عمل کوي (یعنې اسباب ئے تیار کړي وي) او د الله نه امید لري۔ (لکه دلته ئے درے اسباب تیار کړیدي)۔

(۱) دا یا جمله خبریه ده لکه همدا خبره ظاهره ده یعنې دا قسم خلق د الله تعالیٰ د رحمت امید لري ځکه چه اسباب ورسره دي، بے اسبابو امید هسے تمنی ده۔

(۲) یا دا جمله خبریه ده په معنیٰ د انشاء ده یعنې (فَلْيَرْجُوا رَحْمَةَ اللّٰهِ) دوی دے د الله د رحمت اُمید اُوساتي، الله به ضرور د دوی امید پوره کړي او خپل رحمت به ورکړي۔

د مهاجرين او انصارو مخلصين مؤمنان اگرچه په تعداد کښې ډير کم وو ليکن هغوی په غوږونو دا وعده آوريدلے وه نو پدے وجه هغوی جهاد اُوکړو او په مشکلاتو باندے ئے صبر اُوکړو، نو الله تعالىٰ ورسره وعده پوره کړه، بعضو ته شهادت نصيب شو، او بعضو ته د الله نصرت اُورسيدو، او دواړه خير دے، او دواړه د الله رحمت دے، او دغه خلق د الله د مغفرت او رحمت په مرتبو باندے کامياب او کامران شو۔

او حافظ ابن کثيرؒ او ابن جريرؒ په خپل سند سره د عروه بن الزبير رحمه الله نه نقل کوی چه کله دا مخکنی آيتونه نازل شو نو د عبد الله بن جحشؓ او دهغه د ملګرو خفګان زائل شونو د اجر په طمع شو او نبی ﷺ ته ئے اُوفرمايل: آيا زمونږ دپاره به ددے غزا اجرد مجاهدينو او مهاجرينو راکړے شي؟ نو الله تعالىٰ دا آيت نازل کړو چه الله تعالىٰ ددوی اجرنهٔ دے برباد کړے، او ترغيب ئے ورکړو چه آينده کښې هم جهادونه کوئ او که کومه خطائی اُوشی نو الله غفور رحيم دے۔ او دا دليل دے چه په اجتهادی خطائی سره هم انسان ته اجرضرور ملاويږی۔

○ قتاده رحمه الله وائی : الله تعالىٰ پدے آيت کښې د محمد ﷺ د ملګرو - چه هغه ددے امت غوره خلق دی - ښائسته صفت کړيدے بيا ئے دوی اميد والا ګرځولی دی، ځکه چه څوك اميد لري هغه طلب کوی او څوك چه يره کوی هغه تيختيه کوی۔ (فتح البيان)۔

يَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ الْخَمْرِ وَالْمَيْسِرِ قُلْ فِيْهِمَآ اِثْمٌ كَبِيْرٌ وَّمَنَافِعُ

او دوی تپوس کوی ستا نه په باره د شرابو او جوارئ کښې ته اُووايه په دے دواړو کښې ګناه ده لويه او لږے فائدے دی

لِلنَّاسِ وَاِثْمُهُمَآ اَكْبَرُ مِنْ نَّفْعِهِمَا وَيَسْـَٔلُوْنَكَ مَاذَا يُنْفِقُوْنَ

دپاره د خلقو او ګناه د دے دواړو ډيره لويه ده د فائدے ددے نه۔ او دوی تپوس کوی ستا نه چه څهٔ خرچ کړی دوی

قُلِ الْعَفْوَ كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمُ الْاٰيٰتِ لَعَلَّكُمْ تَتَفَكَّرُوْنَ ﴿٢١٩﴾

اُووايه زياتی مال۔ دغه شان بيانوی الله تعالىٰ تاسو ته حکمونه خپل دے دپاره چه فکر اُوکړئ۔

**تفسير** : پدے آيت کښې څلورم حکم دے چه د تدبير منزل سره تعلق لري۔ او هغه دا چه شراب او جواری به ستاسو په علاقه کښې نهٔ وی ځکه چه پدے سره په کور او معاشره کښې فساد پيدا کيږی۔ قتل وقتال، دشمنيانے دے سره پيدا کيږی، عزتونه پدے ختميږی، د الله تعلق دے سره کټ کيږی، ځکه انسان دے سره د مانځه او د الله د ذکر نه غافله کيږی۔ نو کله چه داسے ګنده

معاشره وی نو دوی سره د الله مدد چرته راځي؟ او هغوی د الله د خلافت لائق چرته ګرځي؟ د دین مشری الله تعالیٰ هغه چا له ورکوی چه دا ګندونه پکښې نهٔ وی۔ نو الله تعالیٰ د صحابه کرامؓ د معاشرے تربیت په تدریج سره کولو، پدے وجه ئے شراب هم په تدریج سره حرام کړل۔

شراب او جواری د عربو داسے لذتونه وو چه هغوی پکښې د غوړونو پورے غرق وو او دائے طبیعت ګرځیدلے وو ځکه چه د هغوی مخے ته څهٔ اُوچت مقاصد نهٔ وو چه هغوی پکښې مصروف شوی وے، او قیمتی اوقات ئے په هغے کښې تیر کړی وے نو الله تعالیٰ ئے اُوچت مقاصدو طرف ته متوجه کوی نو ځکه ئے د شراب او جواریٔ نه درجه په درجه اړوی۔

**ربط الآیة** : (۱) احکام د تدبیر منزل بیانول شروع دی۔ (۲) یا د امة مسلمه تربیت شروع دے، دا بل تربیت دے۔ (۳) مخکښې جهاد او انفاق ته ترغیب وو نو د هغے په ضمن کښې اُوس په خمر او میسر باندے د مال لګولو نه منع بیانیږی۔

بیا پدے آیت کښې یوه مسئله ده او یو قانون دے۔ مسئله دا ده چه د شرابو او جواریٔ نه ځان ساتل پکار دی ځکه دے کښې نقصانات دی چه پدے سره معاشره خرابیږی۔

**شان نزول** : د آیت نزول پدے طریقه شوے وو چه اول کښې شراب او جواری حلال وو، نو بعض صحابه کرامؓ شراب څکلی وو، او په خپل مابین کښې ئے اشعار وئیلی وو، او د فخر خبرے ئے کړے وے او یو کس په کښې وهلے شوے وو، نو نبی کریم ﷺ ته شکایت اُوکړے شو؟ نو دا آیتونه نازل شو چه په شرابو او جواریٔ کښې معمولی شان فائدے دی خو ددے نه ډیر ګناهونه او نقصانات پیدا کیږی۔ نو ځان ترے ساتل پکار دی یعنی ذریعه د ګناه ده او خپله ګناه نهٔ ده، نو ډیرو مسلمانانو ترے ځان اُوساتلو چه هرکله دے کښې نقصانات شته نو نهٔ به ئے څکو، لیکن حرام شوی نهٔ وو۔ بعض کسانو به بیا هم څکل۔

عبد الرحمن بن عوف ﷛ څهٔ صحابه کرامؓ میلمانه کړل او طعام ئے پرے اُوخوړلو، پدے کښې علی بن ابی طالبؓ ئے جمعے ته مخکښې کړو نو هغه ﴿قُلْ يَا أَيُّهَا الْكَافِرُوْنَ﴾ کښې د ﴿لَا أَعْبُدُ مَا تَعْبُدُوْنَ﴾ په ځائے (أَعْبُدُ مَا تَعْبُدُوْنَ) اُولوستلو۔(چه معنیٰ ئے بالکل شرکی شوه). نو الله تعالیٰ د سورة النساء آیت راولیږلو ﴿لَا تَقْرَبُوا الصَّلَاةَ وَأَنْتُمْ سُكَارَىٰ﴾ چه د مانځه په وخت کښې ئے مهٔ سکئ، نو چا به چه سکل نو د ماسخوتن مانځه نه روستو یا سحر نه ترغرمے پورے وخت کښې به ئے سکل چه مانځه ته به ئے نشه ختمه شوے وه۔

بیا عمر بن الخطاب ﷛ اُوفرمایل : [اَللّٰهُمَّ بَيِّنْ لَنَا فِي الْخَمْرِ بَيَانًا شَافِيًا] (اے الله! زمونږ د پاره د شرابو په باره کښې شافی بیان اُوکړه) مقصد ئے دا وو چه دا حرام شی نو بنهٔ به وی، نو الله تعالیٰ د

سورة المائدے (۹۱)آیت ﴿فَهَلْ اَنْتُمْ مُّنْتَهُوْنَ﴾ نازل کړو نو امیر المؤمنین عمر بن الخطاب ﷛ اُوفرمایل :[اِنْتَهَيْنَا اِنْتَهَيْنَا] (مونږ منع شو، مونږ منع شو) (ابن جریرالطبری)

او خلقو د شرابو کتموئ او بوتلو نه مات کړل او شراب ئے واړول چه د مدینے کوڅے د هغے نه بهیدلے۔ دا قیمتی مالونه وو لیکن کله چه د عظیم ذات امر راغلو، بیا ئے هیڅ ته اُونهٔ کتل۔ او نشه پریخودل ډیر ګران وو لیکن کله چه د الله خوف زړهٔ ته کوز شی، بیا هیڅ نشه پریخودل ګران نهٔ وی، دا ټول مشکلات انسان ته پدے وجه راپیښیږی چه هغه د خپل نفس د خواهش تابع وی او خوفِ الهی د هغه زړهٔ ته نهٔ وی کوز شوے۔یا هغهٔ نشه ورته ګناه نهٔ ښکاری، بعض خلقو د نسوارو او سیګریټو نه یو غټ غر جوړ کړے وی او ددے پریخودل ورته انتهائی مشکل بلکه مرګ ښکاری۔

د صحابه کرامو ؓ نه عبرت اخستل پکار دی۔

بیا پدے آیت کښې دوه قوله دی:

(۱) تفسیر سراج المنیر او تفسیر التسهیل کښې لیکی: چه پدے آیت سره شراب حرام شویدی ځکه چه د ﴿فِيْهِمَا اِثْمٌ كَبِيْرٌ﴾ معنیٰ دا کوی چه هرکله چه پدے دواړو کښې لویه ګناه ده او د وړے ګناه نه ځان ساتل لازم دی، نو پاتے لا دغتے ګناه نه، لهذا دا آیتِ کریمه په تحریم کښې صریح دے۔

(۲) مشهور قول چه د شان نزول نه معلومیږی، دا دے چه پدے سره شراب نهٔ دی حرام شوی بلکه پدے کښې د شرابو یو قسم عیب خودل شویدے او صراحةً حرمت پکښې نهٔ وو نازل۔ او د(فِيْهِمَا اِثْمٌ كَبِيْرٌ) معنیٰ دا ده [يَنْشَأُ مِنْهُمَا اِثْمٌ كَبِيْرٌ] یعنی ددے دواړو نه غټ ګناهونه راپیدا کیږی۔ یعنی دا د غټو ګناهونو سبب جوړیږی۔

بنا پدے تفسیر باندے پدے آیت کښې **قانون** او فائده دا ده چه یو شے دے چه په هغے کښې مصلحت هم وی او مفسدت هم، خیر هم وی او شر هم۔ نو دواړو کښې به کتلے شی، که خیر ئے غالب وو او شر ئے کم وو، نو لږ شر ته به نهٔ ګورے بلکه ډیر خیر ته به ګورے او که شر ئے غالب وو، نو لږ خیر ته به نهٔ ګورے۔ د لږ خیر دپاره به دډیر شر والا کار نهٔ شی اختیارولے۔ او که دواړه علی السویه (برابر) وو، نو بیا به ددے نه ځان ساتی، او بل کار ته به رجوع کوی۔

او دا قانون دے چه [اَلشَّرِيْعَةُ جَاءَتْ لِاِعْدَامِ الْمَفَاسِدِ وَتَقْلِيْلِهَا وَتَوْلِيْدِ الْمَصَالِحِ وَتَكْثِيْرِهَا] (شریعت د مفاسدو د ختمولو یا دکمولو دپاره او د مصلحتونو د راپیدا کولو او ډیرولو دپاره راغلے دے) او دا د شریعت مقصد دے۔

نو مصلحت په شرابو کښې دا دے :[فَاِنَّ الْمُدَامَ تُقَوِّي الْعِظَامَ وَتَنْفِي التَّرَحَ] (مقامات حریری) شراب

هډوکي مضبوطوي او غمونه او خفگانونه ختموي)، په جنسي قوت کښې اضافه پيدا کوي، او طبيعت خوشحاله کوي، او په تجارت کښې ئې زياته گټه کيږي،

او بعض مرضونه پرې دفع کيدل (په هغه وخت کښې چه حرام نۀ وو او پس د حرمت نه مرضونه زياتوي) ......... او مفسدت ئې دا دے چه شراب اُوسکي نو الله به نۀ پيژني، عقل به ئې لاړ شي، خور او مور به نۀ پيژني، زنا گانې به کوي، د خولې نه به ئې گندو دے راخيژي، مونځ، ذکر او هيڅ عبادت په صحيح طريقه نۀ شي کولے. پدے سره ئې تنده نۀ ماتيږي، د ماشومانو ذهني او جسماني ترقي بنده شي، نسل ئې ضعيف پيدا کيږي، قوت ارادي کمزورے شي، تي بي بيماري اُولګي، د زړۀ او د وينې په رګونو باندے اثر غورځوي او نورے ډيرے بيمارياني پيدا شي.

(تيسير الرحمٰن)

خيتمه غتموي، د طعام شهوت ئې ختم شي، جګر کښې سوزش پيدا کوي، ګردے کمزوري کوي، بو داوالے په چلتيۍ سره راولي څکه شرايين رګونه کلک شي. مالي ضرر ئې دا دے چه د انسان اقتصاد او مالداري ختموي او د ښځې او د اولادو واجبې نفقې ختميدو ته ئې رسوي.

اجتماعي ضرر ئې دا دے چه د نشه يانو هميشه جګړے وي چه د هغې نه کله لوئې حادثات او قتلونه او زخمونه پيدا شي.

ادبي ضرر ئې دا دے چه نشائي ذليل او سپک وي، د مسخرو او خندا لائق جوړ شي څکه چه خبرے، هيئت او حرکات ئې گندو وي، کنځل او بد رد کوي، پدے وجه شرابو ته ام الخبائث (د گندگو مور) وائي. پدے سره د خلقو رازونه ښکاره کولے شي. (التفسير المنير) ...... او د شرابو فائدے په نورو دوايانو او خوراکونو کښې شته نو د شرابو څکلو ته ضرورت راپيښ نۀ شو.

دارنګه جواري کښې لږ ساعت فائده ده چه په لږ وخت کښې به ډيرے پيسے اُوګټي او په غريبانو باندے به ئې د ريا او سُمعت دپاره تقسيم کړي. ليکن ضرر ئې دا دے چه دے سره دشمني او بغض پيدا کيږي، د الله د ذکر او د مانځه نه غفلت راځي او په مسلمان باندے ظلم راځي، دارنګه د جوارئ د بيللو د وجه نه غلا او ډاکے پيدا کيږي.

دا قاعده چه کله انسان ته معلومه شي نو الله تعالىٰ انسان ته د دين فقاهت ورنصيب کوي. ډير مسائل پرے حل کيږي. لکه شيخ الاسلام ابن تيميّهؒ د مبتدعينو جهميه او معطله ؤ سره ملګرتيا اُوکړه د تتاريانو په خلاف او دوی ئې ځان سره ملګري کړل او د تتار په خلاف ئې جهاد اعلان کړو، او دائې اُوفرمايل: چه تتار عظيم شر دے، کفار دي د دوی په شريکه ختمول پکار دي، او د جهميه او مبتدعينو شر د هغوی نه کم دے، څکه چه د مسلمانانو نوم پرے پروت دے نو د

لوئی شر د ختمولو دپاره د وړوکی شر والا سره ملګرتیا جائز ده۔ او خپل کورنی اختلاف سره په روستو ګورو۔ او دا د دین فقاهت دے۔

**حکمت:** ددے آیت او ددے په شان آیتونو نه د اسلامی نظام تربیت او د قرآنی منهج تعمیر او د ربانی تعلیم یو خاص انداز مینځ ته راځی او دا د ترتیب نهایت حکیمانه انداز دے، او د اسلام په اکثرو هدایاتو او فرائضو او قانون سازیٔ کښې همدا منهاج اختیار شویدے ځکه د اسلامی نظام د تربیت طریقه دا ده چه:

(۱) که د یو امر او نهی تعلق د اصولو یعنی د اسلام د عقائدو او نظریاتو سره وی نو اسلام په اول فرصت کښې د هغې قطعی او اټله فیصله کوی۔

(۲) او که د یو امر او نهی تعلق د یوے داسے معاملے سره وی چه د عادت په طور باندے معمول به وی۔ یا د رسم په طور باندے راروان وی، نو اسلام د هغې په باره کښې د اصلاحی قدم پورته کولو نه مخکښې انتظار کوی، په تدریج او نرمیٔ او سهولت سره په هغې کښې قدم اخلی، او د اِقدام نه مخکښې داسے حالات تیاروی چه په هغې کښې د قانون او د حکم د نافذ کولو لاره په بنهٔ شان سره هموارېږی۔ مثلاً د توحید او د شرك د مسئلے په باره کښې اسلام په اولنی فرصت کښې فیصله کن خبره کوی، په شرکی عقائدو باندے فیصله کن حمله کوی، بغیر د څه تردد او تأمل نه او بغیر د نرمیٔ او سودی بازیٔ نه په هغې باندے ابتداءً رد کوی۔ ځکه چه دا مسئله د اسلامی نظریهٔ حیات اساسی (یعنی عقیدوی) مسئله ده چه ددے نه بغیر ایمان مکمل کیدے نهٔ شی او ددے دصفائی نه بغیر اسلام په خپل ځائے قائم پاتے کیدے نهٔ شی۔

اوشراب او جواری داسے معاملات دی چه ددے تعلق د عادت سره وو، پدے وجه ددے د علاج دپاره قرآن کریم دا طریقه اختیار کړه چه ددے څیزونو خلاف دینی شعور ئے بیدار کړو، د مسلمانانو په دماغو کښې ئے د قانون سازیٔ هغه دلائل کینول چه په هغې سره دا څیزونه حرام ګنړلے شی۔ مثلاً په جواریٔ او شرابو کښې چه کوم ضررونه او قباحتونه دی هغه ددے د فائدو نه ډیر زیات دی۔ لهٰذا ددے نه بچ کیدل مناسب دی او ددے نه روستو ئے بیا د مانځه په حالت کښې منع اُوکړه او بیا مستقلاً منع په سورة المائده کښې راغله۔ (تفسیر فی ظلال القرآن ۲۰۹/۱)

﴿ قُلْ فِيهِمَا إِثْمٌ كَبِيرٌ ﴾ (أَيْ يَنْشَأُ مِنْ إِسْتِعْمَالِهِمَا إِثْمٌ كَبِيرٌ) یعنی ددے دواړو د استعمال نه غټه ګناه راپیدا کیږی۔ یعنی دا دواړه څیزونه د انسان اخلاق او کردار تباه کوی۔ دین کښې ئے نقصان پیدا کیږی۔ او په (کبیر) کښې اشاره ده چه شراب اګرکه یوه ګناه ده لیکن منشأ د نورو ګناهونو ده نو غټ والے په اعتبار د سبب سره دے۔

﴿ وَمَنَافِعُ لِلنَّاسِ ﴾ (منافع) ئے جمع قلت راوړه، اشاره ده چه منافع ئے د مضراتو په نسبت ډیر کم دی۔
**فائده :** ځینو علماؤ پدے مقام کښې دا خبره کړے چه قرآن دلته د شرابو او د جوارئ د کومو منافعو او فوائدو اقرار کړے د هغے نه مادی او طبی منافع نهٔ دی مراد، ځکه د قرآن کریم د ځیزونو یا د اعمالو د طبی او د مادی فوائدو سره براوراست هیڅ تعلق نشته۔ ځکه چه په دنیا کښې په هر بد او نا پاکه ځیز کښې هم څهٔ نا څه فوائد ضرور موجود وی، نو بیا د جوارئ او د شرابو څهٔ خصوصیت دے چه قرآن ددے د فوائدو اقرار اُوکړو؟۔ بلکه دلته اخلاقی فائدے مراد دی ځکه دلته د نفع په مقابل کښې إِثم لفظ استعمال شویدے او إِثم (گناه) د طبی نقصاناتو دپاره نهٔ استعمالیږی، بلکه د اخلاقی مفاسدو او گناهونو دپاره استعمالیږی، که دلته د شرابو د طبی نفع او نقصان په باره کښې سوال وے نو د نفع په مقابل کښې د ضرر لفظ به ئے استعمال کړے وے نهٔ د اثم۔
نو دلته اسلامی شریعت دا مزاج ښکاره کړو چه کوم ځیزونه په اخلاقی اعتبار سره ضرری وی، که د هغے نه څه فائده په ظاهره کښې انسانانو ته رسیږی هم، خو کله چه د هغے د ضرر طرف غالبه وی نو اسلام د هغے نه ځان ساتل لازم کړیدی۔ د مثال په طور کیدے شی چه یو ځائے کښې خلق لاټری واچوی، یا سنیما جوړه کړی یا سود اُوکړی، دے دپاره چه د هغے نه ډیر مال حاصل شی چه په هغے سره د مصیبت زدهٔ علاقے مسلمانانو مدد اُوکړی نو په ظاهره کښې دا کار د نیکئ او خدمتِ خلق دے لیکن اسلام دا نیکی نهٔ جائز کوی ځکه چه پدے نیکئ کښې دننه چه کومه اخلاقی بدی پرورش موندهٔ کوی هغه ددے نیکئ نه ډیره زیاته ده۔ (تدبر قرآن)
**فائده:** ددے آیت نه مونږ ته دا اَهم اصول معلوم شو چه هر شی کښې اگر که هغه هر څومره بد وی، څه نا څه فائدے هم وی مثلًا ریډیو، ټی وی او نور داسے قسم ایجادات شو چه خلق ددے بعض فوائد بیانوی او خپل نفس له دهوکه ورکوی، دیته کتل پکار دی چه د فوائد او نقصاناتو تقابل څه دے؟ خاصکر د دین او ایمان او اخلاق او کردار په لحاظ۔ که په دینی نقطهٔ نظر سره نقصانات اومفاسد زیات وی، نو د لږ دنیوی فائدو په خاطر هغه جائز نهٔ گنړلے کیږی، او د ټی وی او وی سی آر وغیره هغه نقصانات چه د انسان دینی نقطهٔ نظر سره دی، د وضاحت محتاج نهٔ دی۔
﴿ وَإِثْمُهُمَا أَكْبَرُ مِن نَّفْعِهِمَا ﴾ او هر کله چه ددے فائدے کمے او گناه ئے ډیره ده، نو د عقل سلیم تقاضا دا ده چه د داسے شی نه ځان ساتل پکار وی، پدے وجه مشرانو صحابه کرامو ددے استعمال پریخودلو۔ او د عبد الله بن عباس رضی الله عنهما په روایت کښې دی چه (سزاگانے ددے روستو د تحریم نه غتے دی په منافعو ددے مخکښې د تحریم ددے نه)۔
**فائده :** خمر په متن لغت کښې پټولو ته وائی۔ شرابو ته خمر ځکه وائی چه دا هم عقل

پټوی، پرده پرې راولي. بیا د خمر یو لغوي تعریف دے او بل شرعي. لغوي تعریف ئې دا دے چه خمر [هُوَ الشَّيْءُ مِنْ مَاءِ الْعِنَبِ إِذَا اشْتَدَّ وَغَلٰی وَقَذَفَ بِالزَّبَدِ] (فتح البیان)
(د انګورو کچه اُوبه چه سختے شي او جوش اُووهي او زګونه ګوزار کړي).
او په اصطلاح د شریعت کښې [كُلُّ مُسْكِرٍ خَمْرٌ] او دا نبوي تعریف دے چه هر نشائي شے شراب دي. او الفاظِ شرعیه به په شرعي معنو حمل کولے شي. او نبي ﷺ فرمائي :
[مَا اَسْكَرَ كَثِيْرُهٗ فَقَلِيْلُهٗ حَرَامٌ] ...... [احمد، ابن ماجه، والدارقطني بسند صحيح]
(هر هغه شے چه زیات ئې نشه پیدا کوي نو لږ ئې هم حرام دي) او دا د جمهورو علماؤ فتویٰ ده چه هر نشائي څیز د شرابو په حکم کښې دے، او تعریف د شرابو ورته شرعاً شامل دے. صرف امام ابو حنیفه او سفیان ثوري رحمهما الله فرمائي : چه شراب د انګورو پورے خاص دي. او د باقي څیزونو شراب کله ډیر وي نو حرام دي او که لږ وي نو حلال دي. لیکن دا قول د دلیل په لحاظ ضعیف دے. وجه دا ده چه حدیث کښې هرکله تعریف د خمر پخپله اُوشو نو بس دا به تفسیر د قرآن کریم وي.
او په احادیثو کښې هر نشائي څیز ته خمر وئیلے شویدے.
او دارنګه د صحیحینو په حدیث کښې راغلي دي چه عمر بن الخطاب رضی الله عنه د رسول الله ﷺ په منبر باندے خطبه کښې اُوفرمایل : اے خلقو ! په کوم وخت کښې چه د شرابو د حرامیدو حکم نازلیدو نو په هغه وخت کښې شراب د پنځو څیزونو نه وو ١- د انګورو، ٢- د کجورو، ٣- د ګبین (شهدو)، ٤- د غنمو، ٥- او د وربشو نه. [وَالْخَمْرُ مَا خَامَرَ الْعَقْلَ] (او شراب به هر هغه شے وي چه عقل باندے (د نشے د وجه نه) پرده راولي) آه.
او ددے په معنیٰ مرفوع حدیث په حَسَن سند سره په ابوداود کښې نقل دے.
امام قرطبيؒ لیکي : دا د امام ابو حنیفةؒ د مذهب په بطلان باندے دلیل دے. ځکه چه عمر فاروقؓ د صحابه کرامو په مَجمَع کښې داسے خبره کوي. او هغه په شرع او لغت دواړو باندے کافي عالِم دے. او هغه د شرابو عام تعریف کوي، نو بس د هغه خبرے له به اعتبار وي. تفصیل دپاره مسك الختام د صدیق حسن خانؒ او نیل الاوطار د شوکانيؒ اُوګوره.
﴿وَالْمَيْسِرُ﴾ د یُسر نه دے، آسانتیا ته وئیلے شي او په جوارئ کښې هم انسان په آسانئ سره مال حاصلوي.
عبد الله بن عباس رضي الله عنهما فرمائي : دا هر قمار ته شامل دے لکه نَرْد (چه د عربو د جوارئ یو خاص قسم لوبه وه) او شطرنج (زمرے لوبه). دارنګه په غوزانو باندے یا بلورو، لهو،

خبيث بورد، تاشونو، باندونواو نورو طريقو باندے جوارى كولو ته شامل دے۔
﴿ وَيَسْـَٔلُونَكَ مَاذَا يُنفِقُونَ ﴾ دلته ئے (واو) راوړو ځكه مخكښى، او دا، او ددے نه روستو سوالونه صحابه كرامؓ په يو ځائے كړى وو۔
**شان نزول** : ابن ابى حاتمؒ د ابن عباسؓ نه نقل كړيدى چه د صحابه كرامؓ نه څۀ كسان كله چه دوى ته د الله په لاره كښې د انفاق او صدقے امر اُوشو نو نبى ﷺ ته راغلل، وے وئيل : مونږ ته پته نشته چه دا كومه نفقه ده چه مونږ ته پرے زمونږ د مالونو نه حكم شويدے۔ نو ددے نه مونږ څومره خرچ كړو؟ نو الله دا آيت نازل كړو۔ (التفسير المنير)۔
**ربط** دا دے چه په خمر او ميسر كښې منافع كم او ضررونه زيات وو نو د هغے نه ځان ساتل ضرورى دى، او د زياتى مال په انفاق كښې ضرر كم دے (چه هغه په ظاهره كښې مال كميدل دى) او دنياوى او اُخروى منافع ئے زيات دى نو ددے اختيارول پكار دى۔
(ماذا ينفقون) داسے تپوس مخكښې تير شو ليكن هغه د مصرف د پيژندلو په باره كښې وو او دلته د انفاق د مقدار او درجے معلومولو په باره كښې دے چه څومره او كوم مال خرچ كړو؟۔
او صحابه كرامؓ دا تپوس د زكوٰة د فرض كيدو نه مخكښې كړے وو چه دوى د الله په لار كښې د خپل مال څومره حصه خرچ كړى؟ نو الله تعالىٰ اُوفرمايل : چه دوى ته اُووايه چه د خپل اهل وعيال باندے د خرچ كولو نه روستو چه كوم پاتے شى نو هغه د الله په لار كښې خرچ كړئ۔ نو دلته هغه انفاق مراد دے چه د جهاد، د اعلاء كلمة الله، او د اسلام او د دين د تحفظ او دفاع دپاره خرچ كيږى۔
﴿ قُلِ الْعَفْوَ ﴾ (اَلْعَفْوَ) دا منصوب دے۔ فعل(اَنْفِقُوْا) (خرچ كړئ) پټ دے۔ عفو په عربى ژبه كښې زياتى ته وائى، دلته ئے ډير مصداقات دى :
(۱) [مَا فَضَلَ عَنْ حَوَائِجِكُمْ] (هغه چه د انسان د ذاتى او اصلى حاجت (لكه د هغه او د هغه د اهل وعيال د خرچے نه او د لباس او استوګنے او خادم وغيره نه) زياتى وى۔ (ابن عاشور)۔
(۲) [ مَا سَهُلَ اِنْفَاقُهٗ وَلَا يَضُرُّهُمْ اِخْرَاجُهٗ] (كوم مال چه په آسانئ سره لګيږى او په خرچ كولو كښې ئے تكليف نۀ وى) (بدائع التفسير، فتح البيان)۔
(۳)- د طاووسؒ نه نقل دى : [اَلْيَسِيْرُ مِنْ كُلِّ شَيْءٍ] يعنى د هر شى نه معمولى شے خرچ كولو ته عفو وائى۔ مثلًا يو كرور روپئ دى كه د دے نه دوه درے لاكهه روپئ خرچ شى نو دومره تاوان نۀ راځى۔
٤- عبد الله بن عباس رضى الله عنهما فرمائى : هغه آسان خرچ چه د مال بيخكندى نۀ كوى او د هغے په خرچ كولو سره په مال كښې څۀ پته نۀ لګى۔ (طبرى)۔
(۵) د حسن بصرىؒ او عمرو بن ديناؒر نه نقل دى چه [مَا كَانَ مِنْ غَيْرِ اِسْرَافٍ وَّلَا تَقْتِيْرٍ] (درميانه

انفاق چه نهٔ په کښې اسراف وی او نهٔ پکښې ډیر کموالے وی)۔
پدے تولو کښې اولنے قول غوره دے۔ او اکثر احادیث ئے تائید کوی، لکه حدیث کښې دی:
[خَيْرُ الصَّدَقَةِ مَا كَانَ عَنْ ظَهْرِ غِنًى وَابْدَأْ بِمَنْ تَعُولُ] (متفق علیه)
(بهترینه صدقه هغه ده چه دے حاجته کیدلو نه روستو وی او په انفاق کښې په اهل وعیال باندے شروع کوه) یعنی چه د خرچے کولو نه روستو انسان بل ته محتاج نشی)۔
بل حدیث دے: ابو هریره رضی الله عنه فرمائی: یو سړی اُووئیل: یارسول الله! ما سره یو دینار دے نبی ﷺ ورته اُوفرمایل: په خپل ځان ئے خرج کړه۔ هغهٔ اُووئیل: ما سره بل دینار دے، وے فرمایل: په خپل اهل ئے خرچ کړه۔ هغهٔ اُووئیل: ما سره بل دینار دے۔ ورته ئے اُوفرمایل: په خپلو بچو ئے خرچ کړه۔ هغه اُووئیل: ما سره بل دینار دے۔ وے فرمایل: په خپل خادم ئے خرچ کړه، هغه اُووئیل: ما سره بل دینار دے۔ وے فرمایل: ته (ددے په خرچ کولو) ډیر پوهه ئے۔
(ابوداود والنسائي بسند حسن - ارواء الغليل)۔
بیا تهول زیاتی مال خرچ کول د زکوٰة د فرض کیدو نه روستو منسوخ شویدی البته فضیلت پکښې ضرور شته، او دا اخلاقی هدایت دے۔ آو، په بعضِ اوقاتو کښې نفلی صدقه او انفاق هم واجب وی، او دا په هغه وخت کښې چه کله د مسلمانانو حاجت مال ته زیات شی، یا د جهاد موقعه وی، یا لوږه راشی۔
لکه د ابو سعید خدری رضی الله عنه په حدیث کښې دی چه مونږ د رسول الله ﷺ سره په یو سفر کښې وو چه یو سړے په یوه اُوښه باندے په تکلیف سره راروان وو۔ رسول الله ﷺ اُوفرمایل: ((چا سره چه زیاتی سورلیٔ وی نو هغه چا ته دے ئے ورکړی چه د هغه سره سورلی نهٔ وی، او چا سره چه زیاتی توښهٔ وی نو هغه چا ته دے ئے ورکړی چه هغه سره توښهٔ نهٔ وی))۔ ابو سعیدؓ وائی: د مال نور اقسام ئے ذکر کړل تردے چه زمونږ گمان راغلو چه [أَنَّهُ لَا حَقَّ لِأَحَدٍ مِنَّا فِي فَضْلٍ] (زمونږ د یو تن په زیاتی مال کښې هیڅ حق نشته) بلکه ټول به خیرات کوی۔ (رواه مسلم: ٤٦١٤)۔
ددے حدیث نه معلومه شوه چه د ضرورت په بعضِ اَوقاتو کښې نفلی صدقه هم واجبیږی۔ دارنگه په صرف زکوٰة ورکولو سره د انفاق حکم پوره نهٔ ادا کیږی، ځکه چه د زکوٰة مقصد دا نهٔ دے چه ادا کونکے بس د نورو معاشرتی ذمه واریانو نه بری الذمه شو بلکه د زکوٰة نه روستو هم د انفاق حکم په خپل حال باقی پاتے دے، ځکه زکوٰة خو د مسلمانانو د بیت المال حق دے او هغه به حکومت حاصلوی او هغه به ئے په معلومو مصارفو باندے خرج کوی، لیکن ددے نه روستو هم په مسلمانانو باندے د الله تعالیٰ د جانب نه او پخپله د مسلمانانو ورونو د طرف نه

عائد شده ذمه واریانے باقي پاتے کیږي۔

لکه حدیث کښې دي :[اِنَّ فِي الْمَالِ لَحَقًّا سِوَى الزَّكٰوةِ] (ترمذی مرفوعاً وقال: ابوحمزة میمون الاعور يُضَعَّفُ وَالْاَصَحُّ اِنَّهُ مِنْ قَوْلِ الشَّعْبِيِّ) (په مال کښې د زکوٰة نه علاوه هم حق ضرور شته)

او دا اتفاقي مسئله ده۔ لهذا پدے صورت کښې دا حکم په زکوٰة سره منسوخ نهٔ دے۔لکه څنګه چه د شان نزول نه هم معلومیږي چه دا آیت د نفلي صدقے د تپوس په جواب کښې نازل شوے وو۔

او دا آیت او احادیث مونږ ته دا ترغیب راکوي چه اے ایمان والو! د الله په دین باندے خپل مال خرج کړئ او دا څومره بے وفائي او بے محبتي ده چه انسان مال جمع کوي او په هغے باندے د مار په شان دپاسه ناست وي، په کور کښې په فومونو (اسپنجونو) او نرمو بسترو او ائرکنډیشنونو ته خوبونه کوي، ښځے اُویو، او هر قسم فروټ او مصنوعاتو نه فائدے اخلي او فراخه ئے خوري او د الله په دین او په عاجزو مسلمانانو باندے د هغے نه انفاق نهٔ کوي۔ چه هغوی ته بستره او بالخت هم نهٔ ملاویږي، او بیا دا بنده د الله تعالیٰ نه د لویو نعمتونو او جنتونو طمع لري !۔ اسلام خو د همدردئ دین دے۔ لا حول لا قوة الا بالله۔

بلکه پکار دا ده چه انسان سره دوه جوړه څپلئ دي، یوه دے خیرات کړي، زیاتے جامے ورسره دي هغے نه دے صدقه اُوکړي۔ پیسے ورسره زیاتے دي، بل ملګري سره نشته هغه باندے دے خرج کړي، د ګاونډي او خپلوانو خبر ګیري اُوکړي، دا ټولے ذمه واریانے دي، انسان یواځے په مونځونو باندے نجات نشي موندلے۔

﴿كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمُ اٰيٰتِهٖ لَعَلَّكُمْ تَتَفَكَّرُوْنَ﴾ پدے کښې ترغیب دے چه د الله په احکامو عمل اُوکړئ، عظیم رب ستاسو د هدایت دپاره داسے حکمونه رالیږي چه په هغے کښې ستاسو د دنیا او د آخرت کامیابي ده۔

علامه آلوسیؒ فرمائي : دلته د تفکر نه د الله په آیتونو کښې د احکامو د راویستلو دپاره او د مصالحو او د منافعو د پوهے دپاره فکر کول مراد دي۔ لهذا د تتفکرون متعلق پټ دے۔

[اَيْ لَعَلَّكُمْ تَتَفَكَّرُوْنَ فِي الْاٰيَاتِ فَتَسْتَنْبِطُوا الْاَحْكَامَ مِنْهَا وَتَفْهَمُوا الْمَصَالِحَ وَالْمَنَافِعَ الْمَنُوْطَةَ بِهَا] یعنی چه تاسو فکر اُوکړئ په آیتونو کښې او ددے نه احکام راوباسئ او هغه مصلحتونه او فائدے معلومے کړئ چه ددے احکامو سره متعلق دي۔

○ ظاهره دا ده چه دا د روستو آیت سره لګیږي۔

فِي الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ وَيَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ الْيَتٰمٰى قُلْ اِصْلَاحٌ لَّهُمْ

په باره د دنیا او آخرت کښې او دوی تپوس کوي ستا نه په باره د یتیمانانو کښې ته اُووایه ! اصلاح د هغوی دپاره

خَيْرٌ وَإِنْ تُخَالِطُوهُمْ فَإِخْوَانُكُمْ وَاللَّهُ يَعْلَمُ الْمُفْسِدَ مِنَ الْمُصْلِحِ

غوره ده او که چرې تاسو ګډون کوئ د دوی سره نو ستاسو ورونه دي او الله پېژني فساد کونکے جدا د اصلاح کونکي نه

وَلَوْ شَاءَ اللَّهُ لَأَعْنَتَكُمْ إِنَّ اللَّهَ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ﴿۲۲۰﴾

او که چرته الله غوښتے نو خامخا به ئے تاسو په مشقت کښې اچولي وے. يقيناً الله غالبه، حکمتونو والا دے.

**تفسير** : (فی الدنيا) ددے دوه مطلبونه دي: (۱) يعني فِيْ شَانِ الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ. (د دنيا او د آخرت دواړو دپاره فکر پکار دے). ولے که ټول مال ورکړے نو ځان له به څۀ کوی، بيا به سوالونه کوی، او دا د دنيا نقصان دے، او که ټول مال اوساتي نو آخرت له به څۀ شے ليږی لهذا دواړو دپاره فکر پکار دے. پدے معنیٰ سره دا د (العفو) دپاره فائده ده. (يعني د زياتی مال لګولو حکم مے څکه اوکړو چه دنيا او آخرت مو دواړه بنۀ شی).

۲ - [تَتَفَكَّرُوْنَ فِيْ زَوَالِ الدُّنْيَا وَاِقْبَالِ الْآخِرَةِ] يعني چه د دنيا په ختميدو او د آخرت په راتللو کښې فکر اوکړئ نو هرکله چه دنيا زائله کيدو والا ده نو مال لګول پکار دی، او آخرت راتلو والا دے نو هلته هم ځان له څۀ جمع کول پکار دی. پدے معنیٰ سره دا د انفاق فائده ده. يعني انفاق څکه اوکړئ چه دنيا ختميدو والا ده او آخرت راروان دے.

يا د مخکښې تَتَفَكَّرُوْنَ متعلق پټ وو، او د فی الدنيا نه مخکښې بل فعل پټ دے اَیْ تفکّروا فِی الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ. نو بناء پدے د مخکښې تفکر نه په آيتونو کښې د هغے نه د حکمتونو راويستلو دپاره تفکر مراد دے. او دلته د دنيا او د آخرت په باره کښې تفکر دے. ليکن مخکني مطلبونه ښکاره دی.

﴿وَيَسْـَٔلُوْنَكَ﴾ دا د تدبير منزل بل حکم دے چه ستاسو معاشره به هله صحيح کيږی چه د يتيمانو او کندو رنډو د مال ډير سخت حفاظت اوشي، د يتيمانو اوکندو اصلاح ضروری ده، څکه چه دا اُمت مجاهد اُمت دے، يتيمانان پکښې ډير دی. څکه هغه ډير بدترين کور دے چه يتيم پکښې وی او د هغه سره بدی کيدے شي او بهترين کور هغه دے چه په هغے کښې يتيم وی او د هغه سره احسان کيدے شي. او هرکله چه د يتيمانانو حفاظت کيدے شي، نو معاشره به برابره وی، خلق به جهادونو له په خوشحالئ اوبے فکرئ سره ځي. دارنګه د دين هر کار ته به په جلتئ وړاندے کيږی، وائی به که زۀ مړ شم، د الله نه روستو مسلمانان شته چه زما د بال بچ تربيت به کوی.

صحابه کرامو داسے تپوس په هغه وخت کښې کړے وو چه کله ﴿وَلَا تَقْرَبُوْا مَالَ الْيَتِيْمِ اِلَّا بِالَّتِيْ هِيَ اَحْسَنُ﴾ (الانعام ۱۵۲) او ﴿اِنَّ الَّذِيْنَ يَأْكُلُوْنَ اَمْوَالَ الْيَتٰمٰى ظُلْمًا اِنَّمَا يَأْكُلُوْنَ فِيْ بُطُوْنِهِمْ نَارًا﴾ (النساء:

۱۰) نازل شو چه د یتیمانانو مال مهٔ خورئ، نو صحابه کرامؓ اُویریدل، یتیمانان ئې د ځان نه جدا کړل، جدا خوراك پخولِ ئې ورله شروع کړل (ځکه کیدے شي چه د یتیم د مال نه دومره طعام د خپل طعام سره شریك کړي چه د هغه د خوړلو نه زیات وي او هغه به کور والا نه پاتے شي او هغوي به ئې اُوخوري نو په ګناه کښې به واقع شي).

لیکن دا ورته ګرانه شوه چه عام کورله جدا او یتیم له جدا خوراك پوخ کړي. دویم دا چه کله به یتیم موړ وو، او ډوډئ به پخه شوه نو هغه به نهٔ خوړله نو ضائع به شوه او کله به پاتے شوه صبا له به ئې پرے اُوچه خوړله، او کور والو به تازهٔ خوړله او دا ئې هم نشوه برداشت کولے. نو تپوس کولو ته محتاج شو چه که مونږ د یتیمانانو سره شریك شونو څنګه به وي ؟ الله تعالیٰ دا آیت نازل کړو چه حاصل ئې دا دے چه مقصود د یتیمانانو د مال حفاظت دے او که دا په خوراك وغیره کښې شریك کړے شي پدے طریقه چه د هغوي سره د نیکۍ کولو نیت وي، او د هغه مال خوړل غرض نهٔ وي، نو پدے کښې هیڅ حرج نشته، برابره ده که د هغوي د خوراك نه څهٔ حصه تاسو یا ستاسو بچي اُوخوري ځکه چه دا دیني وررونه دي، او دیني اُخوّت د خانداني اُخوّت نه زیات قوي او په اخلاص باندے بناء وي او الله تعالیٰ ښهٔ پیژني چه د چا نیت د یتیم خیر خواهي ده، او د چا د هغه د مال په حیله جوړولو سره خوړل دي او که الله غوختے نو تاسو به ئې په مشقت او پریشانئ کښې اچولي وے او د هغوي د خوراك جدا پخولو او ساتلو حکم به ئې درته کړے وے. او دغسے روایت د ابن عباسؓ نه نقل دے. (ابوداود، نسائي، حاکم).

﴿ عَنِ الْيَتٰمٰى ﴾ [يعني عَنِ الْاِخْتِلَاطِ مَعَ الْيَتٰمٰى] یعني د یتیمانانو سره د ګډون په باره کښې تپوس کوي چه آیا دوي سره مونږ شریك کیدے شو او که نهٔ ؟.

﴿ قُلْ اِصْلَاحٌ لَّهُمْ خَيْرٌ ﴾ اصلاح او خیر ورله لټوئ، که په جدا پخولو کښې ورله خیر وو، نو هغهٔ کوئ او که په شرکت کښې خیر وو نو هغهٔ کوئ. او دا اصلاح یو عام لفظ دے چه د یتیم دپاره هر قسم خیر لټولو ته شامل دے، د هغه تربیت، تعلیم او د هغه د مال حفاظت او د هلاکت نه بچ کول، د هغه په مال تجارت کول دے دپاره چه زیات شي.

﴿ وَاِنْ تُخَالِطُوْهُمْ فَاِخْوَانُكُمْ ﴾ او که تاسو د هغوي سره په خرچه او خوراك او نکاح کولو کښې ګډون کوئ نو ستاسو وررونه دي.

بعض مفسرین لیکي: دا شامل دے دے ته هم چه د یتیم سره طعام خوړلو یا په آس باندے سوریدو، یا د هغه د اُوښے نه په پئ څکلو کښې شرکت اُوکړي. او هغه ئې ددهٔ سره اُوکړي. ځکه چه خلقو به د یتیم د هرڅهٔ نه ځان ساتلو. (طبري)

○ ابو مسلم الاصفهانی وائی: غوره دا ده چه ددے نه مراد مصاهرت (سخرگنی) ده یعنی چه یتیم سره دا احسان اُوکړی چه لور خور ورله په نکاح ورکړی۔ (روح المعانی)۔

بعض اهل علم وائی چه پدے کښې د یتیم سره گډون کولو ته ترغیب دے، او د جاهلیت د عادت په باطلوالی باندے تعریض دے چه دوی به یتیمانان سپك گڼړل او د هغوی سره گډون او ازدواجی رشته به ئے بده گڼړله، د هغوی د نکاح نه به ئے اعراض کولو لکه آیت کښې دی ﴿ وَتَرْغَبُوْنَ اَنْ تَنْكِحُوْهُنَّ ﴾ (النساء :۱۲۷) ۔ نو الله اُوفرمایل چه دا ستاسو وروڼه دی، ځان پرے اُوچت مهٔ گڼړئ او د دوی سره تعلقات کوئ۔ (ابن عاشورؒ)۔

﴿ فَاِخْوَانُكُمْ ﴾ دلته وقف دے یعنی [وَمِنْ شَانِ الْاَخِ اَنْ يُّخَالِطَ اَخَاهُ] (او د ورور شان دا وی چه هغه د خپل ورور سره شریك وی) د یو بل په مال باندے پام کوی، او یو بل باندے رحم کوی۔ او که یو انسان د یتیم د مال خوړلو دپاره د هغه سره گډون کوی نو الله فرمائی :

﴿ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ الْمُفْسِدَ مِنَ الْمُصْلِحِ ﴾ (الله ته مفسد د مصلح نه جدا معلوم دے)۔

پدے کښې د یتیمانانو وارثانو ته یره ورکول دی چه په الله تعالیٰ باندے ستاسو حال پټ نهٔ دے، هر انسان ته به د هغه د عمل بدله ورکوی، نو پدے کښې وعد او وعید دواړه دی۔ (فتح البیان)۔

د سهل بن سعد ﷛ نه روایت دے چه نبی کریم ﷺ اُوفرمایل :

«زهٔ او د یتیم کفالت کونکے به په جنت کښې داسے یو» او د خپلے شهادت گوتے او مینځومۍ گوتے سره ئے اشاره اُوکړه، او د دواړو په مینځ کښې ئے جدا والے اُوکړو۔ (بخاری ومسلم)۔

(مفسد) دلته (آكِلُ مَالِ الْيَتِيْمِ) (د یتیم مال خوړونکی) ته وائی یعنی چه څوك د یتیمانانو مال خوری، الله تعالیٰ ته هغه هم معلوم دے او څوك چه اصلاح کوی هغه هم الله ته معلوم دے۔

(مِنَ الْمُفْسِدِ) یعنی مُمْتَازًا عَنِ الْمُفْسِدِ) (جدا ئے پیژنی د فسادی نه)۔

اُوس الله تعالیٰ ددے رخصت په نازلولو خپل انعام بیانوی :

﴿ وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ لَاَعْنَتَكُمْ ﴾ (عَنَت) سخت تکلیف، زحمت او تنگسیا ته وئیلے شی۔ او د إعنات معنیٰ په مشقت کښې دا چولو ده۔ او عَنَتٌ په اصل کښې د مات هډوکی د روغیدو نه پس بیا ماتیدل دی، او دا ډیر تکلیف ورکوی۔ مشقت دا دے چه تاسو ته به ئے حکم کړے وے چه د یتیمانو سره به شرکت نهٔ کوئ، او بیله ډوډئ به ورله پخوئ۔ او د (عَنَتٌ) معنیٰ هلاکت هم ده، [اَهْلَكَكُمْ بِمَا اَكَلْتُمْ مِنْ اَمْوَالِ الْيَتَامٰى] (یعنی تاسو به ئے د یتیمانانو په مخکنی مالونو خوړلو سره هلاك کړی وے)، لیکن رحم ئے درباندے اُوکړو۔ څکه عامو خلقو به د یتیمانانو مالونه خوړل او اُوس ئے هم خلق خوری۔

ددې نه د اسلامي شريعت مزاج معلوميږي چه دې شريعت د مشقت لارې نه دي پرانستلي بلکه د مشقتونو نه د بچ کيدو لارې ئې بيان کړي. (تدبر قرآن).

د ابوعبيدؒ نه نقل دي چه دا آيت دليل دې چه په سفر کښې کوم ملګرې شريکه خرچه اچوي او بيا بعض خوراك کم کوي او بعض زيات نو پدې کښې هيڅ حرج نشته. (القرطبي)

وَلَا تَنْكِحُوا الْمُشْرِكٰتِ حَتّٰى يُؤْمِنَّ وَلَاَمَةٌ مُّؤْمِنَةٌ خَيْرٌ

او نکاح مه کوئ د مشرکو (غير کتابيه) ښځو سره تردې چه ايمان راوړي او خامخا وينځه مومنه غوره ده

مِّنْ مُّشْرِكَةٍ وَّلَوْ اَعْجَبَتْكُمْ وَلَا تُنْكِحُوا

د مشرکې (آزادې) ښځې نه اګرکه تاسو په تعجب کښې اچوي او په نکاح سره مه ورکوئ (لونړه، خوېندې)

الْمُشْرِكِيْنَ حَتّٰى يُؤْمِنُوْا وَلَعَبْدٌ مُّؤْمِنٌ خَيْرٌ مِّنْ مُّشْرِكٍ

مشرکانو سرو ته تردې چه ايمان راوړي او خامخا يو غلام مؤمن غوره دې د مشرك (آزاد) نه

وَّلَوْ اَعْجَبَكُمْ اُولٰٓئِكَ يَدْعُوْنَ اِلَى النَّارِ وَاللّٰهُ يَدْعُوْٓا اِلَى الْجَنَّةِ وَالْمَغْفِرَةِ

اګرکه تعجب کښې اچوي تاسو. دغه کسان دعوت ورکوي اُور ته او الله دعوت ورکوي جنت او بخښې ته

بِاِذْنِهٖ وَيُبَيِّنُ اٰيٰتِهٖ لِلنَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُوْنَ ﴿۲۲۱﴾

په حکم خپل سره او بيانوي آيتونه خپل خلقو ته دې دپاره چه دوي خبره رايادة کړي.

**تفسير**: دا د تدبير منزل نه بل (٦) قانون دې : [اَنْ لَّا يَتَعَلَّقَ الْمُسْلِمُ بِمُشْرِكٍ سَوَاءٌ كَانَ بِالنِّكَاحِ اَوِ الصَّدَاقَةِ اَوِ التَّلَمُّذِ] . (يعنې د مسلمان به د مشرك سره هيڅ قسم تعلقات نهٔ وي، نهٔ د نکاح او نهٔ د دوستانې او نهٔ د شاګردۍ) او هرکله چه نکاح د مشرك سره جائز نشوه نو استنباطاً ترې دا معلومه شوه چه دوستانه او شاګردي خو به بالکل جائز نهٔ وي. ځکه چه په نکاح کولو سره د ښځې، د خواخې، د سخر او د هغوي کورنۍ سره مينه پيدا کيږي او مشرك د مينې لائق نهٔ دې. او دارنګه استاذي او شاګردي هم سبب د مينې وي.

دارنګه مشرك نه چه سبق اُووئيلې شي نو الله تعالىٰ د انسان نه بصيرت او خير او برکت اخلي او بې وقوف ئې جوړوي، نو پدې آيت کښې د مشرکو زنانو سره د نکاح کولو نه نهي ده. او خپله خور لور مشرك ته په نکاح ورکولو نه منع ده. وجه ئې دا بيان کړيده چه مشرکان اُورطرف ته

دعوت ورکوی۔

لیکن دا خبره زدهٔ کړه چه بعض خلق بدعتیانو ته هم مشرکان وائی، دا صحیح نهٔ ده، بلکه کله چه انسان، الله او رسول او قیامت منی او یواځې د الله تعالیٰ عبادت کوی، ضدیان او عنادگر نهٔ وی، ساده ګان او ناپوهه وی۔بدعات او رواجونه کوی نو دوی ته به مشرکان نشی وئیلے۔ بلکه مشرکان هغه خلق دی چه د قبرونو او باباګانو عبادت کوی، په هغوی باندې شالونه او کپړے اچوی، د هغوی په نوم منختے کوی، یارسول الله او یا علی مدد نعرے وهی نو دوی سره نکاح نهٔ کیږی۔

﴿ وَلَا تَنۡكِحُوا الۡمُشۡرِكَاتِ ﴾

**فائده** : مشرکے ښځے په دوه قسمه دی (۱) یو عامے مشرکاتِ دی نو د دوی سره خو نکاح کول حرام دی۔ (۲) او بل کتابیاتِ (اهل کتابے) دی۔ کتابیاتِ اګرکه مشرکے وی (لکه عبد الله بن عمرؓ فرمائی : ددے نه لوئی شرک بل کوم دے چه وائی عیسٰی ابن الله او عزیر ابن الله (د الله ځوی) دے) (بخاری، فتح البیان ۱/ ٤٤٥)۔

لیکن شریعت د هغوی سره د نکاح کولو اجازه (په سورة المائده (٥) آیت کښې) ورکړے ده۔ لهٰذا دا آیت عام دے او د سورة المائدے آیت ددے تخصیص کړے۔ او دا د ابن عباسؓ، عمر بن الخطابؓ، عثمان بن عفانؓ، طلحہؓ، جابرؓ، حذیفه رضی الله عنهم او د حسنؒ، شعبیؒ، عکرمةؒ، مالكؒ، سفیان بن سعیدؒ، عبد الرحمن بن عمروؒ او اوزاعیؒ وینا ده۔

حکمت پکښې دا دے چه نکاح سبب د دعوت دے، ځکه ښځه غالباً د خاوند نه متأثره وی نو خاوند به هغے ته او د هغے والدینو ته د اسلام د حقانیت دعوت ورکوی، کیدے شی چه الله تعالیٰ هغوی ته د ایمان توفیق ورکړی۔ او د عمر ﷺ نه چه د کتابی زنانو سره د نکاح کولو نه منع نقل ده، نو هغه منع د عادت جوړولو نه وه او په مؤمنه باندے کتابیه زنانه غوره کولو نه منع وه چه مؤمنه ورته سپکه ښکاری او نصرانیے سره نکاح ئے خوښه وی، لکه دے زمانه کښې خلق یورپی ملکونو ته ځی او هلته نکاحونه د نصرانی ښځو سره کوی او هلته په آسانئ هم ملاویږی، نو دے کښې نقصان دے۔

وجه دا ده چه ستا بچی به ستا په واك کښې نهٔ وی، هغه درنه عیسایان کوی۔بل نقصان دا چه سړے د ښځے نه متأثره وی، مینه ئے ورسره وی او خپله په دین هم پوهه نهٔ وی، نو دا ورپسے عیسائی شی او دیر داسے شویدی۔ نو دداسے نکاحونو نه بغیر د سخت ضرورت نه ځان ساتل پکار دی۔

دویم جواب دا دے چه په هغه روایت کښې خپله وجه دا راغلے ده۔ حذیفةؓ ورته اُوفرمایل چه آیا دا حرامه ده ؟ نو هغه اُوفرمایل : نهٔ، [وَلٰكِنِّیۡ اَخَافُ اَنۡ تَعَاطَوُا الۡمُؤۡمِنَاتِ مِنۡهُنَّ]۔ لیکن زهٔ یریږم که

تاسو د کتابي زنانو سره نکاح کوئ نو کيدے شي چه زناکارے ستاسو په نکاح کښې راشي۔
(ابن عاشور ٢/٣٤٢)۔

دا مخکښے قول هله دے چه مشرك لفظ عام شي، کتابي او غير کتابي دواړو ته، ليکن بعض اهل علمو وئيلي دي چه په اصطلاح د قرآن کښې غالباً د مشرك لفظ د اهل کتابو نه علاوه خلقو دپاره استعماليږي۔ او قرآن د دواړو په مينځ کښې جدائي کړيده، او يو ئے د بل نه روستو ذکر کړيدے لکه ﴿مَا يَوَدُّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ اَهْلِ الْكِتَابِ وَلَا الْمُشْرِكِيْنَ﴾ [البقره: ١٠٥] ﴿اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ اَهْلِ الْكِتَابِ وَالْمُشْرِكِيْنَ﴾ [البينة: ٦]۔

ددے وجه دا ده چه د مشرك د مذهب بنياد په شرك دے او د کتابي د دين بنياد په توحيد وو، ليکن د زمانے په تيريدو سره هغوي د الله سره نور خلق شريکان کړل۔ معلومه شوه چه د مشرکے سره د نکاح په حرمت کښې د اهل کتابو ښځے شامل نهٔ دي۔ (فتح البيان، تيسير الرحمن، تدبر قرآن)۔

**فائده** : عامے مشرکو ښځو سره نکاح صحيح نهٔ ده، لکه کافران چينيان، روسيان، دهريه کافر، او دا رنګه نام نهاد مسلمانان مشرکان لکه څوك چه غير الله ته آوازونه کوي او د هغوي په نوم نذر او منختے کوي، باباګانو ته سجدے کوي نو دا هم مشرکان دي، او دا په اهل کتابو کښې داخل نهٔ دي۔ کومو علماؤ چه وئيلي دي چه دا اهل کتاب دي او د اهل کتابو تعريف ئے دا کړيدے [كُلُّ مَنْ نَزَلَ عَلَيْهِ كِتَابٌ سَمَاوِيٌّ] (هر هغه څوك چه په هغوي آسماني کتاب نازل وي، دا اهل کتاب دے) نو دا خبره غلطه ده۔ ځکه چه پدے امت کښې اهل کتاب نشته، يا به مسلمان وي يا به مرتد وي۔ او دغه تعريف د يهود او نصاراؤ په باره کښې دے۔ نو داسے مشرکانو مسلمانانو سره به عام مسلمانان نکاح نهٔ کوي۔ او همدا حق قول دے۔

او دا خبره مخکښې ذکر شويده چه اهل کتابو ته کوم خطاب وي، هغه مونږ ته هم وي، نو هغه په باره د اخلاقياتو، اعمالو او عقائدو کښې دے۔ ليکن د هغے نه دا نهٔ لازميږي چه کوم لازمي احکام د هغوي دي هغه به پدے نام نهاد مسلمانانو تطبيق کيږي ځکه چه د اهل کتابو ذبيحه خوړل جائز او د مشرکانو ذبيحه خوړل حرام دي۔ د اهل کتابو ښځے په نکاح اخستل جائز او د مشرکانو ناروا۔ او داسے نور ډير احکام دي چه هغه ددے امت په مشرکانو نهٔ برابريږي۔

او هر چه صابئين او مجوس دي نو په هغوي کښې د اهل علمو اختلاف دے چه دا اهل کتابو کښې داخل دي او که نهٔ۔ اکثر اهل علم ئے په کتابيانو کښې داخل ګڼړي۔

**فائده ٢** : دا د مشرکانو سره حکم دے، يهود وي که نصارئ، مجوس وي که صابئين، مسلمانان مشرکان وي که هندوان۔ نو مسلمانه ښځه به هغوي له نشي ورکولے۔ او عام

مشرکانو لـه خور لـور ورکول او د هغوی نه کول دواړه ناروا وی، او د اهل کتابو نه کول جائز او ورکول حرام دی. ځکه چه ستا خور لور به مشرکه کړی نو پدے کښې ډیر نقصان دے، او دا د الله تعالیٰ دشمنان دی نو الله تعالیٰ خپل دوستان د هغوی سره د تعلق او د نکاح نه منع کوی، دیته وائی د توحید اتمام او د توحید حفاظت. چه ستا توحید به هله محفوظ کیږی چه ته د الله تعالیٰ د دشمنانو نه نفرت اُوکړے او هیڅ قسم نکاحی تعلق ورسره اُونهٔ ساتے.

او زمونږ ډیر موحدین ددے پرواه نهٔ لری، مشرکانو سره نکاحونه کوی، د هغوی شاګردی، د هغوی سره محبت او د هغوی سره راشه درشه کوی، او هغوی له ووټ ورکوی او هیڅ نفرت ترے نهٔ کوی، نو پدے وجه په توحید کښې ئے هیڅ مزه نهٔ وی. او دیته د ولاء او براء مسئله وائی. د الله دپاره دوستی او د الله دپاره دشمنی، ساتلو سره د توحید پوره والے راځی.

بیا ددے حکمت دا دے چه مشرکان د مسلمانانو نه ډیر وړاندے دی ځکه چه دوی کښې توحید نشته، ایمان پکښې نشته، په هیڅ شی کښې د ایمان والو سره متفق نهٔ دی. نو ځکه شریعت د دواړو طرفونو نه د نکاح حرمت بیان کړو او د اهل کتابو او د مسلمانانو ترمینځ په عامو ایمانیاتو کښې اتفاق دے، صرف یهود په عیسیٰ ﷺ او محمد ﷺ ایمان نهٔ لری او نصاریٰ په موسیٰ ﷺ او محمد ﷺ ایمان نهٔ لری. نو هرکله چه د دوی او د مسلمانانو ترمینځ ډیر وړاندے والے نهٔ وو، نو د یو طرف نه نکاح جائز شوه چه د هغوی نه کول جائز او هغوی لره ورکول ناروا.

﴿حَتَّىٰ يُؤْمِنَّ﴾ یعنی چه ایمان راوړی بیا ورسره نکاح کولے شئ. لکه د آیت شان نزول هم داسے وو. واحدیؒ وغیره مفسرینو وئیلی دی چه رسول الله ﷺ ابو مرثد الغنویؓ مکے ته په پټه ددے دپاره اُولیږلو چه هلته نه د مسلمانانو یو سړے راوباسی، په مکه کښې یوه ښځه چه د ابو مرثدؓ په جاهلیت کښې یاره وه، نوم ئے عَنَاق وو، خبره شوه، ورته راغله، ورے وئیل: اے ابو مرثد خوار شے یواځے کیږے نهٔ؟ هغه اُووئیل: اسلام د جاهلیت کارونه حرام کړیدی. نو هغے اُووئیل: ما سره نکاح اُوکړه. دهٔ اُووئیل: تردے چه رسول الله ﷺ نه اجازت اُوغواړم. نو نبی ﷺ د هغے د نکاح نه منع کړو. ځکه چه هغه مشرکه وه. نو دا آیت ددے په سبب نازل شو. (ابن عاشور ۳٤١/٢)

﴿وَلَأَمَةٌ مُّؤْمِنَةٌ خَيْرٌ مِّن مُّشْرِكَةٍ وَلَوْ أَعْجَبَتْكُمْ﴾ یعنی که د آزادے مؤمنے طاقت مونهٔ وی، نو مومنه وینځه درلـه د آزادے مشرکے نه ډیره غوره ده، اګرکه حیرانوی تاسو لره مال او جمال او حسن د هغے، چه ډیره ښائسته ده او ډیره مالداره ده، او ډیره هوښیاره ده، خو مشرکه ده نو دے سره نکاح مهٔ کوه، دا جاهلـه ده، او یو ساده وینځے سره نکاح اُوکړه اګرکه د هغے بچی به هم غلامان کیږی، لیکن په هغے کښې خیر دے خو شرک نه خان ساته.

نو دې کښې دا اسلامي اصول بيان شو چه په اسلام کښې د خوبئ او ناخوبئ معيار نۀ ظاهري شکل او صورت دې او نۀ نسل او نسب، او نۀ آزادي او غلامي، بلکه ايمان او عمل صالح دې۔ پدې وجه رشتې او تعلقات به په ذاتونو او نسبونو سره نۀ وي بلکه د عقيدې او عمل صالح تابع به وي۔ د قريشو يوه حسينه زنانه ستاسو دپاره ډيره بد رنګه ده که هغه د ايمان په زيور سره ښائسته نۀ وي۔ او د افريقې د اطرافو يوه توره خړسه وينځه ستاسو دپاره د جنت حوره ده که د هغې زړۀ د ايمان او د اسلام په ښائست سره نوراني وي۔ دغه شان د سړو په باره کښې واخله۔

(خير) **فائده** : خير صيغه د اسم تفضيل ده، ددې نه معلوميږي چه مشرکه کښې هم څۀ نا څۀ خير شته خو مؤمنه وينځه کښې ډير خير دې؟۔

**جواب** دا دې چه دواړو کښې په اعتبار د منافعو سره خير شته۔ په مشرکه کښې دنيوي منافع وي، ښائسته به وي، مالداره به وي۔ او په مؤمنه وينځه کښې ديني او اُخروي فائدې دي، او ديني منافع د دنيا د زائل کيدونکو فائدو نه د شريعت په نظر کښې ډير أعلىٰ او غوره دي۔نو پدې کښې مقصود د حراموالي حکمت بيانول دي دې دپاره چه مؤمنان ورسره آشنا شي۔

﴿ وَلَا تُنكِحُوا الْمُشْرِكِينَ ﴾ خپله خور لور به مشرك ته بالكل نۀ وركوى، كه هر څوك وي، اهل كتاب وي او كه غير اهل كتاب۔ دلته ذكر د مشركين دې، ليكن اهل كتاب ورسره هم مراد دي چه هغوى ته به هم خور لور نشي وركولے۔ دارنګه هغه حکم په تواتر سره صحابه کرامو د نبي ﷺ نه اخستې دې او اجماع د امت هم پرې دليل دې۔

﴿ حَتَّىٰ يُؤْمِنُوا ﴾ دا د نهي علت دې۔ ددې نه دا فائده معلوميږي چه کافرې ښځې کله اسلام راوړو، نو د دواړو نکاح به فسخ کولے شي، بيا چه کله کافر هم اسلام راوړو، نو دا ددې ښځې ډير لائق دې تر څو پورې چه ښځه په عدت کښې وي۔بلکه د عدت نه روستو هم په زړۀ نکاح باقي پاتې کيدې شي، لکه د زينبؓ بنت رسول الله په قصه کښې راغلې ده۔

﴿ وَلَعَبْدٌ مُّؤْمِنٌ خَيْرٌ مِّن مُّشْرِكٍ وَلَوْ أَعْجَبَكُمْ ﴾ يعني که مشرك ډير ښائسته دې، يا ډير مالداره دې، او ډيرې غټې عهدې والا دې ليکن بيا ئې هم مۀ ورکوئ۔ ولې ؟ ځکه چه :

﴿ أُولَٰئِكَ يَدْعُونَ إِلَى النَّارِ ﴾

پدې کښې حکمت دا بيانوي چه د رشتو او نکاحونو اثرات په ژوند باندې سطحي او سرسري نۀ وي بلکه ډير ژور وي۔ که انسان پدې خيزونو کښې عقائد او اعمالو ته هيڅ اهميت ورنکړي، صرف حُسن يا مال يا خاندان يا مصلحت مخې ته اُونيسي نو کيدې شي چه هغه په خپله خرچه باندې په خپل کور کښې يوه داسې بلا اُوپالي چه صرف ددۀ نۀ، بلکه ددۀ د راتلونکي

نسلونو ایمان او اسلام هم تباه کړي.

د ودونو تعلقاتو په مذهب، په روایاتو او په تهذیب او تمدن کښې داسې لوئې تبدیلیانې کړیدی چه د هغې د عملي مثالونو نه تاریخ ډك دے. د بني اسرائیلو د تاریخ د مطالعه کولو نه معلومیږي چه په هغوی کښې بے شماره عقائدي ګمراهیانې د هغه ښځو په ذریعه راخورے شوے چه د نورو بت پرست قومو نه ئې وادۀ کړے وے.

دغه شان د مغل بادشاهانو د هندوانو د راجاګانو سره د سیاسي مصالحو په وجه چه کوم ودونه کړي نو د هغوی د جینکو سره سره د هغوی عقائد، اوهام، رسمونه او د عباداتو طریقې ئې هم خپلو کورونو ته راننویستلې. نن صبا هم چه کوم خلق د قومونو او مذهبونو د امتیازي نخو او نظریاتو د ختمولو کوشش کوي، هغوی د تهولونه لویه نسخه خپل مینځ کښې ودونه او نکاحونه ګنړي، پدے وجه مسلمان له پدے معامله کښې دے پرواهئ او آسانی نه کار نۀ دی، اخستل پکار، بلکه لوئې حقیقت او انجام ته همیشه کتل پکار دي، په کوم رب چه دوی ایمان لري، هغه مغفرت او جنت ته دعوت ورکوي او کوم خلق چه د ایمان نه محروم وي، هغوی دوزخ ته لاره هواره وي. برابره ده سړے وي که ښځه. ځکه ئې په آخره کښې اُوفرمایل چه ددے خبرو نه نصیحت اخستل او دا همیشه رایادول پکار دي. مشرك له خور لور ورکول د خپلے خور لور حق بربادول دي چه د الله په دربار کښې به ددۀ نه تپوس کیږي.

﴿ يَدْعُوْنَ اِلَى النَّارِ ﴾ یعنې د کافرانو سره تعلقات کول سبب ددے دے چه مؤمن یا مؤمنه ښځه به ګمراه کړي او په نتیجه کښې به ئې ځان سره همیشه جهنم ته بوځي.

﴿ وَاللّٰهُ يَدْعُوْۤا اِلَى الْجَنَّةِ وَالْمَغْفِرَةِ ﴾ نو چه الله درته کومه مسئله اُوکړه دا سبب د جنت او د مغفرت دے.

﴿ بِاِذْنِهٖ ﴾ : د اذن نه مراد د الله تعالیٰ امر دے. (زجاج) یا مراد ترے تیسیر (آسانوالے) او توفیق دے.

﴿ وَيُبَيِّنُ اٰيٰتِهٖ لِلنَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُوْنَ ﴾

تذکر : خبره رایادولو ته وائي. داسے ئې رایاده کړي چه که دے مشرك سره زۀ نکاح اُوکړم نو دا خو زما د رب دشمن هم دے او دا خو د غیر الله عبادت کوي، دا خومره نجس دے، او زۀ خو ددے مشرکانو نه په عقیده راجدا شوے یم، نو بیا څنګه د دوی سره د نکاح تعلق اُوساتم. نو آیا زما نکاح ددۀ سره پکار ده څه ؟ نو تا ته به دا خبره رایاده شي چه شرك څومره بده او قبیحه ګناه ده. او زما د کلمه طیبے تقاضا هم دا ده چه زۀ به د مشرکانو دشمن یم. د تذکر بله معنیٰ نصیحت قبلول هم دي.

**فوائد** : (۱) د مشرك او بدعتي سره تعلقات ساتل جائز نۀ دي ځکه چه هغه د خپل هر قول

او فعل په ذريعه جهنم ته دعوت ورکوي۔

(۲) د ښځې نکاح به په غير د ولي نه معتبره نهٔ وي۔ الله فرمائي: ﴿ وَلَا تُنكِحُوا الْمُشْرِكِيْنَ ﴾ يعني خپلې ښځې مشرکانو له په نکاح مهٔ ورکوئ۔ معلومه شوه چه د ښځې نکاح به د هغې ولي کوي، هغه به خپله نکاح نهٔ کوي۔ ځکه دلته خطاب اولياؤ ته شويدے۔

(۳) عمر ﷺ د کتابيه سره نکاح مکروه ګنړلې ده دے دپاره چه داسے اُونشي چه مسلمان سړے خپلې ښځې پريدی او د کتابياتو سره نکاح شروع کړي۔

(٤) پدے آيت کښې ترغيب ورکړے شويدے چه د مؤمنو سړو او ښځونکاح د هغوی په شان د مؤمنو سړو او ښځو سره کيدل پکار دي۔ او د کافرانو سړو او ښځو سره د نکاحونو رشته تړل نهٔ دي پکار۔ په صحيح احاديثو کښې هم ددے ډير تاکيد راغلے دے۔

په صحيحينو کښې د ابو هريره ﷺ نه روايت دے چه نبي کريم ﷺ اُوفرمايل چه ((د ښځې سره نکاح په څلورو اسبابو سره کيږي: د مال او دولت، حسب او نسب، ډول او ښائست او دينداري په وجه۔ نو تهٔ د ديندارے ښځې د حاصلولو کوشش اُوکړه))۔

او مسلم د ابن عمر رضي الله عنهما نه روايت کړيدے چه نبي کريم ﷺ اُوفرمايل چه دنيا يو عارضي متاع (د فائدے شے) دے او په دنيا کښې د ټولو نه غوره متاع نيکه ښځه ده۔ (تيسير الرحمن)

○○○○○○○○○○

وَيَسْئَلُوْنَكَ عَنِ الْمَحِيْضِ قُلْ هُوَ أَذًى فَاعْتَزِلُوا النِّسَآءَ فِي الْمَحِيْضِ

او تپوس کوی دوی ستا نه په باره د حیض کښې، اُووایه دا ضرر رسونکے گندگی ده، پس جدا شئ د زنانو نه په حیض کښې

وَلَا تَقْرَبُوْهُنَّ حَتّٰى يَطْهُرْنَ فَإِذَا تَطَهَّرْنَ فَأْتُوْهُنَّ مِنْ حَيْثُ

او مهٔ نزدے کیږئ دوی ته تردے چه دوی پاکے شی او کله چه ځان ښهٔ پاك کړی بیا راځئ دوی ته د هغه ځائے نه

أَمَرَكُمُ اللّٰهُ إِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ التَّوَّابِيْنَ وَيُحِبُّ الْمُتَطَهِّرِيْنَ ﴿۲۲۲﴾

چه حکم کړیدے تاسو ته الله، یقیناً الله مینه کوی د توبه ویستونکو سره او مینه کوی د پاکی کونکو سره۔

**تفسیر**: پدے آیت کښې د تدبیر منزل نه (۷) اُووم حکم دے چه خپلو ښځو ته به په حالت د حیض کښې نهٔ نزدے کیږئ، مؤمن سړے به د ظاهری او باطنی گندگیو نه ځان ساتی۔ هله به ئے کورنئ ښهٔ کیږی۔

**مناسبت**: (۱) مؤمن له پکار دی چه د هر خُبث او پلیتئ نه ځان اُوساتی برابره ده که ظاهراً وی او که باطناً، نو مشرك کښې باطنی خباثت دے، د هغه د نکاح نه ځان ساتل پکار دی۔ اُوس ظاهری نجاست بیانوی چه مؤمنه ښځه باطنی پاکه ده، لیکن په حالت د حیض کښې ظاهری گندگی ده، پدے وجه د وینی په ځائے کښې ترے جدا شه۔ د هر چا نه به د هغه د اندازے مطابق جدائی کولے شی۔ (۲) دویم ددے امت د تربیت احکام شروع دی۔

**شان نزول**: انس بن مالك ﷺ وائی چه یهودیانو به د خپلو حائضو ښځو سره خوراك نهٔ کولو، او نهٔ به په یو کور کښې د هغوی سره اُودهٔ کیدل، صحابه کرامو د نبی کریم ﷺ نه پدے حقله پوښتنه اُوکړه چه دوی د خپلو ښځو سره څنگه معامله اُوکړی؟ نو دا آیت نازل شو، چه تهٔ دوی ته اُووایه چه د حیض وینه گنده او نقصان رسونکے ده، پدے وجه په موده د حیض کښې د دوی سره جماع مهٔ کوئ او ترڅو چه پاکے شوے نهٔ وی نو د هغوی خوا ته مهٔ ورځئ او ترڅو چه پاکی حاصله نکړی نو د هغوی سره جماع مهٔ کوئ۔ او نبی ﷺ اُوفرمایل: ((هر څهٔ ورسره کوئ سوا د جماع نه)) (مسلم، ترمذی)

بعض علماء وائی چه تپوس کونکے ابوالدحداح ﷺ وو سره د نورو ملگرو نه۔

د یهودو او د عربو مشرکانو به دا طریقه وه چه په حیض کښې به ئے ښځه د ځان نه ډیره جدا کوله، هیڅ تعلقات به ئے ورسره نهٔ ساتل۔ د مجاهدؒ نه نقل دی چه یهودیانو به په حالت د حیض کښې د ښځو سره په شا طرف کښې جماع کوله۔ آه۔

نصاراؤ بـه ورسره نزدیکت کولو۔ نو مسلمانان پدے مسئله کښې حیران وو چه څهٔ اُوکړی، نو تپوس ئے اُوکړو، دا آیت نازل شو چه: تاسو نزدیکت ورسره مهٔ کوئ، هسے تعلقات ورسره کولے شئ، کیناستل پاڅیدل خوراك وغیره۔ ددے نه د اسلام انصاف او اعتدال معلومیږی۔

په حدیث د مسلم کښې دی چه حاصل ئے دا دے چه دوه مسلمانان نبی ﷺ ته راغلل چه یهودیان د زنانو نه په حالت د حیض کښې ځان ساتی نو د هغوی د مخالفت دپاره مونږ د ښځو سره پدے حالت کښې جماع نهٔ کوو؟ نو رسول الله پدے سره سخت غصه شو۔ دوی پوهه شو نو اُووتل۔ پدے کښې پئ راغلل، رسول الله ﷺ دا دواړه راوغوختل او پئ ئے پرے اُوسکول چه اشاره وه چه دا پرے غصه نهٔ دے۔ لیکن د دوی خبره د شریعت خلاف وه پدے وجه پرے رسول الله ﷺ غصه راښکاره کړه۔

ددے نه دا فائده معلومیږی چه د یهودو او نصاراؤ او مبتدعینو خلاف به دومره حده پورے کولے شی چه د شریعت د حدودو نه تجاوز اُونکړے شی۔

﴿ وَيَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ الْمَحِيْضِ ﴾ مَحِیض یا مصدر میمی دے په معنیٰ د حیض سره۔ (یعنی ماهواری، بیماری) یا اسم ظرف دے یعنی ځائے او وخت د وینے۔

﴿ قُلْ هُوَ اَذًى ﴾ اذی: گندگی ته هم وائی او ضرر ته هم۔ او کله ئے په مکروه او بده خبره هم اطلاق کیږی لکه (لَا تُبْطِلُوْا صَدَقٰتِكُمْ بِالْمَنِّ وَالْاَذٰى) [البقرة/۲۶۴]۔

## د حیض په حالت کی د جماع کولو ضررونه

د حیض په حالت کښې جماع کولو سره د انسان په بدن کښې ډیر ضررونه پیدا کیږی، علم طب دا ثابته کړیده چه پدے سره د زنانه او د سړی په عورتونو کښې داسے تیز سوزش پیدا کیږی چه د هغے په وجه په ډیرو بیماریانو کښې اخته کیږی، کله د سړی د مثیازو په لاره کښې داسے گرمائش پیدا کړی چه د هغے د وجه نه مثانے او گردے ته نقصان اُورسی او بیا د مثیازو ترتیب خراب شی سوزی، یا بندیږی، یا ورسره قطره بیماری پیدا شی۔ اُودس به ئے نهٔ اُوچیږی، کله پدے سره د ښځے او د سړی دواړو شنډ والے پیدا شی۔ د رحم په لارو کښې التهابات (سوزش) پیدا شی نو د هغے د وجه نه ښځه کښې شنډوالے پیدا شی، یا نیمگړے بچے پیدا کیږی۔ ددے نه نیم سیرے بیماری هم پیدا کیږی۔

په ښځه کښې غم او پریشانی او تنگ حالی پیدا کوی چه بیا ئے مزاج خراب وی۔

اُوگوره الحق الصریح (۷۰۱/۲) وتوضیح الاحکام (۳۶۲/۱)

﴿ فَاعْتَزِلُوا النِّسَآءَ ﴾ یعنی په حالت د حیض کښې ورسره جماع مهٔ کوئ۔ یا په ځائے د حیض

کښې ترې جدا شی چه هغه محل د وینې دے۔

﴿ وَلَا تَقْرَبُوهُنَّ ﴾ یعنی د جماع دپاره ورته مهٔ نژدے کیږئ۔

﴿حَتّٰى يَطْهُرْنَ ﴾ یعنی تر دے چه حیض ئے اُودریږی او حیض چه اُودریدو، بیا به هم جماع نهٔ کوی بنا په راجح قول۔ ﴿ فَإِذَا تَطَهَّرْنَ ﴾ یعنی کله چه ښهٔ پاکه شی پداسے شان سره چه غسل اُوکړی نو بیا جماع جائز ده۔

**مسئله** : آیا د حیض د وینے د اُودریدو نه روستو او د غسل کولو نه مخکښې جماع جائز ده ؟

پدے مسئله کښې دوه قوله دی (۱) یو قول دا دے چه که د حیض د وینے د بندیدلو نه روستو ښځه خپل عورت ښهٔ پاك کړی چه هلته د وینے هیڅ اثر باقی پاتے نهٔ شی نو جماع به جائز وی۔ امام ابن حزمؒ او نورو ډیرو علماؤ وئیلی دی چه غسل کول شرط نهٔ دے۔ د شام محدث علامه ناصر الدین البانی رحمه الله په خپل کتاب (آداب الزفاف) کښې همدے رائے ته ترجیح ورکړیده۔ وهو قول الحنفیه۔

(۲) دویم قول دا دے چه دلته الله تعالیٰ د جماع کولو د جواز دپاره دوه غائیے او دوه شرطونه ذکر کړیدی او بیا ئے په هغے باندے جماع مرتب کړیده : اولنے شرط دا دے چه د حیض وینه راتلل بند شی۔ (حَتّٰى يَطْهُرْنَ) او دویم دا دے چه ښځه ښهٔ پاکه شی یعنی غسل اُوکړی۔ ﴿ فَإِذَا تَطَهَّرْنَ ﴾ ۔

که د غسل دپاره اُوبه نهٔ ملاویږی نو تیمم کول کافی کیږی۔ د امام شوکانیؒ په نیز همدا راجح ده۔ او همدا خبره غوره معلومیږی۔ ځکه که يَطْهُرْنَ او تَطَهَّرْنَ دواړه په یوه معنیٰ باندے حمل شی نو بیا نوے فائده نهٔ حاصلیږی۔ (فتح البیان)

امام ابوحنیفهٔ وائی چه که وینه د حیض د کمے مودے نه بنده شوے وه، نود یو مانځهٔ د وخت د تیریدو په اندازه به صبر کوی او که وینه د زیاتے مودے نه بنده شوه نو بیا که انتظار نهٔ کوی هم حلاله ده۔ لیکن پدے خبره دلیل نشته۔ دغه شان طاووسؒ او مجاهدؒ وائی چه اودس اُوکړی نو جماع ورسره جائز ده۔ لیکن پدے اقوالو باندے هیڅ مستند دلیل نشته۔ لهٰذا احتیاط په دویم قول کښې دے چه د غسل پورے به صبر کوی۔

﴿ فَأْتُوهُنَّ مِنْ حَيْثُ أَمَرَكُمُ اللّٰهُ ﴾ حیث دلته مکانیه دے یعنی هغه مکان ته به راتلل کوی چه الله ورته د هغے په راتللو حکم کړے چه هغه فرج دے۔ او امر کله په معنیٰ د اِذن او اجازت سره هم دے۔

(دبر) شا طرف کښې به راتګ نهٔ کوی۔ ځکه چه حدیث کښې دی :((هغه انسان لعنتی دے چه خپلو ښځو ته په شا کښې راتلل کوی))۔ (احمد وابوداود)۔

په یو بل روایت کښې دی : ((چا چه حائضے زنانه ته یا ښځے ته په شا طرف کښې راتلل اُوکړل نو

هغه کفر اُوکړو په هغه دین چه الله تعالیٰ په محمد ﷺ نازل کړے». (ابوداود ۳۹۰۴ بسند صحیح).

په روایت د شرح السنه کښې دی: «هغـه څوك چه خپلے ښځے ته په شا طرف کښې راتلل کوی الله به هغه ته اُونهٔ گوری». (صححه الالبانی فی تعلیق المشکاة)

﴿ إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ التَّوَّابِينَ وَيُحِبُّ الْمُتَطَهِّرِينَ ﴾ پدے کښې تویے او پاکئ ته ترغیب ورکوی یعنی که دا گناه درنه شوی وی نو الله ته توبه اُوباسئ او همیشه پاکی کوئ، ښځے ته په شا طرف کښې او په حالت د حیض کښې راتلل گندگی ده او د الله تعالیٰ گندگی نهٔ ده خوښه، بلکه پاك خلق ئے خوښې دی، په هر لحاظ سره، چه ظاهری لباس ئے هم پاك وی، بدن ئے هم پاك وی، بی بی ته چه نزدے کیږی، نو هم د پاکئ په حالت کښې، د پاکئ په ځائے کښې. او باطنی پاکی ئے خوښه ده چه انسان صحیح العقیده او صحیح العمل وی.

رسول الله ﷺ یو سړے اُولیدو چه سر ئے گډوډ وو. وے فرمایل: «آیا دا څه نهٔ مونده کوی چه خپل ویښته پرے برابر کړی، هغه لاړو سر او گیره ئے برابره کړه نو نبی ﷺ اُوفرمایل آیا دا ددے نه غوره نهٔ دے چه یو سړے داسے گډوډ ویښتو والا راشی لکه د شیطان په شان. او بل سړے ئے اُولیدو چه جامے ئے خیرنے وے، وے فرمایل: آیا دا اُوبه نهٔ مونده کوی چه خپلے جامے پرے اُوینځی». (الصحیحة: ۴۹۳)

دے نه معلومه شوه چه شریعت ته ظاهری پاکی هم مطلوب ده.

بیا په توبه سره خپل باطن د گناهونو نه پاکیږی، او تطهر دیته وائی چه خپل ظاهر لره د نجاستونو او گندگو نه پاك اُوساتی. او الله تعالیٰ ته د مؤمن دا دواړه حالتونه ډیر خوښ وی، ددے په خلاف کوم خلق چه ددے نه محروم وی، هغه د الله په نیز مبغوض دی. نو کوم خلق چه د ښځو سره په ناپاکئ کښې نزدیکت کوی، یا د شهوت پوره کولو په معامله کښې د فطرت د حدودو نه تجاوز کوی، نو هغوی د الله تعالیٰ په نیز ډیر مبغوض دی. لکه چه د مخکښې احادیثو نه معلومه شوه.

المتطهرین کښې اشاره ده چه دا منع د دوی د فائدے دپاره شویده، دے دپاره چه دوی پاك شی. او توبه ئے ورسره ذکر کړه پدے کښې د توبے عظمتِ شان ته اشاره ده چه پدے سره روح پاکے کیږی. (ابن عاشور)

**فوائد**: ۱- پدے آیت کښې په حالت د حیض کښې د جماع نه منع ده، په یو ځائے کیناستل پاڅیدل، خوراك څکاك، څملاستل او د جماع نه غیر د نورو فائدو اخستلو منع نشته.

په صحیحینو کښې د ام المؤمنین میمونه رضی الله عنها نه روایت دے چه رسول الله ﷺ به ما سره اُودهٔ کیدو، او زهٔ به حائضه اُوم، او زما او د هغه په مینځ کښې به صرف یوه کپړه وه.

۲- د وینې د اُودریدو نه روستو حائضې دپاره غسل کول واجب دی.

نِسَآؤُكُمْ حَرْثٌ لَّكُمْ فَأْتُوا حَرْثَكُمْ أَنَّى شِئْتُمْ وَقَدِّمُوا

ستاسو ښځې فصل دے ستاسو دپاره نو راتلل کوئ خپل فصل ته په کومه طریقه چه ستاسو خوښه وی او مخکښ اُولیږئ

لِأَنفُسِكُمْ وَاتَّقُوا اللَّهَ وَاعْلَمُوا أَنَّكُم مُّلَاقُوهُ وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِينَ ﴿۲۲۳﴾

د خپلو ځانونو دپاره او اُویریږئ د الله نه او پوهه شئ چه تاسو به د هغهٔ سره ملاویږئ او زیرے ورکړه ایمان والو ته.

**تفسیر:** پدې کښې د تدبیر منزل نه بل حکم دا دے چه خاوند به هغه ځائے ته راتګ کوی چه په هغې کښې د ښځې حق ادا کیږی او هغه ځائے ته به راتګ نهٔ کوی چه په هغې سره د ښځې حق نهٔ ادا کیږی، او ښځې له پکار دی چه د خاوند شرعی مطالبے پوره کړی، نو پدې سره به کورنئ ودانه وی، او فسادونه به نهٔ پیدا کیږی، نو پدې کښې د نزدیکت اسلامی طریقه، آداب او مقصد بیانوی او په رواج د یهودیانو رد هم کوی.

د یهودیانو دا رواج وو چه هغوی به وئیل: سړے چه ښځې سره د شا د طرفنه په فرج کښې نزدیکت اُوکړی نو بچی کوږ سترګی پیدا کیږی، نو انصار هم د هغوی سره د ګاونډتوب د وجه نه ددې خبرې نه متأثره وو. یو مهاجری د یوې انصارئ ښځې سره نکاح اُوکړه او د هغې نه ئې په فرج کښې د شا د طرف نه د جماع کولو مطالبه اُوکړه لکه څنګه چه دوئ په مکه کښې پدې اموخته وو، نو هغې انکار اُوکړو چه مونږ کښې داسې کار ته راتلل نشی کیدے. (یعنی دا کار مونږ ته عیب ښکاری) نو خلقو کښې دا خبره خوره شوه تر دې چه نبی ﷺ ته دا خبره اُورسیدهٔ نو دا آیت نازل شو.

بیا نبی ﷺ اُوفرمایل: [صُمَامًا وَاحِدًا] یوې لارې ته به راتګ کوئ که په هره طریقه سره وی، لکه دا حدیث په مسند احمد او ترمذی (۲۹۷۹) او دارمی وغیره کښې په صحیح سند راغلے دے. نو الله تعالیٰ دا آیت نازل کړو، پدې کښې ئې د خلقو غلط تصور برابر کړو.

﴿نِسَآؤُكُمْ حَرْثٌ لَّكُمْ﴾ (ښځې ستاسو فصل دے) نو کوم ځائے کښې چه فصل کیږی هغه ځائے ته به راتګ کوئ.

﴿فَأْتُوا حَرْثَكُمْ﴾ راتلل کوئ خپل فصل ته څنګه او په کومه زمانه کښې چه غواړئ.

((أَنَّى)) دلته د کیفیت دپاره دے، په معنیٰ د کَيْفَ دے. یعنی په کومه طریقه مو چه خوښه وی څکه الله حکیم ذات دے چه پابندی ئې لګولے وے چه تاسو به خپلې ښځې سره نزدې کیږئ صرف

په سملاستو، او بله طريقه به نه کوئ نو انسان حرصناك دے، نورے طريقے به لټوی نو هر وخت به په گناه کښې واقع کيدے۔ الله اجازه ورکړه چه څنگه مو خوښه وی۔

پدے جمله کښې په يو وخت کښې دوه خبروته اشاره ده يو خو هغه آزادئ، بے تکلفئ، او خود مختارئ ته چه د يو باغ يا پټی مالك ته د خپل باغ يا پټی په باره کښې حاصليږی۔

او دويم هغه پابندئ او احتياط ته اشاره ده چه يو باغ يا پټی والا ئے د خپل باغ يا پټی په باره کښې لحاظ ساتی۔ دويمے خبرے ته په (حَرْث) لفظ سره اشاره ده، او اول شی ته په (أَنَّى شِئْتُمْ) لفظ سره۔ هغه آزادی او دا پابندی دواړه څيزونه په يو ځائے خاوند ته د خپلے بی بی په باره کښې لاره متعين کوی چه تا له داسے معامله اختيارول پکار دی۔

انسان چه کله د خپل عيش او خوشحالئ پدے باغ کښې داخليږی نو قدرت غواړی چه هغه د خپلے دے نشے نه پوره فائده اُوچته کړی ليکن ورسره دا حقيقت ئے هم د هغه مخے ته ايخودے دے چه دا کوم ځنګل نۀ دے، بلکه خپل باغ دے او دا کوم ديران نۀ دے بلکه خپل فصل او پټے دے۔ پدے وجه سل کرته خو دے راشی او په کوم شان چه وی او په کوم وخت کښې چه وی او په کوم اړخ چه وی او په کوم طريقه چه غواړی راودے شی، ليکن ددے باغ او د فصل کيدو خيال دے ياد ساتی۔ د خپل پټی متعلق هر دهقان دا خوښوی چه دهغے نه ډير ښۀ فصل حاصل شی. په مناسب وخت کښې په هغے کښې اِيوه اُوکړی، د ضرورت مطابق هغے ته اُوبه ملاؤ شی، د موسمی آفتونو نه دے هغه محفوظ شی، لاروی، مارغان، حيوانات او دشمنان او غلۀ هغے ته نقصان اُونۀ رسوی۔

او کله چه دا هغه اُوګوری نو دهغے تازګی دا خوشحاله کړی او کله چه وخت راشی نو هغه د خپلو ميوو او ګلانو نه لمن ډکه کړی۔ پدے وجه قرآن کريم د ښځے دپاره د فصل او پټی لفظ استعاره استعمال کړو چه دے تو لو خبروته پکښې اشارات پراته دی، او پدے سره ئے د خاندانی منصوبه بندئ سکيمونو والو د نظريئے جرړے پريکړے خکه چه دا خبره هيڅ عقل نۀ اخلی چه يو انسان دے خپل تخم زيات ګوزار کړی او فصل دے کم حاصل کړی۔ دا خو د سو چه بے وقوفو خلقو منطق دی۔

﴿ وَقَدِّمُوا لِأَنفُسِكُمْ ﴾ ددے جملے نه دا حقيقت ښکاره کيږی چه ښځے سره د تعلق کولو اصل غرض د نسلِ انسانی بقاء ده، لذّت او خوند حاصلول صرف ضمنی فائده ده۔

د (قَدِّمُوا) يوه معنیٰ اُوليکله شوه۔ بله دا چه مخکښې نيت او تدبير اُوکړئ د خپل ځانونو دپاره۔

بيا د ځان دپاره د مخکښې ليږلو ډير مصداقات کيدے شی (۱) يو خو نيۀ الاولاد دے۔ چه انسان

د جماع په وخت کښې د اولادو نیت اُوکړی چه الله ورله نیك اولاد ورکړی چه د الله په بندګئ کښې مصروف وی، او ددهٔ دپاره صدقه جاریه جوړه شی۔

(۲) دویم: ددے نه مراد د جماع په وخت کښې بسم الله وئیل دی، لکه څنګه چه په صحیح حدیث کښې راغلی دی چه د جماع په وخت کښې به جماع کونکے [بِسْمِ اللهِ اَللّٰهُمَّ جَنِّبْنَا الشَّیْطَانَ وَجَنِّبِ الشَّیْطَانَ مَا رَزَقْتَنَا] وائی، نو که د ښځے او خاوند ددے جماع نه کوم اولاد مقرر شی، هغه ته به شیطان ضرر نهٔ ورکوی او نهٔ به ئے ګمراه کوی۔ (۳) یا ددے نه مراد اعفاف الزوجة دے۔ دا نیت اُوکړی چه ښځه پاکه شی، د هغے غلط خیالات ختم شی۔

(٤) یا د خپل نفس عفت (پاکی) مراد دے۔ چه د انسان خیالات غلط استعمال نشی۔ د ګناهونو نه بچ شی لکه دا مقاصد د نکاح هم دی۔

(٥) یا معنیٰ ده [اَلْاَعْمَالُ الصَّالِحَةُ الَّتِیْ تُنَالُ بِهَا الْجَنَّةُ وَالْکَرَامَةُ] هغه نیك عملونه اُولیږئ چه تاسو ته پرے جنت او عزت ملاؤ شی)۔ دا د قرآن کریم طریقه ده چه کله د دنیا خواهشات بیان کړی لکه دلته ئے د شهوت پوره کولو آزادی او حلال والے بیان کړو نو د آخرت اعمال هم بیانوی، چه نور ډیر نیك اعمال شته چه هغه درنه په شهواتو پاتے نشی۔ (قاسمی ۱/۵۵۰)

﴿ وَاتَّقُوا اللهَ ﴾ پدے کښې په مخکنی احکامو باندے عمل کولو ته ترغیب دے او د هر قسمه ګناهونو نه منع ده۔

﴿ وَاعْلَمُوْا اَنَّکُمْ مُّلٰقُوْهُ ﴾ د آخرت په ترغیب سره د انسان اصلاح ډیره کیږی، پدے وجه آخرت ورته یادوی۔ د مُلٰقُوْهُ ضمیر الله ته راجع دے۔ یعنی تاسو به د الله سره ملاویږئ، د هغه مخے ته به د مرګ نه روستو په قیامت کښې پیش کیږئ۔

○ یا ضمیر تقویٰ ته راجع یعنی تاسو به د تقویٰ جزاء او بدلے سره ملاویږئ۔ اول ډیر ظاهر دے۔ څکه مُلٰقُوْهُ کښې یره پرته ده یعنی غلط کار مکوه څکه چه ستا د الله تعالیٰ سره ملاویدل دی۔

ا، ددے مطلب دا دے چه اګرکه تاسو د فطرت دا قوانین او د الله تعالیٰ دا حدود نن په خلوت او جَلوت کښې ماتولے هم شئ او تاسو ته ددے مهلت درکړے شویدے، لیکن یاد ساتئ چه یوه ورځ به ستاسو د الله سره ملاویدل وی چه هغه تاسو په سترګو سره هر ځائے کښې وینی، او د هغه د رائیلو نه به تاسو هیڅوك نشی خلاصولے، هغه به درنه تپوس کوی، چه تا ولے په غلط حالت او په غلطه طریقه راتلل کړیدی۔ او ددے د همکئ سره ایمان والو ته زیرے هم ورکوی چه دوی د خپل نفس د خواهشاتو باوجود دا خبره یاده ساتی چه یوه ورځ به د دوی د الله سره ملاویدل وی۔

﴿ وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِیْنَ ﴾ د قرآن دا طریقه ده چه احکام هم بیانوی، ورسره بنده آخرت ته هم راکاږی

او ذهن هم جوړوي. او دلته ئې ايمان والو ته زيرے په نفس ايمان ورکړے، دا هم د ايمان والو دپاره خوشحالي ده. او اشاره ده چه ايمان د الله تعالىٰ استحضار ته وائي.

**فائده:** دلته بړے جملے داسے ترتيب سره ذکر شويدي چه په خارج کښې ددے ترتيب د روستو نه شروع کيږي يعني اول د الله د ملاقات استحضار کول، بيا په تقوىٰ امر کول، بيا د خپل ځان دپاره نيك اعمال تيارول. ليکن په ظاهر کښې ددے ترتيب مخالفت اُوشو حکمة دا دے چه آخرت دپاره تيارے کول اصل مقصد دے او دا تيارے په تقوىٰ سره کيږي او بيا د الله تعالىٰ د ملاقات په استحضار سره کيږي، نو دا ترتيب په منزله د تعليل (علت) شو، چه روستنے شے علت د مخکني دے. (ابن عاشور).

| وَلَا تَجْعَلُوا اللّٰهَ عُرْضَةً لِّأَيْمَانِكُمْ أَن تَبَرُّوا وَتَتَّقُوا |
|---|
| او مهٔ کرځوئ نوم د الله نخه (هدف) دپاره د قسمونو ستاسو چه تاسو به نيکي نهٔ کوئ او تقوىٰ به نهٔ کوئ |
| وَتُصْلِحُوا بَيْنَ النَّاسِ وَاللّٰهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴿٢٢٤﴾ |
| او اصلاح به نهٔ کوئ او الله آوريدونکے، پوهه دے. |

**تفسير:** پدے آيت کښې د تدبير منزل د قوانينو نه نهم قانون دا دے:

[تَعْظِيمُ اسْمِ اللّٰهِ، وَالنَّهْيُ عَنِ الْحَلْفِ الْغَيْرِ الْجَائِزِ، وَلَا يَكُنِ اسْمُ اللّٰهِ مَانِعًا عَنِ الْخَيْرِ فِي الْمُعَاشَرَةِ]

(د الله تعالىٰ د نوم تعظيم او اکرام کول او د بے ځايه ناجائز قسمونو نه ځان ساتل دي، او په معاشره کښې دے د الله نوم د خير نه مانع نشي جوړولے)

يوه کورنئ چه جوړيږي نو پدے چه په هغے کښې بے ځائې يا د ګناه قَسَم نهٔ وي، خاوند يا ښځه او د کور مشر به د شريعت خلاف يا په دروغه قَسَم نهٔ کوي چه ځان پرے د نيکيو نه منع کوي. پدے سره کورنئ خرابيږي او د الله د نوم چه کله اکرام کيږي نو معاشره به جوړوي.

بيا د الله تعالىٰ دا حکم دے چه مسلمان کله قَسم اُوخوري نو هغه به پوره کوي، ليکن که قَسم يو داسے وي چه د نيك عمل په لاره کښې رکاوټ جوړيږي، مثلاً اُووائي چه زهٔ به دا نيك کار نهٔ کوم، اصلاح د خلقو به نهٔ کوم، نو داسے قسم به ماتولے شي، او هغه نيك کار به کولے شي، او ددے قَسم کفاره به ورکړے شي. بعض خلقو به د خپلو رشته دارانو نه د څهٔ وقتي اختلاف او ناراضګئ په وجه قَسم کولو چه آينده به د هغه سره نيکي او احسان جاري نهٔ ساتي، کوم ئې چه د مخکښې نه کولو، نو الله تعالىٰ پدے آيت کريمه کښې ددے نه منع اُوفرمايله چه خپل قسمونه د

نیکئ، تقوئ، احسان او خیګړې په لاره کښې رکاوټ مهٔ جوړوئ.

د مفسرینو یو جماعت د ابن جریج نه نقل کړې چه دا آیت د ابوبکر صدیق رضي الله عنه په باره کښې نازل شوے وو چه قسم ئے اُوکړو چه زهٔ به د خپلے ترور (خاله) په ځوی مسطح بن اثاثه باندے انفاق نهٔ کوم، ځکه چه دا د عائشے په تهمت کښې شریک شویدے.

واحدی د کلبی نه نقل کړی چه دا آیت د عبد الله بن رواحه رضي الله عنه په باره کښې نازل دے چه ددهٔ اُوښی نعمان بن بشیر رضي الله عنه ددهٔ خور له طلاق ورکړے وو او بیا دواړو د رجوع او صلحے اراده لرله، نو عبد الله قسم اُوکړو چه نعمان بن بشیر سره به خبرے نهٔ کوی، او د هغه کور ته به نهٔ داخلیږی، او دهغه او دهغه د ښځے په مینځ کښې به جوړ جاړے نهٔ کوی. (ابن عاشور، بغوی) هر یو سبب چه وی خو د آیت الفاظ عام دی.

ددے وجه نه په صحیحینو کښې د ابو موسیٰ اشعری رضي الله عنه نه روایت دے چه نبی کریم ﷺ اُوفرمایل: «قسم په الله، که زهٔ په یوه خبره قسم اُوکړم او بیا روستو د هغے نه غوره صورت وینم، نو ان شاء الله چه زهٔ هغه کار کوم، کوم چه غوره وی او قسم ماتوم».

دا ئے په هغه وخت کښې وئیلی وو چه څهٔ کسانو ترے د اُوښانو مطالبه اُوکړه، نو نبی ﷺ د نهٔ ورکولو قسم اُوکړو، بیا ئے قسم مات کړو او هغوی ته ئے اُوښان ورکړل.

او په صحیح مسلم کښې د ابو هریره رضي الله عنه نه روایت دے چه نبی کریم ﷺ اُوفرمایل: «څوك چه قسم اُوکړی او بیا روستو د هغے نه غوره کوم صورت وینی، نو د خپل قسم کفاره دے ورکړی، او هغه کار دے اُوکړی کوم چه غوره وی».

یعنی د شریعت خلاف قسم به ضرور ماتوی او کفاره به ورکوی.

دلته الله تعالیٰ د قسم مسئله راوړه، ځکه چه دا آیت د روستو راتلونکے مسئلے دپاره تمهید دے چه هغه د ایلاء مسئله ده.

﴿وَلَا تَجْعَلُوا﴾ په (نِسَاؤُكُمْ حَرْثٌ لَّكُمْ) باندے عطف دے او دا عطف د تشریع د یو حکم دے په بل حکم باندے، او مناسبت د دواړو جملو دا دے چه دواړو کښې د ښځے او د خاوند ترمینځ د ژوند تیرولو احکام دی، د اولے جملے مضمون په حالت د حیض کښې د نزدیکت نه منع وه، او دا جمله د روستو (لِلَّذِينَ يُؤْلُونَ مِن نِّسَائِهِمْ) دپاره تمهید دے، نو دا تمهید د دواړو آیتونو په مینځ کښې په منزله د جملے معترضے دے. (ابن عاشور)

(عُرْضَةً): په وزن د فُعْلَة دے چه په مفعولی معنیٰ باندے دلالت کوی لکه دقُبْضَة او مُسْكَة او هُزْأَة په شان چه په معنیٰ د مقبوض، ممسك، مهزوء سره دے.

دا د غَرَضَهٔ نه مشتق دے، په هغه وخت کښې استعماليږي کله چه انسان يو شے په غَرض يعنې يو جانب باندے کيدي، او دلته د عَرَضَ الْعُوْدَ عَلَى الْاِنَاءِ نه اخستے شويدے يعنې (لرگے ئے په لوښي باندے په پلنو کيخودو) يعنې يو شے مانع جوړول۔ بيا مشهور شويدے پدے معنىٰ کښې چه يو شے راپيښ شي او د بل شي نه مانع جوړ شي۔ (ابن عاشورؒ، بغويؒ)۔

﴿ وَلَاتَجْعَلُوا اللهَ عُرْضَةً لِاَيْمَانِكُمْ ﴾

آيت کښې دوه تفسيره دي : (۱) عُرْضَةً په معنىٰ د مانع سره دے، او اَنْ مدخول په تاويل د مصدر گرځوي او (لِاَيْمَانِكُمْ) کښې لام اجليه دے۔ (يَعْنِيْ لَا تُجْعَلُوا اسْمَ اللهِ مَانِعًا عَنِ الْبِرِّ وَالتَّقْوىٰ وَالْاِصْلَاحِ لِاَجْلِ اَيْمَانِكُمْ) ۔ (مهٔ گرځوئ نوم د الله منع کونکے د نيکئ او تقوىٰ او اصلاح نه د وجه د قسمونو کولو ستاسو نه)۔

يعنې تا قسم کړے پدے وجه د الله نوم دے منع کونکے د نيکئ نه اُوگرځولو۔ او د الله نوم دے ځائے استعمال کړو۔ د هغه نوم دے د نيکئ نه د منع کيدو سبب اُوگرځولو۔

(۲) دويم عُرْضَه په معنىٰ د هدف او نشانه سره دے، او د عربي ژبے دا قانون دے چه د اَنْ نه روستو غالباً (لَا) کلمه پټه وي يعنې لِئَلَّا تَبَرُّوْا وَلَاتَتَّقُوْا وَلَاتُصْلِحُوْا ۔ او قرآن کښې ددے ډير مثالونه موجود دي۔ [يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمْ اَنْ تَضِلُّوْا اَیْ اَنْ لَّاتَضِلُّوْا] ۔ او کوفيين ورته (کراهية) لفظ راوباسي۔ اى كَرَاهِيَةَ اَنْ تَبَرُّوْا الخ۔

معنىٰ دا ده : مهٔ گرځوئ نوم د الله هدف او نخه دپاره د خپلو قسمونو چه تاسو خپل قسمونه د الله تعالىٰ نوم ته ورولئ لکه څنگه چه نخه ويشتلے شي۔ ددے دپاره چه تاسو نيکي نهٔ کوئ، تقوىٰ نهٔ کوئ، اصلاح نهٔ کوئ۔ يا د وجه د بد گنړلو ستاسو نيکي لره، تقوىٰ لره، اصلاح لره۔

يعنې د الله د نوم نه ئے هدف جوړ کړے وي او داسے وائي : قسم په الله او والله، بالله، تالله۔ ځان پرے د نيکئ نه بندوي۔ او د الله نوم د قسم دپاره د هدف جوړولو مطلب دا دے چه د هغه په نوم بے ضرورته قسمونه کوي، يا داسے قسمونه کوي چه د نيکي او تقوىٰ او اصلاح خلاف وي۔ د لوئي ذات لوئي نوم دے بے ضرورته قَسَمونو دپاره استعمالول داسے دي لکه يو شخص ماشي ويشتلو دپاره توپ استعمال کړي، او د نيکئ او د تقوىٰ خلاف قَسَمونو دپاره د الله پاك نوم استعمالول داسے دي گويا کښې د الله په نوم سره د نيکي او تقوىٰ جرړے پريکول دي، کوم نوم چه د ټولو نيکيانو او خيرونو چينه ده۔ لهذا د الله نوم به د خير په ځائے د گناه او بے خيرئ دپاره نهٔ استعماليږي۔

نوم د الله خو ددے دپاره دے چه سړے به نيك عمل کوي، او دے دپاره نهٔ دے چه د بد عمل دپاره

به پرے قَسمونه کوی۔

پدے کښې ابوحیانؒ یوه بله توجیه ذکر کړیده چه ان تبروا الخ د أَیۡمَانِکُمۡ پورے متعلق دے، او د عُرۡضَةً معنیٰ د هدف او د نخے ده، او مقصد دا دے چه په نیکئ او تقویٰ او اصلاح کولو باندے د الله په نوم قسم مهٔ کوئ او مقصد پکښې دا دے چه دا دریے واړه کارونه اگرکه د خیر دی لیکن پدے هم ډیر قسمونه مهٔ کوئ۔ لیکن دا توجیه غوره نهٔ ده ځکه چه د الله په نوم قسم کولو ته شریعت ترغیب ورکړیدے لکه چه لږ روستو به راشی۔

**فائده :** دریے څیزونه ئے ذکر کړل، دے الفاظو دلته د خیر او نیکئ تمام اقسام راجمع کړی۔

(۱) ...... بِرّ هغه ټولو نیکیانو ته شامل دے چه د هغے تعلق د مور او پلار، خپلوانو، مسکینانو، یتیمانو او نورو حقوق العباد سره دے۔ تقویٰ په هغه نیکیانو مشتمل ده چه د حقوق الله سره تعلق لری، او د اصلاح نه مراد هغه نیکیانے دی چه د معاشرے سره تعلق لری۔ پدے وجه ئے دا دریے الفاظ خاص کړل چه ټول دین ته شامل شی۔ (تدبر قرآن)

(۲) ...... دارنګه د خیر کار فائده به یا بل ته رَسَول وی یا ځان ته۔ یا به د چا نه ضرر دفع کول وی۔ نو بِرُّ (نیکی) کښې بل ته فائده ورکول وی۔ او ځان ته فائده رسولو ته تقویٰ وئیلے شی۔ او د بل چا نه ضرر دفع کولو ته اصلاح وئیلے شی۔ نو پدے طریقه هم دا د خیر ټولو کارونو ته شامل دی۔ (احسن الکلام)۔

(۳) ...... دارنګه بِرّ کښې د الله حقوق دی۔ (تَتَّقُوۡا وَتُصۡلِحُوۡا) کښې د بندګانو حقوق دی۔ بیا تَتَّقُوۡا کښې فائده رَسَول دی او تُصۡلِحُوۡا کښې ضرر دفع کول دی۔ او دا دریے واړه اُوچت اخلاق دی، د الله حق هم ادا کوی، او مخلوق له فائده هم ورکوی، او ضرر ترے لرے کوی۔

﴿ وَاللّٰهُ سَمِیۡعٌ عَلِیۡمٌ ﴾ دا تذییل دے، مخکښې قَسَم ذکر شو او هغه تعلق د آوریدو سره لری نو الله فرمائی چه الله ستاسو د قسم الفاظ آوری، خبردار ! د هغه نوم بے ځایه استعمال نکړئ۔ او دریے کارونه د خیر دی نو الله پوهه دے چه تاسو دا کارونه منع کړل۔ ددے سزا به درکوی۔

## فوائد او علوم

(۱) په عوامو کښې مشهوره ده چه قَسَم په حقه او په ناحقه ناروا دے، دا خبره خطاء ده، بلکه د الله په نوم قسم کولو کښې ثواب دے کله چه قَسَم ته ضرورت راشی۔

حدیث کښې دی :[اِحۡلِفُوۡا بِاللّٰهِ وَبَرُّوۡا وَاصۡدُقُوۡا فَاِنَّ اللّٰهَ یُحِبُّ اَنۡ یُّحۡلَفَ بِهٖ]

[صحیح الجامع الصغیر ۲۱۱]۔

(په الله قسم کوئ، او نيکي کوئ او په هغې کښې رشتيا وايئ ځکه چه الله دا خوښوي چه د هغه په نوم قسم اُوکړے شي) ځکه چه پدے کښې د الله د نوم تعظيم راځي۔ مقصد دا وي چه قَسَم خوړونکے عقيده لري چه زهٔ دا قسم پوره کوم، دے دپاره چه د الله د نوم سپکاوے اُونشي، او که قَسَم پوره نکړم، نو الله به ما ته عذاب راکړي، نو پدے کښې د الله نه يره راځي۔

(۲) قَسَم د الله په نوم هم کيږي، او د الله په صفاتو هم کيږي، او په قرآن هم کيږي، فقه حنفي کښې چه دا راغلي دي چه په قرآن قَسَم نهٔ کيږي، نو د هغې مقصد دا دے چه عرف کښې پرے خلق قَسَم نهٔ کوي۔ ځکه بناء د قَسَمونو په عرف وي۔ ليکن مونږ وايو چه د هغه فقهاؤ په عرف کښې به پرے قَسَم نهٔ کيدو او زمونږ پدے زمانه کښې قوي قَسَم خلق په قرآن کوي، لهذا په قرآن قَسَم بالکل جائز دے ځکه چه قرآن د الله کلام دے، او د هغه صفت دے۔ او که څوك وائي چه قرآن باندے ځکه قسم جائز نهٔ دے چه دا مخلوق دے، نو دا خبره د اولے نه هم زياته خطرناکه ده۔ ځکه چه خلق خو په کتبه باندے قسم نهٔ کوي بلکه د الله په کلام ئے کوي۔

(۳) مفسرينو ليکلي دي چه پدے آيت کښې په هره خبره باندے د قَسَم کولو نه منع شويده۔

(٤) که يو شخص د واجب په پريخودو قسم اُوکړي نو قَسَم ماتول به واجب وي، او که د مستحب په پريخودو قسم اُوکړي، نو قسم ماتول به بهتر وي، او که د حرامو په کولو قسم اُوکړي، نو په دے باندے هم قَسَم ماتول واجبيږي۔ (تيسير الرحمن)۔

(٥) که څوك په کعبه يا په پلار نيکه يا په نبي باندے قسم اُوکړي نو دا قَسَم نهٔ دے، نو پدے کښې کفاره هم واجب نهٔ ده، بلکه دا عظيم جُرم او گناه ده، الله ته به زر توبه اُوباسي ځکه چه په غير الله باندے قسم کولو ته نبي ﷺ شرك وئيلے دے۔ (بغوي)۔

لَا يُؤَاخِذُكُمُ اللّٰهُ بِاللَّغْوِ فِيْٓ اَيْمَانِكُمْ وَلٰكِنْ يُّؤَاخِذُكُمْ بِمَا كَسَبَتْ

نهٔ راکيروي تاسو الله تعالیٰ په لغو (عادتي) قسمونو ستاسو ليکن رانيسي تاسو په هغې چه کړي وي

قُلُوْبُكُمْ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ حَلِيْمٌ ﴿۲۲۵﴾

زړونو ستاسو ـ او الله ډير بخونکے صبرناك دے۔

**تفسير** : پدے کښې د قَسَم کولو بعض اقسام او حکم ذکر کوي۔

**مناسبت** : مخکښې د ډيرو قسمونو کولو نه منع اُوشوه چه د الله نوم بے ځايه مهٔ استعمالوئ، نو اُوس وائي چه کله انسان عادتي قَسَم کوي لکه د عربو عادت دے چه هغوي په

هر څه کښې (لَا وَاللهِ) او (بَلٰى وَاللهِ) وائي۔ نو ددې به څه حکم وي؟ نو الله پدې آيت کښې د هغې استثناء ذکر کوي چه پدې باندې څۀ گناه نشته۔

﴿لَايُؤَاخِذُ﴾ دلته ئې باب مفاعله (مُؤَاخَذَه) د مبالغې دپاره ذکر کړيده۔ د مؤاخذې معنیٰ ده، يوشې چا پسې حسابول او شمارل، دې دپاره چه هغه پرې ملامته کړي يا سزا ورکړي۔

﴿بِاللَّغْوِ﴾ لَغَا يَلْغُوْ لَغْوًا ۔ په معنیٰ د باطلې خبرې کولو سره، او کله په معنیٰ د هغه خبرې سره راځي چه پريوتې وي او هيڅ اعتبار ورله نۀ وي، او ديته خطاء وائي۔ او دا ئې مشهوره معنیٰ ده۔ دلته عادتي، بې ارادې او غير اختياري قَسَم کول مراد دي۔

عائشه رضي الله عنها فرمائي : دا آيت د هغه خلقو په باره کښې نازل شوې چه په غير شعوري طور سره (لَا وَاللهِ، بَلٰى وَاللهِ) کلمه به ئې وئيله۔ (بخاري، مؤطا، ابوداود)۔

يعنې هغه الفاظ د قَسَم چه په ژبه باندې بغير د ارادې نه اُوځي، اود زړۀ سره ئې هيڅ قِسم تعلق نۀ وي۔ او د هيڅ نفع او نقصان د خاطره نۀ وي کړې شوې، بلکه صرف د خبرو په مينځ کښې د تکيه کلام دپاره يا د تنبيه دپاره يا د تاکيد دپاره وئيلې شي۔ او دا قول د جمهورو علماؤ دې۔

ليکن کوم قَسَمونه چه د زړۀ په قصد او اراده سره وي، او د هغې په وجه د انسان په خپلو يا د بل چا په حقوقو باندې د اثر پريوتو دپاره وي، مثلًا د بل دپاره يا ځان دپاره حق ثابتوي، يا د ځان نه پرې ضرر دفع کوي، نو که د الله نوم ئې په غلطه طريقه استعمال کړو نو الله تعالیٰ به دا انسان ضرور رانيسي۔ آؤ! که په جائز کار کښې د زړۀ نه قسم کوي او بيائې پوره کوي، نو هيڅ گناه نشته لکه مخکښې آيت کښې تشريح اُوشوه۔

**فائده:** ددې آيت او د احاديثو نه د قَسَم درې قسمونه او د هغې احکام معلوميږي۔

(۱) يَمِيْنِ لَغْو۔ ددې په تعريف کښې اختلاف دې۔ ○ يو قول مخکښې ذکر شو۔

○ دويم قول دا چه، امام مالك رحمه الله فرمائي : چه انسان په يو شي قَسم اُوکړي او ددۀ گمان وي چه دا شې به دغه شان وي، ليکن بيا ښکاره شي چه دغه شې ددۀ د گمان خلاف دې۔ يعنې په دروغه قَسَم کول په خپل گمان چه په واقع کښې هغه شان نۀ وي۔

لکه مثلًا تا يو کار نۀ دې کړې او گمان دې دا وي چه ما کړې او په هغې قسم اُوکړې۔ يا دې کار کړې او قَسَم کوې چه ما نۀ دې کړې، درنه هير شوی وي۔ امام مالكؒ په موطأ کښې وائي دا بهترين تعريف دې چه ماته رارسيدلې دې۔ آه۔ او دا د ابو هريره ﷺ، د حسن بصريؒ، قتادهؒ، مکحولؒ، ابن ابي نجيحؒ وغيره نه نقل دې۔

وجه دا ده چه سورة المائده کښې راځي (بِمَا عَقَّدْتُمُ الْاَيْمَانَ) راتيسول په هغه وخت کښې دي چه د

زړهٔ په مضبوطوالی سره وي، او په نفسِ قَسم سره رانیول نشته، بلکه رانیول په هغه صورت کښې دي چه اراده د حنث او ماتولو لرې نو ځکه ئې هلته کفاره هم خودلے ده۔

○ بعض علماء وائي : اَللَّغْوُ مَا لَمْ يَقْصِدْ بِهِ الْكَذِبَ ۔ لغو هغه قسم دے چه اراده د دروغونهٔ لرې۔ نو دا مخکښنو دواړو تعریفو نوته شامل دے۔ برابره ده که بغیر د قصد نه وي لکه عادتي قسم یا سره د ارادے نه وي خو عقیده د رشتیا ئې وي لیکن په واقع کښې خطائي ښکاره شي۔ دا قول د ابن عباسؓ او شعبيؒ دے۔ او دا د امام ابوحنیفهؒ د قول نه هم معلومیږي۔(التنویر والتحریر ٢/٣٦٤)۔

اول قول غوره معلومیږي ځکه چه دلته لغو د کسب القلب (د زړهٔ د ارادے) مقابل ذکر شویدے۔ نو په لغو کښې به اراده نهٔ وي۔

د لغو قَسم حکم دا دے چه نهٔ پکښې کفاره شته او نهٔ ګناه۔ لیکن ددے قَسَم نه قرآن کریم په لغو سره تعبیر اُوکړو، پدے کښې اشاره ده چه د ثقه او غوره خلقو دپاره ددے نه هم پرهیز کول پکار دي ځکه چه قرآن کریم کښې د کامل ایمان والو په صفت کښې دا بیان شویدي چه دوی د لغو څیزونو نه ځان ساتي۔ (تدبر قرآن بتصرف)۔

(۲) دویم یمین غَمُوس : [اَلْحَلْفُ عَلَى الزَّمَانِ الْمَاضِيْ كَاذِبًا] : دا هغه قسم دے چه په دروغه باندے قصداً اُوکړے شي په تیره شوے زمانه کښې چه ما دا کار کړے وو، یا مے نهٔ وو کړے۔ پردے مال پرے حاصلوي، یا د ځان نه پرے ضرر دفع کوي۔ او ښهٔ یقین ئې وي چه دا پکښې دروغجن دے۔

ددے حکم دا دے چه دا کبیره ګناه ده او نبي ﷺ د اکبر الکبائر (د تولونه د لویو ګناهونو) نه شمارلے دے۔ او په کفاره کښې ئې اختلاف دے۔ امام شافعيؒ وائي پدے کښې کفاره شته۔ جمهورؒ وائي، کفاره نشته، کفاره خو ددے دپاره وي چه ګناه ختمه کړي، او دهٔ دومره غټه ګناه کړیده چه هغه په کفاره نهٔ معاف کیږي۔

(۳) یمین مُنْعَقِدَه : [اَنْ يَّكُوْنَ عَلَى الزَّمَانِ الْمُسْتَقْبَلِ] چه په راتلونکي زمانه باندے قَسم اُوکړي چه صبا به دا کار کوم، یا به ئې نهٔ کوم۔ ددے حکم دا دے چه که د کار په کولو ئې قسم کړے وو، او پوره ئې نکړو، نو کفاره به ورکړي، او که په نهٔ کولو ئې قسم کړے وي او وے کړو نو هم کفاره به ورکړي۔ (او د کفارے اندازه په سورة المائده کښې ذکر ده)۔

بیا که د ګناه کار وو، نو قَسَم به ماتوي او کفاره به ورکوي، او که نیك کار وي، سرته به ئې رسوي، که وے نهٔ رسولو، نو هم کفاره به ورکوي۔

**فائده:** دلته لَغو قَسم د یمین غَمُوس او یمین مُنْعقده مقابل دے۔ او بِمَا كَسَبَتْ قُلُوبُكُمْ دواړو قسمونو ته شامل دے ځکه چه غَمُوس کښې هم د زړهٔ قصد وي، لیکن په دروغه وي، نو پدے

کښې راتیول دي په طریقه د ګناهګاریدو، او په منعقده کښې هم د زړهٔ قصد وي لیکن په رشتیا.
نو پدې کښې د قسم د ماتولو په صورت کښې راتیول صرف په کفارې ورکولو سره دي.
﴿وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ حَلِیْمٌ﴾ الله غفور دے ځکه تاسو په لغو قسم سره نهٔ رانیسي او د زړهٔ د قسم ماتولو په صورت کښې ئې درله لاره پیدا کړه په کفارې مقرر ولو سره. حلیم دے چه په جلتئ سره ئې سزا درنکړه په یمین غموس کښې. (تفسیر ابن عرفه).
غفور: مبالغه ده په ګناه پټولو او د هغې د سزا په ساقطولو کښې. او حلیم د حِلم نه دے په لغت کښې سره د قوت او قدرت نه په آرام او دمه سره یو کار کول دي. (اللباب لابن عادل)
او حلیم هغه ذات ته وائي چه که د هغه په جانب کښې تقصیر اُوشي، نو هغه په جلتئ بدله نهٔ اخلي، او په غفلت باندې غضب نهٔ کوي او عذر قبلوي. او دلته ئې د غفور سره حلیم راوړو، نهٔ رحیم ځکه چه دلته د الله سره په ادب کښې تقصیر او کوتاهي شویده نو دا یو قِسم ګناه ده، نو ددې بخښنې سره (حَلِیْم) صفت ذکر کول مناسب دي چه پدې ګناه ئې په جلتئ سزا ورنکړه.
(ابن عاشور).

﴿لِلَّذِیْنَ یُؤْلُوْنَ مِنْ نِّسَآئِهِمْ تَرَبُّصُ اَرْبَعَةِ اَشْهُرٍ فَاِنْ فَآءُوْا﴾

دپاره د هغه کسانو چه قسمونه کوي د خپلو ښځونه مهلت دے څلور میاشتې، که دوی (د څلورو میاشتو نه روستو) راوګرځیدل

﴿فَاِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِیْمٌ ﴿۲۲٦﴾ وَاِنْ عَزَمُوا الطَّلَاقَ فَاِنَّ اللّٰهَ سَمِیْعٌ عَلِیْمٌ ﴿۲۲۷﴾﴾

نو الله بخښونکے مهربان دے او که چرې قصد د طلاقو ئې کړے وو نو یقیناً الله تعالیٰ لیدونکے، پوهه ذات دے.

**تفسیر:** اُوس یو بل قِسم قَسَم دے چه خاوند ئې د خپلې ښځې نه کوي. او دیته مسئله د ایلاء وائي. او پدې کښې هم د جاهلیت د زمانې د رسم اصلاح کول دي چه په هغوي کښې به د یو تن د خپلې ښځې سره مینه نهٔ وه، نو داسې قَسَم به ئې ترې اُوکړو، چه ټول عمر به زهٔ تا ته نهٔ نزدې کیږم، یا به یو کال دوه کاله. نو نهٔ به ورته خپله نزدې کیدو، او نهٔ به ئې بل چا ته پریخوده چه نکاح ورسره اُوکړي. او مسلمانانو به هم په ابتداء کښې داسې کار کولو، لیکن الله تعالیٰ پدې آیت کښې د هغې دپاره قانون مقرر کړو. چونکه دا قِسم قَسَم د بِر او د اصلاح او تقویٰ خلاف دے پدې وجه شریعت ورله اندازه مقرر کړه.
ایلاء په دوه قسمه ده (۱) لغوي. (۲) او شرعي.
ایلاء لغوي دیته وائي چه سړے د خپلې ښځې نه قَسَم اُوکړي چه قَسَم په الله، زهٔ به ښځې ته یوه

میاشت یا دوه میاشتې وغیره (چه د څلورو میاشتو نه کم وي) نۀ نزدې کیږم۔ددې حکم واضح دې چه دۀ لـه قَسَم ماتول پکار دي، لیکن که قَسَم ئې پوره کړو نو هیڅ پرې نشته۔ او که قسم ئې مات کړو نو کفاره به ورکوي، نبي ﷺ هم د خپلو بي بیانو نه خفه شوې وو او د هغوي نه ئې یو میاشت پورې قَسَم اُوکړو۔ او خپلـه بالخانه کښې د هغوي نه جدا شو۔ څکه چه هغوي نفقه زیاته طلب کوله نو نبي ﷺ د هغوي نه خفه شو، او پدې سره د نبي ﷺ هغوي له ادب ورکول غرض وو۔ میاشت چه کله تیره شوه، نبي ﷺ د عائشې رضي الله عنها کوټې ته ورغلو او نورو بیبیانو باندې اُوګرځیدو او هغوي ته اختیار ورکړې شو۔ چه ددې تفصیل به سورة الاحزاب کښې راځي۔ او نبي ﷺ هیڅ کفاره ورنکړه څکه قَسَم پوره شو۔

ایلاء شرعي دا ده چه سړې د خپلې ښځې نه د څلورو میاشتونه زیاته موده قَسَم اُوکړي، یا د مودې د تعیین نه بغیر مطلق قسم اُوکړي چه زۀ به خپلې ښځې ته هیڅ کله نۀ نزدې کیږم۔ نو پدې آیت کښې د داسې خلقو دپاره د مودې تعیین شویدې چه د څلورو میاشتو د تیریدو نه روستو به یا خو خپلې ښځې ته رجوع کوي، او هغې سره به تعلق قائموي، یا به طلاق ورکوي، (څکه چه ښځه د څلورو میاشتو نه روستو مُعَلَّقه (زوړنده) ساتلو اجازت نشته دې) که سړي رجوع اُوکړه نو هیڅ پرې نشته، همغه ښځه ئې ده او خپل قَسَم ئې سرته اُورسولو، او که طلاق ورکوي هم ګناه پرې نشته۔ او که نۀ طلاق اچوي او نۀ رجوع کوي، نو قاضي به ئې په یوه خبره ضرور مجبوره کړي، که یو ته هم نۀ تیاریږي، نو قاضي به د دواړو ترمینځ په طلاق سره جدائي راولي، دې دپاره چه په ښځه ظلم رانشي۔ (ابن کثیر)۔

اُوس که د څلورو میاشتو نه د زیاتې مودې قَسَم ئې کړې وو او بیا په څلورو میاشتو کښې دننه نزدې شو، نو د قَسَم کفاره به ورکړي۔ او که څلور میاشتې ئې پوره کړې، او بیا د ښځې سره نزدې شو، نو په دۀ باندې هم کفاره واجبیږي۔ او که صرف څلور میاشتې ئې قَسَم کړې وو او دا ئې پوره کړې نو بیا پرې کفاره نشته۔

بیا د احنافو علماؤ په نیز د څلورو میاشتو د تیریدو نه روستو سمدست طلاق بائن واقع شو۔ ښځه ترې جدا شوه، بیرته ورته رجوع نشي کولې۔

او بعض اهل علم وائي چه یو طلاق رجعي واقع دې۔

جمهور علماء وائي چه د څلورو میاشتو د تیریدو نه روستو طلاق نۀ واقع کیږي، بلکه دا سړې به قاضي ته راځکلې شي، او دا خبره د عثمان بن عفانؓ او علي بن ابي طالبؓ نه په صحیح سند نقل ده۔ (رواء الغلیل ۱۷۱/۷)۔

لکه حدیث کښې دي : سلیمان بن یسارؒ فرمائي، ما دیارلس صحابه کرامؓ مونډلي دي چه هغوی به وئیل :(یُوْقَفُ الْمُوْلِيْ) (دارقطني والبیهقي) ایلاء کونکے به د قاضي مخے ته اُودرولے شي) چه رجوع اُوکړه یا طلاق واچوه، داسے نشي کیدے چه تا د خپل خواهش یا ضد دپاره د ښځے ژوند زوړند کړے وي، او دا د اسلامي خلافت فائده ده۔

او دا د شریعت څومره انصاف دے چه د سړي لحاظ ئے هم کړے چه کیدے شي هغه به ښځے ته ادب ورکوی یا به پرے غصه وي، نو خیر دے څلورو میاشتو پورے ورسره د تعلقاتو نۀ قائمولو اجازت دے، لیکن که بیا هم دا رجوع نۀ کوي، نو اُوس په ښځه ظلم راځي. نو ځکه ئے ورله څلور میاشتے مقرر کړے چه دواړه طرفونو ته نقصان اُونشي۔

پدے کښې د جمهورو علماؤ قول د لسو وجوهو نه راجح دے چه هغه ابن القیمؒ په بدائع التفسیر کښې ذکر کړیدي۔ ددے آیت نه ئے دلیل نیولے دے۔

لیکن چونکه ښځے ته واپس کیدل د الله تعالیٰ په نیز غوره دي، پدے وجه الله تعالیٰ اُوفرمایل چه که قَسَم خوړونکے سړے خپلے ښځے ته رجوع کوي، او د هغې سره نزدیکت کوي، نو کومه غلطي چه ددۀ نه شوي وه، الله به ئے معاف کړي، او الله په ایمان والو باندے رحم کونکے دے چه په کفاره ورکولو سره د قسم ماتولو اجازت ئے ورکړو، که الله غوختے نو دا به ئے لازم کړے وے، او کفاره به نۀ وے۔

﴿ لِلَّذِيْنَ يُؤْلُوْنَ مِنْ نِّسَآئِهِمْ ﴾ ایلاء کښې معنیٰ د تقصیر پرته ده، هغه قَسَم ته وائي چه په هغې کښې د یو شي پریخودل وي او د هغه چا په حق کښې کوتاهي وي چه د هغه نه قسم شوے وي یعني ښځے سره د جماع تعلق نۀ ساتلو نه قَسَم کول. چونکه پدے لفظ کښې د ترک (پریخودلو) معنیٰ خپله موجود ده، پدے وجه د قطع تعلق معنیٰ ادا کولو دپاره بل کوم لفظ یوځائے کولو ته په کښې ضرورت رانغلو، او ددے وجه نه ئے دا په مِنْ سره متعدي کړو. (راغبؒ، ابن عاشورؒ)

﴿ تَرَبُّصُ اَرْبَعَةِ اَشْهُرٍ ﴾ څلور میاشتے ځکه مقرر شوے چه یو خو د جاهلیت په ظلم رد دے۔ دویم : پدے کښې ښځے ته ادب ورکول وي ځکه چه د څلورو میاشتو جدائي به ښځے له ډیر زور ورکړي، نو د خپل ځان اصلاح به اُوکړي. دریم : پدے کښې خاوند ته د سوچ او فکر موقعه ورکول دي چه په طلاق ورکولو کښې جلتي اُونکړي۔

﴿ فَاِنْ فَآءُوْ فَاِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴾ یعني که دوي راواپس شو د ښځو نزدیکت ته، روستو د څلورو میاشتو نه نو که کوم تقصیر شوے وو چه د ښځے حق ئے ضائع کړے وو، نو الله غفور رحیم دے۔ ځکه د دوي دا رجوع داسے ده لکه د توبے په شان چه ګناه معاف کوي۔

○ يا که د څلورو مياشتو نه مخکښې واپس شو نو د قَسَم کفاره به ورکړي. او ګناه ئې معاف شوه. اوله معنیٰ غوره ده.

﴿ وَإِنْ عَزَمُوا الطَّلَاقَ ﴾ او کـه د څلورو مياشتو پوره کيدو نـه روستو هم نـهٔ راګرځي نو معلوميږي چه ددهٔ د طلاقو اراده ده. نو دهٔ دپاره طلاق ورکول هم جائز دي.

﴿ فَإِنَّ اللّٰهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴾ الله آوريدونکے، پوهه دے، ددهٔ خبره آوري او ددهٔ په نيت پوهه دے، نو قاضي به ورته حکم اُوکړي چه رجوع کوے او که طلاق اچوے نو دا به د خولے نه څهٔ اُوباسي نو الله بـه هغـه واوري يا بـه طلاق واچوي، يا به اُووائي زما رجوع ده. دا هم دليل دے چه د مودے د تيريدو نه روستو به خاوند ضرور څهٔ الفاظ وائي او خود بخود طلاق بائن نهٔ واقع کيږي. دارنګه د عزم نسبت ئې خاوندانو ته کړيدے.

د آيت پـه آخر کښې يـو قسم دهمکي ده هغه کسانو ته چه خپلو بيبيانو ته د نقصان رسولو دپاره داسے قِسم قَسمونه کوي.

**فوائد :** (۱) کـه يـو سړے د خپلے ښځے نه پټخه، شپږ مياشتے غائب شو، پدے سره ښځه نهٔ طلاقيږي ترڅو چه قَسَم ئې نهٔ وي کړے. او که قَسَم ئې هم کړے وي طلاقه نهٔ ده، بلکه هغه به په خپل اختيار طلاق اچوي، يا به رجوع کوي. اګرکه داسے غائبيدل ټيک نهٔ دي.

(۲) دا آيت دليل دے چه په هر څلور مياشتو کښې کم از کم يو کرت د خپلے ښځے سره نزديکت واجب دے ځکـه چه د ايلاء قَسـم کـولو پـه صورت کښې به خاوند د څلورو مياشتو نه روستو مجبوره کـولے شي چه يا خو د خپلے ښځے سره نزديکت اُوکړي يا طلاق ورکړي. دا وجه ده چه عمر فاروق ﷺ يـوه شپـه د خلـقـو د احـوالو معلومولو دپاره ګرځيدو نو د يوے زنانه نه ئې اشعار واوريـدل چه د خاوند ارمان ئې کولو، نو هغه ترے صبا تپوس اُوکړو، هغے اُووئيل چه زما خاوند د عراق په فوج کښې وتلے دے. نو عمر فاروق ﷺ د ښځو نه. په يو روايت کښې دي چه د خپلے لور حفصےؓ نه ئې تپوس اُوکړو چه ښځه څومره موده د خاوند نه صبر کولے شي؟

هغوي جواب ورکړو چه دوه مياشتے. او پـه درے مياشتو کښې ئې صبر کميږي او په څلورو مياشتو کښې ئې صبر ختميږي. نو عمرؓ بس دا قانون پاس کړو چه مجاهد به په فوج کښې د څلورو مياشتو نه زيات وخت نهٔ تيروي.

(۳) پدے آيتِ کريمه کښې د څلورو مياشتو نه روستو رجوع کولو کښې کفاره نهٔ ده ذکر ليکن د شريعت عام قانون دے چه د قَسَم ماتولو په صورت کښې کفاره لازمه وي لهذا دا صورت به هم د کفارے نه مستثنیٰ نهٔ وي نو کوم فقهاء چه د کفارے قائل دي د هغوي رائے قوي معلوميږي.

| |
|---|
| وَالْمُطَلَّقَاتُ يَتَرَبَّصْنَ بِأَنْفُسِهِنَّ ثَلَاثَةَ قُرُوْءٍ وَلَا يَحِلُّ لَهُنَّ |
| او هغه زنانه چه طلاقے کړے شی، انتظار به کوی په خپلو ځانونو باندے درے حیضونه او نهٔ دی حلال دوی له |
| أَنْ يَكْتُمْنَ مَا خَلَقَ اللّٰهُ فِيْ أَرْحَامِهِنَّ إِنْ كُنَّ يُؤْمِنَّ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ |
| چه پټ کړی هغه شے چه الله پیدا کړے د دوی په رَحِمونو کښِ که چرے دوی ایمان لری په الله او په ورځ روستنئ: |
| وَبُعُوْلَتُهُنَّ أَحَقُّ بِرَدِّهِنَّ فِيْ ذٰلِكَ إِنْ أَرَادُوْا إِصْلَاحًا |
| او خاوندان د دوی ډیر لائق دی په واپس کولو د دوی په موده د عدت کښِ که دوی غواړی اصلاح لره، |
| وَلَهُنَّ مِثْلُ الَّذِيْ عَلَيْهِنَّ بِالْمَعْرُوْفِ |
| او دپاره د ښځو حقونه شته په شان د هغه حقونو چه په هغوی باندے دی، په ښائسته طریقے سره |
| وَلِلرِّجَالِ عَلَيْهِنَّ دَرَجَةٌ وَاللّٰهُ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ ﴿۲۲۸﴾ |
| او د سړو دپاره په هغوی باندے اُوچته درجه ده او الله غالبه، حکمتونو والا دے۔ |

**تفسیر**: ددے ځائے نه روستو د طلاق، عدت، رجوع او د عشرة النساء (زنانو سره د ژوند تیرولو) مسائل بیانوی ځکه چه عربو پدے کښِ ډیر ظلمونه پیدا کړی وو۔

دارنګه اُوس زمونږ زمانه کښِ غټ ظلم شروع دے، جهالت عام دے ځکه چه د طلاقو په احکامو صحیح عمل د سره نشته اِلا مَنْ رَّحِمَ اللّٰهُ۔

نو الله تعالیٰ حقدارو ته حق ورکوی او ظلم رد کوی۔ عربو به خپلو ښځو له طلاقونه ورکول کله چه به ئے عدت پوره کیدو، نو بیرته به ئے ورته رجوع اُوکړه او سلسله به همدغه شان چلیده نو ښځه به نهٔ خاوند والا وه، او نهٔ به بے خاونده وه۔ او دا طلاق به کله سلو ته هم اُورسیدل۔ نو الله تعالیٰ د طلاقے شوے ښځے عدت مقرر کړو چه درے حیضه دی ددے په تیریدو به ښځه د سړی نه ځی۔ بیرته د رجوع حق نشته۔ او طلاق صرف درے دی۔ زیاتو طلاقو ورکولو ته ضرورت نشته۔

پدے آیتِ کریمه کښِ مسئله د عدت ده۔ یعنی د داسے طلاقے شوے ښځے عدت بیان شویدے چه هغه آزادے وی ځکه چه حدیث کښِ دی: [طَلَاقُ الْأَمَةِ ثِنْتَانِ وَعِدَّتُهَا حَيْضَتَانِ] د وینځے طلاق او عدت دوه دی) ...... (رواه ابوداود ۲۱۸۹ باسناد فیه بعض المقال وروی الدارقطنی والبیهقی نحوه عن عمر موقوفاً وسنده صحیح ارواء الغلیل(۷/ ۱۵۰)]

دویم دا چه ذوات الاقراء (حیض والا) وی یعنی د هغې ماهواری لا بنده شوې نهٔ وی، که حیض ئې نهٔ راتلو، د هغې عدت درې میاشتې دی. دریم دا چه ذوات الاحمال به نهٔ وی (یعنی حاملې به نهٔ وی ځکه د حاملې عدت د حمل په زیږولو دے). څلورم دا چه (مدخول بِهَا) وی یعنی د هغې سره خاوند نزدیکت کړې وی. ځکه که دخول ورسره نهٔ وی شوے، نو د هغې هم عدت نشته. لکه سورة الاحزاب (٤٩) آیت کښې راځی ﴿فَمَا لَكُمْ عَلَيْهِنَّ مِنْ عِدَّةٍ تَعْتَدُّونَهَا﴾ نو داسې ښځې ته (چه دا شرطونه پکښې وی) که دهغې خاوند طلاق رجعی ورکړی نو دهغې عدت به درې حیضه وی.

قُرُوْءٍ جمع د قَرْءٌ دهٔ، ددې په لغت کښې دوه معانی راځی. حیض او طهر، او دواړو ته علماؤ تلل کړیدی، لیکن دلته غوره معنیٰ د حیض دهٔ. لکه د عدت د حکمت نه معلومیږی، یعنی درې حیضه به تیروی، دې دپاره چه معلومه شی چه د هغې په رَحِم کښې بچے نشته دے.

او مقصد پدې کښې دا دے چه د خلقو نسب ګډوډ نشی. پدې وجه ښځې دپاره دا حرام دی چه هغه د خپل رَحِم حالت پټ کړی. که حمل پټ کړی نو بچے به د خپل پلار نه غیر بل چا سره پیوسته شی چه دهغې به ډیرې خرابې نتیجې راوځی. بچے به د خپل خاندان او د میراث حق نه محروم شی، مَحرمې ښځې به د هغه نه پرده کوی، بلکه ممکن ده چه هغه د خپلې محرمې ښځې سره وادهٔ اُوکړی.

دغه شان کوم پردی پلار ته چه ددهٔ نسبت کیږی د هغه د مال ناجائز وارث به جوړیږی، دهغه د ښځو غیر شرعی مَحرم به جوړیږی، او د شر او د فساد داسې دروازې به راکولاویږی چه هیڅوك به ئې نشی بندولې، د مثال په طور که هغه ښځه حمل پټ کړی او بل چا سره وادهٔ کوی، نو دا وادهٔ به حرام وی، او د بل سړی د هغې سره جماع کول به زنا وی. او که حیض پټ کړی او وائی چه د طلاق نه روستو درې حیضونه تیر شو، نو دې د خپل خاوند د رجوع حق ختم کړو، او خپل ځان ئې د بل سړی دپاره په غیر شرعی طور سره مباح کړو، او که وائی چه لا درې حیضونه نهٔ دی تیر شوی، او حال دا چه هغه تیر شوی وی، نو دا په ناحقه سره طعام او نفقه غواړی چه ددې دپاره حرام دی، او که خاوند دې ته رجوع کوی، نو د هغې سره به نزدیکت حرامیږی، ځکه چه د عدت د تیریدو نه روستو نوے نکاح (نوے تړون) ضروری وو.

## د عدت په مقررولو کښې حکمتونه :

شریعت چه عدت مقرر کړے پدې کښې ډیر مصلحتونه او فائدې دی :

(۱) ...... یو دا چه د ښځې د خیټې بچے معلوم شی لکه چه مخکښې تیر شو.

(۲) ...... د طلاق په وجه چه کوم وقتی طور سره ناراضګی او خفګان راځی، نو دواړه فریقین

ښځه په سوچ سره هغه ختم کړي او بیرته مصالحت اُوکړي ځکه چه کیدے شي چه خاوند د غصے په وجه طلاق ورکړی وي۔

(٣) ...... رفع الندامة : کله دواړه فریقین په طلاق باندے خفه وي، نو شریعت ورته د عدت موقعه ورکړه چه پدے کښې دواړه یو بل ته رجوع کولے شي۔ که عدت نهٔ وے نو انسان کمزورے دے، د هغه نه به لوئی نقصان کیدے چه تدارك به ئے ممکن نهٔ وے۔

(٤) ...... که د ښځے سمدست بل چا سره نکاح کیدل جائز وے، نو ممکن ده چه د ښځے په خیټه به حمل وے، د هغے نسبت به د خپل پلارنه علاوه بل چا ته کیدے، نو د ماشوم نسب به ګډوډ کیدے۔ پدے کښې نور حکمتونه هم شته چه الله تعالیٰ ته بهتر معلوم دي۔

﴿ يَتَرَبَّصْنَ بِأَنْفُسِهِنَّ ثَلَاثَةَ قُرُوْءٍ ﴾ درے حیضه به د خاوند په کورکښې تیروي چه دا پرے تیر شو نو بیا به په خپله مخه ځي۔ او د طلاق سره سمدست به همداسے د کور نه نهٔ اُوځي، د عجمو په شان کار به نهٔ کوي چه ښځے ته اُووائي: ځه طلاقه مے کړے، نو سمدست ئے د کور نه شړي، نهٔ نفقه ورکوي او نهٔ د اُوسیدو ځائے، حال دا چه د شریعت په قانون کښې تر درے حیضونو پورے به ښځه د خاوند په کورکښې وي، په هغه باندے د ښځے نفقه لازمه ده۔ ځکه چه دا د خاوند د حق پوره کولو دپاره ناسته ده۔

﴿ بِأَنْفُسِهِنَّ ﴾ : دا لفظ ئے ورسره د زیات تاکید دپاره اُوئیلو چه ښځه به ځان مضبوط راګیروي ځکه چه ښځه چه طلاقه شي نو د هغے خوښي دا دے چه هغه ځان ویستل غواړي، شریعت ورته وائي چه تهٔ به د نفس خلاف کوے او زړول به هم کوے، او درے حیضونه به انتظار کښې اُوسیږے، کیدے شي چه تا ته خاوند رجوع اُوکړي۔

﴿ وَلَا يَحِلُّ لَهُنَّ أَنْ يَكْتُمْنَ مَا خَلَقَ اللهُ فِيْ أَرْحَامِهِنَّ ﴾[أَيْ مِنَ الْحَيْضِ وَالْوَلَدِ] که د دوي په رحمونو کښې الله تعالیٰ حیض پیدا کړے وي یا بچي لره، نو هغه به نهٔ پټوي، یعني یوه ښځه طلاقه شوه، درے میاشتے تیروي لګیا ده او دا وائي چه یو میاشت کښې زما درے حیضه راغلل، او حال دا چه نهٔ وي راغلي، دروغ وائي، ځان زر فارغوي، نو دا ورله جائز نهٔ ده۔ او یا دا چه ددے په رَحِم کښې بچے نشته، او دا وائي چه زما په خیټه کښې بچے دے، زهٔ به نهه میاشتے ناسته یم۔ غرض ئے دا وي چه دا خاوند راته رجوع اُوکړي، یا د خاوند نفقے ته ئے اړولي وي۔ دا دواړه کارونه به نهٔ کوي، بلکه صحیح حال به وائي۔

﴿ إِنْ كُنَّ يُؤْمِنَّ بِاللهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ ﴾ یعني که چرته مؤمنه وي نو دا کار به نهٔ کوي۔ دا دواړه قیدونه ئے د زیات تاکید دپاره اُوئیل ځکه چه ددے په دے حالت کښې دروغ وئیلو باندے ډیرے

غلطے نتیجے مرتبے کیږی چه د هغے بیان مخکښ اُوشو۔

﴿ وَبُعُوْلَتُهُنَّ اَحَقُّ بِرَدِّهِنَّ فِيْ ذٰلِكَ ﴾

اُوس الله تعالیٰ خاوند ته ترغیب ورکوی چه پدے عدت کښ دے ښځے ته رجوع اُوکړه۔ یعنی د عدت د مودے په دوران کښ خاوند ته دا حق حاصل دے چه که هغه د کورسازولو او تعلقاتو برحال کولو اراده لری، نو ښځے ته بیرته رجوع کولے شی۔ شریعت کښ د ښځے او خاوند تعلق ته ډیر اهمیت ورکړے شویدے۔ ددے تعلق ختمیدل صرف په هغه صورت کښ برداشت شویدی چه کله د کور جوړولو هیڅ امکان باقی پاتے نۀ شی۔ پدے وجه شریعت ورته دا موده د عدت ورکړه چه د دوارو کور جوړ شی۔

او ددے رجوع شرط ئے دا اُولګولو چه دا رجوع به په هغه وخت کښ کول جائز وی چه د سړی به اراده د اصلاح وی، یعنی د محبت او د خوشحالئ سره به ازدواجی ژوند تیروی، او پدے سره به د ښځے هیڅ قِسم تنګولو او په هغے باندے د ظلم کولو اراده نۀ وی بلکه که مقصد پدے کښ د جاهلیت والو په شان تنګول وی، نو بیا به دا لوئی ظلم وی چه د الله د ناراضګئ سبب به جوړیږی۔

(فِيْ ذٰلِكَ) یعنی په عدت کښ۔ که سړی په عدت کښ رجوع اُوکړه، نو د درے طلاقونو نه د دوه طلاقو مالك پاتے شو، او د یو طلاق واك ئے ختم شو۔ بیا که په بله موقعه کښ طلاق ورکوی، نو بیا هم دغه شان په عدت کښ دننه رجوع کولے شی، بیا به د یو طلاق مالك پاتے وی، او که په ژوند کښ په بله موقعه ئے طلاق ورکړو، نو بیا ئے عدت ختم دے او ښځه به ترے ځی، بیرته ورته د رجوع حق نۀ لری، بلکه ښځه به په خپله خوښه بل خاوند اُوکړی، او که هغهٔ په خپله خوښه طلاقه کړه او د هغه نه ئے عدت تیر شو، نو بیرته ئے اول خاوند کولے شی۔ په دویم خاوند به دا شرط لګول غلط وی چه تۀ دا ښځه د یو څو ورځو یا یوے شپے دپاره په نکاح واخله، او صبا له بیرته ورله طلاق ورکړه چه ما له بیرته حلاله شی۔ دا سراسر ظلم او د الله د حدودو نه تجاوز دے چه نن صبا ډیر مُلیان پکښ اخته دی۔

او که مثلاً سړی یو طلاق ورکړو، او پدے کښ عدت تیر شو نو تجدید د نکاح به اُوکړی یعنی نکاح به تازه کړی، لکه څنګه ئے چه اوله نکاح کړے وه سره د مهر، خطبے، اعلان او ګواه وغیره کارونو نه۔

﴿ وَلَهُنَّ ﴾ اُوس عشرة النساء (زنانو سره ښهٔ ژوند تیرول) بیانوی : چه د طلاق موقعه ولے راځی؟ څکه چه خاوند د ښځے او ښځه د خاوند حق نۀ ادا کوی، نو د دوارو په یو بل حقونه بیانوی۔ خاوندانو له دا ګمان نۀ دے پکار چه حقوق صرف زمونږ دی، او د ښځو هیڅ حق نشته لکه بعض متکبر خلق ښځه د حیواناتو نه هم بد تره ګنړی بلکه لکه څنګه چه په دوی باندے د

خاوندانو متعلق فرائض او ذمه واريانې او حقوق دي، نو دغه شان د عرف او دستور مطابق په خاوندانو باندې د ښځو حقوق هم شته. نو د هرخاوند دا فريضه ده چه د خپلو حقوقو د مطالبې سره سره د ښځې د حقوقو لحاظ هم اُوساتي، پدې سره به ئې كورنئ جوړه وي. بيا ددې هيچرې دا معنیٰ نۀ ده چه ښځه د خاوند سره په هر اعتبار بالكل برابره ده، بلكه دلته مطلب دا دې چه د دواړو دپاره په ازدواجي ژوند كښې په يو بل باندې حقوق شته، او د هغې خيال ساتل دواړو له پكار دي چه ژوند برابر شي.

او د ښځې او د خاوند په ټولو كارونو كښې د مساوات نظريه كومه چه د مغرب نه راوړې شويده، بالكل د شريعت د اصولو خلاف ده او روستو الفاظو سره ددې صريح رد شويدې ﴿وَلِلرِّجَالِ عَلَيْهِنَّ دَرَجَةٌ﴾ چه د سړو دپاره په ښځو درجه د فضيلت او زياتي حق حاصل دې. په فطري قوتونو كښې ښځه د سړي سره برابره نشي كيدې، دغه شان د جهاد په اجازت كښې، د ميراث په دوچنده كيدو كښې، په قواميت (نظام چلولو) او حاكميت (مشرئ) كښې او په اختيار د طلاق او رجوع وغيره كښې. ابن عباسؓ فرمائي: د سړو درجه پدې وجه ده چه هغوی ښځو ته مهر وركوي او انفاق پرې كوي. بعض وائي په گواهئ او په عقل كښې غوره دي. (بغوی)

او په صحيح حديث د ترمذي كتاب الرضاع كښې د ابو هريره ﷺ نه روايت دې چه نبي كريم ﷺ اُوفرمايل: ((كه ما يو تن ته حكم كولې چه سجده بل تن ته اُوكړي نو ما به خامخا ښځې ته حكم كولې چه خاوند ته سجده اُوكړي)). (صححه الالباني)

څكه چه د خاوند په ښځه باندې ډيرزيات حقوق دي. او په روايت د ابن ماجه كښې دي چه كه خاوند ښځې ته اُووائي چه د سورغر نه كاڼړي تورغرته يوسه او د تور غر نه سور غرته يوسه نو هغه به ئې وړي). (ابن ماجه (۱۸۵۲) وفي سنده مقال) او هغې له جائز نۀ دي چه ددې نه انكار اُوكړي اگركه پدې كښې فائده هم نۀ وي. او كه په تنور باندې ولاړه وي او خاوند ورته آواز اُوكړي او ډوډئ ترې سوزي نو هم د خاوند تابعداري به كوي. لكه دا خبره د احاديثو نه ثابته ده.

او صحيح حديث كښې دا هم دي: ((كه په خاوند د قدم نه تر سره پورې دانه وي چه د هغې نه وينې زوې بهيږي او بيا ښځه هغې ته مخامخ شي او هغه په ژبه څټي نو (بيا به هم) د خاوند حق ادا نكړي)) (صحيح الترغيب والترهيب ۱۹۳۶)

## حقوق النساء

بيا د ښځو حقوق د عرف عام مطابق خوراك، څكاك، جامې، ښائسته سلوك او د اُوسيدو ځائې وركول يعني پراخې كوټه وركول. او د هغې سره نزديكت كول دي.

او حديث کښې دي: «په مخ به ئې نۀ وهې، کنځل به ورته نۀ کوې او هجران به ورسره په کور کښې کولے شې۔ بهر ته به نشي شړلے کيدے۔ (ابوداود ۲/۲۴۴) احمد ۴/۴۴۷ وسنده صحيح)۔

او د ښځې دپاره به ډول کوي۔ ابن ابي حاتمؒ، ابن ابي شيبةؒ، عبد الرزاقؒ او حاکمؒ د ابن عباسؓ نه روايت کړے [اِنِّىْ لَاُحِبُّ اَنْ اَتَزَيَّنَ لِلْمَرْاَةِ كَمَا اُحِبُّ اَنْ تَتَزَيَّنَ لِىَ الْمَرْاَةُ] (زۀ خوښوم چه ښځې ته ځان ښائسته کړم لکه څنګه چه خوښوم چه ښځه ما ته ډول اُوکړي)۔ (ابن كثير)۔

لهذا نسوار به نۀ اچوي او خپله بدبوئي به زائله کوي، هسې نۀ چه ښځه ددۀ نه تنګه وي خو د حياء د وجه نه به څۀ نشي وئيلے۔ او بالمعروف ئې اُووئيل چه د شريعت مطابق به وي، که زنانه د تي وي او نورو ګناهونو مطالبه کوله نو دا ئې حق نۀ دے۔

**فائده:** د ښځو حقوق ئې مقدم کړل دپاره د اهتمام کولو او خيال ساتلو، ځکه چه د پخوا نه د ښځو حقوق ضائع کيږي، او غالباً سړي د هغوي د حقوقو خيال نۀ ساتي۔

او (لَهُنَّ) ظرف ئې مقدم کړو، دے دپاره چه ددے خبر اهتمام اُوکړے شي او آوريدونکي مسند اليه ته متوجه شي۔

**فائده:** معروف هغه شي ته وائي چه صحيح طبيعتونه ئې پيژني، او انکار ترے نۀ کوي او عقل ئې قبلوي، او د کرامة النفس موافق وي، او شريعت د هغې اقرار کوي۔

د بالمعروف نه علماؤ دليل نيولے دے چه ښځه باندے د خاوند خدمت واجب دے چه هغه له وړه واغړي، ډوډۍ او ترکاري تياره کړي او نور خدمتونه کوم چه په عرف کښې ښځه د خاوند دپاره کوي۔ او پدے باندے شيخ الاسلام ابن تيميةؒ د مالکيه ؤ موافق فتویٰ ورکړے، او دا قول د ابوبکر بن ابي شيبةؒ او ابو اسحاق الجوزجانيؒ دے۔

او په احاديثو کښې هم ددے ډير دلائل موجود دي۔ نبي ﷺ په خپل لور فاطمةؓ باندے دا فيصله کړے وه چه د کور خدمت به کوي۔ (رواه الجوزجاني من طرق) نو پدے کښې رد دے په هغه بعض فقهاؤ چه دا خدمت واجب نۀ ګڼړي۔ (القاسمي)۔

﴿وَاللّٰهُ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ﴾ دا دوه صفتونه ئې راوړل چه الله عزيز دے پدے وجه د هغه حق دے چه هغه حکم اُوکړي، او هغه حکيم دے هر حکم چه کوي هغه په حکمت بناء وي، بندګانو له بغير د چون وچرا نه هغه منل پکار دي۔ که بندګان د الله د احکامو مخالفت کوي، نو پدے کښې د الله غيرت او عزت چيلنج کوي، او د هغه عذاب ته دعوت ورکوي۔

## فوائد ومسائل

شریعت د طلاقو دپاره اصول مقرر کړي چه په دے کښې بے شماره حکمتونه دي او د انسانانو مصلحتونه او فائدے دي، لکه مثلاً شریعت دا وئیلي دي چه

(۱) طلاق به په غصه کښې نهٔ وي، بلکه په خپل هوش او فکر سره په خپله خوښه به طلاق ورکوي- د چا زور او خپله غصه به پرے نهٔ وي- ځکه چه طلاق هله واقع کیږي چه د سړي د ښځے نه ضرورت پوره شي- لکه په حدیث د ابن عباسؓ کښې دي: [اَلطَّلَاقُ عَنْ وَطَرٍ] [صحیح البخاری ٥/٢٠١٧] طلاق د ضرورت د پوره کیدو نه وي-

(۲) دویم دا چه طلاق به په طهر کښې وي ځکه چه په حالت د حیض کښې ښځه ګنده وي، نو کیدے شي چه د سړي ترے پدے وخت کښې نفرت پیدا شوے وي، او بیا به ئے په طهر کښې ورته توجه پیدا شي نو خفه به وي- نو ځکه شریعت د طهر شرط اُولګولو-

(۳) دریم په هغه طهر کښې به طلاق وي چه جماع ئے پکښې نهٔ وي کړي، ځکه چه کله انسان جماع اُوکړي نو د هغه په محبت او شوق کښې کمے راځي، نو کیدے شي چه دهٔ صبا له محبت زیات شي بیا به پښیمانه شي- نو هرکله چه دا په حالت د محبت کښې چه ښځهٔ ضرورت ئے ښځے ته شته او بیا هم طلاق ورکوي، معلومیږي چه دا طلاقو ته محتاج دے-

(٤) بیا د طلاقو ورکولو نه پس سمدست د ښځے تلل هم نشته، بلکه عدت به تیروي کیدے شي چه سړے پښیمانه شي او رجوع اُوکړي- لیکن هرکله چه درے میاشتو پورے د سړي توجه نهٔ پیدا کیږي، نو معلومیږي چه دا په طلاق ورکولو کښې رشتینی دے-او بیا به ئے په رجوع نهٔ کولو کښې عذر هم نهٔ وي-

(٥) شریعت د طلاقو واک سړي له ورکړے ځکه چه د ښځے سینه تنګه ده، هغهٔ په معمولي خفګان سره طلاقونه اچوي، او بیا زر پښیمانه کیږي- ښځه چه کله خفه شي نو تول خیرئے د زړهٔ نه اُوځي او چه کله رضا شي نو بیائے هیڅ خفګان په زړهٔ کښې نهٔ وي، په خلاف د سړي نه چه د هغه کله د ښځے سره ورانه شي، نو هم د هغه عقل باقي وي، او محبت ئے وي او په معمولي خبرو طلاق نهٔ ورکوي، عاقبت ته ګوري- او کله چه رضا شي نو بیائے هم څه نا څه خفګان په زړهٔ کښې باقي پاتے کیدے شي- په زړهٔ کښې ئے ژور والے زیات وي-

اَلطَّلَاقُ مَرَّتَانِ فَإِمۡسَاكٌۢ بِمَعۡرُوفٍ أَوۡ تَسۡرِيحٌۢ بِإِحۡسَانٍ وَلَا يَحِلُّ

طلاق (رجعی) دوه ځله دي، نو ساتل دي د ښځے په ښائسته طریقے یا پریخودل دي په ښائسته طریقه او جائز نهٔ دي

لَكُمْ أَنْ تَأْخُذُوا مِمَّا آتَيْتُمُوهُنَّ شَيْئًا إِلَّا أَنْ يَخَافَا

ستاسو دپاره چه واخلئ د هغه مال نه چه تاسو ورکړے دے ښځو ته هيڅ شے مګر که يريږی ښځه او خاوند

أَلَّا يُقِيمَا حُدُودَ اللَّهِ فَإِنْ خِفْتُمْ أَلَّا يُقِيمَا حُدُودَ اللَّهِ

چه وُبه نهٔ دروی پولے د الله تعالیٰ نو که چرے تاسو يريدلئ چه دا ښځه او خاوند به اُونهٔ دروئی پولے د الله

فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا فِيمَا افْتَدَتْ بِهِ تِلْكَ حُدُودُ اللَّهِ

نو نشته دے ګناه په دے دواړو په هغه مال کښ چه ښځه په بدله کښ ورکړی هغه (مال) لره۔ دا د الله پولی دی

فَلَا تَعْتَدُوهَا وَمَنْ يَتَعَدَّ حُدُودَ اللَّهِ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الظَّالِمُونَ ﴿۲۲۹﴾

نو مهٔ تيريږئ ددے نه او څوک چه تير شی د الله د پولونه نو همدغه کسان ظالمان دی۔

## د طلاق رجعی بيان

**تفسير:** اُوس نور احکام بيانوی، طلاق رجعی او د هغے نه روستو رجوع کول يا نهٔ کول، او د ښځے نه د مهر واپس اخستلو نه منع او د خلع مسئله ذکر کوی۔

د جاهليت په زمانه او د اسلام په ابتداء کښ دا طريقه وه چه خلقو به خپلو ښځوته بغير د تحديد او شمار نه طلاقونهٔ ورکول، د يو طلاق د موده ختميدو نه مخکښ به ئے رجوع کوله، او بيا به ئے طلاق ورکولو او مقصد به پدے کښ ښځو ته نقصان ورکول وو، دے ظالمانه کار د ډيرو ښځو ژوند تنګ کړے وو۔

عائشه رضی الله عنها وائی چه يو سړی خپلے ښځے ته اُووئيل چه زهٔ به تا نهٔ د ځان نه جدا کوم او نهٔ به درته پناه درکوم، ښځے اُووئيل دا څنګه؟ نو هغه اُووئيل چه زهٔ به تا ته طلاق درکوم او هر ځل به د عدت تيريدو نه مخکښ تا ته رجوع کوم۔ هغه ښځه د عائشے رضی الله عنها خوا ته راغله او هغے ته ئے دا خبره اُوکړه۔ نو عائشۀ غلے شوه، کله چه رسول الله ﷺ کور ته راغلو، هغه ته ئے دا واقعه بيان کړه، نبی ﷺ هم غلے شو۔ تردے چه دا آيت نازل شو چه خاوند به د دوه ځل طلاق ورکولو نه روستو يا خو رجوع کوی يا به درے طلاقه ورکوی۔ دے نه روستو چه ښځه هر چرته غواړی او چا سره غواړی نکاح کولے شی، خاوند به د نورو طلاقونو او رجوع حق نهٔ لری۔ نو الله تعالیٰ دا ظالمانه رواج ختم کړو۔ (ابوداوٗد، ترمذی)

﴿ اَلطَّلَاقُ مَرَّتٰنِ ﴾ الطلاق په معنیٰ د اَلتَّطْلِيْقُ دے لکه سلام په معنیٰ د تسليم دے۔ يعنی طلاق

ورکول۔ او دا مبتدا ده چه مضاف ئې حذف دے۔ حاصل د عبارت داسے دے :
[عَدَدُ الطَّلَاقِ الَّذِیْ يَسْتَحِقُّ الزَّوْجُ فِيْهِ الرَّدَّ وَالرَّجْعَةَ مَرَّتَانِ] (قاسمی) یعنی هغه طلاق چه دهغے نه روستو خاوند مستحق وی چه په هغے کښې ښځې ته رجوع اُوکړی، هغه دوه ځله دی یعنی دوه دی)۔ مَرَّتَانِ (دوه ځله) په معنیٰ د اِثْنَتَانِ (دوه) سره دے، لیکن مرتان ذکر کولو کښې اشاره ده چه طلاق به یو کرت پس د بل کرته نه ورکولے شی او په یو ځل به تول طلاق غورزول صحیح نهٔ وی، اګرکه پدے کښې هم رجوع صحیح ده، لیکن دا طریقه د سنت خلاف ده۔ لکه څنګه چه عجم خلق پدے غلطه طریقه روان دی چه تول طلاق په یو ځل ګوزاری۔
بیا د (مَرَّتَانِ) دا مطلب نهٔ دے چه درے طلاقه نشته، بلکه معنیٰ دا ده چه رجعی طلاق دوه ځله دی چه روستو دهغے نه خپلے ښځې ته رجوع صحیح کیږی، نوکه یو طلاق ئے ورکړونو بیرته رجوع کولے شے، او بل وخت ئے بل طلاق ورکړو، بیا هم رجوع کولے شے، خو چه دریم ئے ورکړو نو بیا رجوع نشے کولے بیا ښځه ستا د نکاح نه ختمه شوه۔
نو الله تعالیٰ پدے آیت کښې دا حکم کړیدے چه کهیو خاوند خپلے ښځې ته طلاق ورکول غواړی، نو هغه له په یو طهرکښې یو طلاق ورکول پکار دی۔ دے نه روستو که رجوع نهٔ کوی، نو بیا په دویم طهر کښې دویم طلاق ورکول پکار دی۔
**فائده:** د آیت نه دا خبره هیچرے نهٔ معلومیږی چه که یو شخص یو ځل دوه طلاقه ورکړی، نو دواړه واقع کیږی۔ د دویم طلاق نه روستو که غواړی نود عدت تیریدو نه مخکښې دے رجوع اُوکړی۔ اوکه نهٔ وی نو دریم طلاق دے ورکړی او همیشه دپاره دے د زوجیت رشته ختمه کړی۔

## د درے طلاقو مسئله

الله تعالیٰ ته دا خبره خوښهٔ ده چه د ښځې او خاوند د ازدواج رشته دے د اُلفت او محبت په فضاء کښې همیشه دپاره قائمه وی او که څهٔ عارضی اختلاف پیدا شی، نو دهغے د لرے کیدو کوشش دے اُوکړے شی۔ پدے وجه الله تعالیٰ د یو بل پسے د درے طلاقو مهلت ورکړو، دے دپاره چه انسان ته باربار د سوچ موقعه ملاؤ شی۔ او عارضی ناراضګی ختمه شی، او خاوند ښځې ته رجوع اُوکړی، که یو طلاق د رجوع نه مانع وے، نو دا عظیم مصلحت به ختم شوے وے، او ډیر خاندانونه به تباه شوی وے، او د مسلمانانو په معاشره کښې به داسے خرابیانے پیدا شوی وے چه د هغے تدارك به ممکن نهٔ وے۔
دغه شان که په یو ځل درے طلاقه یا په یو مجلس کښې درے طلاقه نافذ کړے شی نو هغه خرابیانے به پیدا کیږی چه د هغے نه د بچ کیدو دپاره الله تعالیٰ درے طلاقونه په جدا جدا طهر

کښې ورکولو حکم کړېدے، ډیر خاندانونه به تباه شي، او ډیر بچې به د هلاکت په لاره روان شي، او د ډیروے ګناه ښځو په ژوند به اُور صرف پدے وجه اُولګی چه د هغے خاوند په وقتی توګه سره په غصه کښې راغلو او درے ځله ئے د طلاق کلمه د خپلے ژبے نه ویستلے ده۔ پدے وجه د شریعت مصلحت دا دے چه یو جاهل سړی دپاره درے طلاقه په یو ځل ورکول خاصکر چه هغه دا کار مخکښې کله کړے هم نهٔ وی او بیا پښیمانه شي نو شریعت ئے په یو بدلوی۔

لکه د نبی ﷺ او د ابوبکر صدیق رضی الله عنه په زمانه کښې او د عمر فاروق رضی الله عنه په ابتدائی دورِ خلافت کښې بالاتفاق د یو مجلس درے طلاقونه به یو شمار کیدل۔

۱- **دلیل** : امام مسلم د ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت کړېدے چه د نبی ﷺ په دَور او د ابوبکر صدیقؓ او د عمر فاروقؓ په ابتدائی دوه کالو کښې به درے طلاقه یو منل کیدل۔ عمر فاروق رضی الله عنه (د خپل خلافت په دَور کښې اُویدل چه خلقو ډیر طلاقونه ورکول شروع کړیدی نو) وے وئیل چه خلقو پدے معامله کښې د جلتئ نه کار اخستل شروع کړیدی پدے وجه مونږ به درے طلاقونه درے نافذ کوو۔ نو هغوی نافذ کړل»۔

۲- **دلیل** : او امام احمدؒ د ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت کړے چه رکانه بن عبد یزید خپلے ښځے ته په یو مجلس کښې درے طلاقونه ورکړل، دے نه روستو هغه پدے باندے ډیر غمجن شو نو رسول الله ﷺ د هغه نه پوښتنه اُوکړه چه تا څنګه طلاق ورکړی؟ هغه اُووئیل چه په یو ځل مے درے طلاقه ورکړیدی۔ نبی ﷺ پوښتنه اُوکړه چه آیا په یو مجلس کښې؟ هغه اُووئیل، آو۔ نو نبی ﷺ اُوفرمایل چه دا ټول به یو طلاق شمار کیږی۔ که غواړے نو رجوع اُوکړه!» نو هغه رجوع اُوکړه۔ (صحیح ابی داود : ۱۹۰۶ للالبانی)

۳- **دلیل** : په لغت او عرف کښې هم دا خبره ده، لکه حدیث کښې دی چه څوک په ورځ کښې (سُبْحَانَ اللهِ وَبِحَمْدِهٖ) سل کرته اُووائی نو ګناهونه به ئے معاف شي اګرکه د دریاب د ځګ په اندازه وی۔ نو دلته د سل کرتونه مراد دا نهٔ دے چه داسے اُووائی (سُبْحَانَ اللهِ وَبِحَمْدِهٖ مِأَةَ مَرَّةٍ) بلکه جدا جدا به دغه ذکر سل کرته کوی۔ او ټول به په یو لفظ کښې نهٔ جمع کوی۔

٤- **دلیل** : فتوی د عبد الله بن عباسؓ هم دغه شان ده۔ لکه په ابو داود نمبر (۱۹۲۶) کښې راغلے ده۔ او د ابن عباسؓ نه چه د درے طلاقو واقع کیدو کوم روایت نقل دے نو هغهٔ د هغے نه رجوع کړیده۔ (عون المعبود ٦/٢٧٣ الصواعق المرسلة (٢/٦٢١)

معلومه شوه چه عمر رضی الله عنه چه څهٔ کړی وو، نو دا د هغه خپله رائے وه چه هغهٔ دا د عام مصلحت په وجه نافذ کړی وو۔ ورنه هغهٔ ته سنت معلوم وو، او د یو مجلس درے طلاقونه حقیقی درے

طلاقونه معتبرول صرف د هغه يو تعزيراتي فيصله او اجتهادي حکم وو، دے دپاره چه خلق په آينده کښې په طلاق ورکولو کښې د جلتئ نه کار وانخلي۔
بعض علماؤ پدے مسئله باندے د قديم (پخوانئ) اجماع دعوه کړيده او ډيرو صحابه کرامو او تابعينو ددے مطابق فتویٰ ورکړيده۔
د امام داود ظاهريؒ، بعض اصحاب د مالك او د بعض احنافو هم دا قول دے۔ او د امام احمدؒ بعض اصحابو او د شيخ الاسلام ابن تيميه رحمه الله نيکه به هم دغه فتویٰ ورکوله۔ ځکه چه ددے قول تائيد او مضبوطيا په قرآن، سنت، قياس او قديمے اجماع تولو سره کيږي۔ او دے نه روستو کومه داسے اجماع نۀ ده راغلے چه هغے مخکنئ اجماع باطله ګرځولے وي۔
بعض علماء وائي چه عمرؓ به درے طلاقه واقع کول او هيڅ صحابيؓ پرے انکار نۀ دے کړے، نو دا اجماع سکوتي شوه۔ جواب دا دے چه د عمرؓ دا فيصله اجتهادي او تعزيراتي وه، او دا يوه جزئي فيصله وه چه پدے باندے هميشه عمل کول لازم نۀ دي۔ او دا داسے اجماع نۀ ده چه ددے مخالفت کول ناجائز وي، امام شافعيؒ، باقلانيؒ، امام غزاليؒ او امام رازيؒ وئيلي دي چه اجماع سکوتي شرعي حجت نۀ دے۔ (ابن عاشور ۲/۳۹۷)
بلکه دا چه ددے فيصلے نه عمر فاروقؓ رجوع هم کړيده: [مَا نَدِمْتُ عَلٰى شَيْءٍ نَدَامَتِيْ عَلٰى ثَلَاثٍ: اَنْ لَّا اَكُوْنَ حَرَّمْتُ الطَّلَاقَ الخ) لکه دا په صحيح د اسماعيليؒ کښې او په اغاثة اللهفان (۱/۳۳٦) طبع دار المعرفة بيروت) تحقيق حامد الفقي) د ابن القيمؒ کښې په حسن سند سره موجوده ده۔ عمر فاروق پدے فيصله پښيمانه شوے وو۔ ددے په سند کښې خالد بن يزيد بن ابي مالك حسن الحديث راوي دے۔ عثمان بن ابي شيبه او احمد بن صالح المصري او عجلي او ابوزرعة الدمشقي ورته ثقه وئيلے دے۔ (تاريخ اسماء الثقات ۱/۷۷) د ابن شاهين۔
اُوس کله چه حالات بدل شو او د حلالے د نکاح بازار ګرم دے او خلق په حرام کارئ کښې اخته دي، او جهالت دومره عام دے چه اکثر خلق پدے پو هيږي هم نۀ چه د يو مجلس درے طلاقه به درے ګڼلے کيږي۔ ضرورت دے چه د رسول الله ﷺ او د هغه د خليفه سنت ژوندي کړے شي، دے دپاره چه د فتنو دروازه بنده شي او د حلالے نکاح رواج ختم شي۔ ځکه چه هر خير د قرآن او سنت په اتباع کښې دے او هر شر او هره بدي د دے دواړو نه په انحراف او اعراض کښې ده۔ د حلالے نکاح دے ته وائي چه درے طلاقه ورکړي او بيائے د يو شپے يا دوه شپو دپاره بل سړي ته ورکړي چه هغه ورسره نزديکت اُوکړي بيائے اول خاوند ته پريدي او دا شرط هم ورسره لګوي چه دا د يوے شپے دپاره په نکاح واخله خو صبا ته بهٔ ئے پريدے، نۀ په کښې مهر مقرر وي، او نۀ پکښې

اعلان او خطبه وی، بلکه په پټه نکاح ترې، نو دے ته رسول الله ﷺ اَلتَّیۡسُ الۡمُسۡتَعَار وئیلے دے۔ یعنی هغه چیلے چه د خپلو بزو دپاره راوستے شی دے دپاره چه حمل و اخلی۔ او په حلاله کونکی باندے ئے لعنت فرمایلے دے۔ نو بعض خلق درے طلاقه په یو بدلول بد گنړی، او بل طرف ته په زنا کښې واقع کیږی۔

عمر فاروق رضی الله عنه به فرمایل: درے په درے بدل دی، لیکن حلاله حرامه ده، که چا حلاله اُوکړه زهٔ ئے رجم کوم۔ (ابن ابی شیبة)

ابن عمر رضی الله عنه وائی: دا کار به مونږ د رسول الله ﷺ په زمانه کښې زنا شمارله۔ (حاکم) (قاسمیؒ وابن کثیرؒ)۔

(د طلاق ثلاثه ؤ په باره کښې ډیر کتابونه لیکلی شوی دی هغه اُوګوره لکه د صلاح الدین یوسف، دارنګه حکم الطلاق الثلاث للدکتور محسن، دارنګه طلاق ثلاثه کا حکم۔ ابو سلمیٰ)۔

دلته یو بل صورت دے چه په اتفاق د علماؤ جائز دے، لیکن بهتر نهٔ دے چه یو سړے په بیل بیل طهر کښې یو یو جدا جدا طلاق ورکړی یعنی په درے میاشتو کښې درے طلاقه ورکړی۔ دا ځکه بهتر نهٔ دے چه انسان په ځان باندے لاره بنده کړه بیرته ورسره نکاح نشی کولے ترڅو چه بل خاوند ئے کړے نهٔ وی، او بل خاوند په خپله خوښه طلاقه کړی نهٔ وی۔ بل خاوند ورله شریعت ځکه شرط لګولے دے چه دهٔ ته الله تعالیٰ د آزادئ لاره ورکړے وه چه یو طلاق ورکړی، نو که بیرته رجوع کوی کولے ئے شی۔ لیکن هرکله چه دهٔ د شریعت د مزاج خلاف اُوکړو چه درے واړه طلاقونه ئے ضائع کړل، نو شریعت هم ددهٔ د مزاج خلاف کار کوی چه ورته وائی دا ښځه تهٔ نشے کولے تردے چه بل خاوند ورسره نکاح او نزدیکت نهٔ وی کړے۔

﴿ فَاِمۡسَاكٌۢ بِمَعۡرُوۡفٍ اَوۡ تَسۡرِيۡحٌۢ بِاِحۡسَانٍ ﴾

امساك ساتلو او بندولو ته وئیلے شی۔ او دا خبر دے مبتداء ئے پټه ده۔ [فَالۡوَاجِبُ عَلَيۡكُمۡ اِمۡسَاكٌ] په تاسو واجب دی ساتل د ښځے په ښهٔ شان سره)۔

یعنی د یو طلاق یا دوه طلاقو ورکولو نه روستو به ښځه یا ځان سره ساتی او رجوع به ورته کوی او د هغے سره به ښهٔ ژوند تیروی، یا به ئے پریدی په ښائسته شان سره۔ چه د هغې هیڅ حق ته به نقصان نهٔ ورکوی، او د جدائی نه روستو به د هغې بدی نهٔ ذکر کوی، او خلقو ته به ذ هغې نه نفرت نهٔ ورکوی۔ (قاسمیؒ)۔

دارنګه د سړی ځوانمردی دا ده چه د چا سره ئے د مهر او محبت روابط او تعلقات پاتے شویدی، نو هغه دے د خپل توفیق مطابق څهٔ تحفه وغیره ورکړی او هغه دے رخصت کړی۔ او دیته تسریح باحسان وئیلے شی۔

(تسریح باحسان). تسریح په معنیٰ د پریخودلو او آزادولو سره ده، او ددې مطلب دا دې چه ښځه پریدی او رجوع ورته نهٔ کوی تردې چه عدت ئې تیر شی. او احسان دا دې چه د هغې نه هیڅ حق نهٔ منع کوی او ضرر هم نهٔ ورکوی لکه د جاهلیت والو په شان. (ابن کثیر عن ابن عباس)

## د شرعی طلاقو ورکولو طریقه

د طلاق ورکولو صحیح طریقه دا ده چه سړے به ښځې ته په هغه طهر کښې چه جماع ئې پکښې نهٔ وی کړی، داسې اُووائی چه تهٔ طلاقه ئې په شرعی طلاقو سره، یا داسې اُووائی: د قرآن او حدیث مطابق مې طلاقه کړې، نو بس یو طلاق پرې واقع شو، او ښځه به عدت تیروی، که بیرته ئې په عدت کښې دننه اتفاق راغلو یا صرف د سړی خوښه شوه، نو دوه کسان به گواهان کینوی او ښځې ته دې رجوع اُوکړی. نهٔ پکښې مهر شته او نهٔ د ښځې رضا شرط دے. بیا به ژوند تیروی، که بیا ئې اختلاف راغلو نو طلاق به ورکړی او عدت به تیروی، بیا که عدت کښې دننه ئې رجوع کوله، نو گواهان به مقرر کړی او بغیر د رضا د ښځې نه رجوع کولے شی. خو اُوس ئې یو طلاق حق پاتې شو، او که بیا ئې اختلاف راغلو او دریم طلاق ئې هم ورکړو نو بس بیا ښځه لاړه ختمه شوه. نو په یو طلاق یا دوه طلاقو ورکولو کښې فائده دا ده چه که عدت تیر شوے نهٔ وو نو رجوع کولے شی او که عدت تیر شوے وو نو نکاح به تازهٔ کړی.

﴿ وَلَا يَحِلُّ لَكُمْ اَنْ تَاْخُذُوْا مِمَّا آتَيْتُمُوْهُنَّ شَيْئًا ﴾ :

## مسئله د خلع او مهر

اُوس مسئله د مهر بیانوی چه خاوند له دا جائز نهٔ دی چه ښځه تنگه کړی، او داسې حالات راپیدا کړی چه د هغې نه د نجات موندلو دپاره چه ښځې ته ئې څهٔ د مهر یا د هدیې په طور ورکړی وی، هغه واپس واخلی، دے دپاره چه سړے ورته طلاق ورکړی، یعنی یو سړے ښځې له د طلاق ورکولو اراده هم لری او بیا د ښځې نه مهر هم واپس غواړی، یا نورے کومې تحفې چه ئې په ژوند کښې ورکړی وی، د هغې حساب ته ئې راکاږی او د هغې مطالبه ترې کوی، نو دا ظلم او خِست او ذلت دے، او د سړیتوب او د اُوچتې حوصلې منافی کار دے ځکه چه تر اُوسه پورې ئې د هغې نه فائدې اخستې دی، د محبت ژوند ئې تیر کړیدے، دا ټولې تحفې او مهرونه د هغې په بدله کښې ختم شویدی، نو بیرته د څهٔ خبرې مطالبه کوی.

او الله تعالیٰ سړی لره په ډیرو ځایونو کښې دے فُتُوَّة او سړی توب طرفته متوجه کړیدے لکه:

﴿ وَلَا تَعْضُلُوْهُنَّ لِتَذْهَبُوْا بِبَعْضِ مَا آتَيْتُمُوْهُنَّ ﴾ [نساء: ۱۹]

(تاسو ښځې ددې دپاره مهٔ تنگوئ چه څهٔ تاسو ورکړی وی چه هغه ترې بیرته اخلئ)

بـل ځائے فرمائي :﴿ وَكَيْفَ تَأْخُذُوْنَهٗ وَقَدْ اَفْضٰى بَعْضُكُمْ اِلٰى بَعْضٍ وَّاَخَذْنَ مِنْكُمْ مِّيْثَاقًا غَلِيْظًا ﴾ [نساء :۱۲] او تاسو څنګه د دوی نه اخلئ حال دا چه تاسو یو بل ته نزدیکت کړے او زنانو تاسو نه انتهائي مضبوط لوظ اخستے دے) او روستو آیتونو کښې راځي :

﴿ وَاَنْ تَعْفُوْٓا اَقْرَبُ لِلتَّقْوٰى وَلَا تَنْسَوُا الْفَضْلَ بَيْنَكُمْ ﴾ [بقرة: ۲۳۷] (او چه تاسو معافي اُوکړئ دا تقوئ ته ډيره نزدے ده، او خپل مينځ کښې احسان مهٔ هيروئ).

﴿ اِلَّآ اَنْ يَّخَافَآ ﴾ پدے سره يو صورت مستثنیٰ کوی چه په هغے کښې سړے د ښځے نه مطالبه کولے شي، هغه دا چه کله د ښځے د خاوند سره داسے اختلاف وی چه داسے ښکاره کيږی چه دواړه به په ژوند کښې د الله د حدودو خيال نشي ساتلے او د هغے نه د خاوند حقوق نشي ادا کيدے، او کوم قيود او حدود چه د ښځے او خاوند دواړو دپاره مقرر دی، دواړه د هغے خيال نشي ساتلے، يا ښځه د څهٔ مجبورتيا په وجه ازدواجي ژوند تيرول نهٔ غواړی، نو بيا پدے کښې هيڅ ګناه نشته چه ښځه په خپله خوښه خاوند ته مال، پيسے يا باغ وغيره د فديے په طور ورکړی او خاوند راضي کړی، او د هغه نه خان آزاد کړی. د شريعت په اصطلاح کښې ديته خُلَع وائي. پدے صورت کښې چونکه غالب مصلحت د ښځے وی نو ځکه د خاوند دپاره دا مال، مهر وغيره اخستل جائز دی.

**شان نزول** : ابن جرير وائي چه دا آيت د ثابت بن قيس ﷺ په باره کښې نازل شوے وو چه د هغه ښځے د هغه نه سخت نفرت کولو.

امام بخاری رحمه الله د ابن عباس رضی الله عنهما نه روايت کړے چه د ثابت بن قيسؓ ښځه نبي کريم ﷺ ته راغله، وے وئيل : اے د الله رسوله ! زهٔ د ثابتؓ په دين او اخلاقو باندے هيڅ عيب نهٔ لګوم، ليکن د اسلام نه روستو کفر بد ګنړم يعني يريږم چه ما نه د هغه په حق کښې نافرماني اُونشي. نبي کريم ﷺ اُوفرمايل چه آيا تهٔ به هغه ته د هغه باغ واپس کړے ؟ هغے اُووئيل : آو. نو نبي ﷺ ثابت ته اُووئيل چه باغ واخله او دے ته يو طلاق ورکړه.

**فائده**: د احاديثو نه معلوميږی چه خُلع په هغه صورت کښې جائز ده چه کله د قاضي په نظر کښې د ښځے عذر ثابت شي، بغير د عذر او مجبورتيا نه که ښځه د خپل خاوند سره خُلع کوی نو پدے باره کښې په احاديثو کښې سخت وعيد راغلے دے.

په مسند احمدؒ وغيره کښې د ثوبان ﷺ نه روايت دے چه رسول الله ﷺ اُوفرمايل چه کومه ښځه د خپل خاوند نه بغير د څهٔ مجبورتيا نه طلاق غواړی، په هغے باندے د جنت خوشبوئي حرامه ده. (احمد، ابوداود، (۲۲۲٦) ترمذی (۱/۲۲۳) وغيرها وسنده صحيح)

په مسند احمدؒ کښې د ابو هریره ﷺ نه روایت دے چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل: ((چه خلع غوختونکے او خپل خاوند نه جدائی طلب کونکے ښځے منافقانے دی))۔

کما فی الصحیحة رقم (٦٣٢) وصحیح الجامع الصغیر (١٩٣٨)۔

﴿فَإِنْ خِفْتُمْ أَلَّا يُقِيمَا حُدُودَ اللَّهِ﴾

**فائده** : أَنْ يَخَافَا او فَإِنْ خِفْتُمْ نه د خلع متعلق دوه خبرے راښکاره کیږی :

(۱) اوله دا چه که ښځه او خاوند په خپل مینځ کښې څۀ خبره مقرر نکړے شی، او د دواړو ترمینځ ورانے او جګړے پیدا کیږی، نو ښځه به خامخا دا معامله د قاضی عدالت ته وړاندے کوی، او عدالت به د خلع او معاوضے دواړو فیصله کوی، خاوند ته به اُووائی چه تۀ پدے راضی شۀ، او ښځے ته به اُووائی چه تۀ مال زیات کړه وغیره۔ دا معلومیږی د (فَإِنْ خِفْتُمْ) نه ځکه چه خِفْتُمْ کښې خطاب د اسلامی حکومت قاضیانو او امیرانو ته دے، یا صالحینو مسلمانانو ته دے، کله چه اسلامی حکومت نۀ وی۔ ځکه چه د خلقو په جګړو کښې به هغوی فیصله کوی۔

(۲) دویم دا چه د خُلع یا د نکاح د فسخ د مطالبے حق ښځے ته په هغه صورت کښې حاصل دے چه کله دا ثابته شی چه په ازدواجی ژوند کښې ښځه د حدود الله د قائم ساتلو نه مجبوره ده، او د ځان خلاصولو نه بغیر ددے نه ګناه واقع کیږی، حدود الله او د خاوند حقوق ترے بربادیږی۔ دا د (أَنْ يَخَافَا أَلَّا يُقِيمَا حُدُودَ اللَّهِ) نه معلومیږی۔ که هسے معمولی شان اختلاف راشی، او ښځه پکښې د طلاقو مطالبه کوی، نو د هغے سزا د مخکنو احادیثو نه معلومه شوه۔ دارنګه پداسے معاملاتو کښې به قاضی ته وړاندے شی، نو اسلامی عدالت به اُوګوری چه آیا فی الواقع د معاملے صورت همداسے دے چه د دواړو طرفینو دپاره په هغے کښې ژوند تیرول ناممکن یا ګران دی، او که نۀ صرف د ذائقه بدلولو خواهش دے؟۔ نو د هغے مطابق به عدالت فیصله اُوکړی۔

﴿فِيمَا افْتَدَتْ بِهِ﴾ یعنی خاوند له جائز دی چه د ښځے نه دا مال واخلی، دے دپاره چه خاوند پرے ځان له بیله ښځه اُوکړی۔

**فائده**: صاحب اللباب ابن عادل الدمشقیؒ لیکلی دی چه د خاوند او ښځے په یره کښې څلور اقسام دی:

(۱) ...... اول دا چه د ښځے د طرف نه یره وی چه هغه خپل خاوند بد ګنړی، او نافرمانی کوی، نو خاوند له جائز دی چه په خُلع سره د هغے نه مال واخلی، لکه دا په واقعه د ثابت بن قیسؓ کښې راغلے دے۔

(۲) ...... دویم دا چه یره د خاوند د طرف نه وی چه خپله ښځه وهی ټکوی، او تکلیف ورکوی، دے دپاره چه فدیه ترینه واخلی او خلع اُوکړی۔ نو داسے صورت کښې خاوند له فدیه اخستل حرام دی۔ د وجه د مخکښې جملے نه چه (وَلَا يَحِلُّ لَكُمْ أَنْ تَأْخُذُوا)۔

(۳) ...... دريم قسم دا چه يره د يو طرف نه هم نهٔ وي، خو دواړه په خلع راضي شي نو په دے کښې اختلاف دے، اکثر اهل علمٌ وائي چه دا خلع جائز ده، او دا اخستے شوے مال حلال دے۔

(٤) ...... څلورم قسم دا چه د دواړو طرفونو نه يره وي پدے طريقه چه ښځه بد اخلاقه ده، د خاوند نه په خُلع سره د آزادئ مطالبه کوي، ليکن خاوند ئے نهٔ ورکوي، آخر دا چه خاوند تنګ کړي او هغه ئے هره ورځ د اندازے نه زياته وهي، نو هغه سره هم يره پيدا شي چه دے ښځے خو زما ايمان برباد کړو، نو پدے صورت کښې خُلع جائز ده، ليکن خاوند لره د ښځے نه فديه (مال) اخستل حرام دي. نو (فَلَاجُنَاحَ عَلَيْهِمَا) مصداق د اول قسم دے او دريم قسم هم پکښې داخل دے.

بيا دلته ئے دواړو ته د ګناه نهٔ کيدو نسبت اُوکړو، حال دا چه فديه ښځه ورکوي نو د مفرد ضمير راوړل پکار وو؟۔ ليکن دواړو ته ئے نسبت اُوکړو، وجه دا ده چه ښځه فديه ورکوي او خاوند ئے وصولوي نو دواړه پدے کار ګناهګار نهٔ دي. (اللباب)

**فائده** : آيا خلع فسخ ده او که طلاق ؟ پدے کښې اختلاف دے. د عثمان، علي او ابن مسعود رضی الله عنهم او د بعض تابعينو په نيز خلع طلاق دے، او دا مذهب د امام مالك او ابوحنيفه رحمهما الله هم دے، او د دوي په نيز په خلع کښې د دوه او د درے طلاقو نيت کول هم صحيح دي. ليکن د امام ابوحنيفةؒ په نيز به پدے صورت کښې طلاق بائن واقع کيږي، او په نيز د ابن عباسؓ طاؤسؒ او عکرمةؒ خلع فسخ (ماتول) د نکاح ده. او طلاق نهٔ دے. او دا يو قول د امام شافعيؒ او د ابوثور او اسحاق بن راهويه رحمهم الله هم دے.

او د دواړو دلائلو د احاديثو په کتابونو او تفسيرونو کښې ذکر دي. ليکن غوره دا ده چه خلع طلاق نشي ځکه چه روستو (فَإِنْ طَلَّقَهَا) سره دريم طلاق ذکر دے، نو که خلع طلاق شي، نو بيا به څلور طلاقه شي. او څلور طلاقه په اسلام کښې نهٔ وي. لکه دا دليل علامه خطابيؒ د ابن عباسؓ نه په «معالم السنن» کښې ذکر کړيدے.

بله دا چه ثابت بن قيسؓ چه کله ښځه پريخوسته، نو نبي ﷺ ورته دا حکم اُونکړو چه د دے حالت معلوم کړه چه حائضه ده او که نهٔ؟ نو که دا طلاق وے نو د ښځے تحقيق پکار وو ځکه چه په حالت د حيض کښې طلاق ورکول صحيح نهٔ دي.

بله دا چه د ابن عباسؓ نه په صحيح سند په ابوداود کښې نقل دي چه (فَجَعَلَ النَّبِيُّ ﷺ عِدَّتَهَا حَيْضَةً) (ابوداود رقم (۲۲۲۹) نبي ﷺ د ثابت د ښځے عدت يو حيض مقرر کړو. نو که خلع طلاق وے، بيا درے حيضه پکار وو. (اللباب).

دغه شان رُبَيِّع بنت معوذ بن عفراء خلع کړے وه نو رسول الله ﷺ ورته حکم اُوکړو : [أَنْ تَعْتَدَّ

بِحَيْضَةٍ] (چه دا به يو حيض عدت تيروي) ...... [صحيح الترمذى (١١٨٥) وصحيح ابن ماجه (٢٠٥٨)
بيا رُبَيِّعْ عثمان ﷺ ته راغله چه زما به څومره عدت وي؟ هغه اُوفرمايل: ستا عدت نشته مگر دا چه خاوند ستا نه نوے جدا شويدے نو د خاوند سره د يو حيض په اندازه وخت تير کړه.
(ابن ماجه) وذكره الحافظ شيخ الاسلام ابن تيمية في مجموع الفتاوى (٣٢/٣٢٥).
﴿تِلْكَ حُدُودُ اللهِ﴾ په تِلْكَ سره اشاره ده هغه آيتونو او حکمونو ته چه د ښځې سره متعلق وو چه هغه د (وَلَا تَنكِحُوا الْمُشْرِكَاتِ) نه شروع وو تر دے ځائے پورے.
د حدود نه مراد هغه اوامر او نواهي دي چه شريعت د هغے د تجاوز کولو نه منع کړې وي او په هغے کښې زياتے او کمے کول دواړه حرام وي، نو ځکه ئے ورپسے (فَلَا تَعْتَدُوهَا) ذکر کړو چه د اَوامرو ماتولو او د نواهيو مخالفت کولو دواړو ته شامل شي ځکه چه اعتداء دواړو ته شامل ده. (احسن الكلام).
او په اعتداء کښې د شرعي طلاقو د شمارنه تجاوز کول او د هغے په کيفيت کښې بدلون راوستل تول داخليږي.
محمود بن لبيد فرمائي: رسول الله ﷺ ته خبر اُوشو چه يو سړي خپله ښځه په درے طلاقو په يو ځائے طلاقه کړيده، نو هغه غصه راپاڅيدو بيا ئے اُوفرمايل: [أَيُلْعَبُ بِكِتَابِ اللهِ وَأَنَا بَيْنَ أَظْهُرِكُمْ] آيا د الله په کتاب به لوبے کيږي، او زۀ به ستاسو ترمينځ موجود يم) تردے چه يو سړے راپاڅيدو، وے وئيل چه آيا زۀ ئے نۀ ووژنم. (نسائي والدر المنثور).
معلومه شوه چه درے طلاقه په يو ځائے ورکول د الله د کتاب پورے لوبے کول دي.
حدود، پولو او حد بنديانو ته وئيلے شي لکه څنګه چه انسانان د خپلو زمکو او خپلو چراګاهونو نه ګير چاپيره حد بنديانے کوي، او دا نۀ غواړي چه څوك دا حدود مات کړي، او که څوك په هغے کښې مداخلت کوي، نو انسانان دا په خپل ملکيت کښې مداخلت او د خپل عزت او غيرت دپاره يو چيلنج ګڼړي.
دغه شان الله تعالىٰ هم د خپلو محارمو (حرامو څيزونو) نه ګير چاپيره حدونه او پولے وهلي دي، چه د هغے نه بهر آزاد دي، ليکن په هغے کښې دننه د مداخلت اجازت نشته، که څوك هغه پولے ماتوي، نو همدا خلق به ظالمان وي. يعني ددے په نتيجه کښې چه څۀ نقصان او ذمه وارياني په دنيا يا په آخرت کښې مخے ته راځي، نو دا به خپله په دوي باندے وي، په الله تعالىٰ باندے به نۀ وي. نو دوي به د خپل ځان نقصان کوي، د الله به څۀ نقصان اُوکړي!!. ځکه چه د الله تعالىٰ تول قوانين د انساني فطرت د تقاضو مطابق او د بندګانو په فائدو باندے بناء دي. نو پدے کښې نقصان کول خپل ځان ته نقصان رسول دي.

﴿ وَمَنْ يَّتَعَدَّ حُدُوْدَ اللهِ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الظّٰلِمُوْنَ ﴾ پدے جمله کښې ډير تاکيدات دي ـ
(۱) يو پدے کښې عام خطاب دے پس د خاص خطاب نه ـ (۲) دويم پدے کښې ئے حکم کړے چه دا ظلم دے ـ (۳) دريم حصر (بندش) د ظلم ئے کړے په لفظ د اُولٰٓئِكَ او هُمْ او اَلظّٰلِمُوْنَ معرفه راوړو سره ـ او دا تعدي عامه ده چه د ګناهونو په کولو سره وي او که د ښځې او خاوند د يو بل په حقوقو نقصاني کولو سره وي ـ

| فَاِنْ طَلَّقَهَا فَلَا تَحِلُّ لَهٗ مِنْ بَعْدُ حَتّٰى تَنْكِحَ |
| --- |
| نو که چرته طلاق ئے ورکړو دے ښځې ته (دريم طلاق) نو حلاله نه ده دا ښځه هغه له پس ددے نه تردے چه نکاح اُوکړي |
| زَوْجًا غَيْرَهٗ فَاِنْ طَلَّقَهَا فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَآ اَنْ يَّتَرَاجَعَآ |
| د بل خاوند سره، نو که چرته طلاق ورکړي دويم خاوند هغې ته نو نشته ګناه په دے دواړو چه دواړه يو بل ته اُوګرځي (په نکاح سره) |
| اِنْ ظَنَّآ اَنْ يُّقِيْمَا حُدُوْدَ اللهِ وَتِلْكَ حُدُوْدُ اللهِ يُبَيِّنُهَا لِقَوْمٍ يَّعْلَمُوْنَ ﴿۲۳۰﴾ |
| که ددے دواړو ګمان وو چه پابندي به کړي د پولو د الله ـ او دا پولې (حکمونه) د الله دي چه بيانوي ئے دپاره د هغه قوم چه پو هيږي ـ |

**تفسير:** پدے آيت کښې دريم طلاق ذکر کوي ـ که مخکښې تَسْرِيْحٌ بِاِحْسَانٍ کښې دريم طلاق وي، نو هغه به اجمال وي، او دا به د هغې تفصيل وي، او که د تسريح نه مراد د رجوع پريخودل وي، نو دا مستقل دريم طلاق ته اشاره ده، او همدا خبره غوره ده، او فاء ئے راوړه اشاره ده چه دا طلاق به د مخکنو طلاقونه روستو وي ـ نو مخکښې دوه طلاقونه ذکر شو، اُوس دريم طلاق ذکر کوي ـ او د هغې حکم بيانوي چه ددے نه روستو به ښځې ته رجوع نشي کيدے ـ او په فاء راوړو کښې دے ته هم اشاره ده چه شرعي طريقه دا ده چه دريم ؤے د مخکښې دوه طلاقو سره نۀ جمع کوي، بلکه روستو ؤے ورکوي، نو درے طلاقه په يو ځائے يا په يوه کلمه کښې جَمع کول د شرعي طريقے خلاف دي ـ او دا بدعي طلاق دي ـ

د آيت مطلب دا دے چه که خاوند دريم طلاق ورکړو نو هغه ښځه به دۀ دپاره نۀ د رجوع په ذريعه حلاليږي، او نۀ به د نوي نکاح په ذريعه، تردے چه بل کوم سړے ددے سره په رضا او مينه، او د عام عرف مطابق د هميشه دپاره د ازدواجي ژوند تيرولو دپاره وادۀ اُوکړي، او د هغې سره نزديکت اُوکړي، بيا په څۀ وجه سره هغۀ دے ته طلاق ورکړي، نو د نوي نکاح په ذريعه سره ئے اول خاوند په خپله نکاح کښې راوستے شي، ليکن پدے شرط سره چه د دواړو غالب ګمان

وی چه دوباره به دوی په ښهٔ شان سره ازدواجی ژوند تیروی او د یو بل د حقونو لحاظ به ساتی.
په صحیحینو کښې د عائشې رضی الله عنها نه روایت دے چه د رِفاعه قُرَظی ښځه (تَمِیمَه) رسول الله ﷺ ته راغله، وے وئیل چه رفاعه ما ته دریم او آخری طلاق راکړے وو. د هغے نه روستو ما د عبد الرحمن بن زَبِیر قُرَظی سره نکاح اُوکړه، لیکن د هغه د سړیتوب آله د کپړے د پڅکے په شان ده، نو رسول الله ﷺ پوښتنه اُوکړه چه کیدے شی چه ته د رفاعه په نکاح کښې دویم ځلی راتلل غواړے؟، داسے نشی کیدے تردے چه تاسو دواړه د یو بل خوند اُونهٔ څکئ (یعنی هغه تا سره جماع اُوکړی).
ددے نه دا هم معلومه شوه چه د حلالے نکاح په ذریعه که یو سړے د هغه ښځے سره جماع هم اُوکړی، نو دغه ښځه به د اول خاوند دپاره نهٔ حلالیږی. ځکه چه د الله رسول ﷺ په حلاله کونکی او چا دپاره چه حلاله کولے شی، په دواړو باندے د الله تعالیٰ د لعنت خبر ورکړیدے او په کومه نکاح باندے چه لعنت وئیلے شوے وی، هغه نکاح نهٔ صحیح کیږی. او پدے وجه هم چه د عرفِ عام مطابق وادهٔ دیته وائی چه د همیشه دپاره د ازدواجی ژوند تیرولو دپاره شوے وی. او په حلالے نکاح باندے دا تعریف نهٔ صادقیږی. نو دا شرعی نکاح نشوه، او قرآن خو (حَتّٰی تَنْكِحَ زَوْجًا) کښې نکاح شرط کړیده.
په مسند احمدؒ، ترمذیؒ او ابن ماجهؒ وغیره د احادیثو په کتابونو کښې د حلالے نکاح په باره کښې حدیثونه اُوګورئ. چه بعض د هغے نه مخکښې ذکر شو.
حاکمؒ د نافع نه روایت کړیدے چه یو سړی د ابن عمر رضی الله عنهما نه د یو داسے سړی په حقله پوښتنه اُوکړه چه هغه خپلے ښځے ته درے طلاقه ورکړی وو، دے نه روستو د هغه یو وړور بغیر د څهٔ مخکنی سازش نه د هغے سره وادهٔ اُوکړو، دے دپاره چه هغه ئے د خپل وړور دپاره حلاله کړی، نو آیا دا به د مخکنی خاوند دپاره حلالیږی؟
نو ابن عمر رضی الله عنهما اُووئیل چه نهٔ، دداسے نکاح نه بغیر نهٔ حلالیږی چه هغه په رغبت سره شوی وی چه د هغے سره به همیشه دپاره ازدواجی ژوند تیروی.
بیا ئے اُوفرمایل چه مونږ د رسول الله ﷺ په زمانه کښې داسے نکاح زنا ګڼړله. حاکمؒ دے حدیث ته صحیح وئیلے دے.
﴿حَتّٰی تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهٗ﴾ نکاح په معنیٰ د عقد (تړون د نکاح) سره راځی، او په معنیٰ د وطی سره هم راځی، دلته په اتفاق د علماؤ نکاح د وطی سره مراد ده ځکه چه په حدیث د صحیحینو کښې په قصه د رفاعه قرظی کښې مخکښې ذکر شو چه په هغے کښې داسے الفاظ دی: [لَا، حَتّٰی

تَذُوْقِیْ عُسَیْلَتَهُ وَیَذُوْقَ هُوَ عُسَیْلَتَكِ] (نهٔ هغه ته نهٔ شې واپس کیدې تردې چه ته د هغه نه خوند واخلې او هغه ستا نه خوند واخلي).

بعض علماء وائي پدې جمله کښې په نکاح د حلالې باندې رد دې پدې طریقه چه په شریعت کښې د نکاح لفظ یوه معروفه او مشهوره اصطلاح ده چه نکاح دې ته وائي چه ښځه او خاوند به پدې معاهده کوي چه دوی به د یو بل سره همیشه دپاره صحیح ژوند تیروي، که په کومه نکاح کښې دا اراده نهٔ وي، نو دا به په حقیقت کښې نکاح نهٔ وي، بلکه دا به یو سازش وي چه ښځې او خاوند خپل مینځ کښې کړیدې.

او د نکاح سره چه شریعت د طلاقو کوم گنجائش ایښې دې نو هغه ددې سازش یو جزء نهٔ دې، بلکه دا د یو ناځاپي آفت او ناچاقي راتلو یو مجبورانه امداد دې. پدې وجه که نکاح د یو معین وخت پورې وي، هغې ته د متعې نکاح وائي، او مُتعه په اسلام کښې حرامه ده. دارنگه که یو، شخص پدې نیت د یوې ښځې سره نکاح کوي چه ددې نکاح نه روستو به طلاق ورکوي، او دا ښځه به د اول خاوند دپاره جائز کوي، نو دې حیلې او سازش ته د شریعت په اصطلاح کښې حلاله وائي. دا اسلامي نکاح نهٔ ده، او دا هم په اسلام کښې د مُتعې په شان حرامه ده، او لعنت پرې راغلې دې لکه چه ددې تفصیل مخکښې تیر شویدې. (تدبر قرآن).

## د ولي نه بغیر نکاح

بیا دلته ئې نسبت د نکاح ښځې ته اُوکړو چه ښځه د بل چا سره نکاح اُوکړي، ددې حکمت چا غلط بیان کړیدې چه ښځه د خپل واك خاونده ده، او خپل ځان په نکاح ورکولې شي. ولي ته پکښې ضرورت نشته لکه اصول د فقه حنفي کښې ئې لیکلي دي چه تَنْكِحَ لفظ خاص د کتاب الله دې، او خاص د کتاب الله بَیِّن بِنَفْسِهٖ وي، احتمال د بیان نهٔ لري، لهذا د [لَا نِكَاحَ اِلَّا بِوَلِيٍّ] (د ولي نه بغیر نکاح نهٔ کیږي) حدیث ته ئې ضرورت نشته چه ددې بیان اُوکړي ځکه چه دا خپله واضح لفظ دې، معنیٰ ئې ښکاره ده.

لیکن دا خبره غلطه ده، ښځه خپل ځان په نکاح نشي ورکولې بلکه ولي ورله ضروري دې. د هغې ډیر دلائل په خپل ځائې کښې راځي، مختصر دا چه صحیح حدیث کښې دي: (لَانِكَاحَ اِلَّا بِوَلِيٍّ). (د ولي نه غیر نکاح نهٔ کیږي) (ترمذي وابوداود).

په یو بل روایت کښې دي: [وَلَاتُزَوِّجُ الْمَرْأَةُ نَفْسَهَا فَاِنَّ الزَّانِیَةَ هِيَ الَّتِيْ تُزَوِّجُ نَفْسَهَا] (ابن ماجه والدارقطني ۳۵۸۱ بسند صحیح) (ښځه خپل ځان په نکاح نشي ورکولې ځکه چه هغه زنانه زناکاره ده چه خپل ځان په نکاح ورکوي).

او دغه شان وينا د ابن عباس رضی الله عنهما نه هم نقل ده۔(سنن سعيد بن منصور: (٥٣٤)
دارنګه روستو آيت کښې ئې سړو ته خطاب کړے (فَلَا تَعۡضُلُوهُنَّ أَن يَنكِحۡنَ) (مه ئې منع کوئ د نکاح کولو نه)۔ معلومه شوه چه د ښځے په نکاح کښې ولی شرط دے۔
او دلته ئې چه ښځے ته نسبت کړے نو ددے صحيح حکمت دا دے چه د ښځے نه اجازت اخستل ضروری دی، ځکه چه دلته دوه حقونه دی:
(۱) د ولی حق دا دے چه هغه نه به ښځه تپوس کوی، په خپل سر به نکاح نۀ کوی، ځکه چه دے ته د پښتنو په اصطلاح کښې متيزه وائی۔ نو ښځه به د ولی حق نۀ بربادوی چه هغه اُوشرموی، نو ښځے ته شريعت اُووئيل ستا نکاح به ولی کوی۔
(۲) دويم د ښځے حق دے، نو ولی ته وائی چه تۀ به خپل واک نۀ استعمالوے چه د ښځے حق برباد کړے بلکه د ښځے په خوښه او رضا به تۀ د هغے نکاح کوے۔ او دلته طلاقه شوے ښځه خو کونډه ده، نو دا به په ژبه اظهار کوی چه ما ورکړه يا نۀ۔ نو پدے کښې څومره انصاف او عدل دے!!۔
﴿فَإِن طَلَّقَهَا فَلَا جُنَاحَ﴾ دلته طَلَّقَهَا کښې ضمير دويم خاوند ته راجع دے او پدے جمله کښې د دويمے نکاح نه روستو د اول خاوند دپاره د جائز کيدو صورت بيانوی، هغه دا چه دويم خاوند دا ښځه په خپله خوښه سره بغير د جَبر او زور نه، د څۀ مجبورتيا په وجه طلاقه کړی او عدت ئې تير شی، او بيا ښځه غواړی چه اول خاوند ته واپس شی، نو ګناه نشته چه دواړه يو بل ته واپس شی۔ يعنی بيرته د اول خاوند سره نکاح کولے شی، خو ددے شرط مخکښې بيان شو چه ددے ښځے به د دويم خاوند سره نزديکت شوے وی، يواځے تړون د نکاح به نۀ وی۔ او د هغے حکمت هم مخکښې بيان شو۔
﴿أَن يَتَرَاجَعَا﴾ د تراجع (يو بل ته واپس کيدو) نه مراد د اول خاوند سره نوے نکاح تړل دی، سره د ټولو شرطونو د نکاح نه۔ خو پدے شرط چه د دواړو دا غالب ګمان وی چه آينده به صحيح ژوند تيروی، ځکه چه نکاح او طلاق خو څۀ لوبے نۀ دی بلکه دا به د صحيحے ارادے او مخلصانه خواهش مطابق موجوديږی۔
﴿ظَنَّا﴾ ظن (ګمان) لفظ ځکه ذکر کوی چه د راتلونکے زمانے يقين چا ته نشی کيدے خو غالب ګمان وی۔
﴿وَتِلۡكَ حُدُودُ ٱللَّهِ يُبَيِّنُهَا لِقَوۡمٖ يَعۡلَمُونَ﴾ يعنی الله دا احکام ښکاره او په تفصيل سره د هغه خلقو دپاره بيانوی چه هغوی پوهه لری ځکه چه پوهه خلق ددے په خير او حکمتونو باندے پوهيږی، نۀ جاهلان او لام د انتفاع دپاره هم دے۔ يعنی پوهه خلق ددے نه فائده اخلی۔ او په قوم

لفظ کښې اشاره ده چه علم والا خلق په عِلم سره د معاشرے قِوام او مضبو طوالے پیدا کوی۔

وَإِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَاءَ فَبَلَغْنَ أَجَلَهُنَّ فَأَمْسِكُوهُنَّ بِمَعْرُوفٍ

او کله چه طلاقے کړئ تاسو زنانه پس نزدے شي هغوی خپلې نیتې ته نو اُوساتئ دوی لره په ښائسته طریقه

أَوْ سَرِّحُوهُنَّ بِمَعْرُوفٍ وَلَا تُمْسِكُوهُنَّ ضِرَارًا لِتَعْتَدُوا

یا ئے پریږدئ په خائسته طریقه او مهٔ بندوئ دوی دپاره د ضرر ورکولو دے دپاره چه تاسو زیاتے کوئ

وَمَنْ يَفْعَلْ ذَٰلِكَ فَقَدْ ظَلَمَ نَفْسَهُ وَلَا تَتَّخِذُوا آيَاتِ اللَّهِ هُزُوًا

او چا چه اُوکړو دا کار نو یقیناً دهٔ ظلم اُوکړو په خپل ځان او مهٔ نیسئ آیتونه د الله تعالیٰ په توقو سره

وَاذْكُرُوا نِعْمَتَ اللَّهِ عَلَيْكُمْ وَمَا أَنْزَلَ عَلَيْكُمْ مِنَ الْكِتَابِ وَالْحِكْمَةِ

او یا د کړئ احسانات د الله په تاسو باندے او هغه چه رالیږلی دی الله تعالیٰ په تاسو د کتاب نه او د سنت نه،

يَعِظُكُمْ بِهِ وَاتَّقُوا اللَّهَ وَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ﴿۲۳۱﴾

الله تاسو ته نصیحت کوی په دے سره او ویریږئ د الله نه یقیناً الله په هر شی باندے پو هه دے۔

**تفسیر**: پدے آیت کښې دوباره په عدت کښې د رجوع نهٔ کولو مسئله بیانوی ځکه چه عربو پدے کښې ظلم کړے وو چه د هغوی په نیز په رجوع کښې هیڅ حد نهٔ وو، طلاق به ئے ورکړو، کله چه به ئے عدت ختمیدو ته نزدے شو، نو بیرته به ئے ورته رجوع کوله او دا سلسله به ئے جاری ساتله، او پدے سره به ئے زنانو ته ضرر ورکولو۔

نو الله تعالیٰ ددے نه منع کوی، او فرمائی چه کله زنانه طلاقه شي، او د هغے عدت ختمیدو ته نزدے شي، نو یا ئے په صحیح نیت سره بیرته راواپس کړه، نو هم جائز ده او که د ژوند تیرولو اراده دے نهٔ وی نو بیا ئے د شریعت مطابق پریدهٔ او ضرر مهٔ ورکوه۔ همدا خبره په تسریح باحسان کښې هم ذکر شوه، لیکن هلته اختیار ذکر وو، او دلته مقصد د جاهلیت والو د طریقے رد دے۔ ځکه ئے دوباره ذکر کړو۔ او پدے کښې د اِمْسَاكٌ بِمَعْرُوفٍ تشریح ده چه ستاسو دا رابندول د ښځو به د ضرر په نیت سره نهٔ وی۔ لکه د جاهلیت والو په شان۔

﴿فَبَلَغْنَ أَجَلَهُنَّ﴾ د بلوغ الاجل دوه مطلبه دی۔ (۱) یو دا چه نیته بالکل آخر ته اُورسیږی او ختمه شي۔ لکه دا روستو آیت کښې مراد دے۔ (۲) او دویم دا چه نیته ختمیدو ته نزدے شي، او لا

ختمـه شوی نهٔ وی، او دلتـه همدا معنیٰ مراد ده ځکه چه دلتـه د رجوع مسئله بیانوی، او رجوع هله صحیح وی چه عدت لا ختم شوے نهٔ وی۔

﴿ فَأَمۡسِكُوهُنَّ ﴾ دا ئے مخکښ ذکر کړو، پدے کښ ترغیب دے چه ښځے ته رجوع کول غوره کار دے ځکه چه شریعت حتی الوسع د ښځے او خاوند د کورنئ د جوړوالی کوشش کوی۔او د ځینو علماؤ په نیز دا رجوع کول به په وینا سره وی او د ځینو نورو په نیز په وینا او جماع دواړو سره وی، لیکن اول قول ډیر ظاهر دے، لکه د حدیثو په کتابونو کښ همدغسے راغلی دی۔

﴿ بِمَعۡرُوفٍ ﴾ دلته د معروف نه مراد هغے ته په رجوع کولو باندے گواهان پیش کول دی۔

﴿ أَوۡ سَرِّحُوهُنَّ بِمَعۡرُوفٍ ﴾ **حکمة** : مخکښ آیت کښ ئے تَسۡرِيحٌ بِإِحۡسَانٍ لفظ ذکر کړو او دلته بِمَعۡرُوفٍ. وجـه دا ده چه دلتـه د معروف نه مراد د ضرر ورکولو نه منع ده، نو چه د چا نه د ضرر یره کیدے شی، د هغـه نـه مطالبه د احسان نهٔ کیږی۔ او په هغه آیت کښ صرف اختیار ذکروو، نو د هغے سره احسان مناسب وو۔

دویم دا چه مخکښ آیت کښ د تسریح سره احسان ذکر وو، نو وَهم راغلو چه د تسریح سره په احسان واجب وی، نـو دلتـه اُووئیلے شـو چه د تسریح سره صرف معروف (یعنی د عرف مطابق معامله) واجب ده او احسان مستحب عمل دے۔ (احسن، ابن عاشور)

﴿ وَلَا تُمۡسِكُوهُنَّ ضِرَارٗا لِّتَعۡتَدُواْ ﴾ پدے دواړو قیدونو کښ فائده ده۔ د ضرر دپاره به ئے نه ساتئ لکه بعض خلق به غصه شو ښځے ته به ئے طلاق ورکړل، چه درے میاشتے به پوره کیدلے، نو بیرته به ئے ورتـه رجـوع اُوکړه، بیا به ئے طلاق ورکړو، بیا به چه درے میاشتے پوره کیدلے، نو رجوع به ئے ورتـه اُوکړه، او همدا ترتیب به ئے ورسره کولو، په کلونو کلونو به ئے د ضرر ورکولو دپاره زوړندهٔ ساتـلـه۔ خو کله کله سړے ښځے له ضرر ورکولے شی چه زناکاره بد کاره وی، نو ځکه ئے ورپسے اُوفرمایل (لِّتَعۡتَدُواْ) : یعنی د زیاتی او ظلم په نیت باندے ضرر ورکول نهٔ دی جائز، او د شرعی سزا په نیت ضرر ورکولے شی۔

﴿ وَمَن يَفۡعَلۡ ذَٰلِكَ فَقَدۡ ظَلَمَ نَفۡسَهُۥ ﴾ ځکه په بل باندے ظلم کول په ځان باندے ظلم دے۔ او په ځان باندے د ظلم مطلب دا چه ظلم خو الله منع کړے، نو څوك چه د هغه مخالفت کوی، نو ځان عذاب تـه پیش کوی۔ دویم دا چه د دنیا او د دین منافع او فائدے په ځان باندے بندول دی، او ځان تـه نقصان ورکول دی۔ پـه دنیا کـښ بـه خـلقو کښ مشهوره شی چه دا انسان بد اخلاقه دے، نو څوك به ورسره معامله نهٔ کوی، او دینی منافع بندیدل دا دی چه د ښځے سره په ښائسته ژوند تیرولو کښ او د الله تعالیٰ په احکامو باندے چه کوم ثوابونه حاصلیږی، د هغے نه به محرومه

شي، او د الله په غضب به اخته شي.

﴿وَلَا تَتَّخِذُوٓا اٰيَاتِ اللّٰهِ هُزُوًا﴾ دے نه روستو الله تعالیٰ د آيتونو پورے د توقو کولو نه منع اُوفرمايله لکه څنګه چه د جاهليت په دَور کښې به خلقو کول چه ښځے ته به ئے طلاق ورکړو، يا به ئے يو بے ښځے سره وادهٔ اُوکړو، يا به ئے غلام، يا وينځه آزاده کړه، بيا به ئے وئيل : [اِنَّمَا كُنْتُ لَاعِبًا] ما خو توقے کولے. زما خو د طلاقو اراده نهٔ وه. ددے وجه نه شريعت وائی، که چا په توقو کښې طلاق ورکړل، نو دا طلاق پرے واقع شو.

په خطاء او په نسيان باندے طلاق نهٔ واقع کيږی، ليکن په توقو باندے واقع کيږی ځکه چه توقو کښې اراده وی. او د سړی بے فائدے توجيه لره هيڅ اعتبار نشته.

د ابو هريره ﷺ نه روايت دے چه نبی کريم ﷺ اُوفرمايل : چه (( درے کارونه داسے دی چه که هغه په قصد سره اُوشی او که د توقو په نيت سره، هغه به نافذ وی : نکاح، طلاق او ښځے ته رجوع کول)). (ابوداود، ترمذی، ابن ماجه).

﴿هُزُوًا﴾ : په اصل کښې يو شے سپک ګنړلو ته وئيلے شی. او د آيتونو سپکاوے يو دا دے چه د هغے نه انکار اُوکړے شی. يا دا چه په هغے باندے عمل اُونکړے شی. او د هغے لحاظ اُونهٔ ساتلے شی. يا د ښځے په جدائی، يا بندولو کښې هغے ته ضرر ورکړے شی، يا ډير طلاقونه ورکړے شی، يا درے طلاقه په يو ځائے جَمع کړے شی. (تفسير السعدی).

يا دا حکمونه د شهوت دپاره يا د قوم او ددهٔ د عادت دپاره ماتوی، نو دا په غير شعوری توګه د الله د آيتونو پورے توقے کوی. (تفسير المنار).

دارنګه يو سخت شکل ئے دا هم دے چه په ظاهری اعتبار سره خو کار داسے اُوکړے شی چه په هغے باندے کوم اعتراض نهٔ کيږی، ليکن د مقصد په لحاظ سره هغه کار د شريعت د مقصد نه بيخی خلاف وی. لکه مثلاً په دريم طهر کښې که يو شخص خپلے ښځے ته رجوع اُوکړی، نو د شريعت په اعتبار هغه ته خو دا حق حاصل دے، ليکن که پدے سره ددهٔ مقصد ښځه تنګول وی، نو ددے معنیٰ دا جوړيږی چه دهٔ د الله د آيتونو په پرده کښې د الله مخالفت اُوکړو، او ښکاره ده چه دا د الله او د هغه د شريعت سره ښکاره توقے کول دی. (تدبرقرآن، ابن عاشور).

﴿وَاذْكُرُوْا نِعْمَتَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ﴾ پدے سره د خلقو په نفسونو کښې د مخکنو احکامو د مضبوطولو دپاره ترغيب بيانوی په ذکر کولو د فائدو ددے. او د دين په هدايت کولو باندے احسان ذکر کوی. يعنی الله تاسو سره څومره احسان اُوکړو چه د عدل احکام ئے درباندے نازل کړل، نو تاسو له ددے پورے توقے نهٔ دی پکار. د نعمت نه مراد اسلام او د احکامو بيان، او په

هدايت سره ددے رسول راليږلے دی. او دارنګه نعمة د زوجيت دے. او ددے نعمت رايادول دا دی چه پدے بانـدے په ژبـه د الله حمد او ثناء اُووئيلے شی، او په زړهٔ کښې اقرار اُوکړے شی، او په بدن باندے عمل اُوکړے شی. (السعدی).

﴿وَمَا أَنْزَلَ عَلَيْكُمْ مِنَ الْكِتَابِ وَالْحِكْمَةِ﴾ دا په نعمة الله باندے عطف دے. (يعنی دا هم رایاد کړئ). د (کتاب) نه مراد قرآن او د (حکمة) نه مراد د نبی ﷺ سنت دی. يعنی تاسو باندے الله تعالیٰ دا احسان اُوکړو چه کتاب او سنت ئے راوليږل چه ددے په وجه ئے تاسو ته د خير طريقے بيان کړے، او ترغيب ئے درکړو، او د شر لارے ئے اُوخودلے، او د هغے نه ئے منع اُوکړه، او خپل ځان ئے درته معرفی کړو، د خپلو اولياؤ او دشمنانو حالات ئے درته پکښې بيان کړل. (السعدی).

يا د حکمة نه مراد هغه علم دے چه د شريعت نه حاصل شوے وی، لکه د تير شوی اُمتونو د حالاتو نه عبرت اخستل، او د دين مصلحتونه معلومول، او د شريعت رازونه پيژندل. (ابن عاشور) دواړه معنے صحيح دی. دويمه معنیٰ د روستو يَعِظُكُمْ سره ښهٔ لګی ځکه چه وعظ د الله د احکامو، او بيا د هغے د حکمتونو په پيژندلو سره زيات حاصليږی. (المنار).

﴿يَعِظُكُمْ بِهِ﴾ (بِهِ) ضمير مَا أَنْزَلَ ته راجع دے چه هغه قرآن، او حديث دے.

وعظ او موعظه هغه نصيحت او تذکير ته وئيلے شی چه زړونه نرموی او انسان منع کوی.
(ابن عاشور)

﴿وَاتَّقُوا اللَّهَ﴾ د تقویٰ حکم ځکه کوی چه خلقو به د ښځو متعلق کوتاهی زياته کوله، نو الله فرمائی چه ستاسو نفسونه د ښځو د حقوقو په بے باکئ اموخته شويدی، نو د الله نه يره اُوکړئ، هغه به سزا درکوی.

﴿وَاعْلَمُوا﴾ دا د مخکښې نه هم په تذکير او نصيحت کښې زياته قوی خبره ده، ځکه چه کله يو انسان خپل حال په ظاهر کښې د شريعت برابر کړی، ليکن زړهٔ د ښځے حقوق بربادونکے وی، نو الله فرمائی چه الله تعالیٰ ستاسو په هر حالت پوهه دے. الله به هله راضی کيږی چه د انسان ظاهر او باطن يو شان شی، او نيت ئے خالص شی، او د هغه په احکامو عمل اُوکړے شی.

| وَإِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَاءَ فَبَلَغْنَ أَجَلَهُنَّ فَلَا تَعْضُلُوهُنَّ |
|---|
| او کله چه طلاق ورکړئ تاسو زنانو ته او ورسيږی هغوی نيتے ته نو مهٔ منع کوئ تاسو هغوی لره |
| أَنْ يَنْكِحْنَ أَزْوَاجَهُنَّ إِذَا تَرَاضَوْا بَيْنَهُمْ بِالْمَعْرُوفِ |
| ددے نه چه نکاح اُوکړی د خپلو خاوندانو سره کله چه رضا وی په خپل مينځ کښې په ښهٔ طريقه، دا حکم |

ذٰلِكَ يُوْعَظُ بِهٖ مَنْ كَانَ مِنْكُمْ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ

نصيحت کيدے شي پدے سره هغه چا ته چه وي ستاسو نه ايمان لري په الله او په ورځ روستنئ

ذٰلِكُمْ اَزْكٰى لَكُمْ وَاَطْهَرُ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ وَاَنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿۲۳۲﴾

دا كار زياتونكے دے ستاسو عزت لره او ښه پاكونكے دے او الله پو هيږي (د خلقو په زړونو) او تاسو نۀ پو هيږئ.

## تجديد نكاح

**تفسير**: پدے آيت کښې د تدبير منزل د حکمونه يولسم حکم دے. چه کله يوه ښځه په طلاق رجعی سره طلاقه شوه، او د يو يا دوه طلاقونه روستو ئے عدت ختم شو، او بيا دواړه يو بل غواړي، او په شرعي نکاح سره دوباره په نکاح کښې داخليدل غواړي، نو دوی مۀ منع کوئ. ځکه چه په همدے کښې هر خير دے. نو نکاح دے تازۀ کړي، او مهر دے مقرر کړي، او ولی نه دے اجازه واخلي. او ولی له دا جائز نۀ دي چه دوی منع کړي.

نو آيت کښې عنوان دے: بَيَانُ تَجْدِيْدِ نِكَاحِ الْمُطَلَّقَةِ مَعَ بَيَانِ وَلِيِّ الْمَرْاَةِ [د طلاقے شوے ښځے د نکاح تازۀ کولو بيان او دا چه د ښځے دپاره ولی شرط دے].

## شان نزول

امام بخاريؒ او اصحاب السنن روايت راوړيدے چه دا آيت د مَعقل بن يَسار مُزَني ﷺ او د هغۀ د خور په باره کښې نازل شويدے، دوی خپله خور يو مسلمان ته په نکاح ورکړے وه، څۀ موده روستو هغۀ يو طلاق ورکړو، بيا ئے رجوع اُونکړه، د عدت د تيريدو نه روستو دواړو يو بل سره رغبت او مينه ښکاره کړه، او هغه سړی دويم ځلی د نکاح پيغام اُوليږلو، نو معقل ﷺ انکار اُوکړو، او وے وئيل چه ما ستا اکرام کړے وو چه خور مے په نکاح درکړے وه، او تا ورله طلاق ورکړو، او اُوس راروان ئے ددے مطالبه کوے؟ قَسَم په الله، دا تا ته هيڅ کله نشي واپس کيدے. ليکن الله تعالىٰ ته ددے دواړو د رغبت او حاجت عِلم وو، پدے وجه دا آيت ئے نازل کړو. کله چه معقل ﷺ آيت واوريدو، نو وے وئيل چه اے الله ! ما ستا خبره واوريدۀ او زۀ ستا اطاعت کوم، بيا ئے هغه سړے راطلب کړو، ورته ئے اُووئيل چه زۀ خپله خور تا ته په نکاح درکوم، او ستا اکرام کوم. (بخاري، ابوداود، ترمذي). او د خپل قَسَم کفاره ئے ورکړه.

نو الله ددے فائده هم بيانوي چه د ښځے هسے هم ددے خاوند سره مخکښې وخت تير شوے دے، نو پکار دا ده چه اُوس ئے بيرته په نکاح واخلي.

○ دا هم معلومه شوه چه په طلاق شرعي کښې فائده دا ده چه کله طلاق ورکړے شي نو که عدت ختم هم شي نو بیا هم کار کیږي، دوباره به نکاح تازهٔ کړي سَره د مهر او اجازت د ولي نه.

**فوائد** : (۱) دا آیت ددے خبرے دلیل دے چه د نکاح دپاره ولي کیدل ضروري دي. ځکه الله تعالیٰ اولیاء منع کړیدي چه هغوی خپلے خویندو لونړهٔ دویم ځلي خپلو مخکنو خاوندانو سره د نکاح کولو نه منع کړي، او د منع کولو حق هغه چا ته حاصل وي، چه د هغه نه بغیر نکاح نشي کیدے.(۲) - د عدت د تیریدلو نه روستو ښځه پردۍ شي، نو پدے وجه بیرته به نکاح تړي.(۳) بالمعروف نه معلومه شوه چه دا به شرعي نکاح وي او د یوے شپے او څهٔ معینے مودے دپاره به نهٔ وي او حلاله به نهٔ وي.

﴿ فَبَلَغْنَ اَجَلَهُنَّ ﴾ د بلوغ نه مراد دلته اتمام دے یعني چه نیټه د عدت ختمه شي، او پوره شي.

﴿ فَلَا تَعْضُلُوْهُنَّ ﴾ دے کښې د ښځې اولیاؤ ته خطاب دے او دا پکښې راجح تفسیر دے.

عَضُل : منع او قید کول، او نهٔ نقل کولو ته وئیلے شي.

﴿ اَنْ یَّنْكِحْنَ ﴾ چه نکاح اُوکړي په نوي مهر او نوي نکاح. دلته ئے د نکاح نسبت ښځو ته اُوکړو ځکه چه د هغوی رضا پکښې شرط ده.

﴿ اَزْوَاجَهُنَّ ﴾ ازواجهن : دے ته ئے ازواج (خاوندان) وئیلي دي په اعتبار د (مَاکَانَ) سره یعني مخکښې په نزدے وخت کښې ئے خاوندان وو. او پدے کښې اشاره ده چه منع کول به ظلم وي، ځکه چه دا د مخکښې نه د دوي خاوندان وو، نو دوي ډیر لائق دي چه دا ښځے دوي ته واپس شي. (ابن عاشورؒ).

﴿ اِذَا تَرَاضَوْا بَیْنَهُمْ بِالْمَعْرُوْفِ ﴾ یعني ښځه او خاوند خپل مینځ کښې رضا وي چه آینده کښې به د شریعت مطابق ژوند تیر وو. یا د معروف نه مراد عقد نکاح، جائز مهر او عادل گواهان او ضرر نهٔ ورکول دي.

په آیت کښې دویم تفسیر دا دے چه د ابن عباسؓ، زهريؒ او ضحاکؒ نه روایت دے چه دا آیت په باره د هر هغه چا کښې نازل شوے چه یوه ښځه د طلاق او عدت د تیریدو نه روستو د بل چا سره د نکاح کولو نه منع کوي، اگرچه د بل خاوند سره وي. یعني یو خاوند ښځه طلاقه کړي، بیا د هغه نفساني غیرت دا تقاضا کوي چه د هغه ښځه بل څوك په نکاح وانخلي، نو ښځه تنګوي چه ته به د بل سره نکاح نهٔ کوے. بناء پدے قول به (فَلَا تَعْضُلُوْهُنَّ) کښې خاوندانو ته خطاب وي. دا تفسیر هم جائز دے ځکه چه د آیت الفاظ ورته شامل دي، لیکن اول تفسیر د شان نزول سره زیات موافق دے.

﴿ ذٰلِكَ یُوْعَظُ بِهٖ مَنْ كَانَ مِنْكُمْ یُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْیَوْمِ الْاٰخِرِ ﴾

پدے حکم باندے عمل کول د نفس خلاف دی، او ځان شریعت ته پوره تابع کول دی، او دا په نفس باندے گران دی، نو پدے وجه الله ډیر تاکیدات بیانوی۔

﴿ ذٰلِكَ ﴾ یعنی پدے حکم سره - چه دا ښځه تاسو دے خپل خاوند له ورکړئ او منع ئے نهٔ کړئ- هغه چا ته وعظ او نصیحت کیږی چه هغه کښې په الله تعالیٰ او په آخرت ایمان وی چه که زړهٔ دا ښځه منع کړم نو الله به ما نه د قیامت په ورځ تپوس کوی۔ او څوك چه مؤمن نهٔ دے نو که هغه ئے نهٔ منی، نو د هغه نه گیله نشته۔ نو پدے کښې نهٔ منع کولو ته ډیر ترغیب دے۔

﴿ اَزْكٰى لَكُمْ وَاَطْهَرُ ﴾ (اَزْكٰى) د زکوٰة نه اخستے شویدے په معنیٰ د پاکوالی او زیاتوالی دے۔

[اَىْ اَوْفَرُ لِلْعِرْضِ] یعنی دا ښځه بیرته خپل زوړ خاوند ته واپس کول زیاتونکی دی عزت لره او خیر ته زیات نزدی دی)۔ او ددے وجه دا وه چه خلقو به دا بے عزتی او د غیرت خلاف گڼړله چه طلاقه شوے ښځه بیرته همدغه خاوند ته ورکړی، نو الله ورته خبر ورکړو چه دا ښځه بیرته واپس کول عزت زیاتوی، ځکه چه پدے کښې به د کورنئ اختلافات نهٔ پیدا کیږی، او هغهٔ مینه چه د دواړو کورنو ددے رشتے د وجه نه پیدا شویده، هغه به باقی پاتے شی۔ او د اَطْهَر معنیٰ ده، دا ډیر پاك کار دے ځکه چه دا د دشمنئ او بغضونو او نفرتونو د اسبابو ختمونکے دے۔

(ابن عاشور، وتفسیر المنار)۔

(۲) یا ازکیٰ کښې باطنی پاکوالے دے یعنی زړهٔ ورله پاکوی، ځکه چه هرکله د دواړو په مینځ کښې مینه ده، او دواړه یو بل ته د واپس کیدو نه منع شی، نو کیدے شی چه د دواړو به په پټه غلط تعلقات پیدا شی، نو د دواړو به په زړهٔ کښې غلط خیالات راځی۔ ددے وجه نه علماؤ وئیلی دی چه هر شهوت زړهٔ خرابوی، سویٰ د نکاح نه، چه دا یو داسے شهوت دے چه زړهٔ کښې صفائی پیدا کوی او غلط خیالات ختموی۔

او د اَطْهَر معنیٰ ده، ظاهرئے پاکوی ځکه چه که دا دواړه منع شی، او بیا دوی په پټه زنا اُوکړی، نو پدے کښې به بدنامے راشی، او د ښځے ولی به اُوشرمیږی۔

(۳) یا اَزْكٰى په دنیا کښې مراد دے، او اَطْهَر په آخرت کښې، یعنی دا کار زیاتو فائدو والا دے، دین او عزت صفا کوی، او په دنیا کښې د ترقئ سبب دے، د دواړو طرفونو کورنو او رشته دارانو مات زړونه به سم شی، او کینے به د مینځ نه اُوځی۔ او د اَطْهَر معنیٰ ده، په آخرت کښې گناهونو لره پاکونکے دے۔

(٤) یا اَزْكٰى زیات ثواب والا دے، او اَطْهَر یعنی گناهونه صفا کوی۔ پدے کار سره به ډیر گناهونه معاف شی او زیات ثواب به درکړے شی۔

(۵) د اَزکیٰ معنیٰ ده: خَيْرٌ لَّكُمْ - يعنی دے کښې ستاسو دپاره خير دے۔ وَاَطْهَرُ اَیْ لِقُلُوْبِكُمْ مِنَ الرِّيْبَةِ (بغوی) او پدے سره ستاسو زړونه د شکونو نه پاکيږی، ځکه چه کله دا ښځه او خاوند يو بل سره مينه لری، نو خطره ده چه ګناهونه به ترے واقع کيږی، او پدے سره به د دواړو جانبينو خلق په دوی باندے داسے شکونه کوی چه کيدے شی چه هغوی ترے بيزاره وی، نو خلق به په ګناهونو کښې واقع شی۔

﴿وَاللّٰهُ يَعْلَمُ وَاَنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ﴾ پدے جمله کښې بل تاکيد دے، چه هر کله الله تعالیٰ د هر شی په حقيقت پوهيږی، نو د هغه حکم ته تسليميدل پکار دی، پدے وجه معقل بن يسار ﷺ تسليم شو۔ او پدے کښې اشاره ده چه د الله تعالیٰ په حکمونو کښې د انسان داسے مصلحتونه او فائدے شته چه هغه صرف الله تعالیٰ ته معلومے دی، نو انسان باندے تابعداری لازم ده، او رسم او رواج د هغے په خلاف پريخودل پکار دی، اګر که انسان ته په هغے کښې په ظاهره کښې فائده ښکاری، ليکن په واقع کښې په هغے کښې ضرر دے۔

| وَالْوَالِدَاتُ يُرْضِعْنَ اَوْلَادَهُنَّ حَوْلَيْنِ كَامِلَيْنِ لِمَنْ اَرَادَ اَنْ يُّتِمَّ الرَّضَاعَةَ |
|---|
| او ميندے به تے ورکوی خپلو اولادو ته دوه کاله پوره دپاره د هغه چا چه غواړی چه پوره کړی موده د تے ورکولو |
| وَعَلَى الْمَوْلُوْدِ لَهٗ رِزْقُهُنَّ وَكِسْوَتُهُنَّ بِالْمَعْرُوْفِ |
| او په هغه سړی چه بچے پيدا کړے شوے دے د هغه دپاره خوراک د هغوی او جامه د هغوی ده د عرف مطابق، |
| لَا تُكَلَّفُ نَفْسٌ اِلَّا وُسْعَهَا لَا تُضَآرَّ وَالِدَةٌ بِوَلَدِهَا |
| تکليف به نهٔ شی ورکيدے هيڅ نفس ته مګر په اندازه د طاقت د هغه۔ ضرر به نهٔ شی ورکولے مور ته په سبب د بچی د هغے |
| وَلَا مَوْلُوْدٌ لَّهٗ بِوَلَدِهٖ وَعَلَى الْوَارِثِ مِثْلُ ذٰلِكَ فَاِنْ اَرَادَا |
| او نهٔ پلار ته په بچی د هغه سره او په وارث باندے (لازم دے) په مثل ددے کار۔ نو که ښځے او خاوند اراده اُوکړه |
| فِصَالًا عَنْ تَرَاضٍ مِّنْهُمَا وَتَشَاوُرٍ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا وَاِنْ اَرَدْتُّمْ |
| د تيو نه د پريکولو سره د رضامنتيا ددے دواړو نه او مشورے ددے دواړو نه نو نشته ګناه پدے دواړو او که تاسو اراده کوئ |
| اَنْ تَسْتَرْضِعُوْا اَوْلَادَكُمْ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ اِذَا سَلَّمْتُمْ مَّا |
| چه د تی ورکولو دپاره مور اُونيسئ دپاره د اولاد خپل نو نشته ګناه په تاسو کله چه پوره ورکړئ هغه مال |

آتَيْتُم بِالْمَعْرُوفِ وَاتَّقُوا اللَّهَ وَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ﴿۲۳۳﴾

چه تاسو د هغې ورکول مقرر کړی وی د عرف مطابق او ويرېږئ د الله نه او پوهه شئ چه بيشکه الله ستاسو په عملونو ليدونکے دے.

**تفسير**: پدے آيت کښې د تدبير منزل د حکمونو نه دولسم حکم دے چه د مطلقانو سره هم متعلق دے او د بچو سره هم، چه هغې ته حکم د رضاعت (پئ ورکولو) وائی۔ د نکاح او د طلاقو نه روستو د رضاعت مسئله ذکر شوه، ځکه چه د طلاقيدو په صورت کښې ممکن ده چه د دوی ځۀ پئ ځکونکے بچے وی، نو دا معلوميدل ضروری دی چه د هغه پرورش به څنګه کيږی۔

مور دوه قسمه ده (۱) يوه هغه ده چه طلاقه شوی نۀ وی، نو هغه خو به خپلو اولادو له ضرور پئ ورکوی، او دا په هغې واجب دی، او دا د خاوند او د بچی په هغې باندے حق دے۔

(۲) او يو هغه مور ده چه طلاقه شی، او بچے پاتے وی، نو په هغې لازمه نۀ ده چه ماشوم ته پئ ورکړی ځکه چه د طلاقيدو په صورت کښې بچے د خاوند رسيږی، نو د هغې خوښه ده، که تے ورکوی او که نۀ، ليکن شريعت وائی که مور غواړی چه دغه ماشوم له پئ ورکړی، نو پلار به ئے ترے نۀ منع کوی، ځکه چه دا ماشوم د مور نه بغير ژوند نشی تيرولے۔ دارنګه که مور انکار کوی، نو هغې ته وائی چه تا له پکار دی چه تۀ پئ ورکړے او ستا د نفقے او خوراك بندوبست به د بچی پلار کوی۔ نو پلار به د بچی مور له د عرف مطابق تنخواه مقرر کړی، او هغه به دوه کالو پورے تے ورکوی۔ که پلار مړ وی، نو د بچی د ميراث نه به مور ته تنخوا ورکړے کيږی۔ او که مور مجبوره شوه نو بيا به ورله په کرايه بله ښځه د پئ ورکولو دپاره اُونيولے شی۔

د آيت لنډ مطلب دا دے چه الله تعالىٰ اُوفرمايل چه طلاقے شوے ميندے به خپل پئ ځکونکو بچو ته پوره دوه کاله پئ ورکوی۔ دا حکم د هغه چا دپاره دے چه د رضاعت موده پوره کول غواړی۔ که مور او پلار ددے نه د کمے مودے نه روستو بچے د تيونه پريکول غواړی، نو هيڅ ګناه نشته، او پلار به هغه طلاقے شوے مور ته کومه چه پئ ورکوی، د عام عرف مطابق خوراك او جامے ورکوی، او کله چه هغه طلاقے شوے مور خپل بچی ته د پيو ورکولو دپاره تياره شی، نو د پلار دپاره دا جائز نۀ دی چه بچے د هغې نه واخلی، يا دا چه د هغې د پيو ورکولو باوجود د هغې نه خوراك او جامے ورکول بند کړی۔

دغه شان دا هم جائز نۀ دی چه طلاقه شوے مور پلار ته د نقصان رسولو دپاره بچے هغه ته ګوزار کړی، او د پيو ورکولو نه انکار اُوکړی، کله چه بچے د مور سره اموخته وی، يا دا چه د زياتو پيسو مطالبه اُوکړی۔

او که پلار د خپل بچی دپاره بله کومه پئ ورکونکے دائی مقرر کول غواړی (ځکه چه مور انکار کړے وی، یا هغه د پیو ورکولو نه مجبوره وی یا وادهٔ کول غواړی) نو هم هیڅ ګناه نشته، پدے شرط چه د زړهٔ په خوشحالئ دائی ته د هغے مناسب مزدوری ورکړی۔

او که پلار مړ شوے وی، نو د هغه په وراثانو باندے هغه څهٔ واجبیږی، کوم چه د هغه په پلار باندے واجب وو، یعنی دهغه مورنه به بچے نهٔ اخلی، او د هغے د رضاعت اخراجات به پوره پوره ادا کوی۔

## د آیت ربط او تړون

○ مخکښ آیت کښ په زنانه باندے د نکاح په باره کښ د ظلم کولو رد اُوشو، چه ددے منع کول ظلم دے، نو اُوس هغه ظلم رد کوی چه په زنانه باندے د پئ ورکولو په باره کښ کیږی، لکه څنګه چه به جاهلیت والو داسے کول۔

○ دارنګه کله دعدت د تیریدو نه روستو د ښځے ماشوم بچے پاتے وی، چه هغهٔ ته د پیو ورکولو د وجه نه ښځے ته بله نکاح مشکله شی، پدے وجه چه هغه نفقه نهٔ مومی نو د بچی د وجه نه د اختلاف پیدا کیدو خطره ده، نو الله تعالیٰ پدے آیت کښ د هغے تفصیلی حکم بیانوی۔

﴿وَالْوَالِدٰتُ﴾ ددے نه مراد هغه میندے دی چه طلاقے شوی وی، او دا غوره قول دے، او چا چه ددے نه عامے میندے مراد کړیدی برابره ده چه هغه په نکاح کښ وی، او که طلاقے شوی وی، نو هغه د ځلورو وجو نه غوره نهٔ دے چه هغه صاحب د تفسیر المنار په تفصیل سره ذکر کړیدی۔

(۱) اول دا چه دا په مخکښ آیت عطف دے، او هلته طلاقه شوے ښځه مراده وه نو دلته به هم دغه مراده وی۔ (۲) دویم دا چه بچی ته په پئ ورکولو کښ اختلاف هله راځی چه ښځه طلاقه شی ځکه چه هغه ځانله بل خاوند کوی۔ (۳) په حالت د نکاح کښ په خاوند باندے جامے او نفقه پخپله واجبه وی، نو دهغے ذکر کولو ته په (وَعَلَى الْمَوْلُوْدِ لَهٗ رِزْقُهُنَّ وَكِسْوَتُهُنَّ) سره هیڅ حاجت نهٔ وو۔ (٤) آیت کښ علت ذکر شویدے چه مور به د بچی په ذریعه پلار ته تکلیف نهٔ ورکوی، او دا تکلیف هله وی چه ښځه طلاقه شوی وی، ښځے د دغه خاوند نه نفرت کړے وی، او غواړی چه بله نکاح اُوکړی، او خاوند ته په بچی زور ورکوی، یا خاوند ښځے ته زور ورکوی، چه د ښځے نه بچے اخلی۔

﴿يُرْضِعْنَ اَوْلَادَهُنَّ﴾ دا خبر دے په معنیٰ د امر سره دے، او په صورت د خبر کښ ئے ذکر کړو، دے دپاره چه په ذهن کښ خبره ښهٔ مضبوطه شی۔ او دا امر د استحباب دپاره دے، دلیل پرے د سورة الطلاق (٦) آیت دے: (فَاِنْ اَرْضَعْنَ لَكُمْ فَاٰتُوْهُنَّ اُجُوْرَهُنَّ)۔ یعنی که ښځے غواړی چه پئ ستاسو دپاره بچی ته ورکړی نو هغوی ته اجرت ورکړئ)۔

بعض علماء وائي چه دا حکم وجوبي دے، اګرکه د پیو دپاره بله ښځه دائي ملاویږي. لیکن د خپلے مور پیۍ او تربیت د دائي نه ډیر فائده مند وي. نو دا وجوب د مصلحت دپاره دے، نۀ د تعبد او عبادت دپاره. آو، کـه د دواړو په دائي نیولو اتفاق راغلو، نو بیا جائز ده چه مور پیۍ ورنکړي یا څۀ مجبورتیا وي، نو بیا به دا حکم واجب نۀ وي. لکه دا د سورة الطلاق نه معلومیږي چه ﴿وَإِنْ تَعَاسَرْتُمْ فَسَتُرْضِعُ لَهُ أُخْرَىٰ﴾ (تفسیر المنان).

﴿حَوْلَيْنِ كَامِلَيْنِ﴾ (حول) په اصل کښې ګرځیدو ته وئیلے شي، او کال هم ګرځي، دکال نه مراد اسلامي کال دے، چه هغے ته هجري قمري وائي، او کاملین ئے ورسره ځکه اُووئیل چه عرب کله نیم کال او اکثره حصه د کال ته هم کال وائي، نو دلته وائي چه پوره دوه کاله به وي چه هغه (٢٤) میاشتے دي. او دوه کالو پورے پیۍ ورکول د بچي حق دے.

﴿لِمَنْ أَرَادَ أَنْ يُتِمَّ الرَّضَاعَةَ﴾ یعني دا واجبه نۀ ده چه دوه کالو پورے به ئے پوره ورکوي. که یو نیم کال پس ئے د تیو نه پریکړو، یا یو کال پس، نو هم جائز ده، خاصکر کله چه بچے تکړۀ هم وي. خو دوه کالو پورے په مور باندے حق دے چه دے بچي له تے ورکړي.

﴿لِمَنْ﴾: ددے نه مراد مور هم ده او پلار هم. یعني که پلار غواړي چه تے به دوه کاله ورکوي، نو مور به انکار نۀ کوي، او که مور غواړي نو پلار به ئے تربے نۀ اخلي.

دارنګه ددے د مفهوم مخالف نه دا خبره راوځي چه د دوه کالو تیریدو نه روستو حرمت د رضاعت نۀ ثابتیږي، او که د یو مصلحت د وجه نه د دوه کالو نه مخکښې ئے د پیو ورکولو نه پریکوي نو دا کار به جائز وي. (قاسمي).

**فائده** : شریعت د رضاعت دپاره دوه کاله موده پدے وجه مقرر کړه، چه د ماشوم د صحت ترقي د پیو په وجه په همدے عمر کښې کافي کیږي. پدے وجه شریعت د مور او د پلار د اختلاف په وخت کښې دوه کالو ته اعتبار ورکړو، دے دپاره چه د ماشوم د صحت او د مزاج خیال اُوساتلے شي. او د دوه کالو نه روستو غالباً د ماشوم د غذاء او د خوراك په وجه پرورش کیدے شي، پیو ته ئے دومره ضرورت نۀ وي.

**تنبیه**: آیت نه معلومه شوه چه اکثره موده د رضاعت دوه کاله ده.

او په دے موده کښې به رضاعت ثابتیږي، نۀ په زیاته موده کښې. او پدے کښې خو صرف د طلاقو په صورت کښې د جګړے د ختمولو دپاره دوه کاله متعین شویدي. او دا مطلب نۀ دے چه د دوه کالو نه روستو مور له بچي ته تے ورکول حرام دي. بلکه که مور او پلار مصلحت ګڼړي، مثلاً بچے کمزورے وي، نو مور ورته د دغه مودے نه زیات هم تے ورکولے شي.

(بغویؒ بتصرف)

## مسئله : د رضاعت موده

په څومره موده کښې چه ماشوم پئ اُوڅکی، حرمت ثابتیږی؟ پدے کښې اختلاف دے۔ صحیح او راجح قول دا دے چه د رضاعت موده دوه کاله ده۔ دے نه روستو رضاعت له هیڅ اعتبار نشته۔ **دلیل** پرے دا آیت دے : ﴿ حَوْلَيْنِ كَامِلَيْنِ لِمَنْ اَرَادَ اَنْ يُّتِمَّ الرَّضَاعَةَ ﴾۔

(یعنی څوك چه د رضاعت اراده لری نو پوره دوه کالو پورے ورکولے شی)

او پدے موده کښې به د رضاعت حرمت ثابتیږی۔ د اکثرو ائمه کرامؒ همدا رائے ده چه حرمت په همدے رضاعت سره ثابتیږی کوم چه په دوه کالو کښې دننه وی۔ که د بچی عمر د دوه کالو نه زیاتیږی، نو په رضاعت سره به حرمت نهٔ ثابتیږی۔

۲- **دلیل** : سورة لقمان (۱٤) آیت کښې دی :﴿وَفِصَالُهٗ فِيْ عَامَيْنِ﴾

(د تیو نه پریکول ئے په دوه کاله کښې دی)۔

۳- **دلیل** : د سورة الاحقاف (۱۵) آیت دے ﴿ وَحَمْلُهٗ وَفِصَالُهٗ ثَلٰثُوْنَ شَهْرًا ﴾

(او حمل د بچی او د تیو نه د پریکولو موده ئے دیرش میاشتے دی)۔

د حمل نه مراد کمه موده د حمل ده چه هغه شپږ میاشتے دی، او باقی موده (دوه کاله) د تیو موده ده۔ دا آیتونه صریح دی پدے خبره کښې چه د رضاعت موده دوه کاله ده۔

صاحب د تفسیر المنار لیکی چه د قرآن د تصریح باوجود په موده د رضاعت کښې د امامانو اختلاف کول ډیر د تعجب والا دی۔

۴- **دلیل** : ترمذیؒ د ام سلمه رضی الله عنها نه روایت کړے چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل ((چه په رضاعت سره حرمت په هغهٔ وخت ثابتیږی، کله چه د خولے په ذریعه پئ د سینو نه راوځی او کولمے څیری کړی (یعنی بنهٔ مړیدو سره ئے اُوسکی) او د رضاعت په موده کښې دننه وی))۔

دارقطنیؒ د ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت کړے چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل :

((چه حرمت په هغه رضاعت سره ثابتیږی چه په دوه کالو کښې دننه وی))۔

او ابو داود طیالسیؒ د جابر رضی الله عنه نه روایت کړے چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل :

((چه د رضاعت د مودے د ختمیدو نه روستو د رضاعت حکم نشته، او بلوغ ته د رسیدو نه روستو یتیم والے نشته))۔

د قرآن کریم ددے ښکاره آیت او ددے نبوی احادیثو په وجه سره د ډیرو صحابه کرامؓ او تابعینِ عظامؒ همدا مذهب وو۔ د علی بن ابی طالب، ابن عباس، ابن مسعود، جابر، ابو هریره، ابن

عمر، او ام سلمه رضی الله عنهم۔ د سعید بن المسیبؒ او عطاؒ وغیرهم همدا رائے ده۔ او د شافعیؒ، احمدؒ، اسحاقؒ او سفیان ثوریؒ همدا مذهب دے۔

(۲) د امام ابوحنیفةؒ رائے ده چه د رضاعت موده دوه کاله شپږ میاشتے ده، او هغه د ﴿وَحَمْلُهُ وَفِصَالُهُ ثَلَاثُونَ شَهْرًا﴾ نه دلیل نیسی، او هدایه مولا د هغه دپاره د آیت تاویل داسے کړے چه د حمل نه په لاسونو کښې اوړول راوړول مراد دی، او فصال د تیو نه پریکول دی۔ حال دا چه داسے تاویل د سلفو دهیڅ عالِم نه نهٔ دے نقل۔ بلکه د علی بن ابی طالبؓ وینا ده چه د حمل نه مراد دلته کمه موده د حمل ده چه هغه شپږ میاشتی دی۔

نو دوه کاله موده د رضاعت شوه۔ نو دلته په آیت کښې کمه موده د حمل او زیاته موده د رضاعت بیان شویده۔

(۳) امام لیث بن سعدؒ فرمائی چه که لوئی سړی ته هم د یوے ښځے پی ورکړے شی، نو هغه به د هغے رضاعی ځوی جوړیږی۔ او د رضاعت حرمت به ثابتیږی، او ددے په دلیل کښې د سهله بنت سهیل رضی الله عنها واقعه پیش کوی چه هغه رسول الله ﷺ ته راغله، وے وئیل چه اے د الله رسوله! زهٔ محسوس کوم چه د سالمؓ زما خوا ته راتلل د ابوحذیفةؓ (د هغے خاوند) ته خوښ نهٔ دی، نو نبی ﷺ اُوفرمایل چه تهٔ سالمؓ ته پی ورکړه۔ سهلےؓ اُووئیل: زهٔ څنګه پی ورکړم هغه خو غټ سړے شویدے؟ نو نبی ﷺ مُسکے شو او وے فرمایل، چه زهٔ پوهیږم چه هغه غټ سړے شویدے۔ سهلےؓ همدغسے اُوکړل، او بیا رسول الله ﷺ ته راغله، وے وئیل چه اُوس د ابوحذیفةؓ په مخ باندے د بد ګڼړلو آثار نهٔ وینم۔ ابوحذیفه ؓ بدری صحابی وو۔ (ابن ماجه)۔

دا واقعه امام مسلمؒ، ابوداودؒ، او امام مالکؒ هم روایت کړیده، د عائشے رضی الله عنها او د ابوموسی اشعریؒ هم دغه رائے وه۔

**لیکن** زیاته غوره دا ده چه د دوه کالو نه روستو رضاعت نهٔ ثابتیږی لکه چه د پورتنو دلائلو نه ثابته شوه۔ ددے رائے تقویت پدے سره هم کیږی چه یو ځل رسول الله ﷺ د عائشے رضی الله عنها خوا ته تشریف راوړو، وے لیدل چه یو سړے د هغے خوا ته ناست دے، نبی ﷺ پوښتنه اُوکړه چه دا سړے څوک دے؟۔ عائشےؓ اُووئیل چه دا زما رضاعی وروردے، نو نبی ﷺ اُوفرمایل چه سوچ کوئ چه کوم خلق ستاسو خوا ته راځی ځکه چه رضاعت په هغه وخت ثابتیږی کله چه هغه لوږه لرے کړی۔ (بخاری، مسلم، ابوداود، ابن ماجه)۔

معلومه شوه چه رضاعت به هله ثابتیږی چه پی لوږه لرے کړی، او د ماشوم غذا صرف پی وی۔

او د سهله بنت سهیلؓ او د سالمؓ واقعه به د مخکنو ښکاره روایاتو په رڼرا خاص منلے کیږی۔

یعنی ددې دپاره به عام حکم نهٔ وي بلکه د هغوی پورې به خاص وي.

او پدې وجه هم چه د نبي ﷺ او د صحابه کرامؓ په زمانه کښې داسې بله کومه واقعه نهٔ ده واقع شوې. د سهلې رضی الله عنها په واقعه کښې راغلي دي چه کله رسول الله ﷺ هغې ته د سالمؓ د پيئ ورکولو په حقله اُووئیل نو هغه حیرانه شوه او وې وئیل چه هغه خو ښهٔ پوره لوئی سړې دې. هغه له به زهٔ څنګه پيئ ورکړم؟ نو نبي ﷺ مُسکې شو او وې وئیل چه ما ته پته ده چه هغه پوره ځوان شوېدې. ددې خبرو اترو نه اندازه لګيږي چه رسول الله ﷺ د سهلېؓ د کورنئ د تمامو حالتونو نه په ښهٔ شان واقفیت لرلو، او پوهیدو چه سالم د ورو کوالي نه د دوی سره اُوسيږي، د هغوی سره رالوئي شوېدې، نهٔ هغوی د سالمؓ نه بغير اُوسیدې شي، او نهٔ سالم د هغوی نه جدا کيدې شي.

پدې وجه کله چه سهلې رضی الله عنها خپله مجبورتیا رسول الله ﷺ ته بیان کړه، نو رسول الله ﷺ د هغوی خاص حالات مخې ته کولو سره هغوی ته هغه حل اُوخودلو، کوم چه مخکښې ذکر شو. یو طرف ته د الله رسول وو او بل طرف ته د یوې صحابیه ضرورت، نو هغې ته ددې اجازت ورکړې شو. د عامو صحابه کرامؓ دپاره او د تمامو مسلمانانو دپاره هغه حکم پاتې شو کوم چه په آیتِ کریمه او احادیثو کښې بیان کړې شو چه د رضاعت حکم به په دوه کالو کښې دننه ثابتيږي. وبالله التوفیق.

او راجح دا ده چه د سخت ضرورت په وخت به د لوئي سړي رضاعت هم ثابتيږي.

(٤) د محدثینو په نیز پنځه ځل پيئ سکلو سره د رضاعت حرمت ثابتيږي.

**۱- دلیل** : ددې مشهور دلیل هغه حدیث دې، کوم چه امام مسلم د عائشه رضی الله عنها نه روایت کړې چه په قرآن کریم کښې د لسو کرتو پیو سکلو نه روستو د حرمتِ رضاعت حکم نازل شوې وو، بیا د پنځه ځل په ذریعه مخکنې حکم منسوخ شو. او د رسول الله ﷺ د وفات په وخت کښې همدا حکم موجود وو.

دویم دلیل د سهله بنت سهیلؓ واقعه ده چه په هغې کښې رسول الله ﷺ هغې ته اُوفرمایل چه هغه دې پنځه کرته سالم ته پيئ ورکړي.

**۲- دلیل** : په احادیثو کښې د (رَضَعَات) لفظ راغلې دې چه هغه د رَضْعَة جمع ده او د هغې معنٰی ده، یو کرت پيئ سکل، ماشوم چه سینه اُونیسي او بیا ئې پریدي، دا یوه رضعه شوه لکه دا خبره په المغني لابن قدامه (۱۹۹/۹) کښې ذکر ده، او د احتیاط په طور د رضاعت همدا معنٰی غوره ده. نو ماشوم چه کله دغسې پنځه کرته د یوې ښځې پيئ اُوسکي نو هغه به ددهٔ رضاعی

مور جوړيږی او د هغې تول بچی به ددهٔ رضاعی ورونه او خويندې جوړيږی او د هغې خاوند به ئې رضاعی پلار۔ والله تعالیٰ اعلم۔

﴿ وَعَلَى الْمَوْلُودِ لَهٗ رِزْقُهُنَّ ﴾ اُوس وائی چه دا ښځه خو طلاقه شوې ده، دودئ به د کوم ځائے نه خوری، نو هغه بيانوی، چه هرکله ښځه د خاوند بچی له پئ ورکوی، نو خاوند باندې لازم دی چه دې ښځې ته به د عرف مطابق رزق او جامې ورکوی۔

(المولود له) ددې نه مراد پلار دې او پدې لفظ سره ئې ترې تعبير اُوکړو (يعنی هغه شخص چه د هغه دپاره ولادت شويدې) پدې کښې اشاره ده وجوب د مشقت ته په پلار باندې يعنی هرکله چه دا بچې د پلار دپاره پيدا شويدې، او د هغه حق دې، نو هغه به دې ښځې ته د پيو په بدله کښې خرچه هم ورکوی۔ او پدې کښې دا اشاره هم ده چه د بچی نسب د پلار پسې ځی۔ نهٔ د مور پسې۔ (قاسمیؒ)۔

(سوئ د رسول الله ﷺ د آل نه چه هغوی د خپلې مور فاطمې رضی الله عنها پسې ځی)۔

﴿ بِالْمَعْرُوْفِ ﴾ معروف دا دې چه ښځه به ډيره اُوچته جامه نهٔ غواړی، او پلار به هم ډيره خرابه نهٔ ورکوی، بلکه د پلار د وسع مطابق به وی، پدې وجه شريعت دا عرف ته سپارلی دی ځکه وائی : ﴿ لَا تُكَلَّفُ نَفْسٌ اِلَّا وُسْعَهَا ﴾ که مالداره وی، د مالدارئ مطابق جامه دې ورکوی، او که غريب وی نو د غريبئ مطابق۔

﴿ لَا تُضَآرَّ وَالِدَةٌ بِوَلَدِهَا ﴾ لَا تُضَآرَّ: پدې کښې دوه احتماله دی۔

(۱) يا دا چه دا مجهوله صيغه ده په اصل کښې (لَا تُضَارَرْ) دې۔ وَالِدَةٌ ئې نائب فاعل دې۔ يعنی مور ته به ددې په بچی سره ضرر نشی ورکولے، چه پلار ئې د پيو ورکولو نه منع کړی، او هغه اراده لری چه تې ورکړی چه بيا بچې او مور د يو بل پسې ژړاګانې کوی۔ يا د نفقې ورکولو نه انکار اُوکړی۔ (۲) دويم دا چه دا د معلوم صيغه ده په اصل کښې (لَا تُضَارِرْ) دې۔ وَالِدَةٌ ئې فاعل دې۔ معنیٰ دا ده مور به ضرر نهٔ ورکوی په سبب د خپل بچی سره چه پلار تنګ کړی، چه ډير اجرت ترې نه غواړی، يا د پيو ورکولو نه انکار اُوکړی سره د طاقت د هغې نه۔ يا د بچی خيال نهٔ ساتی، دې دپاره چه پلار ئې تنګ شی۔ او دلته ئې مور ته هم نسبت د ولد (بچی) اُوکړو دپاره د شفقت، چه ستا هم بچې دې، ته پرې پلار ته ولې تکليف ورکوې، او ددهٔ حق ولې بربادوې!۔

﴿ وَلَا مَوْلُوْدٌ لَّهٗ بِوَلَدِهٖ ﴾ دارنګه پلار به په سبب د خپل بچی سره مور د بچی ته ضرر نهٔ ورکوی، او نهٔ به پلار ته په سبب د خپل بچی ضرر ورکولے شی (پدې کښې د مخکښې صيغې مطابق دوه معنې شوې)۔

﴿ وَعَلَى الْوَارِثِ مِثْلُ ذٰلِكَ ﴾ دا په (وَعَلَى الْمَوْلُوْدِ) باندې عطف دې۔ اُوس وائی، که چرې پلار مړ

وی، نود پلار په میراث خوربانديے به د مور دغه نفقه او جامے لازمے وی۔ یا دا مثلیت د ضرر په نهٔ ورکولو کښې دے، یعنی لکه څنګه چه پلار د ضرر ورکولو نه منع دے، نو دغه شان که پلار نهٔ وی، نو باقی میراث خوارو ته به هم مور ضرر نهٔ ورکوی۔ او میراث خوارهٔ به هم ښځه نهٔ تنګوی۔ او نفقے ته هم اشاره ده۔ (قرطبی ۳/۱۷۰ وابن کثیر ۱/۶۳۵ فتح القدیر للشوکانی)

د وارث نه څوك مراد دے؟ پدے کښې ګنړ اقوال دی۔ غوره قول دا دے چه د وارث نه مراد، خپله همدا هلك او بچے دے چه پی څوری، یعنی که د پلار نه بچی ته مال پاتی وو، نو د هغه د میراث نه به دے مور ته نفقه او جامے ورکولے شی۔ پدے صورت کښې په اَلْوَارِثِ کښې الف لام د مضاف الیه نه بدل دی، یعنی وَارِثُ الْمَوْلُوْدِ لَهٗ (یعنی د پلار وارث) چه هغه دا بچے دے۔ او که میراث نهٔ وو پاتے، نو بیا وارث الصبی مراد دے یعنی ددے بچی چه کوم میراث خوارهٔ دی چه هغه نیکهٔ، ورونه او ترونه دی۔

دا که عصبه وی او که ذوی الارحام، تولو ته شامل دے۔ کوم چه پکښې مالدار وی په هغه حق دے چه دا کفالت به کوی۔ (تفسیر المنار)

او دا قول د ضحاك، قبیصة او بشیر بن نصر وغیره دے (قرطبی، ابوحیان)۔

﴿ فَإِنْ أَرَادَا فِصَالًا عَنْ تَرَاضٍ مِنْهُمَا ﴾ د فصال نه د تیو نه پریکول مراد دی۔ په معنیٰ د فِطَامًا (تی نه پریکولو) سره دے۔ او عَنْ په معنیٰ د (بَعْدَ) سره دے۔ یا اجلیه دے۔

مطلب دا دے چه که مور او پلار د بچی اراده اُوکړه چه بچے قوی دے، اُوس به ئے د تیو نه پریکړو، نو که دوه کاله پوره نهٔ وو هم جائز ده، خو پس د اتفاق د دواړو نه، او پس د رضا او خوشحالئ د دواړو نه، او پس د مشورے نه۔ د اضطرار، مجبورتیا او یرے په وجه به نهٔ وی۔ بلکه دواړه به د ماشوم د تیو نه په پریکولو کښې مصلحت وینی۔ او مشوره به څکه کوی چه د بچی په باره کښې فائدو او ضررونو کښې سوچ اُوکړی چه آیا د تیو نه په پریکولو کښې ئے فائده ده، او نه تر دوه کالو پورے په باقی پریخوستو کښې۔ او خپلو مصلحتونو ته به نهٔ ګوری چه د بچی په تربیت کښې نقصان رانشی او هغه ضائع نشی۔

﴿ وَإِنْ أَرَدْتُمْ أَنْ تَسْتَرْضِعُوا أَوْلَادَكُمْ ﴾ دا د بچی مور او پلار ته خطاب دے، او پدے کښې د غائب نه خطاب ته التفات دے۔ پدے کښې بل حکم بیانوی چه که مور بچی ته د پی ورکولو نه معذوره او عاجزه شی، یا انکار اُوکړی، یا بل خاوند کول غواړی او خاوند سره مشوره اُوکړی چه بله ښځه (رضاعی مور، دائی) به د تے ورکولو دپاره اُونیسو، نو الله فرمائی چه دا کار هم جائز دے۔ استرضاع طلب د مُرْضِعے (تے ورکونکے) ښځے ته وئیلے شی۔ یعنی رضاعی مور نیول۔

خو دے سره یو شرط لګوی:

﴿إِذَا سَلَّمْتُم مَّا آتَيْتُم﴾ چه کله تاسو پوره ورکړئ هغه مزدوری چه تاسو د هغے دپاره د پئ ورکولو په بدله کښې په رضا د دواړو جانبینو سره مقرر کړی وی)، او په هغے کښې موخۀ نقصان نۀ وی کړے. تسلیم کښې معنیٰ د پوره ورکولو ده، او د مَا آتَيْتُم: نه مراد مقرر کول دی. قاسمیؒ او صدیق حسن خانؒ وائی: [مَا اَرَدْتُمْ اِيتَاءَهُ اِلَيْهِنَّ مِنَ الْاُجْرَةِ] یعنی هغه اجرت او مزدوری چه تاسو هغوی ته د ورکولو اراده کړی وی).

﴿بِالْمَعْرُوفِ﴾ یعنی د عرف مطابق، هغه به هم ډیر مال نۀ غواړی، او تۀ به هم کمے نه ورکوے. او په ادا کولو کښې به ئے ټال متهول هم نۀ کوی. یا د معروف نه د تیو ورکولو شرعی موده مراد ده.

قاسمیؒ وائی: د معروف نه مراد په خوشحالئ سره ورکول دی، چه په وخت د مزدوری ورکولو کښې ښائسته خبرے کوی چه په هغے سره د تے ورکوونکو ښځو نفسونه خوشحالیږی او د دوی مخونه پرے روښانه وی، دے دپاره چه د ماشوم په باره کښې هغوی څۀ کوتاهی اُونکړی. آه. (قاسمی وفتح)

﴿وَاتَّقُوا اللَّهَ﴾ یعنی ددے احکامو په عملی کولو کښې د الله نه یره اُوکړئ.

﴿وَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ﴾

پدے کښې د الله تعالیٰ د احکامو د مخالفت کولو نه پوره وعید او یره ورکول دی.

(بَصِيرٌ) د بَصَر نه دے په معنیٰ لیدلو او سترګے سره دے، او دا د الله تعالیٰ حقیقی صفت دے، بغیر د تشبیه او تمثیل او بغیر د تاویل او تحریف نه به منلے شی، او پدے کښې تاویل کول د سلف صالحینو د مذهب نه اُوړیدل دی.

وَالَّذِينَ يُتَوَفَّوْنَ مِنكُمْ وَيَذَرُونَ أَزْوَاجًا يَتَرَبَّصْنَ بِأَنفُسِهِنَّ أَرْبَعَةَ

او هغه کسان چه وفات شی ستاسو نه او پریدی بی بیانے دوی به انتظار کوی په خپلو ځانونو څلور

أَشْهُرٍ وَعَشْرًا فَإِذَا بَلَغْنَ أَجَلَهُنَّ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيمَا

میاشتے او لس شپے پس کله چه دوی اورسیږی خپلے نیتے ته نو نشته ګناه په تاسو په هغه کار

فَعَلْنَ فِي أَنفُسِهِنَّ بِالْمَعْرُوفِ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ ﴿٢٣٤﴾

چه دا ښځے ئے اُوکړی په خپلو ځانونو باندے په ښۀ طریقه او الله ستاسو په عملونو خبردار دے.

**تفسیر** : پدے آیت کښې د تدبیر منزل نه دیارلسم حکم دے چه دے ته [عِدَّةُ الْمُتَوَفّٰی عَنْهَا زَوْجُهَا] وائی یعنی زنانه چه خاوند ئے مړ شی نو هغه به څلور میاشتے او لس ورځے عدت تیروی۔

او پدے کښې مقصد د عدت د وفات په باره کښې د جاهلیت د طریقے نه ځان ساتل دی۔ ځکه چه جاهلیت والو به په ښځه ظلم کولو، نو پدے وجه الله تعالیٰ دا حکم خپله بیان کړو۔

په جاهلیت کښې به د ښځے د خاوند د وفات کیدو نه روستو یوے وړے کوټے ته ننوته، یو کاله پورے به هغے کښې گنده ناسته وه، نۀ به ئے غسل کولو، او نۀ به ئے پاکے جامے اغوستلے، او پدے حالت کښې به پدے باندے حیض هم راتلو، خوراك څکاك به ئے ورله هغه کوټے ته وروړلو لکه څنګه چه سپی ته ورکولے شی۔

او د کال د تیریدو نه روستو به ئے دا رواج وو چه خر، یا چیلے به ئے راوستو او دا زنانه به په حالت د حیض کښې وه، په هغے باندے به ئے کینوله، او دا امر به ورته اُوشو چه د خپل حیض وینه پدے حیوان پورے راکاږی، نو په هغے کښې به دومره جرائیم وو چه د هغے په وجه به دغه حیوان غالباً مړ کیدو۔ او پچه به ئے ورله لاس کښې ورکړه، او هغه به ئے گوزار کړه، نو بس دا به ددے د عدت نه راوتل وو۔ پدے وجه نبی ﷺ ته یوه زنانه راغله چه زما د لور خاوند مړ دے او ددے سترگے خوږیږی نو آیا مونږ ورله رانجه پورے کړو؟، نبی ﷺ اُوفرمایل: نۀ، هغے بیا عرض اُوکړو، نو نبی ﷺ اُوفرمایل : دا (عدت) څلور میاشتے او لس ورځے دی۔ او حال دا چه یوه زنانه به په تاسو کښې د جاهلیت په زمانه کښې یو کاله پورے په دغه بد حالت کښې ناسته وه » ۔ (بخاری)۔

مطلب دا چه په رواج کښې به مو په گران کارونو عمل کولو، او رخصتونه به مونۀ غوختل، او چه کله د الله تعالیٰ آسان حکم راغلو، نو تاسو پدے کښې رخصتونه غواړئ۔ او افسوس چه غالباً د انسانانو همدا طریقه ده، چه په شرك او بدعاتو کښې وی، نو هرڅۀ ته تیار وی او چه کله توحید او سنت ته راشی نو بیا ترے بخیل، سست جوړ شی، معمولی شان مال لگولو، خیرات او صدقه او عبادت کولو ته تیار نۀ وی۔ والی الله المشتکیٰ۔

نو په آیت کښې عدت د هغه ښځے دے چه خاوند ئے وفات وی، او پدے عدت کښې به ښځه د خاوند په کور کښې وخت تیروی، په خپل ځان به خرچه کوی، ځکه چه د خاوند نه به ورته میراث پاتے وی۔ او پدے کښې به إحداد کوی، ( إحداد غم ښکاره کولو ته وائی، هغه دا دے چه سترگے به نۀ تورروی، شونډے او لاسونه او خپے به نۀ سرے کوی، ښائسته جامے به نۀ اچوی، او سر وینځلے شی، خو ډول او زینت به نۀ کوی)، او په کوم ځیز کښې چه ډول دے هغه به نۀ استعمالوی، د خاوند د کور نه به بهر بغیر د ضرورت نه نۀ وځی۔

كه سخت ضرورت راشي، نو د ورځې وتلې شي. ليكن شپې له به بيرته راواپس كيږي. او پدې عدت كښې به سخته پابندي كوي.

قرآن كريم إحداد نۀ دے ذكر كړے، ليكن حديثونو كښې ذكر دے. او دېته زيادت د خبر واحد وائي په كتاب الله باندې، او دا جائز دے، كله چه خبر واحد صحيح ثابت وي. او دا په حقيقت كښې زيادت نۀ دے بلكه بيان د قرآن دے. او په دے آيت (يَتَرَبَّصْنَ) او (مِنْ مَعْرُوْف) لفظ كښې ورته اشاره شوے ده.

څلور مياشتې او لس ورځې چه تيرے شي نو بيائې خپله خوښه ده، آزاده شوه، او كه حامله وه، نو د بچي په راوړو به ئې عدت ختم شي. بيا ډول هم كولے شي، او ځان له خاوند هم كولے شي، ليور، سخر وغيره ئې نشي ايساروله. او په نكاح كولو كښې به د پلار او ورور نه اجازه غواړي ځكه په نكاح كښې ولي شرط دے.

**فائده**: ددے عدت تيرولو حكمت (۱) يو دا دے چه د ښځې رَحِم معلوم شي چه آيا په ولد خو مشغول نۀ دے؟ ځكه چه په څلورو مياشتو كښې د ښځې د رَحِم حالت معلوميږي، پدے موده كښې بچي كښې روح اچولے شي.

(۲) دارنګه دا د خاوند حق دے ځكه چه د دواړو ډيره قريبي رشته وه، نو دومره وخت د خاوند په كور كښې تيرول د هغۀ حق ادا كول دي.

(۳) بعض خلقو ددے حكمت دا بيان كړے، چه ددے مودے نه روستو د وفات شوي خاوند محبت د هغې د زړۀ نه كمزورے كيږي، او د وادۀ مينه ئې پيدا كيږي. (مُهَايمي)

﴿يَتَرَبَّصْنَ بِأَنْفُسِهِنَّ﴾ د څۀ شي انتظار به كوي؟

۱- [أَيْ يَتَرَبَّصْنَ عَنِ النِّكَاحِ] (د نكاح كولو نه به انتظار كوي).

۲- او دارنګه [يَتَرَبَّصْنَ عَنِ التَّزَيُّنِ وَالزِّينَةِ] هر قسم ډول به نۀ كوي.

۳- [وَعَنِ الْخُرُوْجِ مِنْ مَنْزِلِ الزَّوْجِ] (د خاوند په كور كښې به ئې ځان رابند كړے وي، او بهر به نۀ اُوځي). بعض علماؤ ددے دا دليل نيولے دے چه إحداد د ښځې واجب دے. (قاسمي)

او هغې باندې د حديث نه بل دليل روستو فوائدو كښې راځي.

﴿أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَعَشْرًا﴾ دلته لس شپې سره د ورځو نه مراد دي. ليكن د عربو دا عادت دے چه كله د عدد دپاره معدود مذكر وي، او پټ وي، نو بيا اسم عدد كښې تانيث او تذكير دواړه جائز وي، نو پدے وجه ئې (وَعَشَرَة) اُونۀ وئيل. (طبري)

﴿فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيمَا فَعَلْنَ فِي أَنْفُسِهِنَّ بِالْمَعْرُوْفِ﴾ يعني كه ډول كوي، يا چا ته د نكاح دعوت

ورکوی چه ما په نکاح واخله، یا چا ته خان اُوسپاری چه ما چا له په نکاح ورکره، او بِالْمَعْرُوْف څکه وائی چه وران کارونه به نهٔ کوی، ورنه بیا به منع کولے شی۔ او پدے کښې د جاهلیت په رسم رد دے چه هغوی به ښځه منع کوله۔ او د عجمو اکثر خلق ئې هم منع کوی۔

﴿ جُنَاحَ عَلَيْكُمْ ﴾ سرپرستو ته څکه خطاب کوی چه ښځه غالباً ډیر عقل نهٔ لری، نو ډیر کرته هغهٔ به غلط کار کوی، نو سرپرست له ئې منع کول جائز دی، لیکن د شریعت مطابق کار کولو نه به ئې نهٔ منع کوی۔

﴿ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ ﴾ د خبیر : معنیٰ ده، په باطنی کارونو او باریکو کارونو پو هیدونکے دے۔ هر حکم سره دا خبره ذکر کوی چه گوره د الله په خبر او علم او د هغه په بصیرت باندے تاسو یقین اُولرئ، چه هغه تاسو ته گوری نو بیا به ورانے نهٔ کوئ۔

## فوائد او معارف

(۱) که ښځه حامله وی نو د هغے عدت به د بچی په پیدائش وی۔

الله تعالیٰ فرمائی: ﴿ وَاُولَاتُ الْاَحْمَالِ اَجَلُهُنَّ اَنْ يَّضَعْنَ حَمْلَهُنَّ ﴾ چه د حاملے ښځے عدت ختمیدل د بچی په پیدائش دی)۔ او رسول الله ﷺ سُبَيْعَه اَسْلَمِيَّهٔ ته د حمل د پیدائش نه روستو د وادهٔ اجازت ورکړے وو۔ حال دا چه د هغے د خاوند د وفات یو څو ورځے شوے وے۔ (متفق علیه)۔

(۲) د عدت په دوران کښې ښځے ته د وادهٔ، زینت او بغیر د سخت ضرورت نه د خاوند د کور نه بهر شپه تیرولو اجازت نشته دے۔ په اولنئ خبره د علماؤ اجماع ده۔ د دویمے خبرے دلیل د ام سلمه رضی الله عنها حدیث دے چه د یوے ښځے خاوند وفات شو، نو د هغے مور د رسول الله ﷺ نه اجازت اُوغوختو چه هغهٔ په خپلو سترگو کښې رانجه واچوی څکه چه د هغے په سترگو کښې تکلیف وو۔ نو نبی ﷺ اجازت ورنکړو۔ (متفق علیه)۔

او د دریمے خبرے دلیل د فُرَيْعَه بنت مالك بن سنان رضی الله عنها حدیث دے چه د هغے خاوند تختیدونکو غلامانو د مدینے نه بهر په یو ځائے کښې وژلے وو۔ فُریعه ته چه کله خبر اُوشو نو هغے رسول الله ﷺ ته اُووئیل چه هغے له د خپل خاندان والو سره د عدت تیرولو اجازت ورکړی څکه چه په کوم کور کښې دا د خپل خاوند سره اُوسیدله هغه لری وو، نو نبی ﷺ اجازت ورنکړو، او ورته ئې اُووئیل چه تا ته په کوم کور کښې د خاوند د مرگ خبر رارسیدلے په هغے کښې به عدت تیروے یعنی د خاوند کور۔ (احمد، ابوداود، ترمذی، نسائی وغیرهم)۔ (محاسن التاویل للقاسمی ۳/۵۷۲)

البته نبی ﷺ بعض صحابیاتو ته د ورځے د ضرورت په وجه غالباً د باغ نه د میوے پریکولو اجازت ورکړے وو۔ (تیسیر الرحمن)۔

| وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيمَا عَرَّضْتُم بِهِ مِنْ خِطْبَةِ النِّسَآءِ |
|---|
| او نشته ګناه په تاسو باندې په هغه الفاظو کښې چه تاسو اشاره اُوکړئ په هغې سره د غوختنې د زنانو نه |
| أَوْ أَكْنَنتُمْ فِي أَنفُسِكُمْ عَلِمَ اللَّهُ أَنَّكُمْ سَتَذْكُرُونَهُنَّ وَلَٰكِن |
| یا تاسو پټوئ په خپلو زړونو کښې، الله ته معلومه وه چه بیشکه تاسو به یادوئ دوی لره او لیکن |
| لَّا تُوَاعِدُوهُنَّ سِرًّا إِلَّا أَن تَقُولُوا قَوْلًا مَّعْرُوفًا وَلَا تَعْزِمُوا عُقْدَةَ النِّكَاحِ |
| وعده (د نکاح) مه کوئ د دوی سره په پټه مګر که تاسو وایئ وینا نیکه او تاسو مه کلکوئ غوټه د نکاح |
| حَتَّىٰ يَبْلُغَ الْكِتَابُ أَجَلَهُ وَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ يَعْلَمُ مَا فِي |
| تر دې چه اُورسی عدت مقررې نیټې ته او پوهه شئ چه بیشکه الله پوهیږی په هغه څه چه ستاسو په زړونو کښې دی |
| أَنفُسِكُمْ فَاحْذَرُوهُ وَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ غَفُورٌ حَلِيمٌ ﴿٢٣٥﴾ |
| نو اُووېرېږئ د الله نه او پوهه شئ چه بیشکه الله بخونکے، صبر ناک دے۔ |

**تفسیر**: پدې کښې څوارلسم حکم دے یعنی [تَحْرِيمُ نِكَاحِ الْمُعْتَدَّةِ].

(د معتدې ښځې سره په عدت کښې دننه نکاح جائز نۀ ده) یعنی د خاوند د وفات نه روستو د عدت تیرونکې او په طلاق بائن سره د طلاقې شوې ښځې حکم بیان شویدے چه د عدت د تیریدو نه مخکښې داسې ښځو ته د وادۀ پیغام نشي ورکولے، البته کوم شخص چه وادۀ کول غواړی، نو هغه په اشاره او کنایه سره د هغې د پوهه کولو دا کوشش کولے شی چه دا د هغې سره د وادۀ کولو خواهش لري، لیکن په پټه سره د هغې سره د نکاح خبره مقررول، یا وادۀ کول جائز نۀ دی۔

فاطمه بنت قیس رضی الله عنها چه کله هغې ته د هغې خاوند ابو عمرو بن حفص دریم طلاق ورکړو، نو رسول الله ﷺ هغې ته اُووئیل چه هغه دے د ابن ام مکتومؓ په کور کښې عدت تیر کړی، او د عدت د تیریدو نه روستو دے رسول الله ﷺ ته خبر ورکړی۔ نو هغې همدغسې اُوکړل۔ نو نبی ﷺ د اسامه بن زیدؓ دپاره پیغام اُولیږلو او د هغې وادۀ ئې د اُسامهؓ سره اُوکړو۔

نو پدې عدت کښې صرف تعریض جائز دے، او د تعریض صورتونه دا دی: چه صرف اشاره ورته اُوکړی، چه زما یوه ښځه پکار ده، که کونده وي او که څوانه۔

ابن عباس ﷛ فرمائي: تعریض دا دے چه داسې اُووائي: زما د نکاح اراده ده، او داسې دینداره

ښځه خوښوم چه دا دا صفات ئې وي۔ یا ورته داسې اُووائی چه زما تا سره ډیره مینه ده، ارمان چه ستا په شان ښځه راته ملاؤ شي۔ (تفسیر ابی القاسم الطبرانی)

یا داسې اُووائی: مِثْلُكِ لَا يُرَدُّ : (ستا په شان ښځه د رد کیدو لائق نۀ ده) وغیره وغیره اشارات کوی، دے دپاره چه هغۀ ښځه پو هه شي چه دا ما ته اشاره کوی۔ نو دا جائز ده خو داسې به ورته نۀ وائی چه تا به کوم، یا ما سره به نکاح کوے، بل چا سره وعده اُونکړے۔ دا خبرے به ورته نۀ بیانوی ځکه لا تراوُسه په پردیٔ نکاح کښ مشغوله ده۔ نو تصریح کول حرام دی۔

بیا ددے سره الله تعالیٰ دا حکمة او احسان هم بیانوی چه الله تعالیٰ کولے شوه چه تاسو باندے ئې ددے پابندی لګولے وے، لیکن الله ته پته وه چه ستاسو په زړۀ کښ دا خبرے تیریږی، نو اجازه ئې درکړه چه خیر دے اشارے وغیره کویٔ۔

خو ددے نه هسے پردو ښځو سره خبرے نۀ دی مراد، بلکه هله چه د نکاح اراده لری، که نۀ وی نو پردیٔ ښځے سره د چا څۀ کار دے چه خبرے کوی۔ یا ورته ګوری یا ورته اشارے کوی۔ او کله چه یو شخص د یوے ښځے د نکاح اراده لری، نو شریعت هغے ته کتل، او د هغے سره خبرے کول، او هغے ته اشاره کول جائز کړی دی۔ پدے کښ مصلحتونه دی۔

﴿ وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيمَا عَرَّضْتُمْ بِهِ مِنْ خِطْبَةِ النِّسَآءِ ﴾

فِيمَا : د (مَا) نه مراد خبرے او الفاظ دی۔

عَرَّضْتُمْ : تعریض معنیٰ اشاره کول او داسے خبرے کول چه دلالت ئې په مقصود باندے واضح نۀ وی۔ پښتو کښ ورته تیرانے وئیلے شي۔

(خِطبه) د خاء په زیر سره، غوختنه د ښځے او د هغے جرګه کول۔

﴿ أَوْ أَكْنَنْتُمْ فِيٓ أَنْفُسِكُمْ ﴾ په زړۀ کښ دے دا وی چه که ددے ښځے عدت تیر شو نو زۀ به ئې په نکاح اخلم نو پدے کښ ګناه نشته۔ اِکنان: پټ ساتلو ته وئیلے شي۔

﴿ عَلِمَ اللهُ أَنَّكُمْ سَتَذْكُرُوْنَهُنَّ ﴾ یعنی الله ته پته ده چه تاسو به دا زنانه په زړۀ کښ پټه یادویٔ چه دا ښځه خو کونډه شوے ده، زۀ به ئې په نکاح اخلم نو الله ځکه اجازه درکړه۔

﴿ وَلٰـكِنْ لَّا تُوَاعِدُوْهُنَّ سِرًّا ﴾ چه صرف ما سره به نکاح کوے او بل چا سره خبره اُونکړے۔ یا د پټے وعدے نه مراد د هغے سره زنا کول دی۔ یا په پټه د هغے سره نکاح کول۔

د امام شافعیؒ نه نقل دی چه د سِرٌ نه د جماع خبرے مراد دی چه هغے ته د خپلے جماع قوت بیانوی۔ دا ټول منع دی۔

﴿ إِلَّآ أَنْ تَقُوْلُوْا قَوْلًا مَّعْرُوْفًا ﴾ دا استثناء منقطع ده۔ یا متصل ده، او اصل عبارت داسے دے :

[لَا تُوَاعِدُوْهُنَّ اِلَّا بِاَنْ تَقُوْلُوْا قَوْلًا مَّعْرُوْفًا بِالتَّعْرِيْضِ]

(يعنى وعده به په پټه نۀ كوئ، مګر كه په تعريض سره نيكه وينا كوئ نو جائز ده)۔

نو د نيكې وينا نه مراد تعريضى (اشارې) والا خبره ده، د شريعت مطابق قول ته معروف وينا وائى، هغه خبره چه د خلقو مخامخ ئې كولې شى، زنانه ته به هغه الفاظ وئيلې شى، او هغه خبرې به ورسره نشى كولې چه هغۀ د عامو خلقو مخامخ نۀ شى كولې۔ د عامو خلقو په مخ كښې خلق داسې وئيلې شى چه زۀ نكاح كوم، كه كونډه ښځه وى او كه ځوانه وى، زما دواړو ته ضرورت دے۔ اوبے حياء خبرے به نۀ كوى۔ (قاسمى)۔

او دا قَوْلِ مَعْرُوْف بعينهٖ د تعريض الفاظ دى۔

بيا الله تعالىٰ بار بار استثناءات ذكر كوى، پدے كښې دا تنبيه ده چه دا محل ډير تنګ دے او خبره مشكله ده اصل پدے باب كښې منع او پابندى ده، نو د احتياط نه كار اخستل پكار دى۔ (قاسمى)

﴿ وَلَا تَعْزِمُوْا عُقْدَةَ النِّكَاحِ ﴾ عزم: په يو كار پسے د زړۀ غوټه كول دى۔ مراد ترے نه كلكول او مضبوطول دى۔ د عقدة النكاح نه مراد د نكاح غوټه ده يعنى چه ښځے سره نكاح غوټه كړى، وے تړى، داسے به نۀ كوى۔

﴿ حَتّٰى يَبْلُغَ الْكِتٰبُ اَجَلَهٗ ﴾ دكتاب نه مراد (اَلْعِدَّةُ الْمَكْتُوْبَة) دے يعنى هغه عدت چه فرض شوے او ليكلے شوے دے، هغه خپلے نيتے ته اُورسى چه څلور مياشتے او لس ورځے دى۔ يا بچے اُوشى كه حمل وى۔د كتاب لفظ يو متعين شرعى قانون ته هم وئيلے شى، او دلته همدا مراد دے۔ او د كتاب په لفظ سره ذكر كولو كښې ددے اهميت ته اشاره وى۔ يعنى ترڅو پورے چه د قانون موده نۀ وى پوره شوى تر هغه وخته پورے د عقدِ نكاح عزم مۀ كوئ۔ (تدبر قرآن)

﴿ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ مَا فِيْٓ اَنْفُسِكُمْ ﴾ په آخره كښې الله تعالىٰ د خپل صفت حواله وركړه چه ددے صفت په ياد ساتلو سره د الله تعالىٰ د قوانينو صحيح احترام بناء دے۔

او وے فرمايل چه د الله تعالىٰ نه هميشه په يره كښې اُوسيږئ، د هغه مهلت دے تاسو په دهوكه كښې ګوزار نكړى، هغه بخنه كونكے او بُردبار دے، پدے وجه معافى كوى، ليكن هيڅ شے د هغۀ د عِلم نه بهر نۀ دے، لهذا تاسو له پكار دى چه د خپل ځان د بچاؤ اسباب اختيار كړئ، او هغه د الله د احكامو په عملى كولو سره كيږى۔

﴿ فَاحْذَرُوْهُ ﴾ (اُوبريږئ د الله نه په خپل ځانونو د ګناهونو نه)۔

○ اُوبريږئ د الله نه چه د هغه مخالفت اُونكړئ۔

حذر هغه يرے ته وئيلے شى چه ورسره د بچاؤ اسباب اختيار كړے شى۔

لَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ إِنْ طَلَّقْتُمُ النِّسَاءَ مَا لَمْ تَمَسُّوهُنَّ

نشته گناه په تاسو که چرته تاسو طلاقې کړئ ښځې خپلې ترڅو چه تاسو نهٔ وی مسه کړې هغوی لره

أَوْ تَفْرِضُوا لَهُنَّ فَرِيضَةً وَمَتِّعُوهُنَّ عَلَى الْمُوسِعِ قَدَرُهُ

یا نهٔ وی مقرر کړی د هغوی دپاره مهر، او متعه (فائدے) ورکړئ هغوی ته، په مالداره باندے د هغه په اندازه ده

وَعَلَى الْمُقْتِرِ قَدَرُهُ مَتَاعًا بِالْمَعْرُوفِ حَقًّا عَلَى الْمُحْسِنِينَ ﴿۲۳۶﴾

او په غریب باندے د هغه په اندازه ده، فائدے ورکول دی په ښائسته طریقه، دا لازمه ده په احسان کونکو باندے۔

**تفسیر:** اُوس د تدبیر منزل نور احکام راوړی چه هغه د طلاقې شوے ښځې د مهر متعلق دی۔ ټول څلور صورتونه دی۔ مطلقه ښځه دوه قسمه ده یا به ئې مهر مقرر شوے وی یا نهٔ، یا به نزدیکت شوے وی یا نهٔ۔ که مهر مقرر شوے وی نو یا به د نزدیکت نه روستو طلاقه شوی وی، یا مخکښې، که نزدیکت شوے وو نو ټول مقرر مهر به ورکولے شی اګرکه یو ځل نزدیکت شوے وی۔ او که نزدیکت نهٔ وی شوے، نو نیم مهر به ورکړے شی۔ دویم صورت دا چه مهر نهٔ وی مقرر نو بیا به یا نزدیکت شوے وی یا نهٔ، که شوے وی نو مهرِ مثل به ورکوی، او که نزدیکت نهٔ وی شوے نو هیڅ مهر نشته، صرف مُتعه (یو جوړه جامه) به ورکولے شی۔ دا ټول تفصیل په دے آیت او احادیثو کښې ثابت دے۔

**فائده :** د وفات او طلاقو ترمینځ فرق دے که خاوند وفات شو، نو په ټولو صورتونو کښې به ټول مهر پوره ورکوی، نزدیکت شوے وی او که نهٔ۔ خو کله چه مهر ئے ورله مقرر کړے وی، میراث به هم وړی او عدت به هم تیروی ځکه نقصان د خاوند د طرف نه دے، او دغه مخکښې تفصیل صرف د طلاقو په باره کښې دے ځکه چه طلاق د ښځې د عیب د وجه نه واقع کیږی او دا خبره اجماعی ده۔ (فتح البیان)

﴿لَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ إِنْ طَلَّقْتُمُ النِّسَاءَ مَا لَمْ تَمَسُّوهُنَّ﴾ یعنی هغے سره نزدیکت نهٔ دے شوے او طلاق ورکړے نو دا جائز ده۔ نو دلته سوال دے چه سړے ئے مسح کړی او بیا طلاق ورکړی نو آیا بیا به څهٔ ګناهګار وی؟ حال دا چه بیا هم نهٔ ګناهګار یږی؟ ۔

**جواب** دا دے چه دلته معنیٰ دا ده چه کله ښځه مسح کړی، نو بیا هر وخت کښې طلاق نشی ورکولے بلکه هغے دپاره شرطونه دی: په طهر کښې به طلاق ورکوی، په حیض کښې طلاق ورکول حرام دی، دارنګه په داسے طهر کښې چه هغے کښې به نزدیکت نهٔ وی شوے، ځکه که

نزدیکت شوے وی، په هغے کښې به هم طلاق ورکول جائز نهٔ وی، او کله ئے چه مسح کړی نهٔ ده نو بیا هر وخت کښې طلاق ورکولے شی، که په طهر کښې وی او که په حیض کښې وی۔

**دویم جواب** دا دے چه دلته وهم راځی چه قبل المسیس (د مسه کولو نه مخکښې) به طلاق جائز نهٔ وی ځکه څهٔ مشکل نهٔ دے راغلے، نو دلته فرمائی چه د نزدیکت نه مخکښې هم طلاق ورکول جائز دی ځکه کیدے شی، پټ څهٔ ضرورت به وی۔

﴿ اَوْ تَفْرِضُوْا لَهُنَّ فَرِیْضَةً ﴾ (اَوْ) دا د (لَمْ) د لاندے دے (یعنی مَا لَمْ تَمَسُّوْهُنَّ اَوْ لَمْ تَفْرِضُوْا لَهُنَّ) ځکه په تَفْرِضُوْا کښې نون اعرابی ساقط شوے دے۔ فرض په معنیٰ د تقدیر (مقرر کولو) سره دے۔ معنیٰ دا ده چه تا نهٔ ښځه مسحه کړے او نهٔ دے مهر مقرر کړے او مخکښې د وادهٔ نه طلاق ورکوے نو څهٔ فائده ورکړه چه خوشحاله شی۔ لکه چه فرمائی :

﴿ وَمَتِّعُوْهُنَّ ﴾ یعنی څه فائده ورکړه۔ دمتعے نه مراد یوه جوړه جامه ده۔ پدے متعه کښې اختلاف دے۔ بعض علماء وائی چه دا متعه واجبه ده، برابره ده مهر ئے مقرر وی او که نهٔ ؟ ځکه چه دلته د امر صیغه راغلے ده۔ او دا د امام احمدؒ مذهب دے، او همدا غوره دے ځکه چه روستو راځی (وَلِلْمُطَلَّقَاتِ مَتَاعٌ بِالْمَعْرُوْفِ)

او جمهور علماء وائی که مهر مقرر وو نو بیا متعه ورکول مستحب دی ځکه چه یو ځل ئے مهر واخستو، نو بیا په متعه څهٔ کوی او که مهر مقرر نهٔ وو، نو بیا متعه واجب ده۔

**حکمة** : د متعے ورکولو حکمت دا دے چه خاوند دا ښځه د فِراق (جدائی) په وحشت سره یواځے کړه، نو په سبب د ایحاش (یواځے کولو) سره شریعت ددے په زړهٔ باندے د متعے پټئ واړوله۔

**فائده** : د مُتعے څومره اندازه ده؟ نو د روستو الفاظو نه معلومیږی چه د عرف مطابق وی، د مالدار او د غریب فرق به کولے شی۔ د عبد الله بن عباس رضی الله عنهما نه نقل دی چه د طلاقو د متعے اعلیٰ درجه یو خادم یا وینځه ورکول دی۔ او ددے نه خکته د سپینو زرو پیسے ورکول، او ددے نه خکته جامے ورکول دی۔

د ابن عباسؓ یو بل روایت دا دے چه که مالدار وی نو خادم وغیره به ورکوی، او که غریب وی نو درے جامے به ورکړی (قمیص، لوپټه او پرتوګ)۔

عبد الرزاقؒ روایت راوړے: چه حسن بن علی رضی الله عنهما په متعه کښې لس زره روپئ ورکړے، نو ښځے اُوئیل: [مَتَاعٌ قَلِیْلٌ مِنْ حَبِیْبٍ مُفَارِقٍ] د جدا کیدونکی محبوب د طرف نه دا څو ډیر معمولی فائدے دی)۔ (قاسمیؒ)

د امام ابو حنیفةؒ په نیز کله چه د ښځے او خاوند د متعے په اندازه کښې اختلاف راشی، نو ښځے

Scanned by CamScanner

تـه بـه نیمائی مهرِ مثل ورکولے شی او د پنځه دراهمو نه به کم نهٔ وی ځکه چه د هغه په نیز کم مقدار د مهر لس درهمه دی۔

لیـکـن صحیح دا ده چه د خاونـد حـالـت د مالدارئ او غریبئ ته کتل پکار دی۔ لکه چه الله تعالیٰ هغه بیانوی: ﴿عَلَى الْمُوْسِعِ قَدَرُهُ وَعَلَى الْمُقْتِرِ قَدَرُهُ﴾ مُوْسع هغه مالدار دے چه د هغهٔ مالداری فراخه وی۔ (الْمُقْتِر) د إِقْتَار نه دے په معنیٰ د فقر سره۔

﴿مَتَاعًا بِالْمَعْرُوْفِ﴾ دا د (مَتِّعُوْهُنَّ) دپاره مفعول مطلق تاکیدی دے۔ د بِالْمَعْرُوْف نه مراد ښائسته طریقه ده۔ ﴿حَقًّا عَلَى الْمُحْسِنِيْنَ﴾ حقا: دا صفت د متاعاً دے۔ (اَیْ مَتَاعًا حَقًّا) یا فعل پټ دے (حَقَّ حَقًّا) او حق په معنیٰ د واجب سره دے، او د محسنین نه مراد مؤمنان دی، یعنی دا متعه ورکول لازم دی په ایمان والو ځکه چه دا د مهر بدل دے۔

او تـعبیر ئے په محسنین سره اُوکړو دپاره د ترغیب، چه د ایمان والو دپاره احسان کول پکار دی۔ او دے تـه ئے احسان ځکه اُووئیلو چه پدے کښې مقصد د ښځے زړهٔ خوشحالول او د هغے د کورنئ محبت باقی پریخودل دی۔ (قاله الحرالی - قاسمی)۔

او اشاره ده چه دا څهٔ سزا نهٔ ده بلکه احسان دے۔ که هغے ته دا متعه ورنکړے شی نو کیدے شی چه د هغے او د هغے د کور والو کینه او دشمنی په زړونو کښې باقی پاتے شی نو دا د متعے راز هم شو۔

**فائده**: دا آیت دلیل دے چه د مهر نه بغیر نکاح نهٔ کیږی او مهر په وخت د نکاح تړلو کښې معلومول ضروری نهٔ دی، روستو دے په رضا د جانبینو مقرر شی۔

| وَإِنْ طَلَّقْتُمُوْهُنَّ مِنْ قَبْلِ أَنْ تَمَسُّوْهُنَّ وَقَدْ فَرَضْتُمْ |
| --- |
| او که چرته تاسو طلاق ورکړئ هغوی ته مخکښې ددے نه چه مسه کړئ تاسو هغوی لره او حال دا چه تاسو مقرر کړے وی |
| لَهُنَّ فَرِيْضَةً فَنِصْفُ مَا فَرَضْتُمْ إِلَّا أَنْ يَّعْفُوْنَ أَوْ يَعْفُوَ |
| هغوی دپاره مهر مقرر نو لازم دے نیم هغه مهر چه تاسو مقرر کړے وی مگر چه معافی کوی زنانه یا معافی اُوکړی |
| الَّذِيْ بِيَدِهٖ عُقْدَةُ النِّكَاحِ وَأَنْ تَعْفُوْا أَقْرَبُ لِلتَّقْوٰى |
| هغه سړے چه په لاس د هغه کښې غوټه د نکاح ده او چه تاسو معافی کوئ دا ډیره نزدے ده تقویٰ ته، |
| وَلَا تَنْسَوُا الْفَضْلَ بَيْنَكُمْ إِنَّ اللّٰهَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ ﴿۲۳۷﴾ |
| او مهٔ هیروئ احسان په مینځ خپل کښې یقیناً الله ستاسو په عملونو باندے لیدونکے دے۔ |

**تفسیر:** اُوس دویم صورت بیانوی چه ښځه د مَسه کولو نه مخکښې طلاقه شوه، نو بیا دوه صورتونه دی چه دلته د یو حکم بیانیږی، یا به مهر مقرر وی یا نهٔ؟۔ که د هغې مهر مقرر شوے وی۔ نو الله فرمائی چه هغې ته به نیمائی مهر ورکولے شی۔ دا هم جائز ده چه ښځه معافی اُوکړی، او اُووائی چه هغه زهٔ لیدلے نهٔ یم، او نهٔ ما د هغه خدمت کړے، نهٔ ئے ما ته فائده اخستے ده، نو زهٔ څنګه د هغه نه څهٔ پیسے واخلم۔

یا که خاوند د مهر پوره پیسے ادا کړی وی، نو هغهٔ معاف کړی، او د ښځے نه نیمائی مهر واپس وانخلی، یا که جینئ نابالغه وی، یا هغې ته معامله کول نهٔ ورځی، نو د هغې ولی د خاوند نه نیمائی مهر وانخلی او معاف ئے کړی۔ او الله فرمائی چه په هر حال کښې معاف کول تقویٰ ته ډیر نزدے او غوره احسان دے۔ دے نه روستو الله تعالیٰ هر یو ته د معاف کولو ترغیب ورکړیدے چه څوك معافی اُوکړی نو هغه به د بل نه غوره وی۔

﴿فَنِصْفُ مَا فَرَضْتُمْ﴾ ددے مبتداء پټه ده یعنی (فَالْوَاجِبُ عَلَیْکُمْ نِصْفُ الخ)

(په تاسو نیمائی هغه مهر ورکول واجب دی چه ښځو له مو مقرر کړے وی)

مکمل به څکه نهٔ ورکوی چه فائده ئے ترے نهٔ ده اخستے۔ او نیم به څکه ورکوی چه ښځه ددهٔ په نوم شویده او وعده د مهر ئے کړیده۔

﴿اِلَّا اَنْ یَّعْفُوْنَ﴾ چه ښځه وائی، څه دا نیم هم درنه نهٔ اخلم، دا هله چه خاوند هیڅ مهر لا نهٔ وی ورکړے۔ ﴿اَوْ یَعْفُوَ الَّذِیْ بِیَدِهٖ عُقْدَةُ النِّکَاحِ﴾ غوټه د نکاح د خاوند په لاس کښې وی۔ لکه دا په حدیث د دارقطنیؒ کښې راغلے دی۔ او مخکښې (وَلَا تَعْزِمُوْا عُقْدَةَ النِّکَاحِ) نه هم معلومیږی۔ او د نکاح د غوټے نه مراد د ایجاب او قبول یعنی د نکاح د ترلو واك دے۔ یعنی خاوند ورته اُووائی چه زر روپئ مے درکړی دی، دا ستا مهر وو، لیکن بیرته ئے درنه نهٔ اخلم، تولے ستا شوے۔ او په دے کښې وَلِیُّ الصَّغِیْرَه او وَلِیُّ الْاَمَه (د ماشومے او د وینځے ولی) هم داخل دے، هغه هم دا قسم معافی کولے شی۔ لکه دا خبره امام مالكؒ په الموطأ کښې ذکر کړیده۔ (محاسن التاویل ۳/۵۷۶)

بیا دلته فکر اُوکړه، الله رب العزت مونږ ته په طلاقو کښې دا طریقه خودلے ده چه طلاق به ورکړے او دا ښځه به داسے ګنړے لکه د خور په شان، د عامے مسلمانے خور په شان ژوند به ورسره تیروے۔ داسے نهٔ چه طلاقه شی او دشمنی شروع شی، او دوه قومونه پرے اُوجنګیږی، او د پښتنو طریقه خو دا ده چه خور لور دے ورله طلاقه کړه، نو بیا غټے دشمنئ او قتل وقتال ته خبره رسیږی۔ الله مونږ ته د معاشرے د ښهٔ والی اصول ښائی چه یو بل ته معافی کوئ، یو بل سره راشه درشه او احسانات کوئ:

﴿وَاَنْ تَعْفُوْا اَقْرَبُ لِلتَّقْوٰی﴾ دا خطاب سړو او ښځو دواړو ته دے. او صیغه د سړو ئے تغلیباً ذکر کړیده، او عفو په معنیٰ د ترك او پریخوستو سره ده. یعنې ستاسو معافي کول تقویٰ ته ډیر نزدے کار دے، د معافي نۀ کولو نه.

ابن جریرؒ د ابن عباسؓ نه نقل کړی چه ((په دواړو کښې کوم یو معافي کوی، هغه تقویٰ ته زیات نزدے دے ځکه چه ځوك سخاوت کوی، او خپل حق پریدی، دا احسان کونکے وی، او احسان د تقویٰ سر دے)). (قاسمیؒ).

﴿وَلَا تَنْسَوُا الْفَضْلَ بَیْنَکُمْ﴾ ۱- د فضل نه مراد تفضل (یعنې احسان کول) دی، یعنې یو بل باندے احسان کول مۀ هیروئ، ځکه چه پدے سره به محبت باقي پاتے کیږی، او زړونه به خوشحاله وی، نو پدے کښې په معافي کولو تیزی ورکول دی. نو په دواړو کښې چه ځوك معافي کوی نو د هغه به په بل باندے فضیلت او احسان وی.

بیا نسیان (هیرول) د انسان په واك کښې نۀ دی، نو ددے نه منع نشی کیدے، لیکن دلته د نسیان نه مراد پریخودل دی، یعنې احسان کول داسے مۀ پریدئ لکه یو هیر شوے شے. لیکن په نسیان ئے ترے تعبیر اُوکړو، پدے کښې په منع کولو کښې زیات تاکید دے. او پدے کښې هم خطاب سړو او ښځو دواړو ته دے په طریقه د تغلیب.

او بعض علماؤ دا د سړو پورے خاص کړیدے ځکه چه خاوند کښې د رجولیت (سړیتوب) فضیلت شته، نو پکار ده چه هغۀ معافي کونکے وی.

۲- یا د فضل نه مراد زاړۀ احسانات دی چه دواړو د یو بل سره کړی، نو هغه رایاد کړئ، پدے وجه یو بل ته په مهر کښې معافي اُوکړئ. لکه د سورة النساء په آیت (۱٥) کښې دی: ﴿وَقَدْ اَفْضٰی بَعْضُکُمْ اِلٰی بَعْضٍ﴾ (تاسو یو بل ته رسیدل کړی).

بعض خلق چه کله ښځه طلاقه کړی، نو بیا د هغوی سره بالکل تعلقات ختم کړی، او د هغوی سره تعلقات قائمولو ته بے غیرتي وائی. حال دا چه دا د اسلامی اصولو خلاف عمل دے. د الله نه ځوك زیات غیرتی نشته، هغۀ مونږ ته وائی تاسو احسان مۀ هیروئ، دا ښځه اُوسه پورے ستا وه چه تا طلاقه کړه نو دا ستا خور شوه.

جُبَیر بن مطعمؓ یوه ښځه په نکاح کړه، بیا ئے هغه د دخول نه مخکښې طلاقه کړه، نو پوره مهر ئے ورکړو، او وے وئیل: [اَنَا اَحَقُّ بِالْعَفْوِ] زۀ په معافي کولو ډیر لائق یم.

دارنګه جُبَیر په سعد بن ابی وقاصؓ داخل شو، هغۀ ورته خپله لور پیش کړه، نو هغه په نکاح کړه، کله چه بهر شو طلاق ئے ورکړو او هغے ته ئے پوره مهر ورواُولیږلو. چا ورته اُووئیل: ولے دے

په نکاح کړه؟ هغه اُوویل ما د جُبیر خبره رد کول خوښ نهٔ کنړل. وروته اُوویل شو، نو بیا دې مهر ولې اُولیږلو؟ وې فرمایل: (فَأَیْنَ الْفَضْلُ؟) بیا هغه احسان څهٔ شو؟ کوم باندې چه مونږ ته حکم شوېدې. (قاسمیؒ).

﴿ إِنَّ اللَّهَ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ﴾ الله ستاسو احسان کول نهٔ ضائع کوي.

حَافِظُوا عَلَى الصَّلَوَاتِ وَالصَّلَاةِ الْوُسْطَى وَقُومُوا لِلَّهِ قَانِتِينَ ﴿٢٣٨﴾

حفاظت کوئ په مونځونو باندې او خاص په مونځ مینځنی (د مازیگر) او اُودریږئ الله ته عاجزي کونکي.

**تفسیر**: پدې کښې د تدبیر منزل بل حکم بیانوي چه ستاسو د کورنۍ اصلاح به هله کیږي چه هر یو تن پکښې د ټولو مونځونو پابند شي، اګرکه دا په دنیاوي احکامو هم مشغول وي، لیکن د مانځه محافظت به کوي.

**ربط**: ١- مخکښې د حقوق العباد حفاظت بیانیدو، اُوس د حقوق الله حفاظت بیانوي.

٢- مخکښې تعلق د ښځې او خاوند یعنی د بندګانو ترمینځ وو، اُوس تعلق د الله تعالیٰ او د بندګانو بیانوي. ٣- مخکښې د زنانو داسې حقوق او کارونه بیان شول چه په هغې باندې مشغولیدل کله انسان د عباداتو په باره کښې سُست جوړ کړي، نو پدې وجه حکم د مانځه ئې اُوکړو. ٤- دارنګه مخکښې احکام کله په بعض خلقو مشقت او ګران شي، نو دلته داسې عمل بیانوي چه دغه احکامو باندې عمل کول آسانوي، او دغه احکام محبوب جوړوي.

فرمائي چه په مانځه سره په دغه احکامو عمل آسانیږي. ځکه چه دا د فحشاء (بې حیائي) او منکراتو نه منع کول کوي. (قاسمیؒ).

﴿ حَافِظُوا عَلَى الصَّلَوَاتِ ﴾ د مونځ حفاظت کوئ په خپل وخت باندې، د جَمعې سره په ښائسته طریقې سره. د مانځه حفاظت دا دې چه د مکروهاتو، مفسداتو، د غیر الله د توجه نه ئې ساتئ، په ښائسته طریقه ئې کوئ، په مسنون اَوقاتو کښې سره د شرطونو او ارکانو او خشوع او خضوع او ټولو واجباتو او مستحباتو خیال ساتلو سره ئې اُوکړئ.

لیکن افسوس چه د امتِ مسلمه ډیرو افرادو د الله تعالیٰ دا حکم مات کړو، څوک ئې خو بالکل نهٔ کوي، او څوک ئې بې وخته کوي، او څوک ئې زر زر، او څوک ئې بې توجه او بې خشوع کوي. او څوک د نبوي سنت لحاظ نهٔ ساتي صرف مذهبي مونځ کوي. والله المستعان.

﴿ وَالصَّلَاةِ الْوُسْطَى ﴾ د صلاة وسطیٰ په تعیین کښې ډیر اقوال دي، شوکانیؒ په نیل الاوطار کښې (١٨) اقوال راوړیدي. (١) د سحر مونځ دې. (عليؓ وابن عباسؓ).

(٢) د ماسپښين مونځ دے۔ (٣) د ماښام مونځ دے۔ (٤) د ماسخوتن مونځ دے۔

(٥) د جُمعے مونځ دے۔ (٦) د لوئي اختر مونځ دے۔ (٧) صلاة الخوف دے۔ دا ټول اقوال د صحابه کرامو او تابعينِ عظامو نه نقل دي، ليکن ددے ټولو نه صحيح خبره دا ده چه دا د مازيگر مونځ دے۔

په صحيحينو کښې د علي بن ابي طالب ﷺ نه روايت نقل شويدے چه نبي کريم ﷺ د غزوهٔ خندق په ورځ اُووئيل : «الله تعالىٰ دے د دوی زړونه او کورونه د اُور نه ډک کړی۔ لکه څنګه ئے چه مونږه د صلاة وسطىٰ نه مشغول کړو تردے چه نمر پريوتو»۔

په يو بل روايت کښې دي چه «دوی مونږ د صلاة وسطىٰ يعنی مازيگر مانځه نه مشغول کړو»۔ په مسند احمدؒ کښې د سمره ﷺ نه روايت دے چه رسول الله ﷺ ﴿ حَافِظُوا عَلَى الصَّلَوَاتِ وَالصَّلَاةِ الْوُسْطَىٰ ﴾ اُولوستلو او مونږ ته ئے نوم اخستو سره اُوفرمايل چه دا د مازيگر مونځ دے۔ ابن جريرؒ د ابو هريره ﷺ نه روايت کړے چه رسول الله ﷺ اُوفرمايل : د صلاة وسطىٰ نه مراد د مازيگر مونځ دے۔

د وُسطىٰ معنىٰ، درميانه او غوره مونځ دے۔ او د مازيگر مونځ هم ډير قيمتي دے، څکه دے وخت کښې شغلونه ډير وی، د دکاندارانو گاهک زيات وی، او خلق ئے ناوخته کوی، او بيا اکثر مقلدين حنفيه ئے خو بالکل ناوخته کوی، زيری مازيگر کښې ئے کوی چه کله گينټه يا درے پاوه وخت ماښام ته پاتے وی، دا د مونځ تباه کول دي۔

او احاديثو کښې د مازيگر د مونځ کولو وخت ډير وختي راغلے دے چه نمر به تک سپين وو، او اُوچت به ولاړ وو۔ هيڅ تغير به پکښې نه وو پيدا شوے، لکه اُوس هم په حرمينو کښې په دغه وخت کښې کيږی، او ددے په زيری مازيگر کښې ادا کولو ته ئے د منافق مونځ وئيلے دے۔ (مسلم، نسائي، ترمذی)

دا رنګه پدے کښې اشاره ده چه د مازيگر مونځ به درميانه کولے شی، نهٔ ډير اُوږد، لکه د سحر په شان، او نهٔ ډير لنډ لکه د ماښام په شان۔ بلکه متوسط به وی۔

په کومو رواياتو کښې چه صلاة وسطىٰ نور مونځونه خودلے شويدی، نو هغه د بعض صحابه کرامو اجتهاد وو، او دا په هغه وخت کښې وو چه ددے بيان نبی ﷺ نهٔ وو کړے۔

روستو نبی ﷺ ددے تعيين په مازيگر مانځه سره اُوکړو۔ په احاديثو کښې د مازيگر د مونځ د پريخودلو په باره کښې ډير زيات وعيدونه راغلي دی۔

شيخينو د ابن عمرؓ نه مرفوع روايت نقل کړے : «هغه شخص چه د هغه نه مازيگر مونځ فوت شی، نو گويا کښې د هغه اهل او مال ضائع شو»۔

امام مسلمؒ حدیث راوړے «څوك چه د ماز یګر د مانځه حفاظت کوی، نو د هغه دپاره به دوه ځل اجرونه وی»۔ (قاسمیؒ)

ددے بحث د تفصیل دپاره الحق الصریح شرح مشکاة المصابیح (٥) جلد ته رجوع اُوکړئ۔

**فائده :** صلاة وسطیٰ د مخکښ (اَلصَّلَوٰتِ) په عموم کښ داخل وو، لیکن دائے په عطف سره جدا ذکر کړو، دیته تخصیص بعد التعمیم وائی، دا د زیات اهتمام دپاره کولے شی۔ یعنی د ټولو مونځونو اهتمام او محافظت کوئ خصوصاً د مازیګر خو ډیر اهتمام کوئ۔

﴿ وَقُومُوا لِلّٰهِ قٰنِتِيْنَ ﴾ (سَاكِتِيْنَ، خَاشِعِيْنَ) یعنی غلی او په خشوع اُودریږئ۔ د قنوت دیارلس معانی دی۔ ددے مقام مناسبے دوه معنے دی (۱) عاجزی او خشوع۔ (۲) سکوت (غلے اُودریدل)۔ یعنی په مانځه کښ د الله مخے ته په انتهائی خشوع او خضوع، عاجزئ او فقیرئ سره اُودریږئ۔ دارنګه غلی اُودریږئ یعنی اختیاری خبرے به نشی کولے۔

## شان نزول

امام احمدؒ وغیره د زید بن ارقم ﷺ نه روایت کړے چه خلقو به د نبی ﷺ په ابتدائی دَور کښ په مانځه کښ خپل مینځ کښ خبرے کولے نو دا آیت نازل شو۔

ابن مسعود ﷺ چه کله رسول الله ﷺ باندے سلام واچولو او هغه مونځ کولو، نو جواب ئے ورنکړو، او د مانځه د ختمولو نه روستو ئے ورته اُوفرمایل چه په مانځه کښ بنده د الله تعالیٰ په جناب (حضور) کښ مشغوله وی»۔ (متفق علیه)۔

او معاویه بن الحکم السُّلَمِی ﷺ چه کله په مانځه کښ خبرے اُوکړے، نو رسول الله ﷺ هغه ته اُوونیل، « چه په مانځه کښ خبرے کول جائز نهٔ دی۔ په مانځه کښ بنده په تسبیح او تکبیر او د الله په ذکر کښ مشغول وی»۔ (مسلم)۔

**تنبیه :** بعض جاهلانو ددے آیت نه دلیل نیولے دے چه په مانځه کښ رفع الیدین کول نشته، ځکه چه دا د سکوت او آرام سره د اُودریدو منافی دی۔

**جواب** دا دے چه دا سو چه د جهالت خبره ده ځکه چه رفع الیدین، دارنګه په مانځه کښ د سلام جواب د لاس په اشاره سره ورکول په صحیح احادیثو کښ راغلی دی۔ او دا بعینهٖ خشوع ده۔

په حدیث کښ د رفع الیدین په کولو سره لس نیکئ خودلے شویدی۔ [كُلُّ اُصْبُعٍ حَسَنَةٌ] ۔ په هره ګوته پورته کولو یوه نیکی ده۔ [الطبرانی – الصحیحة: ۳۲۸٦]

او هر حرکت د سکوت منافی نهٔ وی۔ او پدے دلیل نیولو کښ د الله تعالیٰ او د هغه د رسول نه ځان مخکښ کول دی چه دا د مسلمان کار نهٔ دے۔

○ او بيا خو په تکبير تحريمه کښې هم رفع اليدين حراميږي؟۔

**مسئله** (۱) په مانځه کښې په سهوه خبرې کول جواز لري، لکه احاديثو کښې راغلي دي۔ (الحق الصريح) (۲) په مونځ کونکي باندې سلام اچول او هغه دپاره د لاس په اشاره سره جواب ورکول حديثو کښې شته۔ (الحق الصريح ٤٨٢/٤)

(۳) قيام فرض دے مگر د رکوع موندونکي نه ساقط دے۔ او کله چه امام په ناسته مونځ کوي د مرض د وجه نه نو د مقتديانو نه هم قيام ساقطيږي۔

| فَإِنْ خِفْتُمْ فَرِجَالًا أَوْ رُكْبَانًا فَإِذَا أَمِنتُمْ |
|---|
| که ويريدلئ تاسو (د دشمن نه) نو (مونځ کوئ) چه پياده يئ يا سوارهٔ يئ نو هر کله چه په امن شئ تاسو |
| فَاذْكُرُوا اللَّهَ كَمَا عَلَّمَكُم مَّا لَمْ تَكُونُوا تَعْلَمُونَ ﴿٢٣٩﴾ |
| نو يادوئ الله لره لکه څنګه ئے چه خودلے ده تاسو ته هغه طريقه چه تاسو پرے نهٔ پو هيدلئ۔ |

**تفسير** : اُوس وائي مونځ دومره اَهم او ضروري شے دے چه د جهاد په ډيرو سختوځايونو کښې په ئے هم نهٔ پريدے۔ د مخکښې آيت نه معلومه شوه چه په مانځه کښې قيام (اُودريدل) فرض دی، نو اُوس هغه حالت بيانوی چه قيام په کښې ساقط وی۔

پدے آيت کښې الله تعالیٰ د جنګ په حالت کښې د مانځه کولو کيفيت بيان کړيدے۔ الله فرمائي چه په کوم ځائے کښې بنده د تمامو ارکانو، واجباتو، سنن او مستحباتو رعايت ساتلو سره مونځ نشي کولے، نو په داسے حالت کښې په روانه يا په سورلئ مونځ کوئ، برابره ده چه مخ قبلے طرف ته وی او که بل طرف ته۔

امام مالک د نافع نه روايت کړے چه عبد الله بن عمر رضی الله عنهما د صلاة خوف (د يرے په حالت کښې د مانځه) کيفيت بيانولو سره اُوفرمايل چه که يره ددے نه هم زياته شی نو بيا په روانه يا په سورلئ مونځ کوئ، برابره ده چه مخ په قبله وی او که په بل طرف۔ نافع وائي چه زهٔ پو هيږم چه هغوی د رسول الله ﷺ حديث بيان کړے وو۔ دا حديث بخاری او مسلم هم روايت کړيدے۔

﴿فَإِنْ خِفْتُمْ فَرِجَالًا أَوْ رُكْبَانًا﴾ رِجَال جمع د رَاجِل ده په معنیٰ د رَاجِلِيْنَ سره يعنی پياده مزل کونکي۔ او رکبان جمع د رَاكِب ده، سور انسان ته وئيلے شی۔ او ددے نه مخکښې فعل پټ دے۔ [فَصَلُّوْا رِجَالًا وَرُكْبَانًا] يا فَحَافِظُوْا رِجَالًا الخ، دا مونځ پياده اُوکړئ الخ يا ددے حفاظت اُوکړئ په پياده تللو يا په سورلئ۔ بيا دا خوف عام دے که د دشمن نه وی او که د درنده (حيوان) نه وی، يا د

سيلاب وغيره نه وي. دارنګه که په هره سورلئ سور وي، حيوان، ګاډے، موټر وغيره، نو پدے تولو حالاتو کښې مونځ کول جائز دي، ليکن د رکوع او سجدے دپاره به په سر سره اشاره کوي.

د صلاة الخوف د مانځه حالت الله تعالىٰ په سورة النساء آيت (۱۰۲) کښې تفصيلًا بيان کړيدے هغه د قتال حالت نۀ دے، او دلته د قتال حالت بيان شويدے. چه ديته حالة د اِلتِحَام وائي. يعنى د مجاهدينو او د دشمنانو په يو بل کښې د ننوتو حالت.

پدے کښې اشاره ده زيات اهتمام د مانځه ته. او پدے حالت کښې جماعت هم ساقط دے، يواځے يواځے به مونځ کوي. او دا ددے شريعت رخصتونه دي چه ددے امت نه ئے بوجونه او طوقونه لرے کړيدي او په احکامو کښې ئے ورسره آساني کړيده.

﴿ فَإِذَا أَمِنتُمْ ﴾ يعني کله چه خوف زائله شو، نو بيا به مونځ په هغه طريقه کوئ کومه چه په احاديثو کښې بيان شويده.

## نبوي احاديث حجت دے

﴿ فَاذْكُرُوا اللهَ كَمَا عَلَّمَكُمْ ﴾ (اَیْ فِی الْاَحَادِيْثِ النَّبَوِيَّةِ) يعنى په هغه طريقه به مونځ کوئ څنګه چه الله تعالىٰ تاسو ته د خپل نبي په احاديثو او عمل کښې خودلے ده. چه هغه فرمائيلي دي: (صَلُّوْا كَمَا رَأَيْتُمُوْنِيْ أُصَلِّيْ) (بخاری ومسلم). ما ته ګورئ زما په شان مونځ کوئ).

په قرآن کريم کښې الله تعالىٰ ځائے په ځائے په احاديثو حواله ورکوي، اشاره ده چه دا دواړه د الله د طرف نه وحي ده. او د رسول الله ﷺ تعليم د الله تعالىٰ تعليم دے. ځکه چه د مانځه تفصيلي طريقه صرف په احاديثو کښې بيان شويده.

پدے کښې هم د احاديثو په منکرينو باندے رد دے، چه دا د يهود او نصاراؤ پيدا کړده خلق دي، په دين کښې خلق شکيان کول او بالآخره د دين نه وېستل دي. او د مانځه نه ئے په ذکر سره تعبير اُوکړو ځکه چه ذکر د مانځه لوئي رکن دے.

﴿ مَا لَمْ تَكُونُوا تَعْلَمُونَ ﴾: پدے کښې يو قسم انعام ذکر کوي چه هر کله تاسو پدے شرعي احکامو پوهه نۀ وئ، الله تعالىٰ درته طريقه اُوخودله، د جهالت نه ئے را اُووېستلئ نو د الله شکر ادا کړئ. او پدے کښې اشاره ده چه د مانځه کيفيت او طريقه په عقل سره نشي معلوميدے بلکه دا به د شارع نه ايزده کولے شي.

وَالَّذِينَ يُتَوَفَّوْنَ مِنكُمْ وَيَذَرُونَ أَزْوَاجًا وَصِيَّةً لِّأَزْوَاجِهِم

او هغه کسان چه مړۀ شي ستاسو نه او پريدي دوی ښځے، نو وصيت دے اُوکړي د ښځو خپلو دپاره،

| مَتَاعًا إِلَى الْحَوْلِ غَيْرَ إِخْرَاجٍ فَإِنْ خَرَجْنَ فَلَا جُنَاحَ |
|---|
| د فائدے ورکولو تر یو کاله پورے نهٔ به وی ویستل د هغوی که چرته اُووځی (په خپله خوښهٔ) نو نشته ګناه |
| عَلَيْكُمْ فِي مَا فَعَلْنَ فِي أَنْفُسِهِنَّ مِنْ مَعْرُوفٍ وَاللَّهُ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ﴿۲۴۰﴾ |
| په تاسو په هغه څه کښې چه کوی دوی په ځانونو خپلو باندے د نیك کار نه الله زورور، حکمتونو والا دے۔ |

**تفسیر** : پدے کښې د تدبیر منزل نه اُولسم حکم ذکر کوی چه هغه عدت د مُتَوَفّٰی عَنْهَا زَوْجُهَا دے۔ دا مخکښې هم تیر شو لیکن دلته مقصد په کښې دا دے چه د کومو ښځو خاوند وفات شوے وی نو د هغوی سره احسان اُوکړئ، او د جاهلیت والو په شان ظلم پرے مهٔ کوئ۔

ددے آیت معنیٰ دا ده چه کله یو سړی ته مرګ رانزدے شی نو هغه دے د خپلے ښځے په باره کښې وارثانو ته دا وصیت اُوکړی چه دا به تر یو کاله پورے د کور نه په وتلو نهٔ مجبوره کوئ، او دے ته به نفقه هم ورکوئ، لیکن که هغه پخپله خوښه د خاوند د کور نه اُوځی، او ډول او خوشبوئی استعماله کړی، او په اشارو او کنایاتو کښې د وادهٔ خبرے کوی، نو د خاوند د اولیاؤ به هیڅ ګناه نهٔ کیږی، او په داسے صورت کښې به نفقه او مسکن نهٔ واجبیږی۔

(۱) زیات مفسرین وائی چه دا حکم د اسلام په ابتداء کښې وو، کله چه د ښځے دپاره په میراث کښې حصه نهٔ وه، او د عدت موده یو کال وه، او هغے ته اختیار وو چه که غواړی نو د خاوند په کور کښې عدت تیر کړی، او نفقه دے اخلی، او که غواړی نو د کال پوره کیدو نه مخکښې دے د کور نه اُوځی، او د هغے دپاره به نهٔ نفقه وه او نهٔ مسکن (ځائے د اُوسیدو)۔ (قاسمی، تیسیر)۔

دے نه روستو ددے سورت (۲۳۴) آیت نازل شو، چه د هغے مطابق د ښځو عدت څلور میاشتے او لس ورځے شو۔ دغه شان د نفقے او مسکن د وصیت حکم د میراث په آیت سره منسوخ شو۔ او ښځے دپاره د خاوند په پوره مال کښې څلورمه یا اتمه حصه مقرر شوه۔ او هغه آیت (۲۳۴) اګر که په تلاوت کښې مخکښې دے، لیکن په نزول کښې روستو دے۔

(۲) لیکن د مجاهدؒ، امام بخاریؒ، شیخ الاسلام ابن تیمیهؒ او حافظ ابن کثیرؒ وَغَیرُهُم رائے دا ده چه دا آیت مُحکم دے او منسوخ شوے نهٔ دے۔ او مخکښے آیت پدے خبره دلالت کوی چه څلور میاشتے او لس ورځے د ښځے لازمی عدت دے چه دا به په هر حال کښې د خاوند په کور کښې تیروی۔ او دا آیت پدے دلالت کوی چه د مړی وارثانو له پکار دی چه د هغے د زړهٔ ساتلو په خاطر او د مړی سره د اخلاص او د محبت د ښکاره کولو په توګه هغه نور اُووه میاشتے او شل ورځے د

خاوند په کور کښې پریدی. دا به ددې ښځې سره د دوی احسان وی. آو، که ښځه د څلورو میاشتو او لسو ورځو، یا د حمل د پیدائش نه پس په خپله خوښه ددې کور نه نقل کیدل غواړی، نو دا به نشی منع کولې. لهذا ددې حکم وجوب منسوخ شویدې او استحباب ئې اوُس هم باقی دې.

﴿ وَصِيَّةً لِأَزْوَاجِهِمْ ﴾ وَصِيَّةً منصوب دې، فعل ئې پټ دې [اَیْ فَلْيُوْصُوْا وَصِيَّةً] وصیت دې اوُکړی د بی بیانو په باره کښې چه زما ښځه به دې کور کښې اوُسیږی د یو کاله پورې.

یا (يُوْصُوْنَ) پټ دې. او دا د اَلَّذِيْنَ دپاره خبر دې. دا وصیت یا خپلو ښځوته دې چه خاوند اوُوائی چه تهٔ به زما د مرګ نه روستو یو کاله پورې پدې کور کښې پاتې ئې، او تا ته به زما د مال نه نفقه درکولې شی. یا وارثانو ته د خپلو بیبیانو په باره کښې وصیت دې. دا وصیت بناء په یو قول واجب وو. بیا منسوخ شو. دارنګه د خاوند د مال نه یو کال پورې نفقه ار مسکن ورکول هم واجب وو دا هم منسوخ شو. (قاسمی).

﴿ مَتَاعًا إِلَى الْحَوْلِ ﴾ دا منصوب دې، د (وَصِيَّةً) نه بدل دې. او ددې متاع (فائدو) نه مراد تر یو کاله پورې په طریقه د احسان نفقه او مسکن ورکول دی.

﴿ غَيْرَ إِخْرَاجٍ ﴾ دا د (أَزْوَاجِهِمْ) نه حال دې، اَیْ غَیْرَ مُخْرَجَاتٍ].

(یعنی دا زنانه به د کورنه نشی ویستلې).

﴿ فَإِنْ خَرَجْنَ ﴾ یعنی که خپله اوُوځی د عدت تیریدو نه مخکښې یا روستو، نو بیا صحیح ده.

﴿ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ ﴾: یعنی د مړی په وارث او حاکم باندې ګناه نشته چه ددې ښځې نه نفقه بنده کړی. ځکه چه د کومې ښځې خاوند مړ شی، نو بیا د هغې خرچه په کور والو باندې نهٔ وی، ځکه چه شریعت هغې دپاره مهر مقرر کړې دې، نو اوُس به د هغه مهر نه خوراك کوی. دارنګه که د خاوند نه ورته څهٔ میراث پاتې شوې وو، د هغې نه به خوراك کوی.

﴿ فِيمَا فَعَلْنَ فِي أَنْفُسِهِنَّ مِنْ مَعْرُوفٍ ﴾ یعنی د څلورو میاشتو او لسو ورځو نه روستو که ډول او زینت کوی یا بل چا سره نکاح کوی، یا د خاوند د کور نه اوُځی، یا ځان له د رزق پیدا کولو په شرعی طریقې سره څهٔ کاروکسب کوی، نو پدې سره به وارثان ګناهګار نهٔ وی او هغوی له ئې منع کول هم جائز نهٔ دی. نو د آیت نه معلومه شوه چه د ښځې دپاره د خاوند دا وصیت پوره کول څهٔ واجب نهٔ دی، کله ئې چه وصیت ښځې ته کړې وی.

دغه شان اولیاء او وارثانو باندې هم لازم نهٔ ده چه خامخا به دا ښځه د خاوند کورکښې یو کاله پورې پریدی. بلکه دا یو احسان دې. لکه مخکښې تیر شو.

**حکمة**: مخکښې آیت (٢٣٤) کښې ئې بِالْمَعْرُوْفِ معرفه راوړې وه، او دلته مِنْ مَعْرُوْفٍ نکره،

پدے کښې اشاره ده چه هلته صرف زينت کول (احداد نۀ کول) مراد دي، او هغه يو معيَن شے دے او دلته مراد عام دے لکه چه مخکښې ذکر شو۔ نو نکره ئے راوړه چه ددے مختلف اقسامو ته اشاره اُوشي۔ (احسن).

﴿ والله عزيز حکيم ﴾ الله غالبه دے په خپلو حکمونو، مخالفينو ته به سزا ورکوي، يا په بدله اخستو باندے زوره ور دے، حکيم دے، په کارونو کښې ئے حکمتونه دي، هر حکم کښې د بندګانو د مصلحت او فائدے لحاظ ساتي۔

وَلِلْمُطَلَّقَاتِ مَتَاعٌ بِالْمَعْرُوْفِ حَقًّا عَلَى الْمُتَّقِيْنَ ﴿۲٤۱﴾

او دپاره د طلاقو شوو ښځو فائدے ورکول دي په ښۀ طريقه، دا لازمه ده په تقوىٰ والو باندے۔

**تفسير**: پدے کښې د تدبير منزل نه اتلسم حکم دے چه د عامو طلاقے شوو ښځو متعه بيانوي چه بنا په قول راجح دا واجبه ده. هره ښځه چه طلاقه شوه، مهر به هم ورله ورکوي، که مهر ئے مقرر شوے وو، او د هغے سره سره به يوه متعه هم ورکوي، چه يوه جوړه جامه وغيره ده۔ د سعيد بن جبيرؒ او ابن جريرؒ وغيرهما همدا رائے ده۔

او بعض نور علماء وائي چه دا (مُتعه) په هر حال کښې واجبه نۀ ده۔ که د طلاقے شوے سره خاوند مباشرت (نزديکت) نۀ وي کړے او د هغے مهر هم مقرر شوے نۀ وي نو د هغے دپاره مُتعه واجب ده۔ نورو طلاقو شوو ښځو دپاره مستحب ده۔ او د دوي دليل د قرآن کريم هغه آيت دے چه مخکښې تير شو :﴿ لَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ إِنْ طَلَّقْتُمُ النِّسَاءَ مَا لَمْ تَمَسُّوْهُنَّ أَوْ تَفْرِضُوْا لَهُنَّ فَرِيْضَةً وَّمَتِّعُوْهُنَّ عَلَى الْمُوْسِعِ قَدَرُهٗ وَعَلَى الْمُقْتِرِ قَدَرُهٗ مَتَاعًا بِالْمَعْرُوْفِ حَقًّا عَلَى الْمُحْسِنِيْنَ ﴾۔ (البقره : ۲۳٦).

او دا قول د امام شافعيؒ او جمهوررو دے۔

﴿ حَقًّا عَلَى الْمُتَّقِيْنَ ﴾ کوم علماء چه وائي متعه مطلقاً واجب ده، نو هغوي د متقين نه مراد مؤمنان اخلي او پدے کښې ترغيب ورکوي چه که تۀ غواړے چه تا کښې تقوىٰ راشي او ايمان دے محفوظ شي، نو متعه ورکړه۔ مفسرين ليکي : کله چه حقاً على المحسنين نازل شو نو يو سړي اُووئيل : که زۀ احسان کول غواړم، نو متعه به ورکړم او که احسان نکوم، نو متعه به نۀ ورکوم نو دا آيت نازل شو (حَقًّا عَلَى الْمُتَّقِيْنَ) نو متقين د محسنين دپاره بيان شو، يعنی دا د هر متقي حق دے چه ضرور به متعه ورکوي۔ او تقوىٰ اختيارول خو فرض دي لهذا دا متعه هم فرض شوه۔ (ابن عاشور ۱/٤٥۲)

بيهقيؒ د شريحؒ نه نقل کړي چه هغه يو سړي ته اُووئيل چه ښځه ئے جدا کړے وه :

[لَا تَأْبَى اَنْ تَكُوْنَ مِنَ الْمُتَّقِيْنَ، لَا تَأْبَى اَنْ تَكُوْنَ مِنَ الْمُحْسِنِيْنَ]

(متعه ورکړه او په متقیانو او احسان کونکو کښې د ځان شمارلو نه انکار مۀ کوه).

بیهقیؒ د جابر بن عبد الله ﷺ نه روایت کړے، فرمائی : کله چه حفص بن المغیره خپله ښځه فاطمه طلاقه کړه، نو نبی ﷺ ته راغله. نبی ﷺ د هغې خاوند ته اُووئیل : [مَتِّعْهَا] دے ته متعه ورکړه. هغه اُووئیل : زۀ څه نۀ موندہ کوم چه دے ته ئے متعه کښې ورکړم. نبی ﷺ اُوفرمایل : [فَإِنَّهُ لَا بُدَّ مِنَ الْمَتَاعِ، مَتِّعْهَا وَلَوْ بِنِصْفِ صَاعٍ مِنْ تَمْرٍ].

متعه ورکول ضروری دی، دے ته متعه ورکړه اګرکه نیمائی صاع (پاؤ باندے یو کلو) کجورے وی، آه. الصحیحة (۲۲۸۱) باسناد حسن).

ابن المنذرؒ د علی بن ابی طالب ﷺ وینا ذکر کړیده چه : [لِكُلِّ مُؤْمِنَةٍ طُلِّقَتْ، حُرَّةً اَوْ اَمَةً مُتْعَةٌ وَقَرَأَ الْآيَةَ]. د هرے طلاقے شوے مؤمنے ښځے دپاره که آزاده وی او که وینځه، متعه ورکول لازم دی. بیا ئے دا آیت اُولوستلو. (قاسمی ۵۸۵/۲).

**حکمة** : مخکښې آیت (۲۳٦) کښې د هغه ښځے د متعے د وجوب ذکر وو چه خاوند ترینه فائده نۀ ده اخستے (غَيْرِ مَدْخُوْلٍ بِهَا ده) نو دغسے ښځے له حق (واجب) ادا کول په عرف کښې احسان ګنړلے کیږی، ددے وجه نه ئے هلته مُحْسِنِيْنَ لفظ راوړو، او دلته د عامو طلاقو شوو ښځو ذکر دے، اګرکه د هغوی دپاره مهر هم شته، او خاوند ترینه فائده هم اخستے ده، نو د دوی په طلاق سره د دوی زړۀ ډیر خفه شوے او دردیدلے وی، نو د دوی زړۀ د خفګان نه د بچکولو دپاره لفظ د تقویٰ مناسب وو. (احسن).

| كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمْ اٰيٰتِهٖ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُوْنَ ﴿۲٤۲﴾ |
| --- |
| دغسے بیانوی الله تاسو ته آیتونه خپل دے دپاره چه تاسو د عقل نه کار واخلئ. |

**تفسیر**: اُوس پدے آیت کښې پدے مخکښو احکامو او راتلونکو احکامو باندے عمل کولو ته ترغیب ورکوی.

﴿ كَذٰلِكَ ﴾ : یعنی لکه د مخکښې کافی شافی بیان په شان تاسو ته الله تعالیٰ هغه آیتونه وخت په وخت بیانوی چه دلالت کوی د الله تعالیٰ په احکامو، دے دپاره چه تاسو پدے پوهه شئ او ددے په تقاضا عمل اُوکړئ. (قاسمی). یا کاف د بیان د کمال دپاره دے یعنی دا بیانات په کمالِ فصاحت او بلاغت، او وضاحت کښې کامله درجه لری.

﴿ اٰيٰتِهٖ ﴾ د آیتونو نه مراد احکام شرعیه دی. یا هغه آیتونه چه متضمن دی احکامو لره.

﴿لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُوْنَ﴾ عقل دلته په معنیٰ د پوهی او تدبر او سوچ کولو سره دے۔

| |
|---|
| أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِيْنَ خَرَجُوا مِنْ دِيَارِهِمْ وَهُمْ أُلُوْفٌ حَذَرَ الْمَوْتِ |
| آیا تهٔ نهٔ گورے هغه کسانو ته چه وتلی وو د کورونو خپلو نه حال دا چه هغوی په زرگونو وو، د وجه د یرے د مرگ نه |
| فَقَالَ لَهُمُ اللّٰهُ مُوْتُوْا ثُمَّ أَحْيَاهُمْ إِنَّ اللّٰهَ لَذُوْ فَضْلٍ عَلَى النَّاسِ |
| نو الله ورته اُوفرمایل : مړهٔ شئ بیا ئے راژوندی کړل هغوی لره یقیناً الله خاوند د مهربانیٔ دے په خلقو |
| وَلٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَايَشْكُرُوْنَ ﴿٢٤٣﴾ |
| لیکن اکثر خلق شکر نهٔ کوی |

**تفسیر** : مضمون :

ددے ځائے نه بل قسم مضمون بیانیږی۔ او دا آیتونه د جهاد سره متعلق دی، لکه مخکښې نه د جهاد خبره شروع شوے وه، بیا ئے په مینځ کښې اُووئیل چه کورنیٔ جوړه کړیٔ، نو اُوس بیرته جهاد ته خبره واپس شوه، او د بنی اسرائیلو دوه واقعات راوړی دپاره د ترغیب الی الجهاد، چه کوره دوی کښې بعض خلق د مرگ نه یریدل، جهاد ئے نهٔ کولو، نو الله تعالیٰ پرے مرگ راوستو۔ نو په اوله واقعه کښې غرض دا دے چه [لَاتَتْرُكُوا الْجِهَادَ لِأَجْلِ الْخَوْفِ وَالْجُبْنِ] بزدلی مهٔ کویٔ، د دشمن نه مهٔ یریږیٔ مرگ په نیته دے۔

(یو سړے به کور کښې ناست وی مړ به شی او یو سړی به لس کاله په جهاد کښې تیر کړی وی، او نهٔ به وی مړ شوے، نو دا لازمه نهٔ ده چه څوك جهاد ته لاړ شی خامخا به مری) دا په دے اول آیت (۲٤۳) کښې بیانوی، او دے سره امر ذکر کوی په قتال کولو د الله تعالیٰ په لاره کښې، او انفاق فی سبیل الله ته ترغیب دے۔ بیا په (۲٤٥) آیت کښې دویمه واقعه ده چه مقصد پکښې دا دے چه د قلت او کموالی د شمار نه مهٔ یریږیٔ لکه د طالوت ملگری د قلت نه یریدلی وو، نو الله رب العالمین لرو سره مدد اُوکړو او ډیرو له ئے شکست ورکړو، نو د قلت د وجه نه به جهاد نهٔ پریدیٔ، ورسره نور آداب هم بیانیږی۔ چه الله تعالیٰ او د هغه رسول درته یو امر اُوکړی نو د هغے نه تختیدل نهٔ دی پکار، او که اُوتختے نو چرته به لاړ شے۔ او ورسره مال لگولو ته ترغیب ورکوی او ورسره په دے واقعه کښې دا خبره هم ده چه اول جهاد فرض نهٔ وی، نو غواړے به ئے نهٔ، داسے به نهٔ وائی چه که جهاد راغلو، نو زهٔ به داسے داسے کار اُوکړم ځکه چه څوك د څهٔ شی تمناگانے کوی،

نو الله تعالیٰ ورله بیا توفیق نهٔ ورکوی، لکه ډیرو خلقو دا وئیل که امریکایان راغلل، مونږ به په اولنو صفونو کښې جنګیږو چه کله هغوی راغلل، نو هیڅ ئے اُونکړل. نو د الله نه به عافیت غواړے چه اے الله! مونږ ئے راولنه خو چه راشي، نو بیا به په هغه وخت کښې کار کوے، د الله نه به مدد غواړے، او صبر به کوے، لکه دا خبره صحیح حدیث کښې هم راغلے ده.

بله به دا خبره اُوکړی چه که یو امیر مقرر شي، او هغه ادنیٰ وی، نو اعتراض به پرے نهٔ کوے، بلکه د منلو ماده به ځان کښې پیدا کړے. بله دا ده چه په مجاهدینو به امتحانات راځي نو امتحان کښې د کامیابۍ خبره هم بیانوی. او په آخره کښې د جهاد حکمت بیانوی چه دا جهادونه الله تعالیٰ فرض کړی دی، دا ظلم نهٔ دے بلکه په دے کښې فسادونه دفع کول مقصد دے. که جهاد نهٔ وے، نو عالَم به ټول د فساد نه ډک شوے وے، جماعتونه، مدارس، عبادت خانے او د الله تعالیٰ د دین مراکز ورانیږی چه کله جهاد نهٔ وی. او کله چه دا څیزونه وران شي، نو الله تعالیٰ پرے ناراضه کیږی او چه الله ناراضه شو نو بیا د عذابونو څهٔ کمے دے ؟!. الله خو د شهواتو والو سره مدد نهٔ کوی، مدد خو صرف د هغه چا سره وی چه دین والا وی، او دا دنیا پرست کفار چه په دنیا کښې کوم خوراکونه کوی، نو دا هم ددے دیندارو د برکته. خو دا جاهلان او ناپوهه دی، دوی وائی راځئ چه دا دین والا ختم کړو، نو دا خواهشات به راته فراخه شي چه څهٔ مو خوښه وه، هغه به کوو او په دے نهٔ پوهیږی چه دین والا ډیر ختم کړل، نو په تا باندے الله په دنیا کښې څهٔ کوی، بیا خو در باندے عذابونه راولی، هلاکوی دے. الله خو در باندے هسے ډوډئ ګانے نهٔ خلاصوی چه کله د هغه دین پکښې نهٔ وی.

نو الله رب العزت د قتال حکمت بیان کړے دے چه قتال او جهاد ډیر حکمتونه لری، تردے چه په قتال کښې دا فائده هم ده چه دا په کافرو باندے رحم دے. ولے چه جنګ کیږی نو الله په کافرو باندے د برَه نه عذاب نهٔ راولی، بلکه د مسلمانانو په لاسونو ئے تباه کوی، او که جهاد ختم شو، نو الله رب العزت به بیا د برَه نه عذابونه راولی، بیا به ټول کافران په آسمانی عذابونو تباه کړی لکه مخکنی امتونه ئے په آسمانی عذابونو هلاک کړی دی.

او په دے دوه واقعاتو کښې دا مختصرے فائدے بیان شوے، ددے په مینځ کښې ډیر فوائد موجود دی. دا واقعات د مسلمانانو د تربیت او د بنی اسرائیلو نه د سبق اخستو دپاره ذکر شویدی. بیا په (۲۵۲) کښې وائی چه آخری رسول ﷺ الله تعالیٰ دے له رالیږلے دے چه کفر او شرک پرے ختم کړی او حق ښکاره کړی. بیا د رسولانو خپل مینځ کښې تفاضل (یو بل باندے غوره والے) بیانوی، او د رسولانو نه روستو په حق کښې د خلقو اختلاف، سره د مشیت د الله تعالیٰ نه په

آیت (۲۵۳) کښې بیانوي۔

## ربط او تړون

۱۔ مخکښې د نکاح سره متعلق احکام وو چه په هغې سره د یوې کورنۍ حفاظت او اصلاح راتلله، اوس په ذکر د قتال سره د دین او د مسلمانانو اجتماعي اصلاح او حفاظت بیانوي۔

۲۔ مخکښې داسې احکام ذکر شو چه په هغې باندې عمل کولو سره انسان لوئي امر منلو ته په آسانئ تیاریږي چه هغه قتال دې۔ ۳۔ دارنګه مخکښې نه د قتال مسئله شروع وه نو بیا مینځ کښې احکام د تدبیر منزل بیان کړل، اوس بیرته خپل مقصد ته واپسی ده۔

بیا دا اولنۍ آیت د روستو (قَاتِلُوا) دپاره تمهید او بطور دلیل دې، او هغه مقصود دې څکه چه دا سورت د صلح حدیبیه په موده کښې نازل وو، او دا د مکې فتح ته اشارات وو، نو پدې کښې قتال لوئي غرض وو، پدې وجه د مخکښې نه صحابه کرامؓ او مسلمانان جهاد ته تیاروي۔ او دلیل کله ددې وجه نه مخکښې راوړې شي چه روستو دعوئ ته شوق پیدا شي او په جلتئ سره په دعوئ باندې عمل اُوکړې شي۔ (ابن عاشورؒ)۔

## د واقعې حاصل

﴿ أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ ﴾ ۱۔ ددې یوې واقعې حاصل دا دې چه په بني اسرائیلو کښې یو څو کسان وو چه طاعون بیماري پرې راغله، بعض کسان مړهٔ شول او بعضِ د خپل کلي نه اُووتل، بیا دوی اُووئیل، که بله ورځ دا بیماري بیا راغله، نو مونږ به ټول تختو، نو الله تعالیٰ پرې دا بیماري بیا راوسته، نو ټول کلي والا اُووتل، تقریباً لس زره پورې کسان وو، نو دوی یو صحراء ته لاړل چه دې طاعون بیماري نه خلاص شي، نو الله په هغه ځائې کښې دا ټول مړهٔ کړل، جبرئیل علیه السلام پرې آواز اوکړو، نو د ټولو نه ساه ګانې اُووتلې۔

یو نبي په دې لاره تیریدو (په اتفاق د مفسرینو هغه حزقیال بن بوزي (یا حزقیل) وو چه د بني اسرائیلو دریم نبي وو کوم چه د ارمیاء او د دانیال علیهما السلام په زمانه کښې وو، د عیسیٰ علیه السلام نه شپږ او اُووه پیړۍ مخکښې تیر شوی۔ (ابن عاشورؒ) چه وې کتل دا بني اسرائیل دي، او ټول مړهٔ پراته دي، نو د الله نه ئې دعا اُوکړه چه اې الله ! دا راژوندي کړه، دا ستا یو اُمت وو، ستا ذکر به ئې کولو، تسبیحات به ئې وئیل، بنهٔ خلق وو۔ او دا کار ترې نقصان شوې دې، نو الله تعالیٰ د هغه دُعا قبوله کړه، بیرته ئې راژوندي کړل، څکه چه دا په اَجَل باندې مړهٔ نهٔ وو، بلکه دا عِقابي (سزائي) مرګ وو۔ الله د سزا په طور مړهٔ کړي وو۔ او دا حقیقي مرګ وو، لیکن د نیتې پوره کیدو والا مرګ نهٔ وو۔ بلکه یو عذاب وو۔ نو راژوندي شو، بیرته خپلې علاقې ته راغلل، او الله پرې

رحم اُوکرو۔ ځکه چه د مرګ نه پس راژوندی کیدل د الله تعالیٰ لوئی انعام وی، پدے وجه الله تعالیٰ په دوی باندے په (اِنَّ اللّٰهَ لَذُوْ فَضْلٍ عَلَى النَّاسِ) سره خپل احسان بیانوی۔

بناء پدے قول دا قصه به استعاره وی۔ د هغه کسانو چه د قتال نه بزدلی کوی، تشبیه ورکړے شویده د هغه کسانو سره چه هغوی د طاعون نه بزدلی کړے وه او جهت جامعه پکښې یره د مرګ ده۔

۲- دویم قول دا دے چه دوی ته خپل نبی په جهاد امر کړے وو، نو دوی د هغه نه اُوتل چه مونږ دے کار ته نهٔ تیاریږو، دا کلے دِے تا ته پاتے وی خو مونږه خو، صحراونو کښې به اُوسیږو، او جهادونه نشو کولے، د مرګ نه یریدل، نو په لاره کښې پرے الله تعالیٰ حقیقی مرګ راوستو چه روح ئے د بدنونو نه اُوتلو۔ نو الله ورته اُوخودل چه جنګ کښې تول خلق نهٔ مری، بعض خلق مرهٔ شی د چا چه اَجَل راغلے وی، او تاسو ځان د مرګ نه خلاصولو، نو تاسو تول به زهٔ په یو ځل مرهٔ کړم۔ الله نه چرته بچ کیدے شئ، دا زمونږ دپاره غټ سبق دے۔ دوی اته ورځے پراته وو، بیا الله تعالیٰ راژوندی کړل دے دپاره چه د الله د قدرت مشاهده اُوکړی او په هغے ئے یقین راشی۔ (ابوالسعود۲/۴۲۶)

بناء پدے قول پدے قصه کښې به د هغه کسانو د حال تشبیه وی چه په قتال کښې بزدلی کوی، د هغه کسانو د حال سره چه د خپلو کورونو نه وتلی وو۔ او جهتِ جامعه پکښې بزدلی ده۔

دا قول غوره معلو میږی، وجه دا ده چه دلته ئے (وَهُمْ اُلُوْفٌ) وئیلی یعنی دا خلق په زرګونو وو۔ دا جمله د تعجیب دپاره وئیلے شویده، او پدے کښې به تعجب هله وی چه کله خلق سره د ډیر والی نه د دشمن نه تختی۔ او که د طاعون نه تختیدل مراد شی نو په هغه صورت کښې د ډیروالی ذکر کولو کښې هیڅ تعجب نهٔ ښکاری۔ (ابن عاشورؒ)

**فائده** : اشاره ده چه څوك دینی کارونه د دنیا د وجه نه پریدی، نو الله تعالیٰ ورلره سزا په هم دغه دنیاوی شیانو کښې ورکوی، لکه مثلاً څوك جهاد پریدی هغه له الله تعالیٰ په عذاب کښې اخته کوی، او څوك چه دعوت پریدی، الله تعالیٰ ئے په ذلت اخته کوی، او څوك چه عبادت پریدی، الله تعالیٰ ئے په دنیوی شغل اخته کوی۔

۳- ابن جریجؒ د عطاءؒ نه نقل کړی چه دا واقعه صرف مثال دے، او واقعی قصه نهٔ ده، لیکن دا ډیر بعید قول دے، ځکه چه دلته الله تعالیٰ د دوی دپاره اسم موصول او ضمائر د حقیقی مذکر ذکر کړیدی۔ او حَذَرَ الْمَوْتِ ئے علت ذکر کړے۔ (ابن کثیرؒ وابن عاشورؒ)

﴿اَلَمْ تَرَ﴾ سیبویه ددے معنیٰ کوی: [تَنَبَّهْ اِلٰی اَمْرِ الَّذِیْنَ خَرَجُوْا] یعنی (نهٔ متوجه او بیدار شه، حالت د هغه کسانو ته چه وتلی وو)۔ نو دلته رؤیة متضمن دے معنیٰ د تنبیه لره، او دا رؤیة قلبی دے۔ یعنی په زړهٔ سره پرے ځان پو هه کول مقصد دے۔

بعض وائي: دا رؤية متضمن دے معنیٰ د انتهاء او وصول لره [اَیْ اَلَمْ یَنْتَهِ عِلْمُكَ اِلَیْهِمْ یَا اَلَمْ یَصِلُ عِلْمُكَ اِلَیْهِمْ] یعنی ستا علم دوی ته نهٔ دے رسیدلے). (فتح البیان ۶۲/۲).

**قاعده**: کله چه فعل د رؤیت متعدی شی هغه شی ته چه سامع (آوریدونکی) سره د هغے لیدل مناسب نهٔ وی، نو پدے کلام کښې به مقصود تیزی ورکول وی، په علم د هغه شی چه هغے ته فعل د رؤیت متعدی شوے وی، او دا خبره د مفسرینو په مینځ کښې اتفاقی ده، ددے وجه نه دلته چه کومه همزه استعمال شویده، نو دا په خپله حقیقی معنیٰ کښې نهٔ ده استعمال شوے، بلکه معنیٰ مجازی ده او خطاب پدے کښې د یو معین دپاره نهٔ دے، دیر کرته هغه مخاطب ته خطاب وی چه په خیال او ذهن کښې فرض شوے وی.

نو دلته په استفهام کښې چه د تیزی ورکولو دپاره استعمال دے، درے وجے جائز دی.

(۱) یو دا چه استفهام د تعجب او تعجیب دپاره دے ځکه چه دلته د مخاطب د فعل رؤیت په مفعول باندے علم د مخکښې نه نشته. (یعنی آیا ته نهٔ گورے مطلب دا چه تعجب اُوکړه داسے مُبهمه واقعه لا تا نهٔ ده پیژندلے!!) او رؤیت به په معنیٰ د ظن سره وی. یعنی په زړهٔ کښې دا خبره حاضره کړه. دا وجه ده چه امام راغبؒ وائی چه دلته رؤیت په معنیٰ د نظر سره دے. ځکه چه رؤیت په خپله معنیٰ سره په واسطه د (اِلیٰ) نهٔ متعدی کیږی.

ددے وجه نه رؤیت خو مفعول غواړی او دلته ئے مفعول نهٔ دے ذکر، دا دلیل دے چه دا په معنیٰ د نظر سره دے. او مقصد پدے کښې دا دے چه دا دعویٰ اُوکړے شی چه دا قصه اگرکه په عقل سره معلومیږی، لیکن داسے ده لکه گویا کښې چه په نظر سره معلومه شویده. ځکه چه څوك دا قصه آوری، د هغه پرے پوره یقین دے. (یعنی نبی ﷺ) لهذا (اَلَمْ تَرَ) به په معنیٰ د (اَلَمْ تَعْلَمْ كَذَا وَتَنْظُرُ اِلَیْهِ) سره وی یعنی تهٔ په فلانئ خبره نهٔ پوهیږے او فلانے شے نهٔ گورے). (ابن عاشور ۴۵۴/۱).

(۲) یا استفهام تقریری دے. یعنی تا ته دے دا خبره معلومه شی. او ځان پرے پوهه کړه لکه د (اَلَمْ نَشْرَحْ) په شان. (۳) یا استفهام انکاری دے ځکه چه مخاطب د فعل رؤیت په مفعول نهٔ دے پوهه. ددے تولو اقوالو نه دا ثابته شوه چه (اَلَمْ تَرَ) نه دا نهٔ لازمیږی چه گنے مخاطب (نبی ﷺ) به د مخکښې نه پوهه وی. بلکه مقصد پدے کښې په مضبوطه پوهه حاصلولو باندے تیزی ورکول دی، داسے پوهه لکه څنګه چه په سترگو لیدلے شوی شی باندے راځی. نو د باطلو دلو ددے نه دا دلیل نیول چه نبی ﷺ په تیر شوی واقعاتو او په راتلونکی کارونو عِلم لرلو، او هغه حاضر ناظر دے، غلط او باطل دی.

﴿وَهُمْ اُلُوْفٌ﴾ ددے په تعداد کښې دیر اقوال دی. (۳۰۰۰) زره وو. (۴۰۰۰) زره وو.

(۱۰۰۰۰) لس زره وو۔ څهٔ دپاسه ديرش زره وو۔ بعض وائي (اويا) زره وو۔

ليکن قرطبيؒ وئيلي دي چه پدے تولو کښې دير صحيح قول د هغه چا دے چه وائي، دوي د لسو زرو نه زيات وو ځکه چه اُلُوف جمع کثرت ده او دا د لسو نه په بره کښې حقيقت وي۔ (فتح البيان)۔

بعض وائي (لکه ابن زيد) : اُلُوف جمع د آلِف ده، لکه جُلُوس جمع د جالس ده، په معنیٰ د مُؤتَلِفُونَ سره، يعني خپل مينځ کښې متفق وو، او په يو بل باندے بنهٔ ډاډهٔ وو، خو بيا هم بزدله وو۔ يعني د دوي دا وتل دافتراق او د خپل مينځي بغض د وجه نه نهٔ وو۔ بلکه بزدله وو۔ او پدے کښې د دوي ډيرے بزدلئ ته اشاره وه چه دوي د دير والي او په يو بل باندے د ډاډهٔ کيدو باوجود د جنگ نه تختيدل۔ (قرطبيؒ)۔

﴿ حَذَرَ الْمَوْتِ ﴾ دا د (خَرَجُوا) دپاره مفعول لهٔ دے، يعني دا وتل ئے د مرگ د يرے د وجه نه وو۔ حذر هغه يرے ته وائي چه ورسره بچاؤ وي يعني ځان ئے د مرگ نه ساتلو۔

﴿ فَقَالَ لَهُمُ اللهُ مُوْتُوا ﴾ يعني الله پکښې مرگ پيدا کړو په خپل حکم سره، او دا دليل دے چه دوي يقيناً مړهٔ شوي وو۔

**فائده** : (فَأَمَاتَهُمْ) لفظ ئے استعمال نکړو (يعني الله دوي لره مړهٔ کړل) بلکه (مُوْتُوا) ئے اُووئيل، پدے کښې اشاره ده چه دوي داسے په يو ځل مړهٔ شول لکه چه گويا کښې يو سړے مړې۔ گويا کښې دوي ته الله تعالیٰ حکم اُوکړو، او دوي هغه سمدست قبول کړو۔ (قاسميؒ)

﴿ ثُمَّ اَحْيَاهُمْ ﴾ په دعا د حزقيال بن بوزي ؑ سره راژوندي شو، چه دا د هغهٔ معجزه وه۔ او پدے سورت کښې دا دريم کرت دے چه د مرگ نه روستو مړي راژوندي کول پکښې راغلل۔

**فائده**: د معجزاتو منکرين ددے واقعے د ظاهر نه انکار کوي، او پدے کښې تاويلونه کوي چه د دوي مرگ داسے نهٔ وو، چه روح ئے د بدن نه وتلے وي، بلکه دا يو مرض دے لکه د سکتے بيمارئ او بے هوشئ په شان، او ابن راوندي (چه دا يو کافر زنديق انسان وو) خو د تولو مړو په باره کښې دا عقيده لري چه د بدنونو نه روحونه نهٔ جدا کيږي، بلکه دغسے حالت ورباندے راځي چه روح د بدن په اندامونو کښې موجود وي۔

علامه آلوسيؒ وائي چه د دوي دا قول د شريعت او عقل دواړو نه مخالف دے۔

﴿ لَذُوْ فَضْلٍ عَلَى النَّاسِ ﴾ فَضْلٍ کښې تنکير د تعظيم دپاره دے يعني الله د لوئي فضل والا دے په تولو خلقو۔ په هغوي باندے ئے فضل او انعام دا وو چه بيرته ئے راژوندي کړل چه عبرت حاصل کړي، او په مخاطبينو باندے فضل دا دے چه دوي ته ئے پدے قصه باندے عبرت ورکړو چه تاسو داسے کار اُونکړئ۔ (فتح، قاسمي)۔

وَقَاتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴿۲٤٤﴾

او جنگ کوئ په لاره د الله کښې او پوهه شئ چه یقیناً الله اوریدونکے پوهه دے۔

**تفسیر**: پدے آیت کښې دے اُمت تـه د قتال حکم دے، یا هغوی ته خطاب وو، بیا به مونږ ته هم خطاب وی۔ لیکن ابن جریرؒ وائی چه ددے قول دپاره هیڅ وجه نشته۔ او پدے کښې عطف د مضمون د یوے جملے دے، په حاصل د مضمون د مخکنئ جملے باندے یعنی د مرگ د یرے نه بزدلی مهٔ کوئ بلکه (وَقَاتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ)۔ د الله په لاره کښې قتال اُوکړئ۔

﴿فِي سَبِيلِ اللَّهِ﴾ د سبیل الله نه مراد اعلاء د کلمة الله ده یعنی د الله د دین د ترقئ او پورته کولو دپاره جهاد اُوکړئ، ځکه کافران دین ختمول غواړی، نو تاسو ورسره جنګ اُوکړئ چه د هغوی شر او رکاوټ ختم شی او دین ترقی اُوکړی۔

﴿وَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ﴾ پدے جملـه کښې ترغیب او یره دواړه پراته دی۔ سمیع یعنی الله آوریدونکے دے هغه خبرے له چه څوك پرے ځان قلاروی او د قتال نه پاتے کیږی، او څوك جهاد تـه ترغیب ورکوی او څوك ترے منع کول کوی۔ او پوهه دے په هغه خبره چه کومه زړهٔ کښې پټه ساتی۔ یا ستاسو په زړونو کښې کوم غرضونه دی چه ستاسو جهاد د دنیاوی غرض دپاره دے او که د دین دپاره۔ (فتح البیان، کبیر)۔

او پدے کښې په اخلاص او صحیح نیت باندے تیزی ورکول دی۔ (قاسمی)۔

مَنْ ذَا الَّذِي يُقْرِضُ اللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا فَيُضَاعِفَهُ لَهُ أَضْعَافًا

څوك دے هغه کس چه قرض ورکړی الله لره قرض ښائسته، پس دوچنده به کړی هغهٔ دهٔ لره په دوچنده کولو

كَثِيرَةً وَاللَّهُ يَقْبِضُ وَيَبْسُطُ وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ ﴿۲٤٥﴾

ډیرو سره، او الله تنګوی (رزق) او فراخوی ئے او خاص هغه ته به تاسو واپس کولے شئ۔

**تفسیر**: اُوس مینځ کښې انفاق ته ترغیب ورکوی ځکه چه جهاد کښې مالونو ته ډیر ضرورت وی۔ دا بیا د جهاد سره هم لګی او د عامو اوقاتو سره هم، چه انفاق هر وخت ښهٔ کار دے۔ انفاق د مؤمن صفت دے۔

﴿مَنْ ذَا الَّذِي يُقْرِضُ اللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا﴾ (مَنْ ذَا) ذَا روستـو د استفهام نه کله په خپله معنیٰ کښې استعمالیږی، په هغه صورت کښې چه مشار الیه ظاهر (خارج) کښې موجود وی۔ او کله په

معنیٰ مجازی د اشاره کښې استعمالیږي چه متکلم په ذهن کښې د یو شخص تصور اُوکړي او بیا د هغهٔ د تعیین په باره کښې تپوس کوي۔ معنیٰ دا وي چه داسې شخص به څوك وي چه هغه الله ته قرض ورکړي۔ (ابن عاشور)۔

## د قرض حسن وضاحت

(قرض) په لغت کښې قطع (پرېکولو) ته وئیلې شي، او په قرض کښې هم د مال یوه برخه بل چا ته پرېکولې شي۔ د کسائيؒ په نیز: اَلْقَرْضُ: مَا اَسْلَفْتَ مِنْ عَمَلٍ صَالِحٍ اَوْ سَيِّءٍ)

هر هغه عمل چه تهٔ ئې ځان دپاره مخکښې اُولیږې، که هغه خیر وي او که شر۔

او په عرف کښې قرض: [اِسْلَافُ الْمَالِ وَنَحْوِهٖ بِنِيَّةِ اِرْجَاعِ مِثْلِهٖ]۔

د مال وغیره ورکول ددې دپاره چه دهٔ ته ددې په شان راواپس کړې شي)۔

او کلمه استعمالیږي د هغه خرچ کولو دپاره چه د هغې بدله طلب کولې شي که هغه نفس وي، بدن وي او که مال وي۔ او دلته همدا مراد دې۔ (ابن عاشور وفتح البیان)

قرضا: الله ته د قرض ورکولو معنیٰ دا ده چه نیك عمل مخکښې لیږل چه د هغې په وجه عمل کونکے د ثواب مستحق اُوګرځي۔ او د مال لګولو نه ئې په قرض سره تعبیر اُوکړو، پدې کښې اشاره ده چه لکه څنګه د قرض واپس کول ضروري وي، او د هغې مطالبه کیدې شي، نو دغه شان الله تعالیٰ به ضرور دې انسان ته ددې مال بدله ورکوي، او دا عمل به ورله نهٔ ضائع کوي۔ نو پدې کښې ډیر ترغیب دې چه ضرور د الله په لاره کښې انفاق اُوکړيٌ، دا به داسې وي لکه په الله تعالیٰ باندې قرض۔ (ابو السعود)۔

او دا ترغیب په ډیرو طریقو سره دې۔ (۱) یو دا چه تعبیر ئې په استفهام سره اُوکړو دپاره د تنبیه او ذهنونو متوجه کولو۔ (۲) په استفهام کښې ئې اشاره او موصول جمع کړیدي یعني (مَنْ ذَا الَّذِيْ). نو پدې کښې د خرچ کونکي لوئی شان دې، ځکه پداسې الفاظو سره تپوس نهٔ کیږي مګر هله چه یو مقام لوئی شان او مرتبې والا وي، او د مخاطب لوئی شان وي۔

(۳) دې ته ئې قرض اُووئیلو، اشاره ده چه دا به خپل مالك ته بیرته ضرور راواپس کیږي، ددې ضرور غوره بدله شته، ددې نه به لویه مرتبه بله کومه وي چه قرض طلب کونکے رب العالمین وي، کوم چه د هر شي مالك او خالق دې چه هیڅ کمے ورسره نشته۔

(٤) دیته ئې حَسَن اُووئیلو، یعني داسې قرض چه د هغې نتیجه او بدله ښائسته وي۔

(۵) دارنګه ددې قرض په بدله کښې [فَيُضَاعِفَهٗ لَهٗ اَضْعَافًا كَثِيْرَةً] اُووئیلو، دا بل ترغیب دې چه ددې عوض هم ډیر لوئی شان لري۔ (زهرة التفاسیر للامام الجلیل ابی زهرة متوفی (۱۳۹٤هـ)

قرطبيؒ وئيلي دي: پدے آيت کښې طلب د قرض د خلقو ذهن او پو هے ته د رانژدے کولو دپاره وئيلے شويدے، (ورنه الله تعالىٰ په حقيقت کښې د قرض محتاج نهٔ دے)۔ (قاسمیؒ، وقرطبیؒ)۔

﴿ قَرۡضًا حَسَنًا ﴾ قرض حسن دے ته وائي چه د زړهٔ په خوشحالئ او رضا سره وي۔ بغير د زبادولو او بغير د اَذیٰ (ضرر) ورکولو نه وي۔

بعض وائي: مُحۡتَسِبًا۔ چه دا عمل ثواب ګنړي، نيت ئے صحيح وي. ځينې وائي: ددے نه مراد د نيکئ په لاره کښې حلال مال خرچ کول ښائسته قرض دے۔

بعض وائي: هغه چه د الله دپاره خالص وي، او رياء او سُمۡعَة په کښې نهٔ وي۔ (فتح البيان)۔

دارنګه په صحيح ځايونو کښې وي، او د سنت مطابق وي. بعض وائي: دا هغه انفاق دے چه د الله تعالىٰ په لاره کښې په قتال کښې اُوشي، او بعض وائي: په خپل اهل وعيال باندے انفاق کولو ته وائي۔

ليکن امام ابن کثيرؒ ليکي: صحيح خبره دا ده چه آيت دے ټولو ته عام دے، هر هغه څوک چه په خالص نيت او رشتيني عزم سره د الله په لاره کښې خرچ کوي نو پدے آيت کښې داخليږي۔

(محاسن التاويل سورة الحديد)۔

بعض علماء فرمائي: قرض به هله حَسَن (ښائسته) ګرځي چه لس صفات پکښې راشي

(۱) ...... اَنۡ يَّكُوۡنَ مِنَ الۡحَلَالِ (چه د حلال مال نه وي)۔

(۲) ......اَنۡ يَّكُوۡنَ مِنۡ اَكۡرَمِ مَا تَمۡلِكُهٗ دُوۡنَ اَنۡ تُنۡفِقَ الرَّدِیۡٔءَ) غوره مال به لګوي، نهٔ ردي مال۔

(۳) ...... اَنۡ تَصَدَّقَ بِمَا تَمۡلِكُهٗ وَاَنۡتَ تَحۡتَاجُ اِلَيۡهِ بِاَنۡ تَرۡجُو الۡحَيَاةَ۔ (په داسے وخت کښې به مال لګوے چه تهٔ ورته په ژوند کښې محتاج کيږے) يعنې د مرګ وخت به نهٔ وي۔

(٤) اَنۡ تُصۡرِفَ صَدَقَتَكَ اِلَى الۡاَحۡوَجِ۔ (صدقه به ډير محتاج انسان ته ورکوے)۔

(٥) ...... اَنۡ تَكۡتُمَ الصَّدَقَةَ مَا اَمۡكَنَكَ۔ څومره چه ممکن وي، صدقه به په پټه ورکوے۔

(٦) ... اَنۡ لَّا تُتۡبِعَهَا مَنًّا وَّلَا اَذًى۔ زبادول او تکليف ورکول به نهٔ وريسے کوے۔

(۷) ... اَنۡ تَقۡصِدَ بِهَا وَجۡهَ اللّٰهِ وَلَا تُرَائِیَ۔ (صرف د الله مخ او رضا به پرے ستا مقصد وي، او رياء به پکښې نهٔ کوے)۔ (۸) ...... اَنۡ تَسۡتَحۡقِرَ مَا تُعۡطِیۡ وَاِنۡ كَثُرَ ۔(کومه ورکړه چه کوے هغه که هر څومره ډيره وي خو تهٔ به ئے کمه ګنړے)۔ (۹) ......اَنۡ يَّكُوۡنَ الۡمُعۡطٰى مِنۡ اَحَبِّ اَمۡوَالِكَ اِلَيۡكَ۔

(کوم مال چه [illegible] ورکوے، هغه به تا ته د ټولو نه زيات محبوب وي)۔

(۱۰) اَنۡ لَّا تَرٰى عِزَّ نَفۡسِكَ وَذُلَّ الۡفَقِيۡرِ، بَلۡ تَرٰى نَفۡسَكَ تَحۡتَ دَيۡنِ الۡفَقِيۡرِ۔

(د صدقے په وخت کښې به د خپل عزت، او د فقير د ذلت خيال نهٔ راولے، بلکه دا ګمان به کوے چه د

فقیر په ما پاندې قرض دې او الله په ما پاندې ددهٔ رزق حواله کړيدې کوم ذات ئې چه ما نه قبلوي).
(مراح لبید لکشف معاني القرآن المجید لمحمد بن عمر النووي الجاوي البنتني ۲/۴۹۱)
ددې ټولو شرطونو دپاره په قرآن او احادیثو کښې دلائل موجود دي.
عبد الله بن مسعود رضي الله عنه فرمائي: کله چه دا آیت نازل شو نو ابوالدحداح انصاري رضي الله عنه اُوفرمایل: یارسول الله! الله تعالیٰ زمونږ نه قرض غواړي؟ نبي ﷺ اُوفرمایل: آو، یا ابو الدحداح! دهٔ عرض اُوکړو: ما ته لاس راکړه یارسول الله! نو هغه ورته لاس ورکړو. دهٔ عرض اُوکړو: [فَإِنِّيْ قَدْ أَقْرَضْتُ رَبِّيْ حَائِطِيْ] ما خپل باغ خپل رب ته په قرض کښې ورکړو.(ددهٔ په باغ کښې اُووه سوه کجورې وې او ام الدحداح ددهٔ بي بي او ددهٔ بچي په هغې کښې وو) نو ابوالدحداح راغلو، آواز ئې اُوکړو: اے ام الدحداح! هغې جواب ورکړو: دهٔ اُووئیل: ددې باغ نه اُوځه دا ما خپل رب ته په قرض کښې ورکړو. (هغه په خوشحالۍ سره راووتله) نبي ﷺ اُوفرمایل: الله ستا نه دا قرض قبول کړو.
(په یو روایت کښې دي: هرکله چه ام الدحداح دا آواز واوریدو نو سمدست ئې د خپلو ماشومانو د خولو نه کجورې راوخکلې او د هغوی جیبونه او لستونړي ئې د کجورو نه خالي کړل. دې ته ایمان وائي!!). (صفوة الصفوة)
بیا نبي ﷺ دغه باغ هغه یتیمانانو ته ورکړو، کوم چه د هغهٔ په تربیت کښې وو. بیا به نبي ﷺ فرمایل: [رُبَّ عَذْقٍ لِأَبِي الدَّحْدَاحِ مُدَلًّى فِي الْجَنَّةِ] (ډیر کرته د ابوالدحداح دپاره په جنت کښې د کجورو د ونو غونچکونه رازوړند شویدي).
(سعید بن منصور، بزار، طبراني وغیرهم صَحَّحَهُ الْأَلْبَانِيُّ بِشَوَاهِدِهٖ فِيْ تَخْرِيْجِ مُشْكِلَةِ الْفَقْرِ رقم ۱۲۰).
بیا دا قرض چه ورکوي نو د خپل طاقت مناسب به ئې ورکوي، داسې به نهٔ کوي چه ټول مال اُولګوي او بیا خپله بل ته سوال کوي.
﴿فَيُضٰعِفَهٗ لَهٗٓ اَضْعَافًا كَثِيْرَةً﴾ یو په اُووه سوه، یو په اُووه لاکهه او یو په اُووه کروړه به ئې ورکړي.
ددې دوچنده کولو بیان نهٔ دې شوې لکه دا خبره سُدّيؒ ذکر کړیده او پدې نهٔ ذکر کولو کښې فائده دا ده چه په باب د ترغیب کښې مبهم ذکر کول د معینې اندازې ذکر کولو نه ډیر قوي وي. (فتح)
ځکه: ﴿وَاللّٰهُ يَقْبِضُ وَيَبْسُطُ﴾ یعني د مال په جمع کولو او نهٔ لګولو مال نهٔ ډیریږي، بلکه قبض (تنګول) او بسط (فراخول) د الله په لاس کښې دي.
ددې وجه نه حدیث کښې دي: مَا نَقَصَتْ صَدَقَةٌ مِنْ مَالٍ (قسم په الله په صدقه سره مال نهٔ کمیږي) (صحیح مسلم). نو پدې جمله کښې ترغیب هم دې چه مال اُولګوئ الله به ئې فراخه کړي. او یرهٔ هم ده چه هسې نه چه فراخي درله په تنګۍ بدله نکړي. (قاسمي).

قتادة وائي : قبض او بسط صدقې ته راجع دي يعني الله د چا صدقه اخلي (قبلوي) او د هغې فراخه بدله ورکوي. بعض وائي : دا زړونو ته راجع دي. الله بعض زړونه د صدقې کولو نه تنګوي، چه په طاعت او د خیر په کارونو کښې په انفاق باندې قادر نۀ وي، او بعض زړونه فراخوي چه په انفاق باندې قادر وي. او ددې تائيد په هغه حديث د عبد الله بن عمرو بن العاص ﷺ کښې دې چه نبي ﷺ فرمائي : ((زړونه د بندګانو د رحمن ذات د دواړو ګوتو ترمينځ دي، لکه ديو زړۀ په شان، کوم طرف ته چه الله غواړي هغه اړوي)). الحديث.

(صحيح مسلم). (فتح البيان، ابن عاشور)

﴿ وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ ﴾ يعني الله ته به ورګرځولې شئ په قيامت کښې، نو هغه به بدله درکوي. او پدې جمله کښې دا تنبيه پرته ده، چه په آخرت کښې د انفاق کوم خيرونه او بدلې دي، هغه د دنيا د فائدو نه ډيرې زياتې دي. او پدې کښې تعريض دې چه بخيل انسان د ډير خير نه محروم دې.

(ابن عاشور).

أَلَمْ تَرَ إِلَى الْمَلَإِ مِنْ بَنِيٓ إِسْرَآئِيلَ مِنْ بَعْدِ مُوسَىٰٓ إِذْ قَالُوا لِنَبِيٍّ لَّهُمُ

آيا تۀ نۀ ګورې يوې ډلې ته د بني اسرائيلو نه روستو د موسیٰ ﷺ نه کله چه دوی اُووئيل نبي خپل ته

ابْعَثْ لَنَا مَلِكًا نُّقَاتِلْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ قَالَ هَلْ عَسَيْتُمْ

مقرر کړه مونږ له يو بادشاه چه جنګ اُوکړو په لاره د الله کښې هغه اُووئيل : يقيناً تاسو نزدې يئ

إِن كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِتَالُ أَلَّا تُقَاتِلُوا قَالُوا وَمَا لَنَآ أَلَّا نُقَاتِلَ

که فرض کړې شي په تاسو جنګ چه جنګ به اُونکړئ، دوی اُووئيل : څۀ وجه ده مونږ له چه جنګ به نۀ کوو

فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَقَدْ أُخْرِجْنَا مِن دِيَارِنَا وَأَبْنَآئِنَا

په لاره د الله کښې حال دا چه مونږ ويستلې شوي يو د کورونو خپلو او ځامنو خپلو نه

فَلَمَّا كُتِبَ عَلَيْهِمُ الْقِتَالُ تَوَلَّوْا إِلَّا قَلِيلًا مِّنْهُمْ وَاللَّهُ عَلِيمٌۢ بِالظَّٰلِمِينَ ﴿۲۴۶﴾

نو هرکله چه فرض شو په دوی باندې جنګ دوی اُوګرځيدل مګر لږ کسان د دوی نه او الله پوهه دې په ظالمانو باندې.

**تفسير** : پدې کښې د بني اسرائيلو دويمه واقعه بيانوي، پدې کښې په ترك د جهاد يره ورکوي، چه د کمزوالي د نفرئ په وجه به جنګ کښې سستي نۀ کوئ لکه څنګه چه دې بني اسرائيلو

کړے وه۔ ورنه بیا به ذلیل او رسوا شی او ظالمان به دربانديے مسلط شی۔

﴿مِنۡ بَعۡدِ مُوۡسٰى﴾ دا واقعه د مخکنۍ واقعے نه روستو راغلے وه، او دا د هغه خلقو اولاد وو کوم چه الله دوباره راژوندی کړی وو۔ او دا د موسی علیه السلام د وفات نه تقریباً دريے سوه کاله روستو راغلی وو۔ ځینې مفسرین وائی چه دا واقعه د مسیح علیه السلام نه تقریباً یو زر کاله مخکښ راپیښه شوے وه۔ او پدے کښ یو قسم اشاره ده چه دوی په زمانه د موسیٰ علیه السلام کښ د هغه په ملګرتیا کښ قتال نهٔ کولو، او دا ئے ورته وئیل چه ﴿اِذۡهَبۡ اَنۡتَ وَرَبُّكَ فَقَاتِلَاۤ اِنَّا هٰهُنَا قٰعِدُوۡنَ﴾ ته او ستا رب دے جنګ اُوکړی، موږ به دلته ناست یو)

حال دا چه د هغه په زمانه کښ د دوی سره د مدد کیدو ډیر اُمید وو، لیکن دوی موقعه ضائعه کړه، نو پدے کښ د مسلمانانو یرول مقصد دے چه د خپل رسول سره اختلاف اُونکړی او په اول آواز سره د الله په لاره کښ جنګ ته تیار شی۔ (ابن عاشورؒ)۔

﴿اِذۡ قَالُوۡا لِنَبِیٍّ لَّهُمُ﴾ لِنَبِیِّهِمۡ ئے اُونهٔ وئیلو، وجه دا ده چه په اضافت کښ تعیین وی او د قرآن مخاطبینو ته دا نبی معلوم نهٔ وو، دویم دا چه د نبی د نوم معلومولو نه بغیر هم د واقعے نه عبرت اخستلے کیږی، هر نبی چه وی خو د هغهٔ مخالفت کول سبب د ذلت دے۔(ابن عاشورؒ) او دا نبی شموئیل یا صموئیل علیه السلام وو۔

## د واقعے تفصیل

مفسرین د تاریخ والو نه نقل کوی چه په بنی اسرائیلو کښ دوه دَورونه راروان وو، یو ته ئے عَصۡرُ الۡقُضَاةِ وئیلو (د قاضیانو دوران) یعنی د بنی اسرائیلو د هرے ډلے به جدا جدا حاکم وو چه هغه به دوی له فیصلے کولے، برابره ده که هغه به نبی وو او که غیر نبی۔

کله چه موسیٰ علیه السلام د عیسوی سنے نه (۱۳۸۰) کاله مخکښ وفات شو، نو د خپل ځان نه روستو ئے یوشع بن نون پریخودو چه هغه ته ئے دا وصیت کړے وو چه ته به زما خلیفه ئے، نو کله چه مشری د بنی اسرائیلو یوشع ته رانقل شوه، هغه د بنی اسرائیلو ډلو دپاره جدا جدا حاکمان مقرر کړل چه هغوی به د دوی مشری او فیصلے کولے۔

دے ته ئے د قُضَاة (قاضیانو) نوم ورکړو، نو دوی به په مختلفو ښارونو کښ اُوسیدل او په دغه حاکمانو کښ به انبیاء علیهم السلام او غیر انبیاء وو۔ او تردے واقعے پورے دا دَور چلیدو۔ نو د دوی د حاکمانو او انبیاؤ نه یو نبی صمویل بن القانة (چه دهٔ ته په عربی کښ شمویل وئیلے شی) (د ابوعبیدةؓ نه نقل دی چه دا شمویل بن حنة بن العاقر دے او پدے باندے د اکثرو قول دے) ...... روح المعانی (۱٦٦/۲)

دا د ټولو بنی اسرائیلو قاضی وو او هغوی ته ډیر محبوب وو، کله چه دا بوډا شو او بدن ئے

کمزورے شو، نو د بنی اسرائیلو او د دوی د دشمنانو فلسطینیانو چه عمالقه وو او مشر ئے مشهور بادشاه جالوت وو، ترمینځ جنګونه شروع شو، آخر دا چه جالوتیان په دوی غالب راغلل، او دوی نه ئے ډیر کلي اُونیول، او خامن ئے ورله قیدیان کړل (تقریباً څلور سوه څلویښت هلکان ئے ورله غلامان کړی وو) تردے چه د دوی نه ئے تابوت هم یوړو، د کوم تذکره چه روستو راځی. او په (اشدود) علاقه کښې ئے څو میاشتے ساتلے وو.

او ددے سبب دا وو چه دوی د موسیٰ ؑ شریعت نه اوړیدلی وو، او د الله نه سیوئ د نورو آلهو عبادت ئے شروع کړے وو، نو د دوی دینی رابطه ضعیفه شوے وه، نو الله پرے فلسطینیان مسلط کړل چه د دوی وینے ئے توئے کړے، نو دوی سخت کمزوری شو، او تقریباً دیرش زره جنګیان ئے د دوی نه قتل کړل. او کله ئے چه د دوی نه تابوت قبضه کړو، نو د دوی زړونه نور هم ډیر زیات مات شو، نو همت ئے نشو کولے چه هغه بیرته راواپس کړی او تردے دَور پورے د دوی ملوك (بادشاهان) نهٔ وو مقرر. (تفسیر المنار)

نو بنی اسرائیلو دا ګمان اُوکړو چه ددے شکست سبب دا دے چه صموئیل زموږ د کارونو پوره انتظام اُونکړے شو، او د فلسطینیانو د قتال نظام چلونکے مَلِك (بادشاه) مضبوط وو، پدے وجه هغوی غالب شول. نو بنی اسرائیل راجمع شو او د هر ښار نه ئے مشران راولیږل او د صموئیل نه ئے مطالبه اُوکړه چه موږ له یو بادشاه (یعنی امیر د قتال) مقرر کړه چه د هغه په قیادت کښې موږ د الله په لار کښې قتال اُوکړو. نو هغه ددے کار نه روستو شو، او دوی ئے د بادشاهانو د حکمونو د انجام نه اُویرول. او دا ئے ورته اُووئیل چه قتال او جهاد مهٔ غواړئ، که فرض شی بیا به ئے نهٔ شئ کولے. آخر دا چه قتال پرے فرض شو، او دا د عیسیٰ ؑ نه مخکښې د یولسمے پیړئ په اوائلو کښې وو. نو د هغه وخت نه د بنی اسرائیلو عَصْرُ الْمُلُوك (د باشاهانو دَور) شروع شو. التنویر لابن عاشور (١/٤٦٦)

د دوی نبی ته د دوی حال معلوم وو. د دوی ګناهونه ئے لیدل چه ښکاره به ئے په لارو کښې زنا ګانے کولے، نو الله په کښې بزدلی راوستے وه. (بغوی) پدے وجه ئے د جنګ طلب کولو نه منع کړل، نو دوی اُووئیل: ولے به ئے نهٔ کوو. د الله د دین دپاره خلق محنت کوی، او حال دا دے چه سبب د جنګ هم موجود دے چه بچی او کورونه زموږ نه دے ظالمانو اخستی دی، خپل کور او بچو دپاره هم خلق ځان وژنی. او مانع نهٔ دے موجود. دا غیرت ئے ځان ته راوا چوو، او هسے د خولے شهوت ئے پوره کړو، نو الله ورته اُوفرمایل: بس تیك ده، فرض شو. خو چه هرکله فرض شو، نو تول اُوتختیدل، صرف درے سوه دیارلس کسان پاتے شو. هغوی له الله تعالیٰ فتح ورکړه

او باقي کسان په امتحان کښې ناکام شو۔
اول نـه پـه دے کښې ناکام شو چه مشرئے غوختو خو چه کله هغه مقرر کړے شو، نو دوی پرے اعتـراضـونـه شـروع کړل، بيا چه په ډيره مجبورتيا سره ئے مشر اُومنلو، نو بيا پرے هغهٔ امتحان اُوکـړو چـه لاره کښې نهر راروان دے، دے نه به اُوبه نهٔ سکئ۔ دوی اُووئيل : ولے به ئے نهٔ سکو ؟ په دے کـښې ستـا څـهٔ غـرض دے۔ نـو هغـه اُوبـه ئے اُوسکلے، بيا ئے جنګ نشو کولے، خيټے ئے اُوپرسيدلے۔ هر وخت کښې د دوی دا چل وو چه نهٔ شو کولے۔ او نهٔ ئے منو۔ دا د بني اسرائيلو حال وو۔ او پدے هره جمله کښې ددے اُمت د مسلمانانو دپاره سبق پروت دے۔
﴿ اِبۡعَثۡ لَنَا مَلِكًا ﴾ بَعۡث پـه معنیٰ د مقررولو سره دے۔ په هغه زمانه کښې به قومندان (جنګي مشر) بادشاه وو، او دا به جدا وو او د نبوت بيانونکے به جدا وو۔
﴿ قَالَ هَلۡ عَسَيۡتُمۡ ﴾ هَـلۡ پـه معنیٰ د قَدۡ دے، او عَسَيۡتُمۡ په معنیٰ د قَرُبۡتُمۡ دے۔ يـعـنـي يقيناً تاسو نزدے يئ)۔
﴿ اَنۡ لَّا تُقَاتِلُوۡا ﴾ دا د عَسَيۡتُمۡ دپـاره خبر دے، او د اِنۡ كُتِبَ دپـاره جزاء ده، پـه طريقـه د تنـازع سره۔ يعني نزدے يئ چه جنګ به اُونکړئ او که جنګ فرض شي نو قتال به اُونکړئ۔
﴿ وَمَا لَنَآ اَلَّا نُقَاتِلَ فِیۡ سَبِيۡلِ اللّٰهِ وَقَدۡ اُخۡرِجۡنَا مِنۡ دِيَارِنَا وَاَبۡنَآئِنَا ﴾
يـعـنـي سبب د قـتـال مـوجـود دے او مـانـع نشـتـه، نو جهاد ولے نهٔ فرض کيږي؟ انساني غيرت تـقـاضـا کـوی چـه داسے قسـم دشـمنـانو سره قتال اُوکړے شي۔ او پدے جمله کښې د مشرکانو په جنګ باندے مهاجرين مسلمانان راياد کړل دي چه هغوی دوی لره د مکے نه ويستلي وو او دوی ئے د خپـلـو بيبيـانـو او څـامـنـو نه جدا کړی وو۔ لکه الله فرمائي : ﴿ وَمَا لَكُمۡ لَا تُقَاتِلُوۡنَ فِیۡ سَبِيۡلِ اللّٰهِ وَالۡمُسۡتَضۡعَفِيۡنَ مِنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَآءِ وَالۡوِلۡدَانِ ﴾ النساء : ۷۵)۔
﴿ فَلَمَّا كُتِبَ عَلَيۡهِمُ الۡقِتَالُ تَوَلَّوۡا ﴾ يـعـنـي کله چه قتال فرض شو نو دوی واوړيدل د دشمنانو دير والے او دبدبه ئے اُوليدله۔ دارنګه نيتونه او عزيمتونه ئے د ګناهونو د وجے نه کمزوری وو۔
دا تـجـربـه ده چـه کـوم کسان د انقلاب او د جهاد هسے نعرے وهي، هغوی اکثر په امتحان کښې پاتے راځي۔ او ګناهونه سبب د بزدلئ دے۔ او دا ددے قصے خلاصه ده چه پدے کښې عبرت پروت دے۔ چه اے ايمان والو! تاسو کښې د بني اسرائيلو په شان بزدلي رانشي۔ او روستو ئے تفصيل بيانيږي۔
﴿ اِلَّا قَلِيۡلًا مِّنۡهُمۡ ﴾ د دوی شـمـار پـه صحيح حديث سره (۳۱۳) کسان خودلے شويدي، په اندازه د بدريانو صحابه کرامو۔
﴿ وَاللّٰهُ عَلِيۡمٌ بِالظّٰلِمِيۡنَ ﴾ پـدے کـښې وعيد دے دوی تـه د دوی پـه ظلم چـه د فرض جهاد نـه

اُوتختیدل، او د الله نافرمانی ئے اُوکړه او ذلیله شو۔

**فوائد الآیة** : ۱- جهاد واجب دے ځکه چه الله تعالیٰ دا قصه ددے دپاره بیان کړیده چه اُمتِ مسلمه یروی چه د بنی اسرائیلو په شان طریقه اختیار نکړی۔

۲- په جهاد کښې امیر مقررول ضروری دی، دے دپاره چه د کارونو انتظام اُوکړی ځکه چه امیر نهٔ وی، نو ټول کارونه بے نظمه او بے ترتیبه وی۔ په هره سریه باندے رسول الله ﷺ امیر مقرر کړیدے۔

۳- په جنګی او سیاسی کارونو کښې د امیر طاعت لازم دے۔

٤- امام حاکمؒ فرمائی : دا دلیل دے چه انبیاؑ علیهم السلام (او مشرانو) له پکار دی چه خلقو نه مضبوط لوظونه واخلی او خبره پرے مضبوطه کړی (هَلْ عَسَیْتُمْ)۔ (قاسمیؒ)

| وَقَالَ لَهُمْ نَبِيُّهُمْ إِنَّ اللَّهَ قَدْ بَعَثَ لَكُمْ طَالُوتَ مَلِكًا قَالُوٓا أَنَّىٰ يَكُونُ |
|---|
| اُووئیل دوی ته نبی د دوی یقیناً الله مقرر کړے دے ستاسو دپاره طالوت بادشاه، دوی اُووئیل څرنګه به وی |
| لَهُ الْمُلْكُ عَلَيْنَا وَنَحْنُ أَحَقُّ بِالْمُلْكِ مِنْهُ وَلَمْ يُؤْتَ |
| ددهٔ دپاره بادشاهی په مونږ باندے او حال دا چه مونږ ډیر لائق یو په بادشاهئ سره ددهٔ نه او نه دهٔ ورکړے شوے |
| سَعَةً مِّنَ الْمَالِ قَالَ إِنَّ اللَّهَ اصْطَفَاهُ عَلَيْكُمْ وَزَادَهُ بَسْطَةً |
| دهٔ ته فراخی د مال اُووئیل هغه یقیناً الله غوره کړے دے دهٔ لره په تاسو باندے او زیاتی کړے دهٔ لره فراخی |
| فِي الْعِلْمِ وَالْجِسْمِ وَاللَّهُ يُؤْتِي مُلْكَهُ مَن يَشَاءُ وَاللَّهُ وَاسِعٌ عَلِيمٌ ﴿٢٤٧﴾ |
| په علم او جسم کښې او الله ورکوی بادشاهی خپله چاله چه اُوغواړی او الله فراخه فضل والا، ډیر پوهه دے۔ |

**تفسیر** : ددے آیت نه اُوس تفصیل ددے قصے بیانوی یعنی الله د دوی نبی ته وحی اُوکړه چه په دوی باندے یو سړے مَلِك (بادشاه) مقرر کړه چه نوم ئے طالوت وو۔ او دا شخص د بدن په لحاظ ډیر قوی وو، او اُوچت قد والا وو، ددے وجه نه ورته طالوت وئیلے شی۔ دا ئے لقب وو، په خپل قوم کښې هم پدے مشهور وو، او تورات کښې ددهٔ نوم شاول بن قیس ذکر کیږی۔ لکه په سفر د صموئیل اصحاح (۹) کښې راغلی دی :

«کله چه بنی اسرائیلو خپل سوال مضبوط کړو نو صموئیل مونځ اُوکړو نو الله ورته وحی اُوکړه چه دوی څهٔ غواړی هغه ورله اُومنه ...... بیا ئے دهٔ ته وحی اُوکړه چه فلانی صفاتو والا شخص دوی

دپاره معین کړه نو دده سره یو سړے چه د بنیامین په اولادو کښې وو، نوم ئے شاول بن قیس وو، ملاؤ شو، نو صموئیل په ده کښې هغه صفات موندهٔ کړل، چه دا په ټول قوم کښې اوريد وو، نو صموئيل دده په سر تیل واړول او خکل ئے کړو او د ټولو بنی اسرائیلو مخامخ ئے د هغوی دپاره بادشاه مقرر کړو»۔
او دا کار د عیسیٰ علیه السلام نه مخکښې په سنه (۱۰۹۵) کښې شوے وو۔ (ابن عاشور).
﴿إِنَّ اللَّهَ قَدْ بَعَثَ لَكُمْ طَالُوتَ مَلِكًا﴾ پدے کښې ډیر تاکید دے چه نسبت ئے الله تعالیٰ ته اوکړو، او (اِنَّ) کلمه ئے د تاکید دپاره راوړه، او قَدْ ئے د تاکید دپاره راوړو چه دا زما د طرف نه مقرر نهٔ دے بلکه د الله د طرف نه مقرر دے۔
﴿قَالُوا أَنَّىٰ يَكُونُ لَهُ الْمُلْكُ عَلَيْنَا وَنَحْنُ أَحَقُّ بِالْمُلْكِ مِنْهُ﴾ اَنّٰى په معنیٰ د کَیْفَ سره د تعجب دپاره استعمال شویدے۔ یعنی دوی په هغه باندے درے قسمه اعتراضونه اوکړل، یو دا چه دده په مونږ باندے بادشاهی کول ډیر ناشنا دی۔ دا د بادشاهئ حقدار نشی کیدے، ځکه چه دا د بادشاهی خاندان نه نهٔ دے۔ ځکه چه بنی اسرائیلو کښې دوه خاندانونه راروان وو، یو ته به ئے د نبوت کورنئ وئیله، او بل د مملکة او د بادشاهئ کورنئ وه، د نبوت خاندان او کورنئ د لاوی بن یعقوب په اولادو کښې چلیدهٔ، او ددے نه موسیٰ او هارون علیهما السلام وو، او ملوکیة د یهوذا بن یعقوب په اولادو کښې چلیدهٔ، او ددے نه داود او سلیمان علیهما السلام وو، او طالوت ددے دواړو نه نهٔ وو، بلکه هغه د بنیامین بن یعقوب علیه السلام د اولادو نه وو، ددے وجه نه ئے دده بادشاهئ نه انکار اوکړو۔
دویم دا چه ﴿وَنَحْنُ أَحَقُّ بِالْمُلْكِ﴾ مونږ دده نه په بادشاهئ ډیر لائق وو، نو دوی په الله اعتراض اوکړو چه الله زیات حقدار او غوره شخص ته حق نهٔ دے ورکړے، او په خپل ځان ئے فخر اوکړو، او د ځان تزکیه ئے اوکړه، او دا د مخکښې نه لوئی اعتراض دے۔
علامه حرالیؒ فرمائی : پدے اعتراض کښې د ابلیس د فخر نه یوه برخه راغله چه هغه هم د آدم علیه السلام د سجدے نه انکار کولو سره اوُوئیل : (أَنَا خَيْرٌ مِّنْهُ) (زهٔ د آدم نه غوره یم)۔ (قاسمیؒ)
دریم اعتراض دا دے چه ﴿وَلَمْ يُؤْتَ سَعَةً مِّنَ الْمَالِ﴾ دے غریب هم دے۔ یعنی مال ورسره نشته، او بادشاهی بغیر د مال نه نهٔ چلیږی۔ علامه حرالیؒ وائی : دا د دوی دپاره ډیره لویه فتنه شوه چه د مال نه بغیر بادشاهی نهٔ قائمیږی، حال دا چه بادشاهی خو د الله په ورکړه سره ده، نهٔ په مال سره نو د دوی پدے وینا کښې جهالت او شرك پروت دے۔ آه۔
نو دوی د نص (د پیغمبر د خبرے) په مقابله کښې قیاسونه شروع کړل۔ پیغمبر یوه خبره کوی، او دوی وائی نهٔ، داسے نهٔ ده، دا د اهل بدعو طریقه هم ده، او شیعه ګان هم په ابوبکر صدیق رضی الله عنه

باندے داسے قسم اعتراض کوی چه دا د خلافت لائق نهٔ وو۔ غلط وائی۔

(د نص په مقابله کښې اول قیاس ابلیس کړے، بیا بنی اسرئیلو بیا اهل بدعو)۔ (الحلیه ۳)

﴿ قَالَ إِنَّ اللّٰهَ اصۡطَفٰهُ عَلَيۡكُمۡ وَزَادَهٗ بَسۡطَةً فِى الۡعِلۡمِ وَالۡجِسۡمِ ﴾

نبی د دوی خبره رد کړه چه دوی اُووئیل ددهٔ نسب کمزورے دے او فقیر دے نو نبی پرے اول رد دا اُوکړو چه اصل خبره د الله غوره والے دے، او الله تعالیٰ طالوت لره په تاسو باندے غوره کړیدے، او هغه ستاسو نه په مصلحتونو ښهٔ پوهه دے۔ نو ستاسو دا خبره غلطه ده چه مونږ ډیر حقدار یو۔ دویم دا چه په امیر کښې اصلی صفت زیات علم دے، دے دپاره چه سیاسی کارونه په ښهٔ شان اُوچلوی، او د بدن قوت دے چه د خلقو په زړونو کښې د هغه نه خطر او هیبت پیدا شی، او د دشمنانو په مقابله کښې مقاومت اُوکړی او جنګونه برداشت کړے شی، او الله تعالیٰ طالوت ته ددے دواړو صفتونو نه پوره برخه ورکړیده۔ (تفسیر ابی السعود ۱/۳۰۱)

نو دا د هغوی په دریمه خبره رد شو چه (وَلَمۡ يُؤۡتَ سَعَةً مِّنَ الۡمَالِ) ددهٔ سره مال نشته۔ ولے ډیر کرته یو بادشاه سره مال وی، لیکن په رعیت ئے نهٔ خرچ کوی، نو رعیت ته هیڅ فائده نهٔ رسی، او اصل مالداری خو د نفس مالداری ده۔ ددے وجه نه په خلیفه کښې دا شرط نشته چه مالدار به وی، او علم او روغوالے پکښې شرط دے۔ او د اُمت مالداری خو په بیت المال سره راځی۔

﴿ الۡعِلۡمِ ﴾ د علم نه مراد دا دے چه په جنګی کارونو، او سیاسی تدابیرو، او د رعیت په تربیت باندے ښهٔ پوهه دے۔ او بَسۡطَةٌ کښې ډیر زیات علم ته اشاره ده۔

﴿ وَالۡجِسۡمِ ﴾ د جسم نه مراد دا چه ظاهری بدن ئے هم ډیر قوی دے، چه په کافرانو رعب اچوی، او په جنګونو صبر کونکے او مضبوط وی، او دارنګه د جسم سره همت ئے هم قوی دے۔ نو ددے نه مراد (كَثۡرَةُ مَعَانِي الۡخَيۡرِ) دی، یعنی د خیر صفات پکښې زیات دی، بهادری پکښې موجوده ده۔

(ابن کثیر والقرطبی وغیرهما)۔

او دا صفات په خلفائے راشدینو او معاویه رضی الله عنهم او تولو باقی خلفاؤ کښې موجود وو۔ او دا طریقه ده چه الله تعالیٰ چه د دین کار توفیق چا ته ورکوی، نو ورسره ذهن هم ورکړی او بدن هم ورکړی چه صحت ئے خراب وی، نو هم د دین کار نهٔ شی کولے، او چه عِلم ورسره نهٔ وی، نو هم د دین کار نهٔ شی کولے۔ او دا خبره غالبی ده۔ ځکه چه الله د چا نه د دین کار اخستے دے، نو د هغوی صحتونه روغ وو۔ او ښهٔ ذهنونه ورله الله ورکړی وو۔ (کما فی بدائع التفسیر)

﴿ وَاللّٰهُ يُؤۡتِىۡ مُلۡكَهٗ مَنۡ يَّشَآءُ ﴾ دا هم د هغه نبی په وینا کښې داخل دے۔ یعنی په دنیا کښې بادشاهی ورکول بغیر د میراث او بغیر د مال نه دی۔ ځکه چه بادشاهی ورکول د الله په اختیار کښې دی۔ د

هغې دپاره هيڅ شرط نشته۔

﴿ وَاللّٰهُ وَاسِعٌ ﴾ يعنې فراخه ذات دے، فقير له فراخي ورکوي او مالداره کوي ئې۔

﴿ عَلِيْمٌ ﴾ پوهه دے په لائق د بادشاهۍ باندے۔

| وَقَالَ لَهُمْ نَبِيُّهُمْ إِنَّ آيَةَ مُلْكِهِ أَنْ يَّأْتِيَكُمُ التَّابُوْتُ فِيْهِ |
|---|
| لو اُووئيل دوی ته نبي د دوی يقيناً نخه د بادشاهۍ ددهٔ دا ده چه رابه شي تاسو ته صندوق چه په هغې کښې به |
| سَكِيْنَةٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ وَبَقِيَّةٌ مِّمَّا تَرَكَ آلُ مُوْسٰى وَآلُ |
| آرام وي د طرفه د رب ستاسو نه او باقي مانده څيزونه به وي د هغه څهٔ نه چه پرېښي دي آل د موسیٰ او آل د |
| هَارُوْنَ تَحْمِلُهُ الْمَلَائِكَةُ إِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَآيَةً لَّكُمْ إِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿۲۴۸﴾ |
| هارون (عليهما السلام) چه راپورته کړي به وي ملائکو يقيناً په دے کښې خامخا نخه ده ستاسو دپاره که چرته تاسو مؤمنان يئ۔ |

**تفسير**: پدے کښې اُوس د طالوت په بادشاهۍ يوه علامه ذکر کوي، او ددهٔ په بادشاهۍ کښې فوائد او حکمتونه بيانوي، دے دپاره چه دوی ددهٔ بادشاهي منلو ته تيار شي۔ يوه فائده دا ده چه ددهٔ په وجه به الله تاسو ته تورات راواپس کړي، او دا تورات به په تابوت کښې ملائک راوړي، او ددهٔ کور کښې به ئې کيدي، او بغير د جنګ نه داسے تابوت راتلل ضرور معجزه ده، او د طالوت د صحيح مشر کيدو نخه ده، او دا تابوت ئې ورته څکه راياد کړو چه دوی به کله جنګ کولو، نو څهٔ کسانو به دا تابوت پورته کړے وو، او د لښکر نه مخکښې به روان وو، نو ددے په وجه به د دوی سره مدد کيدو او هغه د دوی نه عمالقه ؤ نيولے وو، او د دوی نه ډيره زمانه جدا شوے وو، نو د هغې فضائل ئې ورته راياد کړل، دے دپاره چه د طالوت إمارت ته تابع شي۔ (نظم الدرر للبقاعیؒ)۔

﴿ وَقَالَ لَهُمْ نَبِيُّهُمْ ﴾ نبي دوی ته په طور د نعمت سره خپله دا نخه بيان کړه، لکه دا خبره د ظاهر د آيت نه ښکاره کيږي، او ابن عطيةؒ په المحرر الوجيز کښې هم دا قول غوره کړيدے۔ يا دوی يوه نخه ددهٔ په إمارت باندے غوختلے وه، نو د هغې په جواب کښې دا نخه اُوخودلے شوه۔ لکه دا قول ابن جريرؒ غوره کړيدے۔ او د بني اسرائيلو بد اخلاقو ته ئې کتلي دي چه تعنت والا او کاږهٔ خلق وو۔ (المحرر الوجيز)

﴿ أَنْ يَّأْتِيَكُمُ التَّابُوْتُ ﴾ تابوت اُوږدے صندوقچے او بکسے ته وئيلے شي او دا په بني اسرائيلو کښې مشهور وو چه پدے کښې د موسیٰ ﷺ د تورات اصلي تختي پرتے وے، او دے ته به ئې تابوت

الشهادة وئيلو۔ چه ددے په وجه به د بنی اسرائيلو سره مدد كيدے شو۔ (ابن عاشور والبحر المحيط).
دارنګه د قبلے په ځائے به ئے استعمالوله كما فی تدبر القرآن۔

## د سكينة معانی

﴿فِيهِ سَكِينَةٌ مِنْ رَبِّكُمْ﴾ يعنی پدے تابوت او په راتلو د تابوت كښی ستاسو د رب د طرف نه ستاسو د زړونو آرام او اطمينان دے، ځكه چه پدے كښی د الله تعالىٰ د كتاب تختے وے، او دا معجزه وه چه د بنی اسرائيلو زړونه پرے قوی كيدل۔ سكينه د سكون نه دے په معنیٰ د آرام، وقار او اطمينان سره۔ او په حديث د براء بن عازب ﷺ كښی سكينه هغه ملائكو ته وئيلے شويده چه د وريځے په شكل د آسمان نه د يو سړی د تلاوت آوريدو دپاره راكوز شوی وو، نبی ﷺ ورته اُوفرمايل: [تِلْكَ السَّكِينَةُ تَنَزَّلَتْ لِلْقُرْآنِ] (دا د آرام ملائك وو چه د قرآن آوريدو دپاره راكوز شوی وو) نو دلته د سكينة نه مراد د آرام والا ملائك هم مراد كيدے شی چه د خلقو په زړونو كښی اطمينان اچوی۔ نو (فِيهِ) كلمه به په معنیٰ د (عِنْدَهُ) سره وی۔ يعنی ددے تابوت سره به د آرام ملائك وی۔ او همدا معانی په سكينه كښی راجحے دی۔او د لغت موافقے دی۔
د يهودو نه د سكينه په مصداق كښی ډير متناقض او ګډوډ اقوال نقل دی، چا پكښی وئيلی دی چه دا يو حيوان وو د پيشو په اندازه، دوه سترګے ئے لرلے، چه پرقيدلے به، او كله چه به د دوی د دشمنانو سره جنګ راتلو، نو دے به لاسونه راويستل او دشمنانو ته به ئے اُوكتل، نو هغوی ته به ئے په رعب سره شكست وركړو۔
بعض وائی دا ګګه وګه هواء وه چه دوه سرونه ئے لرل او د انسان په شان مخ ئے لرلو۔
بعض وائی داسے شے وو چه د پيشو په شان سر او مخ ئے لرلو۔ بعض وائی: د سرو زرو كاسه وه چه پدے سره به د انبياؤ زړونه وينځلے شو او په هغے كښی الواح اچولے شوی وو۔
دا د اُوچتو علماؤ نه نقل دی ليكن د يهودو په لاره رارسيدلی دی، او په مسلمانانو پورے خندنئ دی۔ پدے وجه ئے اعتماده خبرے دی، لكه دا خبره علامه شوكانیؒ په فتح القدير كښی او صديق حسن خان بوفالیؒ په فتح البيان كښی ذكر كړيده۔

## د بقية معانی

﴿وَبَقِيَّةٌ﴾ بقية په اصل كښی هغه شی ته وائی چه د يو شی د زياتے حصے نه لږه څه حصه پاتے شی او كله عُمده (ښكلے) او نفيس او غوره شی ته هم وئيلے شی۔
او ددے په مصداق كښی ډير اقوال دی (۱) دا د موسیٰ ﷺ آمسا وه او د موسیٰ او هارون عليهما

السلام جامې وې. (۲) د تورات د تختو بعض آثار وو. (ابن عباسؓ).

(۳) د موسیٰ او هارون علیهما السلام دواړو امساګانې او د تورات څهٔ حصه وه.

(٤) تورات او علم. (مجاهد او عطاءؒ). (۵) یا د موسیٰ ﷺ امسا او څپلۍ وې، او د هارون ﷺ امسا او پټکې وو، او یو قفیز د ترنجبین وو. ابن عطیةؒ وائي : صحیح دا ده چه تابوت کښې د انبیاؤ د باقیات او آثارو نه غوره غوره څیزونه وو. چه نفسونو به په هغې سره سکون حاصلولو، او قوي کیدل به. (فتح البیان ۷۳/۲)

صاحب د اللباب وئیلي دي چه د بقیه نه مراد د موسیٰ او هارون علیهما السلام دین او شریعت دې یعنې په دغه تابوت کښې د الله کتاب (تورات) وو، او د بني اسرائیلو د پیغمبرانو احادیث وو، او دا دواړه د زړونو د اطمینان سبب دې، او پدې کښې آیات الهیه هم شته او دا سبب د برکت هم دې چه د طالوت په وجه سره دوی ته واپس راغلل. (احسن).

﴿مِمَّا تَرَكَ آلُ مُوسَىٰ وَآلُ هَارُونَ﴾ په آل کښې مضاف او مضاف الیه دواړه په حکم کښې داخل وي، نو دلته د آل موسیٰ نه خپله موسیٰ ﷺ مراد دې او د آل هارون نه هارون ﷺ او د هغهٔ اولاد پیغمبران مراد دي ځکه چه د موسیٰ ﷺ نه اولاد نهٔ دي پاتې شوي، او که د آل نه مراد تابعدار واخستې شي، نو بیا آل په خپله معنیٰ په دواړو ځایونو کښې صحیح دې.

﴿تَحْمِلُهُ الْمَلَائِكَةُ﴾ یعنې ملائك به ئې راپورته کړي، او د طالوت په کور کښې به ئې کیدي. ددې په راوړو کښې د بني اسرائیلو په تاریخ کښې ډیرې قصې مشهورې دي لیکن هغه نهٔ دي ثابتې. (التسهیل لعلوم التنزیل ۱/ ۱۳۰).

بعضو لیکلي دي چه ددې تابوت په وجه په عمالقهٔ کښې مرضونه راپیدا شو، نو هغوی دا تابوت بیرته بني اسرائیلو ته راواپس کړو، او د دوه غواګانو دپاسه ئې اُوترلو، او غواګانې ئې بني اسرائیلو طرف ته راپریخودلې، چه هغه ملائکو راروانې کړې او سیده ئې بني اسرائیلو ته راوستې. لکه دا خبره د تورات د الفاظو نه معلومیږي.

لیکن قرآني الفاظ ددې مخالف دي. ځکه چه د تورات نه دا معلومه ده چه دا عمالقهٔ د مخکښې نه رالیږلې وو، او قرآن وائي چه دا د طالوت د اِمارت د صحت نخه وه. قرآن وائي چه ملائکو راپورته کړې وو، او تورات وائي چه دا غواګانو پورته کړې وو.

(انظر تدبر قرآن وغیره)

ددې نه معلومیږي چه تورات کښې پدې قصه کښې تحریف شوېدې. یا بعض عبارات پاتې شویدي او تقدیم او تأخیر دې. یا اختصار او تفصیل دې.

﴿اِنَّ فِيۡ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لَّكُمۡ اِنۡ كُنۡتُمۡ مُّؤۡمِنِيۡنَ﴾ ذلك کښې د تابوت راتللو ته اشاره ده. یعنی دا راتلل د تابوت پوره نخه ده ستاسو دپاره چه طالوت د الله د طرف نه امیر دے. که د الله په آیتونو او انبیاؤ ایمان لرئ. نو دا اُومنئ.

## د انبیاء علیهم السلام په آثارو تبرکات نیول

د انبیاء کرامو علیهم السلام د بدن سره لګیدلی څیزونه، اجزاء وغیره سره برکت حاصلول جائز دي او ددے نه شرك نهٔ لازمیږی لکه صحابه کرامو به د نبی کریم ﷺ د اُوداسه استعمال شوے اُوبو سره، دارنګه د هغه د ویښتو سره برکت حاصلولو. هغے کښې به ئے اُوبه واچولے او بیا به ئے مریضانو ته ورکولے، نو په هغے کښې به الله شفاء اچوله. او دا قسم احادیث په بخاري او مسلم وغیره کتابونو د حدیث کښې ډیر زیات راغلی دی. لهذا دا په نص سره ثابت دی.

لیکن دا خبره یاد ساتل پکار دي چه پدے باندے د انبیاء کرامو نه سیوئ نور هیڅ اولیاء نهٔ قیاس کیږی، دا صرف د انبیاؤ علیهم السلام خصوصیات دی ځکه چه د ابوبکرؓ، عمرؓ، عثمانؓ او علی وغیره صحابه کرامو نه بل څوك غټ اولیاء کیدے شي؟ او د هغوی نه یو تن هم د یو بل د آثارو سره دا کار نهٔ دے کړے او نهٔ روستنو صحابه کرامو د مشرانو سره او نهٔ امامانو د دین دا کار کړیدے. ځکه چه هغوی ته معلومه وه چه دا خصوصیت د انبیاؤ وی لهذا پدے باندے نور خلق قیاس کول غلط دی.

بله دا چه نن صبا زمانه کښې خو انبیاء نشته او د نبی کریم ﷺ د ویښتو یا پتکی یا جامو په باره کښې بعض خلق دعوئ کوی او هر ملك کښې په عجائب ګهرو کښې دغه څیزونه کیخودلے شویدی، چه دا د نبی کریم ﷺ نه پاتے څیزونه دی.

لیکن ددے په باره کښې هیڅ صحیح سند نشته، بلکه اکثرو خلقو د خپل بازار ګرمولو دپاره دا کار اختیار کړیدے. لهذا پدے دور کښې په آثارو د انبیاؤ باندے هیڅ قسم عمل نشی کیدے، ځکه چه هغه آثار اُوس باقی نهٔ دی پاتی. هاں که په صحیح سند سره ثابت شو نو بیا ئے منل پکار دی. والله اعلم.

| فَلَمَّا فَصَلَ طَالُوۡتُ بِالۡجُنُوۡدِ قَالَ اِنَّ اللّٰهَ مُبۡتَلِيۡكُمۡ |
|---|
| هرکله چه جدا شو طالوت (د خپل ښار نه) سره د لښکرو، وے وئیل یقیناً الله امتحان کوی په تاسو باندے |
| بِنَهَرٍ فَمَنۡ شَرِبَ مِنۡهُ فَلَيۡسَ مِنِّيۡ وَمَنۡ لَّمۡ يَطۡعَمۡهُ |
| په یو نهر سره پس هغه څوك چه څکل اُوکړی ددے نه نو دے به نهٔ وی زما د تابعدارو نه او چا چه اُونهٔ څکلے ددے نه |

| فَإِنَّهُ مِنِّي إِلَّا مَنِ اغْتَرَفَ غُرْفَةً بِيَدِهِ فَشَرِبُوا مِنْهُ |
|---|
| نو يقيناً دا به وي زما نه مګر هغه څوك چه ډك كړي يو چونګ په لاس خپل سره نو اُوڅکلے دوی د هغے نه |
| إِلَّا قَلِيلًا مِّنْهُمْ فَلَمَّا جَاوَزَهُ هُوَ وَالَّذِينَ آمَنُوا مَعَهُ |
| مګر لږو کسانو د دوی نه (اُونهٔ څکلے) نو هر کله چه تير شو هغه د نهر نه او هغه کسان چه ددهٔ سره وو |
| قَالُوا لَا طَاقَةَ لَنَا الْيَوْمَ بِجَالُوتَ وَجُنُودِهِ قَالَ |
| اُووئيل دوی نشته دے طاقت مونږ له نن ورځ په مقابله د جالوت او د لښکرو د هغهٔ کښې اُووئيل |
| الَّذِينَ يَظُنُّونَ أَنَّهُم مُّلَاقُو اللَّهِ كَم مِّن فِئَةٍ قَلِيلَةٍ |
| هغه کسانو چه هغوی يقين کوو چه دوی مخامخ کيدونکی دی دالله سره ډير کرته ډله لږه |
| غَلَبَتْ فِئَةً كَثِيرَةً بِإِذْنِ اللَّهِ وَاللَّهُ مَعَ الصَّابِرِينَ ﴿٢٤٩﴾ |
| غالبه شوې ده په ډله ډيره باندې په مدد د الله تعالىٰ سره او الله ملګرے د صبرناکو دے۔ |

**تفسير:** هر کله چه دوی ته تابوت راغلو، او دوی د طالوت بادشاهئ ته تسليم شو، نو جهاد ته د وتلو همت پکښې پيدا شو، نو په جلتئ سره د هغهٔ تابعدار شو، او د هغهٔ سره روان شو، د عمالقه ؤ مقابله ئے کوله چه د دوی مشر پهلوان جالوت وو، چه دوی پرے ډير ناز کولو، او دا خلق په اُردن علاقو کښې اُوسيدل۔

نو طالوت دوی لره په يوه ښار ميدان باندې روان کړل چه په لاره کښې ډيره ګرمئ او تندے سره مخامخ شو، نو په لاره کښې يو نهر مخے ته راغلو چه د هغے (يَرْدن) نوم وو۔ په دغه نهر باندے ورتيريدل (او دا اُوږد نهر دے چه د فلسطين او اُردن په مينځ کښې واقع دے۔ فتح البيان) نو طالوت په لاره کښې ملګروته اُووئيل چه دا نهر را روان دے۔ دے نه به اُوبه نهٔ سکئ۔ دا د الله امتحان دے۔ خبره ئے هم ورته راياده کړه چه دا امتحان دے۔ ددے دپاره چه ددے حکم بنهٔ اهتمام اُوکړی۔

ظاهره دا ده چه دا امتحان طالوت د ځان نه نهٔ دے کړے، بلکه هغهٔ نبی (صموئيل) ورته وئيلی دی چه الله ماته دا وحی کړے ده چه په دے خلقو امتحان اُوکړه، که دوی ستا خبره د اُوبو په باره کښې اُومنی، نو باقی به هم منی، او که دا ئے اُونهٔ منله نو باقی به هم نهٔ منی۔ نو تابعدار ځان سره کړه او نافرمان به درنه روستو پاتے شی۔

بله فائده پکښې دا وي چه دا خلق په سختو باندې صبر کولو سره اموخته شي ځکه چه جهاد کښې کله تنده او لوږه هم راځي. په داسې مقام کښې امتحان بنهٔ وي، دا د امیر هوښیارتیا وي. نبي ﷺ په هم کله نا کله خپلو ملګرو باندې دغسې امتحانات کول.

﴿ فَلَمَّا فَصَلَ ﴾ فَصَلَ: په اصل کښې متعدي فعل دې لیکن د زیات استعمال په وجه ددې مفعول حذف کولې شي، او د فعل لازم په شان ګرځي. ای اِنْفَصَلَ: یعنې د لښکر سره جدا شو. او اصل معنیٰ ئې ده: فَصَلَ نَفْسَهٗ یعنې خپل ځان ئې د ښار د آبادیٔ نه د لښکر سره جدا کړو. (ابن عاشور بتغیر). بغوي وائي: د بیت المقدس نه روان شو، او دوی اویا زره جنګیان وو. بعض وائي: اتیا زره وو. صرف معذور او بوډاګان او مریضان ترې پاتې وو.

﴿ قَالَ اِنَّ اللّٰهَ مُبْتَلِيْكُمْ بِنَهَرٍ ﴾ (اِنَّ اللّٰهَ) ځکه وائي چه دا زما خبره نهٔ ده چه ما ته اووایئ چه ستا پدې کښې څهٔ غرض او څه فائده ده؟ نهٔ، بلکه دا د الله حکم دې. او بادشاه له پکار وي چه د الله وحي په خپل رعیت کښې نافذ کړي.

ددې نه بعض جاهلان مُلیان دلیل نیسي چه تقلید ثابت شو ځکه چه طالوت خپلو ملګرو ته اُووئیل چه دا اُوبه مهٔ څکئ نو ملګري ورته دا نهٔ وائي چه دلیل پیش کړه. بلکه بې دلیله خبره ئې ورله اُومنله نو تقلید شو. **جواب** دا دې چه د جاهل په سترګو پټئ وي، دلته اِنَّ اللّٰهَ لفظ ته نهٔ ګوري چه طالوت ورته دا دلیل پیش کړو چه الله فرمائي یعنې یواځې زما حکم نهٔ دې. بله دا چه دا خو الله مقرر کړې وو په واسطه د پیغمبر، او امامان الله تعالیٰ د تقلید دپاره نهٔ دي مقرر کړي. او نهٔ نبي د دوی د تقلید په باره کښې څه وینا کړې ده، نهٔ خپله دې امامانو خپل تقلید په چا لازم کړې دې. دارنګه د امیر خبره منل په احادیثو سره واجب شوي دي. فتدبر. دوی خپل جهالت د قرآن نه ثابتوي ؟!. فَاِلَى اللّٰهِ الْمُشْتَكٰى.

﴿ فَمَنْ شَرِبَ مِنْهُ ﴾ چا چه ددې نه لږې اُوبه اُوڅکلې او که ډیرې.

﴿ فَلَيْسَ مِنِّيْ ﴾ هغه به زما د تابعدارو، او د دین والو نه نهٔ وي. (فتح) او زما او د هغه ترمینځ به هیڅ تعلق او علاقه نهٔ وي، او ما سره به نهٔ یو ځائې کیږي. نو پدې کښې د طالوت معنوي بغض او ظاهري خفګان دواړه مراد کیدې شي. (ابن عاشور).

﴿ وَمَنْ لَّمْ يَطْعَمْهُ فَاِنَّهٗ مِنِّيْٓ ﴾ طعم (څکهٔ کول) اصل کښې د خوراک دپاره استعمالیږي، لیکن د قرینې د مقام په وجه د سکلو دپاره هم استعمال شویدې.

نو اُوس استثناء ذکر کوي د ﴿ فَمَنْ شَرِبَ مِنْهُ ﴾ نه ځکه چه هلته بالکل اُوبه څکل منع وو، اُوس وائي معمولي شان د یو لاس په اندازه اُوبه څکل جائز دي:

﴿اِلَّا مَنِ اغْتَرَفَ غُرْفَةً بِيَدِهٖ﴾ ديـو چـونـګ اُوبـو څـکـلـو اجازت ئے ورکړو، دے دپاره چه څۀ ناڅۀ تسنده ئے ماتـه شي، او دا دليل دے چه يو چونګ اُوبو څکلو سره په سخت ژوند باندے صبرناکو خلقو دپاره د تندے جوش کميږي۔

او بله دا چه دا امتحان وو نو الله ورله پکښ ډير برکت واچولو۔

غـرفـة: دا پـه زور د غيـن سـره، يـو ځـل اُوبـه په يو لاس کښ راخستو ته وئيلے شي، او هغه قراءت د نافعؒ او ابن کثيرؒ وغيره دے۔ او په پيښ د غين سره، په يو لاس کښ راخستے شوے اُوبو ته وئيلے شي۔

بِيَدِهٖ: دا تـفـسـير د غُرْفَةً دے۔ ابن جريرؒ د ابن عباس ﷜ نـه نـقـل کړي چه چا په يو چونګ باندے صبر اُوکړو، نو هغوی له الله په کښ برکت واچولو او ماړۀ شو آه۔ ځکه د اطاعت په وجه روحانی طاقت مضبوطيږي۔

﴿فَشَرِبُوْا مِنْهُ﴾ د شرب نـه چـه روستـو (مِنْ) لفظ استعمال شي، نو غالباً په اُوبو باندے پريوتو سره اُوبـو څـکـلـو تـه وئيلے شي يعنی ډيرے اُوبه ئے اُوڅکلے، نو د الله حکم ئے هم مات کړو، او د خپل نبی حکم ئے هم مات کړو، او امتحان کښ ناکام شو۔

پـدے کښ د دوی بے صبریٔ ته اشاره ده، او دے ته اشاره ده چه دوی ددے لائق نۀ دی چه جنګونه اُوکړے شي، ددے وجه نه د نهر نه د تيريدو نه روستو ئے سمدست اُووئيل:

﴿لَا طَاقَةَ لَنَا الْيَوْمَ بِجَالُوْتَ﴾ مـونږ د جـالـوت او د هـغـه د لښکرو طاقت نۀ لرو۔ ځکه چه د الله د حکم په ماتولو کښ انسان باندے ډيره بزدلی راځي۔

﴿اِلَّا قَلِيْلًا مِّنْهُمْ﴾ پـه حـديـث د احـمدؒ او بـخاريؒ کښ راځي چه درے سوه ديارلس کسان وو په شـمـار د اصـحـاب بدر۔ قرطبيؒ وائي: لږو بالکل اُوبه اُونۀ څکلے کوم چه په (وَمَنْ لَّمْ يَطْعَمْهُ مِنِّيْ) کښ ذکر وو۔ د ابن عباس﷜ نـه روايـت دے چـه قـلـيـل په دوه قسمـه وو، يو قسم ډير صبرناک وو، چـه هـغـوی بـيـخـی اُونـۀ څـکـلے او عـزيـمت باندے ئے عمل اُوکړو۔ دويم قسم لږ صبر والا وو، نو هغوی د يو چونګ په اندازه اُوبه اُوڅکلے نو په رخصت ئے عمل اُوکړو۔

## لطيفه

قـرطبيؒ ليـکـي: چـه پـدے آيت کښ د دنيا مثال ته اشاره ده، چه د دنيا مثال د نهر دے، او ددے مـال او متـاع د اُوبو په شان دے، که چا د دنيا نه د خپل حاجت په اندازه برخه واخسته، نو دۀ له به په کښ برکت واچولے شي، او کامياب به وي، او په دنيا کښ به دا حقيقي زاهد (بے رغبته) وي۔ او که چا ترے خيټه ډکه کړه، چه حلال او حرام ئے نۀ کتل، نو خيټه به ئے اُوپرسيږي او مړ به شي، او آخر انجام به ئے ناکامي وي آه۔

لکه دا مثال حدیث کښې هم راغلی دے۔[إِنَّ مِمَّا يُنْبِتُ الرَّبِيعُ مَا يَقْتُلُ حَبَطًا] (متفق علیه)۔
یعنی د سپرلی په ګیاهګانو بعض حیوانات د ډیر خوراك په وجه ځان مړ کړی، چوړے پړے اُولګی، او بعض ګوزاره حال خوراك اُوکړی نو روغ وی۔
﴿فَلَمَّا جَاوَزَهُ هُوَ وَالَّذِينَ آمَنُوا مَعَهُ﴾
د جَاوَزَ دپاره فاعل پټ ضمیر دے په جَاوَزَ کښې او (ه) ضمیر د مفعول نهر ته راجع دے، او (هُوَ) ضمیرِ فصل ددے دپاره راغلی دے چه د (وَالَّذِينَ) عطف په (جَاوَزَهُ) ضمیر باندے صحیح شی۔
**فائده** : دا دلیل دے چه د طالوت په ملګرتیا کښې صرف مخلصو مؤمنانو جهاد کړے وو، او فاسقان ترے راواپس شوی وو۔ لکه څنګه چه په اُحُد کښې منافقان د رسول الله ﷺ نه واپس شوی وو۔
﴿قَالُوا﴾ یعنی دے ایمان والو ورته آواز اُوکړو چه راځئ، ولے پاتے شوئ؟۔ نو هغوی خپل عذر پیش کړو:
﴿لَا طَاقَةَ لَنَا الْيَوْمَ بِجَالُوتَ وَجُنُودِهِ﴾ مونږ د جالوت او د هغهٔ د لښکرو د مقابلے طاقت نهٔ لرو۔ دے کښې دوه مطلبه جوړیږی، یو دا چه دوی دا خبره په هغهٔ وخت کښې اُوکړه چه د دشمنانو لښکرے ئے اُولیدلے چه ډیر زیات وو۔ قرطبیؒ وائی : دا یو لاکهـ فوجیان وو چه د وسلو نه ښهٔ پوره وو۔ دویم دا چه دوی ته د مخکښې نه د دشمن قوت معلوم وو، او په زړهٔ کښې به ئے یره پټه ساتله، خو کله چه دواړه فوجونه یو بل ته نزدے شو، نو د دغه خبرے پټولو طاقت ئے اُونهٔ لرلو۔ (ابن عاشور)۔
بعض وائی : د ډیرو اُوبو څکلو په وجه د دوی خیټے اُوپړسیدلے، او د نهر په غاړهٔ پاتے شو، او مخکښې لاړ نشو، او بزدله شو، ځکه چه د الله او د رسول نه په خلاف کولو سره انسان بزدله کیږی۔ نو دوی اُووئیل چه مونږ د جالوت مقابله نشو کولے۔ پاتے لا په هغوی باندے غلبه حاصلول خو ډیره لرے خبره ده !!۔
ځکه چه جالوت (چه په تورات کښې ورته جُلْيَات وئیلے شی) دا یو ډیر جبار او پهلوان کافر وو، د عمالقه و فلسطینیانو قائد او فوجی جرنیل وو، شپږ ګزه او یو لویشت اُوکد وو۔ اسلحه او زغرو باندے پوره وو، او د بنی اسرائیلو نه هیڅ د هغهٔ سره مقابله نشوه کولے، او ددهٔ عادت دا وو چه دا به کله د دشمنانو مقابلے ته راوتلو، نو هغوی ته به ئے اول آواز کولو او د هغوی ځواله به ورغلو او پیغورونه به ئے ورکول۔ (ابن عاشورؒ)
او د هغه زمانے د خلقو ډیر غټ غټ بدنونه وو، او لښکرے ئے هم ډیرے وے، لیکن ایمان والا ئے مقابلهٔ کولے شی۔ او کله چه سړے حرام خور شی، نو بزدله شی، بیا وائی ددے مقابله به څوك

اُوکړي؟ لکه اُوس هم خلق وائي د امريکي او يورپ مقابله څوك کولے شي؟ دا د حرام خورئ او د خواهش پرستئ اوبے دينئ د وجه نه، او کله چه سړي کښې دين وي، نو ددے خبرو نه نۀ يرېږي.
هر کله چه د هغوی د ډير والي نه اُوويريدل نو ايمان والو ورته تسلي ورکړه:
﴿قَالَ الَّذِيْنَ يَظُنُّوْنَ اَنَّهُمْ مُّلٰقُوا اللّٰهِ﴾ ظـن په معنیٰ د يقين دے، ځکه چه روستو ترے (اَنَّ) کلمه راغلے ده. دارنګه په قيامت باندے يقين لرل فرض دي، نۀ ګمان کول. او د الله د ملاقات نه مراد د الله سره په قيامت کښې ملاوېدل دي، او د هغه مخے ته اُودريدل دي. او دا جمله ئے ذکر کړه، اشاره ده چه په الله او د هغه په وعدو باندے مضبوط يقين سره انسان ته قوت ملاوېږي، او بيا د الله مددونه او غلبے راځي.
﴿كَمْ مِّنْ فِئَةٍ قَلِيْلَةٍ غَلَبَتْ فِئَةً كَثِيْرَةً بِاِذْنِ اللّٰهِ﴾ يعنی مونږ هم لږ يو، الله به غلبه راکړي. او دا د الله قانون دے چه لږ کسان کمزوري په غټو غټو کافرو باندے غالبه کوي، دا ددے دپاره چه الله خلقو ته خپل قوت اُوښائي چه الله ماديات ته محتاج نۀ دے. رب العالمين کولے شي چه لږو کسانو له طاقت ورکړي، خو شرط دا دے چه صبر به کوي.
﴿وَاللّٰهُ مَعَ الصّٰبِرِيْنَ﴾ د اسلام تاريخ ګواه دے چه په اسلام کښې هميشه د مخالفو قوتونو سره مقابله، د معنوي قوت، د مادي قوتونو سره مقابله ده، او په ظاهر کښې ايمان والا په ټولو جنګونو کښې کم وو. ليکن آخر غلبه دوي ته ملاؤ شويده.
فِئَةٌ : د خلقو ډلے ته وئيلے شي چه د فيء نه اخستے شويدے، په معنیٰ د رجوع سره، او د يو بے ډلے خلق هم يو بل ته رجوع کوي.
﴿بِاِذْنِ اللّٰهِ﴾ د اِذن نه نصرت، توفيق، اراده او مشيت ټول مراد کيدے شي.
**فائده**: ددينه دا معلومه شوه چه دا ضروري نۀ ده چه د کافرانو او مسلمانانو دواړو جانبينو به مساوات وي، يا به کافر صرف دوچنده وي، هله به مقابله جائز وي، نۀ، بلکه مسلمانان که هر څومره کم وي، خو جهاد به کوي. او کوم آيت او حديث کښې چه د دوچنده کيدو خبره راغلے ده، نو هغه په ميدان جنګ کښې د تيښتے په باره کښې ده. يعنی کله چه يو مسلمان د دوه کافرانو ترمينځ راګير شي نو نۀ به تختي بلکه مقابله به کوي.
**فائده ۲** : پدے آيتونو کښې د غلبے اسباب استعمال شويدي:
(۱) د الله نه خوف او يره کول. (۲) په الله او په آخرت باندے او د هغه په وعدو باندے پوره يقين ساتل (۳) بيا صبر کول (٤) او د الله نه مدد او دعا غوختل.

وَلَمَّا بَرَزُوْا لِجَالُوْتَ وَجُنُوْدِهٖ قَالُوْا رَبَّنَآ اَفْرِغْ

اوهر کله چه دوی رابنکاره شو جالوت او لښکرو دهغه ته، اُوئیل دوی: اے ربه زمونږه! راواړوه وه

عَلَيْنَا صَبْرًا وَّثَبِّتْ اَقْدَامَنَا وَانْصُرْنَا عَلَى الْقَوْمِ الْكٰفِرِيْنَ ﴿۲۵۰﴾

په مونږ باندے صبر او مضبوط کړه قدمونه زمونږ او مدد راکړه مونږ له په قوم کافرانو۔

**تفسیر:** پدے آیت کښې د دوی د مقابلے میدان ته د ورتلو په وخت کښې دعا کول ذکر دی چه دا ډیره مرتبه دعا ده، اول صبر حاصلول دی چه پدے سره زړهٔ مضبوط شی او چه کله زړهٔ مضبوط شی، نو بیا قدمونه مضبوط شی، او چه کله قدم مضبوط شی نو بیا د الله مدد راتلل ممکن وی۔ او په دعا کښې ئے د الله په نوم (رَبَّنَا) سره وسیله کړیده۔ او رسول الله ﷺ به هم د جنګ په میدان کښې الله ته ډیره زیاته زاری کوله۔

﴿بَرَزُوْا﴾ بَرَزَ: اصل کښې کولاو، هموار میدان ته ورو تلو ته وئیلے شی۔ او په معنیٰ د ښکاره والی سره هم دے۔ او مبارزه هغه جنګ ته وئیلے شی چه دواړه جنګیان یو بل ته په میدان کښې ښکاره شی۔ یعنی هر کله چه د جالوت او د هغه لښکرو ته رابنکاره شو او یو بل ته مخامخ شو۔

﴿اَفْرِغْ﴾ اِفْرَاغ یو شے ډیر راتوی کول چه لوښے تر یے خالی شی۔ او پدے کښې ډیر والی او احاطے (راګیروالی) ته اشاره ده چه داسے صبر وی چه زمونږ نه راتاؤ شی۔

فَهَزَمُوْهُمْ بِاِذْنِ اللّٰهِ وَقَتَلَ دَاوٗدُ جَالُوْتَ وَاٰتٰىهُ اللّٰهُ

نو شکست ورکړو دوی هغوی ته په مدد د الله سره او قتل کړو داود علیه السلام جالوت لره او ورکړه هغه ته الله

الْمُلْكَ وَالْحِكْمَةَ وَعَلَّمَهٗ مِمَّا يَشَآءُ وَلَوْلَا دَفْعُ اللّٰهِ

بادشاهی او نبوت او تعلیم ئے ورکړو هغه ته د هغه څهٔ نه چه الله غوختل او که چرته نهٔ وے دفع کول د الله تعالیٰ

النَّاسَ بَعْضَهُمْ بِبَعْضٍ لَّفَسَدَتِ الْاَرْضُ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ ذُوْ فَضْلٍ عَلَى الْعٰلَمِيْنَ ﴿۲۵۱﴾

خلقو لره بعضے په بعضو خامخا خرابه شوے به وه زمکه او لیکن الله د لوئی فضل والا دے په مخلوقاتو باندے۔

**تفسیر:** پدے کښې په دوی باندے د الله تعالیٰ نعمت ذکر دے، چه الله تعالیٰ ورسره په سبب د دغه مخکښنو کارونو او دعاګانو مدد اُوکړو۔ او د جالوت وژل په لاس د داود ؑ او بیا هغه ته

پادشاهي او نبوت دواړه ورکول او د جهاد د فرض کیدو حکمتونه بیانوي.

کله چه دوی جنګ شروع کولو نو پدې کښې داود ابن ایشا یا (یسّي) وروکے هلك وو چه لا بلوغ ته نهٔ وو رسیدلے، راغلو، او د طالوت په فوج کښې داخل شو (اصل کښې پلار ددې دپاره رالیږلے وو چه پدې فوج کښې د ورونو سلامتیا معلومه کړي، او هغوي ته ئې څهٔ خوراك راوړے وو، هغهٔ د هغوي حالت معلوم کړو. ددهٔ اُووه (۷) ورونړه په جهاد کښې شریك وو، پدې کښې جالوت رابښکاره شو او بنی اسرائیلو ته ئې د مقابلے دعوت ورکړو، نو بني اسرائیل ترې اُویریدل، یو تن پکښې اُووئیل چه دا ظالم فلسطیني به څوك قتل کړي چه طالوت به ورته ډیر انعام ورکړي او خپله لور به ورکړي او په اسرائیلو کښې به د دوی کور ډیر آزاد او شریف وي. نو داود علیه السلام رامخکښې شو، او د طالوت نه ئې مطالبه اُوکړه چه زهٔ جالوت قتلوم، هغه ډیر منع کړو چه تهٔ ځان هلاکوې، دا خو لوئی جبار دے، د وړوکوالی نه د جنګونو سره اموخته دے.

خو ددهٔ په الله ډیر یقین وو، او د بني اسرائیلو د کتابونو نه معلومیږي چه داود علیه السلام په دغه زمانه کښې د خپل پلار ګلې بیزې څرونکے وو، او په چینو غزه ویشتلو کښې ډیر تکړه وو، نو دا د فلسطینیانو صفونو ته نزدې شو، جالوت ورته راووتو او په خپلو آلهو سره ئې داود ته کنځلے اُوکړې، او دا ئې ورته اُووئیل چه آیا زهٔ سپے یم چه تهٔ ما ته امسا نیولے راغلے ئې. نن به زهٔ ستا غوښې د آسمان مارغانو او د صحراء حیواناتو ته ورکړم.

داود ورته اُووئیل : زهٔ تا ته ددې لښکرو د رب په نوم سره راغلے یم چه هغه د هغه بني اسرائیلو د صفونو اِلٰه دے کوم ته چه تا پیغورونه ورکړي دي. تا به نهٔ نن زما رب زما په لاس کښې راولي، او زهٔ به دې وژنم او سر به درنه پریکوم، او ستا د فلسطینیانو د بدنونو غوښې به نن ورځ د آسمان مارغانو او د صحراء حیواناتو ته ورکوم نو د زمکے ټول خلق به پو هیږي چه د اسرائیل اِلٰه موجود دے. او دې ډلے ته به معلومیږي چه جنګ په توره او نیزه نهٔ دے بلکه رب خلاصول کوي، ځکه چه دا جنګ د رب دپاره دے، او هغه به تاسو زمونږ لاسونو ته راولي.

کله چه جالوت ددهٔ مخے ته راتزدې شو نو په جلتئ سره داود ورمخکښې شو او د خپلے کڅوړے نه ئې یو کانړے په چینو غزه کښې واچولو او جالوت ئې په تندي باندې اُوویشتلو، او دهٔ په زغره ټول بدن پټ کړے وو، صرف تندے ئې ښکاره کیدو. نو هغه راپریوتو او دا ورپسے ورغلو، دپاسه پرې کیناستو او د هغه توره ئې راویستلهٔ او سر ئې ترې پریکړو، او طالوت ته ئې راوړو.

(ابن عاشورؒ، قاسميؒ)

بعض روایاتو کښې دي چه بیا طالوت داود ته خپله لور په نکاح ورکړه.

(دغسے جبار کافر الله د ماشومانو د لاسه مرداروی لکه څنګه چه ابوجهل د ورو کو ماشومانو(مَعَاذ او مُعَوِّذ) د لاسه مردار شوے وو.)

کله چه د جالوت فوج د خپل مشر حال اُولیدو، نو په زړونو کښې ئے سخت رعب او بزدلی راغله، او په تیخته شو، او د طالوت فوج وروپسے شو، او هغوی ئے قتل کړل، او عامے علاقے ئے ترے اُونیولے، تر عَقْرُوْن پورے ئے اُوتختول...... د څۀ وخت تیریدو نه روستو طالوت قتل شو، او د هغه نه روستو بنی اسرائیل په داود ﷺ راجمع شو، او هغه بیا نبی هم شو. دۀ باندے الله نبوت او بادشاهی دواړه راجمع کړل چه دا کار مخکښې په بنی اسرائیلو کښې هیڅکله نۀ وو شوے. په دے وجه بعض یهودیان داود او سلیمان علیهما السلام ته غصه دی او په هغوی بدنامے لګوی.

﴿فَهَزَمُوهُم بِإِذْنِ اللَّهِ﴾ هزم: په اصل کښې ماتولو ته وئیلے شی. مراد ترے نه شکست ورکول دی.

(اذن) اصل کښې امر ته وئیلے شی، دا د الله امر شرعی او تکوینی دواړو ته شامل دے. یعنی حکم او امر، او دا کله په معنیٰ د مدد سره وی.

﴿وَقَتَلَ دَاوُدُ جَالُوتَ﴾ الله تعالیٰ دا دوه نومونه ذکر کړل، پدے کښې اشاره وه چه اے ایمان والو! نظام د الله په لاس کښې دے، الله تعالیٰ دغسے لوئی هیبتناك ظالم قائد، د یو وړوکی ماشوم په لاس اُووهلو، نو تاسو به هم پدے لوئی کافرانو غالبه کوی.

﴿وَآتَاهُ اللَّهُ الْمُلْكَ وَالْحِكْمَةَ﴾ پدے کښې د داود ﷺ اُوچته مرتبه بیانوی چه الله ورته بادشاهی هم ورکړه، د طالوت د مرګ نه روستو پوره اُووه کاله بادشاه وو چه د خلقو تربیت به ئے کولو، او د شمویل نه روستو ئے نبوت هم ورکړو، ډیر کمالی حکیم انسان وو، عبادتونه ئے هم ډیر زیات وو. ددے وجه نه نبی ﷺ هغه ته (اَعْبَدُ الْبَشَرِ) د ټولو انسانانو نه زیات عبادت کونکے) وئیلے دے.

﴿الْحِكْمَةَ﴾ ددے نه مراد (۱) نبوت دے. (۲) یا زبور کتاب مراد دے. (۳) یا العلم والعمل مراد دے. ...... او دۀ د حکمتونو نه یو مخکښې بیان شو چه ډیر عبادت کونکے وو. یوه ورځ به روژه وو او یوه ورځ کوجه. (۲) حسن الصوت (ښائسته آواز) والا وو.

(۳) حدیث کښې دی: (وَاِنَّ نَبِيَّ اللهِ دَاوٗدَ عَلَيْهِ السَّلَامُ كَانَ يَاكُلُ مِنْ كَسْبِ يَدَيْهِ) (بخاری) داود ﷺ به د خپل لاس د کسب نه خوراك کولو).

(٤) لَا يَفِرُّ اِذَا لَاقٰی (مصنف عبد الرزاق ٤٧٨٦).

د دشمنانو نه به په جنګ کښې نۀ تختیدو. نور روستو راځی.

﴿وَعَلَّمَهُ مِمَّا يَشَاءُ﴾ څۀ چه الله سبحانه غوختل د هغے پوهه ئے ورکړه.

ددے هم ډیر مصداقات کیدے شی:

(۱) د زغرو علم لکه آيت کښې دی: ﴿وَعَلَّمْنَاهُ صَنْعَةَ لَبُوسٍ لَّكُمْ﴾ (الانبياء/۸۰)
الله ورته اوسپنه نرمه کړې وه چه زغرې به ئې ترې جوړولې۔
(۲) د حيواناتو په خبرو پوهيدو۔ (۳) حيواناتو، مارغانو او غرونو به ورسره تسبيحات وئيل۔ لکه سورة ص (۱۸) آيت کښې راغلی دی۔ (٤) د فيصلو علم چه خلقو ترمينځ به ئې په بناتسته طريقه فيصلې کولې۔ (سورة ص / ۲۰) آيت۔
(۵) بعض مفسرين وائي: د طالوت بادشاهي خلويښت کاله وه، کله چه هغه قتل شو نو بنی اسرائيلو د بادشاهئ خزانې داود عليه السلام ته ورکړې نو الله په هغې باندې هم داود عليه السلام پوهه کړو۔ (فتح البيان)۔ لنډه دا چه دا هغه ټولو جنګی او صنعتی علومو او فنونو ته شامل دے کوم چه الله تعالیٰ هغوی ته ورکړی وو۔
(يَشَاءُ) مضارع په معنیٰ د ماضی ده۔
﴿وَلَوْلَا دَفْعُ اللَّهِ النَّاسَ بَعْضَهُم بِبَعْضٍ﴾۔
اوس حکمة القتال بيانوی چه الله جهادونه ولې لازم کړيدی۔ ځکه چه پدے سره د خلقو شرونه او فسادونه ختمول مقصد دے۔ (بَعْضَهُمْ) نه مراد کافر دی او (بِبَعْضٍ) نه مراد مؤمنان دی۔ يعنی که الله د کافرو مقابله کښې مؤمنان نۀ اودرولے، او د مفسدانو مقابله کښې مصلحين او د مبتدعينو په مقابله کښې موحدين نۀ اودرلے، نو زمکه کښې به فساد راغلے وے۔ لکه څنګه ئې چه د جالوت په مقابله کښې طالوت او داود عليه السلام اودرول او د هغوی شرئې پرې ختم کړو۔
﴿لَفَسَدَتِ الْأَرْضُ﴾ کافران به راغلی وے، او د مسلمانانو عبادت خانې، مساجد به ئې وران کړی وے، مدرسے به ئې خرابے کړے وے، او علماء به ئې وژلی وے لکه سورة الحج (٤٠) آيت کښې دی۔ ﴿لَّهُدِّمَتْ صَوَامِعُ وَبِيَعٌ وَصَلَوَاتٌ وَمَسَاجِدُ﴾ ځکه چه کافران غواړی چه خواهشات، بے حيايانے، کفر او شر عام شی، د الله نوم ورك شی، د هغه بندګی ختمه شی، شرك او حرام خوری او ظلم عام شی، او دا ټول فسادونه دی۔ او پدے سره دنيا ورانيږی، دنيا خو الله د خپلے بندګئ دپاره پيدا کړيده، کله چه هغه نۀ کيږی نو بيا دنيا ورانيږی۔
ددے وجه نه الله تعالیٰ د کافرانو شر د ايمان والو په وجه دفع کوی۔ خلق جهاد ته فساد او دهشتګردی وائی او الله فرمائی: جهاد سره فسادونه، ظلمونه، بے حيايانے، حرام خوری، قتلونه او د کافرانو ورانے ختميږی، لهذا جهاد ډير عظيم عمل دے۔
**فائده**: بيا پدے آيت کښې دفاع عامه ده، ډيرو څيزونو ته شامل ده، بعض دا دی:
(۱) که نۀ وے دفع کول د الله تعالیٰ بعض خلقو لره د کفر نه په سبب د بعضو چه هغه انبياء او د

دين علماء دي، چه دوی دلائل بيانوی او د خلقو کفر ختموی۔

(۲) دفع کول د بعض خلقو د گناهونو او منکراتونه په سبب د بعضو چه امر بالمعروف او نهی عن المنکر کونکی دی۔

(۳) که نهٔ وے دفع کول د الله بعض خلقو لره د هرج مرج (گډوډئ او قتل وقتال) او فتنو راپورته کولو نه په دنيا کښ په سبب د بعضو چه هغه انبياء دی بيا مسلمانان خلفاء، بيا ملائك بيا هغه خلق چه د خپلو دينونو نه مدافعت کوی۔

(٤) يا د دفع کولو نه مراد مصيبتونه او تکليفونه دفع کول دی، يعنی که الله تعالیٰ تکليفونه او عذابونه او مصيبتونه نهٔ دفع کولے د بعض انسانانونه چه هغه گناهګار او بد عمله دی په سبب د بعضو چه هغه نيکان دی۔ نو فساد به راغلے وے، انسانان به هلاك شوی وے۔ پدے باره کښ يو ضعيف حديث نقل دے چه «الله تعالیٰ د يو نيك مسلمان په وجه د هغه د ګاونډيانو نه سلو کورونو مدافعت کوی» ۔ (الطبرانی، ضعيف الجامع الصغير فيه يحيی بن سعيد العطار وهو ضعيف)

اګرکه دا خبره د آيتونو نه معلومه ده چه الله تعالیٰ د نيك سړی د اولادو، د ښځو او د مال حفاظت کوی لکه سورة الکهف (۸۲) او سورة الفتح (۲۵) او سورة الانفال (۳۳) آيت کښ ددے تائيد موجود دے۔

(۵) که نهٔ وے دفع کول د الله جګړے د بعض خلقو په سبب د ګواهانو، چه د هغوی په صحيح ګواهی سره حقوق خپلو مستحقينو ته حاصل شی او جګړے ختمے شی۔

(اللباب فی علوم الکتاب لابن عادل ۲۲٦/۳) والرازی والقرطبی وابو حيان)

ابن عادل وائی : ظاهر دا ده چه الفاظ عام دی دے ټولو ته شامليږی ځکه چه په ټولو کښ دفع د فساد موجوده ده۔

بنا په دے په (لَفَسَدَتِ الْأَرْضُ) کښ به دغه مخکنی ټول فسادونه داخل وی۔

**فائده** : پدے آيت کښ الله يو بشارت او زيرے ورکړے دے چه الله د انسانانونه وخت په وخت فسادونه ختموی، او حق په يو ځل نهٔ ختموی۔ په هره زمانه کښ چه په انسانانو کښ د فساد يو تور ځادر راخور شی نو الله څهٔ خلق راپورته کړی چه هغه لرے کړی۔

کله شرك عام شی، الله تعالیٰ موحدين علماء راپيدا کړی چه د شرك رد پرے اُوکړی، کله بدعت عام شی الله تعالیٰ څهٔ خلق پيدا کړی چه د بدعت رد اُوکړی۔

د شيعه ګانو کفر چا نهٔ پيژندلو نو الله ورله څهٔ علماء راپيدا کړل چه د هغوی کفرئے امت ته راښکاره کړو۔ د تقليد يو تور ځادر په اُمت پروت وو، هيچا د تقليد په رد کښ څهٔ خبره نشوه

کولے چه کنے د علماؤ نه هم خطائی کیدے شی او کله ورته حدیث نهٔ وی رسیدلے، نو د هغوی تـقلید نشته، نو الله تعالیٰ ورته اهل حق راپیدا کړل چه د خلقو ذهنونه ئے کولاؤ کړل ځکه چه دا خو غټ فساد وو چه قرآن او حدیث د یو عالِم په خبره تللے شی، که ورسره موافق وی منی ئے، او که نهٔ وی نو بیا د قرآن او حدیث منلو ته تیار نهٔ دے۔

دغـه شان د الله د اسـمـاء اوصفاتو د مسئلے د عام کولو دپاره الله تعالیٰ علماؤ کښې هوش راپیدا کـړو۔ لنډه دا چه دا آیت مونږ ته دا سبق راکوی چه هرکله په کومه زمانه کښې فساد عام کیږی، نو الله د هغے د ختمولو دپاره څهٔ خلق پیدا کوی۔

﴿ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ ذُوْ فَضْلٍ عَلَى الْعَالَمِيْنَ ﴾ د عَـالَـمِيْن لفظ ئے دے دپاره راوړو چه په جهاد کښې صرف د مـؤمـنـانـو دپاره فـائـده نهٔ ده، بلکه د کافرو او د دغه مفسدانو فائده هم پکښې شته، داسے ئے اُونهٔ فرمایل : (ذُوْ فَضْلٍ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ) ـ ځکه که د مؤمنانو مقابله د کافرو سره نهٔ وے، نو بیا به الله دنیا ورانـولے، او د آسـمـانـی عـذابـونـو په وجه به ئے هلاك کړی وے، لیکن په هغوی باندے الله تعالیٰ عـمـومـی عـذابـونـه نهٔ راولی ځکه چه مسلمانان ورسره لګیادے مقابله کوی۔ او دارنګه جهاد د هغوی دپاره نعمت هم دے چه ډیر کسان به پکښې ایمان راوړی، ډیر به بصیرت حاصل کړی، ډیر بـه غلی کینی، کفر به ئے کم شی، نو عذابونه به پرے کم شی۔ دارنګه کوم کسان چه د هغوی نه قتل شی، د هغوی نه به نور ګناهونه نهٔ کیږی نو عذاب به ئے هم نهٔ زیاتیږی۔نو ډیر فوائد شو۔

تِلْكَ آيَاتُ اللّٰهِ نَتْلُوْهَا عَلَيْكَ بِالْحَقِّ وَإِنَّكَ لَمِنَ الْمُرْسَلِيْنَ ﴿۲۵۲﴾

دا آیتونه د الله تعالیٰ دی چه مونږه بیانوو دا تا ته په رښتیا سره او یقیناً ته خامخا د رسولانو نه ئے۔

**تفسیر** : پـه دے کښې قـرآن کـریـم تـه تـرغـیـب ورکوی او د رسول الله ﷺ رښتینوالے بیانوی۔ فـرمـائی چه دا نخے دی چه مونږه ئے تا ته بیانوو چه رښتینی دی، او ستا د رسول کیدو ښکاره او پـه ډاګـه دلیـل دے، ځکه چه الله تا ته د وحی په ذریعه ددے واقعے خبر درکړو چه تا ته ئے مخکښې هیڅ عِلم نهٔ وو۔

**مناسبت** دا دے (۱) د قـرآن طریقه ده چه د مخکښې بیان نه فائده منه خبره راوباسی کومے ته چه ضرورت وی۔ (۲) موضوع سره ئے مناسبت دا دے چه په دے سورت کښې په الله او کتاب الله، او رسول الله ﷺ باندے ایمان ثابتول دی۔

﴿ تِلْكَ آيَاتُ اللّٰهِ ﴾ تِـلْكَ اشاره ده مخکنی تولو آیتونو ته، او خاصکر هغه آیتونه چه د طالوت د واقعے سره متعلق وو ځکه چه په هغے کښې ډیر عبرتونه او نصیحتونه پراته وو۔

﴿ نَتْلُوهَا عَلَيْكَ ﴾ د تلاوت نه مراد لوستل دي، او دا صفت د الله تعالىٰ دے، او دليل دے چه قرآن باندے الله تلفظ کړے، او دا ئے لوستلے دے. څنګه چه د هغه د شان مناسب وي، په غير د تمثيل او تشبيه او تاويل نه.

﴿ بِالْحَقِّ ﴾ د حق نه مراد رشتينې او صحيح خبر دے. يا بالحق نه مراد لِاِظْهَارِ الْحَقِّ. يعنى دے دپاره ئے بيانوو چه حق رابشکاره شي.

څکه چه پدے واقعه کښې د امتِ مسلمه دپاره ډير نصيحتونه دي چه بعض د هغے نه دا دي:

۱- د جهاد في سبيل الله نه بغير د دين او د وطن، د ځان او د مال حفاظت نشي کيدے.

۲- د مجاهدينو انجام هميشه ښهٔ وي.

۳- د مسلمانانو د قيادت دپاره داسے خلق اختيارول او مشران مقررول پکار دي، چه د مشرئ اهل وي، او په اهل جوړيدو کښې خاصکر د دوه څيزونو اعتبار وي: عِلم او د بدن قوت.

٤- د فوج د مشر دپاره په خپل فوج باندے نظر ساتل پکار دي چه څوك د جنګ اهل نهٔ وي، هغهٔ منع کړي.

۵- کـه د دشمن د ډيروالي يا بلے وجے سره د مجاهدينو په صفونو کښې نا اُميدي خورهٔ شي، نو د هغوي همت اُوچتول پکار دي، او ايماني قوت ته په حرکت ورکولو کښې کوشش پکار دے. (تيسير الرحمن) وبالله التوفيق.

﴿ وَإِنَّكَ لَمِنَ الْمُرْسَلِينَ ﴾ لکه څنګه چه نور رسولان الله تعالىٰ راليږلي دي نو ته ئے هم راليږلے ئے. څکه دے داسے ناشنا واقعات سره د امي توب نه بيان کړل. دارنګه پدے کښې اشاره ده چه ستا په وجه به الله دا کور امت سَموي لکه څنګه ئے چه انبياء د خلقو د هدايت او سمولو دپاره راليږلي وو، نو دا نبي د خلقو دپاره رحمت او د هدايت سبب دے.

OOOOOOO

تِلْكَ الرُّسُلُ فَضَّلْنَا بَعْضَهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ مِنْهُمْ مَنْ كَلَّمَ اللَّهُ

دغه پیغمبران غوره والے ورکړے مونږ بعض د دوی ته په بعضو نورو. بعض د هغوی نه هغه څوك دی چه الله ورسره خبرے کړی

وَرَفَعَ بَعْضَهُمْ دَرَجَاتٍ وَآتَيْنَا عِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ الْبَيِّنَاتِ

او اُوچت کړی ئے دی بعضو لره په ډیرو درجو سره او ورکړی وو مونږه عیسیٰ ځوی د مریم ته ښکاره معجزے

وَأَيَّدْنَاهُ بِرُوحِ الْقُدُسِ وَلَوْ شَاءَ اللَّهُ مَا اقْتَتَلَ الَّذِينَ

او مضبوط کړے وو مونږ دهٔ لره په روح پاك سره او که چرته الله تعالیٰ غوختلے نو جنګونه به نهٔ وے کړی هغه کسانو

مِنْ بَعْدِهِمْ مِنْ بَعْدِ مَا جَاءَتْهُمُ الْبَيِّنَاتُ وَلَٰكِنِ اخْتَلَفُوا

چه روستو وو د دوی نه. پس د هغے نه چه راغلی وو دوی ته ښکاره دلیلونه او لیکن اختلاف اُوکړو دوی

فَمِنْهُمْ مَنْ آمَنَ وَمِنْهُمْ مَنْ كَفَرَ

نو بعض د دوی نه هغه څوك دی چه ایمان ئے راوړے دے او بعض د دوی نه هغه څوك دی چه کفر ئے کړے دے

وَلَوْ شَاءَ اللَّهُ مَا اقْتَتَلُوا وَلَٰكِنَّ اللَّهَ يَفْعَلُ مَا يُرِيدُ ﴿۲۵۳﴾

او که چرے الله غوختلے نو جنګونه به نهٔ وے کړی دوی او لیکن الله تعالیٰ کوی هغه څه چه اُوغواړی.

**تفسیر** : پدے آیت کښِ الله تعالیٰ د رسولانو ترمینځ تفاوت (فرق) او تفاضل (یو بل باندے غوره والے) بیانوی، یعنی الله دا خبر ورکړے چه د انبیاء او رسولانو په مینځ کښِ په قسماقسم فضائلو او صفاتو او مرتبو کښِ تفاوت او فرق راروان دے، بعض انبیاؤ لره الله تعالیٰ داسے فضیلت ورکړیدے چه نورو ته ئے هغه نهٔ دے ورکړے، تول انبیاء په صفاتو او فضیلتونو کښِ یو شان نهٔ دی.

قتادهٔ فرمائی : ابراهیم علیه السلام ئے خپل خلیل جوړ کړے، د موسیٰ علیه السلام سره ئے بغیر د واسطے نه خبرے کړی، او عیسیٰ علیه السلام ئے د آدم علیه السلام په شان ګرځولے چه هغه ئے د خاورے نه پیدا کړے، او عیسیٰ د الله بنده او د هغه کلمه او روح دے، او داؤد علیه السلام ته ئے زبور ورکړے او سلیمان علیه السلام ته ئے لویه بادشاهی ورکړے وه چه د هغه نه روستو د هیچا دپاره مناسبه نهٔ وه، او محمد صلی الله علیه وسلم ته ئے مخکنی او روستنی تول ګناهونه معاف کړی. (فتح البیان)

او رسول الله صلی الله علیه وسلم ئے په تولو انسانانو اُوچتے مرتبے والا ګرځولے دے.

علماء کرامو ویلي دي چه الله تعالیٰ هغهٔ لره د یو زرو نه زیاتے معجزے او نخے ورکړے وے، او د تولو نه لویه معجزه قرآن کریم وو چه یواځے په تولو انبیاؤ باندے د فوقیت حاصلولو دپاره کافي وو۔ او عیسی ابن مریم علیه السلام ته ئے نور معجزات ورکړیدي چه د هغے په ذریعه د الله تعالیٰ په حکم سره ړوند ته او برګی مرض والا ته شفاء ملاویده۔

مړي به ئے ژوندي کول او کله چه په غیرهٔ کښ وو، نو خلقو سره ئے خبرے کړیدي، او الله تعالیٰ د روح القدس په ذریعه د هغه مضبوطیا کړیده یعنی د جبریل امین په ذریعه یا د هغه پاك روح په ذریعه چه الله تعالیٰ په هغه کښ پو کلے وو۔

د انبیاء کرامو د کمال او عظمت او د هغوی سره د رالیږلے شوو نخو تقاضا دا وه چه تولو انسانانو په هغوی ایمان راوړے وے، لیکن داسے اُونشوه۔ اکثر خلق د نیغے لارے نه واوړیدل او یو بل ئے قتل کړل، حال دا چه که الله غوختلے نو تول به ئے په نیغه لاره روان کړي وے، لیکن د الله حکمت ددے تقاضا کوي چه د عالَم نظام د اسبابو سره اُوتړي۔

صاحب د تدبر قرآن فرمائي: پدے آیت کښ د هغه صحیح رویے او طریقے وضاحت دے کومه چه د الله د رسولانو په باره کښ د هغوی اُمتونو له اختیارول پکار وو۔ لیکن هغوی هغه اختیار نهٔ کړه بلکه د هغے په ځائے ئے یوه بالکل غلطه رویه اختیار کړهٔ چه د هغے په سبب د هغوی ترمینځ تعصبات پیدا شو، او هغوی د یو بل سره دشمنان او مخالف کیدو سره خپل مینځ کښ په جنګونو او جګړو کښ اخته شول۔

پدے بیان سره مقصود دلته نبی کریم ﷺ ته دا واضح کول دي چه نن ستا په مخالفت کښ هم دا اهل کتاب چه کوم زور لګوي ددے لویه وجه د دوی همدغه غلط چلن دے۔ الله تعالیٰ د خپلو رسولانو نه هر رسول ته څهٔ نا څهٔ په یو اعتبار سره فضیلت ورکړیدے او ددے فضیلت په اعتبار سره ئے هغه په نورو باندے ممتاز کړیدے۔ (لکه هغه مخکښ بیان شو)۔

نو د انبیاؤ په باره کښ همداسے عقیده ساتل پکار وو، لیکن ددے انبیاؤ امتونو چه کومه طریقه اختیار کړه هغه دا ده چه د دوی نه چه چا کوم نبی او رسول اُومنلو، نو د تولو فضائلو او خصوصیاتو جامع ئے صرف یواځے هغه جوړ کړو، او بل کوم نبی او رسول دپاره کوم فضیلت تسلیمول د هغوی په نیز د ایمان منافي اُوګنړلے شو۔ ددے تعصب او تنګ نظرئ نتیجه دا شوه چه د مخکنو اُمتونو نه هر امت په خپله خپله کرئ کښ بند پاتے شو، او د هغوی دپاره د نورو نبیانو او رسولانو د برکاتو نه د فائدے اخستو لاره بنده شوه۔ که دوی صحیح طریقه اختیار کړے وے، نو هر رسول به د دوی رسول او هر هدایت به د دوی هدایت وے او دوی به د هغه

هدايت نه هم حصه مونډلې کوم چه اُوس د قرآن کريم په شکل کښې د آخرى هدايت په حيثيت سره د دنيا مخې ته ښکاره شويدے۔ آه۔

**ربط** : ○ مخکښې اُوونيل شو چه تهٔ د رسولانو نه ئې، نو وَهم پيدا شو چه ټول رسولان به يو شان وى، نو اُوس وائى چه ټول رسولان په مرتبو کښې يو شان نهٔ دى۔

○ مخکښې د امير الجهاد بيان وو، دلته د خليفه بيان دے۔ چه هغه رسولان دى۔

○ کومو خلقو چه د انبياؤ مخالفت کړے هغه ذليل شو، دلته وائى څوك چه د آخرى نبى نه مخالف شوى، هغوى به هم ذليله کيږى ځکه چه دا خو د ټولو انبياؤ نه ډير غوره دے۔

○ مخکښې ئې اُوونيل چه په انبياؤ باندے الله فسادونه ختموى، اُوس وائى چه د انبياؤ د مرتبو په مابين کښې فرق د اختلاف سبب جوړول نهٔ دى پکار، بلکه په ټولو باندے ايمان لرل پکار دى اګرکه خپل مينځ کښې به ئې په مرتبو کښې فرق وى۔

**فائده** : د آيت نه معلومه شوه چه نبى کريم ﷺ لره الله تعالىٰ په تمامو رسولانو باندے افضل جوړ کړے، او د رسول الله ﷺ حديث [أَنَا سَيِّدُ وُلْدِ آدَمَ] چه زهٔ د آدم ؑ د اولادو سردار يم) نه هم دا ثابتيږى۔ پدے وجه په صحيحينو کښې د ابو هريره ؓ حديث [لَا تُفَضِّلُوْنِيْ عَلَى الْأَنْبِيَاءِ] يعنى ما ته په انبياؤ باندے فوقيت (غوره والے) مهٔ راکوئ)۔ د نبى ﷺ د طرف نه به په تواضع باندے محموليږى۔ يا دا منع په هغه وخت کښې وه چه نبى ﷺ ته د انبياء عليهم السلام ترمينځ د تفضيل او د يو بل نه د غوره والى وحى نهٔ وه شوے۔

مګر علامه صديق حسن خانؒ فرمائى چه زما په نيز د حديث صحيح مطلب دا دے چه الله او رسول کوم تفضيل بيان کړے هغه بيانوئ، ليکن د ځان نه زما فضائل مهٔ بيانوئ۔

﴿تِلْكَ﴾ دا اشاره ده هغه رسولانو ته چه په مخکنى آيت کښې ذکر شو، او هلته ټول رسولان مراد وو ځکه چه الف لام په کښې استغراقى وو۔

﴿فَضَّلْنَا﴾ فضيلت د رسولانو ترمينځ (۱) کله په اعتبار د ذات او استعداد (قابليت) سره وى چه دا وَهبى فضيلت دے۔ بعضو کښې د يو شى استعداد او قابليت وى، او بعضو کښې د بل شى۔ (۲) کسبى فضيلت۔ چه دا په دنيا کښې د تکاليفو او د مصيبتونو برداشت کولو او د عزم په اعتبار سره وى۔ د چا مصائب ډير وى، نو مرتبه ئې هم پورته وى لکه ابراهيم ؑ باندے امتحانات زيات وو، دغه شان نوح ؑ ډير صبرناك وو، او زمونږ نبى ﷺ باندے د ټولو نه زيات تکليفونه راغلى وو۔

﴿مِنْهُمْ مَّنْ كَلَّمَ اللّٰهُ﴾ بعض رسولانو سره الله تعالىٰ براه راست خبرے کړى او دا ډير لوئى منقبت

او فضیلت دے لکه موسی، آدم او محمد علیهم السلام۔
صحیح حدیث کښې دي : [آدَمُ نَبِیٌّ مُكَلَّمٌ]۔ (شعب الایمان والحاکم)
آدم ﷺ داسے نبي دے چه الله تعالیٰ ورسره خبرے کړي۔ او موسیٰ ﷺ خو پدے مشهور دے۔
او محمد ﷺ سره ئے د معراج په شپه خبرے کړي۔
بیا دا آیت ښکاره دلیل دے چه د الله کلام او خبرے شته څوك چه د الله تعالیٰ لفظي کلام نهٔ
مني، هغوی ددے آیتونو تحریفات کوي۔
﴿ وَرَفَعَ بَعْضَهُمْ ﴾ اکثر مفسرین فرمائي : د بعض نه مراد زمونږ نبي محمد ﷺ دے۔
او په (بَعْضَهُمْ) لفظ سره ئے مبهم ذکر کړو، دپاره د تفخیم او تعظیم۔ ځکه چه زمونږ د رسول په
ټولو انبیاؤ باندے ډیر زیات فضیلتونه دي چه هغه مفسرینو ذکر کړیدي۔
(۱) د رسول الله ﷺ رسالت د ټول عالَم انسانانو او پیریانوته عام دے۔ لکه په سورة الاعراف
(۱۵۸) آیت کښې دي۔ (۲) د نبي ﷺ دپاره مُعجزه خالده (همیشه پاتے کیدونکے) قرآن کریم دے۔
(۳) رسول الله ﷺ د ټول عالَم دپاره رحمت رالیږلے شویدے۔ سورة الانبیاء (۱۰۷) آیت۔
(٤) په رسول الله ﷺ کښې د مخکنو انبیاؤ ټول محاسن او ښائسته صفات راجمع وو لکه
سورة الانعام (۹۰) آیت نه معلومیږي۔
(۵) د رسول الله ﷺ طاعت، رضا، بیعت او استجابت داسے دے لکه د الله طاعت، رضا، بیعت
او استجابت۔ دا په سورة النساء (۸۰) آیت، فتح (۱۰) آیت، توبه (۶۲) آیت او سورة الانفال (۲٤)
آیت کښې ذکر دي۔
(٦) په احادیثو کښې خو ډیر زیات فضیلتونه راغلي۔ د قیامت په ورځ به ټول انبیاء د رسول الله
ﷺ د جنډے لاندے وي۔ (۷) جنت ته مخکښې یو نبي هم بغیر د رسول الله ﷺ نه نشي
داخلیدے، اول داخلیدونکے به رسول الله ﷺ وي۔ او دغه شان نور ډیر فضائل شته۔
لیکن ظاهر دا ده چه (بَعْضَهُمْ) په تعمیم پریخودے شي، نو دے کښې ابراهیم، موسیٰ او عیسیٰ
او نوح علیهم السلام (یعني اولو العزم رسولان) هم داخل دي۔ کوم چه په سورة الاحزاب (۷)
آیت او سورة الشوریٰ (۱۳) آیت کښې ذکر دي چه هغه پنځه انبیاء دي۔ الله دوی له داسے ډیرے
درجے ورکړے دي چه هغه ئے نورو له نهٔ دي ورکړي۔
﴿ دَرَجَاتٍ ﴾ ددے انبیاؤ دنیا کښې معنوي درجات هم وو چه ډیر معجزات ئے وو، او لوئي لوئي
اُمتونه الله ورکړي وو۔ او په جنت کښې به ئے هم حسي درجات وي چه د یو بل نه به پورته وي۔
سردار به ئے زمونږ پیغمبر محمد رسول الله ﷺ وي۔

اُوس د عیسیٰ علیه السلام تذکره کوی، چا به وئیل چه دا به د تولونه بهتر وی څکه چه بے پلاره پیدا دیے؟ نو فرمائی: ﴿ وَآتَيْنَا عِيسَى ﴾ د عیسیٰ تخصیص ئے اُوکړو د دوه وجو نه (۱) دپاره د دفع د وهم چه دا به د تولو رسولانو نه غوره وی څکه چه بغیر د پلار نه پیدا دیے۔

(۲) دویم د عیسیٰ علیه السلام نه روستو اختلافات ډیر پیدا شوی وو، او پدیے کښې په یهود او نصاراؤ رد کوی چه عیسیٰ علیه السلام دوی ته واضحه معجزات راوړی وو، لیکن یهودو په کښې اختلافات شروع کړل۔ او انکار ئے اُوکړو، او نصاراؤ د هغه په باره کښې غلو اُوکړه، نو اِلٰه ئے ترے جوړ کړو۔

﴿ الْبَيِّنَاتِ ﴾ یعنی معجزیے۔ او ددیے تشریح په (۸۷) آیت کښې لیکلے شویده۔

﴿ بِرُوحِ الْقُدُسِ ﴾ روح القدس یا جبریل علیه السلام دیے یا انجیل دیے۔ یا د عیسیٰ روحانیت دیے۔

﴿ وَلَوْ شَاءَ اللَّهُ مَا اقْتَتَلَ الَّذِينَ مِنْ بَعْدِهِمْ ﴾ پدیے کښې الله تعالیٰ خپل مشیئتِ طلیقه (آزاده اراده) بیانوی۔ او د رسولانو نه روستو د اختلاف کونکو بدی بیانوی۔

او دیے کښې د یو وهم ازاله کول مقصد دیے چه الله سبحانه رسولان په معجزات او دلیلونو سره د هدایت دپاره رالیږلی نو بیا خلقو ولے قتل وقتال کولو؟ نو جواب اُوشو چه د قتل او قتال سبب اختلاف د خلقو وو په ایمان او کفر کښې، چا ایمان راوړو او چا پریے کفر اُوکړو نو څکه ئے قتل وقتال پیدا شو۔ (۲) دارنګه دا بیانوی چه خلقو اختلافات د الله په مشیت او اراده سره اُوکړل چه پدیے کښې د الله ډیر مصلحتونه وو چه هغه روستو ذکر کیږی۔

دا هیڅ اختلاف هم بغیر د ارادیے د الله نه نهٔ دیے شویے۔ دا آیتونه چه په کوم دَور کښې نازل شوی وو په هغه دَور کښې د مسلمانانو او د مشرکانو جنګونه شروع وو، او حالات نژدیے وو چه یهودو سره هم جنګ شروع شی پدیے وجه الله تعالیٰ په داسے حالاتو کښې د مسلمانانو ذهنونه صفا کوی چه ستاسو مینځ کښې دا کوم نظریاتی جنګ دیے نو دا د الله د مشیت عینِ مطابق دیے او دا جنګ د الله په اجازت سره کیږی لګیا دیے څکه چه پدیے کښې د الله ډیر حکمتونه دی۔ (فی ظلال القرآن)

(۳) پدیے کښې بنهٔ مطلب دا دیے چه پدیے حصه د آیت کښې الله تعالیٰ خپل یو سنت (یعنی طریقے) ته اشاره کړیده، کومه چه هغه د هدایت او ګمراهئ په باره کښې خوښهٔ کړیده۔ او هغه ئے په قرآن کریم کښې په مختلفو طرزونو سره بیان کړیده، هغه طریقه دا ده چه الله د هدایت او ګمراهئ په باره کښې په هیچا د جبر او د زور طریقه نهٔ ده اختیار کړیے۔ که الله داسے کولے نو بیا به هیچا ته د ایمان د پریخودو او د کفر د اختیارولو هیڅ ګنجائش پاتے نهٔ ویے، لیکن هغه داسے نهٔ دی کړی بلکه بندګانو ته ئے آزادی ورکړیے چه شغوی په خپل سوچ او په خپل اختیار او اراده سره که غواړی د کفر لاره اختیاره کړی، یا که غواړی د ایمان لاره اختیار کړی، که د ایمان لاره

اختیاروی نو د هغې بدله به ورته ملاویږی چه جنت او د الله رضا ده، او که د کفر لاره اختیاروی نو د هغې انجام به مومی۔

لهذا د الله تعالیٰ مشیت او اراده آزاده ده۔ هیڅ پابندی په هغه نشته او بندګانو ته ئې هم د خپلو حکمتونو په بناء آزادی ورکړے، ځکه د هغه په هره اراده کښې حکمت او مصلحت وی۔ او ددے قانون په بیانولو سره مقصد نبی کریم ﷺ ته تسلی ورکول دی چه د خلقو د هدایت او ګمراهئ په معامله کښې ستا ذمه واری صرف دومره ده چه خلقو ته په واضحه الفاظو سره حق رسوه، د هغې قبلول یا رد کول په خلقو پریده، دا ستا ذمه واری نهٔ ده۔او نهٔ تهٔ پدے پریشانه کیږه۔ الله به ددے اراده کړی وی۔ (تدبر قرآن، وفی ظلال القرآن)

﴿ فَمِنْهُمْ مَنْ آمَنَ ﴾ دا تفصیل د اختلاف دے۔ چه چا د انبیاؤ خبره اُومنله او په هغوی ئې ایمان راوړو او چا کفر اُوکړو۔ نو د کفر او ایمان مقابله شروع شوه۔

﴿ وَلَوْ شَاءَ اللَّهُ مَا اقْتَتَلُوا ﴾ مشیت د الله دوباره ولے ذکر شو؟ (۱) نو تکرار یا خو د تاکید دپاره دے۔ (۲) یا اولنے مشیت او اراده د مخکنو انبیاؤ د امتونو سره لګی، او دویم مشیت د عیسیٰ علیه السلام نه روستو خلقو سره، یا ددے اُمت د ایمان والو، او د یهود او نصاراؤ او مشرکانو سره لګی۔ یعنی الله د پخوانو امتونو د اختلاف او دارنګه د عیسیٰ علیه السلام نه روستو او پدے امت کښې د اختلاف اراده کړے وه۔

او (اقْتَتَلُوا) لفظ ذکر کولو کښې اشاره ده ډیر والی د اختلاف ته ځکه چه د عیسیٰ علیه السلام نه روستو ډیر زیات اختلافات پیدا شوی وو۔

﴿ اخْتَلَفُوا ﴾ پدے کښې اشاره ده چه د انبیاؤ په خلاف کښې اُودریدل اختلاف دے او انبیاء علیهم السلام او د هغوی ملګری اختلاف کونکی نهٔ دی۔

﴿ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ يَفْعَلُ مَا يُرِيدُ ﴾ الله دا اراده کړے وه چه د دوی مینځ کښې به جګړے وی، اختلافات به وی او راځی به۔ الله داسے هم کولے شو چه ټول خلق ئې په ایمان راجمع کړی وے، یا کافران په خپل حال وے او مسلمانان په خپل حال او د دوی خپل مینځ کښې هیڅ جګړے نهٔ راتلے، لیکن الله داسے نهٔ دی کړی، پدے کښې ډیر حکمتونه دی چه نیکان بدان، جنتیان جهنمیان جدا جدا شی۔ بعض خلق به د الله د رحمت مظهر اُوګرځی، ایمان والو ته جنتونه ورکړے شی، الله ته نزدے کړے شی۔ په دنیا کښې ورسره مددونه اُوکړے شی۔ او کافرانو ته جهنم، د هغه غضب ورکړے شی۔ په دنیا او آخرت کښې پرے عذابونه نازل شی۔ نو د الله د غضب مظهر به اُوګرځی۔نو د الله د اسماء او صفاتو آثار به پکښې راښکاره شی۔

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَنْفِقُوا مِمَّا رَزَقْنَاكُمْ مِنْ قَبْلِ أَنْ يَأْتِيَ يَوْمٌ

اے ایمان والو ! خرچ کوئ د هغه مال نه چه مونږ درکړی دی تاسو ته مخکښ د هغے نه چه راښه شی یوه ورځ

لَا بَيْعٌ فِيهِ وَلَا خُلَّةٌ وَلَا شَفَاعَةٌ وَالْكَافِرُونَ هُمُ الظَّالِمُونَ ﴿٢٥٤﴾

چه نشته خرڅول او اخستل په هغے کښ او نهٔ دوستی او نهٔ سفارش او کافران هم دوی ظالمان دی۔

**تفسیر :**

**مضمون** : ددے ځائے نه تر آخر د سورت پورے عام مسائل د انفاق دی ځکه چه په جهادونو کښ مال ته انتهائی ضرورت دے، لیکن مال خو محبوب شے دے، ددے لګول مشکل دی، پدے وجه د مال د لګولو ترغیبات به ورکوی چه د جنت زیرے، د الله وعده او یره ده۔ او د مالونو متعلق درے قسمه احکام بیانوی چه انفاق، بیوع او سود۔ انفاق کښ احسان وی او په بیع شراء (خرید و فروخت) کښ عدل وی، او په سود کښ ظلم وی۔

بیا د انفاق شرطونه ایجابی سلبی بیانیږی، دے دپاره چه قبول شی۔ نو یو غټ شرط دا دے چه انفاق دِے د الله په توحید او د هغه په معرفت سره وی۔ ځکه چه یو انسان مال لګوی خو الله ئے نهٔ دے پیژندلے، نو دا مال لګول ورته فائده نهٔ ورکوی۔ نو ځکه به آیة الکرسی کښ د الله معرفت ذکر کوی۔ او کافرو الله تعالیٰ نهٔ دے پیژندلے نو ځکه مال هم نهٔ لګوی۔ بیا د الله د معرفت خبره اُوردوی، په دوه رکوع کښ همدا خبره کوی چه روستو ئے حاصل راځی۔

بیا د (۲۶۰) آیت نه روستو انفاق ته ترغیبات بیانیږی په مثالونو او په شرطونو ایجابی او سلبی او اقسام د انفاق سره او اوقات او فوائد د انفاق ذکر کولو سره۔ تر(۲۷٤) پورے، بیا د هغه ځائے نه په نیمه رکوع کښ د سود خبره ذکر کوی چه سود کول سراسر ظلم دے۔ بیا په دوه آیتونو کښ په آیة المداینة او وروستے آیت کښ د بیوع او سَلَم او قرض خبره ده۔ او په آخری رکوع کښ د تیر شوو مضامینو دوباره ذکر کول دی۔ دا اجمالی خلاصه وه۔

**د دوه رکوع خلاصه** : اول کښ الله امر کړے په انفاق سره روستو د جهاد نه، چه په جهاد کښ انفاق هم ضروری دے۔ ورسره ئے د آخرت یره ذکر کړیده چه آخرت او مرګ ته انتظار مهٔ کوئ، مخکښ انفاق اُوکړئ۔ بیا د انفاق شرط ذکر کوی چه د الله تعالیٰ د توحید دپاره به وی، او په توحید سره به وی، که انسان کښ توحید نهٔ وی، نو انفاق ئے قبول نهٔ دے۔

نو پدے آیت کښ د الله تعارف ذکر کیږی د هغه په نومونو او صفتونو سره۔ بیا دوه دلے

اصحاب الرشد (هدایت والا) او اصحاب الغی (گمراهئ والا) او د هغوی صفات، بدلے او سزاګانے بیانوی۔ بیا مثالونه د دواړو ډلو دی چه دوه مثالونه (دویم او دریم) د اصحاب الرشد بیانیږی او اول مثال د اصحاب الغی دے۔

﴿ یَا اَیُّهَا الَّذِیْنَ آمَنُوْا ﴾ دا خطاب ځکه کوی چه الله تعالیٰ د مؤمنانو په غاړه یوه بله ذمه واری اچوی، او په یو بل قانون سره تربیت کوی چه هغے ته د انفاق او اقتصاد قانون او اقتصادی نظام برابرول وائی۔ یعنی مال د الله په لاره کښی لګول، ځکه چه د مسلمانانو ملك او معاشره چه جوړیږی نو دا په مال لګولو، یو کس به ئے نهٔ جمع کوی بلکه خرچه کیږی به، هله به کار کیږی، یو سړی سره مال دے، بل سره نشته نو یو بل له به ورکول کیږی، نو د ایمان تقاضا دا ده چه مال به لګولے شی او یو روپئ چه انسان اُولګوی نو د قرآن په ډیرو آیتونو به عمل راشی۔

﴿ اَنْفِقُوْا مِمَّا رَزَقْنٰکُمْ ﴾ دا انفاق فرضی او نفلی ټولو ته شامل دے او د مخکنو آیتونو، او د مقام په اعتبار سره په جهاد کښی انفاق مراد دے چه هغه هم ضروری دے۔ کله به فرض وی او کله به مستحب وی (قرطبیؒ وابن عطیة)۔ او دا انفاق هر شی ته شامل دے، پیسے وی، پیداوار، فصلونه وی، حیوانات وی هر شی ته چه د انسان ضرورت راځی۔

﴿ رَزَقْنَا ﴾ کښی ئے نسبت خان ته اُوکړو چه دا د الله تعالیٰ مال دے، او ددے په لګولو سره ستا نه رضا کیږی نو ولے ئے نهٔ لګوے!۔

﴿ مِنْ قَبْلِ اَنْ یَّاْتِیَ یَوْمٌ ﴾ ددے ورځے نه د قیامت ورځ مراد ده، او حدیث کښی راځی چه د مرګ نه ئے مخکښی اُوکړئ۔ قرآن غټه خبره ذکر کوی او حدیث کښی ورسره وړے وړے ذکر کوی، او هر انسان چه مړ شو بس د هغه قیامت قائم شو۔

﴿ لَا بَیْعٌ فِیْهِ ﴾ د بیع نه مراد اخستل خرڅول دواړه دی، او مراد ترے تصرف کول دی یعنی سړے به خپل مال کښی تصرف نهٔ شے کولے [لِیَتَدَارَكَ مَا فَاتَهٗ] چه د فوت شوی شی تدارك اُوکړی، یعنی چه یو شے خرچ کړی او مال اُوګټی او بیا ترے فائده واخلی، داسے به نهٔ وی۔

﴿ وَلَا خُلَّةٌ ﴾ خُلة د خاء په پیښ سره، خالصے دوستانے ته وئیلے شی چه په هغے کښی د دوه دوستانو زړونه یو بل ترمینځ ننوتی وی۔ ځکه دے کښی معنیٰ د تخلل۔ (یو بل کښی ننوتو) پرته ده۔ یعنی د قیامت په ورځ به دوستی هم فائده نهٔ ورکوی چه یو مشرك او کافر لره خپل مخلص دوست خلاص کړی۔ دا دوستی مقید ده په کافر پورے۔ او هرچه ایمان والا متقیان دی نو هغوی به د یو بل دوستان وی لکه په سورة الزخرف آیت (٦٧) کښی دی: ﴿ اَلْاَخِلَّاءُ یَوْمَئِذٍ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ اِلَّا الْمُتَّقِیْنَ ﴾۔ (د قیامت په ورځ به دوستان د یو بل دشمنان وی سوئ د متقیانو نه)۔

یعنی که څوك په غلطه کښې د یو بل ملګری شوی وی، شرك، بدعت، پیری او مریدئ کښې نو د یو بل دشمنان به وی۔

﴿وَلَا شَفَاعَةٌ﴾ دلته د شفاعت نه شفاعتِ شرکیه، شفاعت بالمحبة، شفاعت بالوجاهة شفاعت قهریه مراد دے۔ یعنی مشرکان چه په خپلو معبودانو څنګه د سفارش ګمان کوی نو هغه به نهٔ وی، داسے څوك به نهٔ وی چه د هغه د محبت او د هغه د مخوریزئ د وجه نه مجرم خلاص کړی او هر چه د ایمان والو دپاره سفارش دے کوم چه د الله په اجازه او اراده سره وی، نو هغه خو الله تعالیٰ روستو په آیة الکرسی کښې ثابت کړیدے۔

یا مطلب دا چه هیڅ قسم سفارش به نهٔ وی مګر که الله چا دپاره او چا ته اجازت اُوکړی، او الله خو صرف ایمان والو ته د ایمان والو دپاره د سفارش اجازت ورکوی لکه روستو آیة الکرسی کښې راځی۔ معلومه شوه چه دلته د کافرو دپاره د سفارش نشتوالے مراد دے۔ نو د معتزلهٔ وغیره باطلو ډلو دا دلیل نیول صحیح نهٔ دی چه قیامت کښې دګناهګارو دپاره بالکل سفارش نشته، څکه چه دلته الله تعالیٰ مطلقاً سفارش نفی کړیدے۔

جواب دا دے چه دلته ورسره (اِلَّا بِاِذْنِهٖ) (مګر په اجازت سره) مراد دے څکه چه روستو آیت ئے تفسیر دے۔ څکه چه دواړه د قرآن آیتونه دی، که شفاعت بالاذن (د اجازت والا سفارش) نهٔ منی نو بیا به هغے سره څهٔ کوی؟۔

خو دلته الله تعالیٰ مطلقاً څکه شفاعت نفی کړیدے چه دا مقام د ترغیب او وعید دے، د قیامت هیبت ذکر کول مقصود دی۔ یعنی د قیامت داسے سخته ورځ ده اے بنده ! نو مال اُولګوه چه هغه ورځ درته آسانه شی۔

﴿وَالْكٰفِرُوْنَ هُمُ الظّٰلِمُوْنَ﴾ ددے مناسبت ۱- یو دا دے چه (واو) په معنیٰ د اِذْ دے [اَیْ اِذِ الْكٰفِرُوْنَ هُمُ الظّٰلِمُوْنَ وَلَا شَفَاعَةَ لِلظَّالِمِ] خلة او شفاعت د کافرانو دپاره نشته څکه چه کافران ظالمان دی، او د ظالم سره دوستانه او سفارش نهٔ دے پکار۔

۲- دویم پدے کښې مقصد یره ورکول دی مؤمنانو ته چه کافران ظالمان دی، انفاق او نیك کارونه ئے پریخی دی، د الله توحید او د هغه حق ئے برباد کړے، مال لګول پرے فرض وو او هغه ئے په ځائے اُونهٔ لګولو (څکه چه ظلم کیخودل د یوشی دی په غیر د خپل مناسب ځائے کښې) نو تاسو په ځان ظلم مهٔ کوئ او د کافرانو سره په پریخودو د انفاق، د نیك اعمالو او د فرض زکاة ورکولو وغیره کارونو کښې مشابهت مهٔ کوئ۔ نو پدے کښې عموم شو او دا ډیر بهتر دے۔ او آیت به په ظاهر هم حمل شی۔

۳- دریم دا چه پدے کښ علت د انفاق ذکر دے چه هرکله کافران ظلم کونکی دی نو په جهاد کښ انفاق اُوکړئ چه د هغوی ظلم دفع شی او مسلمانان د ظلمونو نه خلاص شی۔

٤- صاحب اللباب فرمائی : دا مطلب هم دے چه کافران ظالمان دی ځکه چه ځانونه ئے په غیر د خپلو مناسبو ځایونو کښ کیخودل چه د هغه چا نه ئے د سفارش توقع او امید اُوساتلو چه هغوی ورله د الله تعالیٰ په نیز سفارش نشی کولے۔ ځکه چه دوی به د خپلو بتانو په باره کښ وئیل : ﴿هٰؤُلَاءِ شُفَعَاؤُنَا عِنْدَ اللهِ﴾ یونس : (۱۸)

دا به زمونږ دپاره د الله په نیز سفارش کونکی وی۔ ﴿لِيُقَرِّبُوْنَا اِلَى اللهِ زُلْفٰى﴾ (الزمر : ۳)

(مونږ دوی له ځکه عبادت کوو چه مونږ الله ته نزدے کړی)۔ (اللباب ۲۴۰/۳)

بعض علماؤ دلته د کافرانو نه مانعین د زکاة مراد کړیدی ځکه چه امر په انفاق اُوشو او بیا د کفر تذکره اُوشوه، دا قرینه ده چه څوك زکاة نهٔ ورکوی نو هغه د کافرانو مشابه دے او د هغه سره به د کافرانو په شان قتال کولے شی۔ (فتح البیان)۔

لیکن دا د آیت اشاره ده او تفسیر نهٔ دے۔

**حکمة** : صاحب د فتح البیان د عطاء بن دینارؒ نه نقل کړی چه الحمد لله چه الله تعالیٰ داسے اُوفرمایل : (وَالْكَافِرُوْنَ هُمُ الظّٰلِمُوْنَ) او داسے ئے اُونهٔ فرمایل : (وَالظّٰلِمُوْنَ هُمُ الْكَافِرُوْنَ) یعنی ظالمان کافران دی ځکه چه ظلم (ګناه) خو مؤمن کښ هم راتلے شی نو بیا به هغه هم کافر شوے وے۔

| اَللّٰهُ لَا اِلٰهَ اِلَّا هُوَ الْحَیُّ الْقَیُّوْمُ لَا تَاْخُذُهٗ |
|---|
| الله تعالیٰ نشته لائق د بندګئ سوئ د هغه نه همیشه ژوندیے دے نظام چلونکے دے نهٔ رانیسی هغه لره |
| سِنَةٌ وَّلَا نَوْمٌ لَهٗ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَمَا فِی الْاَرْضِ |
| پرکالی او نهٔ خوب خاص د هغه په اختیار کښ دی هغه څهٔ چه په آسمانونو کښ دی او هغه څه چه په زمکه کښ دی |
| مَنْ ذَا الَّذِیْ یَشْفَعُ عِنْدَهٗ اِلَّا بِاِذْنِهٖ یَعْلَمُ |
| څوك دے هغه شخص چه سفارش اُوکړی د هغه سره مګر په اجازه د هغه، هغه پوهه دے |
| مَا بَیْنَ اَیْدِیْهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ وَلَا یُحِیْطُوْنَ بِشَیْءٍ مِّنْ عِلْمِهٖ |
| په هغهٔ څه چه ددے خلقو مخکښ دی او هغه چه روستو دی او دوی نهٔ شی راګیرولے هیڅ یو شے د علم د الله تعالیٰ نه |

إِلَّا بِمَا شَآءَ وَسِعَ كُرْسِيُّهُ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضَ وَلَا يَؤُدُهُ

مګر په هغه څه چه الله اُوغواړي، فراخه ده کرسی د الله تعالیٰ آسمانونو او زمکے ته او نهٔ ستړے کوی الله لره

حِفْظُهُمَا وَهُوَ الْعَلِيُّ الْعَظِيمُ ﴿۲۵۵﴾

حفاظت ددے دواړو او هغه ډیر اوچت دے، ډیر لوئی دے۔

**تفسیر** : دے آیت کښې څو بحثونه دی (۱) ربط او مناسبت (۲) نوموونه او فضیلت۔ (۳) تفسیر اوفوائد۔

**مناسبت** : (۱) ددے مناسبت د مخکښې سره دا دے چه (اَنْفِقُوْا) خیرات اُوکړئ ددے کلمے دپاره۔ چه دا کلمه د توحید ستا په زړهٔ کښې واقع شي او د مال محبت کم شي۔

(۲) دویم دا چه ددے کلمے د اشاعت دپاره دا انفاق کیږی۔ (۳) دریم دا چه د (وَالْكٰفِرُوْنَ) سره ئے مناسبت دے، یعنی کافران ظالمان دی ځکه چه ددے کلمے د توحید (لا اله الا الله) نه منکر دی۔

(٤) مخکښې ئے انفاق ته ترغیب ورکړو چه مال اُولګوئ، نو اُوس وائی چه اول به الله تعالیٰ پیژنے، بیا به انفاق او نور نیك اعمال فائده ورکوی، نو پدے کښې بیان دډیرے آهمے مسئلے دے۔ چه هغه معرفت د الله تعالیٰ دے۔ ځکه چه دا د شرائطو د انفاق نه لوئی مُهم شرط دے، کله چه انسان الله تعالیٰ په نومونو او په صفاتو سره اُوپیژنی، نو د هغه په زړهٔ کښې بیا ریاء نهٔ واقع کیږی، مخلوق ته ځان نهٔ ښائی، ځکه چه مخلوق ورته معمولی ښکاری۔ او روستو راځی کوموکسانو چه الله نهٔ دے پیژندلے، هغوی ریاکار دی، اعمال ئے ضائع دی۔ نو دا آیت د روستو مسئلے د انفاق دپاره تمهید او مقدمه ده۔

○ دارنګه پدے آیت کښې په انفاق او په عمل صالح باندے باعث او د هغے سبب بیانوی چه هغه د الله سبحانه معرفت دے، ځکه چه څوك خپل رب اُوپیژنی، نو بیا د هغه سره مینه لری، او د هغهٔ دپاره عمل کوی، او څوك چه خپل رب اُونهٔ پیژنی نو محبت به ورسره څنګه اُوکړی او عمل به ورله څنګه اُوکړی!۔ فتدبر۔

## نوموونه او فضیلت :

ددے آیت فضائل په احادیثو کښې ګنړ راغلی دی۔

(۱) چا چه دا د شپے اُولوستلو نو د شیطان نه به تر سحر پورے محفوظ وی، لکه د ابو هریرهٔ په واقعه کښې راځی چه هغه رسول الله ﷺ د رمضان زکاة (سرسایهٔ) حفاظت ته کینولے وو، شیطان

ترې درې شپې غلا اُوکړه او هر ځل به ئې ترې ځان خلاصولو، آخر کښې ئې ورته دا اُووئیل چه ما پریده زۀ به تا ته داسې کلمات اُوښایم چه الله به تا ته په هغې سره فائده درکړي، کله چه ته خپلې بسترې ته راشې نو آیة الکرسي تر آخره پورې اُووایه :

[فَإِنَّهُ لَنْ يَزَالَ عَلَيْكَ مِنَ اللهِ حَافِظٌ وَلَا يَقْرَبُكَ شَيْطَانٌ حَتَّى تُصْبِحَ] (بخاری رقم : ۲۱۸۷)

(په تا باندې به همیشه یو حفاظت کونکې ملائك مقرر وي او تر سحره پورې به تا ته شیطان نزدې نۀ راځي)۔

(۲) ابوامامه ﷺ د رسول الله ﷺ ارشاد نقل کوي : [مَنْ قَرَأَ آيَةَ الْكُرْسِيِّ دُبُرَ كُلِّ صَلَاةٍ مَكْتُوبَةٍ لَمْ يَمْنَعْهُ مِنْ دُخُولِ الْجَنَّةِ إِلَّا أَنْ يَمُوتَ]

[النسائی والطبرانی باسانید احدها صحیح. صحیح الترغیب ۱۵۹۵ و صحیح الجامع الصغیر ٦٤٦٤]

چا چه آیة الکرسي د هر فرض مانځه پس اُولوستله نو د مرګ سره به سمدست جنت ته داخل شي)۔ خو شرط دا دې چه ددې آیت په مطلب پو هیږي او پدې عقیده لري۔ ډیر مشرکان دا وائي او شرك هم کوي۔

(۳) ابي بن کعبؓ هم یو جنی لره نیولې وو چه لاسونه ئې د سپي په شان وو، د هغه نه ئې غلا کوله، هغه ورته اُووئیل چه تاسونه به مونږ په څۀ محفوظ کیږو۔ هغه ورته اُووئیل : پدې آیة الکرسي۔ بیا رسول الله ﷺ اُوفرمایل : صَدَقَ الْخَبِيثُ ۔ دې خبیث رشتیا وئیلي دي۔ (صحیح ابن حبان – صحیح الترغیب والترهیب : ۱٤۷۰)۔

(٤) أَعْظَمُ آيَةٍ فِي الْقُرْآنِ : (په قرآن کریم کښې ډیر عظمتِ شان والا آیت)۔

ابي بن کعبؓ ته نبي ﷺ اُوفرمایل : په قرآن کښې بهتر او د مرتبې په لحاظ لوئي آیت کوم یو دې؟ نو اول ئې ورته اُووئیل : الله او رسول ښۀ پو هیږي، لیکن بیا ئې ترې تپوس اُوکړو، نو ورته ئې اُووئیل : آیة الکرسي۔ نبي ﷺ اُوفرمایل : ستا دا علم دې مبارك شي اې ابوالمنذر !۔

دې ته ئې عِلم اُووئیلو چه بنده د قرآن په یوه خبره پو هه شي۔

(په یو روایت کښې ورسره دا زیات راغلي دي : وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ إِنَّ لَهَا لِسَانًا وَشَفَتَيْنِ تُقَدِّسُ الْمَلِكَ عِنْدَ سَاقِ الْعَرْشِ – ابن حبان، طبراني، عبد الرزاق – الصحیحة : ۳٤۱۰]

(قسم په هغه الله چه زما نفس د هغه په لاس کښې دې چه ددې آیت دپاره یوه ژبه او دوه شونډې دي، چه د عرش د خپې سره د الله پاکي بیانوي)۔

امام احمدؒ او نسائيؒ د ابوذر ﷺ نه روایت کړیدې چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل : « ډیر لوئي آیت چه په رسول الله ﷺ باندې نازل شوې آیة الکرسي دې»۔

(۵) په يو بل حديث کښې دي چه هغه امام احمدؒ، ابوداؤدؒ، ترمذيؒ او ابن ماجهؒ روايت کړيدے چه د الله اسم اعظم (لوئې نوم) په دے دوه آيتونو کښې دے: ﴿ اَللّٰهُ لَا اِلٰهَ اِلَّا هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّوْمُ ﴾ او ﴿ الٓمّٓ ۝ اَللّٰهُ لَا اِلٰهَ اِلَّا هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّوْمُ ﴾۔ (وسنده صحيح)۔

(۶) دا په دمونو کښې هم وئيلے کيږي۔

(۷) دے ته سَيِّدَةُ آيَاتِ الْقُرْآن وائي۔

(په قرآن کريم کښې د آيتونو سردار آيت دے)۔ (عن عليؓ - شعب الايمان)

(۸) اَفْضَلُ آيَةٍ فِي الْقُرْآنِ (په قرآن کريم کښې بهتر آيت دے) او د بهتر والي معنیٰ دا ده چه ددے په لوستلو زيات ثواب ملاويږي په نسبت د نورو آيتونو۔ (فتح البيان)۔

ولے بهتر دے؟ وجه دا ده چه پدے کښې ټول بحث د الله د ذات، د هغهٔ دتوحيد، د هغهٔ د عظمت او د هغهٔ د ثبوتي او سلبي صفاتو بيان دے۔ او هر هغه تقرير، موضوع او خطبه چه په هغے کښې موضوع بهترينه او شرافت والا وي نو هغه هم غوره وي۔

ددے آيت موضوع څهٔ شے دے؟ [بَيَانُ مَعْرِفَةِ اللهِ عَزَّ وَجَلَّ بِاَسْمَائِهٖ وَصِفَاتِهٖ]

(د الله تعالیٰ په نومونو او صفتونو سره پيژندل) نو د الله معرفت خو ډير ضروري دے۔

پدے آيت کښې د الله ايجابي او سلبي صفات ذکر دي لکه تفصيل دپاره آيت (۲۶) اُوګوره۔

او د الله دوه قسمه صفات دي، ايجابي (چه فلانے، فلانے صفت لري) او سلبي (چه د فلاني عيب نه منزه دے) د الله د کمال صفتونه ډير زيات دي، او منفي صفتونه ئے هم شته چه خوب پرے نهٔ راځي، پرکالي پرے نهٔ راځي، خوراك نهٔ کوي، ښځه ئے نشته، بچي ئے نشته، ظلم نهٔ کوي، او داسے داسے بنائسته صفات هم لري، او دا دواړه خبرے پدے آيت کښې شته۔

بيا د الله سلبي صفات ثبوتي صفت لره متضمن وي، او سلب مجرد (خالص)، کمال نهٔ وي۔ او داسے سلب د الله دپاره نشته، او سلبي صفات کم دي، او ثبوتي ډير دي ځکه چه ثبوتي صفت کښې کمال وي۔

دے ته آية الکرسي وائي او پدے کښې پنځوس کلمے دي او لس جملے او د الله د (۲۵) نه زيات نومونه او صفتونه دي۔

﴿ اَللّٰهُ لَا اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ﴾ د الله نه سِوا بل څوك لائق د بندګئ نشته) پيروي که فقير، بُت وي که هر شے۔ دا د عبادت لائق نهٔ دي، عبادت صرف د الله تعالیٰ حق دے۔

﴿ اَلْحَيُّ الْقَيُّوْمُ ﴾ قيوم معنیٰ ده: [اَلْقَائِمُ بِتَدْبِيْرِ مَا خَلَقَ] کوم مخلوق ئے چه پيدا کړے نو بيا د هغے تربيت هم کوي، چا ته ئے نهٔ دي سپارلي۔ قيوم هغه دے چه خپله قائم او بل چا لره اُودرونکے وي۔

د هغهٔ پروګرام کوي. موږ هم ژوندي يو، ليکن مرګ راباندے راځي او الله باندے مرګ نهٔ راځي انسان هم قيوم دے، کله کله تدبير کوي، ليکن د بعض څيزونو. او د هر شي تدبير نشي کولے، او هغه تدبير هم ناقص وي. ددے وجه نه غوث، قطب نشته دے چه هغه د عالَم حاجت پوره کړي. لکه مشرکان وائي چه په اقطاب او اغواث او ابدالو سره عالَم ټينګ دے.

ابن القيم رحمه الله په قصيده نونيه کښې فرمائي چه دا دوه صفتونه د الله تعالیٰ ټولو صفتونو لره راجمع کونکي دي ځکه چه (الحی) ضرور مُرِيد (اراده کونکے) وي او څوك چه اراده کوي، نو هغهٔ د مخکښې نه عِلم لري. او چه اراده لري نو هغه به محبت او کراهيت لري. څهٔ به خوښوي او څه به بد ګڼړي. او محبوب ته به ورکړه کوي، او مبغوض ته به سزا ورکوي. دارنګه چه اراده لري، نو فعل او قوت به لري. نو پدے کښې علم، اراده، کراهية، محبت، فعل، قوت، ورکړه او منع صفتونه راغلل.

دارنګه (القيوم) دے، تدبير کوي نو خالق دے، عِلم ورسره دے، قوت ورسره دے، حکمة ورسره دے، د چا رائے او مشورے ته ئے حاجت نشته. نو ځکه به رسول الله ﷺ په وخت د مصيبت کښې داسے دعا کوله : [يَاحَيُّ يَا قَيُّوْمُ بِرَحْمَتِكَ اَسْتَغِيْثُ] [عمل اليوم والليلة لابن السنی۳۳۶]

اے الله چه تهٔ ژوندے او تدبير کونکے ئے، ستا په رحمت سره مدد غواړم).

﴿ لَا تَأْخُذُهٗ سِنَةٌ وَّلَا نَوْمٌ ﴾ سِنَة د خوب اول سر ته وئيلے شي، او نوم آخر ته وئيلے شي.

سِنَه هغه ده چه په سر کښې ئے اثر راشي، او نوم هغه دے چه په زړهٔ باندے راشي، دا ډير مضبوط وي. او نُعاس هغه دے چه په سترګو راشي. دا درميانه درجه ده، نو لړ خوب هم پرے نهٔ راځي او ډير هم پرے نهٔ راځي، نو درميانه به هم پرے نهٔ راځي.

ولے پرے نهٔ راځي ځکه چه (اَلْحَیُّ) ذات دے، او خوب چه چا له ورځي نو هغه خو مړ کيدونکے وي، ځکه خوب هم يو نوع مرګ دے. او ځکه چه قَيُّوم دے، او خوب چه پرے راشي نو بيا به تدبير څنګه اُوشي، او خوب ته هغهٔ څوك محتاج وي چه هغه ستړے کيږي، غوښه او هډوکے لري، او رب العزت داسے ذات نهٔ دے، هغه نُور دے، هغه قوت والا ذات دے. په جنت کښې به جنتيان نهٔ اُودهٔ کيږي. او دارنګه ملائك هم نهٔ اُودهٔ کيږي چه مخلوق دے نو الله باندے به څنګه راشي؟ الله رب العالمين داسے ذات دے، د شپے او د ورځے په بندګانو عليم او خبير دے.

اُوس د هغهٔ واکداري بيانوي : ﴿ لَهٗ مَا فِى السَّمٰوٰتِ وَمَا فِى الْاَرْضِ ﴾ [لَهٗ يعنی مِلْكًا وَخَلْقًا وَعَبِيْدًا] يعني تمام موجودات د هغه غلامان دي، الله ئے مالك هم دے، او خالق ئے هم دے، او سَيِّد ئے هم دے. الله تعالیٰ فرمائي : ﴿ اِنْ كُلُّ مَنْ فِى السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ اِلَّا اٰتِى الرَّحْمٰنِ عَبْدًا ﴾ چه د آسمان او

زمکے تمام مخلوقات د الله بندګان دی۔ (مریم: ۹۳)

اوس د الله عظمت او هیبت بیانیږی: ﴿ مَنْ ذَا الَّذِیْ یَشْفَعُ عِنْدَهٗ ﴾ هیڅوك نشته چه د الله رب العالمین مخے له ورشی، چه اے الله! دا سړی معاف کړه څکه چه د الله هیبت ډیر دے۔

﴿ اِلَّا بِاِذْنِهٖ ﴾ الله به بعض بندګانو ته اجازه ورکړی چه څۀ سفارش کوئ، یعنی د الله د اجازت نه بغیر هیڅوك د چا دپاره د الله په دربار کښ د سفارش کولو جرأت نشی کولے، انبیاء او ملائك د الله تعالیٰ د اجازت نه بغیر سفارش نۀ شی کولے، نو هغه بتان- چه کافران ورله عبادت کوی او د کوم په باره کښ چه دوی پدے باطل ګمان کښ اخته دی چه دوی به د الله په دربار کښ د دوی دپاره سفارشیان جوړیږی- څنګه به سفارش اُوکړی ؟!۔

په حدیث د شفاعت کښ دی چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل: ((زۀ به د عرش لاندے راشم او په سجده به پریوځم، نو الله به ما په همدغه حال دومره پریدی، څومره چه هغۀ غواړی بیا به ما ته اُووائی چه خپل سر پورته کړه او وایه، ستا به آوریدلے کیږی او سفارش کوه، قبلیږی به))۔ (بخاری ومسلم)۔

او دا سفارش به د مؤحدینو دپاره وی۔ مشرکانو دپاره به نۀ وی۔

ابو هریرهؓ د رسول الله ﷺ نه پوښتنه اُوکړه چه هغه خوش نصیب به څوك وی چه ستا سفارش به ورته نصیب کیږی؟ نو نبی ﷺ اُوفرمایل چه ((چا لَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ د زړۀ په پوره اخلاص سره وئیلی وی))۔ (بخاری)۔

معلومه شوه چه دا سفارش به د مؤحدینو دپاره د الله تعالیٰ یو انعام وی۔

نو پدے کښ د الله جباریت او رحم ذکر دے چه داسے زوره ور ذات دے چه څوك مخے له نشی ورتلے، او دومره رحیم دے چه په ایمان والو به رحم کوی، دوی به ګناهونه او جرمونه هم کړی وی لیکن بیا به هم الله تعالیٰ نورو بندګانو ته وائی چه تاسو ما نه اُوغواړئ، دوی ستاسو په خبره معاف کوم۔ پدے کښ د ګناهګارو د اُور نه د خلاصیدو فائده ده او د نیکانو شان او مرتبه اُوچتول دی۔ او د الله عظمت او لوئی والے پکښ دے۔ نو د الله تعالیٰ جباریت، رحم، محبت، مغفرت او قبول الشفاعة صفات شو۔

﴿ یَعْلَمُ مَا ﴾ د الله تعالیٰ عِلم په تمامو کائناتو محیط (راګیرونکے) دے، هیڅ مخلوق په ماضی، حاضر او مستقبل کښ د هغه د عِلم د حدودو نه بهر نۀ دے، لکه څنګه چه الله د ملائکو په باره کښ خبر ورکړے، فرمایلی ئے دی: ﴿ وَمَا نَتَنَزَّلُ اِلَّا بِاَمْرِ رَبِّكَ لَهٗ مَا بَیْنَ اَیْدِیْنَا وَمَا خَلْفَنَا وَمَا بَیْنَ ذٰلِكَ وَمَا كَانَ رَبُّكَ نَسِیًّا ﴾ یعنی مونږ بغیر ستا د رب د حکم نه نشو راکوزیدے، زمونږ مخکښ روستو او ددے په مینځ کښ ټول څیزونه د هغه په ملکیت کښ دی، او ستا رب هیرونکے نۀ دے۔ (مریم: ٦٤)۔

او کوم مخلوق چه ئې پیدا کړے نو د هغې نه خبردار دے۔

(۱) د ﴿مَا بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ﴾ نه مراد آخرت او دنیا ده، آخرت د انسانانو مخکښې راروان دے او دنیا ئې شا ته پریښے ده۔ نو الله د انسانانو په دنیا او آخرت پوهه دے چه په دواړو کښې به ئې کوم حال وی؟۔ (۲) یا د مَابَيْنَ اَيْدِيْهِمْ نه مراد مَا قَدَّمُوْا مِنَ الْاَعْمَالِ قَبْلَ الْمَوْتِ وَمَا خَلْفَهُمْ مَا تَرَكُوْا مِنَ الْاَعْمَالِ بَعْدَ الْمَوْتِ (د مرګ نه مخکښې چه دوی کوم اعمال کړیدی او کوم چه ئې د مرګ نه روستو پریخی دی) دا ټول الله ته معلوم دی۔

(۳) ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی: هغه اعمال چه دوی مخکښې لیږلی او هغه اعمال چه دوی ضائع کړیدی۔

اُوس د بندګانو عاجزی: ﴿وَلَا يُحِيْطُوْنَ بِشَيْءٍ مِنْ عِلْمِهِ﴾ مخلوق سره هیڅ قسم علم نشته تر څو پورے چه الله ئې پکښې وانچوی څکه چه دماغ یو تار دے او زړهٔ غوښه ده، پدے کښې عِلمونه خپله نشی راتلے مګر د الله په ورکړه به راځی۔ لیونو کښې علم نهٔ وی، سره ددے نه چه زړهٔ او دماغ ئې هم شته۔ نو هر څوك هغو مره علم لری څو مره چه ورته الله ورکړے وی، لکه چه الله د ملائکو په ژبه فرمایلی دی:

﴿سُبْحَانَكَ لَا عِلْمَ لَنَا اِلَّا مَا عَلَّمْتَنَا﴾ یعنی اے الله! ستا ذات پاك او بے عیبه دے، زمونږ سره هیڅ علم نشته مګر هغه علم چه تا راکړیدے۔ (البقره: ۳۲)۔

﴿اِلَّا بِمَا شَآءَ﴾ یعنی چا له الله په وحی سره علم ورکړی لکه رسولان شو۔ الله فرمائی:

﴿فَلَا يُظْهِرُ عَلٰى غَيْبِهٖ اَحَدًا اِلَّا مَنِ ارْتَضٰى مِنْ رَّسُوْلٍ﴾ (الجن۲٦). (الله په خپلو غیبو هیڅوك نهٔ خبروی مګر بعض رسولان غوره کړی نو هغه ته د بعضو خبرو خبر ورکړی)۔

چا له په مشاهده، چا له په فطرت، چه فطرت کښې ورله داسے استعداد پیدا کړی چه په ډیرو څیزونو پو هیږی لکه حیوانات د فائدے ځائے پیژنی او د ضرر نه ځان ساتی۔ او چا له ئې په عقل سره ورکړی۔ بیا د مخلوقاتو عِلم د الله د علم په نسبت داسے دے لکه د چینچړے په مکوخه کښې چه اُوبه دی په نسبت د دریاب لکه دا مثال خضر عليه السلام موسیٰ عليه السلام ته بیان کړے وو۔ پدے کښې د شرك فی العلم رد دے یعنی په مخلوقاتو کښې هیڅوك عِلم محیط او عِلم په هر شی نهٔ لری، او کوم عِلمونه چه دوی ته حاصل دی نو هغه د الله د مشیت لاندے دی۔

الله تعالیٰ چه کله غوختل چه انسان ددے زمکے خلیفه جوړ کړی، نو هغه ته ئې د خپل طرف نه عِلمونه ورکړل څومره چه د انسان د خلافت سره مناسب وو، او څهٔ څیزونه او کوډونه داسے هم وو چه د هغې په باره کښې الله تعالیٰ انسان ته عِلم ورنکړو څکه چه د خلافت په چلولو کښې

هغې ته ضرورت نهٔ وو لکه مثلاً د انسان د خپل ژوند راز ددهٔ نه اُوسه پورې پټ پاتې دې چه هغه انسان په ذهن سره نشي معلومولې چه زما څومره ژوند دې. دارنګه د راتلونکې زمانې واقع کېدونکې واقعات او حالات د انسان نه پټ ساتلې شوېدي ځکه هغه واقعات غيب دي چه هغې ته د رسيدلو هيڅ لاره نشته او د هغې مخې ته الله تعالىٰ ديوال وهلې دې، نن د شلمې صدئ سائنس دانان په ډيره عاجزئ سره دا خبره تسليموي چه د دوی علم محدود دې او د کائناتو د کومې حصې چه مونږ ادراك کړې هغه ډيره کمه ده په نسبت د هغه څيزونو چه مونږ ته د هغې علم نشته او انسان لا تر اُوسه پورې ماشوم دې. (فی ظلال القرآن).

(عِلْمِهٖ) نه مراد معلومات د الله تعالىٰ دي، يعنې الله ته چه څهٔ معلوم دي، مخلوق هغه په خپل عِلم کښې پوره نشي راګيرولې.

اُوس د الله د بادشاهئ بيان چه هغه ډيره فراخه ده:

﴿ وَسِعَ كُرْسِيُّهُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ ﴾ کرسئ د الله داسې غټه ده چه دا ټول آسمانونه او زمکې په هغې کښې واچوې نو داسې واړهٔ دي لکه يو بنګړې چه په صحراء کښې واچوې، کرسئ د عرش په مقابله کښې دومره وړه ده لکه يو بنګړې چه په صحراء کښې واچوې. (الحديث) د الله کرسي هم شته. او عبد الله بن عباس رضی الله عنهما فرمائي: "اَ مَوْضِعُ الْقَدَمَيْن (د الله د قدمونو ځائې) دې. وَالْعَرْشُ لَا يُقَدِّرُ قَدْرَهٗ اِلَّا اللّٰهُ. او د عرش اندازه صرف الله پيژني. (وسنده صحيح موقوفا) . او پدې حقائقو الله پوهيږي، مونږ پرې نهٔ پوهيږو. او په روايت د ابن جريرؒ کښې راغلي دي: رسول الله ﷺ فرمايلي دي:

((اُووه آسمانونه په کرسئ کښې داسې دي لکه اُووه روپئ چه په يو ډهال کښې واچولې شي) (وسنده مرسل). او صحيح حديث کښې داسې دي: [مَا السَّمٰوٰتُ السَّبْعُ فِي الْكُرْسِيِّ اِلَّا كَحَلْقَةٍ مُلْقَاةٍ بِاَرْضٍ فَلَاةٍ وَفَضْلُ الْعَرْشِ عَلَى الْكُرْسِيِّ كَفَضْلِ تِلْكَ الْفَلَاةِ عَلٰى تِلْكَ الْحَلْقَةِ]

(فتح الباری ۱۲/٤۱۱ للحافظ وتعليق الطحاوية للالبانی).

(اُووه آسمانونه په کرسئ کښې داسې دي لکه يوه حلقه (بنګړې) چه په يوه دشته زمکه کښې ګوزار شي، او د عرش فضيلت په کرسي باندې داسې دې لکه د دغه دشتې فضيلت په دغه بنګړي باندې).

د بعض سلفو نه روايت دې چه د کرسي نه مراد علم دې، يعنې د الله علم آسمانونه او زمکه راګير کړيدي. لکه چه الله تعالىٰ د ملائکو دعا ذکر کړيده: ﴿ رَبَّنَا وَسِعْتَ كُلَّ شَيْءٍ رَّحْمَةً وَّعِلْمًا ﴾ يعنې اې زمونږ ربه! ستا رحمت او ستا علم هر شې راګير کړيدې. ددې وجه نه علماؤ ته

(گرَاسِی) وئیلے شی، او دا قول ابن جریر الطبریؒ غوره کړیدے۔ او دا ابن عباسؓ ته منسوب دے، لیکن شیخ البانیؒ وائی چه د هغه نه ئے ثبوت صحیح نهٔ دے۔ (الصحیحه)۔

۲- بیضاویؒ وائی : دا هسے تمثیل دے او په حقیقت کښې نهٔ کرسی شته او نهٔ ناسته۔

۳- بعض وائی : دا کنایه ده د ملك او سلطان نه۔ ٤- حسن بصریؒ وائی چه کرسی بعینه عرش ته وائی۔ لیکن دا ټول کمزوری اقوال دی۔ ابن کثیرؒ او صاحب د فتح البیان او قرطبیؒ رد کړیدی۔ صحیح دا ده چه کرسی د الله تعالیٰ د متشابهاتو نه ده او دا په حقیقت کښې موجوده ده۔

بعض علماء وائی : د کرسی نه مراد اقتدارِ اعلیٰ وی نو دلته مقصد دا خبره په ذهن کښې اچول دی چه د الله دومره اعلیٰ اقتدار دے چه په آسمانونو او زمکے او ټولو کائناتو باندے چلیږی او بیا په (وَلَا یَئُوْدُهٗ) سره ددے تائید کوی چه الله پدے لویه نګهبانئ کښې هیڅ جد وجهد ته ضرورت نهٔ لری، او نهٔ هغه ته پدے کښې څهٔ ستړی والے رسیږی بلکه هغه د کامل قدرت والا دے۔ (فی ظلال)۔

لیکن صاحب د (ظلال) د الله تعالیٰ په صفاتو کښې مؤول دے، تاویلات ډیر کوی نو پدے باب کښې ددهٔ قول لره اعتبار نشته۔

اُوس د الله د قوت او د علم بیان دے : ﴿وَلَا یَئُودُهٗ حِفْظُهُمَا﴾ الله د آسمانونو او زمکو حفاظت کوی او هیڅ ستړی والے، ستو مانی او درون والے پرے نهٔ راځی، دومره قوی دے!!۔ او حفاظت پوره علم هم غواړی۔

د آدَ یَؤُوْدُ اَوْدًا معنیٰ ده، د یو شی داسے درنیدل او ګرانیدل چه د هغے سنبالول مشکل شی۔ اَوْدٌ۔ (کوږوالے)۔

که یو بنده د یو شی څوکیداری کوی، نو ستړے شی او الله رب العزت د مخلوق حفاظت او څوکیداری کوی، او پدے کښې نهٔ ستړے کیږی، بس امر ئے کړے دے او ولاړ دی نو ددے حفاظت په الله نهٔ ګرانیږی۔

او بیا د الله علوّ او عظمت : ﴿وَهُوَ الْعَلِیُّ﴾ (همدغه الله اُوچت ذات دے) په هر لحاظ، د ذات په لحاظ، د قدرت په لحاظ، او د مرتبے په لحاظ د مخلوق دپاسه دے هیڅ مخلوق د هغه دپاسه کیدے نهٔ شی۔

د الله دپاره علو (پورته والے) په یو څو قسمه دے۔ (۱) علو ذاتی۔ د الله ذات د ټول مخلوق نه پورته دے، هیڅوك ورته رسیدلے نشی، کائنات د هغه دپاسه نشی کیدے۔ ددے وجه نه الله ته ظاهر وئیلے شی چه د هغه دبره هیڅ شے نشته۔ ددے نه ثابته شوه چه الله په هر مکان کښې نهٔ دے، ځکه چه بیا علو نشی راتلے بلکه هغه د کائناتو دپاسه دے۔

(۲) علو رُتبِیْ۔ د الله مرتبه د هر چا نه اُوچته ده، هیڅ مخلوق دهغه نه پورته نشي کیدے۔

(۳) علو قَهرِی: (زوره ورتیا) یعنی الله په ټولو کائناتو قاهر او زوره ور دے، هیڅوك د مخلوق نه په الله زوره ور نشته۔

پدے جمله کښې د حصر کلمات راغلي دي یعني صرف هغه عَلِی (اُوچت) دے او د بندګانو نه چه څوك هم د علو او عظمت دعویٰ کوی نو الله به هغه ذلیل او سرخکته کوی او په آخرت کښې به د سزا مستحق وی۔

الله فرمائی: ﴿ تِلْكَ الدَّارُ الآخِرَةُ نَجْعَلُهَا لِلَّذِيْنَ لَا يُرِيْدُوْنَ عُلُوًّا فِي الْاَرْضِ وَلَا فَسَاداً ﴾

(د آخرت کور مونږ هغه خلقو دپاره ګرځوو چه په زمکه کښې علو او فساد نهٔ غواړی) (القصص/۸۳)۔

د فرعون په باره کښې فرمائی: ﴿ إِنَّهُ كَانَ عَالِيًا مِنَ الْمُسْرِفِيْنَ ﴾ (الدخان/۳۱)

دا تکبر او لوئی کونکے وو، د زیاتی کونکو نه وو)۔

انسان هم پورته کیدے شی او د عظمت اُوچتو پوړوته رسیدلے شی، لیکن هغه د الله تعالیٰ د حدود او قیودو نه بهر نشی وتلے، او کله چه د مؤمن په زړهٔ کښې دا عقیده په ښهٔ شان کینی نو دا به ئې د عبودیت مقام ته اُورسوی، او د سرکشئ او د لویئ نه به محفوظ شی، او په طبیعت کښې به ئې میلان پیدا شی، او په زړهٔ کښې به ئې د الله خوف او د هغه د عظمت او جلالتِ شان شعور پیدا شی، او د زړهٔ نه به ئې غرور او تکبر اُوځی۔ او د الله په بندګئ کښې به مصروف شی۔ نو پدے شعور کښې عقیده او تصور هم شته او عمل او سلوك هم۔

﴿ اَلْعَظِيْمُ ﴾ لوئی دے په اعتبار د ذات او د صفاتو۔ څکه دومره غټ کائنات ئې پیدا کړی دی، او د قیامت په ورځ به الله تعالیٰ آسمانونه په یو موټی کښې او زمکه په بل موټی کښې راونیسی، بیا به ئې اُوخوزوی او اُوبه وائی: اَنَا الْمَلِكُ اَيْنَ مُلُوْكُ الْاَرْضِ (متفق علیه)۔

(زهٔ بادشاه یم، د زمکے بادشاهان چرته دی) یو موټی کښې ټول کائنات راګیروی، دومره عظمت لری۔ سورة الزمر :۶۷) کښې فرمائی: ﴿ وَالْاَرْضُ جَمِيْعًا قَبْضَتُهُ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَالسَّمٰوٰتُ مَطْوِيّٰتٌ بِيَمِيْنِهٖ ﴾(ټولے زمکے به د قیامت په ورځ د الله تعالیٰ په قبضه کښې وی، او آسمانونه به د هغه په ښی لاس کښې راټاؤ شوی وی)۔ داسے عظمت چه د انسان په زړهٔ کښې واقع شی نو دا د هر خیر سرچشمه ګرځی۔

| لَآ إِكْرَاهَ فِي الدِّينِ قَدْ تَّبَيَّنَ الرُّشْدُ مِنَ الْغَيِّ فَمَنْ يَّكْفُرْ |
|---|
| نشته زور په قبلولو د دین کښې یقیناً ښکاره شوے دے هدایت د گمراهئ نه نو څوك چه انكار اُوكړي |
| بِالطَّاغُوتِ وَيُؤْمِنْ بِاللَّهِ فَقَدِ اسْتَمْسَكَ بِالْعُرْوَةِ الْوُثْقَىٰ لَا |
| د عبادت د غير الله نه او ايمان راوړي په الله نو يقيناً دهٔ منګولے اُولګولے په كړئ مضبوطه چه نشته |
| انْفِصَامَ لَهَا وَاللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴿۲۵۶﴾ |
| ماتيدل د هغے او الله تعالىٰ آوريدونكے، ډير پوهه دے۔ |

**تفسیر** : **مناسبت**: ۱- د الله د تعارف نه روستو دوه ډلے پیدا کیږي، یو منونکي او بل نهٔ منونکي، څوك چه منونكي دي، هغوی ته اصحاب الرشد وائي، او څوك چه دا مسئله نهٔ مني هغوی ته (اصحاب الغی) وائي. د دوارو صفتونه بيانوي.

۲- مخکښې د الله د توحید او د هغهٔ د عظمت او علو بیان وو، د خالق او د مخلوق خپل مینځ کښې تعلق وو، او دا اسلامي نظريهٔ حيات وو، نو اُوس وائي چه د ايمان والو به ددے نظريئے په باره کښې څهٔ طريقهٔ کار وي او ددے نظريئے دعوت به څنګه ورکوي؟.

۳- هر کله چه د الله توحید ښکاره دے او د الله عظمت د هیچا نه پټ نهٔ دے او د هغے پوره شافي بیان ئے اُوکړو چه عذرونه ئے ختم کړل نو اُوس خبر ورکوي چه ددے دلائلو نه روستو د کافر دپاره هیڅ عذر پاتے نهٔ دے چه هغه په کفر باندے باقي پاتے شي مګر دا چه په هغه باندے په ایمان کښې زور اُوکړے شي او دنیا خو دار الابتلاء والامتحان ده او په دین باندے زور او اکراه کولو کښې د ابتلاء او امتحان مقصد خرابیږي نو څکه اکراه نشته. نو دا د فَمَنْ شَآءَ فَلْيُؤْمِنْ په شان آيت دے.
(قفال - قاسمی وفتح البیان).

**شان نزول**: دا آیت د انصارو په باره کښې نازل شوے وو چه خپل بچي ئے یهودو ته ورکړي وو چه هغوی ورله تربیت کولو او دین ئے ورته خودلو، نو هغوی ئے یهودیان کړي وو. بیا یهودیان چه د مدینے نه شړلے کیدل نو هغوی دا بچي بوتلل نو انصارو اُووئیل دا ورسره مونږ نهٔ پریدو، (څکه دا خو زمونږ بچي دي او دوی کافران کړي دي، او هغوی ورسره رضا وو څکه د وړوکوالي نه د هغوی سره عادت شوی وو) نو دا آیت نازل شو چه زور پرے مهٔ کوئ، که پاتے کیږي ښهٔ ده او که نهٔ وي، په دین کښې په چا زور نشته، که په خپله خوښهٔ کفر اختیاروي، د اسلام دهٔ ته هیڅ حاجت نشته.

﴿لَااِکْرَاهَ﴾ (۱) دا نفي په معنیٰ د نهي ده یعنی [لَاتُکْرِهُوْا اَحَدًا بِالدُّخُوْلِ فِی الْاِسْلَامِ] (تاسو په هیڅا باندے د اسلام په قبلولو زور مهٔ کوئ) (۲) ......یا نفي په خپله معنیٰ ده یعنی د الله د طرف نه د اسلام په قبلولو په هیچا زور نشته. د هر چا خپله خوښهٔ ده. که اسلام راوړي او که نهٔ. لکه ددے معنے په مخکښ ربط کښ تفصیل اُوشو.

بیا دا آیتِ کریمه د اسلام د کاملیدو دلیل دے، او پدے کښ ددے خبرے بیان دے چه د دین اسلام په رشتینوالي باندے دلیلونه او ښکاره ثبوتونه موجود دي، پدے وجه ضرورت نشته چه پدے کښ په داخلیدو باندے څوك مجبور کړے شي، که څوك پدے کښ داخلیږي، نو دا به دهغهٔ خوش نصیبي وي چه الله هغهٔ ته د حق د قبلولو توفیق ورکړو، او که د کفر لاره اختیاروي نوګویا کښې الله تعالیٰ د هغه د زړهٔ بصیرت او رڼائي اخستے ده او د هغه په سترګو او غوږونو ئے مهر وهلے دے، نو که داسے انسان د اسلام په قبلولو مجبوره هم کړے شي نو هیڅ فائده به نهٔ وي، ځکه چه د حق د قبلولو تولے لارے ئے بندے شویدي. (ابن کثیر).

## اشکال او د هغے ازاله :

بیا دلته بعض مفسرینو ته دا اشکال کیږي چه قرآن کریم کښ په جهاد او قتال امر راغلے دے چه کافرانو سره جنګ اُوکړئ، ددے نه خو معلومیږي چه په اسلام قبلولو کښ زور او اکراه شته، او دے آیت کښ دي چه په اسلام کښ اکراه نشته. دارنګه اسلام کښ حدود او تعزیرات شته، که چا غلا، زنا اُوکړه، مونځ ئے نهٔ کولو، نو په هغه زور شته او دلته وائي چه په دین کښ په چا زور نشته ؟.

(۱) نو ددے وجه نه بعض مفسرینو دا آیت د قتال په آیتونو سره منسوخ ګرځولے دے. حال دا چه دا یوه ضعیفه رائے ده، لکه روستو راځي. (۲) شعبيؒ، حسن بصريؒ، قتادهؒ او ضحاكؒ وئیلي دي چه دا خاص دے په اهل کتابو پورے چه په هغوی به زور نشي کولے، او د قتال آیتونه د اهل الاوثان (مشرکانو) په باره کښ دي. (فتح البیان)

لیکن پدے تخصیص باندے دلیل نشته. (۳) او بعض نورو د تطبیق دپاره داسے جواب کړیدے چه دین نه مراد د زړهٔ عقیده ده، یعنی د زړهٔ په عقیده کښ په چا زور نشي کیدے ځکه چه هغے ته زور رسیدل ممکن نهٔ دي، او په قتال سره په ظاهر کښ زور وي. دارنګه په حدود او تعزیراتو کښ په ظاهر کښ زور وي، د زړهٔ نه ئے الله خبر وي.

(٤) بعض علماء داسے معنیٰ کوي : [لَا اِکْرَاهَ فِی الدِّیْنِ لِوُضُوْحِهٖ] . په دین کښ په چا زور نشته ځکه چه دین دومره ښکاره دے، او دلائل ئے واضح دي او فائده ئے هرچا ته معلومه ده چه زور ته

پکښې ضرورت نشته، زور ته خو هله ضرورت وي چه يو انسان د دين په فائده نۀ پو هيږي، او د اسلام خوبي هرچا ته معلومه ده، نو اکراه ته ضرورت پاتے نۀ دے۔ نو دا د فَمَنْ شَآءَ فَلْيُؤْمِنْ وَّمَنْ شَآءَ فَلْيَكْفُرْ په شان دے۔

**ليکن** اصل جواب دا دے چه اِکراه او زور په دوه قسمه دے، يو په احکامو کښې دے، او بل په ايمان کښې يعني په دين منلو کښې، نو په دين منلو کښې او ايمان راوړو کښې په چا زور او اکراه نشته، که څوك حق ته راځي او که نۀ، د هر چا خپله خوښه ده۔

الله تعالىٰ انسانانو ته آزادي ورکړيده، او کله ئے چه په خپله خوښه سره حق قبول کړو، او په اسلام کښې داخل شو نو که هغه فسادونه کوي نو هغه باندے به زور کولے شي، که هغه غلا کوي، د هغه نه به لاس پريکولے شي، که زنا اُوکړي او وادۀ شوے وي، نو هغه به رجم کولے شي، دے دپاره چه د مسلمانانو معاشره ددۀ او ددۀ په شان د بد عملو د شر او د فساد نه محفوظه شي۔ دارنګه هغه د اسلام نه فائدے اخلي، او بيا هم په دين عمل نکوي، نو زور به پرے کولے شي۔ دغه شان د وخت د حاکم دا فريضه ده چه که يو شخص دوباره کفر قبول کړي مرتد شي، نو هغه به قتلوي، دے دپاره چه د مسلمانانو معاشره د مذهبي انتشار نه بچ شي۔ دارنګه مرتد د اسلام نه مزے واخستے، او ددے خوبيانے ورته معلومے شوے، او بيا هم د اسلام توهين او سپکاوے کوي، او خلقو ته اسلام سپك ښکاره کوي، ددے نه اوري نو پدے وجه هغه به قتلولے شي۔

او هر چه قتال او جهاد دے نو ددے آيت او د جهادي آيتونو ترمينځ هيڅ تعارض نشته، ځکه چه جهاد ددے دپاره نۀ دے فرض شوے چه خلق په دين اسلام کښې په داخليدو مجبوره کړے شي لکه چه مخکښې ذکر شو چه د چا په زړۀ باندے مهر وهلے شوے وي، د هغه په مجبوره کولو کښې هم هيڅ فائده نۀ وي۔ بلکه جهاد د شر او فساد ختمولو دپاره دے۔

تاريخ ګواه دے چه د اسلام مجاهدينو کله هم يو ښار يا علاقه فتح کړيده نو د هغه ځائے خلق ئے د اسلام په قبلولو مجبوره کړي نۀ دي، بلکه هغوي ته ئے اختيار ورکړيدے چه که هغوي غواړي، نو په خپل دين باندے دِے وي او جزيه دِے ورکوي، او اسلامي حکومت به د هغوي حفاظت کوي۔ د جهاد متعلق د آيتونو د تلاش کولو نه معلوميږي چه د هغے غرض او غايه دا وه چه اسلامي حکومت د اسلام د دشمنانو د سازشونو نه محفوظ کړے شي، د الله دين غالبه وي، او شريعتِ اسلاميه نافذ وي، او که د کوم دشمن د طرف نه څۀ خطره وي، نو د اسلام او د مسلمانانو د طرف نه به دفاعي جنګ کولے شي۔

پدے وجه د بعضو دا خيال چه دا آيت د جهاد په آيتونو سره منسوخ دے، صحيح نۀ دے۔

(قاسمی ۳/۲/ ۶۰ و تیسیر الرحمن)

**فائده** : بعض علماء وائی چه دا آیت د کافرانو او مشرکانو په جواب کښې راغلی دے چه هغوی به دا وئیل چه مونږ کوم کفر او شرك کوو، دا راباندے الله کوی، او د هغه په مشیت ئے کوو، لکه آیت دے : ﴿ وَقَالَ الَّذِينَ أَشْرَكُوا لَوْ شَاءَ اللَّهُ مَا عَبَدْنَا مِنْ دُونِهِ مِنْ شَيْءٍ نَحْنُ وَلَا آبَاؤُنَا وَلَا حَرَّمْنَا مِنْ دُونِهِ مِنْ شَيْءٍ ﴾ (النحل:آیت ۳۵)۔ (که الله غوختلے مونږ او زمونږ پلارانو به د هغه نه سوئی د هیڅ شی عبادت نهٔ کولے، او نهٔ به مونږ د ځان نه څهٔ شے حراmولے)

نو دوی په شرك کولو سره خپل ځانونه د الله د طرف نه مجبور او مقهور گنړل۔ اودا به ئے وئیل چه که زمونږ عقیده او عمل باطل وے، نو د الله په اختیار کښې خو هرڅهٔ دی، هغه به په خپل قدرتِ کامله سره دا ټیك کړی وے۔

نو الله پدے آیت کښې په هغوی رد اُوکړو چه دا عقیده ستاسو غلطه ده۔ په دنیا کښې الله تعالیٰ انسان ته د عقیدے او د رائے آزادی ورکړے ده، که څوك غواړی ایمان دِے راوړی او که څوك غواړی شرك او کفر دِے کوی، الله تعالیٰ پدے معامله کښې فطری جَبر په هیچا نهٔ دے کړے، بلکه د انتخاب او اختیار او د هدایت او گمراهئ آزادی ئے ورکړیده که څوك ایمان راوړی نو د هغے نیکه بدله به مومندهٔ کړی، او که څوك د کفر لاره اختیار کړی نو د هغے سزا به خوری۔ الله تعالیٰ د خپل مشیت او قدرت په زور سره خلق هدایت او گمراهی ته نهٔ راولی، که الله داسے غوختے نو د هغه لاس هیچا نشو نیولے، لیکن دا خبره د هغه د حکمت او د هغه د عدل خلاف وه، بلکه ددے په عکس الله دا طریقه اختیار کړه چه د خپلو نبیانو او رسولانو په ذریعه ئے خلقو ته حق او باطل دواړه واضح کړل، بیا کوم خلق چه د حق لاره اختیاروی نو هغوی ته ئے ددے لارے توفیق آسان کړے، او کوم خلق چه د باطل لاره اختیارول غواړی نو هغوی ته ئے مهلت ورکړے۔

دارنګه پدے آیت کښې مقصد دا هم دے چه رسول الله ﷺ ته تسلی ورکوی، او خلقو ته دا واضحه کوی چه د نبی او د رسول په حیثیت سره د هغه ذمه واری صرف د حق دین په ښهٔ شان سره واضحه کول دی، دا ذمه واری نهٔ ده چه خلق به خامخا په ایمان او هدایت اختیارولو باندے مجبوره کوی۔ (تدبر قرآن بتصرف کثیر)

آیت نه معلومه شوه چه دا صرف د اسلام حقانیت دے چه خلقو ته ئے د فکر آزادی ورکړے، او د انسان د شعور احترام ئے کړے، او د نورو نظامونو په شان نهٔ دے چه خلق په زوره د خپل دین پابند کوی او د هغوی نه خپل اختیار اخلی۔

**تنبیه**: بعض جاهلان ددے آیت نه غلطه فائده اخلی او وائی چه په اسلام کښې اکراه نشته،

پدې وجه د اسلام په نوم چه کومې خبرې د سزا مستحق گرځولې شویدي، څوك مونځ نهٔ كوي دا سزا به ئې وي، او كه څوك غلا كوي، دا سزا به ئې وي وغيره وغيره۔

نو دا مُولیانو د ځان نه جوړې كړيدي۔ ددې مطلب دا جوړېږي چه اسلامي شريعت د حدودو او تعزيراتو نه خالي شريعت دې چه په دې كښې هر شخص ته دهر څهٔ كولو اجازت دې، نهٔ د زنا، نهٔ د تهمت او نهٔ د غلا سزا شته، او نهٔ په فساد، بغاوت او ډاكه باندې تعزير شته۔ حال دا چه په اسلام كښې د حدودو او تعزيراتو يو مستقل نظام شته چه د هغې نافذ كول د دين د واجباتو نه دي۔ كه يو شخص مونځ نهٔ كوي، يا روژې نهٔ نيسي، نو اسلامي حكومت هغه ته هم سزا وركولې شي۔ دا كار د (لَا إِكْرَاهَ فِي الدِّيْنِ) منافي نهٔ دې۔ بلكه اسلام داسې شخص مجبوره كوي چه د اسلام د حدودو او قيودو پابندي به كوي۔ په لاديني نظامونو كښې ډېرې د مذهب په نهٔ منلو او د حكومت په نافرمانيانو باندې ډېر خو سزاگانې او تعزيرات وي ليكن څوك چه د الله نه بغاوت كوي هغه ته ډېره آزادي حاصله وي، دا كوم انصاف او كوم عقل دې!!۔

﴿قَدْ تَبَيَّنَ الرُّشْدُ مِنَ الْغَيِّ﴾ (تَبَيَّن) ښهٔ ښكاره كيدو ته وئيلې شي چه په دليلونو سره وي۔

رُشد هدايت او د رائې حقانيت او مقصد ته رسيدلو ته وئيلې شي۔ او پدې كښې معنیٰ د كاميابۍ پرته وي۔ بعض وائي : په يو كار كښې ښائسته تصرف كول او بيا په هغې باندې باقي پاتې كيدو ته وئيلې شي۔ دلته ترې ايمان او حق مراد دې۔

او (الغي) د غَوَايَة نه دې، معنیٰ ئې ده : سَرهٔ د پوهې نه د حق نه اوړيدل، او تجاوز كول۔ يا په يو شي كښې غلط تصرف كول او په داسې طريقه كول چه د هغې عاقبت خراب وي۔ (نقله البقاعي عن الحرالي في نظم الدرر)۔ دلته ترې كفر او باطل مراد دې۔

او دا جمله د (لَا إِكْرَاهَ) دپاره دليل دې۔ يعني إِكْراه په دين كښې ځكه نشته چه حق او باطل، هدايت او گمراهي ديو بل نه جدا جدا معلوم شويدي، هر عقلمند پيژني چه اسلام سراسر خير دې او ددې نه سيوئ ټول شر دې ځكه چه دا خبره په دلائلو ثابته ده، نو اكراه ته ضرورت پاتې نهٔ دې۔ ځكه چه اكراه خو ديته وائي چه په يو داسې شي باندې په چا زور كول چه هغه طبيعت بد گڼړي، او په هغې كښې هيڅ مصلحت نهٔ وي۔

(نظم الدرر للبقاعي ۱۴/۶ ۱)

هركله چه حق د باطل نه او هدايت د گمراهۍ نه ښكاره جدا شويدې نو اُوس د خلقو تقسيم بيانوي چه څوك رُشد والا دي، او څوك غَوايت او گمراهۍ والا، نو بعض هدايت قبلوي او د الله بندگي كوي، او دا اصحاب الرشد دي، او بعض گمراهي اختياروي، او د هغه سره شريكان

جوړوي، نو دا ناکام او اصحاب النّی دي.

﴿ فَمَنْ يَّكْفُرْ بِالطَّاغُوتِ وَيُؤْمِنْ بِاللّٰهِ ﴾

هدایت او کامیابی هغه چا ته حاصلیږي چه په هغه کښې دوه شرطونه موجود شي :

(۱) کفر بالطاغوت. (په طاغوت باندې کفر کول). (۲) ایمان بالله. کفر بالطاغوت ئې مخکښې راوړو ځکه چه دا په منزله د تخلیه (صفائي) دې، او ایمان په منزله د تحلیه (ښائست) دې. اول به ځان صفا کړې، زړه به د غیر الله د عبادت او د هغه د تعظیم نه صفا کړې، بیا به ئې په ایمان باندې ښائسته کړې. او ددې مثال بعینه [لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ] کلمه ده.

لَا اِلٰـهَ کښې کفر بالطاغوت دې او (اِلَّا اللّٰهُ) کښې ایمان بالله دې. او د دواړو نه بغیر ایمان نشي راتلې. که یو انسان کښې کفر بالطاغوت راغلو، لیکن د الله عبادت هم نۀ کوي، نو دا دهري دې، د خپل خواهش تابع دې. او که یو انسان په الله ایمان لري، او د هغه عبادت هم کوي، لیکن کفر بالطاغوت نۀ کوي، مخلوق ته او باباګانو او بتانو ته ئې خوله ورانه کړې وي، او د طاغوت ملګرې وي، د مشرکانو سره ئې د زړۀ تعلق او محبت وي، او د الله د دشمنانو سره دشمني نۀ ساتي، نو دا مشرك دې، ددۀ ایمان هم قبول نۀ دې.

الله تعالیٰ په سورة النحل (۳٦) آیت کښې فرمائي : ﴿ وَلَقَدْ بَعَثْنَا فِيْ كُلِّ اُمَّةٍ رَّسُوْلًا اَنِ اعْبُدُوا اللّٰهَ وَاجْتَنِبُوا الطَّاغُوْتَ ﴾ (مونږ په هر امت کښې انبیاء ددې دپاره رالیږلي چه د الله بندګي اُوکړئ، او د طاغوت نه ځان اُوساتئ). په سورة الزمر (۱۷) آیت کښې دي :

﴿ وَالَّذِيْنَ اجْتَنَبُوا الطَّاغُوْتَ اَنْ يَّعْبُدُوْهَا وَاَنَابُوْا اِلَى اللّٰهِ لَهُمُ الْبُشْرٰى ﴾.

(هغه کسان چه د طاغوت د عبادت نه ئې ځان اُوساتلو او الله ته ئې په عبادت سره رجوع اُوکړه، نو د دوی دپاره زیرې او خوشحالي ده).

## د طاغوت وضاحت

طَاغُوْتَ: مفرد هم دې، او جمع هم دې، مذکر او مؤنث هم دې لکه د نورو مصادرو په شان. کله به ورته ضمیر د جمع راجع وي، لکه روستو (اَوْلِيٰـاؤُهُـمُ الطَّاغُوْتُ يُخْرِجُوْنَهُمْ) . او کله ضمیر د مؤنث لکه ﴿ وَالَّذِيْنَ اجْتَنَبُوا الطَّاغُوْتَ اَنْ يَّعْبُدُوْهَا ﴾ او کله ضمیر د مفرد لکه سورة النساء (٦۰) کښې دي : ﴿ وَقَدْ اُمِرُوْا اَنْ يَّكْفُرُوْا بِهٖ ﴾.

طاغوت : د طغیان نه دې، په معنیٰ د حد نه تیروتلو او سرکشئ کولو سره دې. او دا په اصل کښې د مصدر صیغه ده، د رهبوت او رحموت په شان په اصل کښې (طَغَيُوْتٌ) دې، بیا په کښې قلب مکاني شوېدې او یاء په الف بدله شوېده. (ابن عاشور).

طاغوت لفظ په قرآن کریم کښې اته (۸) کرته ذکر دے۔ د طاغوت لفظی معنیٰ ده ذُوْ طُغْیَان۔ یعنی سرکشئ او گمراهئ والا۔ او دے نه اکثر بدان خلق مراد وی۔

(۱) صاحب د التسهیل وائی: اِسْمٌ لِکُلِّ مَنْ یُضِلُّ النَّاسَ مِنَ الشَّیَاطِیْنِ وَبَنِیْ آدَمَ ۔ (التسهیل ۱/۱۳٦)

یعنی طاغوت نوم دے د هر هغه شخص چه خلق گمراه کوی، که هغه شیطانان وی، او که انسانان۔ خلقو ته غلطې لارې، غلطې عقیدې وربښائی، غلط تقریرونه کوی، انگریزی قانون په خلقو نافذوی، نو ډیر انسانان په دې زمانه کښې د خلقو دپاره طَوَاغِیْت دی۔

(۲) د طاغوت نه مراد اَوْثَان او بتان دی ځکه چه مسلمانانو به بت ته طَاغِیَه وئیلو، لکه حدیث کښې دی: [کَانُوْا یُهِلُّوْنَ لِمَنَاةَ الطَّاغِیَةِ] (ابن عاشور)۔

(۳) ساحر او کاهن ته هم طاغوت وئیلے شی۔

(٤) [کُلُّ رَأْسٍ فِی الضَّلَالِ وَکُلُّ مَا عُبِدَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ]۔ (فتح البیان)

هر هغه څوک چه په گمراهئ کښې مشر وی، او هر هغه شے چه د هغې د الله تعالیٰ نه سِوئ عبادت کیدے شی۔ پدې ټولو باندې د طاغوت اطلاق کیږی۔

بیا دلته دا خبره زدهٔ کړه چه طاغوت دوه قسمه دے: (۱) کله به یو انسان خپله گمراه وی او بل ته به د گمراهئ لارې وربښائی، د گمراهئ دعوت به کوی۔

(۲) او کله به خپله انسان گمراه نهٔ وی لیکن د بل دپاره به سبب د گمراهئ گرځیدلے وی۔ او خلقو به په هغه باندې ځان گمراه کړے وی، لکه شیخ عبد القادر جیلانی رحمة الله علیه خپله ښهٔ عالِم وو، لیکن مشرکان په هغه باندې گمراه شو، او د هغه عبادت ئې شروع کړو، غوث اعظم ورته وائی۔ نو دا د خلقو دپاره طاغوت اُوګرځیدو۔

دغه شان عیسیٰ علیه السلام د الله نبی دے، لیکن نصاراؤ ورته اِلٰه اُووئیلو، هغوی پرے گمراه شو، لکه الله تعالیٰ په قرآن کښې فرمائی: ﴿وَجَعَلَ مِنْهُمُ الْقِرَدَةَ وَالْخَنَازِیْرَ وَعَبَدَ الطَّاغُوْتَ﴾

(یعنی دوی نه الله تعالیٰ شادوګان، خنزیران او د طاغوت عبادت کونکی جوړ کړی وو) نو یهودو خو د بتانو عبادت نهٔ وو کړے، بلکه هغوی د عزیر علیه السلام عبادت کولو، نصاراؤ د عیسیٰ علیه السلام او د مریم عبادت کړے، نهٔ د بتانو۔ او بعض یهودو پکښې د سخی عبادت کړے۔ نو اُوګوره دلته ئې د پیغمبرانو عبادت ته د طاغوت عبادت اُووئیلو۔

(۵) او حافظ ابن کثیرؒ په سورة النساء کښې د طاغوت معنیٰ کوی: [اَنْ یَّتَحَاکَمُوْا اِلَی الطَّاغُوْتِ) اَیْ ما سِوَی الْکِتَابِ وَالسُّنَّةِ] یعنی د قرآن او د سنت نه ماسِوئ چه کوم قوانینو ته څوك فیصله وروړی، نو دا طاغوت ته فیصله وړی، نو ټول وضعی قوانین په طاغوت کښې داخل دی۔ (ابن کثیر ۲/۳٤٦)

(٦) شیخ الاسلام ابن القیمؒ د طاغوت یو عام تعریف ذکر کوی چه ډیر جامع دے، هغه فرمائی :
[فَالطَّاغُوْتُ: كُلُّ مَا تَجَاوَزَ بِهِ الْعَبْدُ حَدَّهُ مِنْ مَعْبُوْدٍ اَوْمَتْبُوْعٍ اَوْ مُطَاعٍ فَطَاغُوْتُ كُلِّ قَوْمٍ مَنْ يَتَحَاكَمُوْنَ اِلَيْهِ غَيْرَ اللهِ وَرَسُوْلِهِ اَوْ يَعْبُدُوْنَهُ مِنْ دُوْنِ اللهِ اَوْ يَتْبَعُوْنَهُ عَلٰى غَيْرِ بَصِيْرَةٍ مِنَ اللهِ اَوْ يُطِيْعُوْنَهُ فِيْمَا لَا يَعْلَمُوْنَ اَنَّهُ طَاعَةٌ لِلّٰهِ فَهٰذِهِ طَوَاغِيْتُ الْعَالَمِ] ...... [اعلام الموقعین ۱/ ۵۰] الولاء والبراء ص (۲۲) لسعید بن وهف القحطان)
(طاغوت هرهغه شی ته وائی چه د هغے په سبب بنده د حد نه تیر وځی، که هغه معبود وی او که متبوع، او که هغه شخص وی چه د هغه طاعت کیدے شی۔ نو د هر قوم طاغوت هغه څوك دے چه د الله او د رسول نه سوئ هغه ته فیصله وړی (۲) یا د الله نه سوئ د هغه عبادت کوی (۳) یا په غیر د بصیرت او دلیل نه د هغه تابعداری کوی۔ (٤) یا د یو شی په باره کښې ورته معلومه نهٔ وی چه دا د الله طاعت دے، او په هغے کښې د هغه طاعت کوی، نو دا د عالَم دپاره طواغیت دی)۔ یعنی اکثر عالَم پدے طواغیتو باندے گمراه شویدے۔
نو بناء پدے تعریف د مقلدینو د دین د امامانو تقلید (یعنی بے دلیله تابعداری) کول طاغوت دے ځکه چه دوی دا وائی چه کیدے شی چه زمونږ د امام سره به دلیل وی، هغه به څهٔ جواب کړے وی، نو بس په ړندو سترگو تقلید شروع کړی، یو شے د الله طاعت نهٔ وی، او انسان ورته په شك باندے طاعت وائی لکه دا خبره په مسائلو کښې معلومیږی۔
دغه شان شیعه گان د علیؓ په وجه گمراه شو۔ هغه ته اِلٰه وائی۔ او د هغه نه مددونه غواړی۔
دغه شان وضعی او انگریزی قوانین او لیډران او تنظیمونه چه انسان د حق نه اړوی۔ دارنگه د الله نه سوئ د باباگانو د قبرونو عبادت کول او د هغوی په نوم نذر او منختے کول دا ټول طواغیت دی۔ بس هر هغه څوك چه تا د حق نه اړوی نو دا ستا دپاره طاغوت دے۔ که هغه عالِم وی او که مؤسسه او تنظیم وی، او که لیډر او قوم وی، او که معاشره او رواج وی، او که ښځه او اولاد وی۔
داسے پیر او مُلا او لیډر به ځان له مُطَاع او مَتْبُوْع نهٔ جوړوے چه د هغه خبره بغیر د دلیل نه د کتاب او سنت په خلاف نیسے، نو ددے طواغیتو نه انکار کول ایمان دے۔ نو دا ډیر ضروری شرط دے چه دے ته ډیر خلق متوجه نهٔ دی۔ جمهوریت هم په طاغوت کښې داخل دے۔
﴿فَقَدِ اسْتَمْسَكَ بِالْعُرْوَةِ الْوُثْقٰى﴾ اِسْتِمْسَاكْ : مضبوط رانیول او منگولے لگولو ته وئیلے شی۔
یعنی که چا کښې په الله ایمان او په طاغوت کفر راغلو نو دا انسان کامیاب شو، ټول انسانان په کنده کښې پراتهٔ دی، او دا د کندے نه را اُووتو او مضبوطے کړئ ته ئے گوتے واچولے چه نجات به ورله ورکړی۔
کړئ ئے ځکه ذکر کړه چه ددے نه لاس زر نهٔ وځی، که په انسان ډیر زور اُوکړے شی نو لاس

پکښې کرد تاوېږي خو زر نهٔ وځي، او د هسې لرګي او اُوسپنې نه لاس زر اُوځي. او پدې کښې اشاره ده چه کله حق ديو انسان زړهٔ ته داخل شي، نو هغه بيرته ايمان زر نهٔ پرېدي لکه دا په حديث د بخاري کښې راغلې ده. [وَكَذَلِكَ الْاِيْمَانُ اِذَا خَالَطَ بَشَاشَتُهُ الْقُلُوْبَ] مګر که انسان کښې بے ادبي شروع شي، او د ايمان غم نهٔ کوي نو بيا ترې الله تعالىٰ ايمان اخلي. والعياذ بالله.

بيا دا کړئ مضبوطه ده، د اُوسپنې کړئ ده، د لرګي او د تارونو نهٔ ده. بيا کله د اُوسپنې کړئ وي، خو زنګونو وهلې وي، زر ماتېږي نو د هغې زيات مضبوطوالے بيانوي چه (لَا انْفِصَامَ لَهَا) د هغې ماتيدل نشته. دغه شان ايمان چه زړهٔ ته داخل شي نو وخت په وخت مضبوطيږي او نهٔ ماتيږي.

دلته د هغه مؤمن چه په ايمان باندې مضبوط ولاړ وي، تشبيه ورکړې شويده د هغه سړي سره چه هغه په درياب کښې يا په کنده کښې يو مضبوطې کړئ ته ګوتې اچولې وي چه د هغې په سبب نجات مونده کړي، نو دغه شان ايمان والا به د هلاکت د کندې نه او په دنيا او آخرت کښې د فتنو د کندو نه د ايمان په سبب رابهر شي. او الله به ئې نهٔ ګمراه کوي. او اشاره ده چه دا ايمان به مؤمن ته په دنيا کښې هم فائده ورکړي چه دا به په حق او بصيرت باندې روان وي.

زمخشري په کشاف کښې معنىٰ کوي: يعني مؤمن مضبوط يقين والا وي، زړهٔ ئې په دنيا کښې پريشانه نهٔ وي نو په آخرت کښې به هم د هلاکت د کندو نه محفوظ وي لکه څنګه چه کړئ ته لاس اچونکے نجات والا وي. (ابن عاشور)

(الْعُرْوَةِ الْوُثْقٰى) دا د مثال په طور وئيلے شويدے خو مفسرينو ددې مصداقات هم ذکر کړيدي، چا وئيلي دي چه ددې نه مراد (لَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ) کلمه ده.

بعض وائي اسلام دے. خو مصداق د ټولو يو دے.

او العروة الوثقىٰ پوخ يقين ته هم وئيلے شي چه چا کښې د هر قسم طاغوت نه انکار او د الله يو اخې په اخلاص سره بندګي راشي، نو هغه ته به الله پوخ يقين ورکوي چه نهٔ به ګمراه کيږي.

او دا د عبد الله بن سلام ﷺ د خوب نه معلوميږي چه هغه وائي ما خوب اُوليدو چه زهٔ په يو شين باغ کښې يم چه مينځ کښې ئې د اُوسپنې يو ستنه وه چه بيخ ئې په زمکه کښې وو او سر په آسمان کښې وو او په سر کښې ئې کړئ وه، ما ته اُووئيلے شو اُوخيژه. ما اُووئيل: نهٔ شم ختلے، يو شخص د روستو نه زما جامې راپورته کړې، نو زهٔ اُوختلم او هغه کړئ مې راونيوله. چه راپاڅيدم هغه زما په لاس کښې وه. نبي ﷺ راته تعبير داسې راکړو چه د باغ نه مراد اسلام دے، او د ستنې نه مراد د اسلام ستنه ده، او د کړئ نه مراد (الْعُرْوَةِ الْوُثْقٰى) پوخ يقين دے. ته به په اسلام ئې تردې چه پدې به مړ شې. (متفق عليه).

(اَلْوُثْقٰی) د اَوْثَق نه دۓ په معنیٰ د ښهٔ مضبوط او کلك سره۔
(انفصام) هغه ماتیدلو ته وائی چه جدا جدا نشی، او قَصْم په قاف سره، هغه ماتیدو ته وائی چه په هغے سره یو شے جدا جدا برخے شی۔
**فائده** : د آیت نه معلومه شوه چه د باطل نخه دا ده چه خلق به ترے اَوړی، او د حق نخه دا ده چه خلق بـه تـرے نهٔ اَوړی، کـلـه چـه د زړهٔ کومی ته کوز شی، او په پوخ یقین سره ورته انسان راداخـل شی، او کـوم خـلـق چـه مرتد کیږی، نو هغه ایمان او حق سَم زدهٔ کړے نهٔ وی، او یقین ئے پرے نهٔ وی راغلے، نو هغهٔ څکه اَوړی۔ بعض مُلیان د یهودو په شان د خلقو د حق نه د اَړولو دپاره کـوشش کـوی، کتـابونو کښ لیکی چه زهٔ څنګه مقلد شوم۔ مطلب ئے دا وی چه زهٔ مخکښ د قرآن او حدیث والا اُوم، بیا راته هغه بد ښکاره شو او په تقلید کښ راته نجات ښکاره شو۔ حال دا چه هغه د اول نه په دهوکه راغلے وی او زړهٔ ته ئے حق نهٔ وی ننوتے، یا د دنیاوی اغراضو دپاره ئے ظاهر کښ حق قبول کړے وی۔ فَاِلَی اللّٰهِ الْمُشْتَکیٰ۔
﴿وَاللّٰهُ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ﴾ دا دوه صفتونه ئے راوړل څکه چه کفر بالطاغوت او ایمان بالله باندے کله تـلـفـظ کیـږی، نـو الله د هـغـے آوریـدونـکے دے، او ایمان پـه زړهٔ کـښ وی، نو پـه هغے الله پوهـه دے۔(قرطبیؒ)
۲- سَمِيْعٌ لِدُعَائِكَ اِيَّاهُمْ اِلَى الْاِسْلَامِ (الله آوری ستا دعوت دوی لره اسلام ته)۔ او عَلِيْمٌ بِحِرْصِكَ عَلٰی اِيْمَانِهِمْ ۔ پو هه دے په حرص ستا په ایمان د دوی)۔ (بغویؒ)۔
۳- الله آوری کلمه د شهادت د مؤمن او کلمه د کفر د کافر۔ او پو هه دے په پاکه عقیده د مؤمن او په پلیته عقیده د کافر۔ (اللباب، والنیسابوری)۔

اَللّٰهُ وَلِيُّ الَّذِيْنَ آمَنُوْا يُخْرِجُهُمْ مِّنَ الظُّلُمَاتِ اِلَى النُّوْرِ وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا اَوْلِيَآؤُهُمُ

الله دوست دے د ایمان والو راوباسی دوی لره د تیارو نه رڼا ته او هغه کسان چه کفر ئے کړے دے دوستان د دوی

الطَّاغُوْتُ يُخْرِجُوْنَهُمْ مِّنَ النُّوْرِ اِلَى الظُّلُمَاتِ اُولٰٓئِكَ اَصْحَابُ النَّارِ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿۲۵۷﴾

شیطانان دی اُوباسی دوی لره د رڼا نه تیارو طرفته همدا کسان دوی اَور والا دی، دوی به پدے کښ همیشه وی۔

**تفسیر** : پدے آیت کښ د مـخـکـنـی ایـمـان نتیجه او فائده ذکر کوی چه څوك په الله تعالیٰ صحیح ایمان راوړی، نو د هغے ډیرے فائدے دی، لکه چه مخکښ مونږ ذکر کړے۔
یوه فائده ئے دا ده چه الله تعالیٰ به ئے دوست جوړ شی، د الله تعالیٰ ولایت انسان ته حاصلیږی۔ او

کله ئې چه دوست شو، نو د هر قسم تیَارو نه به ئې رنړا طرفته راوباسي۔ او سورت کښې ایمان ته دعوت دے نو ځکه ئې دا لفظ راوړو۔

﴿ اَللّٰهُ وَلِيُّ الَّذِيْنَ آمَنُوْا ﴾ مفسرینو د ولي ډیرے معانی ذکر کړیدی (١) په معنیٰ د حافظ۔

(٢) او ناصر سره، یعني الله به ئې حفاظت اُوکړي او هغه به ورسره مدد کوي (قاسمیؒ)۔

(٣) محبت کونکے۔ (٤) متولي (واکدار)۔ یعني الله به ورسره محبت هم کوي او د دوی د کارونو واکدار به وي، سنبالښت به ئې کوي۔

﴿ يُخْرِجُهُمْ مِنَ الظُّلُمَاتِ إِلَى النُّوْرِ ﴾

## د ظلمات او د نور ډیر مصداقات دي:

١ – ظُلُمَاتِ الْكُفْرِ وَالشِّرْكِ إِلَى نُوْرِ الْإِيْمَانِ وَالتَّوْحِيْدِ۔ د کفر د تیَارونه به ئې رنړا د توحید او ایمان ته رابهر کړي۔ واقديؒ وئیلي دي چه په قرآن کښې د سورة الانعام د اول آیت نه سویٰ د ظلمات او نور نه مراد کفر او ایمان وي۔ (آلوسیؒ، بغویؒ)۔

(٢) ظُلُمَاتِ الشَّكِّ وَالشُّبُهَاتِ إِلَى نُوْرِ الْيَقِيْنِ۔ د شك او شبهاتو د تیَارو نه به ئې رنړا د یقین ته راوباسي او وخت په وخت به ئې یقین مضبو طیږي۔

(٣) مِنْ ظُلُمَاتِ الْبِدْعَةِ إِلَى نُوْرِ السُّنَّةِ۔ د بدعت د تیَارو نه به ئې د سنت رنړا ته راوباسي۔ (قرطبیؒ)

(٤) ظُلُمَاتِ الْمَعْصِيَةِ إِلَى نُوْرِ الطَّاعَةِ۔

د ګناهونو د تیَارو نه به ئې رنړا د طاعت او عبادت ته راوباسي۔

(٥) ظُلُمَاتِ التَّعَلُّقِ بِغَيْرِ اللّٰهِ إِلَى نُوْرِ التَّعَلُّقِ بِاللّٰهِ۔ د غیر الله د تعلق د تیَارو نه به ئې د الله د تعلق رنړا ته راوباسي۔ (٦) مِنْ ظُلْمَةِ الدُّنْيَا، ظُلْمَةِ الْقَبْرِ، ظُلْمَةِ الصِّرَاطِ إِلَى الْجَنَّةِ۔

یعني د دنیا د تیَارو، د قبر د تیارو، د پُل صراط د تیَارو نه ئې جنت طرف ته راوباسي چه هلته سراسر رنړاګانے دي۔ (بحر العلوم للسمرقندي ١/٢١٢)

او ددے نه معلومه شوه چه د مؤمن سړي څومره وخت په ایمان کښې تیریږي، نو دهغه په ایمان کښې ترقي او رنړا راځي، او د خلقو د تیَارو نه خبریږي، او په ایمان کښې ئې صفائي پیدا کیږي، شکونه ئې ختمیږي۔ الله فرمائي: ﴿ وَيَزِيْدُ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اهْتَدَوْا هُدًى ﴾ (مریم/٧٦)

(الله به د ایمان او هدایت والو هدایت زیاتوي)۔

دلته بعض خلق **سوال** کوي چه ټول مؤمنان خو اول د کفر په تیَارو کښې نهٔ وو نو څنګه ئې راوباسي؟ بیا ددے **جواب** کوي چه د آمَنُوْا نه مراد اراده د ایمان ده۔

○ یا بعض مؤمنان مراد دي چه اول په کفر او شرك کښې وو۔ ○ یا ټول مؤمنان مراد دي خود

ظلمات نه مراد شکوك او شبهات دي ځکه چه دا هر چا ته راځي. O لیکن صحیح دا ده چه دے سوال ته ضرورت نشته، وجه دا ده چه هر انسان د الله د توفیق نه په غیر په تیارهٔ کښې دے.

علامه نیسابورتي فرمائي: [فَإِنَّ الْعَبْدَ لَوْ خَلَا عَنْ تَوْفِيقِ اللهِ لَحْظَةً لَوَقَعَ فِي ظُلُمَاتِ الْجَهَالَاتِ وَالضَّلَالَاتِ فَصَارَ تَوْفِيقُهُ سَبَبًا لِدَفْعِ تِلْكَ الظُّلُمَاتِ عَنْهُ].

(دیو بنده نه که د الله تعالیٰ توفیق لږ ساعت دپاره لرے شو نو په ډیرو تیارو د جهالتونو او ګمراهیانو کښې به واقع شي، نو د الله توفیق، ددهٔ نه د تیارو د دفع کیدو سبب دے). نو د ایمان په سبب انسان ته د الله توفیق ملاویږي.

**فائده**: ظلمات ئے جمع راوړه او نُور ئے مفرد، ځکه چه تیارے او د هغے اسباب او اقسام او تعلقات ډیر دي، د شرك، د شبهاتو، د شکونو، د بدعات او ګناهونو تیارے دي. او رڼرا ایمان او حق دے او دا یو وي.

**فائده**: په دواړو ځایونو کښې (يُخْرِجُونَهُمْ) مضارع راغلے ځکه چه د ایمان والو ایمان او د کافرانو ګمراهي به ورځ په ورځ زیاتیږي، او مضارع هم په استمرار تجددي باندے دلالت کوي. (ابن عاشورؒ).

﴿وَالَّذِينَ كَفَرُوا أَوْلِيَاؤُهُمُ الطَّاغُوتُ﴾ یعني کومو کسانو چه په الله باندے کفر کړے دے او د هغه سره ئے شریکان جوړ کړي دي، نو د هغوي دوست شیطان دے.

پدے کښې د اصحاب الغي د نتیجے بیان دے. چه څوك كفر اختیاروي نو الله به پرے شیطان مسلط کوي، او هغه به ئے په تیارو کښې باقي پریدي، دا د کفر ضرر شو. چه غلط خلق به ئے دوستان وي. دطاغوت نه مراد دلته شیطان او د هغه ملګري دي چه خلق ګمراهۍ ته دعوت کوي. لکه حُيَي بن أخطب، كعب بن الاشرف او نَضْر بن الحارث وغیره د ګمراهۍ مشران دي. طاغوت دلته جمع ده ځکه روستو (يُخْرِجُونَهُمْ) کښې د جمع ضمیر ورته راجع دے.

﴿يُخْرِجُونَهُمْ مِنَ النُّورِ إِلَى الظُّلُمَاتِ﴾ یعني دوي په وسوسو سره خپل دوستان د توحید، د ایمان او یقین او د انبیاؤ د دعوت د رڼرا نه ډیرو تیارو ته راوباسي، او د رڼرا نه ئے منع کوي چه خوا له مهٔ ورځۍ. دلته **سوال** دے چه کافران خو په رڼرا کښې نهٔ دي نو څنګه به ئے راوباسي؟.

(۱) **جواب** دا دے چه د کافرانو سره هم د فطرت رڼرا وه ځکه هر انسان په فطرت د اسلام پیدا کیږي، روستو بیا کفر اختیار کړي.

(۲) یا د نور نه مراد (نُوْرُ الْبَيِّنَاتِ الَّتِي يُشَاهِدُوْنَهَا مِنْ جِهَةِ النَّبِيِّ ﷺ)

(د معجزاتو هغه رڼرا ده چه کوم ته دوي ورنزدے شوي دي چه د نبي ﷺ د طرف نه به ئے

لیدله)، لکه دنیا کښې قرآن او سنت موجود دی، نو دا رڼا ده. کافران ورته رانژدے شوی دی، دوی قادر دی چه ځان ددے په وجه رڼا ته راولی. لیکن دوی ددے رڼا نه ځان اُوویستلو او تیارو ته ورغلل. (قاسمی).

(۳) بعض وائی: ددے نه مراد د اهل کتابو مؤمنان دی چه دوی د نبی ﷺ نه مخکښې په نبی ﷺ ایمان لرلو، لیکن کله چه راغلو، بیا ئے ترے انکار شروع کړو. لیکن عموم غوره دے. نو بعض وائی چه د اخراج (راویستلو) نه مراد د توحید د رڼا نه ځانونه منع کول دی. نو دا داسے دی لکه ځان د رڼا نه ویستل. نو ځکه ئے اخراج لفظ ذکر کړیدے. (بغوی).

﴿ أُولَٰئِكَ أَصْحَابُ النَّارِ ﴾ یعنی دنیا کښې چه تیارو کښې روان وی نو د جهنم تیارو ته به ځی. او دنیا کښې چه رڼا کښې روان وی نو د جنت رڼا ته به ورځی. دا اعمال د هغۀ ځایونو سره تړل شوی دی.

ooooooooo

| |
|---|
| أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِي حَاجَّ إِبْرَاهِيمَ فِي رَبِّهِ أَنْ |
| آیا ته نهٔ گورې هغه کس ته چه جګړه ئې کړې وه د ابراهیم ﷺ سره په باره د رب د هغهٔ کښې پدې وجه |
| آتَاهُ اللَّهُ الْمُلْكَ إِذْ قَالَ إِبْرَاهِيمُ رَبِّيَ الَّذِي يُحْيِي وَيُمِيتُ |
| چه ورکړې وه الله هغه ته بادشاهي کله چه اُووئیل ابراهیم زما رب هغه دې چه ژوندي کول کوي او مړهٔ کول کوي |
| قَالَ أَنَا أُحْيِي وَأُمِيتُ قَالَ إِبْرَاهِيمُ فَإِنَّ اللَّهَ يَأْتِي بِالشَّمْسِ مِنَ الْمَشْرِقِ |
| هغهٔ اُووئیل: زهٔ هم ژوندي کول کوم او مړهٔ کول کوم اُووئیل ابراهیم: یقیناً الله راولي نمر د مشرق نه |
| فَأْتِ بِهَا مِنَ الْمَغْرِبِ فَبُهِتَ الَّذِي كَفَرَ وَاللَّهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ ﴿۲۵۸﴾ |
| نو ته ئې راوله د مغرب نه. بس حیران پاتې شو هغه کس چه کفر ئې کړې وو او الله لاره نهٔ ښائي قوم ظالمانو ته. |

**تفسیر: ربط**: پدې آیتونو کښې الله تعالیٰ دا بیانوي چه څنګه الله تعالیٰ د خپلو اولیاؤ نه شکونه او شبهات اړوي، او یقین ئې مضبوطوي، او ګمراهان او کافران څنګه په شکونو کښې حیران پریدي، نو ددې دپاره دوه مثالونه دوه واقعات راوړي، یو د ابراهیم ﷺ د دشمن (نمرود بادشاه) چه دا مثال د اصحاب الغي او اصحاب الرشد دواړو سره متعلق دې، چه نمرود ګمراه انسان وو، په الله باندې ئې صحیح ایمان نهٔ وو راوړې، او د طاغوت ملګرې وو، نو پدې وجه په تیارهٔ کښې پاتې شو. د شیطان د وسوسې او د نفس د فساد په وجه د نُور او د رڼرا او د هغه خبرو نه هم منکر شو چه هر عقل والا ئې مني، او هغهٔ عقل تقاضا ده. نو په نورو تیارو کښې ورننوتو او حیران پاتې شو. بیا ئې عقل هم کار نهٔ کولو. او ابراهیم ﷺ د رُشد او هدایت والا وو، الله د هغه ولي او دوست او مددګار وو، نو څکه پرې غالب شو.

او دویم هغه سړې دې چه هغه صاحب الرُشد دې، نیک انسان دې، په معمولي شان تیارهٔ کښې وو، نو الله د هغې نه را اُوویستو او ښهٔ رڼرا ئې ورله ورکړه، یقین ئې هم مضبوط شو.

بیا د ابراهیم ﷺ دریمه واقعه راوړي. چه په هغې کښې هم د هغه د ایمان ترقي بیانیږي چه هغه ایمان بالغیب لرلو، لیکن غوختل ئې چه زهٔ ایمان بالشهادة ته ورسیږم، اعلیٰ درجه د ایمان ته. نو الله رب العالمین هغه له د ایمان اعلیٰ درجې ته اُورسولو، او دا قانون دې چه بنده به د ایمان په ادنیٰ درجه کښې وي، نو الله به ئې وخت په وخت په ایمان کښې طاقت پیدا کوي، او د ایمان اعلیٰ درجې ته به ئې اُورسوي. درې مثالونه راوړي.

دا ددے آیتونو د مخکښې سره ربط هم شو ۔او پدے واقعاتو کښې قریشو کافرانو ته د بعث بعد الموت عقیده هم وربښائی چه الله په مړی راژوندی کولو قادر دے، اُوګورئ دنیا کښې ئے مړی راژوندی کړی دی۔

دا واقعه د ابراهیم ﷺ د نمرود سره راغلے ده۔

قتادة فرمائی: په ټوله دنیا باندے څلورو کسانو بادشاهی کړیده۔ دوه مسلمانانو، سلیمان او ذو القرنین۔ او دوه کافرانو، بختنصر چه دا د بنی اسرائیلو نه وو۔ او نمرود چه دا د ابراهیم ﷺ په زمانه کښې وو۔ (ابن کثیر ۱/ ۶۸۶)

نمرود (په دال او ذال دواړو سره وئیلے شی) دا نمرود بن فالخ بن عابر چه د حام بن نوح د اولادو نه وو۔ بعض مفسرین وائی: نمرود بن کوش بن کنعان بن سام بن نوح علیه السلام وو۔ دا اولنے هغه بادشاه وو چه تاج ئے په خپل سر اینبے وو، او په زمکه کښې ئے تکبر شروع کړے وو، او د ربوبیت دعوئ ئے کړے وه، او دا د زنا نه پیدا وو۔ دا د بابل (عراق) بادشاه وو، او د بابل ښار دهٔ جوړ کړے او دهٔ په بابل کښې یوه لویه ماڼئ جوړه کړے وه۔ (فتح البیان ۲/ ۱۰۲ والتنویر لابن عاشور ۱/ ۵۰۵)۔

دا کافر انسان وو، او په تکبر کښې پدے وجه راغلے وو چه الله ورله بادشاهی ورکړے وه او دا قانون دے چه[اَلْوَضِیْعُ اِذَا ارْتَفَعَ تَکَبَّرَ] رذیل چه کله پورته شی نو بیا تکبر شروع کړی۔ دا د الله د وجود نه منکر نهٔ وو، صرف د هغه د وحدانیت او د ربوبیت نه منکر وو۔

د الله تعالیٰ ددے کائناتو یواځے متصرف او یواځے مدبر (تدبیر کونکی) منلو ته تیار نهٔ وو، لکه څنګه چه د جاهلیت ګمراه خلقو کښې بعض داسے وو چه د الله د وجود اقرار به ئے کولو، لیکن د الله سره به ئے نور شریکان جوړول، بعض کارونه او واقعات به ئے خپلو شریکانو ته منسوب کول۔ دغه شان دا خلق د الله د صفت د حاکمیت نه هم منکر وو۔ حال دا چه اسلامی تصور دا دے چه لکه څنګه ددے کائناتو تکوینی کارونه د الله په لاس کښې دی، نو دغه شان قانون سازی او د اجتماعی امورو د فیصلو اختیار هم د الله په لاس کښې دے۔او پدے کښې هیڅوک د هغه شریك نشته۔

نو دهٔ د اُلوهیت دعوه اُوکړه او د ابراهیم ﷺ سره ئے مناظره اُوکړه۔ دا مناظره په هغه وخت کښې وه چه ابراهیم ﷺ به الله ته خلق رابلل، او د کفر او شرك او د بتانو بدی به ئے بیانوله، نو خلقو کښې مشهور شو۔ بادشاه راطلب کړو، هغه ته ئے اُووئیل چه ته څهٔ ته دعوت ورکوے؟ هغهٔ اُووئیل: زهٔ الله تعالیٰ ته دعوت ورکوم، هغه ذات چه ته ئے هم پیدا کړے ئے او زهٔ ئے هم پیدا کړے یم۔ هغه اُووئیل: چه رب خو زهٔ یم۔ دا کارونه زهٔ کوم۔

ابراهیم ﷺ ورته اُووئیل: هر کله چه ته ددے کارونو واکدار ئے، نو بیا زما رب خو د مشرق نه

نمر راخیژوی، ته ئې د مغرب نه راوخیژوه چه ستا ربوبیت مونږ اُومنو۔

نو هغه د کفر په وجه حیران شو، او همدغسې لاجوابه پاتې شو۔ مناظره کښې پړ شو، هرکله چه پوهه شو چه ابراهیم علیه السلام خو په مناظره کښې نهٔ پړ کیږي نو اراده ئې اُوکړه چه ددهٔ وژل پکار دي، نو اُور ئې ورله بل کړو او هغې ته ئې گوزار کړو، لیکن الله په اُور کښې محفوظ اُوساتلو، کله چه روغ را اُووتلو نو دوی بنهٔ معجزه اُولیدله، لیکن ایمان نه ئې نهٔ راوړو۔

ابراهیم علیه السلام د دوی نه د عراق نه هجرت اُوکړو، فلسطین ته لاړو چه لوط علیه السلام هم ورسره وو۔ څکه چه هغه زمانه کښې جهاد نهٔ وو، الله تعالیٰ به کافرانو ته خپله سزا ورکوله، نو په دوی باندې الله تعالیٰ د ماشو عذاب راوستو چه الله پرې تول هلاك کړل، د دوی غوښې ئې اُوخوړلې، وینې ئې اُوڅکلې، تش هډوکي ئې پریخودل۔ دومره ډیر ماشي وو چه د نمر رنړا ئې پټه کړې وه۔ او د نمرود په پوزه کښې یو ماشې ننوتو چه خلق به ورله راتلل نو په سر به ئې وهلو، څلورو سوو کالو پورې دا حالت وو آخر پدې حالت کښې هلاك شو۔ (ابن کثیر ۱/۶۸۷)

د لوییٔ دعوه ئې کړې وه، الله تعالیٰ ذلیله کړو، په معمولي حیوان ئې هلاك کړو۔ او ابراهیم علیه السلام به فلسطین کښې اُوسیدو، هلته پرې الله تعالیٰ ډیر امتحانات راوستل او بیا آخر هلته وفات هم شو۔

عبد الرزاق د معمرؒ نه، هغه د زید بن اسلمؒ نه روایت کوی چه دا واقعه پدې طریقه راغلې وه چه د ابراهیم علیه السلام په زمانه کښې قحط راغلې وو، نو نمرود به مِیره (غله) تقسیموله۔ خلق به چه بادشاه خواله ورغلل نو هغه به ورته وئیل چه ستا رب څوك دے؟ نو که چا به د بادشاه د ربوبیت اقرار کولو، هغه ته به ئې غله ورکوله، او که چا به انکار کولو، نو د غلې نه به محروم وو۔ نو ابراهیم علیه السلام هم په دغه کسانو کښې ورغلو، دهٔ د هغه د ربوبیت نه انکار اُوکړو۔ نو بس مناظره جوړه شوه۔ او ابراهیم علیه السلام د هغه نه بغیر د غلې اخستو نه را اُووتو نو په لاره کښې ئې شږې په بوجۍ کښې واچولې چه خپل اهل ئې نا امیده نشي، او د هغوی زړهٔ خفه نشي، کور ته ئې چه راوړې، نو اُودهٔ شو۔ ښځه ئې وریاخیدهٔ چه د هغې نه څهٔ راواخلی نو الله تعالیٰ ترې طعام جوړ کړې وو، او د هغې نه ئې دهٔ له طعام تیار کړو، دهٔ ته ئې نزدې کړو، دهٔ تپوس اُوکړو دا چرته وو؟ هغې اُووئیل: دا د هغه طعام نه دی چه تا راوړیدی نو دهٔ ته پته اُولگیده چه دا د الله تعالیٰ د طرف نه رزق دے، نو د الله حمد ئې اُووئیلو۔ او دا د هغه معجزه وه۔ (ابن کثیرؒ، بغویؒ)

﴿حَاجَّ إِبْرَاهِيمَ فِي رَبِّهِ﴾ (حَاجَّ) د مُحَاجې نه دے، اصل کښې دے ته وائي چه د دواړو طرفونو نه دلیلونه وئیلې شي۔ او هر یو شخص په بل باندې خان غالب کول غواړي، لیکن د نمرود د طرف نه خو هیڅ دلیل نهٔ وو، نو بیا دلته حَاجَّ په معنیٰ د باطلې جگړې سره دے۔ دارنگه هغه په خپل

کمان کښې ځان غالبه کنړلو۔

**فائده :** اَلْمُنَاظَرَةُ مِنْ سُنَنِ الْمُرْسَلِيْنَ ۔ ددے نه معلومه شوه چه په یوه دینی مسئله کښې مناظره (بحث) کول، د پیغمبرانو سنت دی۔ (قرطبی)

مناظره وئیلے شی د جانبینو په دلائلو کښې کتل چه کوم حق وی هغه قبلول۔ د مناظرے مقصد دا دے چه جانب مخالف ښهٔ شی او حق ته راشی، دا د سلفو د مناظرے مقصد وو، لیکن نن صبا مناظرے خپل ځان وړ کول او مخالف پړ کول او هیڅ دلیل ته نهٔ کتل۔ یو طرف ته آیت او حدیث وئیلے کیږی او بل ورته ګډے وډے وائی، نو پدے کښې فائده نهٔ وی، صرف دا چه عوامو ته معلومه شی چه یو ورته آیت او حدیث وائی او بل طرف سره دلیل نشته۔ نو عقلمند پرے ښهٔ کیږی۔

(فِيْ رَبِّهٖ) ضمیر ابراهیم ﷺ ته راجع دے۔ یعنی د ابراهیم ﷺ د رب په باره کښې ئے دا بحث کولو۔ د هغهٔ د ربوبیت او وحدانیت نه منکر وو۔

﴿اَنْ اٰتٰهُ اللّٰهُ الْمُلْكَ﴾ دا په تقدیر د لام سره (لِأَنْ آتَاهُ) د حَاجَّ دپاره علت دے۔ یعنی دا جګړه ئے ځکه کوله چه الله ورته بادشاهی ورکړے وه نو بادشاهی په تکبر او سرکشئ کښې راوستے وو چه د الله د ربوبیت نه ئے منکر کړو، حال دا چه ددے تقاضا خو دا وه چه دا پوخ مؤمن او شکر ګذار جوړ شوے وے، او د الله ددے نعمت قدر ئے کړے وے۔ کومه خبره چه ددهٔ د هدایت سبب کیدل پکار وو، د هغے په وجه سره ګمراه شو۔

دارنګه الله تعالیٰ خو دهٔ لره بادشاهی او حاکمیت ددے دپاره نهٔ وو ورکړے چه دا به عوام خپل بنده ګان جوړوی او د خپل جوړ کړی قوانینو تابع کوی به ئے، ځکه هغه خو خپله د الله بنده دے، لکه څنګه چه نور خلق د الله بنده ګان دی۔ پدے وجه کله چه دا د خپل وخت د نبی سره مباحثه او بحث کوی نو الله تعالیٰ ددهٔ دا کار خلقو ته عجیبه او ناشنا ښکاره کوی او په (اَلَمْ تَرَ) سره ئے ذکر کوی۔ چه ګوره دا یو بنده دے او د کائناتو د رب صفات ځان دپاره خاص کوی، ډیره عجیبه خبره ده !!۔

او داسے بد خوئی په ډیرو نا اهله بادشاهانو کښې وی چه کله ورته الله تعالیٰ څهٔ ظاهری قوت ورکړی نو بیا په خپل رعیت باندے ظلمونه کوی او د الله حقوق ځان دپاره خاص کړی۔

﴿اِذْ قَالَ اِبْرٰهٖمُ رَبِّيَ الَّذِيْ يُحْيٖ وَيُمِيْتُ﴾ د (اِذْ) نه معلومیږی چه ابراهیم ﷺ هغه ته د توحید دعوت ورکړو، کله چه نمرود اُووئیل : ستا رب څوك دے؟ نو ابراهیم ﷺ ورته د خپل رب دا صفت ذکر کړو۔ چه زما رب هغه دے چه ژوندی کول او مړهٔ کول کوی۔ یعنی دا کوم څیزونه چه پدے کائناتو کښې ښکاری، دا مخکښې نیشت وو، بیا وجود ته راغلل او دا به ددے د وجود نه پس نیشت کوی۔ او دا دلیل دے په وجود د یو رب چه هغه یواځے دا کارونه کړیدی۔

﴿ قَالَ أَنَا أُحْيِ وَأُمِيتُ ﴾ لیکن دا ظالم د اِحیاء (ژوندی کولو) او اِماتة (مړهٔ کولو) په حقیقت نهٔ پو هیدو، نو پدے وجه دهٔ هم دعوه اُوکړه، چه دا کار خو زهٔ هم کولے شم۔

مفسرین لیکی : دهٔ دوه کسان راوستل چه دواړه د قتل مستحق وو، نو یو ئے قتل کړو او بل ئے معاف کړو۔ حال دا چه دا خو د احیاء او اماتة معنیٰ نهٔ ده۔ او نهٔ د ابراهیم ﷺ د خبرے جواب دے۔ ځکه چه اِحیاء (ژوندی کول) خو دے ته وائی چه یو شے نیشت وی او هغے له وجود ورکړی مثلاً حیوان او انسان د نطفے نه پیدا کول، او د زمکے ژوند دا دے چه هغے کښ قوت نباتی (د رازرغونولو طاقت) پیدا کړی۔ او دلته خو دا شخص الله تعالیٰ ژوندے کړے وو۔ دهٔ صرف قتل نکړو، دا خو اِحیاء نهٔ ده۔ او کوم شخص ئے چه قتل کړو نو دا هم دهٔ ورله مرګ نهٔ دے راوستے، بلکه الله ورله راوستے دے، دهٔ صرف ظاهری اسباب استعمال کړل، ډیر کرته انسان شل ځزه اُولګی لیکن چه الله ئے د مرګ اراده نهٔ وی کړی، اسباب کار ورنکړی۔

﴿ قَالَ إِبْرَاهِيمُ فَإِنَّ اللَّهَ يَأْتِي بِالشَّمْسِ مِنَ الْمَشْرِقِ فَأْتِ بِهَا مِنَ الْمَغْرِبِ ﴾

هرکله چه نمرود په خلقو تلبیس اُوکړو او ځان ئے په زوره جاهل کړو، او د اِحیاء او اِماتة غلطه معنیٰ ئے واخسته، نو ابراهیم ﷺ دا مناسبه اُونهٔ ګنړله چه هغه سره د موت او حیات په موضوع بحث اُوکړی چه مرګ دیته وائی او ژوند دیته وائی۔ ځکه چه پدے کښ مشغوله کیدل مقصد فوت کوی، نو ځکه ابراهیم ﷺ داسے دلیل ته انتقال اُوکړو چه دا پکښ زر انحلی او دهٔ هیڅ تصرف او دعوه په هغے کښ کار نهٔ ورکوی، نو ورته ئے اُوویل : هرکله چه تهٔ ځان ته رب وائے او دا تصرفات ځانله ثابتوے، نو نمر د مشرق نه راخیژی، بس تهٔ ئے د مغرب نه راوخیژوه چه دا صرف د الله تصرف دے، هیڅوك په کښ نشی شریك کیدے۔ نو هغه حیران شو۔

﴿ فَبُهِتَ الَّذِي كَفَرَ ﴾ (كَأَنَّمَا أُلْقِيَ فِي فِيهِ الْحَجَرُ) داسے حیران شو دا کافر انسان ګویا کښ په خوله کښ ورته کاڼړی واچولے شو)۔ ځان ته ئے هوښیار وئیلو او دے ځائے کښ کم عقل شو۔ داسے جواب ئے ولے نهٔ کولو چه دا نمر زهٔ راخیژوم۔ ؟ جواب د هغے دا دے چه الله ترے دا هیر کړو، دماغ ئے ورله بند کړل ځکه چه (وَاللَّهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ) الله د جواب توفیق نهٔ ورکوی ظالمانو ته)۔ دویم دا چه بیا پرے خلقو اعتراض کولو چه تهٔ خو لا پیدا هم نهٔ وے او دا نمر راختلو۔ دارنګه دهٔ ابراهیم ﷺ ته هم دا نشو وئیلے چه ستا رب دے د مغرب نه راوخیژوی ځکه چه الله ورله دماغ بند کړل۔ او دهٔ ته دا یقینی معلومه وه چه که زهٔ دا مطالبه اُوکړم، نو د ابراهیم ﷺ رب ددے طاقت لری، اُوس به ئے راوخیژوی، نو زهٔ به اُوشرمیږم۔

**سوال** : ابراهیم علیه السلام دویم دلیل ته ولے انتقال اُوکړو، حال دا چه د مناظرے اصول دا دی

چه پکار ده چه په همغه دلیل کښې راونیولے شی ؟۔ او بل دلیل ته د نقل کیدو معنیٰ دا جوړیږی چه تا ته دغه مخکنے دلیل کمزورے ښکاری او ته په هغے کښې مخالف ته تسلیم شوے؟۔

**جواب ۱** - : پدے کښې د واضح دلیل نه أوضح (ډیر واضح) ته انتقال دے۔ دا ددے دپاره کیږی چه ما درله دلیل درکړو، لیکن ته پدے نهٔ پوهیږے، جاهل ئے، نو بیخی واضح دلیل واوره چه هغه د نمر دلیل دے چه هره ورځ ئے انسان وینی۔ او پدے کښې مخالف زر راپرزول او د آوریدونکو دماغو ته زر خبره رسَول مقصد وی۔ او دا کار جائز دے۔

**(۲) جواب** : حافظ ابن کثیرؒ وغیره فرمائی : پدے کښې انتقال د یو دلیل نه بل دلیل ته نشته بلکه دا اول دلیل د دویم دلیل دپاره مقدمه او تمهید دے۔نو پدے کښې بیان دے د تصرف د مُحْیِی او مُمِیت (د ژوندی کونکی او مړ کونکی) چه هرکله ته دعویٰ کوے چه ته هم ژوندی کول او مړهٔ کول کولے شے، نو هغه ذات چه مرګ او ژوند راولی او دا تصرف کوی، نو هغه ذات په مخلوقاتو کښې دا تصرف هم کوی چه کائنات، ستوری او د هغے حرکات د هغه مسخر او تابع دی، هغه نمر د مشرق نه راخیژوی، نو که ته ځان ته اِلٰه وائے نو پدے کښې تصرف اُوکړه او د مغرب نه ئے راوله۔ نو احیاء او اماتة د رب یو تصرف وو او د هغے تشریح دا وه چه الله نمر او سپوږمیٔ له هم حیاة او موت ورکوی۔ نو دا د یو دلیل دپاره دوه مثالونه شو۔

**۳- جواب** : حافظ ابن القیمؒ وائی : [اِنَّمَا هُوَ اِلْزَامٌ لِلْمُدَّعِی بِطَرْدِ حُجَّتِهِ اِنْ کَانَتْ صَحِیْحَةً]

(یعنی دا الزام دے مُدعِی لره که ستا دعویٰ صحیح وی نو خپل دلیل دے عام کړه او هر شی ته ئے شامل کړه) ددے تفصیل دا دے چه هرکله چه ابراهیم علیه السلام اُووئیل : زما رب ژوندی کول او مړهٔ کول کوی، نو دغه د الله دشمن د ابراهیم علیه السلام د دلیل معارضه شروع کړه په مغالطے ورکولو سره چه زهٔ هم څوك وژلے شم او څوك ژوندی پریخودے شم، نو ابراهیم علیه السلام په هغه باندے الزام اُوکړو چه څه دا خپل دلیل عام کړه، نمر له الله چه کوم طرف ته حرکت ورکوی نو ته ئے د هغے په مخالف طرف حرکت ورکړه، د کوم الله سره چه ته په ژوندی کولو او مړهٔ کولو کښې ځان برابر ګنړے، نو که ته رشتینے ئے، دا تصرف هم اُوکړه چه ستا دعویٰ صحیح شی۔ یعنی ته د ژوندی کولو دعوه کوے نو د ژوندی کولو یو صورت خو دا هم دے چه نمر د مغرب نه راوخیژوه۔ نو پدے کښې په خپل دلیل او مُدعٰی کښې مخالف راګیرول دی چه ستا دعویٰ صحیح نهٔ ده ځکه چه دلیل دے هر ځائے کښې نهٔ چلیږی۔ او دا ډیر ښهٔ جواب دے۔

[بدائع التفسیر والصواعق المرسلة ص (۲/ ٤٩١) الفصل العشرون]

﴿وَاللّٰهُ لَا یَهْدِی الْقَوْمَ الظّٰلِمِیْنَ﴾ ...... [لَا یُلْهِمُهُمْ حُجَّةً وَّلَا بُرْهَانًا] (ابن کثیر)

الله ظالمانو ته دليل او حجت په زړهٔ کښې نهٔ اچوي۔ دے کښې وجه بيانوي چه دا ظالم انسان وو، نو الله ورته هدايت اُونهٔ کړو، د جواب لاره ئے ورته اُونهٔ خودله، بلکه په کډو وډو روان شو۔

دلته **سوال** دے چه ډيرو ظالمانو ته هدايت شويدے او دلته وائي چه الله ظالمانو ته هدايت نهٔ کوي؟۔ **جواب ۱** – د هدايت نه دلته د جواب توفيق او په جواب کښې حق ته رَسُول مراد دي۔ چا کښې چه ظلم وي نو الله ئے د حق د جواب نه اَړوي۔

**جواب ۲**: هدايت دپاره انابت شرط دے او ظالمان اکثر عناديان وي۔ که په يو شخص کښې مخکښې ظلم وي، ليکن بيا پکښې انابت پيدا شي، نو الله ورته هدايت کوي لکه د عامو صحابه کرامو مخکښے حالت شو چه د انابت د وجه نه ورته الله د ايمان توفيق ورکړو۔

**فائده**: الله تعالیٰ (لَا يَهْدِيْ) جمله راوړه، ځکه وَهم راتلو چه دهٔ هدايت ولے نهٔ قبلولو؟، سره ددے نه چه دليل ورته واضح شوے وو؟۔ نو جواب دا دے چه دا ظالم وو، د هدايت مستحق او لائق نهٔ وو۔

| |
|---|
| أَوْ كَالَّذِيْ مَرَّ عَلٰى قَرْيَةٍ وَّهِيَ خَاوِيَةٌ عَلٰى عُرُوْشِهَا |
| او آيا تا نهٔ دے ليدلے په شان د هغه کس چه تير شو په يو کلي باندے او هغه پريوتے وو په چتونو خپلو باندے |
| قَالَ أَنّٰى يُحْيِ هٰذِهِ اللّٰهُ بَعْدَ مَوْتِهَا فَأَمَاتَهُ اللّٰهُ |
| اووئيل هغهٔ په څهٔ طريقه به راژوندی کړی دے لره الله تعالیٰ پس د مرګ ددے نه پس مړ اُوساتهٔ هغه لره الله تعالیٰ |
| مِائَةَ عَامٍ ثُمَّ بَعَثَهٗ قَالَ كَمْ لَبِثْتَ قَالَ لَبِثْتُ يَوْمًا أَوْ بَعْضَ يَوْمٍ قَالَ |
| سل کاله بيا ئے راپورته کړو۔ اوفرمايل الله څومره وخت دے تير کړو؟ اُووئيل هغه وخت تير کړو ما يوه ورځ يا څه حصه د ورځې۔ |
| بَلْ لَّبِثْتَ مِائَةَ عَامٍ فَانْظُرْ إِلٰى طَعَامِكَ وَشَرَابِكَ لَمْ يَتَسَنَّهْ |
| اُوفرمايل الله: بلکه تا وخت تير کړے سل کاله نو اُوګوره خوراک خپل او سکاک خپل ته چه نهٔ دے خراب شوے |
| وَانْظُرْ إِلٰى حِمَارِكَ وَلِنَجْعَلَكَ آيَةً لِّلنَّاسِ وَانْظُرْ إِلَى الْعِظَامِ |
| او اُوګوره سټا خر ته (چه ته پرے دليل اُونيسے) او دے دپاره چه تا مونږه اُوګرځوو نخه د خلقو دپاره او اُوګوره هډوکو ته |
| كَيْفَ نُنْشِزُهَا ثُمَّ نَكْسُوْهَا لَحْمًا فَلَمَّا تَبَيَّنَ لَهٗ |
| چه څنګه خوزوو مونږ هغے لره بيا اغوندو مونږ هغے ته غوښه۔ پس هرکله چه ښهٔ ښکاره شوه هغهٔ ته (دا حال) |

قَالَ اَعْلَمُ اَنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَىۡءٍ قَدِيۡرٌ ﴿۲۵۹﴾

اُووئیل هغهٔ : زهٔ پوهیږم چه یقیناً الله تعالیٰ په هر څه باندے قدرت لرونکے دے۔

**تفسیر** : دا دویمه واقعه ده، د اصحاب الرشد دپاره مثال دے، چه الله د ایمان والو دوست دے اُوگوره دوی د شبهاتو نه یقین ته راوباسی او ایمان ورله مضبوطوی۔ معمولی تیارو نه ډیرے رڼرا ته اُووتو۔

**ربط** : ۱- مخکښ د الله تصرف په ژوندی کولو او مړهٔ کولو کښ ذکر شو، نو اُوس الله تعالیٰ عملی ژوندی کول او مړهٔ کول بیانوی، نو دا په مخکښ تفریع شوه۔

۲- مخکښ د توحیدِ ربوبیت عقیده وه، اُوس بله عقیده د بعث بعد الموت بیانوی۔

پدے واقعه کښ اختلاف دے چه دا د چا ده؟ مشهور دوه قوله دی (۱) یو دا چه دا یو کافر انسان وو چه د بیت المقدس خوا کښ اُوسیدو، د بیت المقدس په کلی ورتیر شو چه وران پروت وو، بخت نصر بادشاه وران کړے وو، او د هغے اُوسیدونکی ئے قتل کړی وو۔ نو دے انسان زړهٔ کښ اُووئیل چه دا کلے به الله څنګه راژوندے کړی؟ او دا هډوکی او غوښے به څنګه یو بل سره یو ځائے شی؟ دا خو ډیره بعیده ده۔ (د بعث بعد الموت منکر وو)۔

نو الله تعالیٰ اراده اُوکړه چه دهٔ ته هدایت اُوکړی، دا ئے مړ کړو او سل کاله روستو ئے راپورته کړو، او دهٔ ته ئے د دوباره ژوندی کولو طریقه اُوخودله او د ملائکو په ذریعه ئے ورسره خبرے اُوکړے نو آخر کښ ئے اقرار اُوکړو (اَعْلَمُ اَنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَىۡءٍ قَدِيۡرٌ)۔

(ما ته پته اُولګیده چه الله په هر شی قادر دے) ایمان ئے راوړو۔ او کله نا کله د کافرانو دپاره داسے ناشنا واقعات سبب د ایمان اُوګرځی۔ او دا قول د مجاهد بن جبرؒ دے چه ابن کثیرؒ، بغویؒ وغیره ذکر کړے، لیکن علامه صدیق حسن خانؒ پرے په فتح البیان کښ رد کړے چه دا ډیر ضعیف قول دے۔ ځکه چه دے شخص سره الله خبرے کړیدی (کَمْ لَبِثْتَ) (وَلِنَجْعَلَكَ اٰيَةً لِّلنَّاسِ) او کافر له الله تعالیٰ دومره اهتمام نهٔ ورکوی۔

(۲) دویم قول د اکثرو مفسرینو دے چه هغه صحیح معلومیږی چه دا عزیر بن شرخیا علیه السلام دے، او دا قول د علی، عبد الله بن سلام او ابن عباس رضی الله عنهم او حسنؒ، قتادهٔ او عکرمهٔ وغیره مفسرینو دے۔ او دا د موسیٰ علیه السلام د دور نه روستو راغلے دے۔ او د بنی اسرائیلو پیغمبر دے۔ وهب بن منبهٔ وائی : دا اَرمیا بن حلقیا دے چه لقب ئے خضر علیه السلام دے۔

لیکن ابن عطیهٔ وائی دا قول صحیح نهٔ دے ځکه چه دا واقعه د روستو زمانے ده او خضر خو د

موسیٰ علیه السلام د زمانے شخص دے۔ (قرطبیؒ)۔

بعض وائی : حزقيل بن بوزی نبی وو۔ ابن عاشورؒ وئیلی دی چه همدا قول صحیح دے ځکه چه دا د تورات د اقوالو مطابق دے۔ لیکن زیاتو مفسرینو دے ته ترجیح ورکړیده چه دا عزیر علیه السلام وو۔

دا د مصر نه روان وو، ځان سره ئے توخه راخستے وه چه هغه تازه انځران، انګور او د شرابو وره شان مشکیزه وه۔ بعض وائی د اُوبو منګے وو۔ (قرطبیؒ)۔

د بیت المقدس په خوا کښې تیر شو چه د هغې اهل وژل شوی او کلی وران شوے وو۔ نو دهٔ د الله د قدرت استعظام اُوکړو (دا خبره ئے لویه اُوګڼله) چه دا به څنګه الله راپورته کوی؟ الله څومره لوئی قدرت والا دے!! نو الله ورته په نفس او خر او خوراك څکاك کښې د خپل قدرت نخے اُوخودلے، او یقین ئے ورله زیات کړو۔ الله دا سل کالو پورے مړ اُوساتلو، بیا ئے اول دا راژوندے کړو او عقل او زړهٔ ئے ورله ورکړو۔ علی رضی الله عنه فرمائی چه اول ورله الله سترګے ورکړے او په هغے ئے په خپل ځان کښې هم د الله قدرت اُولیدو چه را یو ځائے کیږی، او خپل د سورلئ خرئے هم اولیدو نو په الله ئے یقین زیات شو او هغه معمولی شان تیارے ئے هم ختمے شوے۔

﴿أَوْ كَالَّذِي﴾ دا (أَوْ) په مخکښې (الَّذِيْ) باندے عطف دے۔ او کاف زائد دے۔ نو اصل عبارت داسے دے [أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِيْ مَرَّ عَلَى قَرْيَةٍ]۔ آیا تهٔ نهٔ ګورے هغه سړی ته چه په یو کلی تیر شو۔ یا کاف اسمی دے په معنیٰ د مِثْل سره۔ او مقصد پکښې د الله د قدرت د شواهدو ګڼروالے دے۔ [أَيْ أَلَمْ تَرَ مِثْلَ الَّذِيْ مَرَّ]۔ آیا تهٔ نهٔ ګورے په شان د هغه سړی ته چه هغه په یو کلی تیر شو۔ یعنی ددهٔ په شان د الله د قدرت ډیر واقعات شته ځانله په دهٔ کښې د الله د قدرت شواهد نهٔ دی۔ (قاسمی ۹۰٤/۳)۔

﴿مَرَّ عَلَى قَرْيَةٍ﴾ ۱- دا قریه بیت المقدس ښار وو چه بختنصر خراب کړے وو او د هغې اهل ئے وژلی وو، مړهٔ پراته وو۔ او ځهٔ کسان تړے وتلی وو، نو د قریه نه کورونه او اُوسیدونکی دواړه مراد دی۔

۲- بعض وائی : دا هغه کلے وو چه د هغې اُوسیدونکی زرګونه وو، او د مرګ د ویرے نه وتلی وو۔

۳- کلبیؒ وائی : دا قریه (دَیْرِ سَابِر آباد) وو چه په فارس کښې یو کلے دے۔

٤- سدیؒ وائی : دا (سَلْمَا آباد) وو چه دا په اطرافو د جُرجان یا هَمَدَان کښې محله یا علاقه ده۔

۵- بعض وائی : دا قریه (دَیْرِ هِرَقل) وو چه د بصرے او (عسکر مُکرم) په مینځ کښې واقع وو او د دجلے په غاړهٔ آباد وو۔ لیکن اول قول ډیر ظاهر او مشهور دے۔ (فتح البیان)۔

﴿وَهِيَ خَاوِيَةٌ عَلَى عُرُوشِهَا﴾ خاوية (۱) معنی : سَاقِطَةٌ۔ راپریوتے وو۔

(۲) په معنیٰ د خَالِيَةٌ۔ یعنی خالی شوے وو د اُوسیدونکو نه۔ (قتادهٔ)

دلته اوله معنیٰ مراد ده۔ یعنی اول چتونه راپریوتی وو، بیا پرے دپاسه دیوالونه راغوزخیدلی

وو۔ ابن عباسؓ معنیٰ کوی یعنی خراب شوی وو نو یوه دیرکیٔ ترے جوړه شویے وه او اشاره ده دیر خرابوالی ته۔

عُرُوش جمع د عرش ده په معنیٰ چهت سره۔

﴿قَالَ أَنّٰى يُحْيِ هٰذِهِ اللّٰهُ بَعْدَ مَوْتِهَا﴾ (اَنّٰی) په معنیٰ د کیف سره دیے۔ ددیے نه غرض انکار نهٔ دیے چه گنیے (العیاذ بالله) الله قادر نهٔ دیے، بلکه مقصد دا دیے چه په کوم کیفیت به ئیے ژوندی کوی، وارهٔ به وی او که غتیږی به ۔ همداسیے به راپاځیږی۔ نو دا کیفیت ورته ناشنا ښکاره شویدیے، پدیے وجه ئیے دا خبره بعیده گنړلیے ده، او پدیے وجه ئیے مفعول مقدم کړیدیے ځکه چه په فاعل یعنی راژوندی کونکی کښں ئیے شك نهٔ وو۔

سیوطیؒ وائی : [قَالَ ذٰلِكَ اسْتِعْظَامًا لِقُدْرَتِهِ] دا خبره ئیے پدیے وجه کړیے چه د الله قدرت ئیے عظیم گنړلو لکه انسان چه کله ناشنا کار وینی، نو د الله قدرت عظیم اُوگنړی چه دا به الله څنګه پیدا کوی، یعنی د الله څومره عظیم قدرت دیے۔ او پدیے کښں انکار مقصد نهٔ وی۔

ابو السعودؒ وائی : [قَالَ ذٰلِكَ تَلَهُّفًا عَلَيْهَا، وَتَشَوُّقًا إِلٰى عِمَارَتِهَا مَعَ اسْتِشْعَارِ الْيَأْسِ مِنْهَا]۔

(یعنی دا خبره ئیے پدیے وجه اُوکړه چه غم ئیے کولو په دغه کلی باندیے چه بختنصر هلاك کړیے وو او د هغیے د جوړیدو نه نا امیدیٔ سره ئیے دا شوق لرلو چه دا بیرته آباد شی)۔

بیضاویؒ وائی : [قَالَ ذٰلِكَ اعْتِرَافًا بِالْقُصُوْرِ عَنْ مَعْرِفَةِ طَرِيْقِ الْاِحْيَاءِ] دا خبره ئیے پدیے وجه اُوکړه چه د دوی د راژوندی کولو د طریقے د پیژندلو نه ئیے د قصور اقرار کولو) چه ما ته خو ددیے د راژوندی کولو طریقه نهٔ ده معلومه، دا به څنګه کیدیے شی؟ او ارمان ئیے کولو چه دا طریقه اُووینی۔ (فتح البیان وغیره)

نو هر کله چه عزیر ﷺ ددیے کلی راژوندی کول او بیرته پدیے کښں اُوسیدل ناشنا اُوگنړل، نو الله اُوغوختل چه دهٔ ته دا په خپلو سترګو وربښکاره کړی په خپل نفس کښں چه هغه د کلی د راژوندی کولو نه لویه نخه ده۔ نو عزیر ﷺ هغه ځائیے کښں وفات شو۔

بعض وائی اُودهٔ شو نو خوب کښں ترے الله ساه واخسته۔

نو د الله څومره عجیب قدرتونه رابښکاره شول، دا روغ جوړ پروت دیے، نه ئیے ماران لړمانان خوری، نه ئیے حیوانات خوری، او نهٔ ئیے سیلابونه وړی او نهٔ ئیے شوك وینی، او خوراك هم روغ جوړ پروت دیے، خاوره هم پکښں نهٔ واقع کیږی، او خر ئیے ذره ذره خاورے شویے دیے۔او بیا الله تعالیٰ هغه راژوندیے کړیے دیے۔ نو الله رب العزت داسیے ذات دیے چه کوم شیے زر سخا کیږی (طعام) هغه ئیے محفوظ ساتلیے، او کوم شیے چه زر نهٔ سخا کیږی (خر) هغه ئیے زر ختم کړیے دیے۔

نو ﴿فَأَمَاتَهُ اللّٰهُ مِائَةَ عَامٍ﴾ مفسرین لیکی : دا د څلویښتو کالو په عمر وفات شویے وو او یو څوی

تیرے پاتے شوے وو، دا چه کله راپاڅیدو، نو خوی ئے د یوسل شلو کالو وو، او نمسے ئے د نوی کالو وو۔ ددهٔ توره ګیره او تور سر وو او هغوی سپین ګیری بوډاګان وو۔ نو دا خپل کلی ته لاړو، خلقو نهٔ پیژندلو۔ دهٔ اُووئیل زهٔ عزیر یم۔ خلقو اُووئیل: عزیر ته خو تورات یاد وو، آیا تا ته یاد دے؟ دهٔ اُوفرمایل: آو، نو خلقو اُوپیژندلو۔ پدے وجه بیا یهودو اُووئیل چه دا د الله خوی دے ځکه دا ناشناکارنامه پکښې واقع شوے وه۔

﴿ثُمَّ بَعَثَهُ﴾ حافظ ابن کثیرؒ لیکی: ددهٔ د مرګ نه روستو اویا کاله روستو دغه ښار آباد شوے وو، او ددے اُوسیدونکی پوره شوی وو، او بنی اسرائیل دے ته راواپس شوی وو۔ نو کله چه دا راپورته شو او ښهٔ برابر انسان شو نو الله ورته اُوفرمایل:

﴿قَالَ كَمْ لَبِثْتَ﴾ دا تپوس تریے الله ددے دپاره اُوکړو چه هغهٔ ته د هغهٔ عجز او کمزورتیا ښکاره کړی چه دا د الله په کارونو باندے د احاطے کولو نه عاجز دے۔ اُوګوره دومره ژوند ئے تیر کړے او پته ورته نشته۔ نو په نفی د علم الغیب باندے دلیل دے۔

دارنګه ددے دپاره چه هغهٔ ته اُوښائی چه تهٔ مړ شوے وے، او دا خوب نهٔ وو ځکه چه خوب د سلو کالو پورے نهٔ اُوږدیږی۔

﴿قَالَ لَبِثْتُ يَوْمًا أَوْ بَعْضَ يَوْمٍ﴾ دا ئے ځکه اُووئیل چه دا الله د ورځے په ابتداء کښې وفات کړے وو، بیا سل کاله روستو ئے د ورځے په آخر کښې د نمر پریوتو نه مخکښې راپورته کړو، نو دهٔ اُووئیل یا پوره ورځ شوے یا څهٔ حصه د ورځے۔ او دا پدے خبره کښې دروغجن نهٔ دے ځکه چه ددهٔ ګمان همدغه وو او د غیبو علم ورسره نهٔ وو۔ لکه د اصحابِ کهف په شان چه هغوی هم دغسے خبره کړے وه ﴿قَالُوا لَبِثْنَا يَوْمًا أَوْ بَعْضَ يَوْمٍ﴾ [کهف: ۱۹]۔

﴿قَالَ بَلْ لَبِثْتَ مِائَةَ عَامٍ﴾ دا دلیل دے چه پیغمبران هم په غیبو نهٔ پوهیږی۔ مګر هله چه وحی ورته اُوکړے شی۔ نو صالحینو ته چه څوک آوازونه کوی چه رامدد شه، نو دوی د اسلام په عقیده نهٔ دی پوهه شوی۔

﴿فَانْظُرْ إِلَى طَعَامِكَ وَشَرَابِكَ﴾ د هغه طعام انځران وو او شراب ئے پیٔ وو، یا د شرابو او د انګورو رس وو، یا اُوبه وے۔ ددے ځائے نه معلومیږی چه څوک په سفر ځی نو ځان سره به توښهٔ اخلی چه سوالونه نهٔ کوی۔ او دا بعینه توکل دے۔

﴿لَمْ يَتَسَنَّهْ﴾ قتادهٔ وائی: [اَیْ لَمْ یَتَغَیَّرْ] هیڅ تغیر پکښې نهٔ وو راغلے۔ پدے کښې هاء اصلی ده او د (لَمْ) د وجه نه ساکنه شویده۔ تَسَنُّهٔ د سَنَةٌ نه اخستے شویدے، په اصل کښې سنهة دے۔ کلونو تیریدو ته وائی۔ [ اَیْ لَمْ یَمْضِ عَلَیْهِ السِّنُوْنَ ] یعنی داسے تازهٔ دی چه ګویا کښې هیڅ کلونه پرے نهٔ

دی تیر شوی)۔ او کلونو تیریدو سره په یو شی کښې تغیر ضرور راځی نو دلته معنیٰ التزامی مراد ده [اَیْ لَمْ یُغَیِّرْهُ السِّنُوْنَ] یعنی کلونو تیریدو نهٔ دی متغیر کړی)۔ سره ددے نه چه دا څیزونه ډیر زر خرابیږی۔

(لَمْ یَتَسَنَّهْ) ئے مفرد راوړو اګرکه مخکښې طعام او شراب دوه څیزونه دی، لیکن دواړه یو شی ته راجع دی چه هغه غذاء ده نو ځکه ئے صیغه د مفرد راوړه۔

﴿وَانْظُرْ إِلَى حِمَارِكَ﴾ دلته د نظر نه مراد دا دے چه د هغه د سورلئ خر ذره ذره شوے وو او اندامونه او هډوکی ئے جدا جدا شوی خوارهٔ پراته وو، نو الله ورته اُوفرمایل دے خر ته اُوګوره د څهٔ دپاره کتل دی، نو دلته تقدیر دے [اَیْ لِتَسْتَدِلَّ عَلٰی قُدْرَةِ اللهِ] دے دپاره چه تهٔ پدے سره دلیل اُونیسے د الله په قدرت او د هغه په مړی راژوندی کولو)۔

بعض وائی: ددهٔ خر مړ نهٔ وو، بلکه په خپل غوجل کښې ولاړ وو چه سل کاله کښې پرے هیڅ مصیبت نهٔ وو راغلے او هیڅ خوراك څکاك ئے نهٔ کولو۔ (وهب منبهٔ، وضحاكؒ)۔ لیکن اول قول غوره دے ځکه چه د روستو (وَانْظُرْ إِلَى الْعِظَامِ) نه معلومیږی۔

**فائده**: ددے نه معلومه شوه چه خرهٔ باندے سوریدل د پیغمبرانو سنت دی۔

﴿وَلِنَجْعَلَكَ آيَةً لِلنَّاسِ﴾ دا واقعه د هغه زمانے دپاره هم نخه او عبرت او دلیل شو چه الله به د مرګ نه روستو مړی راژوندی کوی۔ (فراءؒ)۔ یا نخه دا وه چه هغوی په خپلو سترګو اُولیدو چه دا ځوان وو او ځامن او نمسی ئے بوډاګان وو۔ (اعمشؒ، فتح البیان)

دا د الله د قدرت عجیبه نخه ده۔ او زمونږ دپاره هم نخه شوه چه مونږ واوریدهٔ چه الله دنیا کښې مړی راژوندی کړی دی۔

اسرائیلی واقعاتو کښې راځی چه دا په خپل خر سور شو او خپل کلی ته راغلو چه خلق ئے ناشنا لیدل، په خپل ګمان کورته راغلو، یو زړے ړندے بوډئ سره ملاؤ شو چه هغه د دوی وینځه وه چه ددهٔ د جدائی په وخت د شلو کالو وه، اُوس د یو سل شلو کالو په عمر ده، د هغے نه ئے تپوس اُوکړو چه آیا دا د عزیر کورے دے؟ نو هغے اُووئیل آؤ، او وے ژړل چه د دومره دومره مودے نه د عزیر نوم څوك نهٔ یادوی، خلقو هیر کړے دے۔ نو دهٔ ورته اُووئیل زهٔ عزیر یم۔ هغے انکار اُوکړو چه زهٔ خو عزیر پیژنم، هغه خو مستجاب الدعوة وو، د مریضانو دپاره به ئے د شفاء دعا کوله نو الله به شفاء ورکوله، نو تهٔ زما دپاره دعا اُوکړه چه زهٔ تا اُوپیژنم۔ نو هغے دپاره دعا کولو سره هغه روغه شوه، او وے پیژندلو او د بنی اسرائیلو یو مجلس ته ئے بوتلو چه دا عزیر دے چه په هغے کښې ددهٔ ځامن او نمسی ناست وو چه بوډاګان وو۔ نو هغوی انکار اُوکړو، آخر دا چه یو

ځوی اُوونیل چه زما د پلار په شا کښې تورات داغ وو چه وے کتل هغه شان موجود وو۔ بیا ئے اُوونیل: عزیر ته خو تورات یاد وو (او دا هغه زمانه وه چه بختنصر د تورات نسخے سیزلے وے) نو عزیر ورته په یادو معجزهٔ تورات اُولوستلو، او دوی له ئے تازهٔ اُولیکلو۔ نو د هغه وخت نه یهودیانو به وئیل چه عزیر د الله ځوی دے۔ (الدر المنثور فی التفسیر بالماثور للسیوطی ۲۱۱/۳)

﴿وَانْظُرْ إِلَى الْعِظَامِ﴾ الْعِظَام کښې الف لام عوض د مضاف الیه دی، مراد ترے نه [عِظَامُ الْحِمَارِ] د خرهٔ هډوکی دی۔ بعض وائی ددهٔ هډوکی مراد دی چه دا ذره ذره شوی وو، او خرئے همدغه شان روغ جوړ ولاړ وو لیکن اول قول زیات ښکاره دے۔

﴿كَيْفَ نُنْشِزُهَا﴾ دا د الْعِظَام نه بدل یا حال دے۔ او نُنْشِزُ د أَنْشَزَ نه دے او د نَشَزَ معنیٰ ده بعضے شے بعض ته پورته کول۔ ابن عطیة وائی: نَشَزَ په آرام آرام سره پورته کول او د یو بل سره پیوسته کولو ته وئیلے شي۔ یعنی څنګه مونږ حرکت ورکوو او بعضے هډوکی بعضو ته راپورته کوو۔ پدے کښې یو بل قراءت (نُنْشِرُهَا) په راء سره دے په معنیٰ د راپورته کولو او راژوندی کولو سره۔ یعنی څنګه ئے راژوندی کوو پس د مرګ ددے نه۔

﴿ثُمَّ نَكْسُوهَا لَحْمًا﴾ نو د خر هډوکی یو یو راجمع شول، او په یو بل کښې ننوتل، او یو ډانچه د هډوکو جوړه شوه او دهٔ ورته کتل، بیا غوښه او پلے ترے راتاو شوے بیا ترے پوستکے تاؤ شو، نو خر ژوندے شو او چغه ئے اُووهله۔ نو دهٔ په خپل ځان او خر او طعام کښې د الله عجیب قدرتونه اُولیدل۔

﴿فَلَمَّا تَبَيَّنَ لَهُ﴾ یعنی هرکله چه ورته ښهٔ ښکاره شوے هغه نخے د قدرت د الله چه دا ئے ناشنا ګنړونکے وو چه مړی به څنګه راژوندی کوی؟۔ نو دغه شان به په قیامت کښې الله تعالیٰ مړی راپورته کوی چه د خاورو نه به ئے اندامونه جوړیږی او غوښه او اندامونه به ئے یو ځائے کیږی او بیا به د الله مخے ته ورځی۔

د تَبَيَّنَ فاعل پټ دے یعنی كَيْفِيَّةُ الْإِحْيَاءِ۔(طریقه د ژوندی کولو)۔یا [تَبَيَّنَ لَهُ آيَاتُ قُدْرَةِ اللهِ مِنْ إِحْيَاءِ الْمَوْتٰى]۔ (دهٔ ته ښکاره شوے نخے د قدرت د الله په راژوندی کولو د مړو)۔

﴿قَالَ أَعْلَمُ أَنَّ اللهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ﴾ (أَعْلَمُ) یعنی اُوس هم پوهه شوم او آینده کښې هم پوهیږم د الله په قدرت۔ دا خو د مخکښې نه د الله په قدرت پوهیدو، خو دلته د علم الیقین نه پس د عین الیقین درجه مراد ده ځکه د یقین درے درجے دی، او بیا په هره درجه کښې ډیرے درجے دی۔ دلته ئے د علم نه روستو په سترګو لیدلو سره عین الیقین راغلو۔ نو دا ډیره کامله درجه ده۔ او دا په دنیا کښې وی، او حق الیقین بیا په آخرت کښې وی۔ انبیاء او نیکانو ته الله تعالیٰ کله نا کله په دنیا کښې عین الیقین درجه ورکوی ځکه چه دوی د حق او د ایمان داعیان دی، کله چه دوی په تذبذب

او شك کښې وي، نو په بل چا به څه اثر اُوکړي ؟ !۔
ددے وجه نه الله تعالیٰ ابراهیم علیه السلام ته ملکوت السموات والارض ورخودلی وو۔ (سورة الانعام)۔
او رسول الله ﷺ ته ئے آسمانونو ته بوتلو او د الله سره ئے خبرے اُوشوے، او جنت جهنم ئے اُولیدل،
دے دپاره چه یقین ئے مضبوط شی چه ذره برابر شك ئے هم باقی پاتے نشو۔
څوك چه دا واقعه هسے د خوب لیدل او د عالَم ملکوت سره متعلقه گنړی لکه صاحب د تدبر قرآن نو خبره ئے خطاء ده۔

وَإِذْ قَالَ إِبْرَاهِيمُ رَبِّ أَرِنِي كَيْفَ تُحْيِ الْمَوْتَىٰ قَالَ أَوَلَمْ تُؤْمِن

او کله چه اُووئیل ابراهیم علیه السلام اے ربه ! اُوخایه ماته چه څرنګ ته ژوندی کوے مړی۔ اووئیل الله آیا ته ایمان نه لرے؟

قَالَ بَلَىٰ وَلَٰكِن لِّيَطْمَئِنَّ قَلْبِي قَالَ فَخُذْ أَرْبَعَةً مِّنَ الطَّيْرِ

اُووئیل هغهٔ : آؤ، (ایمان لرم) او لیکن دے دپاره چه مضبوط شی زړهٔ زما۔ اووئیل الله نو راواخله څلور د مارغانو نه

فَصُرْهُنَّ إِلَيْكَ ثُمَّ اجْعَلْ عَلَىٰ كُلِّ جَبَلٍ مِّنْهُنَّ جُزْءًا

نو اموخته او یو ځائے کړه هغوی لره ځان سره (بیا ئے ټکړه ټکړه کړه) بیا کیږده په هر غر باندے د هغے نه څه حصه

ثُمَّ ادْعُهُنَّ يَأْتِينَكَ سَعْيًا وَاعْلَمْ أَنَّ اللَّهَ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ﴿٢٦٠﴾

بیا آواز ورکړه هغوی ته راځی به تاته په منډه او پوهه شه چه یقیناً الله تعالیٰ زورَور حکمتونو والا دے۔

**تفسیر** : دریم مثال چه دا هم د اصحاب الرشد (د هدایت والا) مثال دے، د لړے رڼرا نه الله ډیرے رڼرا ته بوتلے دے۔ ابراهیم علیه السلام ئے د علم الیقین مرتبے نه عین الیقین مرتبے ته بوتلو۔ او پدے کښې هم د بعث بعد الموت دریم لوئی دلیل دے۔
بعض تاریخی روایاتو کښې راغلی دی چه نمرود دابراهیم علیه السلام نه په مناظره کښې دا مطالبه اُوکړه چه آیا ته پوهیږے چه څنګه الله تعالیٰ مړی راژوندی کوی، تا لیدلی دی؟ نو ابراهیم علیه السلام پدے کښې غلے شوے وو۔ نو روستو ابراهیم علیه السلام د الله نه اُوغوختل چه اے الله ! ما ته په خپلو سترګو د مړی راژوندی کول اُوښایه۔ چه بیا زهٔ خلقو ته د هغے حال وایم۔ (بغوی ۱/۳۲۲)
یا دا چه کله ئے مناظره اُوکړه او د مړی ژوندی کول او مړهٔ کول ئے ذکر کړل، نو خپله دے خبرے ته متوجه شو چه دا به څنګه کیږی؟ خپله لیدل پکار دی، چه یقین زیات شی نو د الله تعالیٰ نه ئے سوال اُوکړو، نو الله یو قسم زورنه ورکړه چه یقین دے نشته؟۔

هغه اُووئیل: شته لیکن یقین زیاتول غوارم۔ دا سوال الله تعالیٰ دے دپاره مونږ ته رانقل کړو چه زمونږ اعتراض او وَهم ختموی چه گنے ابراهیم ﷺ به ددے نه منکر وو یا شکی وو چه د الله نه ئے د مړی ژوندی کولو طریقه لیدل غوختل۔ نو الله فرمائی چه هغه د شك د وجه نه دا سوال نهٔ وو کړے، بلکه د یقین د زیاتولو دپاره ئے کړے وو۔ او پدے کښې مونږ ته ترغیب دے چه تاسو هم د خپل یقین د زیاتوالی کوشش اُوکړئ۔

مفسرینو نور اسباب هم لیکلی دی چه د دریاب په غاړه ئے یو حبشی انسان مړ اُولیدو چه مارغانو، دریابی حیواناتو او درنده گانو دهغه غوښے خوړلے، نودهٔ اُووئیل چه یا الله ! ما ته اُوښایه چه تهٔ به مړی څنگه راژوندی کوے؟، دا حیوانات خو به هم مړهٔ شی، او ذره ذره به شی، او تهٔ به ئے راژوندی کوے۔ (ابن ابی حاتم، ابوالشیخ فی العظمة والدر المنثور)۔

هر سبب چه وی خو د خپل یقین زیاتوالے ئے مقصد وو۔

نو الله تعالیٰ د هغهٔ دعا قبوله کړه، او وے وئیل چه څلور مارغان ذبح کړه، او یو ځائے ئے کړه او بیا دا په مختلفو غرونو واچوه، بیا دا راطلب کړه، نو دا به ستا خوا ته په منډه راځی۔ ابراهیم ﷺ دغسے اُوکړل او هغه تول په رالوتلو سره د هغه خوا ته راغلل۔

**فوائد الآیة** : ۱ – د انبیاء علیهم السلام شان دا دے چه دوی همیشه په خپل ایمان کښې ترقی خوښوی، او دا د نورو صالحینو طریقه هم ده چه په ایمان کښې د زیادت او ترقی کوشش کوی، او چه څومره د انسان ایمان او یقین زیاتیږی، نو الله ته نزدے کیږی۔

د قرآن او د حدیث د ویلو مقصد هم دا دے۔ عام انسانان د هر شی ډیروالے غواړی، صرف یقین کښې ترقی نهٔ غواړی۔ دا ډیر کم همتی ده۔

۲ – پدے آیت کښې د خبر نه معاینه او مشاهدے ته ترقی ده۔ یا د علم الیقین نه عین الیقین ته ترقی ده۔ ۳ – ابراهیم ﷺ دعا کړیده او ښاسته ادب ئے استعمال کړیدے پدے وجه الله تعالیٰ ورته په آسانئ د مړو راژوندی کولو طریقه خودلے ده۔ په یوه ورځ کښې ئے مارغان مړهٔ کړل، او بیرته ئے راژوندی کړل۔ په خلاف د مخکنی شخص چه هغه ظاهر کښې دعا نهٔ ده کړے، او لږ شان استبعاد او ناشنا والے ئے زړهٔ ته راغلے دے (اَنّٰى يُحْيِ هٰذِهِ اللهُ) اگرکه پدے لفظ کښې بے ادبی نشته، لیکن ډیره عاجزی هم پکښې نشته۔ پدے وجه الله تعالیٰ دهٔ ته په تکلیف باندے د مړی راژوندی کول اُوخودل چه سل کاله ئے مړ کړو۔

٤ – د مخکنئ او ددے واقعے فرق دا دے چه مخکښې الله تعالیٰ اُوخودل چه الله د سلو کالو مړی هم راژوندی کولے شی (اگرکه ډیره زمانه پرے تیره شوی وی، ذرات ئے جدا جدا شوی وی)۔ او

دلته وائي چه نقد تازهٔ مړو راژوندي کولو باندې هم الله تعالیٰ قادر دې. نو د هرې واقعې بیله بیله فائده شوه.

﴿أَرِنِي كَيْفَ تُحْيِ الْمَوْتَىٰ﴾ د مړي د راژوندي کیدو د کیفیت او طریقې معلومولو سوال کوي، او نفس پدې خبره خو د هغه د مخکښې نه یقین شته چه الله به مړي راژوندي کوي. خو د هغې د کیفیت لیدل غواړي. لکه چه نبي ﷺ فرمایلي دي چه «هیڅ خبر د سترګو د لیدلو په شان نهٔ دې». (مسند احمد صحیح الجامع الصغیر (٥٢٥٠) بسند صحیح).

﴿قَالَ أَوَلَمْ تُؤْمِن﴾ یعنی ستا پدې خبره ایمان او یقین نشته چه زهٔ مړي راژوندي کولې شم). د ایمان نه مراد تصدیق دې.

نبي ﷺ فرمایلي دي: [نَحْنُ اَحَقُّ بِالشَّكِّ مِنْ اِبْرَاهِيْمَ] چه مونږ د ابراهیم علیه السلام په مقابله کښې په شك کښې واقع کیدو ته زیات نزدې یو. (بخاري ومستدرك حاکم)

نو نبي علیه السلام دا په طریقه د تواضع سره وئیلي دي، او د ابراهیم علیه السلام زیات صفت ئې کړیدې. او مطلب دا دې چه که ابراهیم علیه السلام په شك کښې واقع وې، نو مونږ به هغې ته زیات نزدې وې، او کله چه مونږ شك نهٔ کوو (چه مونږ ادنیٰ یو) نو ابراهیم علیه السلام څنګه شك او شبهه کولې شي؟.

قرطبيؒ او نیشاپوريؒ لیکلي دي چه د انبیاءِ کرامو دپاره دا قسم شك او شبهه جائز نهٔ ده. نو ابن جریرؒ چه د شك جواز ذکر کړې، هغه خبره ابن عطیهؒ وغیره علماؤ رد کړیده.

الله تعالیٰ شیطان ته فرمایلي دي: ﴿إِنَّ عِبَادِي لَيْسَ لَكَ عَلَيْهِمْ سُلْطَانٌ﴾ چه زما مُخلص بندګانو باندې ستا طاقت نهٔ چلیږي. (الاسراء: ٦٥). او د کَیْفَ سره سوال نه هم معلومیږي چه دا شك نهٔ وو ځکه چه کَیْفَ سره د هغه شي په باره کښې تپوس کیږي چه هغه د مخکښې نه سائل ته معلوم وي، لیکن د هغې د حالت او کیفیت تپوس کوي.

﴿قَالَ بَلَىٰ وَلَٰكِن لِّيَطْمَئِنَّ قَلْبِي﴾ (اَیْ لِیَسْکُنَ قَلْبِیْ اِلَی الْمُعَایَنَةِ وَالْمُشَاهَدَةِ) (دې دپاره چه زما زړهٔ د سترګو لیدلو حالت ته آرام حاصل کړي) او د علم الیقین نه عین الیقین حاصل شي. (بغويؒ)

○ [لِیَطْمَئِنَّ قَلْبِیْ بِالْعَیَانِ بَعْدَ خَبَرِ الْوَحْیِ وَالْبُرْهَانِ] (المنار)

یعنی دې دپاره چه زړهٔ مې مضبوط شي په سترګو لیدلو سره پس د خبر د وحي او د دلیل نه یعني د علم استدلالي نه علم ضروري او بدیهي ته نقل شم.

○ [لِاَزْدَادَ اِیْمَانًا مَعَ اِیْمَانِیْ] ...... (مُجاهدؒ، ابراهیمؒ، قتادهؒ) (الدر المنثور وشعب الایمان والبحر المحیط).

چه زما ایمان د مخکښې ایمان سره نور زیات شي).

○ سعید بن جبیرؒ وائي: چه زما یقین زیات شي. نو د اطمینان القلب نه دلته مراد (زیادة

الایمان) دے چه ایمان کښې مے زیادت راشي۔

دا صریح دلیل دے ددے دپاره چه دے تصدیقِ قلبی کښې هم زیادت او کمے راتلے شي۔

امام بخاریؒ په کتاب الایمان کښې دا آیت د ایمان (تصدیق قلبی) د زیادت دپاره دلیل ذکر کړیدے۔ علامه رشیدؒ رضا فرمائي :

[وَالْحَقُّ أَنَّ الْإِيْمَانَ الْقَلْبِيَّ نَفْسَهُ يَزِيْدُ وَيَنْقُصُ أَيْضًا] ...... (المنار ۴۹۲/۹)۔

(حقه خبره دا ده چه د زړهٔ په تصدیق کښې هم زیادت او نقصان راتلے شي)۔

او پدے باندے ئے ډیر آیتونه او احادیث راجمع کړیدي، او وئیلي ئے دي چه د یو بے نظری شبهے د وجه نه په دے آیتونو او احادیثو کښې تاویلات کول هفوه (بیهوده کار) او خطائي ده۔

بعض علماؤ وئیلي دي چه ددے نه خو معلومیږي چه د ابراهیم علیه السلام په زړهٔ کښې د مخکښې نه اطمینان او سکون نهٔ وو، اُوس ئے طلب کوي۔ نو جواب ئے کړے چه دلته معنیٰ دا ده :

[لٰكِنْ لِيَزُوْلَ عَنْ قَلْبِي الْفِكْرُ فِيْ كَيْفِيَّةِ الْإِحْيَاءِ لِأَنِّيْ إِذَا شَاهَدْتُهَا سَكَنَ قَلْبِيْ عَنِ الْجَوْلَانِ فِيْ كَيْفِيَّاتِهَا الْمُتَخَيَّلَةِ وَتَعَيَّنَتْ عِنْدِيْ بِالتَّصْوِيْرِ الْمُشَاهَدِ]

(چه زما د زړهٔ نه دا فکر ختم شي چه مړي به څنګه ژوندي کیږي، څکه چه زهٔ کله دا په خپلو سترګو اُووینم، نو زړهٔ به مے پدے خیالاتو کښې نهٔ ګرځي، بلکه په آرام به شي او ما ته به هغهٔ، د لیدلے شوي تصویر په شان ښکاره شي)۔ نو دلته د اطمینان نه مراد زړهٔ او فکر د خیالاتو نه رابندول دي۔ څکه چه د هر انسان زړهٔ ته دا قسم خیالات راځي او دا مطلب نهٔ دے چه ګنے مخکښې نه ئے اطمینان او یقین نهٔ وو۔ [محاسن التاویل للقاسمي ۶۰۷/۳]

علامه ابن عاشورؒ د قلب نه عِلم، او د اطمینان نه د هغے په محسوسه طریقه حاصلول مراد کړیدي یعني دے دپاره چه په محسوسه طریقه سره ما ته عِلم حاصل شي۔ نو معلومه شوه چه انبیاء علیهم السلام هم د عِلم د مراتبو د زیادت کوشش کوي۔

اطمینان په اصل کښې سکون او آرام ته وئیلے شي او دا په ایمان باندے یوه زیاتي درجه ده

[وَهِيَ أَنْ لَّا يَبْقٰى عَلَى النَّفْسِ فِيْ يَقِيْنِهَا مَطْلَبٌ يُحَرِّكُهَا فِيْ تَحْصِيْلِهَا]

[المحرر الوجیز لابن عطیة ۳٤/۷]۔

او دا دے ته وائي چه د زړهٔ په یقین کښې داسے یو مطلوب او مقصود پاتے نشي چه هغه زړهٔ ته حرکت ورکړي چه هغه حاصل کړي) یعني آخري درجه د ایمان۔ لکه په ﴿ يَا أَيَّتُهَا النَّفْسُ الْمُطْمَئِنَّةُ ﴾ کښې راغلے ده۔

﴿ قَالَ فَخُذْ ﴾ ددے فاء شرط پټه دے، أَيْ إِذَا أَرَدْتَ الطُّمَأْنِيْنَةَ۔ هر کله چه ته اطمینان غواړے نو

راونيسه څلور مارغان. ﴿أَرْبَعَةً مِنَ الطَّيْرِ﴾.

**حکمة** :مارغان ئې ولې خاص کړل ؟ ○ وجه دا ده چه دا انسان ته ډير قريب حيوان دے په خپو او سر کښې. ○ يا دا چه مارغانو کښې د الوتلو صفت دے او د ابراهيم عليه السلام په همت کښې هم پورته والے وو.نو د هغه د همت مطابق امر ورته اوشو.

○ ددے ټکړے کول، او تقسيمول آسان وو. (فتح البيان والوسيط).

○ ددے په اجزاؤ راټلو کښې او بيرته ژوندي کيدو کښې ډير عجيب طريقه سره د ژوند ليدل دي.○ اشاره ده چه په هوا کښې الوتلو سره هم انسان د مرګ او بعث بعد الموت نه نشي خلاصيدے.

○ څلور ئې غوره کړل، دے دپاره چه د څلورو طرفونو نه د هغے د راجمع کيدو مشاهده اوکړي، او ددے خبرے يقين ئې مضبوط شي چه د قيامت په ورځ به دغه شان د شپيلۍ په پوکلو سره تمام مخلوقات د هر طرف نه خپل رب طرف ته رامنډے وهي.

**حکمة** : دا څلور کوم مارغان وو ؟ نو ددے تعيين قرآن کريم نۀ دے کړے څۀ فائده پکښې دومره نۀ ښکاري، ليکن علماؤ ددے په تعيين کښې مختلف اقوال ذکر کړيدي :

○ مجاهدؒ او عکرمۀ وائي : کونتره، چرګ، طاوس او کارغۀ وو. او ابن عباسؓ د کارغۀ په ځائے غرنوق يعني ډينګ ذکر کړيدے. (ابن کثير). بعض علماؤ نسر مارغه ذکر کړيدے.

**فائده** : دا څلور مارغان ئې ولې خاص کړل؟ پدے کښې حکمة دا دے چه پدے کښې انسان ته اشاره ده چه ددے مارغانو صفات د ځان نه اوباسه. په طاوس کښې زينت دے او د جاه او مرتبے محبت دے.نو د دنيا د ډير زيب وزينت نه به ځان ساتي.

او په چرګ کښې شهوت دے.علماء فرمائي :

[إِنْ كُنْتَ تُرِيْدُ أَنْ تَعْلَمَ عِلْمَ الْيَقِيْنِ فَاجْعَلْ بَيْنَكَ وَبَيْنَ الشَّهْوَاتِ خَنْدَقًا مِنَ الْحَدِيْدِ]

(که تۀ غواړے چه علم اليقين ته اورسے نو د شهواتو او خپل مابين کښې د اوسپنے يوه کنده اوګرځوه).

او په کونتره کښې غفلت دے.او په کارغۀ کښې سخت حرص دے. او په نسر مارغۀ کښې د خوراک سخت محبت دے، نو انسانان هم پدے صفاتو کښې د مارغانو مشابه دي، نو څوک چه دا صفات د ځان نه اوباسي، د جنت اعلیٰ درجاتو ته به اورسيږي، او د نيکبختۍ مرتبے به حاصلے کړي. ابراهيم عليه السلام ظاهري ذبح کړل او عام انسان به ئې صفات ذبح کوي نو اعلیٰ يقين او ايمان ته به رسيږي. (خازن والسراج المنير).

﴿فَصُرْهُنَّ إِلَيْكَ﴾ ددے دوه معنے دي : (۱) يوه معنیٰ [أَمِلْهُنَّ وَاضْمُمْهُنَّ] دا ځان سره اموخته کړه

او ځان سره ئې یوځائې کړه) پدې معنیٰ (اِلَيْكَ) د (صُرْهُنَّ) سره متعلق دے۔ ددے سره به دا عبارت پټ مراد وی چه [ثُمَّ قَطِّعْهُنَّ وَمَزِّقْهُنَّ] بیا ئې پریکړه او ذره ذره ئې کړه)۔ لکه د روستو (جُزْءًا) نه معلومیږی۔ (۲) دویمه معنیٰ (قطع ئې کړه او پریکړه) یعنی وے ټکوه او چکښی ترے جوړه کړه۔ دا معنیٰ ابن عباسؓ، مجاهدؒ، ابوعبیدةؒ او ابن الانباریؒ ذکر کړیده۔پدے معنیٰ به اِلَيْكَ) د خُذْ سره متعلق وی۔ (قرطبیؒ ۳۰۱/۴)

نو دا لفظ په دوه معنو کښې مشترك دے۔ او ډیر صحیح قول دا دے چه دا عربی لفظ دے۔

عکرمهؒ وائی: دا نبطی لغت دے۔ قتادهؒ وائی : حبشی دے۔ وَهبؒ وائی : رومی لغت دے۔

او (صُر ) د صاد په پیښ او زیر دواړو سره راغلے دے۔ دا امر دے د صَارَ يَصُوْرُ صُوْرًا یا صَارَ يَصِيْرُ صُوْرًا نه۔ صور کوږوالی او مائله کیدو او پریکولو ته وائی۔ ددے وجه نه اَصْوَر هغه شخص ته وائی چه د هغهٔ څټ کوږ شوے وی۔

د اموخته کولو او د مائله کولو د حکم فائده دا ده چه ټول اجزاء او رنګونه ئې اُوپیژنی چه شك ئې رانشی چه ما وژلی یو قسم مارغان وو، او راغلی بل قسم دی۔ (ابن عاشور وفتح البیان)

دلته د قطع او پریکولو معنیٰ غوره ده، ځکه چه د اموخته کولو او مائله کولو په معنیٰ سره تقدیر ته حاجت راځی او هغه د عربی قانون خلاف دی۔ دویم دا چه ددے نه بعض معتزلو (ابو مسلم اصفهانی) او منکرین حدیث انکار کوی چه ابراهیم علیه السلام دا ذره ذره کړی نهٔ وو، بلکه ځان سره ئې اموخته کړل او شپیلے ئې ورته اُووهلو نو هغوی راوالوتل۔ دا تحریف دے۔ځکه چه بیا روستو (جُزْءًا) معنیٰ بالکل بیکاره کیږی ځکه چه د هغے معنیٰ ده، ټکړے ټکړے کول۔ ځکه چه جُزء (حصه) د تَجَزِّی (ټکړے) کولو نه پیدا کیږی۔

بله دا چه پدے کښې بیا د ابراهیم علیه السلام خصوصیت څهٔ شو؟، دا کار خو د کوترو، مرزانو او ښارو ساتونکے هره ورځ کوی۔ که ابراهیم ته ئې دا تجربه کولے، نو پدے سره د ابراهیم علیه السلام د مړی د ژوندی کیدو د طریقے معلومولو اشکال نهٔ ختمیدو !!۔

﴿ثُمَّ اجْعَلْ عَلٰى كُلِّ جَبَلٍ مِّنْهُنَّ جُزْءًا﴾ ددے نه معلومیږی چه ابراهیم علیه السلام هغهٔ ذره ذره کړی وو۔ (۱) (كُلِّ جَبَلٍ) نه څلور واړو طرفونو ته چه کوم غرونه وی هغے باندے کیخودل مراد دی۔

(۲) یا څو مره چه ممکن وی په هغے باندے دا حصے د مارغانو واچوه۔ دا (كُل) د استغراق عرفی دپاره استعمال شویدے۔ غرونه ئې خاص کړل ځکه چه په غرهٔ کښې داسے حصے پیدا کول ډیر مشکل وی، لیکن الله ته هیڅ ګران نهٔ دی۔ دارنګه غرونه اُوچت وی نو دهٔ ته به د مارغانو د اجزاؤ او اندامونو لیدل ډیر ښکاره وی۔

﴿ ثُمَّ ادْعُهُنَّ يَأْتِينَكَ ﴾ د دعا نه مراد آواز كول او راغوختل دي. يعنى دعاء النداء ده. او دعا د عبادت مراد نهٔ ده، ځكه چه مخلوق ته د عبادت راهدد شه وئيل شرك دے. او دلته ابراهيم ﷺ د مارغانو نه كوم مدد غواړي ؟!. آيا الله تعالىٰ په شرك حكم كوي څهٔ ؟!!.

نو ددے نه د بريليانو او گمراهانو دليل نيول غلط دي چه وائي ابراهيم ﷺ مارغانو ته آواز كړے نو كه مونږ رسول الله ﷺ ته آواز اُوكړو، نو دا خو څهٔ ناروا نهٔ دے ځكه چه مارغان بنهٔ دي، كه رسول الله ﷺ ؟. دوى اهل زيغ دي چه د قرآن د متشابهاتو پسے روان دي.

(سَعْيًا) ددے نه مراد په منډه او تيز راتلل دي. يا په خپو پياده راتلل مراد دي، دے دپاره چه هيڅ شك شبهه پكښې پاتے نشي چه دا گنے هغه مارغه نهٔ دے. او پدے كښې بل قدرت د الله تعالىٰ دے چه د مارغانو عادت خو الوتل دي ليكن دا به خلافِ عادت په زمكه راروان وي. بعض وائي : د سعى نه مراد رالوتل دي. (بغوى).

اول قول غوره ښكاري ځكه چه په هر عرف كښې منډه د تيز والي دپاره استعماليږي.

نو ابراهيم ﷺ هغه مارغان چكنې كړل په داسے طريقه چه قيمه شو، د بڼرو، هډوكو او غوښے پته پكښې نهٔ لگيده، او په هر غرئے د هغهٔ مارغانو برخے واچولے او سرونه ئے ځان سره كيخودل، او دا نور تے په نږدے غرونو تقسيم كړل. څهٔ ئے په يو غر او څهٔ ئے په بل غر. نو دهٔ چه كله آواز اُوكړو نو دهٔ اُوليدل چه بڼرے بڼرو ته رالوځي او وينه وينے ته او غوښه غوښے ته او د هر مارغه اجزاء بعض د بعضو سره يو ځائے كيږي او هر مارغه جدا جدا پوره كيږي او ددهٔ خواته رامنډے وهي.

دنيا كښې اُوس انسانان داسے مصنوعات جوړولے شي، نو الله رب العزت به څهٔ قادر نهٔ وي؟! ليكن مونږ د الله د قدرت د ډيرو نخو د ليدلو سره اموخته شوي يو، هيڅ اثر رايانديے نهٔ كوي، او عام انسانان دے ته فكر هم نهٔ كوي چه په الله تعالىٰ خپل يقين مضبوط كړي.

﴿ وَاعْلَمْ أَنَّ اللَّهَ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ﴾ عزيز يوه معنىٰ غالب. نو الله دومره قدرت والا دے چه هغه په هر څهٔ قادر او غالب دے. او حكيم دے، په هر كار كښې ئے حكمت وي، نو پدے واقعه كښې ئے هم ډير حكمتونه رابنكاره كړل. د قيامت اثبات ئے پكښې اُوكړو. چه انسانان او پيريان به هم دغه شان قيامت ته په منډه راځي. د ابراهيم ﷺ يقين ئے پوخ كړو.

پدے سورت كښې دا پنځمه واقعه ده چه په دنيا كښې الله تعالىٰ حقيقةً مړي راژوندي كړي دي.

مَثَلُ الَّذِينَ يُنْفِقُونَ أَمْوَالَهُمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ كَمَثَلِ حَبَّةٍ أَنْبَتَتْ

مثال د هغه كسانو چه خرچ كوي مالونه خپل په لاره د الله كښې په شان د حال د يوے دانے دے چه رازرغون كړي

سَبْعَ سَنَابِلَ فِي كُلِّ سُنْبُلَةٍ مِئَةُ حَبَّةٍ وَاللّٰهُ يُضَاعِفُ لِمَنْ يَّشَآءُ وَاللّٰهُ وَاسِعٌ عَلِيْمٌ ﴿۲۶۱﴾

اُووه وږي په هر وږي کښې سل دانې وي او الله دوچنده کوي چا لره چه اُوغواړي او الله فراخه فضل والا دے، پوهه دے۔

**تفسیر:**

**مضمون** : د مسلمانانو اقتصادی نظام برابرول په اسلام کښې ډیر اهمیت لري، پدے وجه الله تعالیٰ دلته د نظام د برابرولو اصول او مسائل بیانوي چه انفاق کوئ او مالونه مهٔ جمع کوئ، دارنګه صحیح طریقو سره تجارتونه کوئ او د سود او د سُودي نظام نه ځان بچ کړئ، هسے نهٔ چه دنیا او آخرت مو تباه نشي۔ او په تجارت کښې د اسلامي اصولو لحاظ اُوساتئ۔ نو احسان، عدل او ظلم درے واړه بیانوي۔

تفصیلي مضمون داسے دے چه تر (۲۷٤) آیت پورے د انفاق متعلق خبرے دي۔

د اول آیت عنوان دے ترغیب انفاق ته په مثال ذکر کولو سره۔ بیا د انفاق في سبیل الله شرطونه بیانوي چه دوه سلبي دي او درے ثبوتي۔ سلبي دا چه مَنّ (زباددول) او اذی (ضرر رَسَول) به نهٔ وي۔ او درے ثبوتي دي چه هغه به روستو په (۲۶۵) آیت کښې راځي۔(ابتغاء مرضات الله)۔ د الله د رضا دپاره به وي، (تَثْبِيْتًا مِّنْ اَنْفُسِهِمْ) یا د زړهٔ د مضبوطوالي دپاره۔ او انفاق به طیب (پاك او حلال) څیز وي۔

بیا د انفاق د نشتوالي په وخت کښې د اخلاقو بیان کوي په (۲۶۳) آیت کښې چه سائل ته به غصه نهٔ کوے او بد رد به نهٔ وائے۔

بیا د انفاق عدمي شرطونه او د هغے د ضائع کیدو مثال په (۲۶٤) آیت کښې، بیا صحیح انفاق او د هغے مثال۔ بیا په (۲۶۶) کښې زجر دے سره د تخویف نه ریاء کار او منافق ته، سره د مثال ذکر کولو نه۔ بیا وائي انفاق د دوه قسمه مالونو نه کولے شي، د تجارت نه او د زمکے نه۔ او د ردي مال د خرج کولو نه منع شویده۔ او امر دے چه انفاق به د طیباتُ نه کولے شي۔ بیا انفاق ته ترغیب دے په بله طریقه چه هغه دعوت ورکول دي، چه دوه څیزونه د شیطان د طرف نه دي او دوه څیزونه د الله د طرف نه دي۔ نو د الله دعوت اُومنئ او د فقر نه مهٔ یریږئ۔ بیا ترغیب الی القرآن دے چه د مالونو په ګټلو قرآن هیر نکړئ۔

بیا دوه قسمه نفقه نفلي او واجبي په (۲۷۲) آیت کښې، بیا د صدقے دوه قسمه په دوه طریقو سره، په پټه او په ښکاره۔ بیا انفاق په مشرکانو بیانوي چه په دوي هم انفاق کول جائز دي۔ او فائده د انفاق او بیا مصارف د انفاق بیانوي، سره د شپږو صفاتو د هغه کسانو نه چه هغوی باندے انفاق کولے شي۔ بیا تعمیم د اوقاتو د انفاق ذکر کوي چه انفاق له څهٔ وخت خاص نهٔ دے ډا

په (۲۷٤) آیت کښې کیږي۔
بیا د انفاق برعکس شے ربا (سود) بیانوي چه د دغه ځائے نه د ظلم په احکامو رد کوي۔ او په سود کولو توبیخ او زورنه ورکوي او تخویفات ئے ورکړي چه څوك سود کوي نو دغه سره به الله تعالیٰ سخت حساب کوي، بیا د سود بے برکتي بیانوي په (۲۷٦) آیت کښې، د هغے مقابل کښې ایمان والو ته زیرے ورکوي، بیا منع ده د سود نه او د سود خورو سره ئے اعلان جنګ کړے۔ بیا ورسره مسئله د قرض ده چه چا پاندے قرض واوړي نو که غریب وي، هغه ته به انتظار کولے شي۔ بیا په آخر کښې تخویف د آخرت دے چه د حرامو نه هله بچ کیدے شي چه د آخرت یره ورسره پیدا شي۔ په (۲۸۱) کښې۔ دا ډیر عجیب آیتونه دي۔

## ارتباطونه

۱ – په آیت (۲۵٤) کښې ئے ایمان والو ته په انفاق امر کړے وو، بیا مینځ کښې د توحید او دوباره ژوندي کیدو خبره راغله، نو پدے سره ایمان والا انفاق ته تیار شو نو اُوس د انفاق تفصیل، سره د فضائلو او شرطونو نه ذکر کوي۔ (ابن عاشور)

۲ – دا رنګه مخکښې واقعاتو کښې بعث بعد الموت ثابت شو چه دوباره ژوند حق دے نو اُوس وائي چه ددے دپاره توښه تیارول هم ضروري دي چه د هغے یوه برخه انفاق دے۔

۳ – مخکښې د بعث بعد الموت دپاره ئے د ذي روح شي راژوندي کول په دلیل کښې ذکر کړل، اُوس د هغے دپاره دلیل د بوټو په راویستلو سره ذکرکوي۔

**عنوان الآیة** : تَرْغِیبٌ إِلَی الْاِنْفَاقِ عَلٰی سَبِیلِ الْمِثَالِ ۔ د انفاق فضیلت او هغے ته د مثال په ذکر کولو سره ترغیب بیانوي۔

پدے آیت کښې الله تعالیٰ په خپله لاره کښې خرچ کونکو ته سخت ترغیب ورکړیدے۔ لکه روستو راځي۔

﴿مَثَلُ الَّذِینَ یُنْفِقُونَ﴾ دا مثال یا د سړي دے یا د نفقو دے۔ د دواړو حاصل یو راوځي۔ نو دلته به مضاف حذف وي [مَثَلُ نَفَقَاتِ الَّذِینَ] یعني د الله په لاره کښې د نفقو مثال د یوے دانے دے چه په هغے کښې اُوه وږي وي، او په هر وږي کښې سل دانے وي، نو دا اُووه سوه دانے شوے نو څوك چه د الله په لاره کښې یوه روپۍ ورکړي، نو الله به اُوه سوه روپۍ ورکړي، که یوه اُوښه ورکړي یا کور ورکړي نو الله به اُووه سوه ورکړي بلکه بعضو خلقو له الله ددے نه هم زیات ورکوي۔ ځکه چه الله فراخه فضل والا دے۔

یا مضاف روستو حذف دے یعني مَثَلُ الَّذِینَ یُنْفِقُونَ اَمْوَالَهُمْ کَمَثَلِ بَاذِرِ حَبَّةٍ ۔ مثال د هغه کسانو

چه د الله په لار کښې مالونه خرچ کوي په شان د مثال د کرونکي د دانې دې چه هغهٔ دغه مخکښې صفاتو والا وي۔ نوکه د سرې مثال شي او که د نفقې مثال شي، دواړه یو شې دې۔

﴿ أَمْوَالَهُمْ ﴾ یعنې چه خپل مالونه لګوي، او پردي مالونه لګول یا د هغوي نه په غلا یا ډاکه یا په بله غیر شرعي طریقه باندې حاصل شوي مال لګول صحیح نهٔ دي۔ نو اول به خپل مالونه خرچ کولې شي۔ آو، که یو انسان د بل چا نه د هغه په رضا مال واخلي او د الله په لار کښې ئې خرچ کړي په صحیح نیت سره نو هغه ته هم الله تعالیٰ پوره اجر ورکوي، لکه حدیث کښې دي، هغه خزانچي چه امانتدار وي او مال ورسره پروت وي او د مالك په حکم سره ئې دا په خوشحالۍ باندې ورکوي نو دهٔ له هم الله اجر ورکوي۔ (متفق علیه)

بیا دا انفاق عام دې که په ځان ئې لګوي، او که په بل ئې لګوي، دې دپاره چه د جهاد او د دعوت کولو دپاره بدن قوي شي۔ علماء او د دین دُعاتو باندې پدې نیت سره خوراکونه کول چه هغوي د دین دپاره مضبوط شي، دا هم پکښې داخل دي۔

﴿ فِي سَبِيلِ اللَّهِ ﴾ د سبیل الله مصداق :

۱- فِيْ جَمِيْعِ اَبْوَابِ الْخَيْرِ (تفسیر معالم للبغوي)

یعنې د خیر او نیکۍ په ټولو کارونو کښې مال لګولو ته في سبیل الله وائي، که جهاد وي، که مسجد او مدرسه جوړوي، که په پُل او لاره جوړولو ئې لګوي، او که مسکین او فقیر باندې خرچ کوي۔

۲- لِإِشَاعَةِ دِيْنِ اللّٰهِ۔ یعنې د دین د اشاعت دپاره ئې لګوي۔ د فائده مندو عِلمونو نشر او اشاعت کوي، کتابونه چهاپ کوي، دعوتي کیسټې خوروي۔ دیني پروګرامونو کښې ئې لګوي۔

۳- لِرِضَا اللّٰهِ۔ چه د الله رضا پکښې وي، او د الله رضا د رسول الله ﷺ د تابعدارۍ نه بغیر نهٔ حاصلیږي، نوکه انسان په اوله ورځ د مرې خیرات کوي نوکه دې کښې د الله د رضا نیت وي، هم قبول نهٔ دې ځکه چه د رسول الله ﷺ مهر او ټاپه پرې نهٔ ده وهلې شوې۔ او داسې نور مثالونه واخله۔ نو دا اول شرط د انفاق شو چه د الله دپاره به وي۔

﴿ أَنبَتَتْ سَبْعَ سَنَابِلَ فِي كُلِّ سُنبُلَةٍ مِّائَةُ حَبَّةٍ ﴾ یعنې د یو دانې نه یو دکې راوخې چه په هغې کښې اُووه (۷) ځانګې خورې شي، او په هره ځانګه کښې یو وږې وي چه په هغې کښې سل دانې وي۔ نو د یوې دانې نه الله اُووه سوه دانې زیاتې کړې۔ داسې وږې ډیر کم وي چه په هغې کښې اُووه سوه دانې وي، دا په جوار او کله په غنمو کښې کیدې شي لکه چه ابن عطیة وئیلي دي لیکن دلته د پوهې دپاره مثال ذکر دې، او په مثال کښې وجود ضروري نهٔ وي، بلکه صرف ذهني تصویر غرض وي، نو دلته د زیات اجر تصویر ذهن کښې اچول مقصد دې۔ او بیا دلته د اُووه سوه عدد د تعیین دپاره

نهٔ دے بلکه د ذهن نه د رانژدے کولو دپاره دے، ځکه چه په عربی ژبه کښې غالباً اُووه او اووِیا او اووه سوه د ډیر والی دپاره ذکر کیږی۔
او دا مقصد نهٔ دے چه د اُوه سوو نه زیات نهٔ ورکوی بلکه روستو وائی وَاللّٰهُ یُضٰعِفُ لِمَنْ یَّشَآءُ ۔ چا له چه الله زیات غواړی ورکوی۔
حافظ ابن کثیرؒ فرمائی: د دانو مثال ئے ذکر کړو او اُووه سوه ئے اول نه ذکر نکړو ځکه چه پدے کښې اشاره ده چه نیك اعمال الله تعالیٰ د خپل صاحب دپاره وخت په وخت زیاتوی لکه څنګه چه فصل د یوے دانے نه ډیریږی، کله چه په مزیداره زمکه کښې اُوکرلے شی۔ او حدیث د صحیحینو کښې د ابو هریرهؓ نه مرفوع روایت دے:
[مَنْ تَصَدَّقَ بِعِدْلِ تَمْرَةٍ مِنْ كَسْبٍ طَيِّبٍ وَلَا يَصْعَدُ إِلَى اللّٰهِ إِلَّا الطَّيِّبُ فَإِنَّ اللّٰهَ يَتَقَبَّلُهَا بِيَمِينِهِ ثُمَّ يُرَبِّيهَا لِصَاحِبِهَا كَمَا يُرَبِّي أَحَدُكُمْ فَلُوَّهُ حَتّٰى تَكُونَ مِثْلَ الْجَبَلِ]۔
(څوك چه د یوے کجورے په اندازه د حلال کسب نه صدقه اُوکړی، او الله تعالیٰ ته صرف حلال او پاك مال خیژی، نو الله دا په ښی لاس سره قبلوی، بیا ئے ددے صدقے والا دپاره زیاتوی لکه څنګه چه یو تن ستاسو د خپل آس بچے غټوی، تردے چه دا صدقه د غر په شان شی)۔
په صحیحینو کښې د ابو هریره ﷛ روایت دے چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل چه:
«د بنیادم نیك کارونه الله تعالیٰ زیاتوی، یوه نیکی د لسو چندو نه واخله تر اُووه سوو پورے زیاتیږی»۔ د ابن مسعود ﷛ روایت دے چه یو سړی یو اُوښ را واخستو او رسول الله ﷺ ته راغلو، او وے وئیل چه دا زهٔ د الله په لاره کښې ورکوم۔ نو نبی ﷺ اُوفرمایل چه «ددے په بدله کښې به تا ته د قیامت په ورځ الله تعالیٰ اُووه سوه مُهار والا اُوښانے درکوی»۔

(احمد، مسلم، نسائی، حاکم)۔

﴿وَاللّٰهُ يُضٰعِفُ لِمَنْ يَّشَآءُ﴾ د (لِمَنْ يَّشَآءُ) نه مراد یا هر څوك دے چه هر چا له الله تعالیٰ اُووه سوه چنده بانديے بدله ورکوی۔ نو د نیکئ ادنیٰ درجه دا ده چه یو په لسه درکړے شی، متوسطه درجه دا چه یو په اُوه سوه او اعلیٰ درجه دا ده چه د اُوه سوو نه هم زیاته کړے شی۔
○ ظاهر معنیٰ دا ده چه الله ددے نه ئے هم زیاتوی، یعنی اُووه سوو نه زیات یو په اُوه زره اُووه لاکهه، اُووه کروړه، اُووه اربه تر غیر انتهاء پورے۔ دا هغه چا له زیاتوی چه په جذبه او شوق سره مال خرچ کړی، او په موقعه او محل کښې ئے استعمال کړی۔
﴿لَا يَسْتَوِي مِنْكُمْ مَنْ أَنْفَقَ مِنْ قَبْلِ الْفَتْحِ﴾ یو انسان د تکلیف په وخت کښې مال خرچ کړی، او بل ئے د راحت په وخت کښې د دواړو اجر چرته برابر کیدے شی۔ یو انسان د خپل غُربت په وخت

خیراتونه کوی، او بل ئې د مالدارئ په حالت کښې، دواړه چرته برابر دي!!۔
یو انسان ئې تکلیف زده ته ورکوی، او بل ئې مالدار ته دواړه نهٔ دي برابر۔
دغه شان الله تعالیٰ جذبې او محبت، اخلاص او ضرورت ته ګوری۔ د زړهٔ د کیفیت په وجه په عمل کښې او د هغې په ثواب کښې تبدیلی راځی۔ دوه کسان به لس روپئ ورکړی، یو له به الله تعالیٰ بدله یو په کروړ ورکړی، او بل له به ئې په لس چنده ورکړی ځکه چه جذبه او شوق کښې فرق وی۔
﴿وَاللّٰهُ وَاسِعٌ عَلِیْمٌ﴾ تتمه کښې ئې وَاسِعٌ راوړو، اشاره ده چه الله تعالیٰ سره بدلې فراخه دی، نو څومره چه اخلاص سره انفاق اُوشی نو الله به د هغې اجر هم بغیر د معینې اندازې نه ورکوی، او چا له چه الله تعالیٰ اجر ورکوی نو د هغه په نیت باندې عَلِیْم او پو هه دې۔

## د مثال تفصیل او تطبیق

یوه دانه چه په صحیح او مزیداره زمکه کښې اُوکرلې شی، نو د هغې نه اُوه وږی پیدا شی، او بیا په هر وږی کښې سل دانې راوخیژی، نو اُوه سوه دانې شوې، بیا چه کله دا اُوه سوه دانې په صحیح زمکه کښې اُوکرلې شی، او ددې صحیح پالنه او تربیت اُوکړې شی، نو د هغې نه دغه شان نور اُووه سوه دانې پیدا کیږی، نو اُووه سوه چه په اُووه سوه کښې ضرب کړې شی، نو څلور لاکهه نوی زره (۴۹۰۰۰۰) دانې جوړیږی، بیا دغه شان چه دا ټولې دانې په یوه فراخه زمکه کښې اُوکرلې شی، او صحیح تربیت ئې کولې شی، نو کروړونو دانې ترې جوړیږی چه دنیا به په پړې مَړهٔ شی۔او چه دغه سلسله د کروندې روانه وی، نو بې شماره او بې حده دانې به تیاریږی چه انسانان او حیوانات به ترې فائدې اخلی۔
نو دغه شان که څوک په یو داعی، مُجاهد او طالب علم باندې خرچه اُوکړی، او بیا د هغه صحیح تربیت اُوکړې شی، او په قرآن او حدیث سره هغه موړ کړې شی۔ نو دا مجاهد او داعی او طالب علم به خپل کوشش کوی، نور اُووه کسان به تیاروی، او دهغوی تربیت به کوی، بیا هر یو د دغه اُووه کسانونه کوشش او دعوت او جهاد اُوکړی، تردې پورې چه د صحیح عقیدې، د اعمالو او اخلاقو والا به په زرګونو خلق تیار کړی چه په هغوی به ډیر امت ته فائده اُورسیږی، هر ځائې کښې به خلق په دین او صحیح عقیده سیراب شی۔
ډیر دینی مرکزونه به آباد شی، ددې ټولو اجر به هغه شخص ته ملاویږی چه دهٔ د دین په دغه موقعه کښې مال لګولې دې، او د یو نیک عمل سلسله ئې جاری کړیده۔ نو دا دهٔ دپاره صدقه جاریه شوه چهٔ پس د مرګ نه به دهٔ ته ددې اجرونه رسیږی۔
نو پدې مثال کښې مال لګولو ته ډیر زیات ترغیب دې ګویا کښې انفاق بعینه صدقه جاریه

دہ۔دارنگه دا مطلب هم دے چه دیوے روپئ په خرچ کولو سره به الله تعالیٰ بنده ته اُووه سوه روپئ اجر ورکوی او دا ئے ادنیٰ درجه ده۔

| اَلَّذِيْنَ يُنْفِقُوْنَ اَمْوَالَهُمْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ثُمَّ لَا يُتْبِعُوْنَ مَا اَنْفَقُوْا |
|---|
| هغه کسان چه خرچ کوی مالونه خپل په لاره د الله کښې بیا نهٔ وروسے کوی د هغې پسے چه کوم ئے خرچ کړی وی |
| مَنًّا وَّلَا اَذًى لَّهُمْ اَجْرُهُمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ ﴿۲۶۲﴾ |
| زبادنه او نهٔ ضرر۔دوی دپاره اجر دے په نزد د رب د دوی او نهٔ به وی خه یره په دوی او نهٔ به دوی غمجن شی۔ |

**تفسیر:** پدے آیت کښې یو زیرے دے هغه چا ته چه د الله په لاره کښې صحیح انفاق کوی، دویم سلبی او عدمی شرطونه د انفاق بیانوی چه زبادول او ضرر ورکول به پکښې نهٔ وی۔

﴿ثُمَّ لَا يُتْبِعُوْنَ﴾ قاسمیؒ د زمخشری نه د (ثُمَّ) په باره کښې نقل کړی چه (ثُمَّ) دلته د تراخی د زمان دپاره نهٔ ده، بلکه د انفاق او د هغې پسے د زبادنے او اذی ورپسے کولو د تفاوت دپاره ده۔ یعنی دا دواړه کارونه یو ځائے کول د عقل نه ډیر جدا دی۔ او دیته تراخی رتبی هم وئیلے شی۔

قاسمیؒ خپله وئیلی دی چه زما په نیز غوره دا ده چه (ثُمَّ) په داسے مقاماتو کښې دلالت کوی په همیشوالی د روستو فعل په مخکښې فعل پسے، یعنی د انفاق نه روستو زبادنه او اذی نهٔ کول به همیشه دپاره وی، د یو وخت دپاره به نهٔ وی۔

یعنی دا احسان به بالکل هیر کړی لکه دا معنیٰ په (ثُمَّ اسْتَقَامُوْا) کښې هم ده چه د ربوبیت د اقرار نه روستو به په هغې باندے همیشوالے کوی۔او د خواهشاتو تابعداری به نهٔ کوی۔او بیا ئے وئیلی دی چه دا معنیٰ په سین کښې هم جوړیږی لکه په ﴿اِنِّيْ ذَاهِبٌ اِلٰى رَبِّيْ سَيَهْدِيْنِ﴾ کښې چه دلته داسے نهٔ ده چه ابراهیم ؑ ته هدایت روستو حاصل شویدے۔ بلکه مقصد دا دے چه ابراهیم ؑ فرمائی چه الله به ما په هدایت باندے همیشه پاتے کوی او ددے موده به تر مرګه پورے اُوږده وی۔ (تفسیر القاسمی۳/٦١٠)

﴿مَنًّا وَّلَا اَذًى﴾ (مَن) زبادولو ته وئیلے شی، دا په دوه قسمه دے (۱) یو د الله په صفاتو کښې دے چه الله ته (مَنَّان) زبادونکے وائی او دا د الله ښکلے صفت دے۔ (۲) او من د انسان په باره کښې ډیر بد صفت دے، ددے وجه نه بعض سلف فرمائی: [اِذَا اصْطَنَعْتُمْ صَنِيْعًا فَانْسَوْهُ وَاِذَا اُسْدِيَ اِلَيْكُمْ صَنِيْعٌ فَلَا تَنْسَوْهُ] (کله چه تاسو چا سره احسان اُوکړئ نو هیر ئے کړئ او کله چه تاسو سره څوک احسان اُوکړی نو مهٔ ئے هیروئ)۔

**حکمة**: د زیادونې د منع علت دا دے (۱) چه پدے کښې استذلال (ذلیله) کول د هغه شخص دی چه هغه باندے صدقه شوی وی۔ او دا صرف د الله سره لائق دے چه بنده گان هغه ته ذلیله شی۔
(۲) وجه دا ده چه پدے سره ستا په زړهٔ کښې ترفع او تکبر راځی چه گوره ما داسے کړی دی۔
(۳) وجه دا ده چه منعم حقیقی خو الله دے۔ هغهٔ دا نعمت پیدا کړے وو او الله تعالیٰ هغه له ورکړو، تهٔ پکښې یوه واسطه شوے۔ نو واسطے له څهٔ پکار دی چه هغه زیاد نه کوی بلکه د الله شکر اُوکړه چه تهٔ ئے واسطه کړے۔
(٤) وجه دا ده چه تا ددے احسان په بدله کښې د الله نه اجر او مزدوری اخستے ده، هغه درله زړهٔ او مال فراخه کړو او د صدقے توفیق ئے درکړو او اجر ئے درکړو، نو تهٔ څنگه په هغه باندے احسان کوے دا خو ته ظلم کوے چه مزدوری ډے هم واخستهٔ، او بیا زیادول هم کوے۔
(۵) پدے سره زړهٔ د ریاء او منافقت نه ډکیږی او انسان پرے د الله نه وړاندے کیږی۔ او اسلام انفاق ددے دپاره نهٔ دے مقرر کړے چه صرف د فقیر خیټه ډکه شی او حاجت ئے ختم شی بلکه اصل مقصد پکښې ډورکونکی د نفس تزکیه او صفائی او تهذیب دے بلکه پدے کښې د انسانی همدردی او وروروَلیٔ فکر پیدا کول دی، او دا رایادول دی چه الله ما سره دا احسان کړے۔ او هغه ما ته دا حکم کړے چه زهٔ به ددے نه خوراك کوم په غیر د اسراف او تکبر نه او د الله په لار کښې به ئے خرچ کوم په غیر د منع او زیاد او ضرر نه۔ (فی ظلال القرآن)۔
بیا مَن په دوه قسمه دے۔ ۱ – مَن بِالْقَلْب (په زړهٔ) هم وی۔ چه زړهٔ کښې دا خبره راولی چه زهٔ په فلانی ډیر مُحسن (احسان کونکے) یم۔ او ځان پرے لوئی گنړی۔
۲ – او باللسان (په ژبه) هم وی۔ چه یو انسان سره احسان اُوکړی، بیا ورته وائی چه ما تا سره ډیر احسانات کړیدی، او تا هیڅ شکر اُونکړو۔
یا چا ته اُووائی چه ما فلانی سره احسان کړے، او بیا هغهٔ دهٔ ته راورسیږی، نو دهٔ ته پرے ضرر ملاؤ شی۔ لکه ډیر خلق وائی فلانے ما ته راغلے وو، پیسے رانه غوختے نو ما ورته دومره ورکړے۔ فلانے راغلے وو، چرگان مے پرے اُوخوړل۔ فلانے مونږ کره هر وخت راځی او زهٔ پرے داسے داسے خوراکونه کوم۔ وغیره۔
(اَذًی) ددے هم ډیر صورتونه دی (۱) دا پیغور ورکړی چه (اِلٰی کَمْ تَسْأَلُ وَکَمْ تُؤْذِیْنِیْ) څو پورے به داسوالونه کوے، او ما له به ضرر راکوے)۔ الله ډے ما ستا نه خلاص کړی، او زهٔ تا ته چا خودلے یم۔ (۲) د هغه چا په مخکښې دا انفاق یادول چه هغهٔ شخص ئے نهٔ خوښوی چه هغه پرے خبر شی۔ (بغوی، خازن)۔

(۳) اَلسَّبُّ وَالتَّشَكِّيْ ۔ چا بـانـدے ئے احسـان کـرے نو بیـا هغـه تـه رد بد وائی۔ او د هغـه نـه شکایتونه کوی۔ (٤) یا تربے خدمتونه اخلی۔ (قرطبیؒ)۔

مَنّ د ضرر یو قسم دے، لیکن جدا ئے ذکر کړو، او د اذی نه ئے مخکښی ذکر کړو، ځکه چه دا ډیر واقع کیږی۔

علماء فرمائی : [اَلْمَنُّ يُشْبِهُ بِالنِّفَاقِ وَالْاَذٰى يُشْبِهُ بِالرِّيَاءِ] (تفسیر بحر العلوم للسمرقندی)۔

زیادونه د منافقت مشابه ده۔ او اذی (ضرر ورکول) د ریاء سره مشابه دی۔

مَنُّ کبیره گناه ده او په یو حدیث کښ راغلی دی، چه درے قسمه خلق دی چه الله به ورسره خبرے نهٔ کوی، نهٔ به ورته نظر کوی، او نهٔ به ئے پاکوی، او دوی دپاره به دردناك عذاب وی۔ مَنَّان (زیاد کـونـکـے)۔ د گیټـونـه جامـه خـکـتـه کونکے۔ په دروغجن قسم سره خپله مَبِيْعَه (سامان) مشهورونکے۔ (متفق علیه)۔

**فائده :** په (وَلَا اَذٰى) کښ ئے (لَا) کلمه دوباره راواپس کړه، پدے کښ اشاره ده چه په هر یو د مَن او اَذی سره د صدقے ثواب باطلیږی، یعنی د دواړو جمع کول لازم نهٔ دی۔

(فتح البیان واللباب)۔

﴿لَهُمْ اَجْرُهُمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ﴾ پـه بعض ځایونو کښ فَلَهُمْ راځی په فاء سره، او په بعض ځایونو کښ بـغیر د فـاء نـه راځی لـکـه دلتـه شـو۔ نـو ددے حـکـمـة دا دے چه کوم ځائے کښ چه په حصر او اختـصـاص سـره د جزاء د مستحق بیان وی نو هلته فاء نهٔ راوړی۔ یعنی څوك چه انفاق کوی په غیر د زیادونے او اذی نـه نـو صـرف هغه به مستحق د اجر وی، نهٔ هغه څوك چه زیادنه او ضرر ورکـوی۔ او کوم ځائے چه فاء راوړی نو هلته سببیت ته اشاره وی چه ما قبل سبب د ما بعد دپاره دے، یـعـنـی روسـتـنـے اجر ورتـه پدے وجه ملاؤ شوے چه دا مخکنے کار ئے کړے۔ او حصر پکښ مقصد نهٔ وی۔ (نقله القاسمی عن الزمخشری ۳/٦۱۰)۔

ابـو الـسـعـودؒ وائـی : فاء راوړل ئے پریخودل چه خبر ورکړی چه په دغه مخکنی انفاق باندے اجر ملاویدل داسے ښکاره دی چه تصریح بالسببية ته ئے حاجت نشته۔

خو ددے اجر سره ایمان شرط دے۔ او ددے مطلب دا وی چـه پدے انفاق سره خوف او حزن ختمیږی خو کـه مـانـع نـهٔ وی مـوجـود۔ او کـه مانع موجود شو مثلاً نور گناهونه راغلل یا بے ایمانی وه، نو بیا به دا اجر نهٔ وی۔

قَوْلٌ مَّعْرُوْفٌ وَّمَغْفِرَةٌ خَيْرٌ مِّنْ صَدَقَةٍ يَّتْبَعُهَآ اَذًى وَاللّٰهُ غَنِيٌّ حَلِيْمٌ ﴿۲۶۳﴾

وینا نیکه او بخنه غوره ده د هغه صدقې نه چه وروسته وی د هغې پسې ضرر او الله بې حاجته دے، صبرناك دے۔

**تفسیر:** پدے آیت کښې د مال او د انفاق د نشتوالی په وخت کښې د اخلاقو بیان دے۔ یعنی چه کله د انسان سره مال نهٔ وی، او انفاق نشی کولے، نو هغه به اخلاق استعمالوی، هر چا ته انسان مال نشی رسَولے، لکه په مرفوع روایت د ابو هریره ﷺ کښې دی :

[اِنَّكُمْ لَنْ تَسَعُوا النَّاسَ بِاَمْوَالِكُمْ وَلٰكِنْ يَّسَعُهُمْ مِنْكُمْ بَسْطُ الْوَجْهِ وَحُسْنُ الْخُلُقِ]

(ابویعلی والبزار مِنْ طُرُقٍ اَحَدُهَا جَيِّدٌ وَحَسَّنَهُ الْاَلْبَانِيُّ لِغَيْرِهٖ فِيْ صَحِيْحِ التَّرْغِيْبِ: ۲۶۶۱)

(تاسو مالونه هرچا ته نشئ فراخه کولے لیکن ستاسو نه دیے کولاؤ مخ او ښائسته اخلاق هغوی ته فراخه شي)۔ او ښائسته اخلاق هم نیکی ده۔

حدیث کښې دی :[اَلْكَلِمَةُ الطَّيِّبَةُ صَدَقَةٌ] ...... [مسلم:۲۲۲۴] نیکه خبره کول هم صدقه ده۔

﴿قَوْلٌ مَّعْرُوْفٌ﴾ دے کښې (۱) یو مقصد دا دے چه د ضرر والا صدقې ورکولو نه اخلاق چلول غوره دی۔ نو پدے کښې به ترغیب وی دے ته چه صدقه ورکوئ، نو بغیر د ضرر ورکولو نه ئې ورکړئ۔ (۲) دویم مطلب مخکښې واضح شو چه یو انسان سره صدقه نشته خو د محتاج او سائل سره اخلاق استعمال کړی، نو دا ډیر اجر والا دے د هغه انسان نه چه هغه سره د ضرر ورکولو نه صدقه ورکړی۔

(قَوْلٌ مَّعْرُوْفٌ) اَیْ عِنْدَ الْمُطَالَبَةِ ۔ (یعنی کله چه تا نه سائل مطالبه اُوکړی، نو نیکه خبره ورته اُوکړے)۔ ضحاكؒ وائی : چه داسے ورته اُووائے : يَرْحَمُكَ اللهُ وَيَرْزُقَكَ اللهُ۔ الله دے په تا رحم اُوکړی او الله دے رزق درکړی۔ او ذکل رټل به نهٔ کوے۔ (فتح)۔

﴿وَمَغْفِرَةٌ﴾ (اَیْ عِنْدَ الْمُبَالَغَةِ) (بخنه کول په وخت د مبالغه د سوال کښې)۔ یعنی کله چه تا نه سائل په زور او سختئ سره مطالبه کوی چه خامخا راکړه او ستا څه بے عزتی پکښې اُوشی، نو ته ورته معافی اُوکړه۔ داسے ورته اُووایه چه اُوبخه۔

(۲) دویم : د قول مَعْرُوف نه مراد (عِدَةٌ حَسَنَةٌ) ده، ښائسته وعده ورسره اُوکړه چه صبا راشه درېه کرم۔ یا ورله غائبانه نیکه دعا اُوغواړے۔ او مَغْفِرَة نه مراد د سائل بد حالت پټ ساتل۔ او خلق د هغه د سوال نه نهٔ خبرول دی۔ ځکه مغفرت کښې معنیٰ د پټوالی پرته ده۔

(۳) دریم : قول معروف د انسان صفت دے چه نیکه وینا ستا سائل ته او بخنه د الله د طرف نه چه انسان ته په قول معروف سره اُوکړے شي غوره ده د هغه صدقې نهٔ چه ضرر وروسے اُوکړے

شی۔ (التسهیل) لیکن دا معنیٰ بعیده ده۔

رسول الله ﷺ باندے یو اعرابی په سوال کښې دومره سختی اُوکړه چه د رسول الله ﷺ نه ئے څادر راخکلو او د هغه په بدن ئے اثر اُوکړو او هغه ته ئے اُوویل، ما دپاره د الله په مال کښې حکم اُوکړه، نو رسول الله ﷺ ورته اُوخندل او حکم ئے ورله اُوکړو۔ (او هیڅ بد اخلاقی ئے ورسره ونکړه دا د امت دپاره سبق دے)۔ او په یوه بله موقعه کښې د رسول الله نه خلقو دومره سوال اُوکړو چه هغه ئے د کیکر ونے ته محتاج کړو چه د هغه څادر ئے اُونیولو۔ لیکن بیا هم رسول الله ﷺ هغوی ته هیڅ ضرر ونکړو۔ (صحیح بخاری)

دلته ئے صرف اَذی ذکر کړه ځکه چه مَنّ په اَذی کښې داخل دے۔ لکه چه مخکښې تیر شو۔

**فائده:** قَوْلٌ مَعْرُوفٌ کښې تنوین د تقلیل دپاره دے، او صَدَقَةٌ کښې د تکثیر دپاره دے۔ یعنی لږه نیکه وینا د ډیرے صدقے نه غوره ده چه ضرر ورسره وی۔

﴿ وَاللَّهُ غَنِيٌّ حَلِيمٌ ﴾ غنی او حلیم دا دواړه صفتونه د بل چا دپاره نهٔ جمع کیږی۔

الله غنی دے نو هغه ته ستاسو د صدقاتو نه هیڅ فائده نهٔ رسیږی او ستاسو صدقو ته ئے حاجت نشته، بلکه پوره فائده ئے تاسو ته راواپس کیږی۔

حلیم دے یعنی مَعَ الْغِنَى التَّامِّ مَوْصُوفٌ بِالْحِلْمِ وَالتَّجَاوُزِ فَكَيْفَ لَا تَعْفُونَ مَعَ قِلَّةِ صَدَقَتِكُمْ وَتُؤْذُوْنَ] (الله سره د پوره بے حاجتئ نه، حِلم او صبر او تجاوز کوی او ستاسو خو صدقه هم کمه ده نو څنګه معافی نهٔ کویٔ او ضررونه ورکویٔ)۔ یعنی تاسو له خو خامخا صبر پکار دے ځکه چه تاسو فقراء یئ، اجر ته حاجت لرئ۔

○ یا غنی دے د صدقے د بندګانو نه، فقیران دے ته نهٔ محتاجوی چه مَن او اَذی برداشت کړی، بلکه د بل کوم طرف نه به هغوی ته رزق ورکړی۔ او حلیم دے چه څوك مَنّ او اَذی کوی، نو هغه له زر عذاب نهٔ ورکوی بلکه مهلت ورکوی چه توبه اُوباسی۔ (فتح البیان)

يَا أَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْا لَا تُبْطِلُوْا صَدَقَاتِكُمْ بِالْمَنِّ وَالْأَذٰى كَالَّذِيْ يُنْفِقُ مَالَهٗ

اے ایمان والو! مهٔ بربادویٔ صدقے خپلے په زبادنه او په ضرر په شان د هغه چا چه خرچ کوی مال خپل

رِئَاءَ النَّاسِ وَلَا يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ فَمَثَلُهٗ كَمَثَلِ صَفْوَانٍ

دپاره د خودنے د خلقو او ایمان نهٔ لری په الله او په ورځ روستنئ، پس مثال ددهٔ په شان د یو هوار کاڼړی دے

| عَلَيْهِ تُرَابٌ فَأَصَابَهُ وَابِلٌ فَتَرَكَهُ صَلْدًا لَا يَقْدِرُونَ عَلَىٰ شَيْءٍ |
|---|
| چه په هغې باندې خاوره وي نو اُورسي هغې ته تیز باران نو پریدي هغې لره صفاء، قادر نه وي دوی په هیڅ شي باندې |
| مِمَّا كَسَبُوا وَاللَّهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْكَافِرِينَ ﴿۲٦٤﴾ |
| د هغې نه چه دوی کړې وي او الله هدایت نهٔ کوي قوم کافرانو ته۔ |

**تفسیر** : پدې آیتِ کریمه کښې الله تعالیٰ په صدقه حکم کوي، سره د انتفاء د شرطونو نه یعنې چه شرطونه په صدقه کښې نهٔ وي نو هغه باطله ده، او منع ئې کړیده د مَنّ او آذی او ریاء نه، او د هغې مثال ئې راوړیدې۔ چه څوك په ریاء او مَنّ او آذی سره صدقه اُوکړي نو دا داسې بربادہ ده لکه څنګه چه په یو کاڼړي باندې خاوره پرته وي او تیز باران هغه صفا کړي او هیڅ دوړه پرې پاتې نشي۔ نو دغه شان په ددغسې صدقې هیڅ اجر پاتې نشي۔

**ربط** : پدې کښې د مخکښې ﴿ خَيْرٌ مِنْ صَدَقَةٍ ﴾ علت ذکر کوي چه قول معروف څکه د هغه صدقې نه غوره دې چه ضرر ورپسې وي چه دغه قسم صدقه خو بربادہ ده، هیڅ اجر ئې نشته۔

﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تُبْطِلُوا صَدَقَاتِكُمْ ﴾ پدې کښې د مَنّ او آذی په منع کولو کښې ډیر تاکیدات شویدي، یو دا چه خطاب په لفظ د آمَنُوا سره شوې، چه دا کار د کامل ایمان سره منافي دې۔ دویم دا چه ښکاره ئې وئیلي دي چه په مَنّ او اذی سره صدقه باطله ده۔ دریم دا چه مثال ئې د ریاکار سره ورکړې۔ څلورم دا چه مثال ئې د صَفْوَان (کاڼړي) سره ورکړې۔

(لَا تُبْطِلُوا) د بطلان نه دلته نهٔ قبلیدل او د ثواب نه محرومیدل مراد دي۔ او اصل کښې بطلان دیته وائي چه د عمل په کولو باندې شرعي اثر مرتب نشي، نو که عمل واجب وي، بطلان ئې دا دې چه د مکلف ذمه فارغه نشي څکه چه په یو رکن یا شرط کښې نقصان راشي نو په ټول عمل کښې نقصان راځي۔ او که د نفل عمل وي، بطلان ئې دا دې چه د ثواب نه محرومه شي۔ (احسن الکلام)۔

(صَدَقَاتِكُمْ) دلته مضاف پټ دې۔ یعنې أُجُورَ صَدَقَاتِكُمْ ۔ (مهٔ باطلوئ اجرونه او ثوابونه د صدقو خپلو)۔ دا ورته څکه راوباسو چه صدقه خو مسکین ته ورکړې شوه، نو هغه اُوشوه، اُوس هغه نهٔ باطلیږي، او کوم شے چه باطلیږي هغه اجر دې۔

دلته صدقات، نفلي او فرضي دواړو ته شامل دې۔

(بِالْمَنِّ وَالْأَذَىٰ) ابن عباس رضي الله عنهما فرمائي : د مَنّ نه مراد زیادول دي په الله باندې او اذی ضرر ورکول دي فقیر او سائل ته۔ (اللباب، والبغوی وفتح البیان)

(۲) یا دواړه د انسانانو سره لګی۔ سمعانیؒ وئیلی دی چه په صدقه کښې زیادونه کول داسے دی لکه په مانځه کښې ہے ادسه کیدل۔

**فائده:** د اکثرو اهل سنتو دا رائے ده چه نیکیانو سره ګناهونه ختمیږی (اِنَّ الْحَسَنَاتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّئَاتِ)۔ لیکن ګناه سره نیکیانے نهٔ ختمیږی، او وائی چه دا د معتزلو مذهب دے چه ګناه سره نیکی ختمیږی، او خوارج وائی چه په کبیره ګناه سره انسان همیشه جهنمی دے۔ او هر نیك عمل ئے برباد دے۔

لیکن پدے کښې راجح مذهب دا دے چه ګناهونه دوه قسمه دی :

(۱) عام ګناهونه سِوئ د کفر او شرك نه چه د نیك عمل سره متعلق نهٔ دی۔ لکه یو انسان مونځ اُوکړی او بیا وروسے غیبت، غلا، زنا اُوکړی نو مونځ ئے نهٔ دے باطل۔

(۲) دویم : شرك او کفر دے نو پدے سره نیك عمل باطلیږی۔ دارنګه د دغه عمل سره متعلق ګناهونو سره هم عمل باطلیږی لکه د صدقے سره متعلق مَنُ او آذی دی، که دا اُوکړے شی نو دغه صدقه باطله ده۔ نو کله تا کله په بدو اعمالو سره نیکیانے باطلیږی۔ لکه د ﴿ اَنْ تَحْبَطَ اَعْمَالُكُمْ وَاَنْتُمْ لَا تَشْعُرُوْنَ﴾ (الحجرات/۲) نه هم معلومیږی چه د نبی ﷺ بے ادبی کولو سره نیك اعمال بربادیږی۔ (والعیاذ بالله)۔

﴿كَالَّذِىْ﴾ دا په مثال کښې مثال دے یعنی : ستا د صدقے زیادول داسے دی لکه ریاکار۔ د ریاکار صدقه خو باطله ده نو ستا به هم باطله شی۔ بیا د ریاکار مثال ئے د کاڼړی سره ورکړے۔

(کالذی) دلته مضاف حذف دے (كَاِبْطَالِ الَّذِىْ) په شان د باطلولو د هغه سړی انفاق خپل لره چه ریاکار وی)۔د هغهٔ عمل خو باطل نو تاسو په مَنُ او آذی سره صدقه مهٔ باطلوئ۔

﴿ رِئَاءَ النَّاسِ﴾ دا مفعول لهٔ دے یعنی لِاَجْلِ الرِّيَاءِ خلقو ته د خودلو دپاره انفاق کوی۔ یا حال دے۔ په معنیٰ د مُرَائِيًا سره یعنی په داسے حال کښې انفاق کوی چه خلقو ته خودو نه کونکے وی۔ نو لکه څنګه چه د ریاکار مقصد دا وی چه د خلقو صفت او تعریف حاصل کړی او د الله رضائے مقصد نهٔ وی، نو دغه شان ددے مَنُ او آذی کونکی مقصد هم د الله مخ او رضا نهٔ وی۔

رئاء وزن د فِعال دے د رَأیٰ نه په معنیٰ د ورخودلو سره۔

**فائده :** ریاء هله ناروا ده چه اول نه عمل د مخلوق د خودلو دپاره شروع کړی۔ دویم صورت دا چه یو انسان پټ عمل کړے وی لیکن خلقو ته ئے راښکاره کړی، نو حدیث کښې دی چه دهٔ دپاره به ښکاره عمل اُولیکلے شی، او که بار بار ئے ښکاره کوی نو دا به ریاکار اُولیکلے شی)۔ نو عمل چا ته بغیر د ضرورت نه ښکاره کول صحیح نهٔ دی مګر که د چا خیر خواهی غرض وی، نو بیا

ښکاره کول جائز دی۔

او دا په ریاء کښې نۀ داخلیږی چه یو انسان پټ یو عمل شروع کړے، ذکر ته ناست دے، په مانځه ولاړ دے او څوک ئې وینی نو ددۀ زړۀ کښې یو قسم خوشحالی پیدا شی، او خلق ئې صفت اُوکړی نو دا ریاء نۀ ده۔ ابوذر ﷺ د نبی کریم ﷺ نه ددے په باره کښې پوښتنه اُوکړه نو نبی ﷺ اُوفرمایل :[تِلْكَ عَاجِلُ بُشْرَى الْمُؤْمِنِ] دا د مؤمن سړی دپاره په دنیا کښې زیرے دے چه عمل ئې الله دپاره کولو نو الله مخلوق ته هم ښکاره کړو)۔

(رواه مسلم :۶۸۹۱) مشکاة باب التوکل والصبر:۵۳۱۷)

د ریاء سره ډیر عمل کول هیڅ اثر نۀ لری، او په اخلاص سره لږ عمل هم ډیر اثر لری۔ ریاکار انسان کم عقل دے ځکه چه خواری ئې هم اُوکړه، او برباده شوه، او د الله تعالیٰ د نظر نه پریوتو، د هغۀ سره ئې شرك اُوکړو۔ او که هغۀ انسان ترے خبر شی نو د هغه د نظر نه به هم پریوزی، او الله تعالیٰ اکثر ریاکار انسان مخلوق ته راښکاره کوی۔ او په اخلاص کښې الله هم رضا کیږی، او ضرور ددے اثر راښکاره کیږی اګرکه انسان ئې پټوی۔

حدیث کښې دی :[ لَوْ أَنَّ أَحَدَكُمْ يَعْمَلُ فِي صَخْرَةٍ صَمَّاءَ لَا بَابَ لَهَا وَلَا كُوَّةَ لَخَرَجَ عَمَلُهُ لِلنَّاسِ كَائِنًا مَا كَانَ] ( که یو تن ستاسو په یو بند کاڼړی کښې عمل اُوکړی چه د هغے هیڅ دروازه او سورے نۀ وی، نو خامخا به ددۀ عمل انسانانو ته راښهر شی، هر عمل چه وی)۔

(مسند احمد ۲۸/۳رقم ۱۱۲۴۶) وابویعلی ۵۲۱/۲ رقم ۱۳۷۸) وقال الهیثمی اسنادهما حسن)

یعنی د نور او رڼا څادر به پرے واچوی او د خلقو په زړونو کښې به د هغه سره محبت پیدا شی۔ نو ریاء ته حاجت نشته۔ او ریاء د زړۀ خرابی وی۔ ډیر سپین ګیری وی چه تهجد او روژے او نفقے او عام عملونه ئې د ریاء دپاره وی، او ډیر ځوانان وی خو الله ورله ډیر اخلاص ورکړے وی، مخلوق ورته هیڅ شے نۀ ښکاری چه هغوی ته ریاء اُوکړی۔نو دا د زړۀ ښۀ صفت دے۔ ددے وجه نه عملونه پټ کول پکار دی۔ حدیث کښې دی :

(( الله تعالیٰ هغه بنده خوښوی چه متقی وی او پټ عملونه کوی او خلقو ته خپل حاجتونه نۀ ښکاره کوی))۔ (صحیح مسلم ۲۲۷۷/۴ رقم: ۲۹۶۵)

ځکه چه انسان کمزورے دے، ستا به د اخلاص اراده وی نو درنه به وران شی۔

خو عمل به د ریاء د یرے نه نۀ پریدے ځکه چه علماؤ وئیلی دی :

[تَرْكُ الْعَمَلِ مِنْ أَجْلِ خَوْفِ الرِّيَاءِ رِيَاءٌ وَالْعَمَلُ لِأَجْلِ النَّاسِ شِرْكٌ]۔

(د ریاء د یرے نه عمل پریخودل ریاء ده، او د خلقو دپاره عمل کول شرك دے)۔

نو ریاء قبیحه ګناه ده چه عمل هم بربادوي، او ورسره سزا هم ملاویږي.
مشهور حدیث دے چه دریے قسمه خلق قاري د قرآن، مجاهد، او سخي باندے به اول اُور بلولے شي ځکه چه دا غوره عمل ئې د مخلوق دپاره کړے. (مسلم، ترمذي، ابن خزیمه)
﴿وَلَا يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ﴾ دا ئے په مخکښې عطف کړو (۱) نو یا خو ددیے نه منافق ریاکار مراد دیے چه هغه په آخرت یقین نۀ لري، صرف خلقو ته ځان خودل ئې مقصد وي، نو دا کافر دے او د کافر انفاق باطل دے. نو دلته نفي د حقیقي ایمان ده.
(۲) یا دا چه دلته مسلمان ریاکار مراد دے چه ددۀ مقصد په انفاق کښې صرف د خلقو صفت او د هغوی نه شکر حاصلول وي، او الله ته ئې هیڅ نظر نۀ وي، د الله رضا او زیات اجر حاصلول ئې مقصد نۀ وي، ځکه چه ریاء هغه څوك کوي چه هغه د آخرت نه غافل وي. ریاء خو ډیے هغه سړیے اُوکړي چه جنتي شوے وي، او عملونه ورپسے دپاسه کوي، او زمونږ ټول عملونه د آخرت په مقابله کښې صفر دي، نو ریاء څه په کار ؟!!. نو دلته نفي د کامل ایمان ده یعنې دا انسان چه ریا کوي نو پوره یقین ئې په ثواب د آخرت نشته.
او مفسر بغويؒ داسے هم وئیلي دي : چه ریاء سره صدقه کول د مؤمنانو کار نۀ دے بلکه دا د منافق کار دے چه ظاهر کښې یو څۀ ښکاره کوي، او په پټه ئې بل مقصد وي. نو د ریاء سره صدقه کولو سره انسان بے ایمانه کیږي. (تفسیر معالم التنزیل ۱/۳۲۶)
**فائده** : ریاء خلق پدیے وجه کوي چه په الله تعالیٰ او په آخرت ئې پوره ایمان نۀ وي. مخلوق ورته د الله تعالیٰ نه لوئی ښکاري. ریاء ته په احادیثو کښې شرك خفي او شرك اصغر (وړوکے شرك) وئیلي شویدیے.

## د ریاء د زائله کولو اسباب

(۱) صحیح ایمان لرل. (۲) عمل پټ کول. (۳) ...... په ځان د الله تعالیٰ زیات حق منل.
(٤) د ریاء بدي په ذهن کښې راوستل او ددیے په باره کښې آیتونه او احادیث مطالعه کول.
(٥) مخلوق داسے کنټرل لکه کاڼړي او بوټي چه که دا د چا صفت اُوکړي، نو څۀ به اُوشي او که بدي ئې بیان کړي نو څه به اُوشي.
(٦) اَللّٰهُمَّ إِنِّيْ أَعُوْذُ بِكَ مِنْ أَنْ أُشْرِكَ بِكَ شَيْئًا وَأَنَا أَعْلَمُ وَأَسْتَغْفِرُكَ لِمَا لَا أَعْلَمُ)

(صحیح الجامع الصغیر ۳۷۳۱ للالباني).

پدیے دعا سره وړوکے او غټ شرك ختمیږي لکه صحابه کرامو ته ئې فرمایلي وو).
﴿فَمَثَلُهُ﴾ (۱) د مَثَلُهٗ ضمیر (اَلَّذِيْ يُنْفِقُ) ته راجع دے یعنې ریاکار ته. نو دا مثال به د ریاکار وي.

(۲) یا زیادونکی او اذی ورکونکی ته راجع دے نو دا به د زیادونکی دپاره دویم مثال شی۔
﴿كَمَثَلِ صَفْوَانٍ﴾ صفوان جمع د صَفْوَانَةٌ ده۔ یا دا خپله مفرد دے۔ غټه ګټه چه همواره خوئے او مئینه وی۔ بعض وائی دا د جنس په شان دے په مفرد او جمع دواړوئے اطلاق کیږی۔ دلته مفرد دے ځکه روستو د (عَلَيْهِ تُرَابٌ) ضمیر ورته مفرد راجع شویدے۔
﴿فَأَصَابَهُ وَابِلٌ﴾ د أَصَابَهُ ضمیر یا صفوان ته راجع دے یا تراب (خاورے) ته۔
وابل هغه ډیر باران ته وئیلے شی چه سخت او ګنړو څاڅکو والا وی۔
﴿فَتَرَكَهُ صَلْدًا﴾ د تَرَكَهُ ضمیر صرف صفوان ته راجع دے او صَلْد خویه صفا ګټه ده چه خاورے او دوړے ورپورے نۀ وی پیوسته شوی۔

## د مثال تطبیق

دلته د مرکب معقول د مرکب محسوس سره تشبیه ورکړے شویده، پدے طریقه چه د منافق ریاکار انفاق کونکی حال په شان د حال د هغه کانړی دے چه په هغے باندے خاوره پرته وی نو یو شخص په هغے ګمان اُوکړی چه دا یوه همواره خاوره ده او د کروندے لائق ده نو تخم په کښې واچوی پدے اراده چه باران به راشی دا به اُوبه کړی، بیا به زرغون شی او ما ته به فائده راکړی، لیکن هرکله چه په هغے باندے تیز باران راشی نو هغه خاوره سره د تخم نه د کانړی نه ګوزار کړی، او په کانړی هیڅ پاتے نشی، خوئے صفا شی، نو د دغه کم عقل دهقان امید د خاورو سره خاوره شی، او حیران شی چه زما محنت او مال ټول ضائع شو، نو د افسوسونو نه سیوئ په هیڅ شی قادر نۀ وی چه هغه عمل بیرته راواپس کړی۔
نو دغه شان منافق ریاکار او زیادونکے او ضرر رسونکے انسان ډیر صدقات، خیراتونه او نیک اعمال کوی او مقصد ئے ریاء وی او په مسلمانانو باندے خپل خان اُوچت ګنړل وی، نو دهٔ دا خیال دے چه دا به ما ته فائده راکړی، لیکن دهٔ ته په آخرت کښې هیڅ فائده نۀ ملاویږی، البته په دنیا کښې ورله بعض خلق صفتونه اُوکړی چه ډیر سخی انسان دے۔
نو دهٔ عیب د خلقو نه پټ وی لکه خاوره چه ګټه پټوی۔ خو چه کله قیامت راشی نو دا به خالی لاسونه پاتے وی، هیڅ عمل به فائده ورنکړی او ټول عملونه به ئے هباء منثورا (دوړه) شی، څه د ریاء د وجه نه او څه دے ایمانئ د وجه نه۔
نو لکه څنګه چه د دغه دهقان عمل برباد شو نو دغه شان ددے ریاکار او زیادونکی او زړهٔ آزارونکی انفاق به باطل شی۔ پدے کښې د زیادونکی او ضرر رسونکی انتهائی درجه بدی بیان شویده چه د انفاق په بربادولو کښې دا خبرے بالکل د کفر برابر دی۔ دا تشبیه ډیره غوره ده او

آسانئ سره ذهن ته راځي۔ (ابن عاشور وتدبر قرآن)۔

او په بـل عبارت سره ددې مثال حاصل داسې هم راوځي چه د احسان کونکي او ریاکار عمل په دنیا کښې ښکاره کیږي چه عمل دے او په آخرت کښې برباد ګرځي، هیڅ فائده نهٔ ورکوي لکه چه په کاڼړي باندې خاوره پریوتې وي، په ظاهره خو داسې ښکاري چه قابل د کرونډې ده، خو چه کله پرې باران اُووریږي نو محوه شي۔ (جواهر القرآن)۔

## تشبیه د مفرد

او تشبیه د مفرد د مفرد سره په ډیرو طریقو کیدے شي (۱) یوه طریقه داسې ده چه کافر په شان د صَفْوَان (سخت کـاڼـړي) دے چه زړهٔ کښې ئے د الله هیڅ یره نهٔ وي۔ او تُرَاب مثال د انفاق دے چه پـدې سـره پـه دنیا کښې خپـل کفر پټ ساتي لکه څنګه چه خاوره ګټه پټه ساتي، او خلق ورله په دنیا کښې صفت کوي۔ او وَابِل د هغهٔ کفر او مَنُّ او اَذٰی ده۔ چه ددې په ذریعه به ددهٔ عملونه برباد شي۔ او صَلْدًا دا چه قیامت کښې به خالي لاسونه پاتې شي۔

(۲) دویـمه طریقه: صفوان د منافق او د ریاکار د زړهٔ مثال دے۔ تشبیه په کلك والي کښې ده چه د الله یـره پـکښې نشتـه۔ او تُـرَاب نـه مـراد هغه غبار دے چه ددهٔ د زړهٔ پورې انختے دے چه هغه د ګنـاهـونـو غبـار دے، او وَابِـل نـه مراد د الله حسـاب دے چه دغه خاورې به زائله کړي۔ یعني د الله حساب به ورته متوجه شي نو ټول عملونه به ئے برباد کړي، هیڅ معنویت به پکښې نهٔ وي۔

(۳): او پدې طریقه هم لګیږي چه صفوان کښې ددهٔ زړهٔ ته اشاره ده، او تراب کښې (ثناء الناس) د خلقو مدح او صفت ته اشاره ده چه دهٔ له ئے کوي۔ د خلقو صفت داسې دے لکه خاوره۔ څکه چه نبي ﷺ فرمائي:

[إِذَا رَأَيْتُمُ الْمَدَّاحِيْنَ فَاحْثُوْا فِيْ وُجُوْهِهِمُ التُّرَابَ] ...... [مسلم: ۷٦۹۸]

(څـوك چـه سـتـاسـو صفتـونـه کـوي، نو پـه مـخ کښې ورته خاورې واچوئ)، نو د هغې سره ئے مـنـاسبـت شـو۔ نو د خلقو ستا صفت کول چه تا کښې کمال نهٔ شته، هسې دے خروي، او وَابِل نه مـراد د قیامت په ورځ د الله حساب دے نو د قیامت په ورځ به ئے عمل برباد راوځي څکه چه اثر به پـکښې نـهٔ وي د ریـاء د وجـه۔ او په دنیا کښې به هم د ریاکار ثناء ګانې څهٔ وخته پورې ختمې شي، د ریاکار سړي انجام خراب وي نو انسان به اَملس (خوئے، صفا) پاتے شي۔

(٤) دارنـګـه څـوك چـه پـه ریـاء او مـنـافقت سره عمل کوي، نو ظاهراً د هغهٔ په عمل باندې اجر مرتب کیږي، لیکن د غیر الله دپاره دے، نو مانع موجود دے۔

نـو ریـاء صـفـوان دے، دا مانع دے۔ دهٔ تخم په خاوره کښې واچولو، لیکن د خاورې دپاره جوړ والے

ضروري دي چه تخم په هغې کښې جرړې اُوکړي او دلته خو لاندې کاڼړې دې چه هغه مانع دې د تخم د راټوکیدو نه څکه چه هغې کښې جوړوالې نشي کیدې۔

نو دغه شان دۀ عمل اُوکړو، په ظاهره کښې خو د اجر اُمید کیدې شي، لیکن لاندې مانع موجود دې چه هغه ریاء ده، نو دا عمل ئې د قبولیت نه منع کړو۔ نو کله چه وابِل (باران) راشي، نو خاوره او تخم ختم کړي او دا عمل ئې برباد شي، نو دغه شان په قیامت کښې د ریاکار عمل برباد دې، نو دا مجموعه د عمل د بربادیدو مثال دې۔

**حکمتونه** : صَفوان ئې څکه ذکر کړو چه کاڼړي کښې تخم نۀ راززغونیږي، نو ددۀ عمل کښې هم معنوي اثر نشته۔ تُراب ئې څکه راوړې چه دا د خلقو صفت دې چه ددۀ مخ ئې خړ کړې۔ او وَابِل ئې څکه راوړې چه تیز باران دې۔ د الله حساب به هم ورله په جلتئ سره راشي، او خپل انجام هم۔ نو په انجام کښې به ددۀ صفتونه هم ختم شي، او د ریاء او زیاد والا عمل به هم برباد شي نو تش تور به پاتې شي۔

﴿لَا يَقْدِرُوْنَ عَلٰى شَيْءٍ مِّمَّا كَسَبُوْا﴾ عَلٰى شَيْءٍ معنیٰ ده (عَلَى الْاِنْتِفَاعِ بِثَوَابِ شَيْءٍ) فائده نشي اخستلې د ثواب د یو شي نه) چه کوم ئې کړې دې۔ یعنې د خپل انفاق او عمل هیڅ اجر به ورته ملاؤ نشي۔ نۀ به دا صدقه په قیامت کښې ددۀ دپاره رڼرا وي، او نۀ به رَدُّ الْبَلَاءِ (مصیبتونه لرې کونکې) وي، او نۀ به ورله برهان او دلیل د ایمان وي۔ لکه د صدقې په احادیثو کښې هغه فائدې خودلې شویدي۔

څکه چه د صدقې بدله ئې په دنیا کښې اخستې ده چه هغه د خلقو صفتونه کول دۀ لره او ددۀ زیادنه او ضرر ورکول دي۔ حدیث کښې هم دي :

[اَنَا اَغْنَى الشُّرَكَاءِ عَنِ الشِّرْكِ مَنْ عَمِلَ عَمَلًا اَشْرَكَ فِيْهِ مَعِيَ غَيْرِيْ تَرَكْتُهٗ وَشِرْكَهٗ] (مسلم)

زۀ د شریکانو د برخې نه ډیرې پرواه یم۔ څوك چه یو عمل اُوکړي او زما سره پکښې بل څوك شریك کړي، نو زۀ د هغه عمل او د هغه برخه پریدم)۔ په یو بل روایت کښې دي : دا عمل د هغه سړي دپاره شو چا دپاره ئې چه کړې وي۔ نو الله به هیڅ بدله نۀ ورکوي۔

﴿وَاللّٰهُ لَا يَهْدِى الْقَوْمَ الْكَافِرِيْنَ﴾ په اِهْدِنَا الصِّرَاطَ کښې مخکښې مونږ وئیلي وو چه د هدایت ډیرې معنې دي، یوه معنیٰ دا ده چه بنده په آخرت کښې د خپلو کوششونو آخري ثمرات او نتیجې ته اُورسیږي۔ دلته همدا هدایت مراد دې یعنې الله کافرانو ته د خپلو کوششونو او عملونو هیڅ فائده مند ثمرات او صحیح نتیجې نۀ ورکوي، او د آخرت ثوابونو ته ئې نۀ رسوي۔ نو د دوي عملونه بې ځایه واقع کیږي، او ځائې ته نۀ رسیږي۔ نو پدې کښې د ایمان والو دپاره یره ده

چه د کافرانو په شان حالت اختیار نکړي چه عمل ئې بې ځائې واقع نشي. نو معنیٰ دا ده چه الله کافرانو ته هدایت نهٔ کوي يعنې په صحیح ځائې کښې د عمل واقع کولو ته او په آخرت کښې ثواب ورکولو ته لاره نهٔ ورښائي).

او پدې کښې اشاره ده چه الله تعالیٰ ایمان والو ته هدایت کوي، ایمان د هدایت سبب وي، د مؤمن د بدن نه به نیك نیك اعمال راوځي او په ځائې به واقع کیږي. اوکفر سبب د ګمراهئ دې، د کافر هر کار به د هدایت نه خالي وي، د هغهٔ د بدن نه به هر شر راوځي. او دې سورت کښې د کفر او د ایمان خبره شروع ده. چه هغه موضوع د سورت ده نو ځکه به بار بار دا لفظ تکرارېږي.

| وَمَثَلُ الَّذِيْنَ يُنْفِقُوْنَ اَمْوَالَهُمُ ابْتِغَاءَ مَرْضَاتِ اللّٰهِ وَتَثْبِيْتًا مِّنْ اَنْفُسِهِمْ |
|---|
| او مثال د هغه کسانو چه خرچ کوي مالونه خپل دپاره د طلب د رضاء د الله او دپاره د مضبوطولو د نفسونو خپلو |
| كَمَثَلِ جَنَّةٍ بِرَبْوَةٍ اَصَابَهَا وَابِلٌ فَاٰتَتْ اُكُلَهَا ضِعْفَيْنِ |
| په شان د مثال د یو باغ دې په اُوچت ځائې کښې چه اُورسیږي هغې ته ډیر باران نو ورکوي میوې خپلې دوچنده دوچنده |
| فَاِنْ لَّمْ يُصِبْهَا وَابِلٌ فَطَلٌّ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ ﴿۲۶۵﴾ |
| اوکه اُونهٔ رسیږي هغې ته تیز باران نو کافي دې هغې دپاره شبنم او الله په هغه عملونو چه تاسو ئې کوئ لیدونکې دې. |

**تفسیر**: اُوس د مخکښې شخص برعکس د نیکانو خلقو د انفاق مثال دې. او پدې کښې انفاق ته ترغیب دې، او د انفاق ایجابي شرطونه ذکر کوي چه یو به د الله د رضاء طلب کولو دپاره وي، دارنګه خپل ځان په دین باندې کلك کولو دپاره به وي، او د خپل نفس تربیت به وي.

**ربط**: مخکښې د ریاء کار د نفقې مثال وو، اُوس د مخلص مؤمن د نفقې مثال دې.

○ هلته (رِئَاءَ النَّاسِ) ذکر وو او دلته د هغې مقابل کښې (اِبْتِغَاءَ مَرْضَاتِ اللهِ) ذکر دې،

○ هلته (لَايُؤْمِنُ بِاللهِ) ذکر وو نو دلته (تَثْبِيْتًا مِّنْ اَنْفُسِهِمْ) ذکر دې. نو د دواړو ترمینځ تقابل تضاد دې.

﴿اِبْتِغَاءَ مَرْضَاتِ اللّٰهِ﴾ دا مفعول لهٔ دې يعنې لِاَجْلِ اِبْتِغَاءِ رَضَاءِ اللهِ. مالونه خرچ کوي دپاره د رضاء د الله. یا حال دې. اَیْ مُبْتَغِیْنَ مَرْضَاةَ اللهِ. پداسې حال کښې مالونه خرچ کوي چه لټونکي وي د الله رضا لره. ابتغاء معنیٰ ده، لټول او طلب کول.

- مرضات مصدر میمي دې په معنیٰ د رضاء سره.

او مطلب دا دې چه عمل کښې ثواب ګنړي، او د عادت په طور ئې نهٔ کوي.

د نيکانو خلقو مثال. نيکان هم په دوه قسمه دي يو هغه چه ډير مال لګونکي دي، او بل لږ مال لګونکي دي. د دواړو مثال راوړي چه دواړه کامياب دي.

﴿ يُنفِقُونَ أَمْوَالَهُمُ ابْتِغَاءَ ﴾ يعني په مال لګولو کښې ئې دا مقصد وي چه الله مونږ نه رضاء شي.

﴿ وَتَثْبِيتًا مِنْ أَنفُسِهِمْ ﴾

ددې ډير معاني دي (۱) تثبيت باب تفعيل دے، معنیٰ ئې مضبوطول دي. يعني انفاق ددے دپاره کوي چه خپل ځان ئې په دين مضبوط شي او ايمان ئې مضبوط شي (يا نفس ئې په انفاق مضبوط شي) ځکه چه په دين باندې د نفس د مضبوطولو دپاره انفاق ډيره اهمه نسخه ده. ځکه چه مال لګول نفس له ډير زور ورکوي. (ابن عاشورؒ).

پدې معنیٰ به (تثبيتاً) نتيجه او غايه د انفاق وي.

(۲) يعني د خپل قوت ايماني د وجه نه مالونه لګوي او دا ايماني قوت ئې په انفاق باندې باعث کوي. او په شك او تردد سره مال نهٔ لګوي. ځکه چه د انفاق په وخت کښې د زړهٔ مضبوطوالے بنهٔ صفت دے چه لاس ئې په پيسو نهٔ ريږي بلکه چټ پټي وي، آزادئ سره نفقه کوي، ځکه چه په الله تعالیٰ ئې يقين دے چه الله به ددې بدله راکوي او زما مال نهٔ ضائع کوي، او د هغه حکم دے.

(۳) تَصْدِيقًا وَيَقِينًا. يعني زړونو کښې ئې په اسلام او د الله په وعدو تصديق او يقين دے ځکه مال لګوي. نو دا د مخکني شخص مقابل شو. چه د هغهٔ د الله په وعدو يقين نهٔ وو.

(٤) إِنَّهُمْ يَتَثَبَّتُونَ أَنْ يَضَعُوا صَدَقَاتِهِمْ فِي مَوَاضِعِهَا (حسنؒ، مجاهدؒ).

يعني دا تحقيق کوي چه خپلې صدقې په خپل صحيح ځائے کښې خرچ کړي. او په بصيرت سره ئې خرچ کوي. (فتح البيان، وابن عاشورؒ).

(۵) إِحْتِسَابًا مِنْ أَنفُسِهِمْ ...... (قتادةؒ). يعني دا انفاق د ثواب د نفسونو دپاره کوي، نو په عمل کښې ثواب ګڼړي او د عادت په بناء ئې نهٔ کوي. (دا ئې حاصل معنیٰ ده).

بيا په تثبيتاً کښې د مخکنو معنو په اعتبار سره دوه احتماله دي، يا مفعول لهٔ دے يعني سبب او علت او باعث د انفاق دے. يا حال دے لکه څنګه چه (ابتغاء) حال وو. أَيْ مُثَبِّتِينَ لِأَنفُسِهِمْ)

(د ځانونو د مضبوطولو دپاره انفاق کوي) نو دا به نتيجه د انفاق وي.

دواړه صحيح کيږي باعث او نتيجه. ليکن نتيجه ګرځول ئې غوره دي لکه چه محققين مفسرينو ديته ترجيح ورکړيده. (ابن عاشورؒ).

﴿ كَمَثَلِ جَنَّةٍ بِرَبْوَةٍ ﴾ د باغ سره ئې تشبيه ورکړه ځکه چه باغ بار بار ميوې کوي، نو دوی له به هم الله بار بار اجر ورکوي. (بِرَبْوَةٍ) ربوه: هغه زمکه ده چه همواره وي او اُوچتوالے پکښې وي.

○ ربوه اُوچتې مزيدارې زمکې ته وئيلې شي ـ (خليل).

بعض وائي : دا هغه همواره زمکه ده چه مزيداره او ښائسته وي کله چه ورته باران اُورسي نو اُوپرسيږي او ګيا هګائي او ونې ئې زياتې شي ـ (فتح البيان).

دا څکه وائي چه که باغ په خکته ځائې کښ وي نو په هغې باندې نمر نهٔ لګي نو ميوه ئې مزيداره نهٔ وي، ونه زيږه وي ـ او کله چه په اُوچت ځائې وي، نو هواګانې پرې لګي، د بدبويانو نه جدا وي ـ او نمر پرې د هر طرف نه لګي، نو ددهٔ صدقه هم عَلىٰ کُل حال مقبوله ده ـ

بيا دا مثال د دوه قسمه مؤمنانو دې ـ ○ (۱) ابرار (ډير نيکان) نو دوی ډير مال خرچ کوي ـ

(۲) مقتصدين (درميانه خلق) چه لږ انفاق کوي ـ نو الله فرمائي چه ډيروته به ډير اجر ملاويږي او لږو دپاره هم اجر شته ـ درجه به ئې کمه وي، ليکن الله تعالىٰ ئې پدې هم بخي ـ نو (وَابِل) مثال د ابرارو دې، او (طل) مثال د مقتصدينو دې ـ

○ يا دواړه د يو تن مثال دې، که لږه صدقه کوي اوکه ډيره چه ددې تفصيل لاندې راروان دې ـ

○ بعض علماء وائي چه که د ابتغاء مرضات الله او تثبيت النفس دواړو نيت لري، نو ډبل اجر دې او که صرف د تثبيت نيت لري نو د هغې مثال د طل دې، چه يو ثواب به ورته ملاويږي ـ

## د مثال تطبيق او تفصيل

**تشبيه المرکب بالمرکب** په دوه طريقو ده :

(۱) يو دا چه په اُوچته ډيرکۍ باندې باغ دې چه هغې ته تيز او ډير باران اُورسيږي نو ميوې دوچنده ورکوي، او که ډير باران ورته اُونهٔ رسي نو معمولي باران (پرخه) ئې هم کافي وي، نو دغه شان کوم انسان چه نفقه کوي، د هغه دا نفقه مشابه ده دهغه باغ سره چه په اُوچته زمکه وي او لکه څنګه چه دغه مزيدار باغ نه ډيرې فائدې او ميوې حاصليږي، نو د مؤمن ددې نفقې به هم د الله په نيز ډيرې فائدې وي، برابره ده که لږ مال ئې لګولې وي او که ډير مال ـ

(۲) دويم دا چه ددې نفقه کونکو حال مشابه دې د هغه باغ سره چه په ډيرکۍ باندې وي نو هغه دوچنده ميوې ورکوي، برابره ده چه په قوي باران باندې اُوبه شي، او که په کمزوري باران ـ نو دغه شان ددې مؤمن که نفقې زياتې وي او که کمې وي، نو ددهٔ حالت به ښهٔ کوي، او دا ددهٔ د حال د برابرولو او د نفس د مضبوطولو دپاره کافي دي ـ

او دا هم تشبيه المرکب ده خو د مفرداتو په مابين کښ د مشابهت لحاظ پکښ شويدې ـ

حاصل ئې دا دې چه په لږ او ډير مال خرچ کولو سره به ئې اجر دوچنده کيږي لکه څنګه چه

باغ په وابل او طل دواړو سره دوچنده میوے ورکوي. (قاسمی ۶۱۱/۱).
یا دا چه دے انسان ته به د نفقے په وجه، که لږه وي او که ډیره، دواړه قسمه نیتونه ملاوېږي. د الله رضا به هم حاصلیږي او نفس به ئے هم په دین مضبو طیږي).
○ بعض علماء پکښ داسے تعبیر کوي : چه کوم خلق د الله د رضا دپاره او په پوره اخلاص او ایمان سره مال خرچ کوي، د هغوی صدقات داسے ترقي کوي او میوے ورکوي لکه چه په یو لوړ ځائے بانـدے یو باغ وي، او په هغے باندے په شیبو باران اُوشي نو د هغۀ باغ وُنے دوچنده میوے ورکوي، او کۀ چرے په شیبو باران اُونۀ شي بلکه معمولي شان باران اُوشي نو هم هغه باغ میوه ورکوي، دغه شان د نیت په اخلاص سره د شوو صدقو اجر د الله سره څو چنده زیات ملاوېږي، که چرے د اخلاص اعلیٰ درجه نۀ وي، نو مطلق ایمان او د نیت صحیح والے هم د صدقاتو د ثواب د زیاتیدلو دپاره کافي دے. (جواهر القرآن)

## د مثال د تطبیق دویمه طریقه تشبیه المفرد بالمفرد ده

د وابل نه مراد د الله تعالیٰ قبولیت دے. او د دوچنده میوے ورکولو نه مراد دوچنده اجر ورکول دي. نو دغه شان دے انسان ته به الله ډبل اجر ورکړي. په دنیا کښ به هم ورته اجر ملاوېږي او په آخرت کښ هم.
(۲) دویمه طریقه دا چه د انفاق کونکي حال داسے پورته او تازه او مزیدار دے لکه د اُوچت مزیدار باغ. نو مؤمن هم تازه وي او هغۀ د کندونونه پاك وي، مَنّ او آذی ئے په صدقه کښ نۀ وي، بلکه پاکو اخلاقو والا وي. او (وابل) او (طل) نه مراد ډیره او لږه صدقه او نفقه ده، او د اُکُل (میوو) نه مراد اجرونه او ثوابونه دي. یعنی چه مؤمن پاکه صدقه کوي که لږه وي او که ډیره خو الله به ورته دوچنده اجرونه ورکوي ځکه چه نیت ئے خالص دے. (قاسمی بتغیر یسیر).
﴿ فَـَٔاتَتْ أُكُلَهَا ﴾ په پیښن د همزه او کاف سره او سکون د کاف هم پکښ جائز دے. اصل کښ هر هغه شي ته وئیلے شي چه خوړلے شي، لیکن بیا په میوو د ونو کښ مشهور شویدے. (ابن عاشور).
﴿ ضِعْفَيْنِ ﴾ ددے یوه معنیٰ دا وي چه په کال کښ دوه ځل میوے ورکړي لکه د انس بن مالك ﷛ باغ به کال کښ دوه ځل میوے کولے، دهغۀ دکرامت او د نبي کریم ﷺ د دعا په برکت سره. یا دوچنده دا چه یو کال ئے یو خروار اُوکړل او په بل کال ئے دوه خرواره اُوکړل.
نو الله رب العزت به ددے سړي صدقه دغه شان قبوله کړي ځکه دا ډیره اُوچته صدقه ده، دوچنده ثواب به ورکړي.
(ضعفین) ضعف خپله دوچند ته وائي، خو تثنیه ئے ذکر کړه دپاره د تکرار. اشاره ده چه الله به

ورته بار بار ددے صدقے په ډیرو چندونو اجر ورکوی۔ دا خو انفاق ته ډیر عجیب ترغیب دے !!۔

﴿ فَاِنْ لَّمْ يُصِبْهَا وَابِلٌ ﴾ : یعنی ډیره صدقه ورنکړی نو طل شبنم (پرخه) هم ورله کافی ده ځکه چه دهٔ کښې اخلاص دے او د اخلاص د وجه نه معمولی صدقه هم د جنت دپاره کافی ده۔

﴿ فَطَلٌّ ﴾ دا مبتداء ده خبرئے پټ دے ( ای فَطَلٌّ يَكْفِيْهِ فِىْ اِيْتَاءِ الضِّعْفَيْنِ) ۔ یعنی په دوچنده میوو ورکولو کښې ورله شبنم او پرخه هم کافی ده۔

طل پرخے او شبنم او معمولی باران ته وائی چه د شپے کیږی۔

ددے دوه مطلبه دی (۱) یو دا چه که څوك ډیر مال لګوی او په ډیر اخلاص او تثبت سره ئے لګوی نو هغه ته به دوچنده (یعنی زیات) اجر ملاویږی۔ او که څوك لږ مال د الله د رضا دپاره ورکوی یا ئے په اخلاص او توجه او محبت کښې کمے وی نو هغه ته به د مخکنی شخص په نسبت کم ملاویږی لیکن دا به هم نا امیده نهٔ وي بلکه دا به هم ددهٔ دپاره کافی شی۔ اګرکه د مخکنی شخص په شان به نهٔ وی۔ نو د انفاق لوئی اجر دے او پدے کښې تفاوت دے په اعتبار د تفاوت د مقدار د اخلاص او تثبیت سره لکه څنګه چه په حالت د باغ کښې تفاوت دے په اعتبار د تفاوت د تیز او کمزوری باران سره۔ (ابن عاشور)۔

نو اولنے شخص د ابرارو نه دے او دویم د مقتصدینو نه دے۔

(۲) دویم دا چه دواړو کښې اخلاص دے د دواړو ډبل او زیات اجر دے۔ ځکه چه دویم شخص هم د خپل وسع مطابق صدقه کړیده نو هغه هم الله نهٔ ضائع کوی۔لکه چه مخکښې بیان شو۔

نو معلومه شوه چه صدقه ورکول به د ټولو مؤمنانو صفت وی، که غریب وی او که مالداره۔

دا ډیر عجیب آیت دے، داسے جامع الفاظ الله تعالیٰ وئیلی دی چه ډیر مطلبونه په تدبر او فکر سره پکښې جوړیږی۔ (وَلَا يُحِيْطُوْنَ بِشَىْءٍ مِّنْ عِلْمِهٖۤ اِلَّا بِمَا شَآءَ)۔

﴿ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ ﴾ پدے کښې ترغیب او یرے دواړو ته اشاره ده چه په انفاق او ټولو عملونو کښې نیتونه خالص کول پکار دی، الله تعالیٰ ئے وینی۔

| اَيَوَدُّ اَحَدُكُمْ اَنْ تَكُوْنَ لَهٗ جَنَّةٌ مِّنْ نَّخِيْلٍ وَّاَعْنَابٍ تَجْرِىْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ |
| --- |
| آیا خوښوی یو کس په تاسو کښې چه وی هغه له باغ د کجورو او د انګورونه چه بهیږی لاندے د هغے نه نهرونه، |
| لَهٗ فِيْهَا مِنْ كُلِّ الثَّمَرٰتِ وَاَصَابَهُ الْكِبَرُ وَلَهٗ ذُرِّيَّةٌ ضُعَفَآءُ |
| هغه دپاره په هغے کښې وی د هرقسم میوونه او رسیدلے وی هغهٔ ته بوداوالے او د هغه دپاره بچی وی کمزوری |

| فَأَصَابَهَا إِعْصَارٌ فِيهِ نَارٌ فَاحْتَرَقَتْ كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ اللَّهُ |
|---|
| نو اُورسی هغې ته تیزه هواء چه په هغې کښې اُور وی نو اُوسوزوی هغه باغ لره دغه شان بیانوی الله تعالیٰ |
| لَكُمُ الْآيَاتِ لَعَلَّكُمْ تَتَفَكَّرُونَ ﴿۲۶۶﴾ |
| ستاسو دپاره آیتونه (مثالونه) دې دپاره چه فکر اُوکړئ. |

**تفسیر:** اُوس یو بل مثال راوړی چه عجیب مثال دے. عرب چه مثال ذکر کوی نو لفظ د مِثْلُ یا شِبْهُ یا نَحْوُ یا کاف راوړی او دا د مثال د الفاظو د صراحةً ذکر کولو نه بغیر مثال دے.

(۱) دا یا مثال د ریاکار د صدقې او د عمل دے چه په خپلو عملونو ریاکاری کوی، نو الله تعالیٰ به ئې د قیامت په ورځ هلاك کړی په داسې حالت کښې چه دا به ورته ډیر سخت محتاج وی. لکه د هغه سړی په شان چه د هغه باغ وی او دده اولاد وی چه دهٔ ته فائده نشی ورکولې او خپله هم بوډا شوے وی او دده باغ ته تیزه سیلئ اُورسیږی چه په هغې کښې اُور وی نو باغ ورله اُوسوزوی نو په داسې حالت کښې باغ لاړو چه دا ورته ډیر محتاج وو.

دا قول قرطبیؒ د ابن عباسؓ نه نقل کړے. او سُدیؒ وائی: دا د ریاء والا نفقې بل مثال دے او دا قول ابن جریر الطبریؒ غوره کړیدے. (قرطبیؒ).

(۲) بعض وائی: دا د سوء الخاتمې (د خاتمې د خرابیدو) مثال دے چه دده تفصیل په حدیث کښې داسې راغلے دے. عبید بن عمیرؒ فرمائی: عمر بن الخطاب ؓ یوه ورځ د رسول الله ﷺ ملګروته (د امتحان اخستو په طور) اُووئیل: ددے آیت (اَیَوَدُّ) په باره کښې ستاسو څه رائې ده؟ چه دا د چا په باره کښې نازل دے؟ هغوی اُووئیل: الله ښهٔ پوهه دے. نو عمرؓ غصه شو او وے وئیل چه داسې اُووایئ: چه یا پوهیږو یا نهٔ. نو ابن عباسؓ اُوفرمایل: اے امیر المؤمنین! زما په زړهٔ کښې ددے په باره کښې څهٔ شے شته. عمرؓ اُوفرمایل: اے ورارهٔ وایه! او خپل ځان سپك مهٔ ګڼره!. ابن عباسؓ اُووئیل: دا مثال د عمل دے. عمرؓ اُوفرمایل: کوم عمل؟ ابن عباسؓ اُوفرمایل:

[لِرَجُلٍ غَنِيٍّ يَعْمَلُ بِطَاعَةِ اللهِ عَزَّ وَجَلَّ، ثُمَّ بَعَثَ اللهُ لَهُ الشَّيْطَانَ فَعَمِلَ بِالْمَعَاصِيْ حَتّٰى اَغْرَقَ اَعْمَالَهٗ].

(د هغه مالدار سړی مثال دے چه د الله په طاعاتو عمل کوی (یعنی صدقې او نیك کارونه کوی) نو په آخره کښې ورته الله تعالیٰ شیطان مقرر کړی نو د هغه د وسوسو په وجه په ګناهونو شروع اُوکړی تردے چه دده عملونه ټول غرق کړی). (بخاری کتاب التفسیر:۶۵).

په روایت د ابن جریرؒ کښې عطاءؒ د ابن عباسؓ نه داسې معنیٰ نقل کړیده:

[اَيَوَدُّ اَحَدُكُمْ اَنْ يَّعْمَلَ عُمْرَهٗ بِعَمَلِ الْخَيْرِ حَتّٰى اِذَا كَانَ حِيْنَ فَنِيَ عُمْرُهٗ خَتَمَ ذٰلِكَ بِعَمَلِ اَهْلِ الشَّقَا فَاَفْسَدَ ذٰلِكَ فَاَحْرَقَهٗ] - يعنى يو تن په تول عمل كښې نيك كارونه كوى ترديے چه كله ئے عمر په ختميدو شى، نو په آخره كښې د بد بختو خلقو عملونه شروع كړى، نو مخكنى تول عملونه خراب او برباد كړى)۔ حاصل دا چه دا د هغه كسانو مثال دے چه اول كښې نيك عملونه كوى او صدقے وركوى، خو آخر كښې پرے امتحان راشى او د شيطان د وجے نه گناهونه شروع كړى او خاتمه ئے (العياذ بالله) خرابه شى۔

چه **تفصيل** ئے داسے دے يو سړے دے د هغه يو باغ دے چه دوه قسمه ميوه پكښې كيږى كجورے او انگور، او په هغے كښې نهرونه روان وى، او ددے باغ نه ورته نور قسم ميوه جات او آمدنئ هم ملاويږى او دا خپله د بوډا والى په حالت كښې وى، او دده بچى وى ليكن هغه داسے كمزورى (ماشومان) وى چه دده هيڅ قسم مدد نشى كولے، بلكه دهٔ ته محتاج وى او ددے خلقو بل هيڅ قسمه آمدنى نهٔ وى سوئ ددے باغ نه، نو پدے حالت كښې دا ژوند تيروى چه ناڅاپه دده په باغ باندے تيزه سيلئ راوالوزى چه په هغے كښې اُور وى او دده باغ اُوسوزوى۔ بل طرف ته د آمدنئ بندوبست ئے هم نشته۔ داسے څهٔ ورسره نشته چه دا باغ دوباره اُوكړى، او په بچو كښې ئے هم څهٔ خير نهٔ وى چه دده سره مدد اُوكړى، بلكه هغه اُلټه دهٔ ته محتاج دى۔

نو د داسے سړى به څهٔ حال وى؟ دا به څومره پريشانه وى؟ چه په ډير محتاج حالت كښې ترے دغه مزيدار باغ لاړو، نو د هلاكت نه سوئ به دده نور څهٔ پاتے وى؟۔

نو دغه شان يو انسان دے چه مالداره دے هر قسم مالونه ورسره دى او هغه د الله په لاره كښې او په طاعاتو كښې خرچ كوى، او لكه څنگه چه دده باغ دوه قسمه دے نو دده صدقات او انفاق هم دوه قسمه دے، نفلى او فرضى۔ او لكه څنگه چه دے باغ كښې چينے او نهرونه روان دى، نو دده دا صدقات هم دغه شان جارى وى، او لكه څنگه چه دده نور ثمرات او آمدنئ شته، نو دغه شان ددے شخص نور طاعات او د خير كارونه او بدنى او مالى نيك اعمال هم شته ليكن دا د بوډا والى په حالت كښې دے چه نور كسب هم نشى كولے يعنى د شيطان د وسوسو په وجه دده په عقيده او نيت كښې ضعف راغلو، ايمان او نيك اعمال ئے پريخودل۔ او په قيامت كښې د نيك عمل كولو نه هم عاجز شو۔

او دا خپله هم داسے څه نهٔ مونده كوى چه باغ پرے بيرته برابر كړى، نو دغه شان دا به په قيامت كښې د نورو اعمالو د كولو طاقت نهٔ لرى او بل څوك دده مدد هم نشى كولے بلكه اُلټه د هغوى حقوق په دهٔ پورے دى، څكه چه دهٔ پرے ظلم كړيدے لكه كمزورى بچى چه دهٔ ته محتاج وو، په

دهٔ باندے د هغوی نفقه لازمه وه۔

او لکه څنګه چه په باغ باندے سیلئ راوالوتله نو دغه شان دهٔ په انفاق کښې ریاء او مَنُ او اذی راغلل، او په نورو اعمالو کښې ئے رسمونه رواجونه او بدعات او بدنیتیانے پیدا شوے چه په هغے سره دهٔ ټول طاعات او عبادات او صدقات اُوسوزیدل، او لکه څنګه چه په دے سیلئ کښې اُور دے نو دغه شان دهٔ په دے اعمالو کښې کفر او شرك هم پیدا شو چه په هغے سره دهٔ اعمال ټول اُوسوزیدل، نو په دغه شان محتاج حالت کښې دا پاتے شو۔

نو کله چه قبر او قیامت ته لاړ شی نو دهٔ ټول اعمال به برباد وی، هیڅوك به ئے مددګار نهٔ وی ځکه چه دهٔ آخره خاتمه خرابه شوه۔ عبادات ئے برباد شول۔ نو د افسوسونو نه سیوئ دهٔ ته هیڅ پاتے نشو۔ نو الله تعالیٰ مونږ ته دعوت راکوی چه آیا ستاسو داسے حالت خوښ دے؟، نو پدے کښې ډیره یَره پرته ده چه اے بندګانو ! خپل عملونه په ګناهونو مهٔ بربادوئ، خاتمه به مو خرابه شی، د قیامت په ورځ به د خپلو اعمالو نه هیڅ فائده تاسو ته نهٔ رسی۔ د خپلو عملونو به انتهائی خیال ساتی او وخت په وخت به د الله نه مدد غواړی چه الله پرے امتحان رانهٔ ولی چه د هغے په سبب دا په ګمراهئ کښې واقع نشی، هسے نهٔ چه ټوله خواری ئے ضائع شی او په صدقاتو کښې به د ریاء او من او اذی نه ځان ساتی۔ (الوسیط للسید طنطاوی)

(۳) بعض وائی دا د منافق او کافر مثال دے چه په دنیا کښې دهٔ داسے ښائسته اعمال وی لکه د دغه باغ په شان، چه دا ترے فائدے اخلی خو کله چه دا کمزورے شی، او دهٔ اولاد هم کمزوری وی نو په دغسے حالت کښې پرے داسے سیلئ راشی چه په هغے کښې اُور وی او دهٔ باغ هلاك کړی، نو د اولادو دپاره هم څهٔ نهٔ مونده کوی، او اولاد دهٔ ته فائده نشی ورکولے، نو دا عاجز او حیران پاتے شی چه هیڅ چل نهٔ ورځی۔

نو دغه شان حالت د هغه چا دے چه د قیامت په ورځ ډیر ښائسته اعمال راوړی، لیکن د الله رضائے پکښې نهٔ وی قصد کړی نو الله تعالیٰ ئے برباد کړی، او حال دا چه دا ورته په دغه حالت کښې ډیر محتاج دے ځکه چه اُوس خو توبه هم نهٔ قبلیږی او نهٔ بیرته اعمالو کولو ته موقعه ملاویږی۔

(تفسیر الخازن ۱/۲۹۶ ومعالم التنزیل للبغوی ۱/۳۲۹ و المحرر الوجیز لابن عطیة (۱/۳۳۰)

(٤) حسن بصریؒ وائی : [هٰذَا مَثَلٌ قَلَّ (وَاللهِ) مَنْ يَّعْقِلُهٗ مِنَ النَّاسِ. شَيْخٌ كَبِيْرٌ ضَعُفَ جِسْمُهٗ وَكَثُرَ صِبْيَانُهٗ اَفْقَرَ مَا كَانَ اِلٰى جَنَّتِهٖ وَاِنَّ اَحَدَكُمْ وَاللهِ۔ اَفْقَرَ مَا يَكُوْنُ اِلٰى عَمَلِهٖ اِذَا انْقَطَعَتْ عَنْهُ الدُّنْيَا]

(التفسیر القیم لابن القیم ۱/۲٦۷)

قسم په الله دا یو داسے (مزیدار) مثال دے چه ډیر کم خلق پرے پوهیږی، یو بوډا دے چه بدن ئے

کمزوری دي، ماشومان ئې زيات دي، او خپل باغ ته زيات محتاج دي، نو دغه شان کله چه يو انسان د دنيا نه رخصتيږي (مري) نو په حالت د مرګ کښې به د ضعيف شيخ په شان وي چه د نيک اعمالو ارمان به کوي، نيک عمل ته به ئې ډير سخت ضرورت وي (په قبر کښې به د يو سبحان الله وئيلو پسې ارمان کوي) ليکن د مرګ په راتللو سره به ددهٔ اعمال منقطع شي.

لکه حديث کښې هم دي چه هر انسان چه مري (نيک وي او که بد) هغه پښيمانه کيږي. بد عمله وائي: ولې مې توبه نهٔ ويستله او نيک عمله وائي چه ولې مې زيات نيک اعمال نکول.

(ترمذي ۲٤۰۳ - بسند فيه مقال يحيٰى بن عبيد الله بن موهب ضعيف، ضعيف الجامع الصغير ۱۱۹۲۹)

د قيامت په ورځ به انبياء کرام عليهم السلام هم خپل عملونه کم ګڼړي.

نو فرمائي چه زر زر عملونه اُوکړئ او ځان له ددې باغ نه جمع اُوکړئ (دنيا کښې نيک کارونه اُوکړئ) ځان له ئې اُوساتئ که باغ اُوسوزيدلو (مرګ راغلو) نو هغه جمع به درله کار درکوي. لکه داسې صدقه جاريه پريدئ، مخکښې نه ځان له ګټه اُوکړئ چه د مرګ نه روستو ستاسو په کار راشي، او تاسو پسې د هغې اجر روان وي. نو دا ډير ښائسته مثال دې.

علامه ماورديؒ او ابن الجوزيؒ وئيلي دي چه دا مطلب د امام مجاهدؒ نه (هم) نقل دې.

[هُوَ مَثَلٌ لِلْمُفَرِّطِ فِيْ طَاعَةِ اللهِ لِمَلَاذِ الدُّنْيَا يَحْصِلُ فِي الْآخِرَةِ عَلَى الْحَسْرَةِ الْعُظْمٰى]

(النكت والعيون ۱/۱۹۹ وزاد المسير لابن الجوزي ۱/۳۲۱)

دا مثال د هغه شخص دې چه د الله په عبادتونو او نيکو عملونو کښې د دنيا د مزو دپاره کوتاهي کوي، ليکن په آخرت کښې به په لوئې افسوسونو ورواوړي لکه د دغه بوډا په شان).

**فائده**: ددې آيت نه معلومه شوه چه انسان به په خپله خاتمه يَره کوي، او په خپل عمل کښې به رياء او فخر او عُجب به نهٔ کوي ځکه پته نهٔ لګي چه انجام څنګه کيږي او په چا به دا يقيني فيصله نشي کولې چه دا جهنمي يا جنتي دې، ځکه چه دارومدار خاتمې له دې.

**فائده**: بيا دا خبره زدهٔ کړهٔ چه الله تعالىٰ د انسان عمل نهٔ ضائع کوي کله چه عمل په اخلاص سره اُوشي، بلکه د ايمان والو په اعمالو کښې الله تعالىٰ وخت په وخت ترقي پيدا کوي، ليکن دې انسان چه اوله کښې نيک اعمال کول، او آخره کښې ګمراه شو، نو ددې وجه په حديث کښې راغلې ده، هغه دا چه دا به دا نيک اعمال کوي خو [فِيْمَا يَبْدُوْ لِلنَّاسِ] يعنې خلقو ته په ظاهره کښې نيک عمل ښکاره کيږي او په مينځ کښې به ئې مرضونه وي. نو عمل ئې ناجوړه دې، اول نه الله ته قبول نهٔ دې لکه د [وَاَصَابَهُ الْكِبَرُ] د اشارې نه هم معلوميږي.

**فائده**: ددې نه معلومه شوه چه د خپل ځان نه روستو صدقه جاريه پريخودل پکار دي دې

دپاره چه په ډیر محتاج حالت کښې (په آخرت کښې) ئې پکار راشي۔

﴿أَيَوَدُّ أَحَدُكُمْ﴾ همزه د استفهام انکاري دپاره ده یعنې هیچا ته دا راتلونکے حالت خوښ نه دے۔

﴿أَنْ تَكُونَ لَهُ جَنَّةٌ﴾ جنة اسم جنس دے، هغه باغ ته وئیلے شي چه دکجورے او انګورونے پکښې ډیرے وي۔

﴿نَخِيلٍ وَأَعْنَابٍ﴾ حافظ ابن القیمؒ فرمائي: کجورے او انګور ئې خاص کړل ځکه چه دا دواړه اشرف او ډیرے فائدو والا دي، دواړو کښې غذاء، دوائي، شربت، میوه جوړیدل، خوږوالے، ترش والے شته۔ او دواړه لامده او اُوچ خوړلے شي۔ او دواړه د یو بل مقابل دي، انګور په نرمه او معتدله زمکه کښې کیږي او کجورے په سخته او ګرمه زمکه کښې۔ نو هرکله چه دا ډیرو صفاتو والا دي نوکوم باغ کښې چه دا دواړه وي، هغه به هم غوره وي۔ او ورسره لاندے ترے نهرونه هم روان وي نو دا باغ به ډیر قدر والا وي او ډیر کمال به پکښې وي۔

﴿لَهُ فِيهَا مِنْ كُلِّ الثَّمَرَاتِ﴾ او هر قسم میوه جاتو ته چه د انسان شوق کیږي هغه هم پکښې موجود وي اګرکه اصلي او مقصدي میوه ئې کجورے او انګور دي۔ نو دا منافات نشته چه دا باغ د کجورو او انګورو هم دے او نور میوه جات هم پکښې دي۔ لکه دغه شان خبره په سورة الکهف کښې هم مراد ده (وَكَانَ لَهُ ثَمَرٌ)۔ (التفسیر القیم لابن القیم۱/ ۲۷۰)

ثمرات میوه جاتو ته وائي۔ بعض علماء فرمائي چه دلته د ثمرات نه مراد بعینه همدغه نخیل او اعناب دي۔ او نور میوه جات نهٔ دي مراد، ځکه چه دغه باغ کښې صرف دوه قسمه وُنے دي۔ نو دلته به د ثمرات نه مراد منافع وي۔ یعنې ددے نه به ورته ډیرے فائدے حاصلیدے۔ او بعض وائي چه دا زیاتې میوه جات مراد دي لکه د حافظ ابن قیمؒ د عبارت نه معلومه شوه نو دا ذکر د عام دے پس د خاص نه۔

﴿وَأَصَابَهُ الْكِبَرُ﴾ کِبَر هغه بوډاوالے دے چه د ډیر عمر په تیریدو سره په بدن کښې کمزورتیا هم راغلې وي۔ چه بیا د کاروبار کولو نهٔ وي۔ دے کښې اشاره ده چه ددے انسان په عمل کښې ضعف او کمزورتیا راغلے ده، خلقو ته ئې اعمال نیك ښکاري، لیکن په مینځ کښې کمزوري دي۔ په بوډاوالي کښې انسان رزق ته ډیر محتاج وي او ډیر فکرئې لري پدے وجه نبي کریم ﷺ به داسے دعا کوله۔ [اَللّٰهُمَّ اجْعَلْ أَوْسَعَ رِزْقِكَ عَلَيَّ عِنْدَ كِبَرِ سِنِّيْ وَانْقِطَاعِ عُمُرِيْ]

[الصحیحة ۱۵۳/۹) وصحیح الجامع (۱/ ۳۹۶) ومجمع الزوائد (۱۰/ ۱۶۰)۔

﴿وَلَهُ ذُرِّيَّةٌ ضُعَفَاءُ﴾ ځیبله خو به د لوړے نه مړ شي، دومره خبره به نهٔ وي، لیکن د بچو غم ډیر ګران وي، دا لویه پریشاني ده۔

﴿فَأَصَابَهَا إِعْصَارٌ﴾ إِعْصَار په اصل کښې يو شے نچوړ کولو ته وئیلے شي، بيا په عرف کښې هغه تيزے سيلئ ته وائي چه د زمکے نه آسمان طرفته د گول ستنے په شان پورته کيږي، او تاوېږي نو دا د ځان سره هر شے تاووي. په عربي کښې دے ته (زَوْبَعَه) هم وائي. بعض وائي: دا وريځے نچوړ کوي.

﴿فِيهِ نَارٌ﴾ يعني پدے سيلئ کښې د اُور تندرونه وي.

﴿فَاحْتَرَقَتْ﴾ (پس دا باغ اُوسوزي) يعني پدے هواء او تندر سره ددے باغ پاڼړے او ميوے گوزار شي او ځانگے او جرړے ئے اُوچے شي. نو دا انسان به د غم په کوم عالَم کښې وي؟! لږ تصور خو اُوکړهٔ. پدے وجه روستو په فکر کولو باندے حکم کوي.

بيا دا باغ سوزيدل ددے انسان د گناهونو په وجه اُوشو چه دهٔ به پدے باغ کښې صدقه نهٔ کوله، او نيک کارونه به ئے نهٔ کول لکه په سورة القلم کښې واقعه د باغ والو ذکر ده، په هغے کښې به هغوی د مسکين حق نهٔ ادا کولو، نو الله پرے دغه شان عذاب راوستو.

او په يو حديث کښې دي چه يو سړي د يو باغ په باره کښې د وريځے نه غيبي آواز واوريدو چه د فلانی باغ خړوبه کړهٔ نو وريځ راغله او صرف يو باغ ئے خړوبه کړو نو کوم سړي چه دغه آواز آوريدلے وو، د باغ مالك ته راغلو او د هغه نه ئے د باغ متعلق تپوس اُوکړو چه تهٔ پدے باغ کښې څه کوے، چه صرف ستا په باغ باران اُوشو نهٔ د نور چا؟. هغه اُووئيل چه زهٔ يوه برخه ځانله اخلم، او دويمه په مسکينانو تقسيموم او دريمه بيرته په باغ لگوم.

(صحیح مسلم ٧٦٦٤)

نو د نيك اعمالو او صدقاتو په وجه د باغ او مال حفاظت کيږي.

﴿كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ اللَّهُ لَكُمُ الْآيَاتِ لَعَلَّكُمْ تَتَفَكَّرُونَ﴾ فکر اُوکړئ چه تاسو له څهٔ کول پکار دي، او دا زندگي خو لږه او ختميدو والا ده، دے کښې کار پکار دے. او په تفکر (سوچ) کولو باندے حکم کوي ځکه چه دا مثال دے او په ظاهر کښې په کښې الفاظ د مثال نشته. او پدے کښې اشاره ده چه د قرآن د آيتونو نه زياته فائده هله حاصلولے شي چه انسان کښې د فکر ماده پيدا شي.

| |
|---|
| يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَنفِقُوا مِن طَيِّبَاتِ مَا كَسَبْتُمْ وَمِمَّا أَخْرَجْنَا لَكُم |
| اے ايمان والو! خرچ کړئ د پاك هغه مالونو نه چه تاسو گټلي دي او د هغه نه چه مونږ راويستلي دي تاسو لره |
| مِّنَ الْأَرْضِ وَلَا تَيَمَّمُوا الْخَبِيثَ مِنْهُ تُنفِقُونَ وَلَسْتُم بِآخِذِيهِ |
| د زمکے نه او قصد مهٔ کوئ د ردي د دغه مال نه چه تاسو خرچ کړئ هغه حال دا چه نهٔ يئ تاسو اخستونکي هغے لره |

إِلَّآ أَنْ تُغْمِضُوا فِيهِ وَاعْلَمُوٓا أَنَّ اللّٰهَ غَنِيٌّ حَمِيدٌ ﴿۲۶۷﴾

(په خپل حق کښې) مګر که سترګې پټې کړئ په هغې کښې او پوهه شئ چه یقیناً الله بې حاجته دے، ستائیلے شوے دے.

**تفسیر**: په دے آیت کښې امر دے په انفاق کولو او د انفاق دوه قسمه بیانوی، یو انفاق د هغه مالونو نه چه د زمکے (فصلونو) نه راوتی وی. چه دا د زمکے عُشر او زکوٰة ته شاملیږی.

او دویم د تجارت د مالونو نه انفاق دے. چه دے کښې نفلی صدقات او فرضی زکاة داخل دے. او امر دے چه انفاق به د جیّد (مزیدار) مال نه کولے شی، او ردی به نشی ورکولے.

**ربط**: ○ مخکښې انفاق ته ترغیبات وو، او د هغې شرطونه او مثالونه ئے ذکر کړل، اُوس د انفاق اقسام ذکر کوی.

○ مخکښې د انفاق د قبولیت دپاره شرطونه ذکر شول، اُوس د انفاق د مال دپاره شرط ذکر کوی چه هغه به پاک او حلال مال وی. یعنی مَن او اذی به هم پکښې نهٔ کوئ او مال به هم حلال وی.

﴿يَآ أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوٓا أَنْفِقُوا﴾ دا امر د انفاق نفلی او فرضی دواړو ته شامل دے، لیکن ظاهر دا ده چه دلته نفلی صدقاتو باندے حکم دے لکه د آیتونو د سیاق نه معلومیږی چه زکوٰة او عُشر دلته نهٔ بیانوی. دویم دا چه د شان نزول نه معلومیږی. روستو راځی.

د (أَنْفِقُوا) مفعول نهٔ دے ذکر. بعض وائی: مِنْ د تبعیض دپاره دے، او مجرور د مِنْ ئے مفعول دے. اَیْ أَنْفِقُوا بَعْضَ مَا رَزَقْنَاكُمْ. (خرچ کړئ بعض هغه مالونه چه ما درکړیدی).

بعض وائی: مفعول ئے پټ دے. اَیْ أَنْفِقُوا شَيْئًا مِمَّا رَزَقْنَاكُمْ. (خرچ کړئ څه شے د مالونو نه). (اللباب).

﴿مِنْ طَيِّبَاتِ﴾ د طیبات تشریح مخکښې ذکر شویده چه صفت د حلال والی پکښې وی او ورسره کرهٔ او غوره شے وی. ځکه چه د حرام مال نه صدقه کول هیڅ ثواب نهٔ لری. بلکه هغه برباد دے داسے دے لکه په یے اُودسئ سره مونځ کول. او هرچه حلال مال دے نو حدیث مخکښې تیر شویدے په آیت (۲۶۱) کښې چه یوه کجوره الله تعالیٰ دومره زیاتوی لکه د غر هومره.

﴿مَا كَسَبْتُمْ﴾ ما موصوله ده [اَیْ الَّذِیْ كَسَبْتُمُوهُ]. هغه مال چه تاسو ګټلے دے. یا ما مصدریه ده یعنی د پاک کسب نه. او کسب په معنیٰ د مکسوب دے (یعنی ګټلے شوے مال).

**فائده**: د آیت نه معلومه شوه چه په خپل لاس مال ګټل بهتر کار دے. لکه حدیث کښې هم دی [مَا أَكَلَ أَحَدٌ طَعَامًا خَيْرًا مِنْ أَنْ يَأْكُلَ مِنْ عَمَلِ يَدِهٖ] (بخاری).

د هغه چا طعام غوره دے چه د خپل لاس د ګټے نه ئے اُوخوری.

﴿وَمِمَّآ أَخْرَجْنَا لَكُمْ مِنَ الْأَرْضِ﴾

**فائده :** دا آیت فقهاء کرامو ددے دپاره ذکر کړے چه هر څه چه د زمکے نه راوځی نو په هغے کښې عُشر (لسمه حصه زکاۃ) لازم دے۔ او که په کومه زمکه خرچه کیږی، نو نصف عشر (یعنی شلمه حصه) به ورکوی۔ او بیا په هر قلیل او کثیر کښې عشر لازم ګنړی۔

وائی چه دلته مَا لفظ عام دے، لږ وی او که ډیر، خو بس عشر یا نصف عشر پکښې لازم دے۔

جمهور علماءؒ وائی چه دا آیت د نفلی صدقاتو په باره کښې دے۔

او ددے آیتونو تفصیل نبی ﷺ بیان کړے چه عُشر په هر څه کښې نهٔ وی لازم، بلکه عُشر صرف په څلور ځیزونو کښې لازم دے۔ معاذ بن جبل او ابوموسی اشعری رضی الله عنهما چه کله نبی ﷺ یمن ته لیږل نو هغوی ته ئے اُوفرمایل :

[لَا تَأْخُذَا الصَّدَقَةَ إِلَّا مِنْ هٰذِهِ الْأَرْبَعَةِ : الشَّعِيْرِ وَالْحِنْطَةِ وَالزَّبِيْبِ وَالتَّمْرِ]

(حاکم ۴۰۱/۱ وَصَحَّحَهُ وَوَافَقَهُ الذَّهَبِيُّ وَالزَّيْلَعِيُّ فِيْ نَصْبِ الرَّايَةِ (۳۸۹/۲) [ارواء الغلیل ۳۷۶/۳ رقم ۸۰]۔

(تاسو به زکاۃ صرف د اُوربشو، غنمو، اُوځکو (کِشمش) او کجوروا اخلئ)۔

معلومه شوه چه ددے نه علاوه ځیزونو کښې عُشر لازم نهٔ دے او همدا غوره قول دے۔

بیا په احادیثو کښې ددے دپاره بل شرط هم راغلے دے او هغه دا چه دا به پنځه وسقو ته رسیدلی وی (یعنی تقریباً ۷۵۰ کیلو یا پنځلس منه)۔ که ددے نه کم وی، نو په هغے کښې هم عُشر او زکاۃ نشته۔ د صحیحینو په حدیث کښې دی :[لَيْسَ فِيْمَا دُوْنَ خَمْسَةِ أَوْسُقٍ صَدَقَةٌ]

(د پنځه وسقو نه په کم کښې زکاۃ نشته) یو وسق شپیته صاعه دے او یو صاع دوه کلو دوه سوه ګرامه دے۔ او ددے تفصیل په فتاوی الدین الخالص (۱۶۵/۸) کښې اُوګوره۔ او دا مذهب د حسن بصریؒ، حسن بن صالحؒ، سفیان الثوریؒ، عامر الشعبیؒ، ابن ابی لیلیٰ، عبد الله بن المبارکؒ او ابراهیم النخعیؒ دے۔ او همدا قول د عبد الله بن عمر رضی الله عنهما نه نقل دے۔

لهذا تفسیر د قرآن به په احادیثو سره کولے شی۔ احادیث تخصیص د قرآن کولے شی، نبی ﷺ د قرآن د تشریح او تبیین دپاره راغلے وو۔ او اصول التفسیر کښې دا خبره بیان شویده چه د قرآن پو هه انسان ته هله حاصلیږی چه اول د قرآن تفسیر په قرآن سره اُوکړے شی، بیا په احادیثو سره اُوکړے شی۔ او داسے به نشی کولے چه انسان په خپله طبع د قرآن د آیت تشریح اُوکړی او احادیثو ته پکښې اعتبار ورنکړی۔

﴿وَلَا تَيَمَّمُوا الْخَبِيْثَ مِنْهُ تُنْفِقُوْنَ﴾ ردی مال به نهٔ ورکوے بلکه ښهٔ ورکړه۔

ردی او خوشے مال د الله په لاره کښې خرچ کول نهٔ دی پکار، ځکه چه حدیث کښې راغلی دی چه الله طیب او پاک دے، او غوره او ښهٔ مال قبلوی۔ (بخاری ومسلم)

پدې وجه الله تعالیٰ فرمائي چه خراب مال د الله په لاره کښې مه خرچ کوئ، حال دا چه خپله ستاسو حال دا دے چه که څوك ستا د قرض خلاصولو دپاره خراب مال درکړي، نو ته هغه د زړه په خوشحالئ نه قبلوے، بلکه سترګو پټولو سره په صورت د جبر او اکراه ئے قبلوے. او که مجبوره نه ئے نو بیا ئے نه قبلوے.

**شان نزول:** د براء بن عازب ﷺ نه روایت دے چه دا آیت د انصارو په باره کښې نازل شوے وو. د کجورو د پخیدو په زمانه کښې به خلقو په مسجد نبوي کښې د دوه ستنو ترمینځ د کجورو یو غونچك زوړندولو، دے دپاره چه غریبان مهاجرین ئے اُوخوري.

بعض خلقو به په غونچکونو کښې د ردي کجورو غونچکونه ایخودل او دا ګمان به ئے کولو چه داسے کول جائز دي. الله تعالیٰ هغوي ته خبردارے ورکړو چه داسے کول جائز نه دي. (ترمذي، ابن ماجة، حاکم، بیهقيؒ). ...... د ابن ابي حاتمؒ او ترمذيؒ په روایت کښې ورسره دا راغلي دي چه ددے نه روستو به صحابه کرامؓ بهتر او غوره مالونه راوړل.

﴿ الْخَبِيثَ ﴾ ددے نه مراد ردي او بیکاره مال دے.

بعض علماؤ وئیلي دي چه ددے نه مراد حرام مال دے چه د الله په لاره کښې حرام مه خرچ کوئ. حافظ ابن کثیرؒ وائي چه اولنے قول صحیح دے. ځکه چه د (اِلَّا اَنْ تُغْمِضُوْا) نه معلومیږي. ځکه چه په حرام مال اخستو کښې خلق چشم پوشي نه کوي. امام شوکانيؒ دواړه مراد کړیدي. یعني د الله په لاره کښې مه حرام مال خرچ کوئ او مه ردي مال.

﴿ مِنْهُ تُنْفِقُونَ ﴾ مِنْ د روستو تُنْفِقُوْنَ پورے متعلق دے. او تُنْفِقُوْنَ جمله حال دے، او مقصد پکښې دا دے چه په خپل مال کښې ګرځے چه کوم ردي وي هغه د انفاق دپاره راټولوے، نو دا کارمنع دے، او که ګډوډ مال (ردي او کره) دواړه قسمه په شریکه خیرات کوي، یا ټول مال ئے ردي وي او د هغے نه صدقه کوي نو دا منع نه دے.

﴿ وَلَسْتُمْ بِآخِذِيهِ إِلَّا أَنْ تُغْمِضُوا فِيهِ ﴾ اَیْ فِیْ حُقُوْقِکُمْ. یعني که بل څوك ئے درکوي، نو ته ئے نه اخلے، مګر که سترګے پټے کړے چه سړي نه قرض نه اصولیږي نو بس دا خراب مال به ترے واخلم ځکه چه نور ورسره نشته. نو اُوګوره د خپل ځان دپاره دغسے مال نه غوره کوے او د الله دپاره ئے غوره کوے، دا څومره بے وفائي، بے رغبتي او بے محبتي ده !!.

﴿ تُغْمِضُوا ﴾ اِغْمَاض په اصل کښې سترګو پټولو ته وائي یعني چشم پوشي کول. دلته ترے نرمي او آساني کول او چا سره خپه راخکل مراد دي.

﴿ وَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ غَنِيٌّ حَمِيدٌ ﴾ غني یعني الله ستاسو د انفاق او صدقو نه بے حاجته دے، فائده ئے

تاسو ته راواپس کیږي. او بنده چه کله إغماض (چشم پوشي) اُونکړي نو هغه بد ګڼړلے شي، او الله که اغماض اُونکړي نو هغه بیا هم ستائیلے شویدے، په هر حال کښې د هغهٔ صفت کیدے شي. نو بنده چه کله هم صدقه ورکړي، نو پدے دے پوهه شي چه الله تعالیٰ غني دے، فراخه بدله ورکونکے دے، هیڅ ورسره کم نهٔ دي.

حمید: یا په معنیٰ د فاعل سره دے یعني حَامِد. الله دپاره چه څوك نیك اعمال کوي نو الله د هغهٔ صفت کوي. او یا په معنیٰ د مفعول سره دے یعني مَحْمُوْد. یعني الله ستائیلے شویدے په هغهٔ انعاماتو چه په بنده ګانو ئے کړیدي.

الله تعالیٰ په علم امر اُوکړو، سره ددے نه چه انسانانو ته د الله تعالیٰ دغه صفات ښکاره دي، پدے کښې د ردي مال په ورکړهٔ باندے زجر او رټنه ده، او اشاره ده چه څوك ردي او خبیث مال ورکوي نو هغه د الله تعالیٰ په عظمتِ شان باندے جاهل دے.

| اَلشَّيْطَانُ يَعِدُكُمُ الْفَقْرَ وَيَأْمُرُكُمْ بِالْفَحْشَآءِ وَاللّٰهُ يَعِدُكُمْ مَّغْفِرَةً |
| --- |
| شیطان یروي تاسو د فقر نه او امر کوي تاسو ته په بے حیایئ باندے او الله وعده کوي تاسو سره د بخنے |
| مِنْهُ وَفَضْلًا وَاللّٰهُ وَاسِعٌ عَلِيْمٌ ﴿۲۶۸﴾ |
| د خپل طرف نه او د مهربانئ او الله فراخه فضل والا دے، پوهه دے. |

**تفسیر**: پدے آیت کښې اَضْرَارُ تَرْكِ الْإِنْفَاقِ وَفَوَائِدُ الْإِنْفَاق بیانیږي یعني (د انفاق نهٔ کولو ضررونه او د انفاق کولو فائدے بیانیږي). دارنګه په آیت کښې انفاق ته ترغیب دے، په طریقه د دعوت د الله تعالیٰ سره. او ځان ساتل د دعوت او وسوسے د شیطان نه.

ددے وجه نه قرطبیؒ د عبد الله بن عباس رضي الله عنهما نه نقل کړي، فرمائي: پدے آیت کښې دوه څیزونه د الله د طرف نه دي چه د مغفرت وعده او د فضل وعده. او دوه د شیطان د طرف نه دي (د فقر نه یرول او د فحشاء حکم کول) آه.

نو عقل والو له پکار دي چه په انصاف سره د دواړو موازنه اُوکړي، او د شیطان چه لوئي دشمن دے د هغه د دعوت نه ځان اُوساتي، او د رحمٰن دعوت قبول کړي. او پدے کښې هم انفاق ته په عجیب انداز سره ترغیب دے.

**ربط**: مخکښې ئے د غوره شي د انفاق ترغیب ورکړو، نو اُوس پدے باره کښې د شیطان د وسوسے نه یره ورکوي. او د الله وعده ورته یادوي. (قاسميؒ).

﴿الشَّيْطَانُ يَعِدُكُمُ الْفَقْرَ وَيَأْمُرُكُمْ بِالْفَحْشَاءِ﴾

د شيطان نه مراد ابليس او د هغهٔ اولاد دي، او پدے کښې انسي شيطانان هم داخل دي چه هغه د شيطانانو ملګري وي۔

(يَعِدُكُمْ) يَـعِـدُ د وعدے نه دے او وعده په خير او شر دواړو کښې استعماليږي، لکه دلته او سورة الفتح (٢٠) آيت کښې ﴿وَعَدَكُمُ اللهُ مَغَانِمَ كَثِيرَةً﴾ او مثال د شر لکه په سورة الحج (٨٢) آيت ﴿اَلنَّارُ وَعَدَهَا اللهُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا﴾۔ دلتـه هم وعده د شر او خير دواړو سره ذکر ده۔

بعض علماء فرمائي: وعده چه مطلق ذکر شي، نو په خير کښې استعماليږي، او چه کله ورسره قيد ذکر کيږي، نو کله به په خير سره مقيد کيږي او کله په شر سره لکه دا آيت شو۔ (فتح البيان)۔

خو دلته يَعِدُ په اول مقام کښې د وعيد نه دے، په معنیٰ ديره ولو سره او دويم ځائے کښې د وعدے نه دے۔

**فائده:** د شيطان مداخل (د راداخليدو ځايونه) دا دي چه انسان ته وسوسه واچوي چه خرچه مهٔ کوه فـقيـر او غـريـب بـه شـے۔ نو د لوئي خيرونو نه ئے منع کړي۔ او اکثرو طالبانو او ديندارو خلقـو تـه دا وسـوسـه اچـوي چـه عـلم او دين پريدهٔ، او خپل ځان له رزق پيدا کړه۔ ستا خو کور نشته، کاروکسب نشته۔ ددے علاج دا دے چه په الله توکل اُوکړه او تقویٰ اختيار کړه نو الله به په آسانئ رزق درکوي۔ اُوسه پورے ئې د لوږے نه نهٔ ئې وژلے۔

د شيطان مداخل ځليريشت قسمه وسوسے وي، يو په کښې د فقر نه يره ول دي۔ چه هغه زمونږ په کتاب « الحق الصريح (٢٦٨/١) باب الوسوسة » کښې تفصيلا ذکر شويدي۔

د شيطان په خلاف نبي ﷺ هم فرمائيلي دي: [فَوَاللهِ لَا الْفَقْرَ أَخْشٰى عَلَيْكُمْ وَلٰكِنْ أَخْشٰى عَلَيْكُمْ أَنْ تُبْسَطَ عَلَيْكُمُ الدُّنْيَا كَمَا بُسِطَتْ عَلٰى مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ ......الحديث] ...... [بخاري: ٢٩٨٨]۔

(قسم په الله! زهٔ په تاسو باندے د فقر نه نهٔ يريږم، ليکن زهٔ يريږم چه په تاسو به دنيا داسے فراخه شي لـکـه څـنـګـه چـه په پخوانو خلقو فراخه شوے وه نو تاسو به ورسره داسے مينه اُوکړئ لکه څنګه چه هغوي ورسره مينه اُوکړه، نو داسے به مو هلاك کړي لکه څنګه ئے چه هغوي هلاك کړي وو)۔

ددے نـه مـعـلـومـه شوه چه کوم انسان کښې بخل راغلو، نو دهٔ کښې به د دنيا او د آخرت هر شر راجـمـع کيـږي، ددے سره بـه ئـے په دنيا حرص پيدا کيږي، بيا به ئې د مسلمانانو سره حسد پيدا کيـږي، او بيا به د مسلمانانو خلاف شرونه راپيدا کوي، او په انفاق سره د انسان سينه کولاويږي، او هر خير ورتـه آسانيږي۔

الـفـقـر: اصل کښې د فَقَارُ الظَّهر نـه اخستـے شـويـدے د مَلا هډوکي ته وائي۔ او بيا په معنیٰ د غريبئ سره استعماليږي ګويا کښې د فقير ملا هم ماته وي۔ څکه چه مال ورسره نهٔ وي۔

﴿وَيَأْمُرُكُمْ﴾ دا امر په طريقه د وسوسے دے، او امر ئے ذکر کړو، اشاره ده چه هغه داسے قوی وسوسه اچوی چه په نفسونو کښې اثر کوی لکه څنګه چه د آمِر اَمر په مامور کښې اثر کوی۔

﴿بِالْفَحْشَاءِ﴾: (۱) د فحشاء نه مراد يا بخل دے۔ کلبیؒ وئيلی دی چه فحشاء په قرآن کښې په معنیٰ دبے حيائی دے خو صرف دلته ترے بخل مراد دے۔

او عربی ژبه کښې فاحش بخيل ته وئيلے شی۔ او ددے تفسير د صحت وجه هم شته، او هغه دا چه هر اخلاقو کښې دوه طرفه وی، يو کامل طرف او بل ادنیٰ او افحش طرف،

نو کامل طرف دا دے چه انسان د الله په لاره کښې ټول مال اُولګوی۔

او افحش طرف ئے دا دے چه هيڅ شے اُونۀ لګوی، نۀ جيد او نۀ ردی۔

او درميانه دا دے چه جيد باندے بخل اُوکړی او ردی اُولګوی، نو شيطان چه کله اراده اُوکړی چه انسان د افضل نه افحش ته نقل کړی نو چا باندے چه د هغه وسوسه او حيله پټه شی، نو هغه درميانه ته راکاږی او هغه دا چه په فقر باندے ئے اُويروی، بيائے د هغے نه افحش طرف ته راکاږی چه هغه امر په فحشاء (بخل) دے۔ ځکه چه بخل د هر چا په نيز بد صفت دے، نو شيطان د اول نه انسان لره هغے ته نشی راخکلے، بلکه د اول نه مقدمات پيدا کړی چه هغه د فقر نه يرول دی۔ نو کله چه انسان په دے کښې د شيطان خبره اُومنی نو پدے وسوسه کښې زيادت پيدا شی تردے چه هغه د انفاق نه بيخی منع کړی، نو په بخل کښې واقع شی۔ لهذا فقر مقدمه شوه او فحشاء يعنی بخل اصلی بد صفت شو۔ (تفسير النيسابوری ۱٤٦/۲)

ليکن ددے نه غوره تفسير دا دے چه فحشاء په معنیٰ د بے حيائی سره دے۔ او ددے وجه نه الله تعالیٰ د بخل لفظ ذکر نکړو۔ پدے کښې حکمت دا دے چه فحشاء هر قسمه بے حيائی ته شامليږی، نو بخل هم پکښې داخل دے۔ ځکه چه کله انسان بخيل شی او مال جمع کړی، نو بيا ورته شيطان دا نۀ وائی چه بس دا پخپله خوره، بلکه دا وسوسه ورته اچوی چه دا مال په ګناهونو لګوه، ددے وجه نه چه څوك د الله په نوم باندے مال نۀ لګوی او انفاق والا نۀ وی نو د هغوی مال به په غلط ځائے کښې ضرور لګيږی۔

ټی، وی، وی، سی آر به اخلی، سنيماګانے به جوړوی، شراب به پرے څکی او زناګانے به کوی لکه عام مالدار خلق داسے اعمال کوی۔ په غلطو ځايونو کښې په کروړاؤ روپۍ لګوی، ليکن که د الله دپاره زر روپۍ ترے اُوغوختے شی، يا ديوے مياشتے پورے قرض۔ نو بيا شل بهانے کوی۔ نو مالدارئ سره ضرور بے حيائی راځی۔ اُوګوره عام خلق چه بے حيائی کوی نو د مالدارئ د وجه نه۔ ابن قيمؒ وائی: [وَالْغِنٰى مِفْتَاحُ الزِّنَا]۔ مالداری د زنا چابی ده۔ (حادی الارواح ص: ٤٩)

﴿وَاللّٰهُ يَعِدُكُمْ﴾ دلته يَعِدُ په معنیٰ د وعدے سره دے۔

﴿مَغْفِرَةً مِنْهُ وَفَضْلًا﴾ په مغفرت کښې معنیٰ د پټوالی ده، نو دلته [اَلسَّتْرُ عَلٰی عِبَادِهٖ فِي الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ] (په دنیا او آخرت کښې په بندګانو باندے پرده اچول) مراد دی۔ او د فضل نه مراد [اَلتَّوْسِعَةُ فِي الرِّزْقِ] (په رزق کښې فراخي ورکول) دی۔

لکه حدیث کښې دی : الله فرمائي : اے بنیادمه ! خرچ کوه زۀ به په تا خرچ کوم...... الحدیث

(متفق علیه – معالم التنزیل للبغوی)۔

په یو بل روایت کښې دی : هره ورځ چه انسانان پکښې صبا کوی نو دوه ملائك آواز کوی یو وائی : [اَللّٰهُمَّ اَعْطِ مُنْفِقًا خَلَفًا] ۔ اے الله ! انفاق کونکی ته بدله ورکړه او بل ملائك وائی : [اَللّٰهُمَّ اَعْطِ مُمْسِكًا تَلَفًا] (متفق علیه)۔ اے الله ! مال بند ساتونکی ته هلاکت ورکړه)۔

نو معلومه شوه چه په انفاق سره الله تعالیٰ په مال کښې برکات او زیاتوالے راولی، او د انسان ګناهونه معاف کیږی۔ او کوم انسان چه د ګناه نه توبه اُوباسی، نو هغه له مخکښې صدقه ورکول پکار دی چه الله ئے ګناه معاف کړی۔

﴿وَاللّٰهُ وَاسِعٌ عَلِيْمٌ﴾ واسع دے په اعتبار د سخا، فضل او بخښے سره، یعنی دا څیزونه د الله فراخه دی۔ او پدے کښې اشاره ده چه الله د خپلے وعدے خلاف څکه نۀ کوی چه هغه سره هر څۀ ډیر دی۔ او چا له ئے چه خپل فضل ورکړے نو هغۀ ته د هغۀ ځائے معلوم دے او پدے کښې د هغۀ حکمتونه دی۔

| يُؤْتِي الْحِكْمَةَ مَنْ يَّشَآءُ وَمَنْ يُّؤْتَ الْحِكْمَةَ |
|---|
| ورکوی پوهه د قرآن هغه چا ته چه اُوغواړی او چا له چه ورکړے شوه پوهه د قرآن |
| فَقَدْ اُوْتِيَ خَيْرًا كَثِيْرًا وَمَا يَذَّكَّرُ اِلَّآ اُولُوا الْاَلْبَابِ ﴿۲۶۹﴾ |
| نو یقیناً هغه له ډیر خیر ورکړے شو او نصیحت نۀ اخلی مګر صفا عقلونو والا۔ |

**تفسیر** : اُوس مینځ کښې قرآن کریم ته ترغیب ورکوی، لکه دا د قرآن طریقه ده چه دنیاوی خبرو سره زر دین طرفته بنده متوجه کوی، چه مالونه خو ښۀ شے دے، لیکن قرآن زده کړیٔ، پدے باندے ځان پوهه کړیٔ، دا ډیر لوئی شے دے۔ دغه شان سورة یونس (۵۷) آیت کښې هم بیان شویدی (هُوَ خَيْرٌ مِّمَّا يَجْمَعُوْنَ) مال خو ښۀ شے دے خو د قرآن نه ښۀ نۀ دے۔

**مناسبت** : (۱) مخکښې د شیطان او د رحمٰن وعدے ذکر شوے، نو اُوس ددے د تمییز دپاره د

پیژندلو سبب پکار دے چه هغه حکمت دے۔ (رازی، ابن عاشور)۔

(۲) دویم دا چه مخکښې ئې د انفاق متعلق نصیحتونه او آداب ذکر کړل، او د اُوچتو اخلاقو تلقین ئې اُوکړو، نو اُوس وائی چه ددے کارونو په پوهه سره او عملی کولو سره انسان کښې حکمة راځي۔ (ابن عاشور)۔

## د حکمة معانی

﴿ يُؤْتِي الْحِكْمَةَ مَنْ يَشَاءُ ﴾ د حکمة لفظ پوره تشریح مخکښې آیت (۱۲۹) کښې تیره شویده، دلته د حکمة نه مراد (۱) ضحاکؒ، ابو العالیة، نخعیؒ او مجاهدؒ وائی :

[اَلْقُرْآنُ الْعَظِيْمُ وَالْفَهْمُ فِيْهِ] قرآن کریم او د هغے پوهه ده۔

(۲) عبد الله بن مسعود ﷺ فرمائی : په قرآن، او د هغے په اسرارو او رازونو باندے پوهه او په هغے باندے عمل کول دی۔

(۳) [اِتْقَانُ الْعِلْمِ وَالْعَمَلِ] ته وائی (ابن قتیبة)۔ (علم او عمل مضبوطول)۔

(٤) ابن عباسؓ فرمائی : اَلْحِكْمَةُ الْمَعْرِفَةُ بِالْقُرْآنِ نَاسِخِهٖ وَمَنْسُوْخِهٖ وَمُحْكَمِهٖ وَمُتَشَابِهِهٖ وَمُقَدَّمِهٖ وَمُؤَخَّرِهٖ وَحَلَالِهٖ وَحَرَامِهٖ وَاَمْثَالِهٖ۔ (فتح البیان)۔

حکمة : د قرآن پوهے او د هغے ناسخ، منسوخ، محکم او متشابه، مخکښې نازل شوی او روستو نازل شوی او حلال او حرام او مثالونو پیژندلو ته حکمة وائی۔

(٥) ابو الدرداء ﷺ فرمائی : د قرآن قراءت او په هغے کښې فکر کولو ته وائی۔

(٦) بعض وائی : [اَلتَّفَكُّرُ فِيْ اَمْرِ اللهِ]۔ د الله په حکم کښې سوچ کول۔

(۷) [اَلْخَشْيَةُ] د الله نه یره کول۔ (ابو العالیة ومطر الوراق)۔

(۸) فقه فی الدین۔ په دین باندے پوهیدل۔ (ابن زیدؒ - ماوردیؒ)

(۹) نبوت ته وائی۔ (سُدّیؒ)۔ (فتح البیان)۔

صاحب د فتح البیان وائی چه ددے اقوالو ترمینځ هیڅ تعارض نشته، بلکه دا یو بل ته نژدے دی۔

(۱۰) ابن عاشورؒ وائی چه حکمة هغه پوخ علم ته وائی چه د هغے مطابق انسان عمل کوی۔

(۱۱) آلوسیؒ وائی : [اَلْحِكْمَةُ اِتْقَانُ الْعِلْمِ وَالْعَمَلِ اَوِ الْاَسْرَارُ الْمُوْدَعَةُ فِي الْكِتَابِ] (مضبوط علم او عمل او په قرآن کښې کیخودلے شوی رازونه معلومول)۔

(۱۲) مجاهدؒ نه دا هم نقل دی : [اَلْاِصَابَةُ فِي الْقَوْلِ وَالْعَمَلِ] ۔ په وینا او عمل کښې حق او ځائے ته رسیدل۔ یعنی په خپله موقعه کښې خبرے او عمل کول۔

(۱۳) د مجاهدؒ نه یو بل روایت دا دے : [اَلْعِلْمُ الَّذِيْ تَعْظُمُ مَنْفَعَتُهٗ وَتَجِلُّ فَائِدَتُهٗ]۔

(حکمة هغه علم ته وائی چه غټه او ډیره فائده لری).

(۱٤) ابو عثمانؒ نه نقل دی: [هِیَ نُوْرٌ یُفَرِّقُ بَیْنَ الْوَسْوَاسِ وَالْإِلْهَامِ]۔ (آلوسیؒ)۔

(دا هغه نور او رنړا ته وئیلے شی چه ددے په وجه انسان وسوسے او د الهام په مابین کښ فرق کولے شی)۔ دا تعریف د مخکښې آیت سره د ربط دپاره مناسب دے۔

(۱۵) [اَلْمَعْرِفَةُ بِمَكَائِدِ الشَّيْطَانِ وَوَسَاوِسِهِ]۔ د شیطان په مکرونو او وسوسو باندے پوهے ته حکمة وائی۔ [بحر العلوم للسمرقندی ۱/۲۲٤]

(۱٦) سید قطبؒ وائی: [هِيَ تَوَخِّي الْقَصْدِ وَالْإِعْتِدَالِ، وَإِدْرَاكُ الْعِلَلِ وَالْغَايَاتِ، وَوَضْعُ الْأُمُوْرِ فِي نِصَابِهَا فِيْ تَبَصُّرٍ وَرَوِيَّةٍ وَإِدْرَاكٍ]. (فی ظلال) حکمة وائی: درمیانه روی او اعتدال طلب کول۔ او د څیزونو وجوهات او نتیجے معلومول۔ او هر کار په خپله موقعه په بصیرت او عقلمندئ او سوچ او پوهے سره کیخودل۔ نو کله چه ورته درمیانه روی او اعتدال ورکړے شو، نو د حدودو نه به تجاوز نکوی او کله چه ورته په وجوهاتو او نتیجو باندے پوهه ورکړے شوه نو د کارونو په اندازه کولو کښ به نۀ خطا کیږی۔ او کله چه ورته روښانه بصیرت ورکړے شو نو اعمال او حرکات به ئے نیك او د حق موافق وی، آه۔

ددے ټولو تعریفونو حاصل دا راوځی چه حکمة د قرآن او سنت هغه پوخ علم او پوهے ته وائی چه د هغے په ذریعه انسان د حق او د باطل، د وسوسے او د الهام فرق کولے شی او د هر کار او مسئلے حقیقت او راز پیژنی او خبرے او عمل په خپل صحیح ځائے کښ واقع کوی، او د صحیح عقل او رائے والا وی، او بیا پدے خپل عِلم بنۀ مضبوط همیشه عمل کوی۔ او دے وقوفو کارونو نه ځان ساتی، د شیطان د دهوکے ځایونه ورته معلوم وی۔نو چا له چه د قرآن او د دین داسے پوهه ورکړے شوه، نو بس دا ډیر خیر والا او حکیم انسان دے۔ دلته شرعی حکمة مراد دے او د یونانیانو او فلسفیانو حکمة مراد کول غلط دی۔ هغے ته حکمة وئیل هم صحیح نۀ دی۔

د حکمت بنۀ تفصیل په الفوائد (۴جلد) کښ لیکل شوے، د حکمة د حصول طریقه هم بیان شویده۔

﴿وَمَنْ يُؤْتَ الْحِكْمَةَ﴾ حکمة لفظ ئے دوباره په اسم ظاهر سره ذکر کړو، ددے اهمیت، شرافت او اُوچت شان ته اشاره ده۔

علامه قاسمیؒ فرمائی: پدے آیت کښ د مخکښې سره اشاره ده چه څوك د شیطان په وعدو نۀ دهوکه کیږی او د الله په وعدو یقین کوی، نو دا هغه شخص دے چه الله ورته حکمة ورکړیدے۔

﴿فَقَدْ أُوتِيَ خَيْرًا كَثِيرًا﴾ (خیرًا) نکره د تعظیم دپاره ده، یعنی عظیم خیر ورته ملاؤ شو۔ او د (کثیرًا) معنیٰ دا ده چه دومره خیر دے چه افراد ئے ډیر دی۔ څکه چه د قرآن او سنت پوهے نه

روستنو انسان تـه د هر شي پو هه ورکولے شي۔ قرطبيّ وائي : چا ته چه د قرآن علم ورکړے شو نو هغه ته د مخکنو کتابونو او صحيفو علم هم ورکړے شو۔

﴿ وَمَا يَذَّكَّرُ إِلَّآ أُولُوا الْأَلْبَابِ ﴾ اَلْبَاب جمع د لُبّ ده، خالـص او صـفا عقل ته وائي۔ نو د خالص عـقـل تقاضا دا ده چه د حکمة کوشش اُوکړے شي، نهٔ د خواهشاتو۔ ددے وجه نه هغه انسان خو ډيرے عـقـلـه دے چه هغه قرآن او حديث د طالبانو شے ګنړي، او خپله ورله هيڅ وخت نهٔ ورکوي، چه دے ته کيني او ددے زدهٔ کړه اُوکړي۔

**فائده** : د حکمت نه د اعراض ډيرے وجے دي، (۱) قَسْوَةُ الْقُلُوْب۔ (د زړونو سخت والے)۔ (۲) حُبُّ الدُّنْيَا۔ (د دنيا محبت)۔ (۳) ضُعْفُ الْيَقِيْنِ بِاللهِ وَرَسُوْلِه۔ (په الله او په رسول او د هغوي په وعدو باندے د يقين کمزورتيا)۔

**فائده** : د آيت نه معلومه شوه چه څوك نصيحت نهٔ اخلي، نو د هغه په عقل کښې به نقصان وي۔ دارنګه د عقل فضيلت معلوم شو څکه چه تذکر او نصيحت اخستل په عقل سره کيږي۔ نو چا کښې چه څومره عقل وي نو هغو مره نصيحت قبلوي۔ دارنګه معلومه شوه چه الله والا او تقوىٰ والا خلق کامل عقلمند دي۔ (تفسير العثيمين)

| وَمَا أَنْفَقْتُمْ مِّنْ نَّفَقَةٍ أَوْ نَذَرْتُمْ مِّنْ نَّذْرٍ فَإِنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُهُ |
|---|
| او هغه چه تاسو خرچ کوئ څه خرچه يا منخته کوئ تاسو څه منخته نو يقيناً الله پو هه دے په هغے باندے |
| وَمَا لِلظّٰلِمِيْنَ مِنْ أَنْصَارٍ ﴿۲۷۰﴾ |
| او نشته ظالمانو دپاره څوك مدد ګاران۔ |

**تفسير** : اُوس د انـفـاق او د صـدقے دوه قسمه بيانوي۔ يو نفلي صدقه او بل واجبي يعني نذري صدقـه۔ واجبي صدقه يوه دا ده چه الله په انسان لازمه کړي وي، لکه زکاة او عُشر۔ او دويم هغه ده چه بـنـده ئے پـه خپـل ځان لازمه کړي او په ځان ئے اُومني چه زهٔ به دومره مال د الله په لار کښې ورکوم۔ دے ته نذر او منخته وائي۔ نو ددے پوره کول هم واجب دي۔

## د نذر تشريح

نذر د غير الله په نوم حرام او د الله په نوم نذر کول ښهٔ کار دے، نيك عمل دے۔

نو نـذر پـه دوه قسـمه دے (۱) نذر په ګناه کښې کول۔ چه زهٔ به د غير الله (بابا) په نوم دومره مال ورکوم، فلانى بابا يا زيارت له به يو ګډ بوځم۔ نو دا نذر کول حرام دي، او شرکي کار دے۔ او ددے

پوره کول هم حرام دي. دارنګه که په یو ګناه ئې نذر کړے وي چه په ما دے نذر وي چه زۀ به د فلانی سره خبرے نۀ کوم. یا فلانۍ ګناه به کوم. نو ددے ماتول واجب دي او بیا به د قَسَم کفاره ورکړي. (۲) دویم نذر په نیك او جائز کار کښ دے. نو دا نیك عمل دے او ددے پوره کول واجب دي. دا ددے دپاره کولے شي چه انسان د الله طاعت اُوکړي، او الله ته تقرب حاصل کړي. ډیر مسلمانان نذرونه کوي او بیا ئې نۀ پوره کوي حال دا چه دوي باندے فرض پاتے دي. او دا د قیامت د علاماتو نه دي (وَيَنْذُرُوْنَ وَلَا يُوْفُوْنَ) (بخاری ومسلم)

(یعنی داسے خلق به پیدا شي چه نذرونه به کوي او پوره والے به پرے نۀ کوي).

صحابه کرامؓ د جاهلیت د دَور نذرونه د اسلام نه روستو هم پوره کړي دي، کله ئې چه د نیکئ نذر کړے وو، لکه عمرؓ فاروق د نبی ﷺ نه تپوس اُوکړو چه ما په جاهلیت کښ نذر کړے وو چه زۀ به یوه شپه په مسجد حرام کښ اعتکاف کوم. نو نبی ﷺ ورته اُوفرمایل: نذر دے پوره کړه. (صحیح البخاری رقم: ۱۹۲۷).

لیکن دا خبره زدۀ کړه چه نذر به د هغه شي کولے شي چه په هغے کښ عبادت او د الله تعظیم کیدے شي. که چا دا نذر اُوکړو چه زۀ به تول ورځ نمر ته کینم، او سوري ته به نۀ کینم، نو دا نذر صحیح نۀ دے ځکه چه نمر ته کیناستل او نۀ کیناستلو سره د الله تعظیم نۀ راځي، لهٰذا دا عبادت نۀ دے.

بیا نذر د الله په نوم دوه قسمه دے (۱) یو د الله سره شرط لګول چه اے الله! که دا بیمار دے جوړ کړو نو زۀ به دومره مال ستا په نوم ورکړم. دا د بخیلانو کار دے.

دے نه حدیث کښ منع راغلے ده: [لَا تَنْذُرُوْا فَاِنَّ النَّذْرَ لَا يُغْنِيْ مِنَ الْقَدَرِ شَيْئًا وَاِنَّمَا يُسْتَخْرَجُ بِهٖ مِنَ الْبَخِيْلِ] ...... [مسلم، ترمذی، نسائی عن ابی هریرة]

(نذر مۀ کوئ ځکه چه نذر د تقدیر نه هیڅ شے نۀ دفع کوي، بلکه پدے سره د بخیلانو نه مال راویستلے شي) ځکه چه مریض به جوړیږي یا نۀ؟ خو پدے سره د بخیلانو نه الله سال راوباسي ځکه چه بخیل مال نۀ ورکوي، نو الله پرے مصیبت راولي دے دپاره چه نذر اُوکړي. نو الله سره شرطونه لګول نۀ دي پکار.

(۲) دویم: نذر د الله په نوم ابتداءً دے چه شرط پکښ نۀ وي، بلکه د انفاق نیت اُوکړي نو شیطان ورته وسوسه اچوي چه ستا خو نور ضرورتونه هم شته هغے کښ به ئې اُولګوے نو زړۀ ئې په ځان نذر کړه دے دپاره چه په تا واجب شي نو بیا به ئې ورکول لازم وي نو د شیطان وسوسه به پکښ کار نۀ ورکوي.

﴿فَإِنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُهُ﴾ الله پرے پوهه دے یعنی الله به ئے بدله در کوی۔

﴿وَمَا لِلظّٰلِمِيْنَ مِنْ اَنْصَارٍ﴾ ددے جملے مناسبت د مخکښې سره دا دے چه دلته (۱) د ظالمانو نه مراد هغه خلق دی چه هغوی صدقے بے ځایه استعمالوی چه ریاء کوی یا د حرامو نه صدقه کوی۔ (بغوی فی معالم التنزیل)

لکه مثلاً د بدعتیانو او مشرکانو په مدرسه کښې چنده ورکړی، یا د هغوی لنگر چلوی یا د هغوی دپاره پوسترے او پمفلټے او کتابونه چهاپ کوی، او بیا هغوی دین بربادوی۔ یا پردے مال غلا کړی او د هغے نه څۀ مال صدقه کړی۔

بعض خلق په تجارتونو او کاروبارونو کښې دهوکے کوی او غلط او ضروری څیزونه خرڅوی او بیا حج او عمرے له ځی، دے دپاره چه مال ئے پاك شی۔ دا هم ظلم دے۔

○ یا د ظالمین نه مراد هغه څوك دی چه نذر نۀ پوره کوی، یا فرضی زکاة منع کوی، یا نذر او انفاق د غیر الله په نوم کوی، یا په گناهونو کښې مالونه لگوی او د انفاق په باره کښې د الله د حکم مخالفت کوی۔ یا موقعه د انفاق وی او انسان پکښې انفاق نۀ کوی نو دا هم پکښې داخل دے۔ (قاسمیؒ وفتح البیان)۔

**فائده:** ددے نه معلومه شوه چه سخی انسان کله هم خوئیږی نو الله به د هغه لاس نیسی او مدد به ئے کوی۔ (قاسمیؒ عن الحرالیؒ)۔

| |
|---|
| إِنْ تُبْدُوا الصَّدَقٰتِ فَنِعِمَّا هِيَ وَإِنْ تُخْفُوْهَا وَتُؤْتُوْهَا الْفُقَرَآءَ فَهُوَ |
| که تاسو ښکاره ورکوئ صدقے نو ښۀ دی دغه او که تاسو ئے پټ ورکوئ او ورکوئ هغه فقیرانو ته نو دا |
| خَيْرٌ لَّكُمْ وَيُكَفِّرُ عَنْكُمْ مِّنْ سَيِّاٰتِكُمْ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ ﴿۲۷۱﴾ |
| غوره دے تاسو لره او اُویه رژوی ستاسو نه گناهونه ستاسو او الله تعالیٰ ستاسو په عملونو خبردار دے۔ |

**تفسیر:** اُوس د صدقے نور دوه قسمه بیانیږی: ښکاره او پټه۔ دواړه جائز دی۔

**ربط:** مخکښې اُوئیل شو چه په انفاق باندے الله تعالیٰ پوهیږی نو دا سوال پیدا شو چه ښکاره صدقه ورکول به ریاء وی؟ نو دلته وائی چه دا ریاء نۀ ده، کله چه په زړۀ کښې ریاء نۀ وی۔

**شان نزول:** کله چه الله تعالیٰ په انفاق او صدقے ورکولو ترغیب او تیزی ورکړه، نو صحابه کرامؓ تپوس اُوکړو چه ښکاره صدقه ورکول بهتر دی او که پټه؟ نو دا آیت نازل شو چه دواړه جائز دی۔ (بحر العلوم للسمرقندی)

﴿ إِنْ تُبْدُوا الصَّدَقَاتِ ﴾ د صدقات نه مراد نفلي او فرضي دواړه قسمه صدقې دي. صدقې ته ځکه صدقه وئیلې شي چه پدې سره د بنده د ایمان صدق (رشتینوالے) او اخلاص معلومیږي چه دا خپل محبوب شے د الله په نوم ورکوي، معلومیږي چه دا رشتینی مؤمن دے.

## صدقه په پټه ورکول بهتر دي او که ښکاره؟

بیا د علماؤ اختلاف دے چه صدقه په پټه ورکول بهتر دي او که په ښکاره؟ نو چا وئیلي دي چه ښکاره ورکول بهتر دي ځکه چه پدے کښې نورو خلقو ته دعوت دے چه هغوی هم داسے کار اُوکړي، او دے دپاره چه فقیرانو ته معلومه شي چه فلانے شخص صدقه ورکوي نو هغوی به دهٔ ته رجوع اُوکړي. نو صدقه به ئے په خپل صحیح ځائے کښې واقع شي.

○ او چا وئیلي دي چه صدقه په پټه بهتره ده ځکه چه دا د فقیر د شرمولو نه او د خلقو د صفت طلب کولو نه او د ریاء نه وړاندے ده.

او د صدقات نه مراد فرضي صدقات دي هغه ښکاره ورکول پکار دي ځکه چه هغه د اسلام یوه شعیره ده، نو ښکاره کول ئے پکار دي چه نور مسلمانانو ته دعوت شي.

لیکن پدے کښې غوره دا ده چه په اعتبار د موقعه او محل سره به کله یو افضل وي او کله بل. کله چه ستا مقصد دا وي چه زما څوك اقتداء اُوکړي او د ریاء د نهٔ واقع کیدو پوره یقین دے وي، نو بیا ښکاره ورکول افضل دي ځکه چه پدے کښې غوره طریقه جاري کول دي لکه نبي ﷺ صدقې ته ترغیب ورکړو نو یو صحابي یوه بټوه راوړه، بیا نور صحابه کرامؓ پاڅیدل، هغوی هم راوړل، نبي ﷺ اُوفرمایل: چا چه د نیکۍ بنیاد کیخودو نو هغه ته به الله تعالیٰ د دے اجر ورکوي او هر څوك چه پدے عمل کوي د هغے اجر به هم ورته ملاویږي او د خلقو د اجرونو نه به څه کمے نهٔ کیږي. (صحیح مسلم)

دارنګه ښکاره په هغه وخت ورکول پکار دي چه ستا په ځان اعتماد وي او د ریاء احتمال نهٔ وي. او که زړهٔ کمزورے وي او ریاء د انسان نه واقع کیږي نو بیا په پټه بهتره ده لکه پدے وخت کښې ایمانونه کمزوري دي، نو د انسان نه ضرور ریاء واقع کیږي. بیا په پټه بهتره ده. لهذا د ښکاره ورکولو نه په پټه ورکول ډیر بهتر شو لکه څنګه چه د دے آیت د الفاظو نه معلومیږي چه پټه صدقه ئے مخکښې ذکر کړیده.

د پټے صدقے ورکولو دوه طریقے دي (۱) یو دا چه مسکین، الله او تهٔ خبر شے. خپله ئے ورکړے. (۲) دویم دا چه یو ځائے کښې ئے کیدے او فقیر ئے راواخلي. نو صرف ستا او د الله په مینځ کښې راز شو. یا ئے یو ماشوم ته ورکړے چه ورشه هغه فلاني ته دا ورکړه.

﴿ فَنِعِمَّا هِيَ ﴾ نِعْمَ فعل مدح دے او مَا په معنیٰ د (اَلشَّیْءُ) یا (شَیْئًا) سره دے او (هِيَ) مخصوص بالمدح دے۔ ای نِعْمَ الشَّیْءُ هِيَ۔ ډیر ښهٔ شے دے د صدقے ښکاره ورکول۔

نو ددے نه معلومه شوه چه نفس ښهٔ والے په ښکاره ورکولو کښې هم شته۔ او په پټه ورکولو کښې ډیر خیر دے ځکه چه په خیر کښې په نسبت د نِعْمَ غوره والے زیات وی۔

﴿ وَإِنْ تُخْفُوهَا ﴾ بعض وائی: چه د اول صدقاتو نه مراد فرضی دی، او د (تُخْفُوهَا) ضمیر چه صدقاتو ته راجع دے نو د هغے نه مراد نفلی صدقی دی او دے ته په اصطلاح د علم البدیع کښې صنعة استخدام وئیلے شی۔

﴿ وَتُؤْتُوهَا الْفُقَرَاءَ فَهُوَ خَيْرٌ لَكُمْ ﴾ د صدقے په پټه ورکولو سره ئې دا قید ذکر کړو چه فقیرانو ته ئې په پټه ورکړئ نو دا به غوره وی ځکه چه بعض صدقات داسے دی چه هغه نشی پټیدے لکه لښکر له سامان تیارول۔ پُل جوړول، نهر روانول، او کله چه فقیر ته ورکولے شی نو هغه پټول پکار دی ځکه چه پدے کښې په هغه باندے پرده اچول دی۔

د ریاء نه زیات بچ کیدل دی، د خلقو د صفت طلب کولو نه لرے کیدل دی۔ ددے وجه نه دا غوره شوه۔ او حدیث کښې هم د پټے صدقے فضیلت راغلے دے چه څوك په ښی لاس صدقه ورکړی چه ګس لاس ترے خبر نشی نو دا به د هغه اُووه کسانو نه وی چه د عرش د سوری لاندے به د قیامت په ورځ ولاړ وی۔ (بخاری ومسلم) (التفسیر القیم لابن القیم ۱/۲۷۵)۔

ابن عاشورؒ وائی: چه صدقه خو هسے هم فقیر ته ورکولے شی نو ولے ئې فقیر ذکر کړو؟ پدے کښې علت ته اشاره ده چه پټه صدقه ځکه غوره ده چه د فقیر مخ اُونهٔ شرمیږی۔

﴿ وَيُكَفِّرُ عَنْكُمْ مِنْ سَيِّئَاتِكُمْ ﴾ سیئات ګناهونو ته هم وائی نو د صدقو په وجه ګناهونه رژیږی۔ بیا مِنْ تبعیضیه دے۔ نو څو مره چه صدقه وی هغو مره ګناهونه به رژیږی۔

(۲) دویم سیئات کله مصائبو او مشکلاتو او بد حالتونو ته وئیلے شی۔ نو په صدقے سره مصیبتونه ختمیږی۔

﴿ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ ﴾ یعنی الله ته ستاسو ښکاره او پټے صدقے معلومے دی، نو پدے کښې ترغیب دے چه ښکاره کولو ته ئې ضرورت نشته۔ که خلق خبر نشو نو الله پرے خبردار دے، اجر به ئې درکوی۔ او که څوك ریاء کوی نو د هغے نه هم خبردار دے سزا به ورکوی۔

لَيْسَ عَلَيْكَ هُدَاهُمْ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ يَهْدِي مَنْ يَشَاءُ وَمَا تُنْفِقُوا

نشته ستا په ذمه په سمه لاره راوستل د دوی لیکن الله په سمه لاره راولی هغه چا له چه اُوغواړی او هغه څه چه خرچ کوئ تاسو

مِنْ خَيْرٍ فَلِأَنْفُسِكُمْ وَمَا تُنْفِقُوْنَ إِلَّا ابْتِغَآءَ وَجْهِ اللّٰهِ

د څه مال نه نو دا ستاسو د خپلو ځانونو ګټه ده۔ او تاسو خرچ نۀ کوئ مګر دپاره د لټولو د مخ د الله تعالیٰ

وَمَا تُنْفِقُوْا مِنْ خَيْرٍ يُوَفَّ إِلَيْكُمْ وَأَنْتُمْ لَا تُظْلَمُوْنَ ﴿۲۷۲﴾

او هغه چه تاسو خرچ کوئ د مال نه، پوره به درکولے شی تاسو ته (اجر د هغے) او په تاسو باندے به ظلم نۀ شی کیدے۔

**تفسیر**: پدے آیت کښې دا بیانوی چه نفلی صدقه په مشرکانو هم جائز ده۔

**شان نزول**: ابو عبیدؒ په کتاب الاموال (رقم ۱۹۹۱) کښې په صحیح سند سره د ابن عباسؓ نه نقل کړی [كَانَ نَاسٌ لَهُمْ أَنْسِبَاءُ وَقَرَابَةٌ مِنْ قُرَيْظَةَ وَالنَّضِيْرِ وَكَانُوْا يَتَّقُوْنَ أَنْ يَتَصَدَّقُوْا عَلَيْهِمْ وَيُرِيْدُوْنَهُمْ عَلَى الْإِسْلَامِ فَنَزَلَتْ: لَيْسَ عَلَيْكَ الخ ] (تمام المنة ص۳۸۸)۔

(د څۀ مسلمانانو د بنی قریظه او بنی النضیر (یهودیانو) سره نسبونه او خپلولیانے وے، نو هغوی به په دوی باندے د صدقے کولو نه ځان ساتلو، دے دپاره چه دوی اسلام ته راشی نو دا آیت نازل شو)۔

چه مطلب ئے دا دے چه چه نفلی صدقے ورکولے شئ، خیر دے. هدایت د الله په لاس کښې دے چه چا ته ئے کوی، هغۀ ته به ئے کوی، خو تۀ صدقه کوه۔ د اسلام اخلاق د هر چا نه اُوچت دی، کیدے شی چه الله ورته ستا په صدقه هدایت اُوکړی، ستا د اخلاقو نه متأثر شی۔

زکوٰة کافر، بدعتی، او مشرك له نشے ورکولے او صدقه کافر له ورکولے شئ، او مبتدع له نۀ شے ورکولے۔ ځکه چه د مبتدع سره بائیکاټ لازم دے، ددۀ فساد پټ دے۔ او د کافر کفر ښکاره دے نو هغه د دین دومره فساد نشی کولے۔ ددے دا معنیٰ نۀ ده چه بدعتی د کافر نه هم غټ مجرم دے، بلکه وجه دا ده چه دا مسلمان دے، او دین ورانوی او کافر خو دین نشی ورانولے هر چا ته معلوم دے۔ او ددے نور وجوهات احادیثو کښې راغلی دی۔

﴿لَيْسَ عَلَيْكَ﴾ (عَلَيْكَ) اول خطاب نبی ﷺ ته دے، بیا هر مخاطب ته دے۔ او عَلیٰ د معنوی استعلاء دپاره استعمال دے، یعنی طلب د فعل په طریقه د وجوب۔ نو معنیٰ دا ده چه په تا باندے د دوی هدایت ته راوستل واجب نۀ دی۔

﴿هُدَاهُمْ﴾ د هدایت دوه معنے دی (۱) بیان د حق۔ نو نبی ﷺ دا کولے شی۔

(۲) دویم هدایت په معنیٰ د توفیق ورکولو او حق ته رسولو او قبلولو دے، نو دا د پیغمبر ﷺ په واك کښې هم نشته۔

(هُمْ) ضمیر کافرانو ته راجع دے۔ او دلته د کافرانو نه مراد هغه کافران دی چه اهل ذمه وی، یا

مشرکان وی خو بے ضرره وی، او هر چه حربی کافر دی، نو هغوی ته هر قسم تحفے او صدقے ورکول حرام دی، کله چه دینی فائده پکښې نهٔ وی۔

﴿وَمَا تُنفِقُوا مِنْ خَيْرٍ فَلِأَنفُسِكُمْ﴾ پدے جمله کښې انفاق کولو ته او په هغے کښې د اخلاص پیدا کولو ته ترغیب ورکوی۔ (خیر) حلال مال ته هم وائی او هر فائده مند شے۔ چه زمکه، جائیداد، کور، څادر، کینټه ورکولو ته هم شامل دے۔

﴿وَمَا تُنفِقُونَ إِلَّا ابْتِغَاءَ وَجْهِ اللَّهِ﴾ دا نفی ده یعنی د مسلمان شان دا نهٔ دے چه دا ډیے مال د الله د رضا نه غیر د بل دپاره اُولګوی، بلکه هغه به ئے ضرور د الله د مخ دپاره لګوی۔ او مسلمان ته ترغیب دے چه تهٔ په صدقه کښې نظر فقیر طرف ته مهٔ کوه بلکه ستا تعلق ډیے د الله تعالیٰ سره وی۔

او پدے کښې مال خرچ کونکی ته تسلی ورکوی چه که تهٔ د خلقو د دعوت دپاره مال اُولګوے او هغوی د ګمراهی نه منع نشی، نو خپل خرچ مهٔ بندوه بلکه الله به بیا هم تا ته اجر درکوی، ستا معامله د الله سره ده، او هدایت او حق ته راوستل د الله په اختیار کښې دی۔ او پدے کښې ډیر صورتونه راتلے شی۔

څوك وائی دا نفی په معنیٰ د نهی ده یعنی تاسو مال مهٔ لګوئ مګر د الله د مخ دپاره۔

﴿وَمَا تُنفِقُوا مِنْ خَيْرٍ يُوَفَّ إِلَيْكُمْ﴾ کله په انفاق سره هدایت حاصل نشی او د چا د ترغیب دپاره چه مال خرچ کړے شوے وی، نو هغه حق ته رانشی۔ یا تهٔ چا ته مال ورکړے او هغه ئے بے ځائے استعمال کړی، یا چنده ورکړے هغه ئے اُوخوری، نو الله فرمائی په هر صورت کښې ستا اجر په الله تعالیٰ واوریدو۔ او د هغے بدله به پوره پوره درکوی۔

(يُوَفَّ) : د وفاء نه دے یعنی پوره به درکولے شی۔ او ددے دا مطلب نهٔ دے چه زیات به نشی درکولے، یعنی څومره وعده چه تا سره شویده هغه به درکولے شی او د زیات اخلاص په صورت کښې به زیات اجر هم درکولے شی۔ او دا مطلب هم دے چه ستا د صدقے په اندازه به تا ته اجر درکولے شی، او که کوم نقصان پکښې راځی نو هغه به ستا دے اخلاصئ یا مَنّ او اذی په وجه سره وی۔

او روستو جمله ورسره د تاکید دپاره ذکر کوی چه د اجر د کمی ګمان مهٔ کوه۔

﴿وَأَنتُمْ لَا تُظْلَمُونَ﴾ ظلم په معنیٰ د نقص او کموالی سره دے۔ او دا د اضدادو نه دے زیادت ته هم وائی۔

په آیت کښې (تُنفِقُوا) او (تُنفِقُونَ) بار بار مکرر شو دپاره د زیات اهمیت او شرافت د انفاق۔ او دپاره د زیات ترغیب هغے ته۔

| |
|---|
| لِلۡفُقَرَآءِ الَّذِيۡنَ اُحۡصِرُوۡا فِىۡ سَبِيۡلِ اللّٰهِ لَا يَسۡتَطِيۡعُوۡنَ ضَرۡبًا |
| (صدقات) دپاره د فقیرانو دی هغه کسان چه بند کړے شوی دی په لاره د الله کښې طاقت نۀ لری د سفر کولو |
| فِى الۡاَرۡضِ يَحۡسَبُهُمُ الۡجَاهِلُ اَغۡنِيَآءَ مِنَ التَّعَفُّفِ |
| په زمکه کښې ګمان کوی په دوی باندے ناخبره انسان د مالدارانو د وجه د ځان پاك ساتلو نه (د سوال او حرامو نه) |
| تَعۡرِفُهُمۡ بِسِيۡمٰهُمۡ لَا يَسۡـئَلُوۡنَ النَّاسَ اِلۡحَافًا |
| تۀ به پیژنے دوی لره په نخو نخانو سوال نۀ کوی د خلقو نه په انختلو سره (په سخت سوال سره) |
| وَمَا تُنۡفِقُوۡا مِنۡ خَيۡرٍ فَاِنَّ اللّٰهَ بِهٖ عَلِيۡمٌ ﴿۲۷۳﴾ |
| او هغه چه تاسو خرچ کوئ څه غوره شے یقیناً الله په هغے باندے پوهه دے۔ |

**تفسیر**: اُوس د انفاق مصرف بیانوی چه چا له به ئے ورکوئ، نو فرمائی چه هغه فقراؤ له چه شپږ صفتونه لری، بهتره ده چه هغوی له ورکړے شی، بل چا له ئے هم ورکولے شئ خو دوی له افضله ده۔ دا آیت د اصحاب الصفه ؤ او د طالبانو په باره کښې نازل دے۔ او دا صفات اُوس د طلاب العلم دی، بل چا کښې غالباً نشته۔

﴿ لِلۡفُقَرَآءِ ﴾ دا د مخکښې (تُنۡفِقُوۡنَ) پورے متعلق دے۔ یا مبتداء پټه ده (اَلصَّدَقَاتُ لِلۡفُقَرَآءِ) یا اِنۡفَاقُكُمۡ لِلۡفُقَرَآءِ) یعنی ستاسو صدقے او انفاق د فقیرانو دپاره دی۔ فقراء جمع د فقیر ده چه څه نۀ مونده کوی او په خپلو شاګانو باندے کارکوی۔

ددے آیت مصداق په هغه زمانه کښې اصحاب الصفه وو (لکه دا د ابن عباسؓ نه نقل دی) چه دوی څلور سوه کسان وو چه کمیدل او زیاتیدل به۔ نبی ﷺ ته ئے هجرت کړے وو او په مسجد نبوی کښې به اُوسیدل، او خپلو علاقو کښې ترے کورونه او مالونه پاتے شوی وو۔

دوی د دین طالبان هم وو، علم به ئے زده کولو، او نبی ﷺ به ترے ډیر خدمات اخستل، جهادونو ته به ئے لیږل، د فوج کار به ئے هم کولو۔ نو که دوی کاروبار کښې مشغول شوی وے، نو بیا ئے دا کارونه نشو کولے، نو دوی به سره د قوت نه تجارت او کاروبار نۀ کولو مګر کله نا کله به ئے لرګی د غر نه راوړل او خرڅول به ئے۔ لیکن دین ته پراته وو۔ په ماښام کښې به رسول الله ﷺ ملګروته حکم اُوکړو چه دوی ځان سره بوځی او څۀ کسان به د رسول الله ﷺ سره پاتے شو۔ بیا روستو الله فراخی راوسته۔ (ابن عاشورؒ وغیره)۔

او پدې زمانه کښې ددې مصداق د عِلم طالبان دي چه په مدرسو کښې ئې خپل ځانونه د الله د دین د زده کولو دپاره بند کړی دي، او په خپل ځان ئې سختنه برداشت کړیده. نو داسې خلق د زکاة، د صدقو او د انفاق مستحقین دي. ځکه چه دوی د سوال نه ځان ساتي.

عبد الله بن المبارك رحمه الله به صدقه صرف طالبانو ته ورکوله، چا ورته اُووئیل : بل چا ته ئې هم ولې نه ورکوې؟ هغه اُووئیل چه د نبوت د مرتبې نه روستو ماته د علماؤ نه غوره مرتبه بله نۀ ده معلومه. کله چه د یو تن زړۀ په خپل حاجت مشغول وي، نو عِلم ته به فارغه نۀ وي او تعلم (زده کړې) ته به ئې توجه نۀ وي، نو د دوی عِلم ته فارغه کول ډیر افضل عبادت دې. (قاسمی ٦١٦/٣).

حافظ ابن کثیرؒ ددې نه مراد هغه تمام مهاجرین اخستي دي چه مدینې منورې ته راغلل او دیره شول او د تجارت د مال د حاصلولو اسباب او ذرائع د هغوی نه منقطع شوی وو.

﴿ اَلَّذِیْنَ اُحْصِرُوْا فِیْ سَبِیْلِ اللّٰهِ ﴾ (اُحْصِرُوْا) یعنی بند کړې شویدي.

(۱) د فی سبیل الله نه مراد یا جهاد دې. (۲) یا مراد د الله طاعت دې یعنی د دعوت او جهاد او د علم د زده کړې او د الله د بندګئ د خاطره ئې ځانونه بند کړیدي. او پدې کښې هغه خلق هم داخل دي چه هغوی د الله د لارې (جهاد) د وجه نه زخمیان شوی وي او د کاروبار طاقت نۀ لري. نو دا ئې دویم صفت شو.

﴿ لَا یَسْتَطِیْعُوْنَ ضَرْبًا فِی الْاَرْضِ ﴾ ضرب فی الارض د سفر کولو نه کنایه ده، ځکه چه غالباً د کاروبار دپاره خلق سفر کوی، او زمکه په خپلو خپو سره وهي. دا دریم صفت دې چه دوی کاروبار او سفرونه نشي کولې، نو فقیران دي نو ځکه مستحق د انفاق دي.

او دوی ځکه طاقت د کاروبار نۀ لري چه په دین باندې مشغول دي. بیا ترې د دین کار پاتې کیږي. ځکه چه د نبی ﷺ هر حرکت دین وو، نو که د هغه سره څوك نۀ وي، نو دین به بیانیږي او آوریدونکی به ئې نۀ وي، په کور کښې به بیبیانو زده کولو او په مسجد کښې به اصحاب الصفه ؓ زده کولو، نو د هر عالِم سره د علم طالبان کیدل پکار دي دې دپاره چه دین ضائع نشي.

﴿ یَحْسَبُهُمُ الْجَاهِلُ اَغْنِیَآءَ ﴾ د جاهل نه مراد ناخبره او بې تجربې انسان دې. یعنی بې تجربې انسان په دوی ګمان کوی چه دا خو به مالداره وي ځکه چه روستو ئې وجه ذکر ده چه دوی ځان پاك پاك ساتي. او بعضو پکښې کینتهه هم اچولی وي او سپینه توپئ او بناسته جامې ئې هم اچولی وي، خلق وائي ګنې دا ډیر مالدار دې. او حال دا چه په جیب کښې ئې یوه روپئ هم نۀ وي. او پدې کښې یو قسم اشاره ده چه د طالبانو د حال نه ځان نۀ خبرول جهالت دې.

﴿ مِنَ التَّعَفُّفِ ﴾ مِنْ اجلیه دې. او تَعَفُّفُ د عِفت نه دې، معنیٰ ئې ده، پاکدامنی او ځان دې عزته

کارونو نه ساتل۔ دلته مراد دا دے چه دوی د بے ضرورته سوالونو او د حرامو خوراکونو او خپل حاجت بنکاره کولو نه ځانونه ساتی۔ ځکه چه سوال دریے قسمه دے (۱) په ژبه (۲) په حال جوړولو سره۔ چه ځان مسکین جوړ کړی او د چا خواله ورشی ورته وائی ستا ملاقات ته راغلے یم۔ او مینځ کښې سوال کوی۔

(۳) په مزل او چال چلن سره چه داسے مزل کوی چه خلق پرے گمان اُوکړی چه دا مسکین دے۔

﴿ تَعْرِفُهُمْ بِسِيْمَاهُمْ ﴾ سِيْمَا نخے ته وائی دلته ترے مراد خشوع او عاجزی ده۔ دارنګه لوږه، د رنګونو زیړوالے۔ د جامو زوړ والے۔ د بدن کمزورتیا او حاجت نهٔ پوره کیدل۔ اَیْ بِسِیْمَا حَاجَتِهِمْ۔ په نخو د فقر او حاجت د دوی به ئے پیژنے۔

﴿ لَا يَسْأَلُوْنَ النَّاسَ إِلْحَافًا ﴾ ددے یو ه معنیٰ دا ده [لَيْسَ لَهُمْ سُؤَالٌ فَيَقَعُ فِيْهِ إِلْحَافٌ] (بغویؒ)

یعنی دوی هیڅ سوال نهٔ کوی چه په هغے کښې ترے مبالغه واقع شی۔ نو بالکل سوال نهٔ کوی او هرچه کله نا کله سوال کول دی چه انسان ډیر سخت مجبوره شی، نو هغه خو شریعت جائز کړیدے او په هغے کښې هم دوی مبالغه او سختی نهٔ کوی۔

او دا معنیٰ د ابن عباسؓ نه هم علامه سمرقندیؒ په بحر العلوم (۲۲۶/۱) کښې او علامه آلوسیؒ په روح المعانی کښې نقل کړیده۔ اَیْ لَا يَسْأَلُوْنَ النَّاسَ إِلْحَافًا وَّلَا غَيْرَ إِلْحَاحٍ)۔

نو دلته نفی د قید او مقید دواړو مراد ده۔ او ددے معنیٰ د تائید په حدیث کښې ذکر دے۔

شیخینو د ابو هریرهؓ نه نقل کړیدی چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل:

[لَيْسَ الْمِسْكِيْنُ الَّذِيْ تَرُدُّهُ التَّمْرَةُ وَالتَّمْرَتَانِ وَاللُّقْمَةُ وَاللُّقْمَتَانِ، إِنَّمَا الْمِسْكِيْنُ الَّذِيْ يَتَعَفَّفُ اِقْرَأُوْا إِنْ شِئْتُمْ: لَا يَسْأَلُوْنَ النَّاسَ إِلْحَافًا]

حقیقی مسکین هغه نهٔ دے چه یوه کجوره یا دوه، یوه لوڼړئ یا دوه نوړئ ئے واپس کوی بلکه اصلی مسکین هغه دے چه ځان د سوال نه ساتی)۔

او په یو بل روایت کښې دی: [وَلٰكِنَّ الْمِسْكِيْنَ الَّذِيْ لَا يَجِدُ غِنًى يُغْنِيْهِ وَلَا يُفْطَنُ لَهُ فَيُتَصَدَّقُ عَلَيْهِ وَلَا يَقُوْمُ فَيَسْأَلُ النَّاسَ]۔ لیکن مسکین هغه شخص دے چه دومره څه نهٔ مونده کوی چه دا یے حاجته کړی او نهٔ په دهٔ باندے څوك پو هیږی چه صدقه پرے اُوکړی او نهٔ پاڅیږی چه خلقو نه سوالونه شروع کړی)۔ (المنار ۷۵/۳)۔

○ بعض وائی: معنیٰ داده چه ډیر سوالونه نهٔ کوی بلکه لږ لږ سوال کوی۔ دا معنیٰ غوره نهٔ ده ځکه چه منځکښې ئے مِنَ التَّعَفُّفِ اُوویل۔ چه د سوالونو نه ځان ساتل د دوی لازمی صفت دے۔ دارنګه خلق چه پرے د مالدارو گمان کوی نو پدے وجه چه سوال نهٔ کوی۔ (فتح القدیر للشوکانیؒ)۔

الحاف : د لِحاف نه دے او لِحاف بسترے ته وائي، نو الحاف هغه سوال ته وائي چه انسان د مالداره پسے داسے اُونخلي او داسے ترے راتاو شي لکه څنګه چه بستره ترے راتاویږي. یعني په سوال کښې مبالغه او زورکول او سختي سره سوال کول.

او د اِلحاف تفسیر د عطاءؒ نه داسے نقل دے چه چا سره د غرمے خوراك طاقت وي، نو د بیګائي خوراك دپاره به سوال نۀ کوي. (اللباب).

او حدیث کښې دي : نبي ﷺ فرمائي :[مَنْ سَأَلَ مِنْكُمْ وَلَهُ أُوقِيَّةٌ أَوْ عِدْلُهَا فَقَدْ سَأَلَ إِلْحَافًا] [صحیح ابی داود للالباني ١/٣٠٥رقم:١٤٣٣] . چا چه ستاسو نه سوال اُوکړو او د هغه سره یو اُوقیه یعني څلویښت درهمه وي، یا ددے برابر نور مال وي، نو دهٔ په طریقه د الحاف سره سوال اُوکړو. یعني دومره مال چه ورسره وي، دا به سوال نۀ کوي او که وے کړو نو دا کار ورله مکروه دے.

**فائده**: پدے آیتِ کریمه کښې د مؤمنانو مهاجرینو دا صفت بیان شوے چه دوي د ضرورت او حاجت سره سره خلقو نه په مبالغے سره سوالونه نۀ کوي.

اسلام د سخت ضرورت په وخت سوال کول جائز کړیدي او بغیر د ضرورت نه د سوال کولو نے لویه بدي بیان کړیده.

بخاري او مسلم د ابن عمر رضي الله عنهما نه روایت کړے چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل :

«یو سړے به همیشه سوالونه کوي تردے چه کله د قیامت په ورځ راشي نود هغه په مخ باندے به د غوښے یوه ټکړه هم نۀ وي».

دغه شان نور حدیثونه هم شته چه په هغے کښې د خلقو نه د سوال کولو لویه بدي راغلے ده.

امام مسلم د ابو هریره ﷺ نه روایت کړے چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل چه «څوك د خپل مال د زیاتولو دپاره د خلقو نه سوالونه کوي هغه ګویا کښې د جهنم اُور غواړي».

## د محمد بن نصر او ابن جریر د قناعت عجیبه واقعه

خطیب بغداديؒ د دوي د قناعت او صبر عجیبه واقعه په خپل سند سره د ابوالعباس بکريؒ نه نقل کړیده، هغه فرمائي : عِلمي سفر یو ځل محمد بن جریر، محمد بن خُزیمه، محمد بن نصر مروزيؒ او محمد بن هارون رویاني (رحم الله الجمیع) په مصر کښې راجمع کړل او تنګدسته شو، او لوږے پریشانه کړل او د خوراك هیڅ نۀ وو، په کوم کور کښې چه دوي اُوسیدل، نو دے څلورو وارو د شپے مشوره اُوکړه، او ټول پدے خبره متفق شو چه قُرعه اندازي به اُوکړو چه د چا نوم را اُووتو نو هغه به د ملګرو دپاره د چا نه خوراك غواړي (ځکه د لوږے ختمولو دپاره سوال جائز دے) نو قُرعه په محمد بن خزیمهؒ را اُووتله، هغه اُووئیل :

[اَمۡهِلُوۡنِیۡ حَتّٰی اُصَلِّیَ]۔ ما ته دومره مهلت راکړئ چه زهٔ مونځ اُوکړم)۔
نو ابن خزیمة د هغوی نه جدا شو او په مانځه کښې مشغول شو۔
راوی وائی : دوی لا په دغه حال کښې وو چه د مصر د والی (گورنر) یو قاصد راورسیدو او دروازه ئے اُووهله۔ نو باقی ملگرو هغه ته دروازه کولاوه کړه، او قاصد د سورلئ نه راکوز شو، او تپوس ئے اُوکړو چه تاسو کښې محمد بن نصرؔ کوم یو دے؟ دوی اُووئیل : هغه دا دے، نو هغه یوه بټوه را اُوویستله چه په هغے کښې پنځوس دیناره وو او هغه ته ئے ورکړه۔
بیا ئے اُووئیل : په تاسو کښې محمد بن جریرؔ څوك دے؟ اُووئیل شو، دا دے۔ هغه ته ئے هم د پنځوس دینارو بټوه ورکړه، بیا ئے اُووئیل : تاسو کښې محمد بن اسحاق بن خزیمة څوك دے؟ هغه ته ئے هم دغه شان ورکړه۔ بیا ئے د محمد بن هارون رویانی تپوس اُوکړو او هغه ته ئے هم د پنځوس دینارو بټوه ورکړه۔ او دا ئے ورته اُووئیل: چه امیر صاحب پرون قیلوله (د غرمے خوب) کولو چه په خوب کښې هغه ته اُووئیل شو چه د محمد نوم والا کسان د لوږے د وجه نه خپلے کولمے تاؤ کړیدی۔ نو ددے وجه نه هغه تاسو ته دا بټوے رالیږلے او تاسو له دا قسم درکوی چه کله دا ختمے شی نو هغه ته به ضرور خبر ورکوئ چه نورے رالولیږی۔
[تذکرة الحفاظ [۷۵۳/۲] وتاریخ بغداد [۱٦٥/۲]۔
بیا هغوی د دغه علاقے نه په جلتئ لاړل ځکه چه خلقو په یره مشهور کړل۔ (د مختصر قیام اللیل لابن نصر مقدمه)۔
مسلمانانو او خصوصاً د دین طالبانو له داسے حالت اختیارول پکار دی۔
﴿وَمَا تُنۡفِقُوۡا مِنۡ خَیۡرٍ﴾ پدے کښې بیا انفاق ته ترغیب ورکوی چه تاسو کوم مال لگوئ نو الله ته هغه معلوم دے هغه به ئے نهٔ ضائع کوی۔
**فائده** : عربو کښې د صدقے او انفاق ماده زیاته وه، میلمه دوست، مال لگونکی وو، لیکن د هغے د شرطونو او آدابو لحاظ پکښې نهٔ وو، د فخر، تکبر او مباهات دپاره به ئے مالونه لگول، مَنّ او اَذیٰ به ئے کوله، په شرابو او گندونو کښې به ئے لگول، نو شریعت د هغوی اصلاح اُوکړه او اوقات او آداب ئے ورله بیان کړل، دے دپاره چه د دوی انفاق په صحیح ځائے کښې واقع شی۔ پدے وجه الله تعالیٰ پدے مقام کښې د انفاق متعلق ډیر تفصیلی بحثونه اُوکړل۔

اَلَّذِیۡنَ یُنۡفِقُوۡنَ اَمۡوَالَهُمۡ بِالَّیۡلِ وَالنَّهَارِ سِرًّا وَّعَلَانِیَةً فَلَهُمۡ اَجۡرُهُمۡ

هغه کسان چه خرچ کوی مالونه خپل د شپے او د ورځے په پټه او ښکاره نو دوی دپاره اجر د دوی دے

عِندَ رَبِّهِمْ وَلَاخَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَاهُمْ يَحْزَنُونَ ﴿۲۷۴﴾

په نزد د رب د دوی او نهٔ به وی یره په دوی او نهٔ به دوی غمجن شی۔

**تفسیر:** پدے آیت کښې د انفاق د اوقاتو او احوالو تعمیم ذکر دے چه انفاق په هر حالت او هر وخت کښې کول جائز دی۔ څهٔ خاص وخت ورله مقرر نهٔ دے۔ نو د لیل او نهار، سر او علانیه نه مراد ټول اوقات او ټول حالات دی۔ نو یو وخت د صدقے دپاره خاص کول لکه د جُمعے شپه یا د مړی په اوله او دویمه او دریمه او څلویښتمه ورځ خیرات کول دا ټول بدعت کار دے۔

﴿الَّذِينَ يُنفِقُونَ أَمْوَالَهُم بِاللَّيْلِ﴾ دا آیت د علی ﷺ په باره کښې نازل شوے دے چه څلور روپۍ ورسره وے، یوه ئے د ورځے ورکړه، یوه د شپے او یوه ښکاره او یوه پټه۔

نو دے کښې څلور صورتونه جوړیږی۔ سراً د شپے او د ورځے دواړو سره لګی او دغه شان علانیة هم د دواړو سره لګی۔

په اهل وعیال باندے خرچه کول هم پدے کښې داخل دی۔

په صحیحینو کښې روایت شویدے چه رسول الله ﷺ سعد بن ابی وقاص ﷺ ته اُوفرمایل چه «د الله د رضا دپاره چه ته څهٔ خرچ کړے نو په هغے سره د الله په نیز ستا مرتبه او درجه اُوچتیږی تردے چه هغهٔ نوړئ چه ته ئے د خپلے بی بی په خوله کښې اچوے»۔

دارنګه مفسرین لیکی چه دا آیت د هغه کسانو په باره کښې دے چه د جهاد دپاره آسونه تیار ساتی، او هغه د شپے او د ورځے څریکی او کله پټ وی او کله ښکاره۔ او بیا په حدیث د بخاری کښې دی چه ددے آسونو په ګیاه او اُوبو سره مړیدل او د هغے خاشنهٔ او متیازے به د قیامت په ورځ ددهٔ د نیکیانو په تلهٔ کښې اچول کیږی۔ (ابن جریر، قرطبی)۔

﴿وَالنَّهَارِ سِرًّا وَعَلَانِيَةً﴾

شپه ئے په ورځ او پټه ئے په علانیه مخکښې کړه پدے کښې اشاره ده چه صدقه پټه په تیارهٔ کښې ورکول غوره دی۔

﴿فَلَهُمْ أَجْرُهُمْ﴾ فاء ئے راوړه ځکه چه مخکښې انفاق علت دے دپاره د اجر د الله په نیز۔ او عِندَ رَبِّهِمْ ئے ذکر کړو دپاره د تعظیم د شان د اجر۔

الَّذِينَ يَأْكُلُونَ الرِّبَا لَا يَقُومُونَ إِلَّا كَمَا يَقُومُ الَّذِي يَتَخَبَّطُهُ

هغه کسان چه خوری سود لره، دوی به نهٔ پاځیږی (د قبرونو نه) مګر لکه چه پاځیږی هغه کس چه ګډوډ کړے وی هغه لره

| الشَّيْطَانُ مِنَ الْمَسِّ ذٰلِكَ بِأَنَّهُمْ قَالُوْا إِنَّمَا الْبَيْعُ |
| --- |
| شیطان د وجه د لیونتوب نه (یا د انخنلو نه) دا حالت بدے وجه سره (شو) چه یقیناً دوی وئیل چه یقیناً بیع (سوداګری) |
| مِثْلُ الرِّبٰوا وَأَحَلَّ اللّٰهُ الْبَيْعَ وَحَرَّمَ الرِّبٰوا |
| په شان د سود ده او حلاله کړے ده الله تعالیٰ بیعے (سوداګری) لره او حرام کړے ئے دے سود لره |
| فَمَنْ جَاءَهٗ مَوْعِظَةٌ مِّنْ رَّبِّهٖ فَانْتَهٰى فَلَهٗ |
| پس هغه څوک چه راغے هغه ته نصیحت د طرفه د رب د هغهٔ نه نو منع شو نو وی به دهٔ دپاره |
| مَا سَلَفَ وَأَمْرُهٗۤ إِلَى اللّٰهِ |
| هغه څه چه مخکښ ئے کړی وی (یائے وړکړی وی) او کار ددهٔ سپارلے شوے دے الله ته |
| وَمَنْ عَادَ فَأُولٰٓئِكَ أَصْحٰبُ النَّارِ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿٢٧٥﴾ |
| او څوک چه راوګرځیدو (سود ته) نو دا کسان اُور والا دی دوی به په دے کښ همیشه وی۔ |

**تفسیر**: اُوسه پورے د انفاق مسئله وه چه دیته احسان وائی، اُوس د ظالمانو حال چه هغوی ته سود خوارهٔ وائی نو مخکښ د احسان بیان وو او دلته د ظلم رد۔ او روستو یَا أَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْا کښ عدل ذکر دے۔

انفاق کونکی احسان والا دی او سود خوارهٔ ظالمان دی او بیع اوشراء والا عادلان دی۔

**ربط**: ١- مخکښ آیت کښ انفاق فی سبیل الله ته ترغیبات ذکر شو، اُوس د حرام مال د ګټلو نه منع ذکر کوی۔ په طریقه د سود۔ ځکه چه د خبیث مال نه انفاق هیڅ فائده نهٔ ورکوی۔

٢- انفاق سبب د برکت دے۔ مال ورسره زیاتیږی او سود سبب دے برکتئ دے، پدے سره مال کمیږی۔

﴿ اَلَّذِيْنَ يَأْكُلُوْنَ ﴾ اکل اصل کښ خوراك ته وئیلے شی، بیا د یو شی نه د فائدے اخستو دپاره، او یو شے په طریقه د حرص سره حاصلولو دپاره استعمالیږی۔ (ابن عاشور)

لیکن خوراك د دنیا دارو آهم مقصد دے ددے وجے نه ئے اکل ذکر کړو۔ او د سود بدیٔ ته اشاره ده چه د دوی کار صرف خپله خیټه ساتل دی او دا مقصد خو د ځناورو هم وی۔

﴿ الرِّبٰوا ﴾ ربا په لغت کښ زیاتوالی او اُوچتوالی او پرسیدو ته وائی لکه په سورة الحج (٥) آیت کښ دی: ﴿ وَرَبَتْ ﴾ ۔ (اُوپرسیږی)۔ او سورة الروم (٣٩) کښ دی: ﴿ لِيَرْبُوَا فِيْٓ أَمْوَالِ النَّاسِ ﴾ ۔

یعنی زیات شی۔ ربا په الف سره لیکل هم جائز دي او په واو سره چه روستو ترې الف وي هم لیکل جائز دي۔ ځکه چه اصل کښې دا الف د واو نه بدل دې۔

**فائده :** د احادیثو په اعتبار سره د سود دوه قسمونه دي :

(۱) اول قسم : ((رِبَا الْفَضْل)) یعنی زیادت والا سود۔ یعنی یو شے د بل شي په مقابله کښې زیات ورکولو سره اخستل خرڅول کول۔ دا قسم سود په عالَم کښې ډیر کم موندے شي۔ لکه مثلاً یو دړئ غنم ورکړے او دوه پرے اخلي ځکه چه یو غنم مزیدار وي او بل کمزوری وي۔ نو شریعت دا حرام کړے ځکه چه جیند اوردي په ربوي مالونو کښې یو شان دي۔

او غوره قول دا دے چه دا قسم سود صرف په هغه شپږو څیزونو کښې ناجائز دے کوم چه په احادیثو کښې ذکر شویدي۔

د عباده بن صامت ﷛ مرفوع حدیث دے او امام احمدؒ او مسلمؒ روایت کړے چه (( سره زر په سرو او چاندي په چاندي، غنم په غنمو، وریشے په وریشو، کجورے په کجورو او مالگه په مالگه برابر او نقد خرڅول جائز دي))۔ یعنی د یو په زیادت سره خرڅول جائز نهٔ دي۔ ددے شپږو څیزونو نه سوئ په نورو څیزونو کښې سود نهٔ جاري کیږي نو په هغې کښې زیات اخستل او ورکول جائز دي۔ لکه چونه، چیني، دال، ګړځے، کتابونه وغیره پدے کښې سود نهٔ جاري کیږي۔

او فقهاؤ چه ددے قاعده کلیه دا بیان کړیده چه هر هغه دوه څیزونه چه په هغې کښې (ناپ او وزن او خوراك) درے وارو صفاتو نه دوه موجود شي نو د هغې خپل مینځ کښې اخستل خرڅول په یو کښې زیادت کولو سره جائز نهٔ دي۔ په کومو څیزونو کښې چه دا درے صفات موجود نهٔ شي یا د دواړو جنس مختلف وي، نو بیا د هر یو زیادت سود نهٔ دے۔ او که د دواړو جنس یو وي لیکن د درے واړو صفاتو نه صرف یو صفت اُوموندے شي نو یو قول دا دے چه د هر یو زیادت سود نهٔ دے۔ بل قول دا دے چه پدے صورت کښې به هم زیادت سود وي۔ نو دا قاعده د فقهاءِ کرامو قیاسي او اجتهادي ده، او نبي ﷺ په احادیثو کښې سود صرف په شپږو څیزونو کښې بیان کړے، لهذا ددے نه علاوه څیزونو کښې سود نهٔ جاري کیږي ځکه که سود په علاوه څیزونو کښې جاري کیدلے، نو نبي ﷺ به ددے بیان کړے وے۔ (وَمَا كَانَ رَبُّكَ نَسِيًّا) نبي ﷺ د دین تشریع امامانو ته نهٔ ده سپارلے۔

او دا په امت باندے په زوره خبره ګرانول دي او اصل په بیوعو کښې حلال والے دے۔ او دا قول د محققینو علماؤ دے۔

بیا دلته دا نکته واوره! چه پدے شپږو څیزونو کښې قرض ورکول جائز دي لکه یو دړئ غنم

قرض ورکړي او میاشت پس ترې یو درېځ غنم اخلي. څکه منع صرف د خرڅولو نه راغلې ده:
[لَا تَبِيعُوا اللَّحْمَ بِاللَّحْمِ] (بخاري ومسلم)
(سرۀ په سرو مۀ خرڅوئ مګر هله چه برابر په برابر وي او لاس په لاس وي).
نو کوم خلق چه پدې شپږو څیزونو کښې قرض جائز نۀ ګنړي، خبره ئې بې تحقیقه ده.
(۲) دویم قسم: «رِبَا النَّسِيئَة» ده یعنې د قرض والا زیادت. او ددې یو صورت د جاهلیت په زمانه کښې دا وو چه کله به د قرض موده پوره کیده نو قرض والا به قرضدار ته اُووئیل چه قرض ادا کوې، او که سود راکوې؟ که قرض به ئې ادا نکړو نو قرض ورکونکي به د مال مقدار زیاتولو او د قرض موده به ئې هم زیاتوله. د سود دا شکل بالاتفاق حرام دے.
پدې زمانه کښې ئې ډیر صورتونه دي، بینکونو سره معامله کول چه د هغوی سره نقدې پیسې کیږدي او هغوی ورله میاشت یا کال پس اضافي رقم ورکوي، یا د بینک نه قرض رقم راواخلي او هغوی پرې د پیسو په حساب هره میاشت کښې یا کال کښې رقم زیاتوي، او سود ترې نه اخلي. دارنګه پدې کښې بیع التقسیط (د کشتونو والا بیعه) هم داخله ده چه په نقدو یو قیمت وي او په قرضو بل قیمت وي، د وخت د زیاتوالي په بدله کښې پرې قیمت زیاتوي. دا کارونه په ګاړو او مختلف څیزونو کښې نن صبا رائج دي، داټول سود دے.
بیا هره بیعه (سَودا) چه د هغې نه په شریعت کښې منع راغلې وي نو هغه به د سود قِسم وي چه ددې په احادیثو کښې ډیر قسمونه دي. بیع المُزَابَنَه، مُحَاقَلَه، مُلَامَسَه، مُنَابَذَه، بیع العُرْبُون، بیع الغَرَر. بیع مَا لَيْسَ عِنْدَكَ، بَيْعُ التَّقْسِيط، بیع قبل الانتقال، د میوې د پیخیدو نه مخکښې خرڅول وغیره.
رسول الله ﷺ د بیع اوشراء (تجارت) بعض قسمونه صرف پدې وجه ناجائز ګرځولي چه د سود پټې دروازې بندې کړې شي څکه چه سود د اسلام په نظر کښې ډیره عظیمه ګناه او بد ترین اجتماعي جرم دے. مسلمانانو له پکار دي چه د سود او د بیع او شراء (تجارت) هغه تمام صورتونو نه بچ شي چه په هغې کښې د سود شبهه موندې کیږي.
نبي ﷺ اول سود د خپل ترۀ عباس بن عبد المطلب رضی الله عنه معاف کړے وو. د مکې د فتح کیدو په ورځ. څکه چه هغه به خلقو سره دا قسم سودي معامله کوله. سود اسلام څکه ناروا کړو چه پدې کښې ظلم دے او د خلقو د مجبورتیا نه غلطه فائده اخستل دي. حال دا چه شریعت په احسان امر کړے.
صاحب د لباب (ابن عادل دمشقيؒ) د حرمت پنځه وجې ذکر کړېدي:

(۱) د انسان مال اخستل دی په غیر د عوض نه۔ او حال دا چه د مسلمان د مال ډیر احترام دے۔(۲) سود انسانان د کسبونو کولو نه منع کوی ځکه چه خلق به تجارت، صناعت نهٔ کوی۔د زرو روپو په سر به دوه زره میاشت پس ملاوېږی، نو د مخلوق ډیر منافع او مصالح او کاروبارونه به منقطع شی۔

(۳) سود سره د قرض احسان کول ختمیږی ځکه کله چه سود حرام شی نو خلق به په خوشحالئ سره قرض ورکوی۔ او کله چه سود وی، نو بیا به قرض د مطلب دپاره ورکوی، د هغے په بدله کښې به مال اخلی۔ نو پدے کښې همدردی، خمخورګی او احسان کول ختمیږی۔

(٤) اکثر قرض ورکونکے مالدار وی او قرض اخستونکے غریب وی، نو که سود جائز شی مطلب به دا شی چه مالدار ته نوره موقعه ورکړے شی چه د غریب نه نور مال هم واخلی او ختٓ ورله مات کړی، نو دا په غریب باندے د رحم کولو نه خلاف دے۔

(۵) سود جائز کیدل د عقل مطابق هیڅ معنیٰ نهٔ لری۔ (اللباب)۔

## د سود بدی

د سود د بدئ او د هغے د دینی او دنیاوی مفاسدو او ضررونو په باره کښې ډیر احادیث راغلی دی۔ حاکمؒ او بیهقیؒ د عبد الله بن مسعود ﷺ نه روایت کړے چه نبی کریم ﷺ اُوفرمایل چه ((د سود درے اویا (۷۳) دروازے دی، د هغے د ټولو نه آسانه ګناه دا ده لکه یو سړے چه د خپلے مور سره زنا اُوکړی))۔

په روایت د صحیح مسلم کښې دی :

[لَعَنَ اللهُ آكِلَ الرِّبَا وَمُوْكِلَهُ وَكَاتِبَهُ وَشَاهِدَيْهِ وَقَالَ هُمْ سَوَاءٌ]۔

(الله لعنت کړے په خوړونکی د سود او په خوړونکی، او لیکونکی، او ګواهانو چه دا ټول (د سود په ګناه کښې) یو شان برابر دی)۔

لهذا بینکونو کښې هر قسم نوکری سود خوری ده۔ او په جامه کښې چه یوه روپئ د حرامو وی، عبادات او دعاګانے ئے نهٔ قبلیږی۔ د کافر دعا قبلیږی لیکن د حرام خور نهٔ قبلیږی۔

رسول الله ﷺ د معراج په شپه یو سړے په یو نهر کښې اُولیدو چه کله به غاړے ته راوتو نو په خُله به په یو کمر ویشتلے کیدو، اُووئیل شو چه دا سود خوړونکے دے۔

(صحیح بخاری وغیره)۔

﴿لَا يَقُوْمُوْنَ اِلَّا كَمَا يَقُوْمُ الَّذِي﴾ دلته د قیام (پاڅیدو) نه مراد د قبرونو نه د قیامت په ورځ پاڅیدل دی، یعنی دوی چه د قبرونو نه راپورته کیږی نو داسے ګډوډ حال به ئے وی لکه څنګه چه

یو لیونی او پیرانی انسان کښې پیرے ننوتے وی او هغه ئے ګډوډ غورزوی راغورزوی۔ دا تفسیر د اکثرو مفسرینو دے۔

دویم مطلب دا هم کیدے شی چه : [لَا يَبْعَثُونَ فِي الدُّنْيَا إِلَّا كَالْمَجَانِيْنِ] ۔ یعنی په دنیا کښې به د لیونو په شان ژوند تیروی)، د مال په راټولو به حرص کونکی او پریشانه وی، زړونو کښې به ئے سکون نهٔ وی۔دوی به پو هیږی چه د خلقو مونږه بدی شو۔

﴿يَتَخَبَّطُهُ﴾ تَخَبُّطُ د خَبْطُ نه دے ګډ وډوالی ته وائی، دلته ترے مراد مِرګی او پرزول دی۔ اَیْ يَصْرَعُهُ الشَّيْطَانُ۔ چه شیطان ئے راوپرزوی۔

﴿الشَّيْطَانُ﴾ د شیطان نه مراد [اَلْجِنُّ الشَّرِيْرُ] شری پیرے دے۔

﴿مِنَ الْمَسِّ﴾ د مس اصل معنیٰ ده رسیدل۔ بیا استعمالیږی د جنون او لیونتوب دپاره۔ رَجُلٌ مَمْسُوْسٌ، لیونی ته وئیلے شی۔ نو دلته دا معنیٰ هم صحیح ده چه پیری مَسّه کړے وی یعنی ورپورے انختے وی۔

دا آیت دلیل دے چه پیران په انسان کښې داخلیدے شی، الله ورته قدرت ورکړے۔

او حدیث کښې دی چه شیطان په انسان کښې د وینے په رګونو کښې ګرځی راګرځی۔

(بخاری ومسلم)۔

او دا خبره عقلًا او نقلًا ثابته ده۔ حدیث کښې دی :

((شیطان د انسان په تندونړی کښې شپه تیروی)) (بخاری ومسلم)۔

((شیطان د بنیادم په زړهٔ کونډے وهلی وی))۔ (بخاری وابن ابی شیبه)

نبی ﷺ د عثمان بن ابی العاصؓ نه پیرے د سپی په شکل ویستلے وو۔ (کما فی المستدرک)۔

او همدا ظاهر د قرآن دے، او کومو معتزله ؤ چه وئیلی دی چه پیران په بدن د انسان کښې ننشی داخلیدے، نو هغوی وئیلی دی چه دا ئے د عربو په ګمان وئیلی دی چه هغوی به دا وئیل چه د انسان په بدن کښې پیران ننوزی۔ او دلته ئے نسبت شیطان ته اُوکړو ځکه چه هغه پدے خوشحالیږی۔ ورنه دا ګډوډوالے په سبب د مِرګو دے او چه کله سوداء ماده په بدن کښې غالبه شی، نو په انسان بانده مِرګی بیماری راځی، ګډوډ غورزیږی راغورزیږی۔ اول قول صحیح دے۔ (النکت والعیون د ماوردی ۱/ ۳۰۲)۔

قرطبیؒ وئیلی دی چه دا آیت د هغه چه په رد کښې دلیل دے چه د انسان په بدن کښې د پیریانو د راتللو نه انکار کوی۔

لیکن اکثر خلق د پیرانو دعوے کوی، خاصکر زنانه طبقه کور کښې د خاوند یا سخر یا خواخے،

یا د خدمتونو نه تنګه شوی وی، نو په ځان پیران راولی۔ ددے د معلومولو طریقه دا ده چه کومه ژبه نهٔ ورځی، هغه دے اُووائی۔

﴿ ذٰلِكَ بِأَنَّهُمْ قَالُوٓا إِنَّمَا الْبَيْعُ مِثْلُ الرِّبٰوا ﴾ کله چه الله تعالیٰ سود حرام کړو، نو بعض عربو (د ثقیف قبیلے څهٔ کسانو) اُووئیل : چه دا بیع به هم ناروا وی ځکه چه بیع خو د سود په شان ده، نو چه سود حرام وی، بیع به هم حرامه وی۔

(نو دوی بیع مشبه اُوګرځوله او ربا (سود) ئے مشبه به اُوګرځولو) بیع ئے په سود قیاس کړه۔

نو دوی اعتراض اُوکړو چه الله څنګه سود حراموی او بیع نهٔ حراموی؟۔ حال دا چه بیع او سود یو شے دے۔ دا دلیل دے چه دوی سود حلال ګنړلو او حرام شے حلال ګنړل ښکاره کفر دے۔ ځکه ورته الله دومره سخت عذاب ورکوی۔

(ذٰلك) کښې اشاره ده اکل (خوراك) د رباته۔ یا اشاره ده په قیامت کښې دغه خاص راپاڅیدو ته چه هغه عذاب دے۔ یعنی دوی سود پدے وجه خوری چه حلال ئے ګنړی۔

﴿ وَأَحَلَّ اللّٰهُ الْبَيْعَ وَحَرَّمَ الرِّبٰوا ﴾ دا یا داخل دے د دوی په وینا کښې، چه دوی دا وئیلی وو چه الله څنګه بیع حلاله کړه او سود ئے حرام کړو؟۔ یعنی دواړو کښې هیڅ فرق نشته، نو د الله تعالیٰ په فرق باندے دوی اعتراض اُوکړو۔ دویم : غوره دا ده چه دا د الله د طرف نه دوی ته جواب دے۔ چه بیع او سود دواړه یو شان نهٔ دی، بلکه دواړو کښې فرق دے، بیع حلاله ده او سود حرام دے ځکه چه بیع کښې هغه زیادت وی چه په هغے کښې ظلم نهٔ وی، او د انسانانو ژوند پدے پورے موقوف دے۔ او په سود کښې بغیر د عوض نه زیادت وی، او ظلم پکښې وی۔ نو ځکه یو حرام او بل حلال شو۔

**فائده** : دا آیت دلیل دے چه د نص په مقابله کښې قیاس کول او عقل پیش کول جائز نهٔ دی۔

اُوس الله تعالیٰ تخویف بیانوی : ﴿ فَمَنْ جَآءَهٗ مَوْعِظَةٌ مِّنْ رَّبِّهٖ فَانْتَهٰى ﴾

د موعظه نه مراد منع کونکے بیان دے چه هغه دا آیت دے۔

﴿ فَانْتَهٰى ﴾ یعنی منع شو او د نهی تابع شو، د سودی معاملے او هر حرام کسب نه ئے توبه اُوویستله۔

﴿ فَلَهٗ مَا سَلَفَ ﴾ (نو وی به دهٔ له هغه مال چه مخکښې ئے ورکړے) د مَا سَلَفَ نه مراد هغه سودونه دی چه دهٔ مخکښې اخستی وی یعنی الله به ورته هغه هم معاف کړی او حکم به ورته نهٔ کوی چه هغه بیرته واپس کړه، بلکه هغه ورله تر اُوسه پورے حلال وو، ددے نه روستو حرام شو۔

⊙ یا مطلب دا دے چه وی به دده دپاره هغه مال چه مخکښې ئے ورکړے دے، نو هغهٔ خپل مال (قرض) به ترے واپس واخلی او سود به ترے نهٔ اخلی۔

حافظ ابن کثیرؒ دلته یو حدیث راوړی چه ام محبةؒ عائشے رضی الله عنها ته اُووئیل چه ما په زید بن ارقمؓ باندے یو غلام په اته سوه روپۍ په قرضو خرڅ کړو، بیا هغه پیسو ته محتاج شو نو د نیټے د پوره کیدو نه مخکښ هغه په ما باندے په شپږ سوه روپو په نقدو راخرڅ کړو؟ نو عائشےؓ اُوفرمایل چا تا ډیر ناروا کار کړیدے او زید بن ارقمؓ ته دا خبر اُورسوه چه که هغه توبه اُونۀ باسی نو هغه چه د رسول الله ﷺ سره کوم جهاد کړے هغه به ورله الله تعالیٰ باطل کړی۔ هغے اُووئیل : که زۀ ترے دوه سوه وانخلم او شپږ سوه ترے واخلم (یعنی هغه زیادت ورته معاف کړم او خپل رأس المال ترے واخلم) نو دا به څنګه وی؟ عائشے اُوفرمایل: صحیح ده۔ بیا ئے دا آیت اُولوستلو۔ او دیته بیع العِینة وائی۔ دا دلیل دے چه هر قسم حرامه بیعه په سود کښ داخله ده۔ (ابن کثیر ۱/ ۷۱۱۰)

○ دا مطلب هم صحیح دے چه ددۀ دپاره به هغه ګناهونه وی چه کوم ئے مخکښ کړی وی۔ یعنی د سود په پریخودو سره صرف د سود ګناه معاف کیږی او هرچه نور مخکښی ګناهونه دی نو د هغے نه به هم توبه کول ضروری وی۔

﴿وَأَمْرُهُ إِلَى اللَّهِ﴾ (ه) ضمیر ربا (سود) ته راجع دے یعنی د الله خوښه ده که حلالوی ئے او که حراموی ئے۔ دے کښ ستاسو څه کار دے؟۔ هغه حکیم او علیم دے۔

○ یا امرهٗ کښ ضمیر رجل ته راجع دے یعنی کار ددے سړی به سپارلے کیږی الله ته چه دا بیا سود کوی او که نه ئے کوی۔ نو د هغے مطابق به سزا او اجر ورکولے شی۔ او همدا ظاهر مطلب دے څکه چه پدے سره ټول ضمائر د یو بل موافق کیږی۔

او پدے کښ دا مطلب هم صحیح کیږی چه کار ددے سړی به الله ته سپارلے شی، یعنی اسلامی حکومت به دا په مخکنو سودونو باندے نۀ راګیروی۔لیکن ددے معنیٰ دا نۀ ده چه د الله د طرف نه هم دۀ ته معافی اُوشوه بلکه ددۀ معامله الله ته اُوسپارل شوه، الله ته د سپارلو وجه دا ده چه په آخرت کښ د رانیولو نه د بچکیدو دپاره صرف دا کافی نۀ ده چه بنده سود اُونکړی بلکه دا هم ضروری ده چه د بنده د زړۀ نه به د سود هر قسم شائبه اُوځی۔ او پدے کښ اشاره ده چه داسے قسم خلق ډیر دے د آخرت نه نۀ یے خوفه کیږی بلکه څو مره پورے چه کیدے شی د خپلو مظالمو د تلافی کوشش به کوی څکه چه دا د حقوق العباد سره تعلق لری۔ (تدبر قرآن)۔

﴿وَمَنْ عَادَ فَأُولَٰئِكَ أَصْحَابُ النَّارِ ۖ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ﴾

**سوال** : ظاهر ددے آیت خو د خوارجو او معتزلو دپاره دلیل ګرځی چه سود ګناه ده او کونکے ئے همیشه جهنم ته ځی معلومیږی چه په ګناه کولو سره انسان کافر کیږی؟۔

**جواب** : مَنْ عَادَ سره دلته قید دے (اَیْ مَنْ عَادَ اِلٰی تَحْلِیْلِ الرِّبَا) ۔ څوک چه راواپس شو حلال

گنړلو د سود ته)۔ لکه د مخکښې نه معلومه شوه چه دوی سود حلال گنړلو۔ ځکه چه داسے مسلمان نۀ دے موجود چه هغه ته د سود بدی ښکاره شوی وی، او بیا هم هغه سود اُوکړی او د هغے دپاره دلائل وائی چه سود نه بغیر کار نۀ چلیږی۔ یا خو به پوهه نۀ وی چه دا سود دے، یا به ئے د سود بدی په ذهن کښې حاضره نۀ وی۔

**جواب۲** : د سود سزا دا ده چه انسان همیشه اُور ته داخلوی، لیکن که مانع موجود وی چه ایمان پکښې دے، نور نیک اعمال پکښې موجود دی۔ د الله دپاره ئے مجاهدے کړی وی او الله سره ئے محبت هم وو، او سودئے هم کولو نو هغه به ئے په اُور کښې د همیشه پاتے کیدو نه راوباسی۔ نو په یو وخت د اوقاتو کښې به د اُور نه راوځی۔ خو چه ایمان هم ورسره نشته او سود خور هم دے نو همیشه به جهنم کښې وی۔نو دا دلیل نۀ دے چه انسان په گناه کولو سره کافر دے۔

| يَمْحَقُ اللّٰهُ الرِّبَا وَيُرْبِي الصَّدَقَاتِ وَاللّٰهُ لَا يُحِبُّ كُلَّ كَفَّارٍ أَثِيمٍ ﴿۲۷۶﴾ |
| --- |
| گموی (ختموی) الله تعالیٰ مال د سود لره او ډیروی صدقو لره او الله مینه نۀ کوی د هر ډیر ناشکره ډیر گناهگار سره۔ |

**تفسیر** : اُوس د ربا او د صدقے مینځ کښې فرق بیانوی په اعتبار د نتیجے سره، چه انجام د سود هلاکت او تباهی ده، او انجام د صدقے زیادت او برکت دے۔ او ضمناً صدقے ته ترغیب دے او د سود نه منع ده۔ حدیث کښې دی :[اَلرِّبَا وَاِنْ كَثُرَ فَاِنَّ عَاقِبَتَهٗ تَصِيْرُ اِلٰى قُلٍّ]

[ابن ماجه وصحيح الجامع الصغير ۳۵۴۲]۔

سود که هر څومره ډیر شی خو عاقبت او انجام به ئے کمی ته واپس کیږی۔

﴿يَمْحَقُ اللّٰهُ الرِّبَا﴾ محق : زائل کولو او ختمولو ته وئیلے شی، دلته ترے د مال بے برکتی مراد ده۔عبد الله بن عباسؓ فرمائی :[لَا يَقْبَلُ مِنْهُ صَدَقَةً وَلَا حَجًّا وَلَا جِهَادًا وَلَا صِلَةَ رَحِمٍ] ۔ نۀ به ترے الله صدقه قبلوی، نۀ حج، نۀ جهاد، نۀ صله رحمی)۔نو دا څومره لویه بے برکتی ده چه مال ئے اُولګولو او اجر ورته ملاؤ نشو۔ (قرطبی، النکت، الوسیط)

صاحب اللبابؒ فرمائی : د سود بے برکتی په څلورو طریقو ده :

(۱) د سود خور عاقبت به فقیری وی لکه مخکښې حدیث تیر شو۔

(۲) که په ظاهر کښې ئے مال کم نۀ وی، نو انجام به ئے بدی او نقصان وی، عدالت به ئے ساقط

وی، امانت به ئې ختم وی، او فاسق او سخت زړې به ورته وټیلې شي.
(٣) د کومو فقیرانو نه ئې چه مال د سود په وجه اخستې، هغوی به پرې لعنتونه وائي او ښیرې به ورته کوی. نو ددې په سبب به ددهٔ د نفس او د مال نه خیر او برکت ختمیږي.
(٤) کله چه دا په خلقو کښې مشهور شي چه ددهٔ مالونه په سود سره جمع کړیدي او دا ددهٔ خپل نهٔ دي، نو د غلا ګرو، ظالمانو، قطاع طریقو او ډاکوانو طمع به پکښې پیدا شي، نو دهٔ ته به دا مال نهٔ پریدي.
او په آخرت کښې بې برکتي په درې طریقو ده: (١) اول قول د ابن عباسؓ ذکر شو چه الله ترې عبادات نهٔ قبلوی. (٢) د مرګ په وخت کښې به د دنیا مال زائل شي او ګناه او ملامتیا به ددهٔ په سر پاتې شي، نو په لوئي تاوان کښې به اخته شي.
(٣) حدیث کښې دي چه مالدار جنتیان به د فقیرانو نه جنت ته پنځه سوه کاله روستو داخلیږي. دا د حلال مال حالت دې، نو بیا د حرامې مالدارئ به څه حال وی؟ دا لوئي نقصان دې.
﴿وَيُرْبِي الصَّدَقَاتِ﴾ صاحب اللباب فرمائي: د صدقاتو زیاتې په دنیا کښې په څلور طریقو دې.
(١) څوک چه د الله بندګانو سره احسان کوی، نو الله به هغه ضائع او اُوګې نهٔ پریدي. او ملائک هر صبا دعا کوی: «اې الله انفاق کونکي ته بدله ورکړه».
(٢) هره ورځ به ددهٔ مرتبه پورته کولې شي او ښائسته صفات به ئې کیدې شي او زړونه به ورته مائله کیږي.
(٣) فقیران به ورته د زړونو نه خالصه دعا کوی.
(٣) غلط خلق به دهٔ ته نهٔ متوجه کیږي ځکه چه کله مشهوره شي چه فلانې شخص د فقیرانو خیال ساتي نو هغه ته به ضرر نهٔ رسوی. آه.
او په آخرت کښې د صدقاتو زیاتوالې دا دې چه الله تعالیٰ یوه کجوره د غر هومره غټوی، (بخاری ومسلم) او بیا په ډیرو چندونو بدله ورکوی. او نبی ﷺ فرمائي:
«په درې څیزونو زهٔ قسم کوم: ١- بنده چه معافي اُوکړي نو الله ورله عزت زیاتوی.
٢- او څوک چه د الله دپاره تواضع اُوکړي نو الله ئې اُوچتوی.
٣- او کوم انسان چه صدقه اُوکړي نو په دې سره مال نهٔ کمیږي». (احمد ومسلم).
دارنګه د صدقې په وجه په ایمان کښې زیادت راځي، او انسان ته د نیک اعمالو توفیق ملاویږي. [ فَأَمَّا مَنْ أَعْطَى وَاتَّقَى وَصَدَّقَ بِالْحُسْنَى فَسَنُيَسِّرُهُ لِلْيُسْرَى ].
﴿وَاللَّهُ لَا يُحِبُّ كُلَّ كَفَّارٍ أَثِيمٍ﴾ کفار او اثیم دواړه د مبالغې صیغې دي، نو معنیٰ دا ده چه کفر او ګناه کول ددهٔ عادت وی همیشه دپاره ئې کوی، نو دا لائق ده د حال د هغه چا سره چه سود ته حلال

وائي۔ (۲) یا دا چه کَفَّار راجع دے هغه چاته چه د سود د حراموالی نه منکروی، او اَثِیم هغه دے چه حرام ئے گنړی لیکن کوی ئے۔ (اللباب لابن عادل، البغوی)

(۳) د کَفَّار نه مراد د الله د نعمتونو نه ناشکره چه په خپلو مالونو اکتفاء نهٔ کوی او د بندگانو مالونه په غلطه طریقه حاصلوی۔

(٤) ابن کثیرؒ وائی : د کَفَّار نه په زړهٔ سره کافر مراد دے، او د اَثِیم نه په وینا او په عمل سره گناهگار مراد دے۔ او ددے مناسبت د مخکښ سره دا دے چه سود کونکے د الله تعالیٰ په حلال مال راضی نهٔ دے او په حلال کسب باندے اکتفاء نهٔ کوی، او د خلقو د مالونو په غلطو طریقو سره د حاصلولو کوشش کوی، نو دا د الله تعالیٰ د نعمت نه منکر دے او په غلطه طریقه د خلقو د مالونو په خوړلو گناهگار دے۔

او پدے کښ اِشاره ده چه دغه خلق پدے وینا سره چه سود په شان د بیع دے کافران شو۔ او د سود خورو عمل ځکه قبول نه دے چه دوی د سود په حلال گنړلو یا د هغے د حرمت نه په انکار کولو سره کافران دی۔

| إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ وَأَقَامُوا الصَّلَاةَ وَآتَوُا |
|---|
| یقیناً هغه کسان چه ایمان ئے راوړے دے او نیك عملونه ئے کړی دی او د مانځه پابندی ئے کړے ده او ورکړے ئے دے |
| الزَّكَاةَ لَهُمْ أَجْرُهُمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴿٢٧٧﴾ |
| زکوٰة، د دوی دپاره ثوابونه دی په نزد د رب د دوی او نهٔ به یره وی په دوی او نهٔ به دوی غمجن شی۔ |

**تفسیر** : اُوس مؤمنانو ته بِشارت ورکوی، هغه کسان چه په الله ئے صحیح ایمان راوړے وی او د هغه د حکمونو تابعدار وی، او د هغه د نعمتونو شکر ادا کوی، او مخلوق سره احسان کوی چه دوی به د قیامت د ورځے د مصیبتونو نه بچ وی او الله تعالیٰ دوی له کرامتونه او عزتونه تیار کړی۔ (ابن کثیرؒ)۔

د رِبا (سود) د آیتونو په مینځ کښ ددے آیت د راوړلو مقصد دا بیانول دی چه د سودی کاروبار نه د بچ کیدو اَهم سبب په الله باندے ایمان او د هغه د حقوقو ادائیگی ده۔

﴿وَآتَوُا الزَّكَاةَ﴾ پدے کښ اشاره ده چه ایمان والا به د بل سره احسان کوی، نهٔ دا چه د هغوی نه سودونه واخلی او په هغوی ظلم اُوکړی۔

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ وَذَرُوا مَا بَقِيَ مِنَ الرِّبَا إِنْ كُنْتُم مُؤْمِنِينَ ﴿۲۷۸﴾

اے ایمان والو! اُویریږئ د الله نه او پریدئ هغه چه باقی دے د سود نه که یئ تاسو ایمان لرونکی۔

**تفسیر:** د سود په باره کښې نور قوانین بیانوی: اول ئے امر په تقوی اُوکړو چه اشاره ده چه د تقوی تقاضا دا ده چه سود اُونکړے شی۔ او سود پریخودو سره انسان ځان د اُور نه بچ کوی۔

﴿ وَذَرُوا مَا بَقِيَ مِنَ الرِّبَا﴾ اَىْ ذَرُوا مَا بَقِيَ مِنَ الْمَالِ عَلَى الْمَقْرُوْضِ]

یعنی په قرضدارو باندے د سود کوم رقم چه ستاسو پاتے شویدے، نو هغه پریدئ۔ اُوس به هغه نشی اخستلے، د ایمان تقاضا همدغه ده۔ ځکه چه سود او ایمان دواړه نشی جمع کیدے۔ او خپل رأس المال ترے اخستے شی۔

(۲) دویمه معنیٰ دا ده چه ( دَعُوْا طُرُقَ الرِّبَا) (د سود چه کوم لارے دی تولے پریدئ)۔ یعنی سود که په هره طریقه او هر نوم سره حاصلیږی، هغه پریدئ۔

﴿ مُؤْمِنِيْنَ ﴾ یعنی که تاسو ځان ته حقیقی او رشتینی مؤمنان وایئ نو سود به پریدئ۔

**فائده:** سود الله تعالیٰ ته ډیر مبغوض او ناکاره شے وو، او فراخه معاشی فساد وو، پدے وجه الله تعالیٰ په مکی آیتونو کښې ددے ظلم کیدل شروع کړی وو، او مواعظ او نصیحتونه ئے د هغے په باره کښې بیان کړی وو لکه سورة الروم کښې ئے ذکر کړے چه هغه مکی سورت دے۔ نو د حجة الوداع په موقعه ئے پدے باندے آخری گوزار اُوکړو چه هر قسمه سود پریدئ۔ او دا آیتونه د حجة الوداع په موقعه نازل شویدی لیکن د مضمون د مناسبت په وجه دلته لګولے شویدی۔

فَإِنْ لَّمْ تَفْعَلُوا فَأْذَنُوا بِحَرْبٍ مِّنَ اللَّهِ وَرَسُولِهِ وَإِنْ تُبْتُمْ

نو که اُونکړو تاسو دا کار نو خبر شئ په جنګ سره د طرفه د الله او د رسول د هغه نه او که تاسو توبه اُوویستله

فَلَكُمْ رُءُوسُ أَمْوَالِكُمْ لَا تَظْلِمُونَ وَلَا تُظْلَمُونَ ﴿۲۷۹﴾

نو وی به تاسو دپاره سرونه د مالونو ستاسو، تاسو به ظلم نۀ کوئ او نۀ به په تاسو باندے ظلم کیدے شی۔

**تفسیر:** پدے کښې د سود په نۀ پریخودو سره سخته زورنه ورکوی۔

﴿ فَإِنْ لَّمْ تَفْعَلُوا﴾ دلته د فعل نه مراد پریخودل د سود دی۔ یعنی که سود پرے ندئ۔

﴿ فَأْذَنُوا ﴾ د اذن نه مراد خبریدل او غوږ کیخودل دی۔ [اَىْ فَاعْلَمُوا یا فَاسْتَمِعُوا]۔ خبر شئ او غوږ کیدئ۔

﴿ بِحَرْبٍ مِّنَ اللَّهِ وَرَسُولِهِ ﴾ حرب کښې تنوین د تعظیم دپاره دے۔ یعنی الله او رسول به ورسره

عظیم جنګ کوی۔ او (مِنَ الله) ئے اُوویل او (بحرب الله) ئے اُونهٔ ویلو ځکه چه په هغے کښې احتمال د اضافت وو مفعول ته او حال دا چه دلته حرب د الله د طرف نه دے۔ او پدے کښې ډیر تاکید دے۔ (۱) ددے یوه معنیٰ دا ده چه الله به ورسره جنګ کوی پدے طریقه چه خپل رسول ته به حکم اُوکړی چه دوی سره جنګ اُوکړی۔ او اشاره ده چه مسلمانانو له پکار دی چه د داسے خلقو سره جنګ اُوکړی۔ (۲) دویم حرب په معنیٰ د دشمنئ سره دے یعنی که تاسو د سود نه منع نشوئ نو تاسو به د الله او د رسول دشمنان یئ۔ (تفسیر الماوردی)۔

## د سود خور حکم

پدے باندے دا مسئله تفریع ده چه که څوک سود ته حلال وائی نو دا مرتد دے، نو دوی سره به د مرتدینو په شان قتال کولے شی، او که څوک ددے په حرمت اقرار کوی، لیکن بیائے هم نهٔ پریږدی، نو دوی سره به د بُغاتو (باغیانو) په شان قتال کولے شی لکه ابوبکر صدیق ﷺ چه د زکوٰة منع کونکو سره قتال کړے وو۔

بیا که د الله رسول ﷺ ژوندے وی نو هغه به ورسره جنګ کوی او د هغه د وفات نه روستو به د هغه په ځائے خلیفه او د مسلمانانو بادشاه د دغسے سود خورو سره جنګ کوی۔ او د عبد الله بن عباس ﷺ نه نقل دی چه د هغه نه به توبه طلب کولے شی، که توبه ئے ویستله نو صحیح ده، او که توبه ئے ونهٔ ویستله نو څټ به ئے وهلے شی۔

(اللباب وروح المعانی ۵۳/۳، خازن ۲۵۴/۱)

او دا آیت دلیل دے چه څوک د یو شرعی حکم نه انکار اُوکړی نو دا د ملتِ اسلامی نه خارج دے، او داسے کافر دے لکه د ټول شریعت نه ئے چه انکار کړے وی۔ (اللباب)۔

او اشاره ده چه څوک په سُود همیشوالے کوی نو الله به د هغه خاتمه خرابه وی۔ (قاسمیؒ)۔

**فائده :** الله د دوه قسمه خلقو سره د جنګ اعلان کړے۔ (۱) یو د سود خور سره۔

(۲) دویم د الله د دوستانو سره دشمنی کونکو او هغوی ته دضرر ورکونکو سره۔ لکه حدیث قدسی کښې دی : [مَنْ عَادٰی لِیْ وَلِیًّا فَقَدْ آذَنْتُهُ بِالْحَرْبِ] څوک چه زما د یو ولی (نیک بنده) سره دشمنی کوی، نو زهٔ هغه ته د جنګ خبر ورکوم۔ (صحیح بخاری)

په یو بل روایت د ابن ماجه کښې دی : [فَقَدْ بَارَزَ اللهَ بِالْمُحَارَبَةِ] نو دا د الله جنګ ته ښکاره میدان ته را اُووتو۔ (څوک چه د اولیاء الله نه مددونه غواړی دا د اولیاؤ سره دشمنی کوی)۔

## د سود نه د توبې کولو نه روستو د مال حالت

﴿وَإِنْ تُبْتُمْ﴾ که یو انسان توبه اُوویستله او د هغه په لاس کښې د سود مال موجود وی، او معلوم وی او د چا نه ئې چه اخستې دې هغه هم حاضر وی، نو هغه ته دې واپس کړی، او که وفات شوې وی، نو صدقه دې ئې کړی. او که خوړلې وی او ختم شوې وی، نو بیا معاف دې. او دا حکم د هر هغه مال دې چه په ظلم او حرامه طریقه سره حاصل شوې وی. (قرطبی).

﴿فَلَكُمْ رُءُوسُ أَمْوَالِكُمْ﴾ رأس المال (اصلی پنګه) به تاسو ته ملاوېږی مثلاً یو سړی ته ئې زر روپئ ورکړې او د وخت په تیریدو په هغه دوه دوه زره واوړیدلې نو بس همدغه زر روپئ به ترې واخلی او ددې وخت تیریدو په بدله کښې به ترې عوض نهٔ اخلی.

﴿لَا تَظْلِمُونَ وَلَا تُظْلَمُونَ﴾ اول ظلم په معنیٰ د زیاتی، او دویم په معنیٰ د نقصان سره دې. یعنی تاسو به په قرضدارو باندې ظلم نهٔ کوئ چه د رأس المال نه د زیات مطالبه اُوکړئ، او په تاسو به د هغوی د طرفه ظلم (کمې) نشی کیدې چه هغوی درته اُووائی چه ډیر سود دې رانه خوړلې دې. دا رأس المال نهٔ درکوم، یا به کم درکوم، یا ټال مټول کوی.

| وَإِن كَانَ ذُو عُسْرَةٍ فَنَظِرَةٌ إِلَىٰ مَيْسَرَةٍ |
|---|
| او که چرته وی تنګسیا والا (قرضدارې) نو لازم دی انتظار کول هغه ته تر وخت د مالدارئ پورې |
| وَأَن تَصَدَّقُوا خَيْرٌ لَّكُمْ إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿۲۸۰﴾ |
| او که تاسو صدقه اوکړئ (په قرضداری باندې) غوره ده ستاسو دپاره که تاسو پو هیږئ. |

**تفسیر:** اُوس یو عام قانون بیانوی چه یو سړی باندې قرض دې، او مال ورسره نشته نو هغه ته به انتظار کولې شی چه کله ورسره مال پیدا شو، بیا به ئې ورکړی او که ورسره پیدا نهٔ شو او پدې حال کښې مړ شو، نو میراث به ترې واخلی. که هغه هم ورسره نهٔ وو، نو بیا به په دنیا کښې صبر کوی. آخرت کښې به الله ددې بدله ورکړی. هغه باندې هم یو مصیبت وو او په تا باندې هم مصیبت دې.

اُوس پدې وخت کښې چه په چا قرض واوړیدو او هغه غریب وو، نو ځرمن ترې اُویاسی خو قرض ترې غواړی، او الله تعالیٰ په انتظار کولو امر کړې دې. لیکن بل طرفته هغه سړې به هم ظلم نکوی چه ورسره وی او نهٔ ئې ورکوی لکه نن صبا دا ظلم شروع دې. یا قرضدارې پکښې سُستی کوی او کاروبار نهٔ کوی، ځان ئې اچولې وی، د پردو پیسو غم ورسره نهٔ وی.

﴿وَإِنْ كَانَ ذُو عُسْرَةٍ فَنَظِرَةٌ إِلَىٰ مَيْسَرَةٍ﴾ یعنی که یو تن د ټول یا بعض مال ادا کولو نه عاجز وی نو هغه ته به دومره انتظار کولے شی چه دغه اندازه مال ورسره راشی چه ستا قرض پرے ادا کولے شی۔ د جاهلیت والو په شان به نهٔ کوی چه کله به نیټه د قرض پوره کیدهٔ، نو یو تن به خپل قرضداری ته وئیل چه یا به قرض ادا کوے او که نهٔ وی نو بیا به ورپسے سود راکوے۔

(عُسْرَةٌ) د مال د نشتوالی د وجه نه تنګ حالئ او تنګ دستئ ته وائی۔

(فَنَظِرَةٌ) دا خبر د مبتدا دے یعنی فَالْوَاجِبُ نَظِرَةٌ ۔ پس واجب دی انتظار کول۔ یا دا مبتداء ده، خبرئے پټ دے۔ اَیْ فَعَلَیْهِ نَظِرَةٌ ۔ په دهٔ باندے انتظار کول لازم دی۔

(نَظِرَةٌ) تاخیر، انتظار او مهلت ته وائی۔

(مَيْسَرَةٌ) مصدر میمی دے په معنیٰ د یُسر او آسانئ سره۔

## تنګ دست انسان ته د صبر او معافی کولو فضیلتونه

په احادیثو کښ تنګ دست انسان ته د صبر کولو او د معافی کولو ډیر فضیلتونه راغلی دی۔ په صحیحینو وغیره کښ د ابو هریره ﷺ روایت دے چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل: «یو سړی به خلقو سره په قرض سره لین دین کولو بیا به ئے خپل غلام ته وئیل: کله چه تهٔ تنګ دست ته ورشے، نو د هغه نه تجاوز کوه، کیدے شی چه الله تعالیٰ زمونږ نه تجاوز اُوکړی، نو کله چه وفات شو، الله د هغه نه تجاوز اُوکړو۔ (یعنی ګناهونه ئے ورته معاف کړل)»۔

دا شخص ګناهګار وو لیکن پدے یو عمل الله تعالیٰ معاف کړو۔

○ امام مسلمؒ او احمدؒ د ابو قتاده حارث بن ربعی انصاری ﷺ نه روایت کړے چه ما د رسول الله ﷺ نه واوریدل چه فرمایل ئے: «چا چه د یو قرضداری نه څهٔ قرض کم کړو، یا ئے هغه ته معاف کړو، نو دا به د قیامت په ورځ د عرش په سوری کښ وی»۔

﴿وَأَنْ تَصَدَّقُوا خَيْرٌ لَّكُمْ﴾ پدے کښ ترغیب دے معاف کولو د اصل مال ته، خاصکر کله چه قرضدار غریب وی، او څه نهٔ مونده کوی، پدے معاف کولو کښ ډیر اجر او ثواب دے۔ معنیٰ دا ده چه که تاسو صدقه اُوکړئ په تنګدسته قرضدارانو چه ټول مال ورته معاف کړئ، یا بعض حصه، نو دا ستاسو دپاره د انتظار کولو نه ډیر غوره دی، او ثواب ئے ډیر زیات دے۔ ځکه چه پدے سره په دنیا کښ ښائسته ثناء او صفت حاصلیږی او په آخرت کښ ډیر اجر۔ (خازن ۲۵۴/۱)

علماء فرمائی: کله د واجبو نه مستحب او نفل غوره وی، اجر پکښ زیات وی۔ دلته انتظار کول واجب دی او په هغه باندے صدقه کول مستحب دی، لیکن دا د انتظار نه غوره دی۔ مګر بعض علماء وائی چه په صدقه کولو کښ دوه کارونه دی، انتظار هم شته او بیا نهٔ غوختل هم۔

نو ښکه معاف کول ډیر اجر لري۔

﴿إِنْ كُنتُمْ تَعْلَمُونَ﴾ ددې جزاء پټه ده [أَيْ إِنْ كُنتُمْ تَعْلَمُونَ أَنَّ هٰذَا التَّصَدُّقَ خَيْرٌ لَكُمْ فَلَا تَبَاطَؤُوا فِيْ فِعْلِهِ] (الوسيط) يعنې که تاسو پوهیږئ چه په تنګ دست باندې خیرات کول ستاسو دپاره غوره دي نو تاسو پرې عمل اُوکړئ او ددې په کولو کښې تاخیر مهٔ کوئ۔

ښکه چه الله به تا سره آساني اُوکړي۔ لکه حدیث کښې دي: چا چه په یو تنګ دست سره آساني اُوکړه نو الله به دهٔ سره آساني اُوکړي په دنیا او آخرت کښې۔ (ابن ماجه بسند صحيح)

○ ابن عثيمينؒ فرمائي: دا جمله شرطیه مستقله ده او د مخکښې سره پیوسته نهٔ ده، ښکه بیا معنیٰ کښې فساد راځي، چه صدقه کول به زمونږ دپاره غوره وي که مونږ پوهیږو، او که چرې نهٔ پوهیږو نو بیا به صدقه کول زمونږ دپاره بهتره نهٔ وي۔ او دا معنیٰ خو صحیح نهٔ ده، بلکه معنیٰ دا ده چه[إِنْ كُنتُمْ مِنْ ذَوِي الْعِلْمِ فَافْعَلُوْا – تَصَدَّقُوْا]

که تاسو د علم والا یئ نو دا کار اُوکړئ، صدقه پرې اُوکړئ)۔

| وَاتَّقُوْا يَوْمًا تُرْجَعُوْنَ فِيْهِ إِلَى اللّٰهِ ثُمَّ تُوَفّٰى |
|---|
| اُوېریږئ د هغه ورځې نه چه واپس به کړې شئ تاسو په هغې کښې الله تعالیٰ ته بیا به پوره ورکړې شي |
| كُلُّ نَفْسٍ مَّا كَسَبَتْ وَهُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ ﴿۲۸۱﴾ |
| هر نفس ته (بدله د) هغه عمل چه دهٔ کړې وي او په دوی باندې به هیڅ ظلم نشي کیدې۔ |

**تفسیر:** پدې آیت کښې الله تعالیٰ د آخرت یره بیان کړې ده، او دوه مشهده ئې بیان کړي، یو دا چه الله تعالیٰ ته ستاسو ورتګ دې او د الله مخې ته به اُودریږئ یعنې مشهد الموت والقیامة۔ (مرګ به دربانديې راځي او قیامت کښې به الله ته پیش کیږئ) او بل دا چه دا کوم عملونه مو کړي دي، د هغې سزاء او جزاء به درته ملاویږي۔ یعنې مشهد الحساب۔ دواړو باندې نظر واچوه، نو تا ته به پدې احکامو عمل کول او تول ګناهونه پریښودل آسان شي۔

د عبدالله بن عباس رضی الله عنهما نه روایت دې چه په نبي ﷺ باندې د قرآن نه آخري آیت چه نازل شو هغه دا آیت دې۔ د نبي ﷺ د وفات نه یو اتیا ورځې مخکښې نازل شوېدې۔ (فتح البيان).

سعيد بن جبيرؒ فرمائي: د نبي ﷺ د وفات نه نهه شپې مخکښې نازل شوې۔ بعض: اُووه ورځې ذکر کوي۔

﴿وَاتَّقُوْا يَوْمًا تُرْجَعُوْنَ فِيْهِ إِلَى اللّٰهِ﴾ د (يَوْمًا) نه مخکښې د عذاب یا حساب لفظ پټ دې۔

یعنې د قیامت د ورځې د عذاب او حساب نه یره اُوکړئ، او د آخرت نه یره دا ده چه د هغې دپاره

تیارے اُوکړی، ددے وجه نه ئے نفسِ خوف او خشیت لفظ ذکر نکړو، بلکه تقویٰ ئے ذکرکړه ځکه چه تقویٰ کښې یره وی په نیك اعمالو کولو سره۔

د (یَوْمًا) نه مراد د قیامت ورځ ده، لیکن پدے کښې ضمناً د مرګ ورځ هم مراد ده ځکه چه پدے ورځ هم د بنده ملاقات د الله سره کیږی۔

﴿وَالْتَفَّتِ السَّاقُ بِالسَّاقِ اِلٰى رَبِّكَ يَوْمَئِذِ الْمَسَاقُ﴾۔

(تُرْجَعُوْنَ) یعنی تاسو به پدے ورځ کښې د الله حساب ته پیش کولے شئ۔

(تُرْجَعُوْنَ) ئے صیغه مجهوله راوړه ځکه که د انسان خوښه وی او که نهٔ، خو الله به ئے ځان ته پیش کوی۔

یعنی که یو انسان د چا په باره کښې دا خیال کوی چه صبا له زما شپه د هغه سره راځی نو د هغه ډیر اکرام کوی، دے دپاره چه بیا ددهٔ اکرام اُوکړے شی، نو د بنده ګانو خو د مرګ نه روستو تولے شپے د الله سره دی، نو بیا به ولے د هغه دپاره تیارے نکوی۔

﴿ثُمَّ تُوَفّٰى كُلُّ نَفْسٍ مَّا كَسَبَتْ وَهُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ﴾ که چا نیك عمل کړے وی الله تعالیٰ ئے نهٔ بربادوی، او که چا بد کړے وی نو الله ئے پرے نهٔ زیاتوی۔

علامه مُهایمیؒ وائی: که یو انسان په خپل قرضداری سختی او تنګی راوستی وی، نو الله به د هغه نه پوره حق واخلی چه په هغه به تنګی راولی، او که هغه سره ئے آسانی کړی وی نو الله ډیر لائق دے چه د هغه سره آسانی اُوکړی۔ او دغه شان که قرضدارے قادر وی، او مالك ته ئے پوره حق نهٔ وی ادا کړے، نو الله به د هغهٔ نه پوره حق واخلی، او که څوك قادر نهٔ وی په ادا کولو نو امید دے چه الله به ورته معافی اُوکړی، او د هغه جګړه مار به د خپل طرف نه په څهٔ عوض راضی کړی۔ (قاسمیؒ)

لنډه دا چه بل سره آسانی کول د خپل ځان سره د آسانی کولو سبب دے۔

﴿كَسَبَتْ﴾ قرطبیؒ وئیلی دی چه كَسَبَتْ لفظ دلیل دے چه دارومدار د جزاء او سزا په عقیده او عمل دے۔

﴿لَا يُظْلَمُوْنَ﴾ یعنی په دوی به ظلم نشی کیدے په زیاتوالی او کموالی سره۔

تردے ځائے پورے د احسان او ظلم متعلق خبره بیانه شوه اُوس عدل بیانوی۔

يَا اَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا اِذَا تَدَايَنْتُمْ بِدَيْنٍ اِلٰى اَجَلٍ مُّسَمًّى فَاكْتُبُوْهُ وَلْيَكْتُبْ

اے ایمان والو! کله چه معامله کوئ تاسو په قرض سره تر یوے نیټے مقررے پورے نو اُولیکئ هغه او لیکل دے اُوکړی

بَيْنَكُمْ كَاتِبٌ بِالْعَدْلِ وَلَا يَأْبَ كَاتِبٌ أَنْ يَكْتُبَ كَمَا

په مینځ ستاسو کښې یو لیکونکے په انصاف سره او انکار دې نۀ کوی لیکونکے د لیکلو نه لکه څنګه چه

عَلَّمَهُ اللَّهُ فَلْيَكْتُبْ وَلْيُمْلِلِ الَّذِي عَلَيْهِ الْحَقُّ

خودنه کړې ده دۀ ته الله تعالىٰ نو لیکل دې اُوکړی او بیان دې اُوکړی هغه کس چه په هغه باندې حق دے

وَلْيَتَّقِ اللَّهَ رَبَّهُ وَلَا يَبْخَسْ مِنْهُ شَيْئًا فَإِنْ كَانَ الَّذِي

او ویره دې کوی د الله نه چه رب دۀ دے او نۀ دې کموی د هغې (حق) نه هیڅ شے نو که چرته وی هغه کس

عَلَيْهِ الْحَقُّ سَفِيهًا أَوْ ضَعِيفًا أَوْ لَا يَسْتَطِيعُ أَنْ يُمِلَّ هُوَ فَلْيُمْلِلْ

چه په هغه باندې حق (قرض) دے، بے عقله یا کمزورے یا طاقت نۀ لری چه بیان اُوکړی نو بیان دې اُوکړی

وَلِيُّهُ بِالْعَدْلِ وَاسْتَشْهِدُوا شَهِيدَيْنِ مِنْ رِجَالِكُمْ فَإِنْ لَمْ يَكُونَا رَجُلَيْنِ

وارث د هغه په انصاف سره او ګواهان طلب کړئ دوه ګواهان د سړو ستاسو نه نو که چرته نۀ وو دوه سړی

فَرَجُلٌ وَامْرَأَتَانِ مِمَّنْ تَرْضَوْنَ مِنَ الشُّهَدَاءِ أَنْ تَضِلَّ

نو یو سړے او دوه زنانه (دې ګواهی اُوکړی) د هغه چا نه چه تاسو یې غوره کوئ د ګواهانو نه چه هیر کړی

إِحْدَاهُمَا فَتُذَكِّرَ إِحْدَاهُمَا الْأُخْرَىٰ وَلَا يَأْبَ الشُّهَدَاءُ إِذَا مَا دُعُوا

یو ددې ښځو نه نو رایاده به کړی یو ددې دواړو نه بلې ته او انکار دې نۀ کوی ګواهان کله چه دوی را اُوبللے شی

وَلَا تَسْأَمُوا أَنْ تَكْتُبُوهُ صَغِيرًا أَوْ كَبِيرًا إِلَىٰ أَجَلِهِ

او مۀ ستړی کیږئ ددې نه چه اُولیکئ تاسو هغه (قرض) لره که لږ وی یا ډیر وی تر نیټې د هغې پورې

ذَٰلِكُمْ أَقْسَطُ عِنْدَ اللَّهِ وَأَقْوَمُ لِلشَّهَادَةِ وَأَدْنَىٰ

دا لیکل ډیره د انصاف خبره ده د الله په نزد او ډیر برابرونکے دے ګواهۍ لره او ډیره نزدې ده

أَلَّا تَرْتَابُوا إِلَّا أَنْ تَكُونَ تِجَارَةً حَاضِرَةً تُدِيرُونَهَا

دې ته چه تاسو به شک کښې نۀ کوئ مګر که چرته وی تجارت لاس په لاس چه اړوئ راړوئ تاسو هغه

بَيْنَكُمْ فَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَلَّا تَكْتُبُوهَا وَأَشْهِدُوا إِذَا تَبَايَعْتُمْ

په مينځ ستاسو كښې نو نشته په تاسو ګناه چه اُونه ليكئ هغې لره او ګواهان اُونيسئ كله چه تاسو خرڅول اخستل كوئ

وَلَا يُضَارَّ كَاتِبٌ وَّلَا شَهِيدٌ وَإِنْ تَفْعَلُوا فَإِنَّهُ فُسُوقٌ بِكُمْ

او ضرر دې نۀ وركوى ليكونكے او نۀ ګواه او كه چرته تاسو كوئ دا سے نو يقيناً دا نافرمانى ده په تاسو پورے پيوسته

وَاتَّقُوا اللَّهَ وَيُعَلِّمُكُمُ اللَّهُ وَاللَّهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ﴿۲۸۲﴾

او ويريږئ د الله نه او تعليم دركوى تاسو ته الله تعالىٰ او الله تعالىٰ په هر څيز باندے ښۀ پوهه دے۔

**تفسير :**

**ربط :** ۱-كافران وائى چه هركله سود حرام شو نو پدے سره خو زمونږ زندګى خرابيږى، مالونه موكميږى، نو الله فرمائى چه په حلاله طريقه تجارتونه او كسبونه كوئ، الله به درله رزق كښې بركت پيدا كوى۔

۲- مخكښې ئے اُوفرمايل چه په سودى معامله كښې فساد دے، نو اُوس وائى چه په كسبونو او تجارتونو كښې د فساد نه د بچ كيدو ذريعے استعمال كړئ، او پدے راتلونكى احكامو عمل اُوكړئ نو معاملات به مو د فساد نه بچ شى۔

۳- په سود او د بيع په بعض صورتونو (لكه بيع السلم) په دوارو كښې د قرضو معامله ده، ليكن سود حرام دے، او بيع السلم شريعت جائز كړه ځكه چه دے كښې عدل دے۔

**مضمون :** پدے ركوع كښې د عدل احكام بيانوى چه دے ته معاملات او بيوع وائى، دا احكام ددے دپاره ذكر شويدى چه د مسلمانانو په خپلو كښې د معاملاتو انتظام په ښۀ طريقه اُوچليږى او په خپلو كښې جنګ جګړه پيدا نۀ شى۔

دا معاملات چه الله مشروع كړى دى، نو دے كښې عدل دے، كله پكښې احسان وى، او كله نۀ وى، او مِنْ وَجْه عبادت دے، او غالباً معامله ده۔

بيا دے ته (آيَةُ الدَّيْن، آيَةُ الْمُدَايَنَة) وائى په قرآن كريم كښې د لفظ په اعتبار سره لوئى آيت دے۔ مفسرينو ليكلى دى چه پدے كښې پنځويشت احكام ذكر دى (ليكن واړۀ واړۀ پكښې ددے نه هم ډير دى) چه ډير فقهى بابونه پكښې راجمع دى، لكه باب السلم (د يو شى قيمت مخكښې وركول او شے روستو اخستل)، علم الكتابة، علم الانشاء، باب الحِجْر، باب الشهادة، باب الرَّهن، باب الأمانة ددے ابوابو اصول پكښې ذكر شوى دى۔ او دا د قرآن بلاغت دے چه په يو آيت كښې دومره

زيات احكام بيانوي، كه بل كتاب بيانولے نو په لسو صفحو كښ به ئے هم نهٔ وي بيان كړي۔
﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا﴾ مؤمنانو ته خطاب ځكه كوي چه اشاره ده چه په شرعي طريقے سره معامله كول د ايمان تقاضا ده۔ او پدے احكامو عمل صرف ايمان والا كوي۔
﴿إِذَا تَدَايَنتُم بِدَيْنٍ﴾ تَدَايَنَ معنىٰ ده معامله كول په دَين (قرض) سره۔
د قرض او دَين فرق دا دے چه قرض كښ يو شے وركول وي په طريقه د احسان چه د الله نه پرے اجر غواړي، او په مقابله كښ ئے څهٔ شے نهٔ وي، او دَين د يو شي د خرڅولو په مقابله كښ وي۔ چه في الحال ترے پيسے اُونهٔ غواړي، روستو ئے ترے واخلي۔
كه يو انسان په يو شخص باندے يو شے خرڅ كړي، او پيسے ترے في الحال وانخلي، څهٔ نيټه روستو ئے ترے اخلي، يا دا چه مال غنم، جوار اُوس وركړي، او پيسے ترے روستو غواړي نو دا احسان دے۔
اول صورت چه هغه درله پيسے اُوس دركړي، او ته ورله كال يا مياشت پس غنم يا جوار وركوے، نو ديته بيع السلم وائي، پدے كښ د دواړو طرفونو فائده ده۔ هغه سره اُوس پيسے شته او غنم يا جوارو ته ئے في الحال ضرورت نشته، كال يا مياشت پس به ورته ضرورت راځي، او ستا پيسو ته في الحال ضرورت دے نو ستا حاجت هم پكښ پوره شو۔
نو پدے آيت كښ بيع السلم او بيع القرض دواړه داخل شو۔ شريعت د اُمت د آسانئ دپاره جائز كړي دي۔
(بِدَيْنٍ) دا لفظ ئے ورسره ذكر كړو، اگر كه تَدَاين لفظ كښ خپله د دين معنىٰ پرته ده۔
(۱) يا خو غرض پكښ تاكيد دے۔
(۲) يا دے دپاره چه روستو د فَاكْتُبُوهُ ضمير راجع كيدل ورته صحيح شي۔
(۳) دريم دا چه تداين كله مجازاً په معنىٰ د وعدے سره هم استعماليږي لكه په اشعارو كښ استعمال شويدے۔ نو دين لفظ ذكر كولو سره معلوميږي چه دلته د وعدے او جزاء معنىٰ نهٔ ده مراد بلكه د قرضو معامله مراد ده۔ (ابن عاشور)
**تنبيه** : پدے كښ بيع التقسيط (د كشتونو والا بيعه) مراد نهٔ ده، دا دے ته وائي چه په نقدو په يو نرخ او په قرضو ئے په بل نرخ وركوي، د وخت د اُوږدوالي په وجه قيمت زياتوي، دا ناروا ده۔ او كوم علماء چه دا پدے آيت كښ داخل وائي نو قول ئے صحيح نهٔ دے ځكه چه په قرضو كښ احسان مقصد وي او په كشتونو والا بيعه كښ ظلم دے چه د پيسو د روستو ادا كولو په بدله كښ قيمت زياتوي۔ يو شے د لسو روپو دے ليكن د قرضو په وجه ئے په شل خرڅوي۔ دا كنجوسي ده۔

﴿إِلَىٰ أَجَلٍ مُّسَمًّى﴾ پدے کښې اشاره ده چه بیع السلم کښې شرطونه دی لکه چه په احادیثو کښې هم ذکر دی چه (کیل (پیمانه) به معلومه وی، وزن به ئے معلوم وی، نیته به ئے معلومه وی)۔ او نیته مقررول ددے دپاره دی چه جګړے واقع نشی۔

په قرض معامله کښې هم نیته مقررول پکار دی بنا په راجح قول چه مثلاً قرض اُوس ورکړی، او ورته اُووائی چه میاشت یا کال پس به قرض واپس راکوے۔ لکه عبد الله بن عمر رضی الله عنهما به دغسے کول۔ (صحیح بخاری)۔

پدے کښې احنافو علماؤ خلاف کړے، هغوی وائی چه قرض کښې نیته مقررول ضروری نهٔ دی بلکه هر کله چه د مالک خوښه شی خپل قرض واپس اخستے شی۔ لیکن خبره ئے د عبد الله بن عمرؓ په وینا ضعیفه ده۔ او په مرفوع حدیث کښې هم د قرض تأجیل ذکر دے۔ لکه په حدیث د بنی اسرائیلی کښې راغلی دی چه هغه یو ملګری ته قرض ورکړو او ورته ئے اُووئیل چه میاشت پس به ئے ادا کوے، او ورته ئے اُووئیل ګواه راوله هغه اُووئیل الله ګواه دے ورته ئے اُووئیل، ذمه وار راکړه هغه اُووئیل الله ذمه وار دے، بیا د نیتے په پوره کیدو کښې ئے په لرګی کښې پیسے ورکړے او په دریاب کښې ئے خوشے کړے او هغه بنی اسرائیلی ته هغه ملاؤ شوے لکه چه مشهوره واقعه ده۔ (صحیح بخاری)۔

نو پدے جمله کښې درے احکام راغلل یو دا چه بیع السلم جائز ده، دویم بیع القرض جائز ده۔ دریم دا چه احسان به ورسره اُوکړے چه په نقدو او قرضو دواړو کښې به یو نرخ وی۔ خو وخت به ورته اُوږد کړے۔

﴿مُّسَمًّى﴾ کښې اشاره ده چه پدے معامله کښې به وخت معین وی په یو خاص نوم سره لکه فلانے تاریخ، د لوونو شروع کیدو او د فصل د رارسیدو وخت وغیره، او نامعلومه نیته مقررول صحیح نهٔ دی۔

﴿فَاكْتُبُوهُ﴾ پدے کښې د کتابت بل حکم دے، په نسیئه (قرضو) معامله کښې لیکل د واجباتو نه دی ځکه چه الله پرے امر کړے۔لیکل چه اُونهٔ شی، لانجے واقع کیږی۔

او په نقدو کښې لیکل ضروری نهٔ دی۔ ځکه چه هر یو ته خپل خپل بدل ملاؤ شونو د انکار صورت نهٔ راپیدا کیږی۔او په قرضو معامله کښې یو ته عوض ملاؤ شوے دے او بل ته نهٔ دے، نو که لیکل نهٔ وی، نو بیا به د یو په انکار سره د بل حق ضائع شی۔ (قاسمی)

او ددے لیکلو مطالبه قرض اخستونکی له پکار ده، اګرکه قرض ورکونکے ترے د لیکلو مطالبه اُونکړی، ددے دپاره چه د قرض ورکونکی زړهٔ مطمئن شی۔لکه څنګه چه د موسیٰ او شعیب علیهما السلام په معامله کښې موسیٰ ؑ اُوفرمایل : ﴿وَاللَّهُ عَلَىٰ مَا نَقُولُ وَكِيلٌ﴾ نو د شعیب علیه السلام د مزدورئ دپاره ئے په ځان ګواهی اُوکړه اګرکه هغه ترے مطالبه نهٔ وه کړے۔ (الطاهر ابن عاشور)۔

﴿ وَلْيَكْتُبْ بَيْنَكُمْ كَاتِبٌ بِالْعَدْلِ ﴾ یعنی دا لیکل دې په دریمګړي اوشي، دې دپاره چه په یو بل بدګماني رانشي چه دهٔ به پکښې زیادت یا کمې کړې وي. او دریمګړي له هم پکار دي چه د عدل نه کار واخلي او یو طرفي لیکل دې نهٔ کوي. او که دریمګړې کاتب نهٔ وي، او یو طرف والا لیکل اُوکړي او بل ته ئې اُوښائي یا بیان کړي او بل پرې رضا شي نو هم جائز ده. دلته دریمګړې کاتب ددې دپاره ذکر شو چه خپله لیکل ضروري نهٔ دي.

**فائده:** معلومه شوه چه کتابت زدهٔ کول د شرعي علومو نه یو علم دې. لکه روستو ﴿كَمَا عَلَّمَهُ اللهُ﴾ کښې هم فرمائي. د کتابت زدهٔ کول فرض کفائي دي ځکه چه نظام بغیر ددې نه نهٔ چلیږي.

﴿ وَلَا يَأْبَ كَاتِبٌ أَنْ يَكْتُبَ ﴾ پدې کښې بل حکم دې چه یو سړي ته اُووائي چه راشه لیکل مونږ له اُوکړه، نو هغه به نهٔ خفه کیږي او نهٔ به انکار کوي، او نهٔ به عوض او مزدوري غواړي. پدې شرط چه منشي نهٔ وي، بلکه په یوه معامله کښې لیکل وي، همیشه ئې دا کار نهٔ وي. نو که د یو انسان تا ته همیشه ضرورت راتلو نو بیا پیسې اخستل تا له جائز دي، دا د خپل لاس کارو کسب دې.

﴿ كَمَا عَلَّمَهُ اللهُ ﴾ یعنی لیکل ورله ځکه پکار دي چه الله تعالیٰ دهٔ سره دا احسان کړې چه د کتابت عِلم ئې ورزدهٔ کړې، نو ددې علم شکریه دا ده چه د مسلمانانو د ضرورت مطابق لیکل به کوي، او مزدوري به ترې نهٔ اخلي. خو پدې کښې دا شرط دې چه دا معامله به د سود او حرامو نهٔ وي. په حرامو کښې لیکل کول جائز نهٔ دي.

د ﴿كَمَا عَلَّمَهُ اللهُ﴾ (۱) یوه معنیٰ دا ده چه هغه لیکل دې اُوکړي ځنګه چه الله دهٔ ته تعلیم ورکړې پدې قول سره چه (بِالْعَدْلِ) یعنی په انصاف سره دې لیکل اُوکړي.

(۲) دویم دا چه په خپل کتابت سره دې خلقو ته فائده اُورسوي، لکه ځنګه چه الله دهٔ ته د کتابت په زدهٔ کولو فائده رسولې ده. (قاسمي).

او که کاتب انکار اُوکړي، نو دهٔ عِلم پټ کړو او حدیث کښې دي: ((چا چه یو عِلم پټ کړو چه دا پرې پو هیدو، نو دهٔ ته به د اُور واګې وا چولې شي)).

(احمد، ابو داود، ترمذی وصححه الالبانی)

په حدیث د بخاري کښې دي: [تُعِينُ صَانِعًا أَوْ تَصْنَعُ لِأَخْرَقَ]. (دا هم صدقه ده چه تهٔ یو کار کونکي سره مدد اُوکړې، یا کم عقل بې تجربې انسان دپاره کار اُوکړې).

(كَمَا) کاف تعلیلي دې، یعنی پدې وجه چه الله ورله علم ورکړې. یا کاف تشبیهي دې. لکه ځنګه چه الله دهٔ له علم ورکړې.

﴿ فَلْيَكْتُبْ ﴾ د کتابت حکم ئې دوباره اُوکړو، د تاکید دپاره.

امام رازیؒ فرمائی: ظاهر ددے کلام دا دے چه کاتب منع شوے دے د انکار کولو د کتابت نه او په دهٔ باندے واجب شوی چه لیکل به کوی۔ (قاسمیؒ)

﴿ وَلْيُمْلِلِ الَّذِي عَلَيْهِ الْحَقُّ ﴾ دے کښې مسئله د اقرار ده یعنی په چا چه یو حق وی، نو هغه به لیکونکی ته داسے اقرار کوی چه اُولیکه په ما باندے د فلانکی دومره روپئ دی، په فلانی معامله کښې ئے راکړی دی، میاشت یا دوه میاشتو کښې به ئے ورکوم۔ یا دا چه بل طرف به اُووائی د فلانی په ما باندے یو مَنْ غنم دی، په فلانی تاریخ به ئے ورکوم۔

﴿ وَلْيُمْلِلِ ﴾ املال او املاء دوه لغته دی، دواړه په یوه معنیٰ دی۔ لوستل او بیانولو ته وئیلے شی۔ خاصکر هغه لوستل چه د لیکلو دپاره وی۔ مطلب دا چه په چا باندے حق (قرض) لازم دے، هغه دے په انصاف سره بیان اُوکړی۔

﴿وَلْيَتَّقِ اللَّهَ رَبَّهُ ﴾ یعنی کومه خبره چه بیانوی په هغے کښې دے د الله نه یره اُوکړی، د پردی حق نه دے انکار نهٔ کوی، نهٔ د ټول نه او نهٔ د بعضے نه۔

﴿وَلَا يَبْخَسْ مِنْهُ شَيْئًا ﴾ یعنی اقرار کونکے دے د پردی حق نه هیڅ شے نهٔ کموی۔ چه په دهٔ زیات وی او لیکونکی ته کم ذکر کړی۔ بعض وائی: دا حکم کاتب ته دے چه دا به کمے نهٔ کوی۔ لیکن اول قول غوره دے ځکه چه کاتب د کمی او زیاتی دواړو نه منع شویدے۔نو دلته تخصیص د کمی دلالت کوی چه دا حکم اقرار کونکی ته دے۔ (فتح البیان)۔

﴿ فَإِنْ كَانَ الَّذِي عَلَيْهِ الْحَقُّ ﴾ دے کښې باب الحجر ته اشاره ده چه حجر معنیٰ ده، په بعض خلقو پابندی لګول۔ نو په شریعت کښې په بعض کسانو پابندی لګولے شی چه دوی به اخستل خرڅول نهٔ کوی، ځکه چه نقصان کښې واقع کیږی۔ لکه ماشومانو باندے پابندی ده چه دوی به غټ کاروبار نهٔ کوی ځکه چه ناپوهه دی، ښهٔ شے خرڅوی او بد شے اخلی۔ او غلامانو باندے پابندی لګی چه د مالك د اجازے نه به بغیر کاروبار نهٔ کوی، او په بعض زنانو باندے او په بعض مفلسانو پابندی لګولے شی چه خلقو ته او ځان ته نقصان ورنکړی ځکه چه نور قرضونه پرے وانهٔ وړی۔

دلته ئے صورت داسے دے چه یو سړے دے په هغه باندے قرض اُوړیدلے دے، یا معامله یا یو څهٔ شی کښې راګیر شوے دے، خو بے وسه دے، او بیان نهٔ شی کولے، یا ناجوړه دے، هغه ځائے ته نهٔ شی حاضریدلے، یا ژبه ئے بندله ده مثلاً کاتب ته په اُردو یا عربئ کښې بیان نشی کولے نو بل سړے دے راپاڅوی د هغه په ځائے دے اقرار اُوکړی ځکه چه هغه د بیان کولو نه محجور (بند کړے شوے) دے۔

﴿سَفِيهًا أَوْ ضَعِيفًا أَوْ لَا يَسْتَطِيعُ أَنْ يُمِلَّ هُوَ فَلْيُمْلِلْ وَلِيُّهُ بِالْعَدْلِ﴾ سفیه بے وقوفه ته وائی چه خپل مال کښې سَم نظر نشی کولے، قیمتی مال په معمولی شی ورکوی۔ یا ضعیف او کمزورے دے د

وروکوالی یا ډیر بوډا والی د وجه نه. یا طاقت د بیان نشي لرلے، رعب پرے راځي، یا ژبه ئے بدله ده، یا ګونګے دے، یا په خبره سم نهٔ پوهیږي، یا سَم تعبیر نشي کولے، یا غائب دے چه د کاتب په خوا کښې حاضریدل ئے مشکل وي. نو د هغه وارث (وروړ، پلار، نیکه) دے راپاځي، هغه دے بیان کړي چه زمونږ پدے فلانکي باندے د فلاني دومره روپئ دي. ولي دوست ته هم وائي. هغه هم ددهٔ د طرف نه اقرار کولے شي.

﴿ وَلِيُّهُ بِالْعَدْلِ ﴾ وَلِيُّهُ کښې ضمیر (اَلَّذِیْ عَلَیْهِ الْحَقّ) ته راجع دے. او ابن جریرؒ وئیلي دي چه حق ته راجع دے، لیکن قول ئے ضعیف دے. د ولي نه مراد هغه شخص دے چه اختیار د کار لري چه هغه د ماشوم او سفیه د طرف نه وَصِي دے، او د چاړا او ګونګا د طرف نه ترجمان دے او د طاقت نهٔ لرونکي دپاره وکیل دے.

دا خو د کتابت حکم شو اُوس د ګواهانو حکم بیانوي:

﴿ وَاسْتَشْهِدُوْا شَهِیْدَیْنِ مِنْ رِّجَالِکُمْ ﴾ دا باب الشهادة شو. په اسلام کښې ګواهئ له ډیر اعتبار ورکړے شویدے ځکه چه پدے سره په معاملاتو کښې شکونه او جګړے نهٔ پیدا کیږي. ځوك پکښې انکار نشي کولے. او معامله باندے که ډیره موده هم تیره شي، نو هیڅ خلل پکښې نهٔ واقع کیږي، ځکه چه ډیر خلق ورته حاضر شوي وي. بیا پکښې لیکل هم موجود وي. نو ډیر اعتماد پیدا کوي.

نو د قرض معاملے دپاره یو لیکل ضروري دي او دویم ګواهان مقررول.

بیا شهادت کله په سترګو لیدلو او موقعے ته حاضریدو سره وي او کله شهادت په استفاضه او شهرت سره وي، چه یو شے مشهور وي، خلق پرے ګواهي ورکوي. او کله شهادة عَلَی الشَّهَادَة وي یعني د بل چا په ګواهي باندے ګواهي ورکول وي. دے ټولو احکامو ته دا آیت اشاره ورکوي.

بیا شریعت په عامو معاملاتو کښې دوه ګواهان مقرر کړي. لیکن په بعض ځایونو کښې څلور ګواهان مقررول ئے ضروري کړي لکه په باب د زنا کښې. او کله درے ګواهان لکه په باب د فاقه کښې چه یو سړے غریب شو، نو د هغه دپاره سوال کول هله جائز دي چه درے کسان د هغه د خپلوانو نه ګواهي ورکړي چه آؤ، دا سړے غریب دے. لکه دا په حدیث د قبیصه بن المخارقؓ کښې په صحیح بخاري کښې راغلي دي.

او په بعض اوقاتو کښې شریعت د یو قسم سره یو ګواه هم معتبر کړے. لکه عبد الله بن عباس رضي الله عنهما فرمائي: [قَضٰی بِیَمِیْنٍ وَّشَاهِدٍ] رسول الله ﷺ په یو قسم او یو ګواه باندے فیصله کړے. (صحیح مسلم).

په بعض اوقاتو کښې د کافر گواهي هم منظوره ده، لکه په سورة المائده کښې دي: ﴿أَوْ آخَرَانِ مِنْ غَيْرِكُمْ﴾ کله چه انسان په سفر کښې وي او مرگ پرې راشي او چا ته وصیت اُوکړي او کافر پرې گواه کړي. په بعض اوقاتو کښې د يو زنانه گواهي هم معتبره ده لکه په باب د رضاعت، حیض او ولادت کښې ځکه چه هلته سړي حاضر نهٔ وي.

شیخ الاسلام ابن القیمؒ په الطرق الحکمیة کښې ذکر کړي چه کله د ماشومانو گواهي هم شریعت معتبره کړیده چه مثلاً یو ځائے کښې یو سړے بل سړے اُووهي یائے قتل کړي. او هلته د ماشومانو نه سیوئ بل څوك نهٔ وي، نو د ماشوم گواهي پکښې منظوره ده.

دارنگه فرمائي چه یواځے صرف د زنانو گواهي هم شریعت معتبره کړیده په غیر د قصاص او حدودو کښې یعنی په نکاح او طلاق او هر هغه ځائے کښې چه هلته غالباً سړي نشي خبریدلے. بیا ئے د سلفو اقوال راوړیدي. (الطرق الحکمیة ۱۱۰) . او دلته چه دوه کسان د معاملاتو په باره کښې ضروري خودلے شویدي. دا قانون په هر ځائے کښې نهٔ دے.

﴿وَاسْتَشْهِدُوا﴾ استشهاد طلب د گواهئ ته وائي. شهید هغه گواه ته وائي چه گواهي د هغه عادت وي او د گواهئ احکام او ځایونه پیژني او لائق د گواهئ وي.

بیا په قرض معامله کښې گواهان مقررول په نیز د بعضو علماؤ واجب دي او بعض وائي مستحب دي، لیکن راجح دا معلومیږي چه مستحب شي. دلیل دا دے چه په حدیث د خزیمه بن ثابت کښې راځي چه رسول الله ﷺ د هغه یوه گواهي د دوه کسانو گواهي کرځولے وه. (رواه النسائي) ولحدیث الاسرائیلي وقد مر (بخاري)

ځکه چه امرونه راغلي دي. لکه روستو په صورت د بیع کښې په گواه مقرر کولو حکم شویدے (وَأَشْهِدُوا إِذَا تَبَايَعْتُمْ).

﴿مِنْ رِجَالِكُمْ﴾ (رجال) ذکر کولو کښې اشاره ده چه ماشومان لائق د گواهئ نهٔ دي مگر که سخت ضرورت راشي لکه مخکښې ذکر شو. او د رجال نسبت ئے (کُمْ) ضمیر مخاطب ته اُوکړو، پدے سره ئے کافران اُویستل ځکه چه د کافرانو گواهي په عامو اوقاتو کښې صحیح نهٔ ده ځکه چه د الله د توحید گواهي نهٔ ورکوي، نو مونږ به ئے په دنیاوي کارونو کښې څنگه گواه کړو. او د زنانو گواهي هم په عامو معاملاتو کښې صحیح ده، لیکن په عقوبات او حدودو کښې صحیح نهٔ ده. او رجال لفظ غلامانو ته هم شامل دے، لهٰذا غوره دا ده چه د غلام گواهي هم معتبره ده. ځکه چه هغه هم زمونږ د مسلمانانو سړو نه دے.

او د هغوي روایت قبول دے، نو گواهي به ئے هم مقبوله وي.

او دا قول د امام احمد بن حنبل، قاضي شريح، اسحاق او ابوثور دے۔
او کوم علماء چه ورله اعتبار نهٔ ورکوی (لکه مالك، ابوحنيفه، او شافعي وغيره) نو هغوی عقلی قیاسی خبره کوی چه صحیح نهٔ ده۔ وائی چه په دهٔ کښې د غلامیٔ په وجه نقصان راغلے دے۔او پدے آیت کښې خطاب هغه کسانو سره دے چه هغوی معامله کولے شی او غلامان خو د څهٔ مالکان نهٔ دی چه معامله اُوکری۔
لیکن جواب دا دے چه د الفاظو عموم له اعتبار وی، دارنگه غلام هم د مالك په اجازت سره معامله کولے شی۔ (فتح البیان۲/ ١٥٠)۔
﴿فَإِن لَّمْ يَكُونَا رَجُلَيْنِ فَرَجُلٌ وَامْرَأَتَانِ﴾ دا بل حکم دے چه که د دوه سړو د گواه مقررولو اراده ئے نهٔ وی کړی نو یو سړے او دوه ښځے هم کافی دی۔
﴿مِمَّن تَرْضَوْنَ مِنَ الشُّهَدَاءِ﴾ دا بل حکم دے پدے کښې تزکیة الشهود ده۔ یعنی د هر چا گواهی منظوره نهٔ ده، یو دروغجن او پوډری گواهی نشی کولے۔ ځکه قاضی به تپوس کوی چه دا سړے چه گواهی کوی دا څنگه سړے دے؟ نو خلق به د هغه تصفیه او تزکیه اُوکړی، نو بیا به هغه گواهی اُوکری۔ او که هغوی ئے بدی بیان کړه نو بیا به نور گواهان طلب کرے شی۔ نو مِمَّن تَرْضَوْنَ قید ځکه لگوی چه د هر چا گواهی له اعتبار نشته بلکه متقی له اعتبار دے۔
(تَرْضَوْنَ) دپاره مفعول پټ دے۔ (أَيْ تَرْضَوْنَ دِينَهُمْ وَعَدَالَتَهُمْ) چه تاسو خوښوئ د هغوی دینداری او عدالت۔ یعنی په کلی کښې په دینداریٔ مشهور دی، او په ظاهری فسق او گناه چا نهٔ دی لیدلی۔ یعنی شروط الشهادة به پکښې موجود وی۔ چه مسلمان، عاقل بالغ به وی، گناه کبیره باندے به نهٔ وی لیدلے شوے، او تهمت به پرے نهٔ وی۔
**فائده:** مَن تَرْضَوْنَ عام دے، ورور د ورور دپاره گواهی ورکولے شی، پلار د ځوی دپاره او برعکس۔ دارنگه ښځه د خاوند دپاره او خاوند د ښځے دپاره۔ ځکه چه متقی انسان د ورور او د پلار او د ښځے دپاره دروغ نهٔ وائی۔ آو، که په دوی تهمت وو، نو بیا به ئے گواهی صحیح نهٔ وی۔
ددے نه ثابته شوه چه د دوه ښځو گواهی د یو سړی د گواهی برابره ده۔ او دارنگه د ښځو گواهی یواځے صحیح نهٔ ده، مگر که سړے ورسره وی، بیا صحیح ده، مگر د ضرورت په وخت یواځے د زنانو گواهی هم صحیح ده لکه مخکښې ذکر شو۔
﴿أَن تَضِلَّ إِحْدَاهُمَا فَتُذَكِّرَ إِحْدَاهُمَا الْأُخْرَىٰ﴾ د أَن تَضِلَّ دپاره لام اجلیه پټ دے یعنی لِأَنْ تَضِلَّ۔ او دا د امْرَأَتَانِ دپاره علت دے۔ یعنی دوه ښځے د یو سړی په ځائے ځکه قائمے شوے چه د زنانه نه هیره ډیره کیږی، نو که یوه زنانه گواهی هیره کړی، نو بله به ورته خبره رایاده کړی چه ما او تا

ګواهي په فلاني ځائے کښې کړے وه۔
د زنانو نه خبره زر هیریږي او د سړو په نسبت د هغوي په ذهن کښې کمزورتیا وي، لیکن دا مطلب نهٔ دے چه هره زنانه د هر سړي نه په ذهن کښې کمزورے ده، بلکه مطلب دا دے چه مجموعه سړو له الله تعالیٰ قوي ذهن ورکړے په نسبت د مجموعه ښځو، او کیدے شي چه ډیرے ښځے د ډیرو سړو نه قوي ذهن والا وي۔ لکه امهات المؤمنین او باقي صحابیات په نسبت د روستو سړو۔
تَضِلَّ : د ضلال نه دے په معنیٰ د نسیان (هیرولو) سره دے۔ او هیره د ګواهي دا ده چه یو جزء تری نه هیر شي، او بل جزء ورته یاد وي، نو انسان حیران پاتے شي او چه ټول شهادت تری نه هیر شي نو په هغے کښې ضَلَّ فِیْهَا نشي وئیلے کیدے۔ (ابوعبید- قرطبيؒ، وفتح البیان)۔
﴿ وَلَا يَأْبَ الشُّهَدَآءُ إِذَا مَا دُعُوْا ﴾ دا بل حکم دے پدے کښې د ګواهانو دپاره ادب دے۔
او دا یوه بله فریضه ده چه ددے نه زمونږ عام مسلمانان نهٔ دي خبر، ډیر خلق ګواهي نهٔ ورکوي او نهٔ ګواه جوړیږي، ددے دپاره چه فلانے به راته خفه شي او ما ته به لانجه جوړه شي نو ګواهي پټوي هم، او ځان ګواه کوي هم نهٔ۔ حال دا چه دا د شریعت خلاف ده، که پدے کښې دومره یره وه چه ته خلقو وژلے، هم ګواهي به ورکوے۔
ځکه چه د ایمان والو په صفت کښې الله فرمائي :
﴿وَالَّذِيْنَ هُمْ بِشَهَادَاتِهِمْ قَآئِمُوْنَ﴾ ...... (معارج:۳۳)
(دا هغه خلق دي چه په خپلو ګواهیانو باندے کلك ولاړ وي)
په دے خبره به ته هله پوهه شے چه معاملات ډیر چا سره راشي، ښهٔ به ستا حق وي او ښهٔ به خلقو ته معلوم وي، خو نهٔ به ئے بیانوي ځکه چه د هغهٔ سړي نه به یریږي، پښتي شا به تاته وائي چه بالکل ستا حق دے۔ لیکن دومره ده چه اوس مونږ خبره نشو کولے چه وے کړو نو ددے سړي دشمنان کیږو، نو ایمان ئے کمزورے وي، ګواهي نهٔ شي ورکولے۔
﴿ إِذَا مَا دُعُوْا ﴾ پدے کښې دوه حالتونه دي (۱) رابللے کیږي ابتداءً یعني چه څوك ئے ګواه جوړوي، نو انکار به نهٔ کوي چه زهٔ وزګار نهٔ یم۔ یعني تَحَمُّل (برداشت) د شهادت به کوي۔
(۲) یا رابللے کیږي اداءً۔ یعني کله چه د ګواهۍ د ادا کولو وخت راغلو، نو دا به نهٔ روستو کیږي او ګواهي ورکول به واجب وي۔
﴿ وَلَا تَسْـَٔمُوْا أَنْ تَكْتُبُوْهُ صَغِيْرًا أَوْ كَبِيْرًا إِلَىٰ أَجَلِهٖ ﴾
پدے کښې بل حکم دے چه د لږ او ډیر مال د عذر په وجه، د کتابت نه ځان مهٔ ستړے کوئ، بلکه وارهٔ

او غټ تړول ليکئ ځکه چه پدې سره جګړې ختميږي، او د مالونو حفاظت کيږي. ځکه چه په دې لړو کښې هم لانجه راځي، دې حکمونو باندې چه څوك عمل کوي، بيائې الله تعالیٰ لانجې نهٔ واقع کوي، او چه نهٔ وي غالباً لانجه راځي. کله انسان د بار بار ليکلو نه تنګ شي، نو بيا په ډيرو ځايونو کښې ليکل نهٔ کوي، نو د لږ راحت غم کوي او په ډير مصيبت واوړي.

تَسْأَمُوْا : د سَآمَةٌ نه دې، په معنیٰ د سترې کيدو او تنګ کيدو سره دې. اَیْ لَاتَمَلُّوْا عَنِ الْكِتَابَةِ. ځان مهٔ ستړې کوئ د ليکلو نه.

﴿ ذٰلِكُمْ أَقْسَطُ عِنْدَ اللّٰهِ ﴾ دې کښې د ليکلو درې فائدې ذکر کوي. ګواهان چه ګواهي ورکوي، دې خط کښې به ګوري چه وې کتل، نو خبره به ورته سمه رايادة شي چه آو همدغه شان وه، نو ګواهي به پرې هم ښهٔ مضبوطه شي. نو انکار ته به حاجت نهٔ راځي.

اَقْسَطُ په معنیٰ د اَعْدَلُ سره دې يعني دا ډير انصاف والا دې د الله په نيز، پدې سره ظلم او اختلاف ختميږي.

﴿ وَأَقْوَمُ لِلشَّهَادَةِ ﴾ يعني ګواهي لره زيات مضبوطونکې دې. او ښهٔ برابرونکې دې.

﴿وَأَدْنٰی أَلَّا تَرْتَابُوْا ﴾ يعني شك لره لرې کونکې مناسب کار دې. ولې خط هم شته او ګواهان هم شته.

اُوس استثناء ذکر کوي :

﴿ إِلَّا أَنْ تَكُوْنَ تِجَارَةً حَاضِرَةً تُدِيْرُوْنَهَا بَيْنَكُمْ فَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَلَّا تَكْتُبُوْهَا ﴾

دا استثناء منقطع ده په معنیٰ د لٰكِنْ او دا استثناء ځکه ذکر کوي چه د الله تعالیٰ په احکامو کښې آسانې ده، که دا امر اُوکړې چه څهٔ شې خرڅوې نو ضرور به ئې ليکې، نو بيا به نقصان واقع شي ځکه دوکاندار چه په ماشومانو څهٔ خرڅوي، هغه به هم ليکي، نو بيا به تړله ورځ ليکلو ته ناست وي. نو الله اجازه ورکوي چه لاس په لاس يو شې ورکوې، نو په نهٔ ليکلو کښې ئې اجازت دې.

(تَكُوْنَ) کښې ضمير معاملې او تجارت ته راجع دې.

(تُدِيْرُوْنَهَا) دا د حَاضِرَةً تفسير دې. يعني حاضر تجارت دې ته وائي چه تاسو ئې په لاسونو کښې اَړوئ راړوئ. يعني په نقدو معامله کښې ليکلو ته ضرورت نشته. او وجه ئې مخکښې ذکر شوه.

يا د حَاضِرَةً نه مراد دا دې چه په مبيعه يا په ثمن کښې نيته نهٔ وي، او اخستونکې ئې في الحال قبض کوي. او د تُدِيْرُوْنَهَا معنیٰ دا ده چه تاسو هميشه داسې بيعې کوئ.

نو په حَاضِرَةً قيد سره د قرض سودا کولو او د سلم نه احتراز اُوشو. او په تُدِيْرُوْنَهَا سره د هغه بيع نه احتراز اُوشو چه غير منقول وي يعني د زمکو او کورونو جائيدادونو بيع کښې ليکل ضروري دي اګرکه نقده سودا وي.

د ليکلو اولـه فـائـده دا ده چـه دا د الله د رضـا د حاصلولو سبب دے۔ او دويمه فائده د دنيوی مـصلحت دپاره ده۔ او دريمه فائده راجع ده دے ته چه د نفسونو نه ضرر دفع شي ځکه چه شك د نفس د خفکان او پريشانئ سبب دے۔ او نور څوك به دوی ته د دروغو نسبت نهٔ کوی، نو د بل چا نه هم ضرر دفع شو۔

﴿وَاَشۡهِدُوۡۤا اِذَا تَبَايَعۡتُمۡ﴾

دا بـل حـکـم دے چه په نقدو سودا کولو کښې که کتابت نشئ کولے، گرانه وی، نو گواه به ضرور مقرروئ۔ ځکه چه پدے کښې ډير احتياط دے، او د اختلاف نه بچاؤ دے۔

د ضحاك نه نقل دی: [هِيَ عَزِيۡمَةٌ مِنَ اللهِ وَلَوۡ عَلٰى بَاقَةِ بَقۡلٍ]۔ دا د الله د طرف نه ضروری حکم دے، اگرکه د ساګو يوه گيډئ وی، هم گواه پرے مقررول ضروری دی۔ (قاسمیؒ)

پدے امر کښې اختلاف دے چه آيا دا په روستو (فَاِنۡ اَمِنَ) سره منسوخ دے او که محکم دے؟ نو د جـمهورو په نيز دا حکم د استحباب دپاره دے۔ ليکن غوره دا ده چه په وخت د اعتماد او اعتبار کښې امـر د استـحبـاب دپاره دے او په وخت د گمان او اختلاف پيدا کيدو کښې امر د وجوب دپاره دے۔ او اهل ظاهر وائی چه امر په هر حالت کښې د وجوب دپاره دے۔

ليـکـن ظـاهـر اول قـول دے د وجـه د هـغـه دوه حديثونو نه چه مونږ مخکښې ذکر کړل چه يو حديث د اسرائيلی دے او بل د خزيمه بن ثابت۔

(اِذَا تَبَايَعۡتُمۡ) اذا ظرفيه دے۔ او د تَبَايَعۡتُمۡ نه مراد هره بيعه ده، که نقد وی او که په نيته سره وی۔

بعض وائی: معنیٰ داسے ده: اِذَا تَبَايَعۡتُمۡ هٰذَا التَّبَايُعَ اَيِ التِّجَارَةَ الۡحَاضِرَةَ۔

(کـلـه چه تـاسـو دا قـسـم بيـعـه کـوئ چه هغه تجارت حاضره وی) نو په هغے کښې په گواهانو باندے اکتفاء کول جائز دی۔ (فتح وقاسمیؒ)

﴿وَلَا يُضَآرَّ كَاتِبٌ وَّلَا شَهِيۡدٌ﴾ اُوس د کاتب او گواه په باره کښې ادب ذکر کوی۔

لَا يُضَآرَّ د مجهول صيغه ده يعنی ضرر به نهٔ شی ورکولے۔

دا بـل حـکـم دے چـه څـوك ستـا دپاره گواه جوړ شی نو داسے به نشی کولے چه بيا تا د غوږ نه نيسولے وی، او هره ورځ ئے راکاږے، يا د هغه ضروری وخت دے، د مانځه يا د عبادت يا د نور څهٔ، او تهٔ ورته وائے چه اُوس راشه او خپل کار پريده، يا په هغوی باندے د طرفدارئ کوشش کوی۔ داسے به نهٔ کوی۔ د ليکونکی او دگواه د ظروفو لحاظ به ساتلے شی۔

نو الله تعالیٰ دواړو طرفونو ته ئے اُووئيل چه ورانے به نهٔ کوئ او دا د قرآن کريم کمال دے۔

په لَا يُضَآرَّ کښې مـعلومه صيغه هم صحيح ده، چه کاتب او گواه به خلقو ته تکليف نهٔ ورکوی

چه د خلقو خبره نهٔ منی، یا په گواهئ او لیکلو کښې په زیادت او نقصان سره تحریف اُوکړی. دا احتمال مخکښې تیر شو.

﴿وَإِنْ تَفْعَلُوا﴾ ددے مفعول پټ دے یعنی إِنْ تَفْعَلُوا الْإِضْرَارَ.

(که تاسو ضرر ورکول اُوکړئ) ـ نو فاسقان به شئ. یا تول اوامر او نواهیو ته اشاره ده چه که د هغے مخالفت اُوکړئ نو فسق کښې به واقع شئ.

﴿فَإِنَّهُ فُسُوقٌ بِكُمْ﴾ أَيْ فُسُوقٌ عِصْيَانٌ مُلْصَقٌ بِكُمْ. (دا نافرمانی او گناه ده چه تاسو پورے پیوسته ده). فسوق معنیٰ وتل دی د هغه شریعت نه چه الله سبحانه تاسو له مقرر کړیدے. (بِكُمْ) کښې باء د الصاق ده، یعنی دا گناه به په تاسو پورے پیوسته کیدونکی وی. او د بدنامئ سبب دے چه د تورے نه بغیر نهٔ لرے کیږی.

﴿وَاتَّقُوا اللَّهَ﴾ په تقویٰ باندے ئے حکم اُوکړو دے دپاره چه مخکښې فسق کښې اخته نشی.

﴿وَيُعَلِّمُكُمُ اللَّهُ﴾ ددے دپاره مفعول پټ دے أَيْ يُعَلِّمُكُمُ اللَّهُ دِينَكُمْ. الله تاسو ته د هغه دین تعلیم درکوی چه ستاسو پکښې فائدے دی). او چا دا د (وَاتَّقُوا اللَّهَ) سره متعلق کړیدے، نو بیا پدے کښې ترغیب دے چه د الله نه یره او د هغه په حکمونو عمل کول د عِلم د حاصلیدو سبب دے. قرطبیؒ لیکی: [وَعْدٌ مِنَ اللَّهِ بِأَنَّ مَنِ اتَّقَى اللَّهَ عَلَّمَهُ] ـ (دا د الله وعده ده چه څوک د الله نه اُویریدو الله به علم ورکړی). یعنی داسے نور او رڼا به ورکړی چه د هغے په ذریعه به ښهٔ او بد، حق او باطل پیژنی لکه د﴿إِنْ تَتَّقُوا اللَّهَ يَجْعَلْ لَكُمْ فُرْقَانًا﴾ (انفال/۲۹) په شان.

او اشاره ده چه مخکښې احکام شرعی علوم دی چه الله ئے انسانانو ته ورکوی.

﴿وَاللَّهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ﴾ یعنی الله تعالیٰ په مصلحتونو د بندگانو عالِم دے ځکه ورته داسے ښکلے احکام ذکر کوی.

| وَإِنْ كُنْتُمْ عَلَىٰ سَفَرٍ وَلَمْ تَجِدُوا كَاتِبًا فَرِهَانٌ مَقْبُوضَةٌ |
| --- |
| او که چرته وئ تاسو په سفر باندے او تاسو نهٔ موندلو کاتب لره نو گانړهٔ دے وی اخستے شوے |
| فَإِنْ أَمِنَ بَعْضُكُمْ بَعْضًا فَلْيُؤَدِّ الَّذِي اؤْتُمِنَ |
| نو که اعتماد اُوکړی بعضے ستاسو په بعضو باندے نو اداء دے کړی هغه کس چه اعتماد پرے کړے شوے دے |
| أَمَانَتَهُ وَلْيَتَّقِ اللَّهَ رَبَّهُ وَلَا تَكْتُمُوا الشَّهَادَةَ وَمَنْ يَكْتُمْهَا |
| امانت خپل اویره دے اُوکړی د الله نه چه رب ددهٔ دے او مهٔ پټوئ گواهی لره او څوک چه پټه کړی گواهی |

﴿فَإِنَّهُ آثِمٌ قَلْبُهُ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ عَلِيمٌ ﴿۲۸۳﴾﴾

نو یقیناً گناهکار دے زړهٔ د هغه او الله تعالیٰ په هغه عملونو چه تاسو ئې کوئ پوهه دے۔

**تفسیر:** مخکښې په حالت د حضور کښې احکام وو چه په هغې کښې د کاتب او گواه حاضرول آسان وو، اُوس د سفر حالت کښې بیع بیانوی په رهان (گانړے) کیخودو سره او په امانت سره۔ یعنی که تاسو په سفر کښې وئ او په نیتیے سره معامله کوئ، او کاتب وغیره نهٔ ملاویږی، نو د اعتماد دپاره به د حق والا گانړه واخلی چه ددهٔ د قرض وثیقه او اعتماد به وی۔ او که د یو انسان په بل باندے دیر اعتماد وی او هغه امانت گر گنړی نو بیا بغیر د گانړے اخستو نه هم معامله کولے شی۔

﴿ وَإِنْ كُنْتُمْ عَلَى سَفَرٍ وَلَمْ تَجِدُوا كَاتِبًا ﴾ عَلَىٰ سَفَرٍ قید احترازی نهٔ دے، په حضر کښې هم چه کله کاتب نهٔ وی، گانړهٔ ورکول جائز دی، لیکن غالباً په سفر کښې کاتب نهٔ ملاویږی، نو خلق بیع شراء کښې گانړهٔ ایږدی۔ یعنی یو شے دے د چا نه واخستو او پیسے درسره نشته چه هغه ورله ورکړے او گواه او لیکونکے هم نشته، نو بیا د هغه شی په بدله کښې ورسره یو بل شے د امانت په طور کیده چه کله تا پیسے ادا کړے نو هغه شے به درته واپس کړی۔ او رسول الله ﷺ په حضر کښې (په مدینه کښې) یو یهودی سره خپله زغره په گانړهٔ کښې ایخودے وه، او دیرش صاعه وریشے ئې تر ے اخستے وے او تردے چه وفات شو او زغره ئې راخلاصه نکړه، بیا ابوبکر صدیق ﷺ راخلاصه کړه۔ (سنن النسائی)

نو دا په خبر واحد سره په کتاب الله باندے زیادت دے، او دا بالکل جائز دے ځکه چه دواړه شرعه ده۔ قرآن د سفر حکم ذکر کړے، او نبی ﷺ ورسره د حضر حکم هم ملگرے کړیدے۔

پدے کښې امام مجاهدؒ وئیلی دی چه د رَهن د جواز دپاره سفر او د کاتب نهٔ موجودیدل شرط دی، لیکن دا خبره ئې بے دلیله ده۔

﴿ فَرِهَانٌ ﴾ رِهَان مصدر دے په معنیٰ د مفعول یعنی مَرْهُوْن۔ گانړهٔ شوے شے۔ یا جمع د رهن ده او په معنیٰ د مفعول ده۔ یعنی مَرْهُوْنَاتْ۔ لکه د بغل او بِغَال په شان۔ او کله رهن جمع د رِهَان وی۔ لکه د فِرَاش او فُرُش په شان۔ (قرطبیؒ)

رهان په شریعت کښې دے ته وائی چه قرض اخستونکے خپل څهٔ شے د قرض ورکونکی په لاس کښې ورکړی، دے دپاره چه هغه پرے د خپل قرض اعتماد اُوکړی، که هغه قرض ادا نکړی، نو مرتهن به د هغه شی نه یا د هغې د منافعو نه خپل حق حاصلوی۔

ددے صورت داسے دے چه تا یو شے په یو سړی خرڅ کړو، هغه سره فی الحال پیسے نهٔ وی نو تهٔ

ترے په بدله کښې بل شے نیسے ځکه چه ستا باور او اعتماد نهٔ وی چه هسے نه مال هم اُونهٔ تختوی او پیسے هم۔

﴿مَقْبُوضَةٌ﴾ ددے نه معلومه شوه چه په رهن کښې شرط دا دے چه دا به هله صحیح وی چه په قبضه د مرتهن (ګانړه اخستونکی) کښې راشی۔ او دا قبض صرف د اعتماد دپاره دے۔ فائدے به ددے شی نه نهٔ اخلی، البته که یو داسے شے ئے ورسره په ګانړهٔ کښې کیخودو چه په هغے باندے مُرتهن خرچه کوله لکه آس، خر، قچر، اُوښه، چیلۍ وغیره (نهٔ ګاړے، موټر، ځکه چه دا څه خوراك نهٔ کوی او کله ئے چه څوك نهٔ استعمالوی نو څهٔ تیل وغیره نهٔ غواړی نو دا د آس وغیره په حکم کښې نهٔ دی) نو د خرچے په بدله کښې په هغے سورلی کولے شی۔ یا د پیو والا حیوان وی، نو د هغے د پیو نه فائده اخستے شی۔ لکه دا خبره امام بخاری په خپل صحیح کښې تفصیلًا ذکر کړیده۔

او ددے نه سِویٔ څیز کښې د ګانړی نه فائده اخستل صحیح نهٔ دی، دا په سود کښې داخلیږی۔ لکه خلق د کورونو پیشګی اخلی او په هغے باندے ځان له کاروبار کوی او ورسره د کور والا نه کرایه هم اخلی نو دا هم سود دے۔

(فَرِهَانٌ مَقْبُوضَةٌ) دا خبر د مبتداء دے اَیْ فَرِهَانٌ مَقْبُوضَةٌ تَكْفِيْ مِنْ ذٰلِكَ ۔ یعنی قبض شوے ګانړهٔ ددے په بدله کښې کافی کیږی۔

بیا که دا ګانړهٔ د مرتهن (ګانړهٔ اخستونکی) په لاس کښې هلاکه شی، نو په دهٔ باندے تاوان نهٔ راځی ځکه چه دا امین دے، او په امانت کښې ضمان نهٔ وی، کله چه د مرتهن پکښې څهٔ نقصان نهٔ وی۔ او همدا غوره قول دے۔ (قرطبیؒ)۔

**فائده :** د رهن په ځائے حکومتی سټامپ پیپر لیکل هم کافی کیږی لکه د تونس والا خلق د زمکو او کورونو د ګانړے په بدله کښې دا کار کوی۔ (ابن عاشورؒ)۔

﴿فَإِنْ أَمِنَ بَعْضُكُمْ بَعْضًا﴾ دا بل صورت دے چه که خرخونکے په اخستونکی اعتماد اُوکړی، او ده ته امانتګر اُوګڼړی ورته اُووائی چه څهٔ دا شے مے دریاندے درخرڅ کړو، ځما په تا پوره اعتماد دے، ته زما پیسے نهٔ خورے، ماله ګانړه مهٔ راکوه، نو الله تعالیٰ دے اخستونکی ته وائی چه ته هغه امانتګر اُوګڼړلے نو تهٔ هم د هغه د ګمان مطابق هغهٔ ته امانت ادا کړه۔ او د رب نه یره اُوکړه۔

نو ﴿فَلْيُؤَدِّ الَّذِي اؤْتُمِنَ أَمَانَتَهُ﴾ کښې د اَلَّذِی اؤْتُمِنَ نه مراد قرض اخستونکے دے۔ ځکه چه دا د مال مالك امانتګر ګنړلے دے۔ د (أَمَانَتَه) نه مراد د هغه قرض دے، لیکن تعبیر ئے په امانت سره اُوکړو، اشاره ده چه هغه تهٔ امانتګر ګنړلے ئے، او تا نه ئے ګانړه نهٔ ده غوختلے، نو د هغه امانت ادا کول پکار دی، او دا دلیل دے چه امانت او قرض ادا کول واجب دی۔

﴿وَلْيَتَّقِ اللَّهَ رَبَّهُ﴾ (د خپل رب نه دې يره اُوکړي) ځکه چه که دهٔ پکښې خيانت اُوکړو نو رب به ترې تپوس کوی۔ بار بار په تقوىٰ امر کوی ځکه چه دا په عمل باندې باعث دې۔

﴿وَلَا تَكْتُمُوا الشَّهَادَةَ﴾ د گواهي د پټولو يو صورت دا دې چه يو سړی، تهٔ گواه کړې ئې، او هغه نه هير شويدی او د هغه گواه نشته، نو تهٔ به ځان نهٔ غلې کوې، بلکه د هغه دپاره به گواهي ورکوې۔ دا رنګه يو صورت دا دې چه گواهي نيمه بيان کړی، او نيمه پټه کړی۔ يا د يرې د وجه نه گواهي نهٔ ورکوی۔ دا خبره مونږ ته ورهٔ ښکاری ليکن د الله په نيز ډيره لويه خبره ده ځکه پکښې ډير تاکيد ذکر کوی۔

﴿وَمَنْ يَكْتُمْهَا فَإِنَّهُ آثِمٌ قَلْبُهُ﴾ (که چا دا گواهي پټه کړه نو يقيناً چه ددهٔ زړهٔ گناهگار دې) زړهٔ ئې ذکر کړو ځکه چه د هرې گناه اول اثر په زړهٔ کيږي، بيا د هغې نه نور اندامونه اثر اخلی۔ لکه په حديث د صحيحينو کښې دی:

[إِذَا صَلَحَتْ صَلَحَ الْجَسَدُ كُلُّهُ وَإِذَا فَسَدَتْ فَسَدَ الْجَسَدُ كُلُّهُ]

زړهٔ داسې ټکړه ده چه کله دا صحيح شي، نو ټول بدن به صحيح وی، او کله چه دا خرابه شي، نو ټول بدن به خرابيږی)۔

او دا کتمان د زړهٔ نه واقع کيږی، پدې وجه ئې نسبت د گناه زړهٔ ته اُوکړو، او د کوم اندام نه چه کوم کار کيږی هغې ته نسبت کول ډير بليغ او تاکيد والا وی۔ گويا کښې داسې اُوئيلې شو چه گناه ددهٔ بيخ ته ننوتې ده، او ددهٔ په بدن کښې ئې ډير شريف مکان رانيولې دې۔

او دا دليل دې چه يو شخص به د زړهٔ په عمل سره رانيولې شي، او د زړهٔ عمل د اندامونو د عمل نه ډير قوی وی، لکه کفر او ايمان ځکه چه زړهٔ مرکز دې او اندامونه ئې شاخونه دی، نو زړهٔ ته نسبت د گناه کښې اشاره ده چه دا د ډيرو لويو گناهونو نه دی۔ (فتح البيان، قاسمی)۔

﴿وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ عَلِيمٌ﴾ پدې جمله کښې يره ورکول دی، چه الله ته ستاسو عملونه معلوم دی چه څوک گواهي پټوی، او څوک ئې ښکاره کوی نو هغه به جزاء او سزا ورکوی۔

لِلَّهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ وَإِنْ

خاص د الله په اختيار کښې دی هغه څه چه په آسمانونو کښې دی او هغه څه چه په زمکه کښې دی او که

تُبْدُوا مَا فِي أَنْفُسِكُمْ أَوْ تُخْفُوهُ يُحَاسِبْكُمْ

تاسو ښکاره کوئ هغه خبرې چه ستاسو په زړونو کښې دی يا پټوئ هغې لره حساب به کوی تاسو سره

| بِهِ اللّٰهُ فَيَغْفِرُ لِمَنْ يَّشَآءُ وَيُعَذِّبُ مَنْ |
|---|
| په هغے باندے الله تعالیٰ، نو بخنه کوی هغه چا ته چه خوښه ئے شی او عذاب ورکوی هغه چا ته |
| يَّشَآءُ وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَىْءٍ قَدِيْرٌ ﴿۲۸۴﴾ |
| چه خوښه ئے شی او الله په هر شی باندے قدرت لرونکے دے۔ |

**تفسیر**: مضمون: په راتلونکی درے آیتونو کښې د ټول سورت خلاصه او د مخکنو مضامینو نچوړ راوباسی او د سورتونو د موضوعاتو طریقه هم دا وی چه په اوله کښې کوم مضامین راوړی، نو په آخر د سورت کښې هم هغه شان مضمون راوړی، نو دے سورت کښې ځلور مضامین وو، نو په (لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ) کښې د الله د توحید بیان دے۔ په آمَنَ الرَّسُوْلُ کښې د رسول ﷺ د رسالت متعلق خبرے هم دی چه یهودو پرے اعتراضونه کول۔ او ورسره په دے سورت کښې د انفاق او د جهاد مسئلے وے، نو دا په (لَا يُكَلِّفُ اللّٰهُ نَفْسًا) کښې بیانوی چه دا ټول داسے احکام دی چه د انسان د طاقت مناسب دی۔

او سورت د مؤمنانو په دُعا ختموی چه صحابه کرامؓ دا دُعا کړے وه چه اے الله! مونږه باندے دین راولیږه خو چه ګران نۀ وی ځکه چه بیا به ئے مونږ برداشت کولے نۀ شو، او ستا د غضب حقدار به شو، نو دا دُعا الله قبوله کړه، بیرته ئے قرآن کښې نقل هم کړه۔

دا د الله تعالیٰ ښکلے احسان دے چه مؤمنانو دُعا اُوکړه او الله قبوله کړه، او قرآن کریم کښې ئے اُولیکله چه بالکل قبوله شوه۔

او پدے دعا کښې اشاره ده چه اُمت ته به زۀ آسان احکام ورکوم، او کوم احکام چه پدے سورت کښې نازل شوی هغه ټول آسان دی، لکه توحید، مونځ، زکاة، قبلے ته متوجه کیدل، او معمولی شان ابتلاء ات راوستل، حلال او حرام منل، قصاص نافذ کول، روژے نیول او حج او عمره کول، رشوتونو نه ځان ساتل، نکاح، طلاق، خلع، عدت، رضاعت، بیوع وغیره احکامو کښې د الله امر منل دومره ګران کار نۀ دے۔

نو پدے دُعا کښې امت ته تسلی ورکول دی۔

او دا آیتونه مونږ ته دا خبره بیانوی چه دا مسئلے او دا قوانین د الله تعالیٰ نبی منلی او صحابه کرامؓ منلی دی، ددے اُمت مؤمنان ئے منی، او دوی ایمان هم راوړی او عملونه هم کوی او ورسره ورسره د خپل تقصیر چه کله واقع شی د هغے بخنه غواړی چه اے الله! مونږ ته دا کوتاهی

معاف کړه. نو هر مؤمن له دغه شان پکار ده.
﴿لِلَّهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ﴾ جلالین لیکي : خَلقًا وَمِلْكًا وَعَبِيدًا).
یعنې آسمانونو او زمکو کښې چه څۀ دي چه هغه اعیان (ذوات) دي او که اعراض، نو دا ټول د الله مخلوق دي، او د الله مملوك دي، هغه ئې مالك دے، د بل چا واك پکښې نۀ چلیږي او د هغه غلامان دي. عاجز دي. او الله پکښې تصرف کونکے دے. هغه بل چا (بابا، پیر، ولي) له ددے د تصرف حق نۀ دے ورکړے، نو معلومه شوه چه تصرف کونکے صرف الله دے نو پدے کښې په شرك في التصرف باندے رد دے. او هرکله چه په دنیاوي کارونو کښې تصرف کونکے الله دے، نو توجه به هغه ته کیږي، عبادت به د هغه کیږي. قانون به د هغه منلے کیږي، دین به د هغۀ چلیږي، هغۀ چه کوم احکام رالیږي هغۀ به منلے کیږي، بل معبود او إله او محبوب به نۀ وي.
﴿وَإِن تُبْدُوا مَا فِي أَنفُسِكُمْ أَوْ تُخْفُوهُ﴾ پدے کښې د الله تعالیٰ د عِلم بیان دے، او پدے اعمالو باندے حساب ذکر کوي چه څوك دا مني او څوك ئې نۀ مني، د هغه سره به حساب کیږي داسے نۀ ده چه یو غلام دے وي او د هغه سره دِے حساب نۀ وي نو څکه عمل پکار دے.
﴿يُحَاسِبْكُم بِهِ اللَّهُ﴾
**فوائد الآیة** : ١– د الله د عِلم بیان پکښې اُوشو چه په پټ او ښکاره هر څۀ باندے پو هه دے.
٢– بندګان ئې مهمل نۀ دي پریخي بلکه دوي سره به حساب کیږي. دا احکام نازلول د هغه مهمل نۀ دي. ٣– بیا بیان د مغفرت د هغه دے چه که چا نه پدے احکامو کښې کومه کوتاهي اُوشوه نو الله به ورته بخښنه کوي.
٤– او که څوك احکام ماتوي نو الله عذاب هم ورکوي.
یحاسبکم : ددے آیت نه معلومیږي چه په هره پټه او ښکاره خبره انسان سره حساب کیږي، لیکن حساب عام دے، کله په طریقه د عَرُض سره وي یعنې نیکانو ته به الله تعالیٰ دغه اعمال پیش کړي چه تاسو دا دا اعمال کړي لیکن درته معاف مے کړل. دیته حساب یسیر (آسان حساب) وائي. او کله حساب په مناقشے سره وي یعنې په حساب کښې بحث کول او سخت حساب کول چه انسان ته اُووائي چه دا کار دِے ولے کړیدے؟. نو دا حساب سبب د عذاب دے. او کله پدے کښې هم معافي کوي.
په حدیث د مسلم کښې د ابو هریره ﷛ نه روایت دے چه کله په رسول الله ﷺ باندے دا آیت (لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ الخ) نازل شو، نو د رسول الله ﷺ په صحابه وُ دا خبره ډیره ګرانه شوه نو رسول الله ﷺ ته راغلل او په ګوندو کیناستل، ورے وئیل: اے د الله رسوله ! مونږ باندے داسے اعمال

مقرر شوی وو چه مونږ د هغې طاقت لرلو چه هغه مونځ، روژه، جهاد، او زکوٰة دی۔

لیکن اوس په تا باندې الله تعالیٰ دا آیت نازل کړې چه ددې طاقت مونږ نشو لرلې۔ (یعنی چه الله به تاسو سره په هره خبره حساب کوی که په زړهٔ کښې ئې پټه ساتئ او که په ښکاره او عمل ئې راښکاره کوئ) نو رسول الله ﷺ اوفرمایل:

آیا تاسو غواړئ چه داسې خبره اوکړئ لکه څنګه چه ستاسو نه مخکښې د دوه کتابونو والو کړې وه چه سَمِعْنَا وَعَصَيْنَا (مونږ خبره واوریدهٔ او مخالفت ئې کوو) بلکه داسې اووایئ چه مونږ خبره واوریدهٔ او تابعداری کوو، اے الله! مونږ ته بخښه اوکړه او تا ته زمونږ در ګرځیدل دی۔

نو کله چه صحابه کرامؓ هغه خبره اوکړه او ژبې ئې پرې تابع شوې، نو الله تعالیٰ ددې نه روستو آیت (لَا يُكَلِّفُ اللهُ) نازل کړل نو دغه مخکنې حکم ئې پرې منسوخ کړو۔ (مسلم کتاب الایمان ۱۲۵)

نو ددې روایت نه ښکاره معلومه شوه چه دا آیت په روستنی آیت سره منسوخ دې۔ څکه چه پدې آیت کښې دی چه په هر پټ او ښکاره حساب دې، نو په غیر اختیاری وسوسو به هم حساب وی، چه د بې حیایئ او د الله او د آخرت وغیره په باره کښې راځی۔ او روستنو آیت کښې ئې اوفرمایل چه الله په هغه کارونو حساب کوی چه د انسان په وسع او طاقت کښې وی۔ او کومې وسوسې چه غیر اختیاری زړهٔ ته راځی نو هغه معاف دی۔

او د منسوخ دا معنیٰ نهٔ ده چه ګنې دا آیت مُهمل دې، بلکه مطلب دا دې چه په اوله کښې په بندګانو باندې ګرانه خبره کیخودې شوې وه د امتحان دپاره چه دوی ورته غاړه ایږدی او که نهٔ؟، اوویل شو چه په هره خبره که اختیاری وی او که غیر اختیاری وی، حساب دې لیکن هرکله چه د دوی ژبې هغې ته تابع شوې او سَمِعْنَا او اطَعْنَا ئې اوویل، نو الله ورته اوفرمایل چه کومه خبره ستاسو د وَس نهٔ بهر ده، هغه درته معاف شوه، نو دیته تخفیف وائی او نسخ ورته نهٔ وائی، او د متقدمینو په اصطلاح کښې دې تخفیف ته هم نسخ وائی پدې وجه ئې په نسخ سره تعبیر کړیدې۔

او ټول حکم نهٔ دې منسوخ شوې بلکه یوه حصه منسوخ شوه چه د زړهٔ وسوسه چه غیر اختیاری وی په هغې باندې راتیول نشته، او نورې خبرې باقی دی چه که تهٔ اختیاری خبرې پټوې او که ښکاره کوې په هغې به درسره الله تعالیٰ حساب کوی۔

(۲) او ابن جریرؒ، قرطبیؒ، ابن عطیة او ابن کثیرؒ وغیره داسې فرمایلی دی چه:

یوه محاسبه ده او یو عذاب دې، حساب په هر شی باندې کوی خو چه کوم شې ستا په اختیار کښې نهٔ دې، نو د هغې عذاب نهٔ درکوی، حساب به درسره اوکړی او جنت ته به دې بوځی، داسې به اووائی چه ستا په زړهٔ کښې وسوسه راتله او تا بده ګڼړله او خفه کیدلې، څهٔ معاف مې کړې، نو

بخښنه به پرې اوکړي. ځکه چه الله دا نۀ دي وئيلي (يُعَذِّبْكُمُ اللهُ) چه زۀ پرې عذاب ورکوم، بلکه حساب ئې ذکر کړې. حساب جدا شے دے او عذاب جدا دے. هر حساب سره عذاب لازم نۀ دے، بلکه کله حساب په عرض سره وي لکه مخکښې تير شو. يعنې په هر اختياري او غير اختياري خبره حساب دے ليکن په غير اختياري خبره هغه حساب دے چه هغې ته عرض (پيش کول) او آسان حساب وائي. او دا د ايمان والو سره د الله احسان وي. ﴿فَأَمَّا مَنْ أُوتِيَ كِتَابَهُ بِيَمِينِهِ فَسَوْفَ يُحَاسَبُ حِسَابًا يَسِيرًا﴾ . او په اختياري خبره ګران حساب دے. خو کله معاف کول کوي او کله عذاب ورکوي.

(۳) دريم دا چه د مَا فِيْ أَنْفُسِكُمْ نه هغه خبرے او عقيدے او کارونه مراد دي چه په زړۀ کښې د هغې کلکه اراده شوي وي، يعنې عزم درجے ته رسيدلي وي، نو بيا په هغې کښې رانيول شته لکه دا د (فِيْ أَنْفُسِكُمْ) لفظ نه معلوميږي چه دننه زړۀ ته داخلے شوي وي، او زړۀ په هغې باندے قصد کړے وي، نو که دا غلطه خبره وي، په هغې باندے هم رانيول شته، او هرچه غير اختياري وسوسے دي چه عزم درجے ته نۀ وي رسيدلي، نو په هغې رانيول نشته. او هغه په مَا فِيْ أَنْفُسِكُمْ کښې نۀ دي داخل.

نو روستو آيت (لَايُكَلِّفُ) دا بيان اوکړو چه په غير اختياري وسوسو رانيول نشته ځکه چه دا د انسان په وسع کښې نۀ دي، او که اختياري وي نو په هغې کښې قصد او عزم وي. لهذا روستو آيت د مَافِيْ أَنْفُسِكُمْ تشريح ده.

لکه حديث کښې هم ددے تشريح داسے راغلې ده: [إِنَّ اللهَ تَجَاوَزَ لِيْ عَنْ أُمَّتِيْ مَا حَدَّثَتْ بِهِ أَنْفُسُهَا مَا لَمْ تَتَكَلَّمْ أَوْ تَعْمَلْ بِهِ] (متفق عليه والسنن الاربعة) . الله زما دپاره زما د امت نه د هغه خبرو تجاوز کړے يعنې معاف کړي دي چه هغوي ته د هغوي زړونه وسوسے اچوي ترڅو پورے چه په هغې ئې خبرے نۀ وي کړي، يا ئې پرے عمل نۀ وي کړے) يعنې په خله يا عمل ئې راښکاره کړي نۀ وي. بلکه غير اختياري وي. نو بناء پدے دا آيت مُحکم دے.

په بل تعبير، سره داسے وئيلے شي چه دلته ئې (تُخْفُوْا أَوْ تُبْدُوْا) لفظ وئيلے دے. ابداء او اخفاء په اختياري امورو کښې استعماليږي (أَبْدَى فُلَانٌ شَيْئًا) فلاني دا شے راښکاره کړو په خپله خوښه، په خپله اراده. او اخفاء هم دے ته وائي چه قصداً يو سړے په زړۀ کښې يو شے پټ کړي. او هر چه وسوسے دي نو هغه د انسان زړۀ ته غير اختياري راځي. د انسان واک پکښې نۀ وي، يا د خولے نه غير اختياري خبره اوځي نو پدے انسان ګناهګار نۀ دے.

نو دے آيت کښې دا معنیٰ نۀ وه پرته چه الله تاسو په وسوسو باندے هم راګيروي ليکن د

صحابه کرامؓ دا خیال راغلو چه ګنے دے کښې وسوسے هم داخلی دی، نو نبی ﷺ ورته اُوفرمایل چه تاسو به په آیتونو کښې چون وچرا نهٔ کوئ، تسلیم شئ۔ نو الله ورته (لَا یُکَلِّفُ) کښې اُوفرمایل چه وسوسه پکښې نهٔ ده داخله۔ لهٰذا دا د مخکنی آیت تشریح شوه، نو دا تفسیر هم د حدیث خلاف نهٔ دے۔

(٤) دے کښې بل جواب چا دا هم کړے چه حساب متعلق دے د موالاة مع الکفار سره یعنی که څوك په زړهٔ کښې د کافرانو سره مینه پټه ساتی، یا ئے ښکاره کوی نو الله به ورسره حساب کوی۔

(٥) بل مطلب دا هم بیان شوے چه د حساب نه مراد: بنده ته کله یو غم یا هَمّ یا مصیبت اُورسی نو ددے په وجه الله تعالیٰ ورله ګناه معاف کړی لکه دا خبره په صحیح حدیث کښې راغلے ده۔ لیکن اولنی اقوال ډیر قوی دی۔

﴿فَیَغْفِرُ لِمَنْ یَّشَآءُ وَیُعَذِّبُ مَنْ یَّشَآءُ﴾ نو دا دلیل دے چه هر حساب مستلزم عذاب لره نهٔ دے۔ بلکه کله حساب اُوکړی او معافی اُوکړی او کله د حساب نه روستو عذاب ورکوی۔

او الله چه مغفرت کوی نو هم اهل پیژنی او چا ته چه عذاب ورکوی د هغے هم اهل ګوری چه دهٔ په زړه ورتیا او بے باکئ سره ګناه کړیده۔

لهٰذا د آیت نه ثابته شوه چه زړهٔ کښې به قصداً د ګناه فکر نهٔ کوے او په خوله به هم داسے نهٔ وائی (چه سړے زنا اُوکړی، د فلانی وژل پکار دی، په فلانی ځائے کښې شراب سکل پکار دی)۔ ددے خبرو تمنا ګانے کول د الله د حساب ذریعه ده۔ شیطان د انسان فکر اکثر پدے غلطو کارونو کښې مشغوله کوی۔

﴿وَاللّٰهُ عَلٰی کُلِّ شَیْءٍ قَدِیْرٌ﴾ نو مؤمنانو ته بخښنه کول د هغه احسان او فضل دے او کافرانو ته عذاب ورکول د هغه عدل دے۔ د ابن عباسؓ نه نقل دی چه الله قدرت لرونکے دے کله لویه ګناه معاف کوی، او په وړه ګناه عذاب ورکوی۔ ځکه چه الله تعالیٰ د هر چا په حال عالِم دے نو په مغفرت او عذاب قادر دے۔ (فتح البیان)۔

**فائده**: امام رازیؒ فرمائی: په (لِلّٰهِ مَا فِی السَّمٰوٰتِ) کښې دا خبره ثابته شوه چه الله کامل ملك او بادشاهئ والا دے۔ او په (وَاِنْ تُبْدُوْا) کښې ثابته شوه چه الله کامل علم او احاطے والا دے۔ او په (وَاللّٰهُ عَلٰی کُلِّ شَیْءٍ قَدِیْرٌ) کښې ثابته شوه چه الله کامل قدرت والا دے چه په ټولو ممکناتو غالب او د دوی په پیدا کولو او ختمولو قاهر دے۔ او چا ته چه دا درے صفات حاصل شی نو د هغه نه پورته کمال والا نهٔ وی، او کوم ذات چه پدے درے صفاتو متصف وی، نو په هر عاقل باندے دا لازم دی چه د هغه تابعدار بنده جوړ شی، د هغه حکمونو ته عاجزی او خضوع اُوکړی او د هغه

د غضب نه ځان بچ کړی۔ (قاسمی)۔

| آمَنَ الرَّسُولُ بِمَا أُنْزِلَ إِلَيْهِ مِنْ رَّبِّهٖ وَالْمُؤْمِنُوْنَ |
|---|
| ایمان راوړو رسول (ﷺ) په هغه وحی چه نازله شوې ده هغه ته د طرفه درب د هغه نه او ایمان والو (هم) |
| كُلٌّ آمَنَ بِاللّٰهِ وَمَلٰٓئِكَتِهٖ وَكُتُبِهٖ وَرُسُلِهٖ لَا نُفَرِّقُ |
| هريو ايمان راوړو په الله او په ملائكو د هغه او په كتابونو د هغه او په رسولانو د هغه، فرق نهٔ كوو مونږ |
| بَيْنَ أَحَدٍ مِّنْ رُّسُلِهٖ وَقَالُوْا سَمِعْنَا وَأَطَعْنَا غُفْرَانَكَ |
| په مينځ د يو تن كښې د رسولانو د هغه نه۔ او وائي دوی چه واوريدل مونږ او تابعداري كوو مونږ، بخښنه غواړو ستا نه |
| رَبَّنَا وَإِلَيْكَ الْمَصِيْرُ ﴿۲۸۵﴾ |
| اے ربه زمونږه! او خاص تا طرف ته در گرځيدل دی۔ |

**تفسير** : دا روستو دوه آيتونه ډير غوره دی۔ حديث كښې راځي : چه رسول الله ﷺ ته يو ملائك راغلو چه هيڅ كله مخكښې نهٔ وو نازل شوے وے۔ جبريل عليه السلام اُوفرمايل : دا ملائك دے چه مخكښې هيچا ته نهٔ دے راغلے، نو هغه رسول الله ﷺ ته زيرے ورکړو په دوه رڼړا گانو چه يو سورة فاتحه ده او بل خواتيم (آخرى آيتونه) د بقرے دی، تهٔ به يو حرف ددے نه نهٔ لولے مگر تا ته به دركولے شي۔ [مسلم ۸۰٦، نسائي ۱۲۸/۲]۔

او په يو حديث كښې دی چه رسول الله به دا دوه آيتونه د شپے د اُودهٔ كيدو په وخت لوستل۔ او په يو روايت كښې دی چه رسول الله ﷺ فرمائيلى دی: چه څوك دا دوه آيتونه په شپه كښې اُووائي نو دا به ورله كافي شي۔ (بخاری رقم: ۵۰۰۸)۔

علی كَرَّمَ اللّٰهُ وَجْهَهٗ فرمائي: زما په يو تن دا گمان نهٔ دے چه هغه عاقل وی او اسلام ورته رسيدلے وی، او د آية الكرسى او د سورة البقرے آخرى آيتونو لوستلو نه بغير اُودهٔ كيږي خكه چه دا د هغه خزانے نه راوتلی دی كوم چه د عرش نه لاندے دی۔

(فضائل القرآن لابن الضريس صححه النووي - ابن كثير)۔

يعنى ددے آيتونو دومره خير دے چه عقلمند سړے دا چرے نهٔ پريدی۔

په حديث كښې دی : ما ته د سورة البقرے آخرى آيتونه راكړے شويدی، د هغه خزانے نه چه د عرش لاندے ده چه دا زما نه مخكښې هيڅ نبی ته نهٔ دی وركړے شوی۔

(مسند احمد ۵/ ۱۵۱)۔

**عنوان الآية** : امام زجاج رحمه الله فرمائي: [هٰذِهِ الآيَةُ تَصْدِيْقٌ لِجَمِيْعِ مَا فِيْ هٰذِهِ السُّوْرَةِ فَتَكُوْنُ تَاكِيْدًا وَفَذْلَكَةً] (قاسمي، فتح البيان، ابن عاشور) دے سورت کښې چه کوم مضامين مخکښې تير شويدي (توحيد، مونځ، زکاة، روژه، حج، طلاق، حيض، ايلاء، جهاد، د انبياء عليهم السلام واقعات، سود، او قرض) نو دا آيت د هغے تصديق او تعظيم بيانوي او پدے کښې فذلکه او خلاصه راوستلى دى، چه دا مخکښې تيرے شوے خبرے رسول الله ﷺ هم منى او مؤمنان ئے هم منى، هغوى تر قيامته پورے ددے منلو ته تيار دى.

او ايمان والا پرے عمل هم کوى، خارج کښې موجود شوى احکام دى، هسے فرضى احکام نۀ دى، او وائى چه مونږ نه کوم تقصير واقع شو د الله نه بخنه غواړو.

دا مۀ وايه چه دا احکام هسے بيان شو او چا پرے عمل نۀ دے کړے. بلکه ددے احکامو اهل شته. او مؤمن به ديته وائى چه دا ټول احکام به منى او عمل به پرے کوى، که توحيد دے، رسالت دے، که عبادت دے، کوم چه دے سورت کښې تير شول. نو پدے کښې د تير شوو مضامينو تاکيد شو.

گويا کښې دا د سوال جواب دے چه پدے سورت به څوک عمل کوى او چا کړے دے؟ نو جواب اُوشو چه رسول الله ﷺ او مؤمنان شته چه هغوى ئے منى او عمل پرے کوى.

﴿ آمَنَ الرَّسُوْلُ بِمَا أُنْزِلَ إِلَيْهِ مِنْ رَبِّهِ ﴾ الرَّسُوْل کښې الف لام عهدى دى، مراد ترے محمد رسول الله ﷺ دے. د (بِمَا أُنْزِلَ إِلَيْهِ) نه مراد ټول هغه احکام دى چه په قرآن او سنت کښې او خصوصاً پدے سورت کښې ذکر دى.

او دا دليل دے چه رسول الله ﷺ هم په ايمان او د دين په احکامو باندے داسے مکلف دے لکه څنګه چه اُمت پرے مکلف دے.

او په رسول الله ﷺ هم دا فرض وو چه هغه دا يقين اُوکړى چه دا قرآن د الله د طرف نه نازل شويدے او دا سحر، کهانت او د شيطانانو القاء نۀ ده.

﴿وَالْمُؤْمِنُوْنَ﴾ دا مبتداء ده او (كُلٌّ آمَنَ) ئے خبر دے، او عائد د مبتدا تنوين دے په كُلٌّ کښې، دا هم کله د ضمير په ځائے قائمقام کيدے شى. مفسر ابو السعودؒ دا قول غوره کړيدے.

(۲) دويم دا چه دا په (الرسول) باندے عطف دے، نو كُلٌّ کښې به تنوين رسول او مؤمنانو دواړو ته راجع وى، او همدا قول غوره دے ځکه چه پدے مقام کښې شمارل د مُؤْمَنٌ بِهٖ مقصود دے، او پدے کښې رسول او د هغه تابعدار دواړه شريک دى چه پدے څيزونو به ايمان لرى. اګر که د دواړو د ايمان په حقيقت کښې به ډير تفاوت او فرق وى. (قاسمي).

﴿كُلٌّ آمَنَ بِاللّٰهِ﴾ دا تفصیل دے د مخکښې اجمال چه په (آمَنَ) کښې دے. په الله ایمان دا چه هغه په ذات او صفاتو کښې یکتا او تنها یواځې دے، شریکان ئې نشته، هغه زمونږ خالق او رب دے، او یواځې معبود، حقدار او لائق د بندګۍ دے. او دا اوله مرتبه د ایمان ده.

﴿وَمَلٰئِكَتِهٖ﴾ او په ملائکو ایمان دا دے چه د هغوی په وجود او د هغوی په هغه صفاتو باندے تصدیق او یقین اُوکړے شی کوم چه قرآن او حدیث کښې ذکر دی، او دوی واسطه ده په مابین د الله او د بندګانو کښې چه وحی راوړی او الله په کارونو مقرر کړیدی، د هغه په حکم سره د بندګانو خدمتونه کوی. او دا دویمه مرتبه د ایمان ده.

﴿وَكُتُبِهٖ﴾ د الله په ټولو نازل شوو کتابونو ایمان دا دے چه د هغے اجمالی یا تفصیلی تصدیق اُوکړے شی چه دا حق کتابونه وو، او د الله د طرف نه نازل شوی وو، او ددے په منلو کښې هدایت وو، او په نهٔ منلو کښې ئې هلاکت وو. دا دریمه مرتبه د ایمان ده ځکه چه دا کتابونه د ملائکو په ذریعه رسولانو ته رارسیدلی دی.

﴿وَرُسُلِهٖ﴾ ایمان په رسولانو دا دے چه دوی د الله حق رسولان وو، او دوی د الله عباد او بندګان او انسانان وو، د الله شریکان نهٔ دی، ملائك نهٔ دی. دا څلورمه مرتبه د ایمان ده ځکه چه ددے کتابونو په ذریعه دوی رسولان ګرځولے شویدی، چه اُمتونو ته به د الله کتابونه بیانوی.

(رُسُلِهٖ) لفظ ئې راوړو، دپاره د رد په یهودو چه هغوی ټول رسولان نهٔ منی.

﴿لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ اَحَدٍ مِّنْ رُّسُلِهٖ﴾ دا جمله حالیه ده او (يَقُوْلُوْنَ) لفظ پکښې پټ دے. یعنی دوی پداسے حال کښې ایمان راوړی چه وائی مونږ د هیڅ یو تن د رسولانو په مینځ کښې جدائی نهٔ کوو یعنی په ایمان راوړلو کښې، داسے نهٔ کوو چه بعضِ اُومنو او بعض نهٔ، یا شك اُوکړو چه دوی په حق وو او که نهٔ، او حق ئې راوړے وو او که نهٔ. ځکه دوی الله تعالیٰ هدایت کونکی رالیږلی وو، بنده ګانو باندے ئې حجت قائمولو، دا د الله تعالیٰ ډیر اُوچت خلق وو. او دلته د تفرقے نه مراد دا دے چه په ټولو رسولانو به یو شان ایمان راوړے شی او ټول به د الله رسولان ګڼلے شی اګرکه د دوی خپل مینځ کښې په مرتبو کښې تفاوت او فرق شته لکه چه ددے تفصیل مخکښې د دریمے سیپارے په ابتداء کښې ذکر شویدے.

﴿وَقَالُوْا سَمِعْنَا وَاَطَعْنَا﴾ یعنی دا رسول او مؤمنان الله ته داسے خبره هم کوی. چه مونږ واوریدهٔ ستا خبره، او ستا د حکم تابعداری کوو. د (سَمِعْنَا او اَطَعْنَا) مفعولونه پټ دی. (اَیْ سَمِعْنَا قَوْلَكَ وَفَهِمْنَاهُ وَاَطَعْنَا اَمْرَكَ). مونږ ستا خبره واوریدهٔ او پرے پوهه شو او ستا د حکم تابعداری کوو او په هغے باندے مضبوط اُوسیږو.

دلته د سمع نه مراد د حکم قبلول دی او په هغې رضا کیدل دی او نفس آوریدل مراد نهٔ دی، یعنی مونږ ته چه ستا د ملائکو او د رسولانو په ذریعه کوم حکم رارسیدلے دے نو هغه حق او صحیح دے، او مونږ پرے رضا یو، او مونږ د هغې قبلولو او په هغې باندے یقین او عمل کولو ته تیار یو۔ اَطَعْنَا ئے ورسره راوړو ځکه چه نفس یقین کول او آوریدل بغیر د عمل کول نه کافی نهٔ دی، بلکه عمل کول هم ضروری دی او پدے سره ایمان پوره کیږی۔

سَمِعْنَا او اَطَعْنَا ئے ماضی صیغے راوړے، دے دپاره چه دلالت اُوکړی چه دوی پدے خبره کښې ډیر مضبوط دی۔

﴿غُفْرَانَكَ رَبَّنَا﴾ هر کله چه په عمل کولو کښې د بندګانو نه تقصیر او کوتاهی ضرور کیږی، نو د هغې بخښنه هم غواړی او الله پدے ډیر رضا کیږی چه د بنده نه تقصیر اُوشی، او بیرته الله ته توبه اُوباسی او د هغه نه بخښنه اُوغواړی۔ [لَلّٰهُ اَفْرَحُ بِتَوْبَةِ عَبْدِهِ الْمُؤْمِنِ] ۔ الله د بنده په توبه ډیر زیات خوشحالیږی۔ (بخاری ومسلم)۔

غُفْرَانَكَ منصوب دے، ددے نه مخکښې د سیبویهٔ او زجاج په نیز (اِغْفِرْ) (اُوبخه) پټ دے۔ یعنی مونږ ته بخښنه اُوکړه ستا خاص بخښنه۔ یا تقدیر داسے دے:

[نَسْأَلُكَ غُفْرَانَكَ ذُنُوْبَنَا]۔ مونږ غواړو ستا نه بخښنه ستا زمونږ ګناهونو لره)۔

او سمع او اطاعت ئے په مغفرت مقدم کړل ځکه چه د دعا وسیله چه په حاجت مخکښې شی نو دا قبول والی ته ډیره نږدے وی۔ (قاسمیؒ)۔

﴿وَاِلَيْكَ الْمَصِيْرُ﴾ مصیر مصدر میمی دے په معنیٰ د صیرورة (ورګرځیدلو) سره۔ الله ته د ګرځیدلو دوه معنے دی (۱) یو دا چه ددے نه مراد الله ته په قیامت کښې ورګرځیدل دی، نو پدے کښې په بعث بعد الموت باندے اقرار دے، نو په دے کښې ایمان په قیامت ذکر شو۔

او دا ګرځیدل په ظاهر کښې ورځے ته دی، لیکن په هغه ورځ به صرف د الله تعالیٰ قدرت ښکاره کیږی نو ځکه دا ګرځیدل په حقیقت کښې الله ته شو۔

(۲) دویم د ګرځیدو نه مراد په ایمان او عمل سره ګرځیدل دی، یعنی ګویا کښې دوی د ایمان نه مخکښې د الله تعالیٰ نه تختیدونکی وو، بیا الله ته ور اُوګرځیدل او ددے مثال داسے لکه ﴿فَفِرُّوْا اِلَى اللّٰهِ﴾ (الذاریات: ۵۰) او الله ته ګرځیدل د هغه امر او حکم ته ورګرځیدل دی۔ او (اِلَيْكَ) جار مجرور ئے د حصر او اختصاص دپاره مقدم کړو۔ یعنی د دوی دا یقین دے چه ګرځیدل صرف او صرف الله ته دی نهٔ بل چا ته۔ (ابن عاشورؒ)۔

(وَاِلَيْكَ الْمَصِيْرُ) ئے ذکر کړو دا د مخکښې دپاره تذییل دے، چه زمونږ حاجت بخښې ته ځکه شته

چه تا ته کړخیدل دی او هلته به حساب کتاب وی نو مونږ ته بخنه اُوکړه۔ (قاسمیؒ)۔
نو پدے کښې ټول ایمانیات راجمع شو۔

| لَايُكَلِّفُ اللّٰهُ نَفْسًا اِلَّا وُسْعَهَا لَهَا مَا كَسَبَتْ |
|---|
| تکلیف نهٔ ورکوی الله هیڅ نفس ته مګر په اندازه د وس د هغهٔ، ددے نفس دپاره بدله د هغه عمل ده چه دهٔ کړے دے، |
| وَعَلَيْهَا مَا اكْتَسَبَتْ رَبَّنَا لَاتُؤَاخِذْنَا اِنْ نَّسِيْنَا |
| او په دے نفس باندے سزا د هغه بد عمل ده چه دهٔ کړیدے اے ربه زمونږه! مهٔ رانیسه مونږ که چرته هیر کړو مونږ (حکم ستا) |
| اَوْ اَخْطَاْنَا رَبَّنَا وَلَاتَحْمِلْ عَلَيْنَا اِصْرًا كَمَا حَمَلْتَهٗ |
| یا خطا شو مونږه۔ اے ربه زمونږه! او مهٔ بار کوه په مونږ باندے درونډ بوج لکه څنګه چه بار کړی وو تا |
| عَلَى الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِنَا رَبَّنَا وَلَا تُحَمِّلْنَا مَا |
| په هغه کسانو باندے چه زمونږ نه مخکښې وو اے ربه زمونږه او مهٔ اُوچتوے په مونږ باندے هغه څه |
| لَاطَاقَةَ لَنَا بِهٖ وَاعْفُ عَنَّا وَاغْفِرْ لَنَا وَارْحَمْنَا |
| چه نشته طاقت زمونږ په هغے باندے او معافی اُوکړه زمونږ نه او بخنه اُوکړه مونږ ته او رحم اُوکړه په مونږ باندے |
| اَنْتَ مَوْلٰنَا فَانْصُرْنَا عَلَى الْقَوْمِ الْكٰفِرِيْنَ ﴿۲۸۶﴾ |
| تهٔ مددګار (دوست) زمونږه ئے نو مدد اُوکړه زمونږ په مقابله د قوم کافرانو کښې۔ |

**تفسیر: ربط** : هرکله چه ایمان والا د الله تعالیٰ ټولو احکامو منلو ته تیار شو، او سَمِعْنَا او اَطَعْنَا ئے اُووئیل، نو الله تعالیٰ ته د دوی د زړهٔ اخلاص او محبت قبول شو، نو آسانی ئے راولیږله۔ او دا آیت ئے نازل کړو۔

دے آیت کښې دا خبره ده چه اے بندګانو! دا احکام ستاسو د وَس مطابق دی۔ ددے په عملی کولو کښې خپل وسع او طاقت خرچ کړئ۔ او پدے کښې د ایمان او د تسلیم او د طاعت ثمره او فائده رابنکاره کوی، الله خبر ورکوی چه الله په بندګانو باندے پدے دین کښې داسے تکلیف نهٔ دے مقرر کړے چه هغے کښې مشقت وی۔ بلکه دا د هر چا د وسع مطابق دین دے۔ دا وجه ده چه د شریعت احکامو ته احکام تکلیفیه وئیل هم مناسب نهٔ دی۔ بلکه دا د فطرت مطابق احکام دی

چه انسان لـه بـغیـر ددیے احکامو نه ژوند تیرول گران دی۔ او پدیے آیت کښې د مخکښې نه زیرے ورکول دی چه ستاسو راتلونکے دعا(رَبَّنَا لَا تُؤَاخِذْنَا الخ) مـا قبـولـه کړه۔ او روستو دعا ذکر کوی چه ایمان والو دا دعا د الله تعالیٰ نه طلب کړیده او الله قبوله کړیده۔

مـونـږ چـه دا دعا ذکر کوو نو پدیے کښې دوه فائدے دی، یو تعبد غرض دے چه مونږ پدیے سره د الله سبحانه د عبادت کوو، صحابه کرامؓ دا دعا لوستلے وه، عبادت ئے هم غرض وو، او اُمت ته ئے آسانی هم غـرض وه۔ چه اے الله ! گران احـکام مهٔ نازلوه۔ او مونږه ئے صرف د تعبد دپاره لولو ځکه چه اُوس نوی احکام نهٔ نازلیږی۔

دویـم دا چـه پدیے احـکـامـو کـښې د هـر انسان دپاره تخفیف پیدا کیدے شی او پدیے نازل شوی احـکـامـو کـښې هـم مـونـږ ته گنجائش دے، که د یو انسان پریے وَس نهٔ وی نو الله پریے هغه نهٔ دے مـکلف کـړے، لـکـه جهاد شو چه د زمونږه سترگے، لاسونه، ښپے نشته نو اے الله ! په مونږ جهاد مـهٔ ایږده۔ نو الله فرمائی چه تهٔ مکلف نهٔ ئے۔ مال نشته په مونږ زکاة مهٔ ایږده، نو الله فرمائی چه تـا بـانـدے نشتـه۔ اے الله ! زما د حج وَس نهٔ کیږی، نو الله فرمائی چه په تا فرض نهٔ دے۔ نو زمونږ دپاره هـم پـکـښې دا فـائـده شتـه اگرکـه دا احـکـام نازل شویدی، لیکن دا ټول احکام خو په ټولو انسانانو په یو ځل نهٔ فرض کیږی، بلکه په هغه چا فرض کیږی چه د هغه وَس رسیږی۔ نو د الله شریعت څومره آسان دے ؟!!۔

﴿ لَا يُكَلِّفُ اللّٰهُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا ﴾

**فائده** : دا قـول یـا د الله تـعـالـیٰ دے چه پدیے کښې خبر ورکوی چه الله تعالیٰ ایمان والو ته غیر اختیـاری خبـریے چـه د وَس نه بهر وی، معاف کړیدی، دوی غُفْرَانَكَ اُوویـیل نو الله ورته اُوفرمایل چه الله به دربانديے تخفیف راولی۔

○ دویـم دا چـه دا ویـنـا د رسول الله ﷺ او د ایـمـان والـو ده چـه دوی د الله تعالیٰ سمع او طاعت کوی، او دغه شان د خپل رب صفت کوی چه هغه گران احکام نهٔ دی رالیږی بلکه د وَس مطابق احـکـام دی۔ او د مـخـکـښې سره ئے ربط پدیے طریقه دے، چه دوی کله اُوویـیل : سَمِعْنَا وَاَطَعْنَا نو گـویـا کـښې دوی اُوویـیـل چـه مـونـږ بـه څـنـگه خبره نهٔ قبلوو او طاعت به نهٔ کوو ؟ حال دا چه الله تـعـالـیٰ مـونـږ پـه هـغـه شی مکلف کړی یو چه زمونږ په طاقت او وَس کښې دے، هرکله چه الله تعالیٰ په خپل رحمت سره مونږ نه د معمولی او آسان شی مطالبه کوی نو مونږ باندے د بندگیٔ په حکم سره واجب دی چه د هغه قبلونکی او تابعدار جوړ شو۔ (قاسمیؒ، ابن عاشورؒ)۔

نـو د شـریـعـت ټـول احـکـام آسان دی، دا وجـه ده چـه رسول الله ﷺ اُمت ته داسے چرته نهٔ دی

وئیلی چه تاسو زر کرته دا فلانے ذکر اُوکړئ ځکه چه اُمت ته ئے خبره نۀ ده ګرانه کړے۔
﴿ لَهَا مَا كَسَبَتْ وَعَلَيْهَا مَا اكْتَسَبَتْ ﴾ یعنی که دے عملونو باندے چا راتګ اُوکړو اجر به ورکړی او چا چه خلاف اُوکړو سزا به ورکړی۔

**نکته** : کسب : د یو شی حاصلولو ته وائی، که په هره طریقه سره وی، او اکتساب په هغے کښې مبالغه او کوشش کولو ته وائی، نو پدے کښې په بندګانو باندے د الله تعالیٰ مهربانئ ته اشاره ده چه نیک کار که په هره طریقه سره اُوکړی، نو ثواب او فائده به ورکوی، او د بد کار سزا او عذاب هله ورکوی چه په مبالغه او کوشش او مضبوط عزم سره اُوشی۔
زمخشری وئیلی دی چه په شر کښې نفس امر کونکے وی، او نفس اماره ئے تقاضا کوی، نو ددے په کولو کښې کوشش زیات وی، نو ځکه ددے دپاره اکتساب لفظ ذکر شو، او په نیک کار کولو کښې نفس سُست وی او د هغے کول نۀ غواړی، نو ددے وجه نه ددے دپاره داسے لفظ (کسب) ذکر شو چه هغے کښې تصرف او ډیر کوشش نۀ وی۔ (قاسمیؒ)
او ابن عطیةؒ ددے برعکس نکته ذکر کړیده چه د نیکیانو په کولو کښې په اصل کښې تکلیف نشته ځکه چه د دین کارونه آسان دی، نو د هغے سره کَسَبَتْ ذکر شو او د سیئاتو په کسب کښې په اصل کښې تکلیف دے ځکه چه اکثرئے د خلقونه په پټه کوی، او مشقت پکښې برداشت کوی او په آخرت کښې ئے هم تکلیف دے، ددے وجه نه د هغے سره اکتساب ذکر شو۔
(لَهَا) دائے مخکښې راوړو د تخصیص دپاره۔ او پدے کښې په شرکی شفاعت باندے رد دے چه هر نفس ته به د هغه د کسب فائده رسی، نۀ د بل چا۔ او په (عَلَيْهَا) کښې هم تقدیم د حصر او تخصیص دپاره دے، نو دا د (وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَىٰ) سره موافق دے، چه د یو نفس ګناه به صرف په هغه باندے راځی، نۀ په بل چا۔
بیا د مؤمنانو دعا : ﴿رَبَّنَا لَا تُؤَاخِذْنَا إِن نَّسِينَا أَوْ أَخْطَأْنَا﴾ دا د مؤمنانو د وینا حکایت دے چه هغه کسانو چه سَمِعْنَا او أَطَعْنَا ئے اُووئیله، نو هغوی داسے دعا هم اُوکړه، یعنی هرکله چه دوی د الله نه رضا شو، او الله د دوی حاجت قبول کړو، نو دوی د جزاء طلب کولو ته او د الله مناجات ته متوجه شو۔○ یا دا چه هرکله چه الله تعالیٰ د مؤمنانو نه تکلیفونه لرے کړل کوم چه د دوی په طاقت کښې نۀ وو، نو دوی ته ئے په دعا کولو سره د مناجات تلقین اُوکړو چه هغه د تکلیف د ختمیدو آثار دی۔ چه ما نه داسے دعا غواړئ۔
دلته (قُولُوا) (اُووایئ) لفظ پټ دے، لکه څنګه چه په سورة الفاتحه کښې (قُولُوا) پټ وو۔
او ددے دعا مطلب به دا وی چه اے الله ! مونږ پدے کارونو باندے همیشه اُوساتے۔

(ابن عاشور)۔

علامه صديق حسنؒ فرمائی: پدے آیت کښې الله تعالیٰ خپلو بندګانو ته د دعا د طریقے تعلیم ورکوی، او دا د الله تعالیٰ انتهائی کرم او احسان دے چه دوی ته د طلب تعلیم ورکوی، دے دپاره چه مطلوب ورله ورکړی۔ (فتح البیان)۔

﴿إِنْ نَسِينَا﴾: یعنی که مونږ ستا امر او نهی هیر کړو۔

﴿أَوْ أَخْطَأْنَا﴾ یعنی د صواب او حق نه خلاف کار اُوکړو په کوتاهئ وغیره سره۔

نسیان دیته وائی چه د الله حکم ترے بالکل هیر شی او هغهٔ د کولو یو عمل پریدی، یا د نهٔ کولو عمل اُوکړی۔ او خطاء دیته وائی چه اراده د یو کار وی او اُوشی بل کار۔ (امام راغبؒ)

لکه روژه کښې په اوداسه کښې خولے ته اُوبه اچوی او په خطائی ترے تیرے شی۔ کافر وژنی لیکن په خطاء ترے مسلمان اُولګی وغیره۔

اُوس دلته دا **سوال** دے چه نسیان او خطاء خو دے امت ته معاف دی لکه نبی ﷺ فرمائی :[إِنَّ اللهَ تَجَاوَزَ عَنْ أُمَّتِيَ الْخَطَأَ وَالنِّسْيَانُ] (ابن ماجه، دارقطنی، ابن حبان، حاکم وغیره) زما د امت نه خطاء او نسیان پورته کړے شویدی) یعنی دا ورته معاف شویدی۔ نو مؤمنانو څهٔ له دا دُعا کوی دا خو تحصیل د حاصل ښکاره کیږی ؟۔

**جواب ۱**: خطاء او نسیان چه معاف شوی دی نو په دے آیت معاف شوی دی۔ ګویا کښې مؤمنانو ته دا معلومه نهٔ وه چه الله به په خطاء او نسیان رانیول کوی او که نهٔ، نو چه دا دعائے اُوکړه نو الله دعا قبوله کړه او امت ته ئے اُوفرمایل چه قَدْ فَعَلْتُ (ما ستاسو دعا قبوله کړه لکه په حدیث د مسلم کښې راغلی دی) او خطاء او نسیان مے درته معاف کړل، او بیا نبی ﷺ د دغے دعا د قبلیدو تشریح په دغه حدیث سره اُوکړه۔

او دا د صحابه کرامؓ زمونږ سره لوئی احسان دے چه هغوی دا دعا اُوکړه نو الله مونږ ته هم خطاء او نسیان معاف کړل۔

**دویم جواب** دا دے چه د خطاء او نسیان د مغفرت دعا ځکه کوی چه پدے کښې د دعا ادب دے ځکه چه داسے وینا خو مناسب نهٔ ده چه اے الله ! مونږ به قصداً ورانے کوو او تهٔ به مونږ معاف کوے۔ دا دعا خو د عاقل او د مؤمن سړی د شان سره لائقه نهٔ ده، سخته بے ادبی ده، بلکه اے الله ! مونږ قصداً ستا خلاف نهٔ کوو، خو که چرته په نسیان او خطاء سره رانه اُوشی، هغه به رانه معاف کوے، دا مناسبه ده، کله کله په خطاء او نسیان کښې تقصیر وی، سړے کُسَالی، سُست وی نو خطائی ترے واقع شی۔ نو ځکه ئے خطاء او نسیان ذکر کړل او ددے د بخښے سوال ئے اُوکړو۔

(۳) علامه جمال الدین القاسمیؒ وائی چه غوره جواب چه ما موندلے دے هغه جواب د پیر محمد صاحبؒ دے په (المدحة الکبری) کښې چه ددے معافی طلب کونکے، رسول الله ﷺ او انصار او مهاجرین او د دوی په شان مؤمنان وو نو دوی به نسیان هم د گناه نه شمارلو او خطاء به ئے د خطیئے او گناه نه شمارله لکه ددے قول د الله تعالیٰ په شان ﴿وَالَّذِيْنَ يُؤْتُوْنَ مَا آتَوْا وَّقُلُوْبُهُمْ وَجِلَةٌ﴾۔ (المؤمنون/٦٠)

(٤) بعض وائی : دلته نسیان په معنیٰ د ترك (پریخودو) سره دے یعنی که مونږ پریدو ستا حکم او خطاء په معنیٰ د خطیئة یعنی گناه سره ده۔ یعنی اُوکړو گناه، نو مونږ معاف کړه۔ نو که دا معنیٰ شی، بیا هیڅ اشکال نشته۔ (قاسمی۶٤۳/۳)۔

لیکن د مؤمن شان دا نهٔ دے چه دا قسم دعا اُوکړی۔

(۵) بعض علماؤ دا جواب هم کړے چه دا نسیان او خطاء که د مخکښې نه هم معاف شوی وی، لیکن انسان له دا جائز دی چه یو شے ورته حاصل وی خو د هغے د حصول دعا اُوکړی، دے دپاره چه پدے دعا سره هغه شے ددهٔ سره همیشه پاتے شی۔ (فتح البیان)۔

(٦) بعض وائی : شرعاً اگرکه په نسیان او خطاء رانیول نشته لیکن عقلاً منع نهٔ ده چه پدے رانیول اُوکړے شی نو څکه د مغفرت سوال کوی۔

(۷) بعض وائی دلته مقصد د هغه اسبابو نه مغفرت طلب کول دی چه هغه نسیان او خطاء ته رسی چه هغه تفریط او بے باکی ده، نهٔ نفس خطاء او نسیان۔ لیکن اولنی جوابونه غوره دی۔

بیا خطاء او نسیان په حقوق الله کښې معاف دی او په حقوق العباد کښې نهٔ دی معاف لکه مثلاً یو انسان خطاءً قتل اُوکړی، نو دا معاف نهٔ دے، دیت او کفاره به ورکوی، لیکن الله ئے نهٔ راگیروی، گناهگار نهٔ دے۔

﴿رَبَّنَا وَلَا تَحْمِلْ عَلَيْنَا إِصْرًا﴾ یعنی گران احکام، اِصْر هغه گرانو احکامو ته وائی چه د هغے په برداشت کولو کښې سخت مشقت وی۔ (حرالی)

په اصل کښې اِصر په معنیٰ د قید سره دے، او مناسبت ئے دا دے چه په گران حکم سره هم انسان په خپل ځائے بند شی، د حکم د عملی کولو دپاره نشی راپورته کیدے۔

د ابن عباسؓ نه نقل دی : [إِصْرًا أَيْ عَهْدًا لَا نَفِيْ بِهِ وَنُعَذَّبُ بِتَرْكِهِ وَنَقْضِهِ] (ابن عاشورؒ ٦٠٢/٢)۔

(یعنی داسے حکم راباندے مهٔ اچوه چه مونږ د هغے وفاداری نشو کولے، او د هغے په پریخودو او ماتولو سره په عذاب کښې اخته شو)۔

﴿كَمَا حَمَلْتَهُ عَلَى الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِنَا﴾

ددے نه مراد یهودیان دي چه الله په دوي باندے گران احکام مقرر کړي وو، لکه :

○ په هغوی باندے په زکوٰة کښې څلورمه حصه مال ورکول وو. ○ د هغوی نه د چا جامے ته به چه پلیتي اُورسیده، نو هغه به ئې پریکوله. لکه په حدیث د ابوداود کښې راغلي دي.

○ په عمل به ئې اجر کم او ددے امت په معمولي عمل ډیر اجر دے.

○ مونځ ئې بغیر د گیرجے نه نهٔ کیدو، ددے امت مونځ په هر ځائے کښې کیږي.

○ د تیمم آسانی د هغوی دپاره نهٔ وه.

○ په اوداسه سره ئې مخ او لاسونه د قیامت په ورځ نهٔ سپینیدل او ددے امت به دا خصوصیت وي چه د قیامت په ورځ به ئې مخونه او لاسونه او خپے سپینې وي، د اوداسه آثار به پکښې ښکاره وي او گانړهٔ به وراغوستل شي.

دارنګه د بقرے د صفاتو په باره کښې او په میدان تِیَه کښې د ناشکرئ په وجه په بني اسرائیلو باندے چه کوم گران احکام مقرر شوي وو. (ابن عاشور).

دلته تفسیر قاسميؒ د تورات وغیره نه نقل کړي (اُوسنی توراتونو کښې هم شته) چه په هغوی باندے ډیرے پابندیانے وے.

○ په هغوی باندے د خالي په ورځ کاروبار کول بالکل حرام وو.

○ چا چه به مور یا پلار ته کنځل اُوکړل نو هغه به قتل کولے شو.

○ که یو سړي به د خپل غلام یا وینځے غاښ مات کړو نو د هغے په بدله کښې به هغه آزادیدو.

○ چا چه خپل پلار یا مور اُووهل نو هغه به پرے قتلولے شي.

○ کله چه به یو غوائي یو سړے یا ښځه اُووهله او هغه به مړ شو نو غوائي به رجم کیدو او د هغے غوښه به نهٔ خوړلے کیده او مالك به ئې بري وو.

○ او که غوائي به ډغرے وهونکے وو، او په مالك باندے به گواه پیش شو او هغه به راگیر نکړو او سړے یا ښځه به ئې قتل کړل نو غوائي به هم رجم کیدو او مالك به ئې هم قتل کیدو.

(سفر الخروج. اصحاح (۲۱).

○ شپږ کاله به تهٔ زمکه اُوکرے او د هغے غلهٔ به راجمع کرے، او په اُوم کال به زمکے له راحت ورکړے او پرے به ئې ږدے، دے دپاره چه ستا د قبیلے فقیران ئې اُوخوري، او د هغے نه چه زیاتي پاتے شي نو هغه به صحرائي حیوانات اُوخوري، دغه شان کار به تهٔ د خپلو انګورو او زیتونو سره کوے.

○ شپږ ورځے به خپل کار کوے او په اُومه ورځ به راحت کوے دے دپاره چه ستا غوائي او خر په راحت کښې شي او د وینځے ځوي او مسافر ساه واخلي. (سفر الخروج اصحاح۲۳)

○ چا چه مړ انسان له ګوتې وروړې نو اُووه ورځو پورې به پلیت وی۔
○ کله چه به یو انسان په یوه خیمه کښې مړ شو نو هر څوك چه خیمې ته داخل شو یا هر څوك چه په خیمه کښې وی، هغه به اُووه ورځو پورې نجس وی۔
○ هر لوښے چه کولاو وی او په هغې باندې د کپړې بندش نهٔ وی، نو هغه به پلیت وی۔
○ چا چه په صحراء کښې په یو وژلے شوی انسان باندې توره راخکله یائې په مړی یا په هډوکی د انسان یا په قبرئې ګوتې اُوهلې، نو هغه به اُووه ورځو پورې نجس وی۔
○ د قاتل دپاره فدیه ورکول نشته بلکه هغه به وژلے شی۔ (سفر العدد اصحاح ۳۵)۔
○ د غوا او ګډې بیزې نه چه کوم نر بچې پیدا شی، هغه به د خپل رب په نوم ورکولے شی (سفر التثنیه اصحاح ۱۵)۔
○ کله چه یو تن نجس شی له ګوتې ویسی مثلاً د صحرائی نجس حیوان جثې له، یا د پلیت مړ حیوان جثې له، نو دا پلیت او ګناهګار دے او که ددې ګناه اقرارئې اُوکړو نو د خپلې ګناه د ختمولو دپاره به د ګډو بیزو نه چیلئ یا ګډه د خپل رب په نوم ذبح کړی۔ (اصحاح ۵)۔
○ د ټیکرو په لوښی کښې که مارغه واقع شو نو څه چه په هغې کښې وی هغه پلیت دی او دغه لوښے به ماتویٔ۔ (اصحاح ۱۱)۔
○ که د ښځې نر بچې پیدا شو نو دا به یوه هفته پلیته وی، او که جینئ ئې پیدا شوه نو دوه هفتې به پلیته وی۔
○ کله چه د ښځې د نفاس نه پاکی راغله نو ډکه بتوه به راوړی د خپل ځان په کفاره کښې به ئې ورکړی۔ (سفر التثنیه اصحاح ۱۲)۔
○ څوك چه حائضې ښځې له ګوتې ویسی نو هغه به ماښامه پورې پلیت وی۔
○ او حائضې زنانه که په حالت د حیض کښې په څهٔ باندې ددهٔ اُوهله، هغه به نجس وی او په کوم شی چه کیناسته هغه به نجس وی، او څوك چه د هغې بسترې سره اُولګیدو نو هغه به جامې وینځی، او په ګرمو اُوبو به لامبی او ماښامه پورې به نجس وی۔ (اصحاح ۱۵)۔
○ که د یو سړی مخالف او سرکشه ځوی وی چه د پلار یا د مور خبره نهٔ آوری، او د هغوی ادب نهٔ اخلی، نو مور او پلار به ئې نیسی او د خپل ښار شیوخو ته به ئې بوځی او هغوی ته به اُووائی چه زمونږ دا ځوی ضدی او سرکشه دے، زمونږ خبره نهٔ منی، اسراف کونکے نشائی دے، نو د ښار ټول سړی به ئې په کاڼړو رجم کړی تردے چه مړ شی۔ (سفر التثنیه اصحاح ۲۱)۔
○ په غوائی او خر باندې په یو ځائې کرونده مهٔ کوه۔

○ په یوځائے هغه جامه مهٔ اغونده چه هغه د وړئ او د کتان نه جوړه شوی وی۔ (اصحاح ۲۲)
دغه شان نور ډیر آصار او بوجونه علامه جمال الدین قاسمیؒ په تفسیر محاسن التاویل (٦/٦٤٥) کښې د تورات نه نقل کړی هغے ته رجوع اُوکړه۔ چه دا بوجونه الله تعالیٰ په خپل فضل، کرم او احسان سره زمونږ نه لرے کړیدی۔
الله تعالیٰ خپل احسان ذکر کوی فرمائی: ﴿وَيَضَعُ عَنْهُمْ إِصْرَهُمْ﴾ (اعراف/۱۵۷)
دا پیغمبر (رسول الله ﷺ) ددے امت نه گران بوجونه ایږدی۔
﴿رَبَّنَا وَلَا تُحَمِّلْنَا مَا لَا طَاقَةَ لَنَا بِهِ﴾ ددے او د مخکښې فرق دا دے چه دلته دوه قسمه کارونه دی، یو هغه دی چه سړے ئے برداشت کولے، پورته کولے شی، خو لږ بوج شی، اصر هغے ته وائی چه بوج دے خو وَس ئے پرے رسیږی لکه بنی اسرائیلو باندے چه کوم احکام مقرر وو، د وَس نه بهر نهٔ وو، خو لږ گران وو۔ ځکه ئے هلته (لَا تَحْمِلْ) راوړو چه هغه د مجرّد صیغه ده او دلته ئے (لَا تُحَمِّلْنَا) د مزید صیغه راوړه (یعنی په زوره په چا باندے بوج اچول) ځکه تحمیل دیته وائی چه یو سړے دوه درئ وړے شی، او تهٔ پرے لس دړے واچوے چه ترے پریوځی۔ او لاندے ترے راگیر شی چه بیا پورته کیدے هم نشی۔
او دیته تکلیف د ما لا یُطاق وائی، داسے احکام په مخکنو امتونو هم نهٔ وو ځکه ئے د هغوی سره تشبیه ورنکړه۔ نو یا الله! داسے احکام مهٔ رالیږه چه د پخوانو امتونو په شان وی او داسے هم مهٔ رالیږه چه مونږه راځملوی او د هغے د برداشت نه عاجز کیږو بلکه آسان احکام راولیږه۔
په ﴿مَا لَا طَاقَةَ لَنَا﴾ کښې وسوسه هم داخل ده چه د سړی د هغے د رد کولو وَس نهٔ رسیږی او زړهٔ کښې تیریږی۔ دارنگه عشق او هغه گناه چه توبه او کفاره ئے نهٔ وی هم په کښې داخلیږی۔
نو الله تعالیٰ دا دُعا قبوله کړه۔ په حدیث د مسلم کښې راځی چه صحابه کرامو دا دعا اُوکړه نو الله سبحانه جواب ورکړو (قَدْ فَعَلْتُ، قَدْ فَعَلْتُ)
او بل روایت کښې دی (نَعَمْ، نَعَمْ) دریے ځل الله تعالیٰ ددے جواب اُوکړو چه ما اُوکړو، ما اُوکړو، ما اُوکړو)۔ دے امت ته خطاء او نسیان معاف۔
او دے امت باندے گران احکام الله نهٔ دی ایخودی۔ ډیر ښکلے او آسان احکام، تول د هغهٔ د محبت او د مینے دین دے، آسان دین دے۔ مونځونو، روژو، عبادات او معاملات او معاشراتو تولو کښې آسانی ده۔
﴿وَاعْفُ عَنَّا وَاغْفِرْ لَنَا وَارْحَمْنَا﴾ (۱) عفو دیته وائی چه کومه گناه مونږ نه شوی وی، زمونږ او ستا په مابین کښې هغه معاف کړه، او مغفرت دا دے چه هغه د خلقو نه پټه کړه، او رحم دا اُوکړه

چه په راتلونکې وخت کښې بيا رانه دا ګناهونه نهٔ کيږي۔
ابن کثيرؒ او امام راغبؒ ليکلي دي چه انسان د ګناهونو په باره کښې درے څيزونو ته محتاج دے اول عفو ته چه هغه د ګناه عقوبت او سزا ساقطول دي۔
دويم مغفرت يعنې په بنده باندے پرده اچول چه خلقو کښې شرمنده نهٔ شي۔
دريم په آينده کښې د ګناهونو نه ساتل او په هغه باندے رحم کول او د نيکۍ توفيق ورکول او هر روستنے شے د مخکښې نه ډير کمال والا دے۔
(۲) دويم فرق: عفو د صغيره ګناهونو سره لګي او مغفرت د کبيره ګناهونو سره، او رحم د شبهاتو سره لګي۔ يعنې د واړهٔ او لوئې ګناهونو او شبهاتو نه مو بچ کړه۔
(۳) بعض وائي: خسف، مسخ او قذف سره لګي۔ يعنې مونږ په زمکه مهٔ داخلوه او شکلونه مو مهٔ بدلوه، او د کاڼړو د باران نه مو اُوساته۔
**فائده:** پدے درے جملو کښې ئے (رَبَّنَا) اُونهٔ وئيلو ځکه چه مخکښې درے څيزونه تير شويدي، هغه فروع دي او دا درے څيزونه د هغے اصول دي۔ ځکه چه عفو د نهٔ رانيولو دپاره اصل دے، او مغفرت د مشقت لرے کولو دپاره اصل دے، او رحم د دنياوي او اُخروي سزاګانو او تکليفونو لرے کولو دپاره اصل دے۔ نو هر کله چه د مخکښې درے څيزونو استجابت او قبول والے اُوشو نو دا درے واړه به هم په طريق اولیٰ سره قبول وي۔ (ابن عاشور۲/۶۰۲)۔
﴿ أَنتَ مَوْلَانَا ﴾ دا ئے د مخکښې نه جدا کړو ځکه چه دا د مخکښې دپاره د علت په شان دے يعنې دا تيرے شوے دعاګانے او اميدونه مونږ تا نه ځکه کوو چه تهٔ زمونږ مولیٰ او مالك ئے، او د مولیٰ شان دا دے چه هغه به د خپلو مملوکينو او غلامانو سره نرمي کوي۔
او دارنګه دا د روستو دعا دپاره مقدمه او وسيله ده۔ (ابن عاشورؒ)
د مولیٰ ډيرے معنے دي، دلته ئے د مالك او دوست او ناصر (مددګار) او مَرجَع معنیٰ ده۔
﴿ فَانصُرْنَا عَلَى الْقَوْمِ الْكَافِرِينَ ﴾ فاء ئے راوړه ځکه دا په مَولیٰ باندے تفريع ده ځکه چه شان د مولیٰ دا دے چه د خپلو غلامانو سره به مدد کوي۔
دارنګه په فاء راوړو کښې ددے په طلب د قبولو کښې تاکيد دے۔ ځکه چه دا ئے مرتب کړو په يو ثابت صفت باندے چه هغه الله تعالیٰ د مؤمنانو مولا کيدل دي۔ يعنې هر کله چه الله د مؤمنانو مولیٰ او دوست شو او دوست خو د خپلو دوستانو سره مدد کوي۔
او دا دعا ئے په اهتمام سره ذکر کړه ځکه چه دا د دنيا او د آخرت خيرونو لره راجمع کونکے ده، ځکه چه کله دوی سره د دشمن په مقابله کښې مدد اُوشو، نو د دوی ژوند به مزيدار شي، او دين

بـه ئې غـالبـه شـي او د فـتـنـو نه به بچ پاتې شي، او خلق به په دين كښې ډله ډله داخليږي نو ددې نه بل کوم ښهٔ حالت کيدې شي ؟! (ابن عاشور).

او پدې کښې اشاره ده چه پدې سورت کښې کوم مضامين او احکام بيان شو، نو مؤمنان به ئې په ځان هـم نافذ کوي، او په بل باندې به ئې هم نافذ کوي، او څوك چه رکاوټ واقع کيږي، نو د هغوی سره به جهاد کولے شي نو مؤمـنـانو له پکار دی چه ددې سورت د مخالفينو کافرانو سره د الله په لاره کښې جهاد اُوکړي په ژبه او توره سره، او د دوی په مقابله کښې د الله تعالیٰ نه مدد طلب کړي. (فتح البيان).

او اشاره ده چه جهاد به د مؤمنانو يو آهم مقصد او مطلب وي.

**فائده :** د معاذ بن جبل ﷛ نـه نقل دی چه هغه به پدې مقام کښې (آمِيْن) وئيلو يعني اې الله! دا دعـا زمـونږ قبـوله کړه) او الله هم دا دعا قبوله کړيده لکه مخکښې حديث تير شو (قَدْ فَعَلْتُ). الله فـرمـائي چـه مـا دا کارونه اُوکړل. نو الله به ضرور د ايمان والو سره مدد کوي کله چه مؤمنانو کـښې صـحـيـح ايمان وي. ليکن کله چه د کافرانو په مقابله کښې د ايمان والو سره مدد نهٔ کيږي، نـو ضـرور بـه زمـونږ په اعمالو کښې نقصان وي او ددې سورت احکام به مو پوره طريقې سره ځان کښې نهٔ وي راوستي. وَاللهُ الْمُسْتَعَانُ وَبِاللهِ التَّوْفِيْقُ.

## امتيازات ددې سورت

(يعني دا سورت د مخکښې سورت نه په کومو خصوصياتو جدا دې).

۱ - داسـورت جـامـع دې، د اسلام شپږ اصول ئې جمع کړيدي لکه ايمانيات، عبادات، اخلاق، معاملات، معاشرات او خلافت او نظام.

۲ - پـدې کښې د يهوديانو ډير قبائح ذکر شو چه په هغې کښې د هغوی اصلاح او امت ته تحذير (يره ورکول) غرض دی.

۳ - د ديـنـي خلافت مسئله ئې بيان کړه چه اهل خلقو ته الله تعالیٰ خلافت ورکوي، او د نا اهلو او بدو صفاتو والا نه ئې اخلي. لکه يهوديان شو

٤ - قصه د بقرې د يهوديانو د معبود د سپك ښکاره کولو دپاره ذکر شوه.

٥ - پـنـځه واقعات دی چه په هغې کښې بعث بعد الموت شوې دی. څلور د بني اسرائيلو او يو د ابراهيم ﷺ سره. ٦ - پدې کښې سردار آيت دې (آية الکرسي).

۷ - واقعه د طالوت صرف په همدې سورت کښې ذکر ده.

۸ - د ابراهيم ﷺ امامت او بيا د هغه د بيت الله جوړولو واقعه.

۹- مسئله د قبلې بدلیدو په کښې ذکر ده.
۱۰- او نور انفرادي، سیاسي او اجتماعي او منزلي احکام پکښې ذکر دي.
۱۱- او آخره کښې د مؤمنانو مستجابه دعا ده. او د عرش د لاندې خزانو نه دوه آیتونه پکښې ذکر دي. داسې نور واقعات او احکام پکښې ذکر دي چه نورو سورتونو کښې نهٔ دي بیان شوي.

الحمد لله د سورة البقرې تفسیر د هغه په فضل او کرم سره پوره شو. الله تعالیٰ ته لاس په دعا یم چه الله سبحانه زمونږ گناهونه او خطایانې معاف کړي او د کوم مقصد چه مونږ اراده کړیده هغه سر ته په خیر سره اُورسوي، او د خپلو بندګانو ترمینځ ئې مقبول او منظور اُوګرځوي او ددې فائده عامه کړي. او ددې په وجه د خلقو د زړونو شوق او محبت د خپل کتاب سره پیدا کړي. آمین یارب العالمین.

صباح یوم الاربعاء ۲۰/شوال المکرم سنة (۱٤۳۱ هجریة
(۲۹/ستمبر ۲۰۱۰ء)
(تصحیح پوره شوه په لیلة السبت صفر المظفر (۳) (۱٤۳۲) هـ بحمد الله وحسن توفیقه مسجد حمزه بشاور. ابو محمد امین الله البشاوري).

**تفسیر حکمة القرآن**

---

**دویم جلد ختم شو**

ooooooooo

# فهرست تفسیر حکمة القرآن جلد (۲)

السلام علیکم

څو حدیثو رولو ماته ورسره

دعاګانې کوې

جزاک خیرا

اخوکم ابو عبدالرحمن